# فَتْحُ الْهِدَايَة




## هِدَايَة

داول حل لپاره په آسانه معیاري پښتو
دهدایې یوه جامع شرحه

ژباړه او ترتیب

مولوي حبیب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهدايه

## پښتو شرح

# هدايه

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
د هدايې يوه جامع شرحه

د حديثونو تخريج
د متن بشپړ اعراب
صرفي تحقيق
د لغاتو حل

پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله يوه جامع مقدمه

تعيين د قول راجح
د هرې جملې تر څنګ ژباړه
د عنواناتو اضافه
صورت د مسئلې

خلورم ټوک

باب الإيلاء - باب اليمين في تقاضى الدراهم

ژباړه او ترتيب:
مولوى حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه

صداقت کتب خانه

بسم الله الرحمن الرحيم



## د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم : فتح الهدایه پښتو شرح هدایه

ژباړه او ترتیب : مولوي حبیب الرحمن مدني

ټوک: څلورم ټوک

خپرندوی : صداقت کتب خانه/ کندهار

کمپوز/ ډیزاین : صداقت د کتاب چاپولو اداره

د چاپ کال : ۱۳۹۷ ل./ ۱٤۳۷ هـ.ق./ ۲۰۱۹ م.

د خپرونو لړ : ۲٦۷

چاپ شمېر



د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ایمیل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

## بَابُ الْإِيْلَاء



## بَابُ الْخُلْع

## فَصلٌ فِي الْكَفَّارَةِ

## فَصْلٌ (فِيْ نَفَقَةِ الْعَبْدِ وَغَيْرِهِ)



## كِتَابُ الْعَتَاقِ

# بَابُ الْإِيْلَاءِ

(دا) باب دايلاء (داحكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: ښكاره دي وي چي ښځه په څلورو طريقو سره حراميږي: ① طلاق. ② ايلاء. ③ ظهار. ④ لعان. په دې ټولو كي اول مصنف رَحِمَهُ الله د طلاق احكام او تفصيلات بيان كړل: ځكه چي طلاق په تحريم كي اصل دى او په خپل وخت كي مباح دى. اوس تر هغه وروسته دايلاء احكام بيانوي: ځكه چي ايلاء طلاق ته په اباحت كي ډېره نژدې ده: ځكه ايلاء مشروع يمين ته وايي. علامه اتزاري رَحِمَةُ اللهِ عَلَيْهِ فرمايي چي قياساً پكار داوه چي صاحب د هدايې اول خلع ذكر كړې واى: ځكه چي خلع هم يو ډول طلاق دى خو څرنګه چي خلع د ښځي له طرفه وي او د مال په عوض كي وي. نو په دې وجه يې هغه تر ايلاء وروسته ذكر كړه او ايلاء يې د طلاق سره متصل ذكر كړه. (بناية ج:۵. ص:۲۶۸)

**د ايلاء لغوي او اصطلاحي معنى**: ايلاء د افعال د باب مصدر دى: آلى يُوْلِيْ اِيْلَاءً. د اِيْلَاء لغوي معنى ده: قسم كول (قسم اخيستل).

او د ايلاء شرعي معنى ده: مَنْعُ النَّفْسِ عَنْ قِرْبَانِ الْمَنْكُوْحَةِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا مَنْعًا مُؤَكَّدًا بِالْيَمِيْنِ. (يعني څلور مياشتي يا تر دې زيات ښځي ته د "نه نژدې كېدلو" (او جماع نه كولو) قسم كول).

كله چي خاوند داسي قسم وكړي او بيا څلور مياشتي ښځي ته نژدې نه سي. نو يو طلاق بائن واقع كيږي. او كه قسم مات كړي او ښځي ته نژدې سي. نو بيا به د قسم كفاره اداء كوي. او كه يو سړى له څلورو مياشتو څخه كم د "نه نژدې كېدلو" قسم وكړي. نو په محاوره كي دې ته هم ايلاء وايي. لېكن په دې سره طلاق نه واقع كيږي خو بيا هم كه هغه په دغه كم مودت كي ښځي ته نژدې سي. نو د قسم كفاره به اداء كوي.

## د ايلاء شرعي تعريف او حكم

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ او كله چي خاوند خپلي ښځي ته ووايي: په الله قسم! زه به تا ته نه نژدې كيږم ايعني په خداى قسم كه در نژدې سم. او په خداى قسم كه وطي در سره وكړم! أَوْ قَالَ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ يا اداسي اووايي: په الله قسم! زه به تا ته څلور مياشتي نه نژدې كيږم فَهُوَ مُوْلٍ نو هغه ايلاء كونكى دى لِقَوْلِهِ تَعَالَى: لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ [البقرة: ۲۲۶] ځكه الله

تعالیٰ فرمايلي دي: او کوم خلک چي قسمونه کوي د خپلو ښځو اله جماع څخه د هغو لپاره څلور مياشتي انتظار کول دي.

**اللغات:** ﴿لَا أَقْرَبُ﴾ د سمع له باب څخه د نفي صيغه ده: نژدې کېدل، نژدې راتلل (مراد ځني وطي کول دي). ﴿مُؤْلٍ﴾ د افعال له باب څخه د اسم فاعل صيغه ده. په اصل کي مُؤْلِيٌ وو پر وزن د مُفْعِلٌ: ايلاء کونکی، قسم کونکی. ﴿تَرَبُّص﴾ د تفعل مصدر دی: انتظار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د ورځو له صراحت څخه بغير مطلقاً خپلي ښځي ته ووايي: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ، نو په دې صورت کي هغه بالإجماع ايلاء کونکی شمارل کيږي. لېکن که هغه د ورځو صراحت وکړي او داسي ووايي: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ. يعني أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ په ښکاره لفظو سره ذکر کړي. نو په دې صورت کي فقط زموږ په نېز هغه ايلاء کونکی ګرځي. لېکن د شوافعو او مالکيه وو په نېز هغه ايلاء کونکی نه ګرځي: ځکه چي د دې حضراتو په نېز په دغه صورت کي د څلورو مياشتو له پوره کېدلو څخه وروسته قسم پوره کيږي او په څلورو مياشتو کي د ښځي خاوند ته د رجعت کولو حق سته. لهذا تر څو چي هغه تر څلورو مياشتو د زيات قسم نه وکړي. نو تر هغه وخته پوري ايلاء کونکي نه ګرځي (خو کله چي تر څلورو مياشتو زيات قسم وکړي که څه هم يوه ورځ زياته کړي. نو بيا د دوی په نېز هغه ايلاء کونکي ګرځي).

لېکن دا آيت: لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ (الآية) د دغه حضراتو په خلاف حجت او دليل دی: ځکه چي په دې آيت کي تَرَبُّص او انتظار فقط پر أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ (څلورو مياشتو) موقوف کړی سوی دی او پر څلورو مياشتو هيڅ زياتوب نه دي سوی. لهذا بل چا ته به هم پر دې آيت د اضافه او زياتوب کولو هيڅ حق نه وي.

## د ايلاء په مودت کي د وطي (جماع) کولو يا نه کولو بيان

**فَإِنْ وَطِئَهَا فِي الْأَرْبَعَةِ الْأَشْهُرِ** نو که [خاوند] د دغه ښځي سره په څلورو مياشتو کي [دننه] وطي وکړي **حَنِثَ فِي يَمِينِهِ** نو هغه په خپل قسم کي حانث کيږي **وَلَزِمَتْهُ الْكَفَّارَةُ** او کفاره پر لازميږي لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ مُوجِبُ الْحِنْثِ ځکه چي کفاره د حانث کېدلو واجبونکې ده يعني کفاره حنث واجبوي **وَسَقَطَ الْإِيلَاءُ** او ايلاء ساقطيږي لِأَنَّ الْيَمِينَ تَرْتَفِعُ بِالْحِنْثِ ځکه چي قسم په حانث کېدلو سره ختميږي **وَإِنْ لَمْ يَقْرَبْهَا حَتَّى مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ** او که [خاوند] ښځي ته نژدې نه سي تر دې چي څلور مياشتي تيري

سي بَانَتْ مِنْهُ بِتَطْلِيقَةٍ نو ښځه په يوه طلاق سره بائنه کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَبِيْنُ بِتَفْرِيْقِ الْقَاضِيْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې (په دې صورت کې به) ښځه د قاضي په تفريق سره بائنه کيږي لِأَنَّهُ مَانِعٌ حَقَّهَا فِي الْجِمَاعِ ځکه چې خاوند په جماع کې د ښځې د حق مانع دی (يعنې په ايلاء کې خاوند د ښځې د جماع حق له هغې څخه منع کړی دی) فَيَنُوْبُ الْقَاضِيْ مَنَابَهُ فِي التَّسْرِيْحِ نو په تسريح کې به قاضي د هغه قائم مقام کيږي كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ لکه په مقطوعُ الذکر او عنين کې (چې قاضي قائم مقام کيږي) وَلَنَا: أَنَّهُ ظَلَمَهَا بِمَنْعِ حَقِّهَا زموږ دليل دا دی: چې خاوند د ښځې د حق په منع کولو سره پر هغې ظلم کړی دی فَجَازَاهُ الشَّرْعُ بِزَوَالِ نِعْمَةِ النِّكَاحِ عِنْدَ مُضِيِّ هٰذِهِ الْمُدَّةِ لهذا شريعت هغه ته د ايلاء د مودت د پوره کېدلو په وخت کې د نکاح د نعمت په زائلولو سره بدله (سزا) ورکړه وَهُوَ الْمَأْثُوْرُ عَنْ عُثْمَانَ وَعَلِيٍّ وَالْعَبَادِلَةِ الثَّلَاثَةِ وَزَيْدِ ابْنِ ثَابِتٍ او همدا (حکم) د عثمان، علي، عبادله ثلاثه او زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِيْنَ څخه نقل سوی دی وَكَفٰى بِهِمْ قُدْوَةٌ او (زموږ لپاره) د هغو اقتداء (او لاربښوونه) کافي ده وَلِأَنَّهُ كَانَ طَلَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ او ځکه چې ايلاء د جاهليت په زمانه کې طلاق وو فَحَكَمَ الشَّرْعُ بِتَأْجِيْلِهِ إِلَى انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ نو شريعت (د ايلاء) د مودت تر پوره کېدلو پورې د هغه (طلاق) د مؤخر کولو حکم وکړی.

**اللغات:** ﴿تَسْرِيْح﴾ د تفعيل مصدر دی: په بل چا ښځه پرېښوول. ښځه ايله کول. ﴿جَبّ﴾ د تناسل آله (ذکر) پرېکېدل. ﴿عِنَّة﴾ د جماع قدرت نه لرل. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل. پوره کېدل. ختمېدل. ﴿مَأْثُوْر﴾ د مفعول صيغه ده: نقل کړی سوی، مروي. ﴿قُدْوَة﴾ قِدْوَة، قَدْوَة: لاربښوود. رهنما. مقتدا. ﴿تَأْجِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل. نېټه داره کول. تأخير (ځنډول). ﴿العبَادِلة الثَّلَاثة﴾ درې عبد الله ګان. له دې څخه د فقهاؤ په اصطلاح دا درې صحابه کرام مراد دي: ① عبد الله بن مسعود رضي الله عنه. ② عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. ③ عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. او د محدثينو په اصطلاح له "عَبَادِلَة" څخه دا څلور صحابه مراد وي: عبد الله بن عمر، عبد الله بن عباس، عبد الله بن زبير، عبد بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ. (بناية ج:۵. ص:۲۷۱)

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که تر ايلاء کولو وروسته خاوند خپل ځان کنټرول نه کړي او بې واکه سي او د ايلاء په مودت يعني په څلورو مياشتو کې دننه د ښځې سره جماع وکړي. نو په دې صورت کې هغه په خپل قسم کې حانث کيږي او پر هغه کفارهٔ يمين لازميږي. ځکه چې کفاره د

حانث کېدلو موجب ده او هغه پر حانثېدونکي کس واجبيږي. نو کله چي پر هغه کفاره واجب سي. بيا د هغه ايلاء ختميږي: ځکه چي د ايلاء دار ومدار پر قسم دی او کله چي قسم مات سي او ختم سي. نو ښکاره خبره ده چي ايلاء به هم ختميږي او د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره به پر ښځي هيڅ طلاق نه واقع کيږي.

**وإن لم يقربها إلخ**: او که خاوند پر خپل قسم مضبوط او مستقيم پاته سي او څلور مياشتي ښځي ته لاس هم نه وروړي. نو د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره سمدستي د خاوند او ښځي په مينځ کي تفريق واقع کيږي يعني پر ښځي يو طلاق بائن واقع کيږي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي فقط د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره سمدستي تفريق نه واقع کيږي. بلکي تر څلورو مياشتو وروسته به تفريق موقوف وي يعني که تر څلورو مياشتو وروسته خاوند د ښځي سره جماع نه وکړي يا د رجعت کولو څخه انکار وکړي. نو بيا به دا مقدمه د قاضي په دربار کي وړاندي کيږي او قاضي به د دوی په مينځ کي تفريق کوي او پر ښځي به طلاق بائن واقع کوي.

لنډه دا چي زموږ او د شوافعو په مسلک کي فقط دومره فرق سته چي د هغو په نېز به تفريق د قاضي په قضاوت سره واقع کيږي. او زموږ په نېز د مودت په پوره کېدلو سره تفريق واقع کيږي.

**د امام شافعي دليل**: د قاضي پر تفريق د شوافعو دليل دا دی چي جماع او وطي د ښځي حق دی. او خاوند څلور مياشتي ښځي ته د دغه حق په نه ورکولو سره هغې ته ضرر رسولی دی. او تر څلورو مياشتو تر پوره کېدلو وروسته دا معلومه سوه چي خاوند إِمْسَاكٌ بِالْمَعْرُوْف نه کوي. لهذا کله چي خاوند إمساک بالمعروف فوتوي. نو ښکاره خبره ده چي قاضي به د هغه نائب جوړيږي او تَسْرِيْح بِالإِحْسَان به کوي. ځکه چي قرآن کريم دا اعلان کړی دی: فَإِمْسَاكٌ بِالْمَعْرُوْفِ أَوْ تَسْرِيْحٌ بِالإِحْسَان. يعني کله چي د مطلقه ښځو عدت پوره سي. نو تاسي هغوی په شرعي طريقه يا د ځان سره وساتئ! يا يې په ښه طريقه سره پرېږدئ!.

**زموږ دليل**: دا دی چي د ايلاء په مسئله کي خاوند ظالم دی او شوافع هم د دې اقرار کوي. نو ظالم ته فوراً سزا ورکول پکار دي او په دې باره کي يو ګړی هم تأخير نه کول پکار دي. نو ځکه موږ وايو چي د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره به سمدستي خاوند ته د ظلم بدله ورکول کيږي او هغه به د نکاح له نعمت څخه محرومول کيږي او په دې سلسله کي به د قاضي د قضاوت انتظار نه کيږي د دې لپاره چي ژر تر ژره ښځه له خاوند څخه په پوره توګه آزاده سي او د خاوند له ضرر څخه د همېشه لپاره خلاصون تر لاسه کړي. او دا حکم موږ له خپل ځان څخه نه بيانوو. بلکي له غټو صحابه کرامو څخه همدغه حکم او مسئله نقل سوې ده. چي په هغو کي حضرت عثمان. حضرت علي. حضرت عبد الله

بن مسعود، حضرت عبد الله بن عباس او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم دي. او ښکاره خبره ده چي له دومره صحابه وو څخه ديوې مسئلې نقل، کېدل د دې خبري قوي دليل دی چي يقيناً به هغو دا حکم له خپل ګران پيغمبر ﷺ څخه اورېدلی وي. او د دې حضراتو فيصله او فتویٰ زموږ لپاره کافي ده.

ولأنه إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چي د جاهليت په زمانه کي به هم ايلاء طلاق شمارل کېدی لېکن په هغه وخت کي ايلاء طَلاق عَلَى الفَوْر وو يعني د ايلاء کولو په وخت کني سمدستي پر ښځي طلاق واقع کېدی. او اسلام هم ايلاء طلاق وشماري. لېکن فرق صرف دومره دی چي د جاهليت په زمانه کي ايلاء طلاق عَلَى الفور وو لېکن په اسلام کي دا د څلورو مياشتو تر پوره کېدلو وروسته طلاق وګرځېدی. نو څرنګه چي د جاهليت په زمانه کي د ايلاء په ذريعه واقع کېدونکي طلاق د قاضي پر تفريق موقوف نه وو. همدارنګه په اسلام کي هم هغه د قاضي پر تفريق موقوف نه کړی سو.

## د ايلاء د قسم تفصيلي بيان

فَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلَى أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ بيا که [خاوند] د څلورو مياشتو قسم کړی وي فَقَدْ سَقَطَتِ الْيَمِينُ نو قسم ساقطيږي لِأَنَّهَا كَانَتْ مُؤَقَّتَةً بِهِ ځکه چي قسم په همدغه مودت سره مؤقت [متعين] وو وَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلَى الْأَبَدِ او که هغه د همېشه لپاره قسم کړی وي فَالْيَمِينُ بَاقِيَةٌ نو قسم [اوس هم] پاته دی لِأَنَّهَا مُطْلَقَةٌ ځکه چي قسم کول مطلق دي وَلَمْ يُوجَدِ الْحِنْثُ لِتَرْتَفِعَ بِهِ او حانث کېدل هم موجود سوي نه دي چي په هغه سره قسم ختم سي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَكَرَّرُ الطَّلَاقُ قَبْلَ التَّزَوُّجِ خو دا چي تر نکاح کولو مخکي طلاق نه مکرر کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ مَنْعُ الْحَقِّ بَعْدَ الْبَيْنُونَةِ ځکه چي تر بائنه کېدلو [فُرقت] وروسته د ښځي د حق منع کول موجود نه سو فَإِنْ عَادَ فَتَزَوَّجَهَا بيا که هغه واپس راسي او د دې ښځي سره [دويم ځل] نکاح وکړي عَادَ الْإِيلَاءُ نو ايلاء [هم] را ګرځي [يعني د ايلاء حکم هم را ګرځي] فَإِنْ وَطِئَهَا وَإِلَّا وَقَعَتْ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ تَطْلِيقَةٌ أُخْرَى بيا که هغه د ښځي سره وطي وکړي انو پر هغه کفاره لازميږي] کني د څلورو مياشتو تر پوره کېدلو وروسته به دويم طلاق واقع کيږي لِأَنَّ الْيَمِينَ بَاقِيَةٌ لِإِطْلَاقِهَا ځکه قسم [اوس هم] پاته دی د خپل مطلقوالي په وجه وَبِالتَّزَوُّجِ ثَبَتَ حَقُّهَا او په نکاح کولو سره د ښځي حق ثابت سوی دی فَيَتَحَقَّقُ الظُّلْمُ نو [په دې صورت کي [به] پر ښځي]

ظلم کول ثابت سي وَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاءُ هٰذَا الْإِيلَاءِ مِنْ وَقْتِ التَّزَوُّجِ او د دې ايلاء د ابتداء اعتبار به د نکاح کولو د وخت څخه کيږي فَإِنْ تَزَوَّجَهَا ثَالِثًا بيا که [خاوند] د دې ښځې سره دريم وار نکاح وکړي عَادَ الْإِيلَاءُ نو ايلاء [بيا] را واپس کيږي وَوَقَعَتْ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ أُخْرٰى او د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره بل [دريم] طلاق واقع کيږي إِنْ لَمْ يَقْرَبْهَا [په دې شرط] که [هغه] ښځې ته نژدې نه سي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ بيا به که تر دويم خاوند وروسته [اول خاوند] د هغې سره نکاح وکړي لَمْ يَقَعْ بِذٰلِكَ الْإِيلَاءِ طَلَاقٌ نو په هغه ايلاء سره طلاق نه واقع کيږي لِتَقَيُّدِهِ بِطَلَاقِ هٰذَا الْمِلْكِ ځکه چي هغه د دغه [اول] ملکيت په طلاق سره مقيده ده وَهِيَ فَرْعُ مَسْأَلَةِ التَّنْجِيزِ الْخِلَافِيَّةِ او دا [مسئله] د تنجيز د مختلف فيه مسئلې فرع ده ايعني دا مسئله د تنجيز د مسئلې فرع ده چي په هغه کي اختلاف وو[ وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او هغه مخکي تېره سوه وَالْيَمِينُ بَاقِيَةٌ لِإِطْلَاقِهَا وَعَدَمِ الْحِنْثِ او د قسم د مطلقوالي په وجه او د نه حانث کېدلو په وجه[ په دې صورت کي هم] قسم پاته دی فَإِنْ وَطِئَهَا كَفَّرَ عَنْ يَمِينِهِ بيا که [خاوند] د هغې سره وطي وکړي نو د خپل قسم کفاره به اداء کوي لِوُجُودِ الْحِنْثِ ځکه چي حانث کېدل موجود دي ايعني ځکه چي هغه په خپل قسم کي حانث سو[.

**اللغات:** ﴿بَيْنُوْنَةٌ﴾ د ضرب مصدر دی: بائنه کېدل (فرقت واقع کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ايلاء کونکي خپل قسم پوره کړی او ښځې ته نژدې نه سو. نو د دې دوه صورتونه دي: ① خاوند به يا د څلورو مياشتو قسم کړی وي. ② يا به يې د همېشه لپاره قسم کړی وي، که اول صورت وي. يعني خاوند فقط د څلورو مياشتو قسم کړی وو. او هغه دا قسم پوره کړی. يعني تر څلورو مياشتو پوري يې د ښځې سره وطي نه وکړي. نو د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره فوراً (سمدستي) قسم ساقطيږي. ځکه چي هغه په څلورو مياشتو سره قسم مؤقت کړی وو.

او که چيري دويم صورت وي. يعني خاوند د همېشه لپاره قسم کړی وو. نو د څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره پر ښځې يو طلاق بائن واقع کيږي. او يمين باقي پاتيږي. ځکه چي خاوند مطلق يمين (قسم) کړی دی. او بيا خاوند وطي هم کړې نه دي. نو حِنث (حانثېدل) هم موجود نه سو چي د هغه په وجه يمين ختم سي. نو ځکه به يمين باقي پاته وي. لېکن که تر يوه طلاق بائن وروسته خاوند د ښځې سره نکاح نه وکړه او بيا څلور مياشتي پوره سوې. نو پر ښځې دويم طلاق نه واقع کيږي. ځکه چي په اول طلاق سره ښځه بائنه سوې ده. او دويم ځل خاوند د ښځې سره نکاح هم نه ده

کړي. لهذا دلته دا خبره نه سي کېدلای چې خاوند د ښځي سره ظلم وکړی او څلور میاشتي يې هغې ته د خپل وطي حق نه ورکړی، نو ځکه به تر څلورو میاشتو وروسته دویم طلاق نه واقع کیږي.

**قوله عاد إلخ:** فرمایي که چیري خاوند د اول طلاق تر عدت تېرېدلو وروسته دویم ځل بیا د ښځي سره نکاح وکړه، نو په دې صورت کې د ایلاء حکم هم دویم ځل راګرځي. یعني اوس که خاوند په دویمه نکاح کې په څلورو میاشتو کې دننه وطي وکړي، نو یمین ختميږي. او هغه حانث کیږي. او که وطي نه وکړي، نو د څلورو میاشتو په پوره کېدلو سره دویم طلاق واقع کیږي. ځکه چې د یمین د مطلق کېدلو په وجه یمین اوس هم پاته دی، او د دویم ځل نکاح کولو په وجه د ښځي لپاره د وطي حق هم ثابت سوی دی. نو تر څلورو میاشتو پوري ښځي ته د خپل حق نه ورکولو په وجه خاوند پر هغې ظلم کړی دی. لهذا له ښځي څخه د ضرر دفع کولو په خاطر به د څلورو میاشتو په پوره کېدلو سره سمدستي پر ښځي دویم طلاق بائن واقع کیږي. او په نورو څلورو میاشتو کې به د نکاح د وخت څخه ایلاء شروع کیږي. او د نکاح د وخت څخه به د څلورو میاشتو مودت شمارل کیږي.

**قوله تزوجها ثالثا إلخ:** فرمایي که چیري خاوند دریم ځل هم د ښځي سره نکاح وکړه، لېکن په دې نکاح کې یې هم تر څلورو میاشتو پوري د ښځي سره جماع نه وکړه، نو څرنګه چې قسم مطلق وو. لهذا د دریم ځل نکاح کولو په وخت کې به بیرته د ایلاء حکم راګرځي، او د وطي نه کولو په صورت کې به څلور میاشتي وروسته دریم طلاق واقع کیږي، او ښځه به په دې دریم طلاق سره مغلظه ګرځي.

**قوله تزوجها إلخ:** فرمایي که چیري د دریو طلاقو تر وقوع وروسته ښځي د بل خاوند سره نکاح وکړه. او بیا دویم خاوند په هغې دخول وکړی او طلاق یې ورکړی. او تر عدت ختمېدلو وروسته دا ښځه بیرته د اول خاوند په نکاح کې راغله. نو په دې صورت کې د مخکنی ایلاء حکم ختميږي. او په هغه سره هیڅ طلاق نه واقع کیږي. که څه هم خاوند د ښځي سره څلور میاشتي وطي نه وکړي: ځکه چې مخکنی ایلاء د اولي نکاح د ملکیت سره مقیده وه. او د اولي نکاح ملکیت دري طلاقه وو. او خاوند هغه دري سره طلاقه استعمال کړل. او اوس ښځه د نوي سره د هغه په نکاح کې راغلې ده. نو مخکنی ایلاء به اوس د دویمي نکاح په ملکیت (دریو طلاقونو) کې هیڅ عمل نه کوي. ځکه چې هغه په پوره توګه ختمه سوه.

**وهي فرع إلخ:** فرمایي چې ایلا د طلاق د معلق کولو په معنیٰ سره ده. او دا مسئله د تنجیزي مسئلې فرع ده. کوم چې په بَابُ الأيمَان فی الطّلَاق کې تېره سوه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز تعلیق نه باطلیږي. او زموږ په نېز باطلیږي.

په مبسوط کي ذکر سوي دي چي که يو سړی د خپلي ښځي سره ايلاء وکړي او بيا د ايلاء له مودت پوره کېدلو څخه مخکي ښځي ته له تعليق څخه بغير دري طلاقه ورکړي، نو دري سره طلاقه فوراً واقع کيږي او زموږ په نيز ايلاء باطليږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز نه باطليږي: زموږ دليل دا دی چي ايلاء طلاق مؤجل دی، او ايلاء د اول ملکيت پر مملوکه دريو طلاقونو منعقد کيږي او کله چي پر ښځي دري طلاقه واقع سي، نو هيڅ مملوک طلاق نه پاتيږي. لهذا ايلاء به هم نه پاتيږي.

او همدارنګه کله چي ښځه د دغه ملکيت په ايلاء سره دري واره بائنه سي او بيا د دويم خاوند سره تر نکاح کولو وروسته بيرته د اول خاوند په نکاح کي راسي، نو هم زموږ په نيز ايلاء باطليږي (لکه لړ څه مخکي چي ذکر سوه). او د امام زفر په نيز نه باطليږي، لېکن زموږ په نيز يمين باقي پاتيږي، ځکه چي يمين مطلق وو، لهذا کله چي هم خاوند د ښځي سره وطي وکړي، نو هغه حانث کيږي او د قسم کفاره به اداء کوي.

## له څلورو مياشتو څخه کم د ايلاء کولو حيثيت

| |
|---|
| فَإِنْ حَلَفَ عَلَىٰ أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ لېکن که خاوند له څلورو مياشتو څخه پر کم [مودت] باندي قسم وکړي لَمْ يَكُنْ مُوْلِيًا نو هغه به ايلاء کونکي نه وي لِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ: لَا إِيلَاءَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د دې قول [أثر] په وجه: تر څلورو مياشتو په کم [مودت] کي ايلاء نسته وَلِأَنَّ الِامْتِنَاعَ عَنْ قُرْبَانِهَا فِي أَكْثَرِ الْمُدَّةِ بِلَا مَانِعٍ او ځکه چي [په دې صورت کي] د ښځي له نژدې کېدلو څخه منع کېدل په اکثره مودت کي له مانع [قسم] څخه بغير دي وَبِمِثْلِهِ لَا يَثْبُتُ حُكْمُ الطَّلَاقِ فِيهِ او په داسي [بېله مانعه (بېله قسمه)] منع کېدلو سره په دې کي د طلاق حکم نه ثابتيږي. |

**اللغات:** ﴿اِمْتِنَاعٌ﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل، پرهېز کول، ځان کتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د څلورو مياشتو څخه کم داسي قسم وکړي چي زه به ښځي ته نه نژدې کېږم، نو دا سړی ايلاء کونکی نه ګرځي او د هغه ايلاء نه ثابتيږي، ځکه چي په دې سلسله کي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فتوىٰ همدغه ده چي لَا إِيْلَاءَ فِيْمَا دُوْنَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ (يعني تر څلورو مياشتو کم ايلاء نسته). او څرنګه چي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا فتوىٰ د مقدرات شرعيه وو ده، نو په دې سره به د ايلاء آيت لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ... إلخ نه مقيد کيږي، بلکي دا فتوىٰ به د دې آيت کريمه توضيح او تفسير وي، او دا به ويل کيږي چي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به دا له نبي کريم ﷺ څخه اورېدلې وي.

**ولأن الامتناع إلخ:** دا عقلي دليل دی. صاحب د هدايې په څه مشکل اندازه سره بيان کړی دی. مطلب يې دا دی چې کله خاوند تر څلورو مياشتو کم ايلاء وکړي. مثلاً تر يوې مياشتې پورې قسم وکړي چې زه به يوه مياشت ښځې ته نه نژدې کېږم. او بيا څلور مياشتې ور نژدې نه سي. نو دلته دا نورې درې مياشتې له قسم څخه بغير پاته سوې (ځکه چې خاوند فقط د يوې مياشتې قسم کړی دی). او له قسم څخه بغير که څوک پنځوس کاله هم ښځې ته نژدې نه سي. نو هغه ايلاء کوونکې نه ګرځي. لهذا همدا ډول به داسې سړی هم ايلاء کوونکی نه ګرځي. کوم چې د څلورو مياشتو څخه د کم "نه نژدې کېدلو" قسم وکړي.

لأن الامتناع عن قربانها في أكثر المدة بلا مانع: د دې معنیٰ دا ده چې مثلاً تر يوې مياشتې چې کوم زائد او اکثر مودت دي. يعني درې مياشتې. په هغه کې بېله مانعه يعني بېله قسمه ښځې ته له نژدېدلو کول څخه منع کېدل. نو په داسې بېله قسمه منع کېدلو سره به ايلاء نه ثابتيږي. وبمثله لا يثبت حكم الطلاق فيه: يعني ځکه چې په دا ډول بېله قسمه منع کېدلو سره د طلاق حکم نه ثابتيږي.

## د ايلاء د يو څو ځانګړو الفاظو حکم

> **وَلَوْ قَالَ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ وَشَهْرَيْنِ بَعْدَ هٰذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ** او که [خاوند] ووايي: په خدای قسم! زه به تا ته دوې مياشتې او تر دغه دوو مياشتو وروسته دوې مياشتې [نور] نه نژدې کېږم **فَهُوَ مُوْلٍ** نو هغه به ايلاء کوونکی وي **لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَهُمَا بِحَرْفِ الْجَمْعِ** ځکه چې هغه [دلته] د جمع د حرف په ذريعه دواړې مياشتې سره جمع کړي دي **فَصَارَ كَجَمْعِهِ بِلَفْظِ الْجَمْعِ** نو دا د جمع په لفظ سره [د دوو شيانو] د جمع کولو په څېر سو [او ځکه به ايلاء ثابتيږي او خاوند به ايلاء کوونکی وي].

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که خاوند داسې قسم وکړي چې: "په خدای قسم که زه تا ته دوې مياشتې "او" تر دغه دوو مياشتو وروسته دوې مياشتې نور نژدې سم". نو په دې صورت کې هغه ايلاء کوونکی ګرځي: ځکه چې هغه دلته دوې مياشتې او دوې مياشتې د جمع په لفظ يعني په "واو" ("او") سره جمع کړي دي. او داسې سو لکه خاوند چې ووايي: "په خدای قسم که زه تا ته څلور مياشتې نژدې سم". او په داسې قسم کولو سره ايلاء ثابتيږي. نو په دغه صورت کې به هم ايلاء ثابتيږي.

## د ايلاء د يو څو ځانګړو الفاظو حکم

وَلَوْمَكَثَ يَوْمَاثُمَّ قَالَ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ شَهْرَيْنِ بَعْدَ الشَّهْرَيْنِ الْأَوَّلَيْنِ او که هغه [خاوند] يوه ورځ ودرېږي بيا ووايي: په خدای قسم! زه به تا ته تر اولو دوو مياشتو وروسته دوې مياشتي [نور] نه نژدې کېږم لَمْ يَكُنْ مُوْلِيًا نو هغه به ايلاء کونکی نه وي لِأَنَّ الثَّانِيَ إِيجَابٌ مُبْتَدَأٌ ځکه چي دويم قسم [دويمه جمله] له شروع څخه ايجاب ده وَقَدْ صَارَ مَمْنُوعًا بَعْدَ الْيَمِينِ الْأُولَى شَهْرَيْنِ وَبَعْدَ الثَّانِيَةِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ حالانکي دا سړی تر اول قسم وروسته دوې مياشتي او تر دويم قسم وروسته څلور مياشتي منع کړی سو إِلَّا يَوْمًا مَكَثَ فِيهِ ماسوا له يوې ورځي څخه چي په هغه کي [دا سړی له قسم څخه بغير] پاته سوی دی ايعني دلته دغه سړي په اوله جمله کي دوې مياشتي قسم کړی دی او په دوو مياشتو سره خو ايلاء نه ثابتيږي، او په دويمه جمله کي يې له يوې ورځي څخه کم د څلورو مياشتو قسم کړی دی، نو په دې صورت کي هم د منع کېدلو مودت (څلور مياشتي) پوره نه سوې، بلکي يوه ورځ مانده سوه، نو ځکه به ايلاء نه ثابتيږي] فَلَمْ تَتَكَامَلْ مُدَّةُ الْمَنْعِ نو د منع کېدلو مودت پوره نه سو انو ځکه به ايلاء نه ثابتيږي او هغه به ايلاء کونکي نه وي].

**اللغات:** ﴿مَكَثَ﴾ د نصر ماضي ده: درېدل، پاتېدل، درنګ کول.

**تشريح:** دا مسئله هم واضحه ده چي که خاوند اول د دوو مياشتو قسم وکړي چي "په خدای قسم که زه تا ته دوې مياشتي نژدې سم". بيا يوه ورځ وروسته بيا د دوو مياشتو قسم وکړي چي "په خدای قسم که تر اولو دوو مياشتو وروسته نور دوې مياشتي زه تا ته نژدې سم". نو په دې صورت کي څلور مياشتي پوره نه سوې، بلکي د څلورو مياشتو څخه يوه ورځ کمه سوه، نو ځکه به هغه ايلاء کونکي نه وي، ځکه چي په اوله جمله کي خاوند څلور مياشتي نه دي ذکر کړي، نو په هغه سره خو ايلاء ثابته نه سوه، او بيا خاوند يوه ورځ وروسته که څه هم په دويمه جمله کي څلور مياشتي ذکر کړي دي، لېکن هغه د اولو دوو مياشتو او وروسته دوو مياشتو په مينځ کي يوه ورځ درېدلی دی، نو په دويمه جمله کي هم څلور مياشتي پوره نه سوې، نو ځکه به ايلاء نه ثابتيږي. او کله چي هم دا سړی د خپلي ښځي سره وطي کړي، نو پر هغه به د دوو قسمونو دوې کفارې واجب وي.

## له يوې ورځي څخه بغير ټوله کال د ايلاء کولو حکم

وَلَوْ قَالَ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ سَنَةً إِلَّا يَوْمًا او که [خاوند] ووايي: په خدای قسم! زه به تا ته يو کال نه نژدې کېږم مګر يوه ورځ لَمْ يَكُنْ مُوْلِيًا نو هغه به ايلاء کونکی نه وي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ يَصْرِفُ الِاسْتِثْنَاءَ إِلَى آخِرِهَا او امام زفر استثناء د کال د آخري جزء [ورځي] وطرف ته ګرځوي

اِعْتِبَارًا بِالْإِجَارَةِ پر اجاره باندي په قياس کولو سره لَتَبَتْ مُدَّةُ الْمَنْعِ نو د منع کېدلو مودت به پوره سي وَلَنَا أَنَّ الْمُوْلِيْ مَنْ لَا يُمْكِنُهُ الْقُرْبَانُ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ إِلَّا بِشَيْءٍ يَلْزَمُهُ زموږ دليل دا دی: چي ايلاء کونکی هغه کس دی چي د هغه لپاره د يو شي د لزوم څخه بغير څلور مياشتي قربت انژدېکت ا کول ممکن نه وي ايعني ايلاء کونکي هغه کس ته وايي چي هغه تر څلورو مياشتو پور د کفارې څخه بغير ښځي ته نژدې کېدای نه سي. بلکي که يو وار هم نژدې سي او وطي ور سره وکړي نو کفاره پر لازميږي ا وَيُمْكِنُهُ هٰهُنَا او دلته د هغه لپاره اد کفارې د لزوم څخه بغير ا قربت کول ممکن دي لِأَنَّ الْمُسْتَثْنٰى يَوْمٌ مُنَكَّرٌ ځکه چي استثناء سوې اجلا سوې ا ورځ غيرِ متعينه انا معلومه ا ورځ ده او د ورځي جهالت په وجه خاوند په هره يوه ورځ کي هم قربت کولای سي. نو ځکه به ايلاء نه ثابتيږي ا بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ په خلاف د اجارې لِأَنَّ الصَّرْفَ إِلَى الْآخِرِ لِتَصْحِيْحِهَا ځکه چي اپه اجاره کي ا د آخري جزء وطرف ته ګرځول د اجارې د صحيح کولو لپاره دي فَإِنَّهَا لَا تَصِحُّ مَعَ التَّنْكِيْرِ ځکه چي اجاره بلا تعيينه نه صحيح کيږي وَلَا كَذٰلِكَ الْيَمِيْنُ او قسم داسي نه دی وَلَوْ قَرِبَهَا فِيْ يَوْمٍ او که اخاوند ا ښځي ته يوه ورځ نژدې سي وَالْبَاقِيْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ أَوْ أَكْثَرُ او اتر هغه وروسته هم ا څلور مياشتي يا تر دې زيات امودت ا پاته وي صَارَ مُوْلِيًا نو هغه ايلاء کونکي ګرځي لِسُقُوْطِ الْاِسْتِثْنَاءِ د استثناء د ساقطېدلو په وجه.

**اللغات:** ﴿يَصْرِفُ﴾ د ضرب مضارع ده: ګرځول. اړول. ﴿تَصْحِيْحٌ﴾ د تفعيل مصدر دی: صحيح کول. سمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو خاوند په داسي الفاظو سره قسم وکړي چي "په خدای قسم! که زه د يوې ورځي څخه بغير نور ټوله کال ستا سره وطي وکړم". نو په دې صورت کي زموږ په نېز دغه خاوند ايلاء کونکی نه ګرځي. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز هغه ايلاء کونکي ګرځي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی. لېکن امام مالک رَحِمَهُ الله زموږ سره دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي کله دلته خاوند د يوې ورځي استثناء وکړه. نو دا ستثناء به د کال د آخري جزء وطرف ته ګرځول کيږي. امام زفر رَحِمَهُ الله دغه (د يمين) مسئله پر إجاره قياسوي. يعني کله چي يو سړی د يوې ورځي څخه بغير د ټوله کال لپاره يو شی په اجاره واخلي. نو دغه يوه مستثنیٰ (جلا سوې) ورځ د کال د آخري جزء او د آخري ورځي وطرف ته ګرځول کيږي او پاته ورځي يعني (۳۶۴) ورځي اجاره صحيح منل کيږي. همداسي به دلته هم مستثنیٰ ورځ د کال د آخري جزء وطرف

ته ګرځول کيږي. او کله چې دا ورځ د کال دآخري جزء وطرف ته نقل کړی سي. نو پاته ټولي ورځي به تر دغه يوې ورځي مخکي سي. او پاته ورځي تر څلورو مياشتو زياتي دي. نو ځکه به د دغه خاوند ايلاء صحيح وي. او ايلاء کونکی به شمارل کيږي.

**زمونږ دليل**: دا دی چې د کومي يوې ورځي استثناء چې دلته خاوند کړې ده. هغه ورځ نامعلومه او غير متعين (او مطلق) ده. او د ټوله کال په هره يوه ورځ کي خاوند لره دوطي کولو اختيار سته. او ايلاء کونکی هغه سړي ته وايي کوم چې تر څلورو مياشتو پوري د کفارې دلزوم څخه بغير د ښځي سره وطي نه سي کولای (يعني که په څلورو مياشتو کي فقط يو واز د ښځي سره وطي وکړي نو خامخا د قسم کفاره پر لازميږي). حالانکي دلته د دې يوې ورځي د مطلقوالي په وجه خاوند په هرو څلورو مياشتو کي بلکي له دې څخه بغير د ټوله کال په هره يوه ورځ کي د وطي کولو حق لري. او په کومه ورځ چې هم هغه وطي وکړي. نو کفاره نه پر واجبيږي. ځکه چې هغه مخکي لا د يوې ورځي استثناء کړې ده. حالانکي ايلاء کونکي تر څلورو مياشتو پوري د کفارې دلزوم څخه بغير وطي نه سي کولای. نو ځکه به خاوند د مطلقي او غير متعيني ورځي د استثناء کولو په وجه ايلاء کونکی نه شمارل کيږي.

**بخلاف الإجارة إلخ**: په دې سره دامام زفر د قياس جواب ورکوي. فرمايي چې يمين پر إجاره قياسول صحيح نه دي. ځکه چې إجاره د جهالت او عدم تعين سره قطعاً نه صحيح کيږي (يعني کله چې اجاره متعينه او معلومه نه کړی سي. نو بالکل نه صحيح کيږي). لېکن يمين د جهالت او عدم تعين سره هم صحيح کيږي. نو په يمين کي به مستثنیٰ ورځ د کال دآخري جزء وطرف ته په ګرځولو سره نه خاص کيږي. لېکن د إجارې د تصحيح (صحيح کولو) لپاره داسي کېدای سي. لهذا په دې هکله په يمين او اجاره کي فرق سته. نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

**ولوقربها إلخ**: فرمايي که خاوند د وَاللهِ لَا اَقْرَبُكِ سَنَةً إِلَّا يَوْمًا تر ويلو وروسته يوه ورځ د ښځي سره وطي وکړي. او تر وطي کولو وروسته څلور مياشتي يا تر دې زيات وخت پاته وي. نو په دې صورت کي هغه ايلاء کونکی ګرځي؛ ځکه د کومي استثناء په وجه سره چې د ايلاء ثبوت او تحقق معدوم وو. هغه استثناء په خپله معدومه سوه. او څرنګه چې تر هغه وروسته د ايلاء په اندازه ورځي (بلکي تر هغه زياتي ورځي) پاته دي. نو ځکه به ايلاء ثابتيږي.

## د ايلاء يو ځانګړی صورت

وَلَوْ قَالَ وَهُوَ بِالْبَصْرَةِ: وَاللهِ لَا أَدْخُلُ الْكُوْفَةَ او که [خاوند] ووايي حال دا چې هغه په بصره کې وي: په خدای قسم! زه به کوفې داخل نه سم ايعني په بصره کې ووايي چې: په خدای قسم که کوفې ته ولاړ سم [ وَامْرَأَتُهُ بِهَا او د هغه ښځه په کوفه کې وي لَمْ يَكُنْ مُوْلِيًا نو [په دې صورت کې] به هغه ايلاء کونکی نه وي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْقُرْبَانُ مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ يَلْزَمُهُ بِالْإِخْرَاجِ مِنَ الْكُوْفَةِ ځکه چې د دې سړي لپاره له کوفې څخه [د ښځې] په را ايستلو سره د يو شي د لزوم څخه بغير قُربت ممکن دي.

**اللغات:** ﴿إِخْرَاج﴾ د افعال مصدر دی. متعدي باب دی: باسل. را ايستل (ويستل). خارجول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که خاوند په بصره کې وي. او ښځه يې په کوفه کې وي. او خاوند کوفې ته د "نه داخلېدلو" قسم وکړي. نو په دې قسم سره هغه ايلاء کونکي (مُوْلِيْ) نه ګرځي: ځکه چې مُوْلِيْ هغه سړي ته وايي کوم چې تر څلورو مياشتو پورې د کفارې د لزوم څخه بغير د خپلې ښځې سره وطي نه سي کولای. حالانکې دا سړی تر څلورو مياشتو مخکې د کفارې د لزوم څخه بغير هم وطي کولای سي. هغه په دې توګه چې خپله ښځه له کوفې څخه بصرې ته را وغواړي. يا يو بل ځای يې را وغواړي او وطي ور سره وکړي. او ښکاره خبره ده چې کله د کفارې د وجوب او لزوم څخه بغير د هغه لپاره وطي کول ممکن دي. نو بيا به ايلاء څرنګه ثابته سي!؟. (ځکه چې د کفارې د لزوم څخه بغير هيڅکله هم ايلاء نه ثابتيږي).

## د قسم بېلا بېل صورتونه کوم چې ايلاء ګرځي

قَالَ: وَلَوْ حَلَفَ بِحَجٍّ أَوْ بِصَوْمٍ أَوْ بِصَدَقَةٍ أَوْ عِتْقٍ أَوْ طَلَاقٍ فرمايي: او که [خاوند] قسم واخلي د حج کولو يا د روژې نيولو يا د خيرات کولو يا د [غلام] آزادولو يا د طلاق ور کولو فَهُوَ مُوْلٍ نو هغه ايلاء کونکی دی لِتَحَقُّقِ الْمَنْعِ بِالْيَمِيْنِ ځکه چې [دلته] د قسم په وجه منع کېدل متحقق دي وَهُوَ ذِكْرُ الشَّرْطِ وَالْجَزَاءِ او هغه د شرط او جزاء ذکر کول دي وَهٰذِهِ الْأَجْزِيَةُ مَانِعَةٌ او دغه ټولې جزاګانې [د قربت] منع کونکي دي لِمَا فِيْهَا مِنَ الْمَشَقَّةِ ځکه چې په دوی [ټولو] کې مشقت [او تکليف] سته وَصُوْرَةُ الْحَلِفِ بِالْعِتْقِ: أَنْ يُعَلِّقَ بِقُرْبَانِهَا عِتْقَ عَبْدِهِ او په آزادولو سره د قسم اخيستلو صورت دا دی: چې [خاوند] د ښځې پر قُربت [وطي] باندې د خپل غلام آزادول معلق کړي وَفِيْهِ خِلَافُ أَبِيْ يُوْسُفَ او په دې مسئله کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّهُ يَقُوْلُ: يُمْكِنُهُ الْبَيْعُ ثُمَّ الْقُرْبَانُ ځکه هغه

فرمايي: چې [دلته] د حالف [قسم اخيستونکي] لپاره د غلام خرڅول او بيا [د ښځي سره] قربت کول ممکن دي فَلَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نو ځکه به پر هغه هيڅ شی نه لازميږي وَهُمَا يَقُولَانِ ❁: اَلْبَيْعُ مَوْهُومٌ او طرفين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [دلته د غلام] خرڅول موهوم [او نامعلوم] دي فَلَا يَمْنَعُ الْمَانِعِيَّةَ فِيهِ نو هغه به په ايلاء کې [د قربت] د مانعيت لپاره مانع نه جوړيږي ايعني کله چې د غلا بيع يو موهوم امر دی نو هغه به په ايلاء کي د وطي او قربت څخه د منع کېدلو لپاره مانع نه جوړيږي. بلکي د وطي او قربت د ثبوت لپاره به مانع جوړيږي. يعني د قربت منع کونکي به وي، نو ځکه به ايلاء په ثابتيږي] وَالْحَلِفُ بِالطَّلَاقِ: أَنْ يُعَلِّقَ بِقُرْبَانِهَا طَلَاقَهَا أَوْ طَلَاقَ صَاحِبَتِهَا او په طلاق سره د قسم اخيستلو صورت دا دی: چې [خاوند] د ښځي پر قربت د هغې طلاق يا د هغې د ملگري [بن] طلاق معلق کړي وَكُلُّ ذٰلِكَ مَانِعٌ او په دې دواړو کي هر يو [د قربت] منع کونکی دی.

**اللغات: ﴿أَجْزِيَة﴾** جمع دِ جَزَاً ده: جزاء. مراد ځني د شرط جزاگاني دي. چې هغه دلته حج کول يا روژه نيول يا داسي نور دي.

**تشريح:** مخکي مصنف رَحِمَهُ الله د الله په قسم سره د ايلاء کولو تفصيلات ذکر کړل. اوس له دې ځای څخه د غير الله په قسم سره د ايلاء کولو تفصيلات بيانوي. (يعني اوس د هغه صورتونو تفصيل بيانوي چې کله خاوند په شرط او جزاء کي له حَلف بِالله څخه بغير يو بل شی ذکر کړي).

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو خاوند داسي ووايي: "که چيري زه خپلي ښځي ته څلور مياشتي نږدې سوم او وطي مي ور سره وکړي، نو پر ما حج کول لازم دي. يا پر ما روژه نيول لازم دي. يا پر ما غلام آزادول لازم دي. يا زما ښځه پر ما طلاقه ده". نو په دې صورتونو کي ايلاء ثابتيږي او دغه خاوند ايلاء کونکی گرځي؛ دليل دا دی چې په دې صورتونو کي د قسم يعني د شرط او جزاء د ذکر کولو په وجه د قربت او وطي څخه منع کېدل متحقق سو. او دغه جزا گاني يعني حج. روژه. غلام آزادول. ښځه طلاقېدل د شرط د ارتکاب کولو څخه مَنع کونکي دي (يعني په دې صورتونو کي به د شرط او جزاء د تذکرې په وجه خاوند يقيناً د ښځي سره څلور مياشتي وطي نه کوي. بلکي تر هغه وروسته به هم پښې ټينگي اړدي). ځکه چې په دې ټولو جزاءگانو کي مشقت دی. ځکه کله چې خاوند د شرط ارتکاب کوي نو جزاء به يقيناً واقع کيږي. او د جزاء په واقع کېدلو کي مشقت دی، نو ځکه به جزاء د شرط لپاره مانع وي. او ايلاء همدې وايي ته چې خاوند د ښځي له وطي څخه (څلور مياشتي يا

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في الدر المختار (ج:٢، ص:٥٩٢). [القول الراجح ج:١، ص:٣٢٢]

زيات) منع سي (او دلته خو به ټوله عمره خاوند د ښځي له وطي څخه ځان منع کوي). لهذا په دې ټولو صورتونو کي به ايلاء ثابتيږي. او کله چي هم څلور مياشتي له وطي څخه بغير تيري سي، نو پر دغه ښځي به يو طلاق بائن واقع کيږي.

**وصورة الحلف إلخ**: فرمايي چي د حَلْف بِالعِتْق صورت دا دی چي خاوند د ښځي پر وطي او قُربت د خپل غلام آزادېدل معلق کړي (يعني داسي ووايي: که زه تا ته در نژدې سوم، نوزما غلام آزاد دی). په دې صورت کي خو د طرفينو په نېز إيلاء ثابتيږي. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز نه ثابتيږي: ځکه چي په دې صورت کي تر څلورو مياشتو مخکي د کفاري د لزوم څخه بغير هم د خاوند لپاره وطي کول ممکن دي. هغه په دې توګه چي خاوند تر وطي کولو مخکي غلام خرڅ کړي. او بيا د ښځي سره وطي وکړي، نو په دې صورت کي نه غلام آزاديږي او نه پر هغه کفاره واجبيږي. لهذا ايلاء به هم نه ثابتيږي.

او طرفين فرمايي چي بيع يقيني أمر نه دی. بلکي يو موهوم او نا معلوم أمر دی. کېدای سي چي خاوند غلام خرڅ کړي. او دا هم کېدای سي چي غلام خرڅ نه کړي. او موهوم أمر د يو شي لپاره مانع کېدای نه سي. لهذا دلته په ايلاء کي مَانِعُ الشَرط يعني د جزاء لپاره هيڅ مانع سته. او کله چي د جزاء لپاره هيڅ مانع نسته. نو جزاء موجوده ده. او جزاء د قُربت مانع ده (يعني دلته جزاء (د غلام آزادېدل) د وطي او قُربت څخه د خاوند د منع کولو او د هغه د شهوت يخولو لپاره کافي ده). او ايلاء د قُربت مانع ته وايي (يعني ايلاء همدې ته وايي چي خاوند څلور مياشتي يا تر هغه زيات له وطي څخه منع وي. او دلته هم هغه د جزاء د بيري په وجه منع کيږي). نو ځکه به په دې صورت کي هم ايلاء ثابتيږي.

**والحلف بالطلاق إلخ**: د حَلْف بِالطَّلاق صورت دا دی چي خاوند د ښځي پر وطي د هغې طلاق معلق کړي يا د هغې د بَنْ طلاق پر معلق کړي. او په دې دواړو شيانو کي هر شی د ښځي د وطي او قُربت څخه مانع دی. ځکه چي د طلاق د بيري په وجه به خاوند د ښځي سره وطي نه سي کولای. او همدې ته ايلاء وايي. لهذا که هغه تر څلورو مياشتو پوري د ښځي سره وطي نه وکړي، نو پر ښځي يو طلاق بائن واقع کيږي. او که وطي ور سره وکړي، نو ښځه مطلقه ګرځي (يعني پر هغه طلاقيږي).

## د مطلقه ښځي سره ايلاء کول

| |
|---|
| وَإِنْ آلَى مِنَ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ او که [خاوند] د مطلقه رجعيه ښځي سره ايلاء وکړي كَانَ مُولِيًا نو هغه به ايلاء کونکی وي وَإِنْ آلَى مِنَ الْبَائِنَةِ او که د بائني ښځي سره ايلاء وکړي لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نو هغه به ايلاء کونکی نه وي لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ قَائِمَةٌ فِي الْأُولَى دُوْنَ الثَّانِيَةِ ځکه چي زوجيت په اوله ښځه کي پاته |

دي نه په دويمه ښځه کي وَمَحَلُّ الْإِيلَاءِ مَنْ تَكُونُ مِنْ نِسَائِنَا بِالنَّصِّ او د آيت په وجه سره د ايلاء محل هغه ښځي دي کوم چي زموږ ښځي وي ايعني کومي ښځي چي زموږ په زوجيت او نکاح کي وي ا فَلَوِ انْقَضَتْ الْعِدَّةُ قَبْلَ انْقِضَاءِ مُدَّةِ الْإِيلَاءِ بيا که د ايلاء تر مودت ختمېدلو مخکي اد مطلقه رجعيه ښځي ا عدت پوره سي سَقَطَ الْإِيلَاءُ لِفَوَاتِ الْمَحَلِّيَّةِ نو د محل د فوتېدلو په وجه به ايلاء ساقطيږي.

**اللغات:** ﴿آلی﴾ د افعال ماضي ده: ايلاء کول. ﴿إِنْقَضَتْ﴾ د انفعال ماضي ده: تېرېدل. ختمېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي که خاوند د خپلي مطلقه رجعيه ښځي سره ايلاء وکړي. نو ايلاء ثابتيږي. او که د مطلقه بائنه سره ايلاء وکړي. نو ايلاء نه ثابتيږي. ځکه چي د ايلاء د ثبوت او تحقق لپاره محليت (د طلاق او ايلاء محل کېدل) ضروري دی. او په مطلقه رجعيه ښځه کي محليت باقي پاته دی. ځکه چي تر طلاق رجعي وروسته هم هغه د خاوند په نکاح کي پاته وي. لهذا د مطلقه رجعيه ښځي په حق کي به ايلاء ثابتيږي. لېکن د بائني ښځي په حق کي به ايلاء نه ثابتيږي، ځکه چي د طلاقِ بائن په وجه ښځه په پوره توګه د خاوند له نکاح څخه وځي او ښځه د ايلاء محل نه پاتيږي. ولا يتحقق الإيلاء إلّا في المحل.

## د پردۍ (اجنبي) ښځي سره ايلاء کول

وَلَوْ قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ او که ايو سړی ا يو پردۍ ښځي ته ووايي: په الله قسم! تا ته به نه نژدې کېږم ايعني ستا سره به وطي نه کوم ا أَوْ أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي يا اورته ووايي ا ته پر ما داسي يې لکه زما د مور شا [ملا] ثُمَّ تَزَوَّجَهَا او بيا دا سړی د هغې سره نکاح وکړي لَمْ يَكُنْ مُولِيًا وَلَا مُظَاهِرًا نو هغه به نه ايلاء کونکی وي او نه ظهار کونکی لِأَنَّ الْكَلَامَ فِي مَخْرَجِهِ وَقَعَ بَاطِلًا لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چي د محل د نشتوالي په وجه دا کلام د خپل راوتلو [تکلم] په وخت کي باطل واقع سو فَلَا يَنْقَلِبُ صَحِيحًا بَعْدَ ذٰلِكَ نو تر باطلېدلو وروسته به صحيح نه را ګرځي وَإِنْ قَرِبَهَا كَفَّرَ او که دا سړی اتر نکاح وروسته ا د هغې سره وطي وکړي نو کفاره به اداء کوي لِتَحَقُّقِ الْحِنْثِ ځکه چي حانث کېدل ثابت سو إِذِ الْيَمِينُ مُنْعَقِدَةٌ فِي حَقِّهِ ځکه چي د حانث کېدلو په حق کي يمين منعقد سوی دی وَمُدَّةُ إِيلَاءِ الْأَمَةِ شَهْرَانِ او د ښځي د ايلاء مودت دوې مياشتي دی لِأَنَّ هٰذِهِ مُدَّةٌ ضُرِبَتْ أَجَلًا لِلْبَيْنُونَةِ ځکه چي دا مودت ايعني د

ايلاء څلور مياشتي مودت ا د بائنه کېدو لپاره تاکل سوی دی فَتَتَنَصَّفُ بِالرِّقِّ نو د رقيت په وجه سره به دا مودت نيم کرځي كَمُدَّةِ الْعِدَّةِ لکه څرنګه چي د عدت مودت ادرقيت په وجه نيم کرځي ا.

**اللغات:** ﴿ظَهر﴾ شا، ملا. ﴿كَفَّر﴾ د تفعيل ماضي ده: کفاره اداء کول، کفاره ورکول. ﴿تَحَقَّق﴾ د تفعّل مصدر دی: ثابتېدل، مضبوطېدل (پخېدل). ﴿ضُرِبَتْ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي، دلته په معنیٰ سره د "ټاکل کېدلو" او "متعينولو" دی. ﴿البَيْنُونَة﴾ د ضرب مصدر دی: بائنه کېدل، جلا کېدل.

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی که يو سړی پردی ښځي ته داسي ووايي: وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ (په خدای قسم زه با ستا سره وطي نه کوم). يا ورته ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ (ته پر ما داسي جرامه يې لکه زما د مور شا [ملا] چي پر ما حرامه ده). او بيا يو څو وخت وروسته دا سړی د دغه پردۍ ښځي سره نکاح وکړي، نو په دې صورت کي هغه نه ايلاء کونکي کرځي او نه ظهار کونکی کرځي: دليل دا دی چي د ايلاء يا د ظهار د صحت لپاره د ښځي محل کېدل (يعني د دې سړي په نکاح کي راتلل) ضروري دي. او څرنګه چي د تکلّم په وخت کي دا ښځه د هغه په نکاح کي نه ده. نو ځکه د هغه دا کلام لغو او باطل سو. او کله چي يو وار کلام باطل سو. نو تر نکاح وروسته دويم وار د هغه کلام صحيح کېدل او بيا د هغه راګرځېدل ممکن نه دي. نو ځکه به وروسته په نکاح کولو سره ايلاء او ظهار نه ثابتيږي. خو څرنګه چي دلته د خاوند په اوله جمله وَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ کي يمين سته. او مطلق يمين دی. نو په دې وجه که هغه تر نکاح وروسته د ښځي سره وطي وکړي. نو د دې جملې په وجه پر خاوند د يمين کفاره واجبيږي. ځکه چي د دې جملې په حق کي يمين منعقد سوی وو. نو د يمين ارتکاب به د هغه په حق کي د کفارې سبب وي.

**ومدة الإيلاء إلخ:** په دې سره د مينځي د ايلاء مودت بيانوي، د آزادي ښځي د ايلاء مودت خو مخکي ذکر سو چي څلور مياشتي دی. لېکن د مينځي د ايلاء مودت دوې مياشتي دی (يعني که خاوند مينځي ته ووايي چي: په خدای قسم که دوې مياشتي در نژدې سم. نو ايلاء ثابتيږي)، ځکه چي په ايلاء کي څلور مياشتي د بينونت حد ټاکل سوی دی. او د رقيت (غلامی) په وجه د مينځي په عدت او طلاق کي تنصيف کيږي. نو د مينځي د ايلاء په مودت کي به هم تنصيف کيږي. او د هغې د ايلاء مودت به د آزادي ښځي په نسبت نيم وي. چي هغه دوې مياشتي کيږي.

## په کومو صورتونو کې چې جماع نه سي کېدای په هغوی کې به ايلاء کوونکی څرنګه رجوع کوي؟

وَإِنْ كَانَ الْمُولِي مَرِيضًا لَا يَقْدِرُ عَلَى الْجِمَاعِ او که ايلاء کوونکی ناروغه وي پر جماع قدرت نه لري أَوْ كَانَتْ مَرِيضَةً أَوْ رَتْقَاءَ أَوْ صَغِيرَةً لَا تُجَامَعُ يا [د هغه] ښځه ناروغه وي يا د جماع لاره يې بنده وي يا دومره کوچنی وي چې د هغې سره جماع کېدای نه سي أَوْ كَانَتْ بَيْنَهُمَا مَسَافَةٌ لَا يَقْدِرُ أَنْ يَصِلَ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ يا د خاوند او ښځي په مينځ کي دومره [ډېره] مسافه وي چې [خاوند] هغې ته د ايلاء په مودت کي رسېدلای نه سي فَفَيْئُهُ أَنْ يَقُولَ بِلِسَانِهِ: فِئْتُ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ نو [په دې ټولو صورتونو کي د ايلاء] څخه د خاوند د رجعت کولو طريقه دا ده چې په خپله ژبه سره [داسي] ووايي: ما هغې ته د ايلاء په مودت کي رجعت وکړی فَإِنْ قَالَ ذَلِكَ نو که چيري هغه همداسي وويل سَقَطَ الْإِيلَاءُ نو ايلاء ساقطيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا فَيْءَ إِلَّا بِالْجِمَاعِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې رجعت فقط په جماع سره کيږي وَإِلَيْهِ ذَهَبَ الطَّحَاوِيُّ او همدې طرف ته امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم تللی دی لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ فَيْئًا لَكَانَ حِنْثًا ځکه که چيري هغه رجعت وای نو حانث کېدل به هم وای [لهذا کله چې په هغه سره نه حانثيږي نو فيء به هم نه په ثابتيږي] وَلَنَا: أَنَّهُ آذَاهَا بِذِكْرِ الْمَنْعِ زموږ دليل دا دی: چې خاوند د منع په ذکر کولو سره ښځي ته تکليف ورکړی دی [يعني خاوند په خوله او زبان سره دې خبري په کولو ښځي ته تکليف رسولی دی چې زه به تا ته نه نژدې کېږم او ستا له وطي څخه منع کېږم] فَيَكُونُ إِرْضَاؤُهَا بِالْوَعْدِ بِاللِّسَانِ نو د هغې راضي کول به هم په زباني وعدې سره وي وَإِذَا ارْتَفَعَ الظُّلْمُ او کله چې ظلم ختم سو لَا يُجَازَى بِالطَّلَاقِ نو په طلاق [واقع کولو] سره به هغه [خاوند] ته بدله نه ورکول کيږي وَلَوْ قَدَرَ عَلَى الْجِمَاعِ فِي الْمُدَّةِ او که هغه د ايلاء په مودت کي پر جماع کولو قادر سي بَطَلَ ذَلِكَ الْفَيْءُ نو هغه [زباني] رجعت باطليږي وَصَارَ فَيْئُهُ بِالْجِمَاعِ او د خاوند رجعت به د جماع ذريعه سره وي لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْخَلَفِ ځکه چې هغه د نائب په ذريعه د مقصود تر حاصلولو مخکي پر أصل قادر سو.

**اللغات:** ﴿رَتْقَاء﴾ هغه ښځه چې د جماع لاره يې د هډوکي په وجه يا د داسي بل شي په وجه بنده سوې وي، هغه ښځه چې د جماع او د متيازو لاره يې يو سوی وي او جماع ور سره کول مشکل وي.

﴿فَيْءٍ﴾ له ايلاء څخه رجعت (رجوع) کولو ته فَيْء وايي. ﴿إِرْضَاءٍ﴾ د افعال مصدر دی: راضي کول. خوشحاله کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپلې ښځې سره تر ايلاء کولو وروسته دومره ناروغه (ناجوړه) سي چي د جماع قدرت يې ختم سي يا ښځه دومره ناروغه سي چي د جماع قدرت يې ختم سي، يا د ښځې د جماع لاره (سوری) بند وي. يا ښځه دومره کم عمره وي چي جماع ور سره کېدای نه سي. نو په دې ټولو صورتونو کي زموږ په نېز د رجعت حکم له رجعة بالجماع څخه د رجعة بالقول وطرف ته منتقل کيږي، او که خاوند د ايلاء د مودت په دوران کي فقط فِئْتُ إِلَيْهَا ووايي (چي ما هغې ته فَيْء او رجعت وکړی)، نو ايلاء به ختميږي او رجعت به ثابتيږي.

لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په ايلاء کي فيء او رجعت فقط د جماع سره خاص دی. او په ژبې او زبان سره فيء نه سي ثابتېدای، په احنافو کي د امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم ودغه طرف ته ميلان دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي که په زبان سره (يعني که د فِئْتُ إِلَيْهَا او داسي نورو جملو په ويلو سره) رجعت ثابتېدای، نو قسم به هم ماتېدای او خاوند به هم حانث کېدای، ځکه چي د فيء سره دوه حکمه متعلق کيږي: ① د کفارې واجبېدل، ② د فرقت حکم منع کېدل. او دا خبره تسليم سوې ده چي په زبان سره فيء کول د کفارې په حق کي معتبر نه دي، يعني فقط په خوله د رجعت او فيء په ويلو سره کفاره نه واجبيږي. لهذا دويم حکم يعني د فرقت ممانعت به هم نه ختميږي. او په ښځه او خاوند دواړو کي به هغسي فرقت باقي پاته وي، او کله چي په دوی کي فرقت باقي پاته دی. نو ايلاء به هم باقي پاته وي. نو ځکه امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ايلاء رجعت به فقط په جماع سره ثابتيږي. او په ژبه سره هغه ثابتېدای نه سي. (بنايه ج:۵، ص:۲۸۴)

**زموږ دليل:** دا دی چي اصل خو همدا خبره ده چي مُوْلِيْ (ايلاء کونکي) د جماع په ذريعه فيء وکړي، لېکن کله چي هغه دومره ناروغه سي چي د جماع قدرت يې ختم سي، نو ښکاره ده چي بيا به په فَيْء بِاللِّسَان سره کار پوره کيږي، او دلته فَيْء بِاللِّسَان صحيح هم دی. ځکه کله چي خاوند د ايلاء کولو په وخت کي پر جماع قدرت نه درلودی، نو ښکاره خبره ده چي په ايلاء کولو سره هغه فقط ښځي ته دمکي ور کول او ښځه يې بېرول. او څرنګه چي دغه دمکي زباني وي، نو د هغه تلافي به هم په زبان سره کيږي. او په زبان سره به د فِئْتُ إِلَيْهَا په ويلو سره فيء (رجوع) ثابتيږي. او بېله څه وجهي به هغه ته د ښځي د طلاقېدلو په ذريعه بدله نه ورکول. (يعني د فَيْء بِاللِّسَان څخه وروسته به پر ښځې طلاق نه واقع کيږي)، ځکه چي شريعت سزا د جرم مطابق ټاکلې ده. او کله چي خاوند د

ښځې سره تجاوز او زياتوب کړی نه دي. نو د طلاق واقع کولو په ذريعه به پر خاوند هم تجاوز نه کيږي.

ولوقدر إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د ايلاء د مودت په دوران کې خاوند جوړ او روغ سي او پر جماع کولو قدرت پيدا کړي. نو په دې صورت کې زموږ په هم نېز فَيْءٌ بِاللِّسَان معتبر نه دی. بلکې په دې صورت کې به هغه د جماع په ذريعه رجعت او فيء کوي. ځکه قاعده دا ده چې کوم څوک د بدل په ذريعه د مقصود تر حاصلولو مخکې پر اصل قادر سي. نو د هغه په حق کې حکم د اصل وطرف ته رجوع کوي. او هغه به فقط د أصل په ذريعه مأمور به اداء کوي. او څرنګه دلته هم خاوند د بدل يعني د فيء باللسان په ذريعه د مقصود تر حاصلولو مخکې پر أصل يعني پر جماع قدرت پيدا کړی دی. نو ځکه به د هغه په حق کې هم حکم د أصل وطرف ته رجوع کوي. او اوس به فقط په فيء بالجماع سره رجعت ثابتيږي.

## د "أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ" ويلو حکم او تفصيل

وَإِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ او که [خاوند] خپلې ښځې ته ووايي: ته پر ما حرامه يې سُئِلَ عَنْ نِيَّتِهِ نو د هغه د نيت پوښتنه کيږي فَإِنْ قَالَ: أَرَدْتُ الْكَذِبَ نو که هغه ووايي: چې ما [په دې سره] د دروغو اراده کړې ده [يعني ما ربښتيا نه ويل، بلکې دروغ مې ويل] فَهُوَ كَمَا قَالَ نو هغه به همداسې وي لکه څرنګه چې هغه وايي لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ ځکه چې هغه د خپل کلام د حقيقي معنیٰ نيت کړی دی وَقِيلَ: لَا يُصَدَّقُ فِي الْقَضَاءِ او ويل سوي دي: چې په قضاء کې به [د هغه] تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ يَمِينٌ ظَاهِرًا ځکه چې دا [کلام] ظاهراً قسم دی وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الطَّلَاقَ او که هغه ووايي: چې ما د طلاق اراده کړې ده فَهِيَ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ نو هغه يو طلاق بائن دی إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ الثَّلَاثَ خو دا چې هغه د دريو طلاقو نيت وکړي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْكِنَايَاتِ او دا [مسئله] موږ په کناياتو کې ذکر کړه وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الظِّهَارَ او که هغه ووايي: چې ما د ظهار اراده کړې ده فَهُوَ ظِهَارٌ نو هغه ظهار دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَيْسَ بِظِهَارٍ او محمد

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۰۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۴۴]

رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا ظهار نه دی. لِانْعِدَامِ التَّشْبِيهِ بِالْمُحَرَّمَةِ ځکه چي په [په دې کلام کي] د محرمي ښځي سره تشبيه ورکول نسته. وَهُوَ الرُّكْنُ فِيهِ او د محرمه ښځي سره تشبيه ورکول په ظهار کي رکن [او ضروري] دي. وَلَهُمَا: أَنَّهُ أَطْلَقَ الْحُرْمَةَ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي هغه حرمت مطلق کړی دی ايعني خاوند په خپل کلام کي حرمت مطلق ذکر کړی دی] وَفِي الظِّهَارِ نَوْعُ حُرْمَةٍ او په ظهار کي يو قسم حرمت وي ايعني ظهار د حرمت يو قسم او نوع ده] وَالْمُطْلَقُ يَحْتَمِلُ الْمُقَيَّدَ او مطلق د مقيد احتمال لري وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ التَّحْرِيمَ أَوْلَمْ أُرِدْ بِهِ شَيْئًا او که هغه ووايي: چي ما [په دې کلام سره] د حرامولو اراده کړې ده يا ما په دې سره د هيڅ شي اراده کړې نه ده فَهُوَ يَمِينٌ نو هغه قسم دی يَصِيرُ بِهِ مُولِيًا او په دې سره به هغه ايلاء کونکی ګرځي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي تَحْرِيمِ الْحَلَالِ إِنَّمَا هُوَ يَمِينٌ عِنْدَنَا ځکه چي د حلال شي په حرامولو کي اصل دا دی چي هغه زمونږ په نيز قسم دی وَسَنَذْكُرُهُ فِي الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللهُ او دا به مونږ انشاء الله په کتابُ الأيمان کي ذکر کړو وَمِنَ الْمَشَايِخِ مَنْ يَصْرِفُ لَفْظَةَ التَّحْرِيمِ إِلَى الطَّلَاقِ مِنْ غَيْرِ نِيَّةٍ بِحُكْمِ الْعُرْفِ او د مشائخو څخه ځيني حضرات د عرف د حکم په وجه سره د تحريم لفظ د نيت څخه بغير [يعني د نيت د نشتوالي په صورت کي] د طلاق وطرف ته ګرځوي. والله أعلم

**اللغات:** ﴿تَشْبِيْه﴾ د تفعيل مصدر دی: تشبيه ورکول. ﴿لَمْ أُرِدْ﴾ د افعال له باب څخه د جحد صيغه ده: اراده کول. نيت کول.

**تشريح:** په دې عبارت کي فقط د يوې جملې "أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ" په هکله څو مسئلې بيان سوي دي، چي هغه به انشاء الله په ترتيب ستاسو په مخ کي ذکر سي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ (ته پر ما حرامه يې). نو د دې څه حکم دی؟ فرمايي چي په دې سلسله کي به د هغه نيت او اراده معلوميږي، ځکه چي د خاوند دا کلام د څو معناګانو احتمال لري، نو د يو معنیٰ د متعينولو لپاره به له خاوند څخه د نيت پوښتنه کيږي.

نو که خاوند ووايي چي ما په دې جملې سره د دروغو اراده کړې ده. نو د جمهورو علماؤ په نيز د هغه دا نيت او اراده شرعاً معتبره ده. لهذا نه به طلاق واقع کيږي، او نه به ايلاء او ظهار ثابتيږي: دليل دا دی چي دلته خاوند په خپل کلام سره د حقيقي معنیٰ اراده کړې ده؛ ځکه چي دا ښځه د هغه لپاره

حلاله ده. بيا د هغه دا قول أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ داسي خبر دی کوم چي د واقع مطابق نه دی. نو ځکه به کِذْب او دروغ وي. او څرنګه چي د کلام د حقيقي معنیٰ نيت کول شرعاً معتبر دی. نو دلته به هم د خاوند نيت معتبر وي.

وقيل إلخ: لېکن په دې مسئله کې د امام طحاوي او امام کرخي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي قاضي به د کِذْب په نيت کي د دې سړي تصديق نه کوي. ځکه چي د هغه قول أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ په ښکاره قسم دی: ځکه چي دا يو حلال شی حرام ګرځول دي. او حلال شی حرام ګرځول قسم دی. لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايي: يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللهُ لَكَ (اې نبي کوم شی چي الله ستا لپاره حلال کړی دی. ته ولي هغه حرام ګرځوې؟). تر دې وروسته په دويم آيت کي الله تعالیٰ فرمايي: قَدْ فَرَضَ اللهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ (الله ستاسو د قسمونو حلالوالی هم مقرر کړی دي [په کفارې سره]). په دې دوو پرلپسې آيتونو سره په دې توګه دليل نيول کيږي چي په اول آيت کي د تَحْرِيْمُ الْحَلَال (يعني د حلال شي د حرام ګرځولو) بيان دی. او په دويم آيت کي هغه ته يمين (قسم) ويل سوي دي. نو معلومه سوه چي د تَحْرِيْمُ الْحَلَال (د حلال شي حرام ګرځول) قسم دی. لهذا خلاصه دا سوه چي په أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ کي د قسم معنیٰ ظاهر (ښکاره) ده. او د کِذْب معنیٰ يې د ظاهر خلاف ده. او مخکي ذکر سوه چي کوم شی د ظاهر خلاف وي. قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي. نو ځکه به قاضي د کِذْب په نيت کي د دې سړي تصديق نه کوي.

(٢)... او که خاوند ووايي چي ما په أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ سره د طلاق نيت کړی دی. نو که هغه د يوه يا دوو طلاقو نيت کړی وي. نو په دواړو صورتونو کي د هغه پر ښځي يو طلاق بائن واقع کيږي. او که هغه د دريو طلاقو نيت کړی وي. نو درې طلاقه واقع کيږي. صاحب د هدايې فرمايي چي دا په کنايي الفاظو سره د طلاق واقع کولو مسئله ده. او موږ مخکي په بَابُ الْكِنَايَات کي په تفصيل سره دا مسئله بيان کړه فلا نعيد هٰهنا.

(٣)... او که خاوند ووايي چي ما په دې سره د ظهار د معنیٰ اراده کړې ده. نو د شيخينو په نيز به دا ظهار وي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به ظهار نه وي؛ د امام محمد دليل دا دی چي د ظهار معنیٰ دا ده چي خاوند د محلله (حلالي) ښځي تشبيه د محرمه ابديه ښځي سره ورکړي. او د ظهار رکن همدا تشبيه ورکول دي. او د خاوند په دې کلام کي تشبيه معدومه ده. ځکه چي د تشبيه هيڅ حرف پکښي نسته. نو ځکه به ظهار نه ثابتيږي.

**ولهما إلخ:** د شيخينو دليل دا دى چې دلته خاوند د حُرمت لفظ مطلق ذكر كړى دى، او د حُرمت لفظ د حُرْمَة بَالطَّلَاق احتمال هم لري او د حُرْمَة بَالظِّهَار احتمال هم لري، خلاصه دا چې ظهار هم د حرمت يوه نوع ده، نو ظهار د مطلق حرمت له محتملاتو څخه دى، او قاعده دا ده چې كوم څوک د خپل كلام د احتمالي معنىٰ نيت وكړي، نو د هغه تصديق به كيږي، نو ځكه به دلته د خاوند د ظهار نيت معتبر وي.

(۴)... څلورمه مسئله دا ده كه خاوند ووايي چې ما په دې كلام سره د ښځې د حراملو نيت كړى دى. يا ووايي چې ما په دې سره د هيڅ شي نيت نه دي كړى، نو دا به قسم (يمين) وي، او د دې په وجه به هغه ايلاء كونكى وي، لهذا كه په دې صورت كې هغه په څلورو مياشتو كې دننه د خپلې ښځې سره وطي وكړي، نو كفاره به اداء كوي، او كه وطي نه وكړي نو د ايلاء په وجه سره به د هغه پر ښځې يو طلاقِ بائن واقع كيږي (لكه مخكې چې دا خبره د ايلاء په حكم كې بيان سوه).

د تحريم د نيت كولو په صورت كې ځكه دا كلام پر يمين حمل كيږي چې تَحْرِيْمُ الْحَلَال يمين او قسم دى، لكه څه مخكې چې په دې آيت "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللهُ...إلخ" سره ثابته سوه.

او د هيڅ نيت كولو په صورت كې به په دې وجه دا كلام يمين وي، چې په يمين سره چې كوم حرمت ثابتيږي، هغه د ادنىٰ درجې حرمت وي، ځكه چې په ايلاء كې تر كفاره مخكې وطي كول روا دي، او په ظهار كې روا نه دي، او په ايلاء كې فى الحاله حرمت نه ثابتيږي، بلكې څلور مياشتې وروسته حرمت ثابتيږي، او په ظهار كې فى الحاله حرمت ثابتيږي، او همدارنګه حُرمة بِالإيلاء له حُرمة بالطلاق څخه ادنىٰ دى، ځكه كه طلاق مراد سي، نو طلاق بائن به واقع سي او وطي به حرام سي، او ايلاء وطي نه حراموي، لهذا كله چې د يمين حرمت ادنىٰ دى، نو د متيقن كېدلو په وجه به هغه متعين وي. صاحب د هدايې فرمايي چې په كتَابُ الأَيْمَان كې به موږ انشاء الله په تفصيل سره د يمين مسئله ذكر كړو.

**ومن المشائخ إلخ:** د دې حاصل دا دى چې د بلخ د مشائخو څخه د فقيه ابو جعفر هندواني، شيخ ابو بكر اسكاف او شيخ ابو بكر بن سعيد رَحِمَهُمُ الله رايه دا ده چې كه په أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ سره خاوند هيڅ نيت نه وكړي، نو له دې څخه به طلاق مراديږي، ځكه چې د بلخ اوسېدونكي دا جمله د طلاق لپاره استعمالوي، ګواكې دغه حضراتو د خپلې زمانې پر عُرف فتوىٰ وركړې ده، او په شريعت كې عُرف معتبر دى، لكه څرنګه چې علامه شامي رَحِمَهُ الله هم په "رسمُ المفتي" كې داسې ليكلي دي چې: وَالْعُرْفُ فِي الشَّرْعِ لَهُ اِعْتِبَارٌ. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْخُلْعِ

## (دا) باب د خلع (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** له بابُ الإیلاء څخه وروسته د بابُ الخُلع د بیانولو دوې وجهي دي: ① یوه وجه دا چي ایلاء له مال څخه خالي وي، او په خلع کي مال وي، لهذا په دې اعتبار سره ایلاء طلاق ته ډېره نژدې ده، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله اول د ایلاء بیان وکړی، اوس د خلع بیان کوي. ② دویم دا چي په ایلاء کي د نارینه له طرفه د طلاق اقدام کیږي، او په خلع کي د ښځي له طرفه د طلاق اقدام کیږي، او نارینه وو ته په هر ډګر کي وړاندیتوب حاصل دی، نو په دې وجه هم ایلاء تر خلع مخکي بیان سوه، او خلع تر هغه وروسته بیانیږي.

**د خلع لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** خُلْع د فتح د باب مصدر دی، معنیٰ یې ده: ایستل (ویستل). جلا کول، کاږل (باسل)، په قرآن کي ذکر سوي دي: فَاخْلَعْ نَعْلَیْكَ (وکاږه خپلي څپلۍ).

د خلع شرعي معنیٰ ده: أَخْذُ مَالٍ مِنَ الْمَرْأَةِ بِإِزَاءِ مِلْكِ النِّكَاحِ بِلَفْظِ الْخُلْعِ. (یعني د خلع په لفظ سره د ملک نکاح په عوض کي د خپلي ښځي څخه مال اخیستل)، لنډه دا چي د خلع معنیٰ ده: "د مال په بدله کي ښځه د خپل نکاح څخه ایستل". د خلع شرائط هغه دي کوم چي د طلاق شرائط دي. په خلع کي د ښځي له طرفه مال وي او خاوند له طرفه طلاق ورکول وي، د خلع حکم دادی چي د خلع په ذریعه پر ښځي یو طلاقِ بائن واقع کیږي. (بنایة ج: ۵، ص: ۲۹۱)

### د خلع تعریف او حکم

وَإِذَا تَشَاقَّ الزَّوْجَانِ او کله چي خاوند او ښځه یو د بل مخالف سي ایعني په دواړو کي مخالفت پیدا سي او ګزاره یې سخته سي| وَخَافَا أَنْ لَا يُقِيمَا حُدُودَ اللهِ او دواړو ته دا بېره [او اندېښنه] پیدا سي چي دوی به د الله حدود قائم نه کړی سي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَفْتَدِيَ نَفْسَهَا مِنْهُ بِمَالٍ يَخْلَعُهَا بِهِ نو هیڅ پروا نسته چي ښځه خپل خاوند ته د داسي مال په ذریعه د خپل ځان فدیه ورکړي چي د هغه په وجه خاوند ښځه جلا کړي |او د ښځي سره خلع وکړي| لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ [البقرة: ۲۲۹] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: نو پر دوی دواړو هیڅ حرج نسته په هغه فدیه کي کوم چي یې ښځه [خاوند ته]

ورکوي ﴿فَإِذَا فَعَلَا ذٰلِكَ﴾ نو کله چې خاوند او ښځه داسې وکړي ﴿وَقَعَ بِالْخُلْعِ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ﴾ نو د خلع په ذريعه به يو طلاقِ بائن واقع کيږي ﴿وَلَزِمَهَا الْمَالُ﴾ او پر ښځې به مال لازميږي لِقَوْلِهِ ﷺ [1] : اَلْخُلْعُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ ځکه چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: خلع طلاقِ بائن ده وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الطَّلَاقَ او ځکه چې خلع د طلاق احتمال لري حَتّٰى صَارَ مِنَ الْكِنَايَاتِ همدا وجه ده چې هغه له کناياتو څخه ده وَالْوَاقِعُ بِالْكِنَايَاتِ بَائِنٌ او په کناياتو سره واقع کېدونکی طلاق، طلاقِ بائن وي إِلَّا أَنَّ ذِكْرَ الْمَالِ أَغْنٰى عَنِ النِّيَّةِ هُنَا خو د مال تذکرې [ذکر کولو] دلته [خاوند او ښځه] د نيت څخه مستغنی کړي دي ايعني د مال د تذکرې په وجه په خلع کې د نيت ضرورت نسته] وَلِأَنَّهَا لَا تُسَلِّمُ الْمَالَ إِلَّا لِتَسَلَّمَ لَهَا نَفْسُهَا او ځکه چې ښځه فقط په دې وجه مال ورسپاري چې د هغې ځان [په پوره توګه] هغې ته حواله کړی سي [او په پوره توګه هغه له خاوند څخه خلاصه سي] وَذٰلِكَ بِالْبَيْنُونَةِ او دا [مقصد] په طلاقِ بائن سره ترلاسه کيږي.

**اللغات:** ﴿تَشَاقَّ﴾ د تفعل ماضي ده: يو د بل مخالفت کول، جنګ او جنجال کول. ﴿تَفْتَدِي﴾ د افتعال مضارع ده: فديه ورکول. ﴿يَخْلَعُهَا﴾ د فتح مضارع ده: جلا کول، ايستل (ويستل). ﴿جُنَاحَ﴾ پروا، حرج، ګناه. ﴿أَغْنٰى﴾ د افعال ماضي ده: بې پروا کول، مستغني کول. ﴿تُسَلِّمُ﴾ دا د تفعيل له باب څخه د واحد مؤنث غائب مضارع معلومي صيغه ده، او تُسَلَّمُ مجهوله صيغه ده. د دې باب څو معناوي راځي، او دلته د "سپارلو" او "حواله کولو" په معنیٰ سره دي (زما په اند دا دوې صيغې د تفعّل يا د مجردو له باب څخه استعمالول د قاعدې مخالف دي).

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که د خاوند او ښځې ګزاره سره مشکله سي، په دواړو کې اختلاف او بې اتفاقي راسي، او د دې خبرې خطره وي چې د الله حدود به پايمال او ضايع کړی سي، نو د ښځې لپاره جائز دي چې خاوند ته يو څه مال ورکړي او له هغه څخه ځان خلاص کړي، کله چې ښځه د خلع په اراده خاوند ته مال ورکړي، او خاوند هغه مال واخلي، نو د خلع کولو په وجه سمدستي پر ښځې طلاقِ بائن واقع کيږي، که څه هم خاوند په عليحده توګه طلاق نه ورکړي (ليکن د ځيني علماؤ رايه دا ده چې په خلع کولو سره سمدستي طلاق نه واقع کيږي، بلکې تر مال اخيستلو وروسته به خاوند مستقلاً طلاق ورکوي، نو بيا طلاق واقع کيږي).

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتابه الخلع والطلاق، باب الخلع هل هو فسخ أو طلاق، حديث رقم: ۱۴۸۶۵

د خلع د جواز دليل هغه آيت او حديث دي کوم چې په کتاب کې ذکر سوه. د ځينې مفسرينو رايه دا ده چې کله ثابت بن قيس رضي الله عنه او د هغه ښځې د نبي ﷺ په مخ کې خلع وکړه، نو دا آيت نازل سو. او نبي ﷺ تر هغه وروسته همدا حديث بيان کړی.

په هغه آيت سره په دې توګه دليل نيول کيږي چې په هغه کې د ښځې مال ورکولو ته فديه ويل سوي دي، او د ښځې له طرفه د فديه ورکولو مطلب دی: "چې د خاوند له قيد څخه خلاصون تر لاسه کول"، او دا معنیٰ په خلع کې سته.

نو ثابته سوه چې ښځه د خلع په ذريعه خپل ځان د خاوند له قيد څخه آزادولای سي، او کله چې هم دا کار يعني خلع پوره سي، نو پر ښځې به يو طلاق بائن واقع کيږي. او د ښځې پر ذمه به مال ورکول واجب وي. په خلع سره د طلاق بائن واقع کېدلو دليل د کتاب حديث دی. يعني اَلْخُلْعُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ.

**ولأنه يحتمل إلخ:** په خلع سره د طلاق بائن واقع کېدلو عقلي دليل دا دی چې د خلع لفظ د کنايي الفاظو څخه دی. او په کنايي الفاظو سره طلاق بائن واقع کيږي. نو د خلع په لفظ سره به هم طلاق بائن واقع کيږي؛ او په کنايي لفظ کې د طلاق نيت کول ضروري دي، لېکن څرنګه چې په خلع کې د مال تذکره کيږي، نو همدغه د مال تذکره د دې خبرې دليل دی چې خاوند طلاق ورکول غواړي، نو ځکه په خلع کې د طلاق د نيت کول ضروري نه دي.

**ولأنها لا تتسلم إلخ:** دا دويم عقلي دليل دی چې ښځه د دې لپاره مال ورکوي چې له خاوند څخه ځان خلاص کړي او په پوره توګه د هغې په لاس کې خپل ملکيت راسي، او دا کار په طلاق بائن سره پوره کيږي، نو ځکه به په خلع سره طلاق بائن واقع کيږي.

## په خلع کې د مال اخيستلو بيان

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْ قِبَلِهِ او که نافرماني د خاوند له طرفه وي يُكْرَهُ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهَا عِوَضًا نو د خاوند لپاره مکروه دي چې له ښځې څخه عوض واخلي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ... إِلَىٰ أَنْ قَالَ: فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا [النساء: ٢٠] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: او که تاسي [اې خاوندانو!] اراده وکړئ! د بدلولو د يوې ښځې پر ځای د بلې ايعني چې يوه طلاقه کړی او د هغې پر ځای بله په نکاح کړئ!... تر دې چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: نو مه اخلئ تاسي [اې خاوندانو! بيرته] له هغه مال څخه هيڅ شی اکوم چې تاسي خپلو ښځو ته ورکړی وي ا وَلِأَنَّهُ أَوْحَشَهَا بِالِاسْتِبْدَالِ او ځکه چې خاوند دا ښځه |

[د ملي ښځي] په بدلولو سره په وحشت [بېره] مبتلا کړه فَلَا يَزِيدُ فِي وَحْشَتِهَا بِأَخْذِ الْمَالِ نو د مال په اخيستلو سره د هغې وحشت نور نه زياتوي.

**اللغات:** ﴿النُّشُوزُ﴾ اسم مصدر دی، د نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راځي: نافرماني، سرکښي، نفرت، زياتوب (تجاوز)، ﴿إِسْتِبْدَال﴾ يو شی په بل شي سره بدلول (اليشول)، ﴿أَوْحَشَ﴾ د افعال ماضي ده: بل څوک په وحشت او بېره کي اچول، په غم او تشويش مبتلا کول.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي د خاوند لپاره په هغه صورت کي د مال اخيستل صحيح دي، کله چي نافرماني او تجاوز د ښځي له طرفه وي، لېکن که تجاوز او زياتوب په خپله د خاوند له طرفه وي، نو په دې صورت کي د هغه لپاره د خلع په بدله کي مال اخيستل مکروه دي؛ دليل دا آيت دی: "إِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا"، په دې آيت کي په واضحه توګه دې ته اشاره سوې ده چي له ښځي څخه د خلع په توګه مال اخيستل پکار نه دي او که ظلم او زياتوب د خاوند له طرفه نو بيا په طريقه اولیٰ سره اخيستل پکار نه دي، بلکي د هغه اخيستل مکروه دي.

دويم دليل دا دی چي خاوند د خلع په کولو سره ښځي ته دا ښکاره کوي چي زه به ستا پر ځای د بلي ښځي سره نکاح وکړم، او دا د ښځي لپاره ډېره مشکله خبره ده. نو په خلع کولو سره ښځه په وحشت او بېره کي لوېږي، او دلته ظلم او تجاوز هم د خاوند له طرفه دی، نو که د هغې مظلومي څخه مال هم واخيستل سي، نو نوره به په وحشت او غم سره مبتلا سي، لهذا په دې وجه هم مال اخيستل مکروه دي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْهَا او که نافرماني د ښځي له طرفه وي كَرِهْنَا لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهَا أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهَا نو موږ د خاوند لپاره دا خبره مکروه ګڼو چي له ښځي څخه تر هغه مال زيات [مقدار] واخلي کوم چي يې [د نکاح په بدله کي] هغې ته ورکړی وي وَفِي رِوَايَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: طَابَ الْفَضْلُ أَيْضًا او د جامع صغير په روايت کي دي: چي د خاوند لپاره زيات [مقدار] اخيستل هم روا دي لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا بَدْءًا د هغه آيت د مطلقوالي په وجه کوم چي موږ [د باب] په شروع کي تلاوت کړی وَوَجْهُ الْأُخْرَى قَوْلُهُ عليه السلام ❶

---

● تخريج: أخرجه دار قطني في السنن، حديث رقم: ٣٦٧١.

لِي امْرَأَةِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ: أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا او د دويم روايت دليل د ثابت بن قيس بن شماس رضي الله عنه د ښځي په هکله د نبي ﷺ دا فرمان دی: أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا اې د ثابت ښځي! خپل خاوند ته د هغه باغ ورکړه!، او تر هغه زائد مال مه ورکوه! [ وَقَدْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْهَا او [ په هغه کې ] نافرماني د ښځي له طرفه وه.

**اللغات:** ﴿طَابَ﴾ د ضرب ماضي ده: ښه کېدل، افضل کېدل، پاکېدل، مراد ځني إباحت (روا کېدل) دي. ﴿فَضْل﴾ زياتوب، اضافه.

**تشریح: مسئله:** دا ده که نافرماني او تجاوز د ښځي له طرفه وي، نو د مبسوط د روايت مطابق د خاوند لپاره د مهر د مقدار څخه زيات مال اخيستل مکروه دي، لېکن د جامع صغير په روايت کي امام محمد رَحِمَهُ الله زيات مقدار هم د خاوند لپاره روا کړئ دی: د جامع صغير د روايت دليل دا دی چي مخکني آيت: فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ مطلق دی، يعني په دې آيت کي مطلق فديه ذکر سوې ده، هغه که د مهر تر مقدار کمه وي يا زياته وي، نو ځکه به د خاوند لپاره د مهر د مقدار څخه زيات اخيستل روا وي.

او د مبسوط د روايت دليل د ثابت بن قيس رضي الله عنه د ښځي په هکله د نبي ﷺ دا قول دی: أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا، يعني د مهر مسمیٰ د مقدار څخه زيات مال اخيستل مکروه دي، په سنن دار قطني کي پوره حديث داسي بيان سو دی: "قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ. أَنَّ ثَابِتَ بْنَ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ كَانَتْ عِنْدَهُ زَيْنَبُ بِنْتُ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُبَيِّ ابْنِ سَلُولٍ وَكَانَ أَصْدَقَهَا حَدِيقَةً فَكَرِهَتْهُ . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَرُدِّينَ عَلَيْهِ حَدِيقَتَهُ الَّتِي أَعْطَاكِ؟. قَالَتْ: نَعَمْ وَزِيَادَةً . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا وَلَكِنْ حَدِيقَتُهُ". (سنن دار قطني، باب المهر، حديث شمېره: ۳۶۷۱)

حضرت ثابت بن قيس د نکاح په وخت کي خپلي ښځي ته يو باغ د مهر په توګه ورکړی وو، لېکن ښځه يې په هغه راضي نه وه، او د خلع مطالبه يې وکړه، نو نبي ﷺ له هغې څخه پوښتنه وکړه چي آيا ته هغه باغ بېرته ثابت ته ورکولای سې کوم چي يې تا ته په مهر کي درکړی وو، نو هغې ووېل: هو! تر هغه زيات هم ورکولای سم، نو نبي ﷺ وفرمايي چي د زيات مقدار هيڅ ضرورت نسته، فقط هغه په مهر کي تاکل سوی باغ ورکړه.

له دې حديث سره دا خبره ښکاره سوه چي که نافرماني او تجاوز د ښځي له طرفه وي، نو د خاوند لپاره د مهر مسمیٰ د مقدار څخه زيات مال اخيستل مکروه دي، ځکه کله چي نبي ﷺ د دې اباحت ممنوع ګرځولی دی، نو که څه هم په دې سره حرمت نه ثابتيږي، لېکن کراهت ضرور ثابتيږي.

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

وَلَوْ أَخَذَ الزِّيَادَةَ او كه [خاوند] زيات [مقدار] واخلي جَازَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً جائز دي وَكَذٰلِكَ إِذَا أَخَذَ وَالنُّشُوزُ مِنْهُ او همدارنګه [قضاءً جائز دي] كله چې [خاوند] په داسې حال كې [له ښځې څخه] مال واخلي چې نافرماني [هم] د خاوند له طرفه وي لِأَنَّ مُقْتَضٰى مَا تَلَوْنَا شَيْئَانِ ځكه كوم آيت چې موږ تلاوت كړى د هغه مقتضىٰ دوه شيان دي يعني فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهٖ د دوو شيانو تقاضا كوي] الْجَوَازُ حُكْمًا وَالْإِبَاحَةُ د حكماً جائز كېدلو او د روا كېدلو وَقَدْ تُرِكَ الْعَمَلُ فِي حَقِّ الْإِبَاحَةِ لِمُعَارِضٍ [لېكن د حديث] د معارض په وجه د روايښت په حق كې عمل پرېښودل سو فَبَقِيَ مَعْمُولًا فِي الْبَاقِي نو دباقي [جواز] په حق كې آيت معموله به پاته سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چې نافرماني او تجاوز كه د ښځې له طرفه وي يا كه د خاوند له طرفه وي، په دواړو صورتونو كې د خاوند لپاره د مهر مسمىٰ څخه زيات مقدار اخيستل خو جائز دي. لېكن مكروه دي. او په جواز او كراهت كې اجتماع ممكن ده، ځكه چې د جواز ضد حرمت دى. نه كراهت. او د فِيمَا افْتَدَتْ بِهٖ آيت د دو شيانو تقاضا كوي: ① حكماً جائز كېدل (يعني زيات مقدار به حكماً جائز وي.كه څه هم مكروه وي). ② اباحت (يعني روا كېدل او افضل كېدل). او دلته د پورتني حديث "أَمَّا الزِّيَادَةُ فَلَا" په وجه اباحت پرېښودل سو. نو د دې آيت فقط يوه مقتضا پاته سوه چې تر مهر زيات مقدار اخيستل د كراهت سره جائز دي.

## د "طَلَاق عَلَى الْمَال" حكم

وَإِنْ طَلَّقَهَا عَلٰى مَالٍ فَقَبِلَتْ او كه [خاوند] ښځې ته د مال په عوض كې طلاق وركړي او ښځې [هغه] قبول كړي وَقَعَ الطَّلَاقُ وَلَزِمَهَا الْمَالُ نو طلاق واقع كيږي او پر ښځې مال لازميږي لِأَنَّ الزَّوْجَ يَسْتَبِدُّ بِالطَّلَاقِ تَنْجِيزًا وَتَعْلِيقًا ځكه چې خاوند په مُنجّز او معلق دواړه قسمه طلاقونو كې مستقل دى يعني خاوند په طلاق وركولو كې خود مختاره دى، سمدستي طلاق هم وركولاى سي او معلق طلاق هم وركولاى سي] وَقَدْ عَلَّقَهُ بِقَبُولِهَا او هغه طلاق د ښځې پر قبلولو معلق كړى دى وَالْمَرْأَةُ تَمْلِكُ الْتِزَامَ الْمَالِ او ښځه [پر خپل ځان] د مال لازمولو ملكيت لري لِوِلَايَتِهَا عَلٰى نَفْسِهَا ځكه چې هغې ته پر خپل ځان [شېږ] ولايت حاصل دى وَمِلْكُ النِّكَاحِ مِمَّا يَجُوزُ الْاِعْتِيَاضُ عَنْهُ او ملك نكاح له هغو شيانو څخه دى

چي د هغه عوض اخيستل جائز وي ايعني ملکِ نکاح يو داسي شی دی چي د هغه عوض او بدل اخيستل کېدای سي ا وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَالًا که څه هم ملکِ نکاح مال نه دی كَالْقِصَاصِ لکه قصاص اچي مال نه دی ا وَكَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا او طلاق به بائن وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ الږ څه مخکي ا بيان کړی وَلِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمَالِ بِالنَّفْسِ او ځکه چي دا د مال معاوضه د نفس په بدله کي ده وَقَدْ مَلَكَ الزَّوْجُ أَحَدَ الْبَدَلَيْنِ او خاوند په دوو عوضونو کي د يوه عوض مالک جوړ سو فَتَمْلِكُ هِيَ الْآخَرَ وَهِيَ النَّفْسُ تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ لهذا د برابری ثابتولو لپاره به ښځه د بل عوض يعني د خپل ځان مالکه جوړيږي.

**اللغات:** ﴿يَسْتَبِدّ﴾ د استفعال مضارع ده. اِسْتَبَدَّ يَسْتَبِدُّ اِسْتِبْدَادًا: مستقل کېدل. خود مختاره کېدل. ﴿تَنْجِيز﴾ د تفعيل مصدر دی: فوراً (سمدستي) واقع کول. ﴿اِلْتِزَام﴾ د افتعال مصدر دی: په خپله غاړه اخيستل، پر ځان لازمول. ﴿مُعَاوَضَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو بل ته عوض (بدل) ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د ښځي طلاق پر مال معلق کړي او داسي ووايي: طَلِّقْتُكِ عَلَى أَلْفِ دِرْهَم (ما د زرو درهمو په عوض کي تا ته طلاق در کړی). او ښځه طلاق او مال قبول کړي، نو طلاق واقع کيږي، او پر ښځي زر درهمه لازميږي.

صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي دا صورت پر دوو شيانو مبني دي: ① اول شی دا دی چي په خاوند او ښځي کي به د معاوضې أهليت وي، ② دويم شی دا دی چي په محل کي به د عوض او معاوضې د قبوليت صلاحيت وي، او دلته دواړه شيان موجود دي، ځکه چي خاوند د هر ډول طلاق ورکولو أهل دی، يعني هم فوراً (منجز) طلاق ورکولای سي، او هم طلاق پر يو شي معلق کولای سي، همدارنگه ښځي ته هم دا حق سته چي پر خپل ځان مال لازم کړي، ځکه چي ښځي ته پر خپل ځان ولايت تامه حاصل دی، او بيا په نکاح کي د معاوضې د قبوليت صلاحيت هم سته. ځکه که څه هم نکاح مال نه ده، خو بيا هم نکاح د ختمولو عوض اخيستل جائز دي، لکه څرنگه چي د قصاص عوض اخيستل جائز دي، حالانکي قصاص مال نه دی. لنډه دا چي دلته د معاوضې د صحت ټوله شرطونه موجود دي، نو ځکه به د خاوند لپاره د مال په عوض کي طلاق ورکول صحيح وي، او تر دې وروسته که ښځه طلاق او د مال اداء کول قبول کړي، نو پر هغې به يو طلاق بائن واقع کيږي، ځکه چي ښځه په همدې وجه د مال په ورکولو راضي کيږي چي په پوره توگه له خاوند څخه خلاصه سي او د خاوند له ملکيت څخه ووځي، او دا کار په طلاقِ بائن سره پوره کيږي.

**ولأنه معاوضة إلخ:** دويم دليل دا دی چي دلته د نفس په بدله کي خاوند ته مال ورکول کيږي او هغه د مال مالک جوړيږي. نو ښځه هم د خپل نفس (ځان) مالکه جوړېدل پکار دي. د دې لپاره چي دواړه په ملکيت کي سره برابر سي. او دا په هغه وخت کي ممکن دي. کله چي واقع کېدونکي طلاق. طلاق بائن وي. نو ځکه به طلاق بائن واقع کيږي.

## پر غيرِ متقوّم شي خلع کول

قَالَ: وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الْخُلْعِ فرمايي: که چيري په خلع کي عوض باطل سي مِثْلَ أَنْ يُخَالِعَ الْمُسْلِمُ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ أَوْ مَيْتَةٍ د مثال په توګه مسلمان کس پر شرابو يا پر خنزير يا پر مرداره خلع وکړي فَلَا شَيْءَ لِلزَّوْجِ نو د خاوند لپاره به هيڅ شی نه وي وَالْفُرْقَةُ بَائِنَةٌ او فرقت به بائن وي ايعني طلاق بائن به وي ا وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الطَّلَاقِ او که چيري په طلاق کي عوض باطل سي كَانَ رَجْعِيًّا نو هغه به [طلاق] رجعي وي فَوُقُوعُ الطَّلَاقِ فِي الْوَجْهَيْنِ لِلتَّعْلِيقِ بِالْقَبُولِ او په دې دواړو صورتونو کي د طلاق واقع کېدل پر قبول [قبلولو] د معلق کولو په وجه دي وَافْتِرَاقُهُمَا فِي الْحُكْمِ لِأَنَّهُ لَمَّا بَطَلَ الْعِوَضُ او په حکم کي د دواړو صورتونو مختلف کېدل په دې وجه دي چي کله عوض باطل سو كَانَ الْعَامِلُ فِي الْأَوَّلِ لَفْظُ الْخُلْعِ نو په اول صورت کي عامل د خلع لفظ سو وَهُوَ كِنَايَةٌ او هغه کنايي لفظ دی وَفِي الثَّانِي الصَّرِيحُ او په دويم صورت کي عامل صريح لفظ [د طلاق لفظ] سو وَهُوَ يُعْقِبُ الرَّجْعَةَ او صريح لفظ [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي وَإِنَّمَا لَمْ يَجِبْ لِلزَّوْجِ شَيْءٌ عَلَيْهَا او پر ښځي د خاوند لپاره ځکه هيڅ شي واجب نه سو لِأَنَّهَا مَا سَمَّتْ مَالًا مُتَقَوَّمًا حَتَّى تَصِيرَ غَارَّةً لَهُ ځکه چي ښځي [په دې صورتونو کي] هيڅ متقوم مال نه دی ياد کړی چي هغه [خاوند ته] دوکه ورکونکې وګرځي [ځکه چي شراب او داسي نور د مسلمان په حق کي متقوم مال نه دي] وَلِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْمُسَمَّى لِلْإِسْلَامِ او ځکه چي د مسلمانوالي په وجه د ياد کړل سوي مال د واجبولو هيڅ صورت نسته وَلَا إِلَى إِيجَابِ غَيْرِهِ او نه له دې څخه بغير [د بل شي] د واجبولو [هم] هيڅ صورت سته لِعَدَمِ الِالْتِزَامِ د التزام د نشتوالي په وجه ايعني ځکه چي ښځي له شراب او داسي نورو څخه بغير بل شی پر ځان لازم کړی نه دي] بِخِلَافِ مَا إِذَا خَالَعَ عَلَى خَلٍّ بِعَيْنِهِ په خلاف د هغه صورت کله چي [خاوند] پر يوه متعينه [ياد کړل سوې] سرکه باندي خلع وکړي فَظَهَرَ أَنَّهُ خَمْرٌ بيا ښکاره سي چي هغه خو شراب دي لِأَنَّهَا سَمَّتْ مَالًا ځکه چي [په دې صورت کي] ښځي مال

تاکلی دی ائحکه چي سرکه د مسلمان په حق کي متقوم مال دی | فَصَارَ مَغْرُوْرًا نو خاوند به ادښځي له طرفه | دوکه سوی وي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَاتَبَ أَوْ أَعْتَقَ عَلٰى خَمْرٍ او په خلاف د هغه صورت کله چي مالک د خپل غلام سره د شرابو په عوض کي بدل کتابت وکړي یا غلام آزاد کړي حَيْثُ تَجِبُ قِيمَةُ الْعَبْدِ نو | په دې صورت کي | د غلام قیمت واجبيږي لِأَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَى فِيهِ مُتَقَوِّمٌ ځکه چي په غلام کي د مالک ملکیت متقوم دی وَمَا رَضِيَ بِزَوَالِهِ مَجَّانًا او مالک مفت [بیله عوضه] د خپل ملکیت په زائلېدلو راضي نه دی أَمَّا مِلْكُ الْبُضْعِ فِي حَالَةِ الْخُرُوجِ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ او کوم چي ملک بضع دی نو هغه اله ملکیت څخه | د وتلو په حالت کي متقوم نه ده عَلٰى مَا نَذْكُرُ چي هغه به موږ [انشاء الله] ذکر کړو وَبِخِلَافِ النِّكَاحِ لِأَنَّ الْبُضْعَ فِي حَالَةِ الدُّخُولِ مُتَقَوِّمٌ او په خلاف د نکاح، ځکه چي بضع [ملکیت ته | د داخلېدلو په حالت کي متقوم وي وَالْفِقْهُ: أَنَّهُ شَرِيفٌ او د راز او پوهني | خبره دا ده: چي بضع یو محترم [او خوندور] شی دی فَلَمْ يُشْرَعْ تَمَلُّكُهُ إِلَّا بِعِوَضٍ إِظْهَارًا لِشَرَفِهِ نو د بضع د احترام [عظمت] د څرګندولو لپاره له څه عوض څخه بغیر د هغې مالک جوړېدل مشروع سوي نه دي فَأَمَّا الْإِسْقَاطُ فَنَفْسُهُ شَرَفٌ او کوم چي د ملکیت ساقطېدل دي نو هغه په خپل ذات کي د احترام [او عظمت] خبر ده فَلَا حَاجَةَ إِلٰى إِيجَابِ الْمَالِ نو ځکه اد ملکیت ساقطېدلو په وخت کي اد مال واجبولو خاص ضرورت نسته.

**اللغات:** ﴿مَيْتَة﴾ مردار سوی حیوان. مرداره (یعني هغه حیوان چي په خپل مرګ مړ سوي وي. صاحب د مصباح یې داسي تعریف کړی دی: وَالْمَيْتَةُ مِنَ الْحَيَوَانِ مَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ). ﴿فُرْقَة﴾ جدایي. ﴿سَمَّتْ﴾ د تفعیل ماضي ده: تاکل. ذکر کول. نومول. ﴿غَارَّة﴾ د نصر له باب څخه مؤنث اسم فاعل دی: دوکه کونکې ښځه (دوکه ورکونکې. دوکه بازه. چلبازه. ختا ایستونکې). ﴿مُتَقَوِّم﴾ د تفعّل اسم مفعول دی: قیمتداره (قیمت لرونکی. بیه لرونکی. نرخ لرونکی). قیمتي. ﴿مَغْرُوْر﴾ د نصر له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده: چا ته چي دوکه ورکول سوې وي. ﴿مَجَّانًا﴾ مفت (موت). په وړیا توګه. بیله عوضه. ﴿شَرِيف﴾ د کرُم له باب څخه د صفت مشبه صیغه ده: دلویی او عظمت خاوند. محترم.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو مسلمان خاوند د خپلې ښځې سره د شرابو د یا خنزیر یا د مردار حیوان په عوض کې خلع وکړي (او د خلع لفظ استعمال کړي). نو څرنګه چې دا شیان د مسلمان په حق کې مال نه دي. نو ځکه دا شیان (عوض) باطلیږي او خاوند ته به هیڅ شی نه ورکول کیږي. خو څرنګه چې د خلع لفظ استعمال سوی دی کوم چې کنایي لفظ دی. او مخکې ذکر سوه چې په کنایي لفظ سره طلاق بائن واقع کیږي، نو په دې وجه به دلته پر ښځې طلاق بائن واقع کیږي.

او که یو مسلمان خاوند خپلې ښځې ته د شرابو یا د داسې بل حرام شي په عوض کې طلاق ورکړي (یعني د طلاق لفظ استعمال کړي). نو ښکاره خبره ده چې عوض خو باطلیږي. لیکن په دې صورت کې پر ښځې، طلاق رجعي واقع کیږي، ځکه چې دلته د طلاق لفظ استعمال سوی دی کوم چې صریح لفظ دی. او مخکې ذکر سوه چې په صریح لفظ سره طلاق رجعي واقع کیږي.

**فوقوع الطلاق إلخ**: فرمايي چې په دې دواړو صورتونو کې ځکه طلاق واقع کیږي چې خاوند طلاق د ښځې پر قبول معلق کړی دی. او په دواړو صورتونو کې ښځې عوض قبول کړی دی. نو ځکه به طلاق واقع کیږي. او د دویم صورت حکم ځکه د اول صورت څخه جلا دی. یعني په اول صورت کې د طلاق بائن او په دویم صورت کې د طلاق رجعي واقع کېدلو وجه دا ده، چې کله په دواړو صورتونو کې عوض باطل سو. نو فقط لفظ پاته سو. او دا په اول صورت کې د خلع لفظ دی. او د خلع په لفظ سره طلاق بائن واقع کیږي. او په دویم صورت کې د طلاق لفظ دی کوم چې صریح دی. او په صریح لفظ سره طلاق رجعي واقع کیږي. نو د لفظ بدلون په وجه د دواړو صورتونو حکم بدل سو.

**وإنما لم يجب إلخ**: فرمايي چې په دې دواړو صورتونو کې ځکه پر ښځې د خاوند لپاره هیڅ شی نه واجبیږي، چې په دې صورتونو کې ښځې مال ټاکلی نه دی (ځکه چې شراب یا بل حرام شی مال متقوم نه دي). بلکې ښځې له شروع څخه صفا دا خبره کړې ده چې زه شراب یا خنزیر.... درکوم. لهذا په دې صورتونو کې د ښځې له طرفه هیڅ دوکه نسته. نو ځکه به د عوض تر باطلېدلو وروسته پر ښځې هیڅ شی نه واجبیږي. ها! که ښځې داسې ویلي وای چې د دغه سرکې په بدله کې خلع در سره کووم. او وروسته معلومه سوه چې هغه شراب دي، نو څرنګه چې دلته ښځې مال ذکر کړی دی. حالانکې هغه مال نه دی، نو په دې صورت کې ښځه دوکه ورکونکې سوه. نو ځکه به اوس پر دې ښځې د هغه په اندازه سرکه واجب وي (د صاحبینو په نیز). یا به مهر مثل پر واجب وي (د امام صاحب په نیز).

**وبخلاف إلخ**: فرمايي د دې په خلاف که یو مالک د شرابو په بدله کې د خپل غلام سره بدل کتابت وکړي، یا د شرابو په عوض کې غلام آزاد کړي، نو د شرابو په ورکولو سره غلام نه آزادیږي. بلکې غلام

په څپل قیمت په عوض کې ورکوي، نو بیا آزادیږي: ځکه چې غلام متقوم مال دی او د مالک په ملکیت کې دی. او شراب غیر متقوم مال دی، او مالک بېله عوضه مفت د خپل ملکیت په زائلېدلو راضي نه دی، نو ځکه به د شرابو په عوض کې پر غلام د خپل ځان قیمت واجب وي. د دې په خلاف د ښځې بضع که څه هم د نکاح په وخت کې متقوم ده، لېکن دقبضې څخه د وتلو په وخت کې د بضع قیمت نسته. لهذا که هغه بېله عوضه او مفت د خاوند دلاس څخه ووځي، نو هیڅ د حرج خبره نه ده. نو په دې وجه به په پورتني دواړو صورتونو کې طلاق واقع کېږي، لېکن پر ښځې به هیڅ شی نه واجبیږي.

**وبخلاف النکاح إلخ:** فرمایي چې د خلع او طلاق په خلاف که یو سړی د یو حرام شي مثلاً د شرابو په عوض کې د ښځې سره نکاح وکړي، نو نکاح صحیح کېږي. او د حرام شي (شرابو) په عوض کې مهر مثل واجبیږي. ځکه کله چې د نکاح پر موقع بضع د خاوند په ملکیت کې داخلیږي. نو په هغه وخت کې د بضع د عظمت ښکاره کولو لپاره هغې ته قیمت ورکول سوی دی. او د خلع او طلاق په وخت کې چې کله بضع د خاوند له ملکیت څخه وځي. نو د بل له ملکیت څخه د بضع وتل دا په خپله د احترام خبره او د عظمت نښه ده. نو له ملکیت څخه د بضع د وتلو په وخت کې بضع ته قیمت ورکول ضروري نه دي. لهذا کله چې د نکاح او خلع په مینځ کې دا فرق سته. نو ځکه به پر حرام شي د نکاح کولو په وخت کې مهر مثل واجبیږي.

## په خلع کې کوم شیان په عوض (بدل) کې ټاکل جائز دي؟

| قَالَ: وَمَا جَازَ أَنْ يَكُوْنَ مَهْرًا جَازَ أَنْ يَكُوْنَ بَدَلًا فِي الْخُلْعِ فرمایي: او کوم شی چې مهر جوړېدای سي هغه شی د خلع بدل هم جوړېدای سي لِأَنَّ مَا يَصْلُحُ عِوَضًا لِلْمُتَقَوِّمِ ځکه کوم شي چې د متقوم مال د عوض کېدلو صلاحیت لري أَوْلَى أَنْ يَصْلُحَ عِوَضًا لِغَيْرِ الْمُتَقَوِّمِ نو هغه به په درجه اولیٰ د غیر متقوم مال د عوض کېدلو صلاحیت لري. |
|---|

**اللغات:** ﴿مُتَقَوِّم﴾ د تفعل له باب څخه اسم مفعول دی: قیمتداره (قیمت لرونکی. بیه لرونکی). قیمتي.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې هر هغه شی کوم چې په نکاح کې مهر جوړېدای سی. هغه په خلع کې عوض او بدل جوړېدای سي (همدا په فقه کې قاعدۀ کلیه ده)، ځکه په تېر عبارت کې ذکر سوه چې د نکاح په حالت کې بضع مال متقوم وي. او د خلع په حالت کې هغه مال غیر متقوم وي. او کوم شی چې د متقوم مال عوض جوړېدلای سي. هغه شی په طریقه اولی سره د غیر متقوم مال عوض

جوړېدلای سي لېکن د دې برعکس نه سي کېدلای. یعني کوم شی چې د خلع عوض جوړېدلای سي. نو ضروري نه ده چې هغه دې د مهر او نکاح عوض جوړ سي. لکه څرنګه چې تر لسو کم دراهم د خلع عوض جوړېدلای سي لېکن د مهر عوض نه سي جوړېدلای. (بنایه ج۵، ص۳۰۵)

## د خلع په عوض کې د نامعلوم شي ټاکلو حکم

| |
|---|
| **فَإِنْ قَالَتْ لَهُ: خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي** او که ښځه خاوند ته [داسي] ووايي: کوم شی چې زما په لاس کې دی د هغه په عوض کې ته زما سره خلع وکړه! **فَخَالَعَهَا** او [خاوند] د هغې سره خلع وکړي **فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ** نو [که ګوري] د ښځي په لاس کې هیڅ شی نه وي **فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا** نو [په دې صورت کې] په ښځي هیڅ شی واجب نه وي **لِأَنَّهَا لَمْ تَغُرَّهُ بِتَسْمِيَةِ الْمَالِ** ځکه چې [دلته] ښځي د مال په ټاکلو او ذکر کولو [سره خاوند] ته دوکه ورکړې نه ده. |

**اللغات:** ﴿خَالِعْنِي﴾ د مفاعلې له باب څخه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: خلع کول. ﴿لَمْ تَغُرَّهُ﴾ د نصر له باب څخه د جحد صیغه ده: غَرَّ يَغُرُّ غَرًّا و غِرَّةً: دوکه ورکول. ختا ایستل. بې ځایه اُمید ورکول.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که ښځه خپل خاوند ته داسي ووايي: زما په لاس کې چې کوم شی دی د هغه په عوض کې خلع را سره وکړه! (یعني د شي لفظ ذکر کړي او د مال لفظ ذکر نه کړي. یعني داسي نه ووايي چې زما په لاس کې چې کوم مال دی). نو په دې صورت کې خلع صحیح کېږي. لېکن پر ښځي هیڅ شی نه واجبېږي: دلیل دا دی چې دلته ښځي "مال" نه دی ذکر کړی. بلکي "شی" یې ذکر کړی دی. نو ښځه دوکه ورکونکې نه سوه (ځکه چې دوکه به هغه وخت وای. کله چې ښځي مال ذکر کړي وای). او د خلع په وخت کې بضع هم غیرِ متقوم. نو ځکه به پر ښځي هیڅ شی نه واجبېږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| **وَإِنْ قَالَتْ: خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي مِنْ مَالٍ** او که ښځه ووايي: زما په لاس کې چې کوم مال دی د هغه په عوض کې خلع را سره وکړه **فَخَالَعَهَا** او [خاوند] د هغې سره خلع وکړي **فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ** نو [که ګوري] د ښځي په لاس کې هیڅ شی نه وي **رَدَّتْ عَلَيْهِ مَهْرَهَا** نو [په دې صورت کې] به ښځه خاوند ته خپل مهر واپس کوي **لِأَنَّهَا لَمَّا سَمَّتْ مَالًا** ځکه کله چې ښځي مال ټاکلی دی [ذکر کړی دی] **لَمْ يَكُنِ الزَّوْجُ رَاضِيًا بِالزَّوَالِ إِلَّا بِعِوَضٍ** نو بېله عوضه [مفت] به خاوند [د خپل ملکیت] په |

زائلېدلو راضي نه وي وَلَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْمُسَمّٰى وَقِيمَتِهِ لِلْجَهَالَةِ او د ناڅرګند والي وجه [یعني د معدومیت په وجه] د ټاکلي مال او د هغه د قیمت واجبولو هېڅ صورت نسته وَلَا إِلَىٰ قِيمَةِ الْبُضْعِ أَعْنِيْ مَهْرَ الْمِثْلِ او نه د بضع د قیمیت یعني د مهرمثل [واجبولو] هېڅ صورت سته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ حَالَةَ الْخُرُوْجِ ځکه چې بضع [له ملکیت څخه] د وتلو په حالت کې متقوم نه وي فَتَعَيَّنَ إِيجَابُ مَا قَامَ بِهِ عَلَى الزَّوْجِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ نو له خاوند څخه د تاوان لیرې کولو لپاره د هغه مقدار واجبول متعین سو په کوم مقدار چې بضع خاوند ته ولاړه وي. [یعني هغه مهر کوم چې د نکاح په وخت کې ټاکل سوي وي (مهر مسمیٰ)].

**اللغات:** ﴿رَدَّتْ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: واپس کول. بیرته ورکول. ﴿عِوَض﴾ بدل. قیمت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه خپل خاوند ته داسې ووایي: زما په لاس کې چې کوم مال دی، د هغه په عوض کې خلع را سره وکړه. او خاوند د ښځې خبره ومني. خلع ور سره وکړي. لېکن د ښځې په لاس کې هېڅ شی نه وي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې ښځه به خاوند ته هغه مهر ورکوي کوم چې یې له خاوند څخه اخیستی وي: دلیل دا دی چې دلته ښځې مال ټاکلی دی (یعني مال یې ذکر کړی دی). او د مال په لالچ او دوکه یې خاوند خلع ته تیار کړی دی. نو خاوند به بېله عوضه (مفت) د خپل ملکیت (ملک نکاح) په ختمېدلو راضي نه وي. او مال مجهول دی. ځکه چې د ښځې په لاس کې هېڅ شی نسته. لهذا دلته پر ښځې نه دا ټاکل سوی مال واجبېدای سي. او نه د هغه قیمت. او د بضع قیمت یعني مهرِ مثل هم واجبېدای نه سي. ځکه چې بضع د خلع په وخت کې غیرِ متقوم وي. نو دلته فقط یو صورت پاته سوه چې هغه مهر به پر ښځې واجب وي کوم چې د نکاح په وخت کې ټاکل سوی وي. ځکه چې هغه معهود او معلوم دی. لهذا اوس به ښځه هغه مهر خاوند ته ورکوي. د دې لپاره چې د خاوند زړه مطمئن سي. او بېله عوضه د ملکیت ضایع کېدلو له ضرر څخه وساتل سي.

## د پورتنې مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ قَالَتْ: خَالِعْنِي عَلَىٰ مَا فِي يَدَيَّ مِنْ دَرَاهِمَ أَوْ مِنَ الدَّرَاهِمِ او که ښځه ووایي: زما په لاس کې چې کوم دراهم دي د هغه په عوض کې ته زما سره خلع وکړه! فَفَعَلَ نو [خاوند] خلع [ور سره] وکړي فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ لېکن که ګوري [د هغې په لاس کې هېڅ شی نه وي فَعَلَيْهَا ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ نو [په دې

صورت کې| به پر ښځې درې دراهم واجب وي لِأَنَّهَا سَمَّتِ الْجَمْعَ ځکه چې ښځې د جمع صيغه ذکر کړې ده وَأَقَلُّهُ ثَلَاثَةٌ او کمه اندازه د جمع درې ده وَكَلِمَةُ مِنْ هٰهُنَا لِلصِّلَةِ دُونَ التَّبْعِيضِ او د "مِنْ" کلمه دلته د بيان لپاره ده، نه د تبعيض لپاره لِأَنَّ الْكَلَامَ يَخْتَلُّ بِدُونِهِ ځکه چې کلام د "مِنْ" څخه بغير غلطيږي |يعنې خلل پکښې راځي|.

**اللغات:** ﴿سَمَّتْ﴾ د تفعيل ماضي ده: نومول، ټاکل، ذکر کول. ﴿تَبْعِيض﴾ د تفعيل مصدر دی: بعضيت ورښوول (بعض والی بيانول). ﴿صِلَة﴾ بيان (وضاحت). ﴿يَخْتَلُّ﴾ د افتعال مضارع ده: په يو شي کې خلل راتلل، خرابېدل (غلطېدل، فاسدېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه خاوند ته ووايي: خَالِعْنِيْ عَلٰى مَا فِيْ يَدِيْ مِنْ دَرَاهِمَ أَوْ مِنَ الدَّرَاهِمِ. او بيا خاوند د ښځې سره خلع وکړي، لېکن د هغې په لاس کې دراهم خو پرېږده يو پاولی هم نه وي، نو په دې صورت کې پر ښځې درې درهمه واجبيږي؛ دليل دا دی چې ښځې دراهم د جمع په صيغه سره ذکر کړي دي، او د جمع کم از کم شمېر درې وي، او أقل متعين هم وي، نو ځکه به پر ښځې درې درهمه واجبيږي.

**وکلمة من الخ:** فرمايي چې د ښځې په دې قول مِنْ دَرَاهِمِ يا مِنَ الدَّرَاهِمِ کې مِنْ د بيان او وضاحت لپاره دی. د بعضيت لپاره نه دی؛ دليل دا دی که دلته مِنْ حذف کړی سي او فقط خَالِعْنِيْ عَلٰى مَا فِيْ يَدِيْ دَرَاهِمِ وويل سي. نو دا کلام به مختل او مفضی إلی النزاع وګرځي، نو ثابت سوه چې دلته مِنْ د بيان لپاره دی، نه د تبعيض او بعضيت لپاره. لهذا جمع به پر خپل حال پاته وي، او د جمع أقل عدد درې دی، نو په دې وجه به پر ښځې درې درهمه واجبيږي.

## تښتېدلی غلام (عبد آبق) د خلع په عوض کې ټاکل

فَإِنِ اخْتَلَعَتْ عَلٰى عَبْدٍ لَهَا آبِقٍ عَلٰى أَنَّهَا بَرِيئَةٌ مِنْ ضَمَانِهِ او که ښځه د خپل تښتېدلي |ابکوړه| غلام په عوض کې پر دې شرط |د خاوند سره| خلع وکړي چې زه به د غلام د ضمان څخه بري يم لَمْ تَبْرَأْ نو ښځه نه بري کيږي وَعَلَيْهَا تَسْلِيمُ عَيْنِهِ إِنْ قَدَرَتْ او پر هغې بعينه د هغه غلام ورسپارل واجب دي که چيرې ښځه |د هغه پر ورسپارلو| قدرت لري وَتَسْلِيمُ قِيمَتِهِ إِنْ عَجَزَتْ |يا| د هغه غلام قيمت ورسپارل واجب دي که چيرې ښځه |د غلام د ورسپارلو څخه| عاجزه وي لِأَنَّهُ عَقْدُ الْمُعَاوَضَةِ ځکه چې خلع عقد

معاوضه دی فَيَقْتَضِي سَلَامَةَ الْعِوَضِ نو ځکه د عوض د سالم پاتېدلو تقاضا کوي وَاشْتِرَاطُ الْبَرَاءَةِ عَنْهُ شَرْطٌ فَاسِدٌ او له عوض څخه د برئ کېدلو شرط لګول فاسد شرط دی فَيَبْطُلُ نو ځکه دا شرط باطلیږي إِلَّا أَنَّ الْخُلْعَ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ لېکن خلع په فاسدو شرطونو سره نه فاسدیږي وَعَلَى هٰذَا النِّكَاحِ او پر همدغه نکاح [قیاس کړه!] وَإِذَا قَالَتْ: طَلِّقْنِي ثَلَاثًا بِأَلْفٍ او کله چې ښځه [خاوند ته] ووایي: چې ته ما ته د زرو [درهمو] په عوض کې درې طلاقه راکړه! فَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً لېکن [خاوند] هغې ته یو طلاق ورکړي فَعَلَيْهَا ثُلُثُ الْأَلْفِ نو پر ښځې به د زرو [درهمو] دریمه حصه واجب وي لِأَنَّهَا لَمَّا طَلَبَتِ الثَّلَاثَ بِأَلْفٍ ځکه کله چې هغې د زرو په عوض کې د دریو طلاقو مطالبه وکړه فَقَدْ طَلَبَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ بِثُلُثِ الْأَلْفِ نو [ګواکې] هغې د زرو د دریمې حصې په عوض کې د هر طلاق مطالبه وکړه وَهٰذَا لِأَنَّ حَرْفَ الْبَاءِ تَصْحَبُ الْأَعْوَاضَ او دا ځکه چې د "باء" حرف پر عوضونو داخلیږي وَالْعِوَضُ يَنْقَسِمُ عَلَى الْمُعَوَّضِ او عوض پر معوض تقسیمیږي وَالطَّلَاقُ بَائِنٌ لِوُجُوبِ الْمَالِ او طلاق به بائن [واجب وي] د مال واجبېدلو په وجه ایعني ځکه چې دلته پر ښځې د طلاق په بدله کې مال واجب دی].

**اللغات:** ﴿آبِق﴾ خپل د مالک څخه تښتېدلی غلام. بګوړه. ﴿ضَمَان﴾ ذمه واري. ضمانت. ﴿مُعَوَّض﴾ د تفعیل اسم مفعول دی: د کوم شي چې عوض ورکول کیږي (یعني هغه شی چې د هغه عوض او بدل اداء کیږي).

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که یوه ښځه خپل خاوند ته د خلع په وخت کې داسي ووایي چې زما کوم غلام چې تښتېدلی دی. ولاړ سه! هغه ونیسه! او زما له طرفه یې د خلع په عوض کې واخله. او که ته غلام نیولای نه سې. نو بیا زما پر ذمه هیڅ شی نسته. یعني له هغه څخه بغیر زه بل هیڅ شی د خلع په عوض کې نه درکوم. نو د دې صورت حکم دا دی چې که خاوند د ښځې دا خبره ومني او غلام ونیسي په خپله قبضه کې یې راولي. نو صحیح خبره ده. لېکن که خاوند غلام نه سي نیولای. نو بیا که ښځه د هغه غلام په ورکولو باندي قادره وي. نو پر ښځې خاص هغه غلام ورکول واجب دي. او که ښځه د هغه غلام په ورکولو باندي قدرت نه لري. نو په دې صورت کې پر ښځې د هغه غلام قیمت اداء کول واجب دي. او تر هغه وخته د ښځې ذمه نه بري کیږي (او غاړه یې نه خلاصیږي) تر څو چې غلام یا د هغه قیمت خاوند ته حواله نه کړي: دلیل دا دی چې خلع د معاوضې عقد دی. یعني له یو طرف څخه ښځه عوض ورکوي او له بل

طرف ښځه خاوند خپل ملکیت ښځي ته حواله کوي (او ښځه خپل له نکاح ښځه باسي)، او په عقد معاوضه کي د عوض سلامتي ضروري ده. حالانکي د براءت ذمه (د ذمې بري کېدلو) شرط لګول د عوض د سلامتی مخالف دي، او فاسد شرط دی. نو دا شرط به باطلیږي، او خلع به صحیح پاتیږي، ځکه چي د نکاح په څیر خلع هم په فاسد شرط سره نه فاسدیږي، بلکي په خپله هغه فاسد شرط باطلیږي. نو ځکه به دلته د براءت شرط فاسد وي او خلع به صحیح وي او د ښځي پر ذمه به د خلع عوض واجب وي، چي هغه غلام یا د غلام قیمت ورکول دي.

وعلی هذا النکاح إلخ: فرمايي چي بعينه همدا حکم د نکاح هم دی، يعني که يو سړی تښتېدلی غلام د يوې ښځي په مهر کي وټاکي او د برات شرط ولګوي، نو دلته هم دا شرط فاسديږي او نکاح صحيح کيږي چي د هغه نتيجه به دا وي چي د قدرت په صورت کي به خاوند خاص هغه غلام ښځي ته ورکوي، او که د غلام په ورکولو باندي قدرت نه لري، نو د غلام قيمت به ورکوي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يوه ښځه خپل خاوند ته ووايي: طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ، چي ته ما ته د زرو درهمو په عوض کي درې طلاقه راکړه او ما د خپل ملکيت څخه آزاده کړه، ليکن خاوند هغې ته د درېو پر ځای يو طلاق ورکړي، نو په دې صورت کي فقط هغه يو طلاق پر ښځي واقع کيږي، او خاوند ته به د زرو درهمو دريمه حصه (يعني ۳۳۳ درهمه) ورکول کيږي؛ دليل دا دی چي کله ښځي د زرو درهمو په عوض کي درې طلاقه طلب کړل، نو ګواکي هغې د زرو درهمو د هري دريمي حصې په عوض کي يو طلاق طلب کړی. لهذا د هر طلاق ورکولو په صورت کي به پر ښځي د زرو دريمه حصه واجبيږي، د دې وجه دا ده چي په طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ کي چي کومه "باء" ده، هغه پر عوض داخليږي، نو به أَلْف (زر درهمه) عوض وي او درې طلاقه به معوض وي، او قاعده دا ده چي عوض پر معوض تقسيميږي، لهذا زر درهم به پر درېو طلاقو تقسيميږي.

او دلته چي کوم طلاق واقع کيږي هغه به بائن طلاق وي؛ ځکه چي خاوند د مال په بدله کي طلاق ورکړی دی، او د مال په بدله کي په طلاق ورکولو سره طلاق بائن واقع کيږي.

## د "طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا عَلٰى أَلْفٍ" بيان

وَإِنْ قَالَتْ طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا عَلٰى أَلْفٍ او که ښځه ووايي: ما ته پر زرو [درهمو] درې طلاقه راکړه! فَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً او [خاوند] هغې ته يو طلاق ورکړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغې هيڅ شی واجب نه وي وَيَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او خاوند به د رجعت مالک وي وَقَالَا: هِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ بِثُلُثِ الْأَلْفِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه به د زرو [درهمو] د دريمي حصې

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۴، ص:۷۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۲۵]

په عوض کې یو طلاق بائن وي لِأَنَّ كَلِمَةَ عَلٰى بِمَنْزِلَةِ الْبَاءِ فِي الْمُعَاوَضَاتِ ځکه چې کلمه د "عَلٰى" په معاوضاتو کې د "باء" په مرتبه [او معنیٰ] سره وي حَتّٰى إِنَّ قَوْلَهُمْ: اِحْمِلْ هٰذَا الطَّعَامَ بِدِرْهَمٍ أَوْ عَلٰى دِرْهَمٍ سَوَاءٌ همدا وجه ده چې دا عربو دا قول: اِحْمَلْ هٰذَا الطَّعَامَ بِدِرْهَمٍ او [اِحْمَلْ هٰذَا الطَّعَامَ] عَلٰى دِرْهَمٍ دواړه سره برابر دی ایعني دواړه معنیٰ یوه ده چې: دا غنم په یوه درهم پورته کړه] وَلَهُ: أَنَّ كَلِمَةَ عَلٰى لِلشَّرْطِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې کلمه د "عَلٰى" د شرط لپاره ده قَالَ اللهُ تَعَالٰى يُبَايِعْنَكَ عَلٰى أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللهِ شَيْئًا [الممتحنة: ١٢] الله تعالیٰ فرمایلي دي: اکله چې ښځې مؤمناني ښځې تا ته راسي اې پیغمبره! او ستاسره پر دې شرط بیعت وکړي چې هغوی به هیڅوک د الله سره شریک نه نیسي ا...نو د هغوی سره بیعت وکړه!. په دې آیت کې "عَلٰى" د شرط په معنیٰ سره مستعمل دی ا وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهٖ: أَنْتِ طَالِقٌ عَلٰى أَنْ تَدْخُلِي الدَّارَ او کوم څوک چې خپلې ښځې ته [داسي] ووايي: ته طلاقه یې پر دې [شرط] که کور ته داخله سوې كَانَ شَرْطًا نو دا به شرط وي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لِلُّزُومِ حَقِيقَةً او دا ځکه چې د "عَلٰى" کلمه په حقیقت کې دلزوم لپاره ده وَاسْتُعِيرَ لِلشَّرْطِ او د شرط لپاره په استعاره اخیستل سوې ده لِأَنَّهُ يُلَازِمُ الْجَزَاءَ ځکه چې شرط جزاء لره لازم وي وَإِذْ كَانَ لِلشَّرْطِ نو کله چې کلمه د "عَلٰى" د شرط لپاره سوه فَالْمَشْرُوطُ لَا يَتَوَزَّعُ عَلٰى أَجْزَاءِ الشَّرْطِ نو مشروط د شرط پر اجزاؤ نه تقسیمیږي بِخِلَافِ الْبَاءِ لِأَنَّهُ لِلْعِوَضِ عَلٰى مَا مَرَّ په خلاف د "باء". ځکه چې "باء" د عوض لپاره ده لکه مخکې چې [دا خبره] تېره سوه وَإِذَا لَمْ يَجِبِ الْمَالُ كَانَ مُبْتَدَأً او کله چې مال واجب نه سو نو دا ابتداءً طلاق سو ایعني ګواکې لکه د شروع څخه چې یې طلاق ورکړی وي] فَوَقَعَ الطَّلَاقُ نو طلاق به واقع کیږي وَيَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او خاوند به د رجعت مالک وي.

**اللغات:** ﴿الطَّعَام﴾ "خوراک" ته وایي (یعني هغه شی کوم چې خوړل کیږي). لیکن کله چې دا لفظ مطلق ذکر سي. نو له دې څخه غله مراد وي، خصوصاً غنم. صاحب د مصباح یې داسي تعریف کړی دی: وَإِذَا أَطْلَقَ أَهْلُ الْحِجَازِ لَفْظَ الطَّعَامِ عَنَوْا بِهِ الْبُرَّ خَاصَّةً...(مصباح المنیر ج: ٢. ص: ٣٧٢. ط: بیروت). ﴿اُسْتُعِيرَ﴾ د استفعال له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي مجهولي صیغه ده: په استعاره (عاریت) اخیستل. مستعار اخیستل (په بدله کې اخیستل). ﴿لَا يَتَوَزَّعُ﴾ د تفعل له باب څخه د نفي صیغه ده: تقسیمېدل (حصه. حصه کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو ښځه د خپل خاوند څخه د طلاق مطالبه وکړي او داسي
وو ايي: طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا عَلٰى أَلْفٍ چي ما ته په زرو درهمو درې طلاقه راکړه (يعني پر عوض "عَلٰى" داخل
کړي. نه "باء"). او خاوند فقط هغې ته يو طلاق ورکړي. نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله
په نيز يو طلاق رجعي واقع کيږي. او خاوند لره به د رجعت اختيار وي او پر ښځي هيڅ شی نه
واجبيږي. د دې په خلاف د صاحبينو په نيز پر دې ښځي يو طلاق بائن واقع کيږي. او د ښځي پر ذمه
د زرو درهمو دريمه حصه (يعني ٣٣٣ درهمه) واجبيږي. او خاوند ته به د رجعت حق هم نه وي.
**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دلته ښځي د مال په بدله کي د طلاق مطالبه کړې ده. او د مال په بدله کي
چي کوم طلاق وي هغه طلاق بائن وي. همدارنګه د مال په بدله کي طلاق عقد معاوضه دی. او په
معاوضاتو کي چي کوم حکم د "باء" وي. هغه حکم د "عَلٰى" هم وي. لکه څرنګه چي عرب په اِحْمِلْ
هٰذَا الطَّعَامَ بِدِرْهَمٍ او عَلٰى دِرْهَمٍ کي هيڅ فرق نه کوي (او د دواړو معنیٰ يو ده چي "دا غنم د يوه درهم
په عوض کي پورته کړه"). نو دا دې خبري ښکاره دليل دی چي په معاوضاتو کي د "باء" او "عَلٰى"
په مينځ کي هيڅ فرق نشته. او کله چي په دوی کي فرق نشته. نو په حکم کي به يې هم فرق نه وي.
او په تېر عبارت کي ذکره سوه چي که خاوند د طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ په صورت کي ښځي ته يو طلاق
ورکړي نو پر ښځي د زرو درهمو د دريمي حصې په عوض کي طلاق بائن واقع کيږي. لهذا د عَلٰى
أَلْفٍ په صورت کي به هم پر ښځي د زرو د دريمي حصې په عوض کي يو طلاق بائن واقع کيږي.
**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د "عَلٰى" کلمه د شرط لپاره اسعماليږي. لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايي
:يُبَايِعْنَكَ عَلٰى أَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللهِ (چي دا ښځي به ستا سره پر دې شرط بيعت کوي چي هغوی به شرک نه
کوي). يا مثلاً که په عامه محاوه کي يو خاوند خپلي ښځي ته داسي وو ايي: أَنْتِ طَالِقٌ عَلٰى أَنْ تَدْخُلِي الدَّارَ.
نو په دې صورت کي هم د شرط معنیٰ مراديږي. او کور ته داخلېدل د طلاق لپاره شرط وي. ځکه چي په دې
کي د عَلٰى کلمه سته. او د عَلٰى کلمه که څه هم د لزوم لپاره وضع سوې ده. لېکن چيري د لزوم معنیٰ نه صحيح
کيږي، هلته به دا کلمه د شرط لپاره مَنل کيږي. ځکه څرنګه چي د لازم او ملزوم په مينځ کي مناسبت وي
همداسي د شرط او جزاء په مينځ کي هم لزوم او مناسبت وي. او مشروط د شرط پر اجزاؤ نه تقسيميږي (لکه
عوض چي د معوض پر اجزاؤ تقسيميږي). ځکه چي مشروط هغه وخت په وجود کي راځي کله چي شرط
موجود سي. او شرط د اجزاؤ بشپړتيا (تمام) ته وايي. نو د شرط د يوه جزء په موجودېدلو سره به د مشروط يو
جزء نه موجوديږي. لهذا کله چي دلته د مشروط يو جزء هم موجود سوی نه دی. نو خاوند به ښځي ته هغه
طلاق ورکړی نه وي د کوم طلاق مطالبه چي ښځي کړې وي. بلکي دا به د خاوند له طرفه ابتدائي طلاق وي

(یعني ګواکي خاوند د نوي سره ښځي ته طلاق ور کړی دی). اوخاوند په صریح لفظ سره طلاق ور کړی دی. نو ځکه د هغه ور کول سوی طلاق به طلاق رجعي وي.

او د دې په خلاف چي کومه د باء مسئله ده. نو هغه د علیٰ سره لاحق کول صحیح نه دي. ځکه چي د باء حرف د عوض لپاره راځي. او عوض پر معوض او د هغه پر اجزاؤ تقسیمیږي.

## د "طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ" بیان

وَلَوْقَالَ الزَّوْجُ: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ أَوْعَلٰى أَلْفٍ او که خاوند اخپلي ښځي ته اووایي: ته خپل ځان ته د زرو ادرهموا په عوض کي یا پر زرو ادرهمو. یعني د زرو درهمو پر شرطا دری طلاقه ورکړه فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا وَاحِدَةً او ښځه خپل ځان ته یو طلاق ور کړي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ شی نه واقع کیږي لِأَنَّ الزَّوْجَ مَا رَضِيَ بِالْبَيْنُوْنَةِ إِلَّا لِيُسَلَّمَ لَهُ الْأَلْفُ كُلُّهَا ځکه خاوند فقط په هغه صورت کي ادښځي ا پر بائنه کېدلو راضي کیږي کله چي زر ادراهم ا ټوله هغه ته وسپارل سي. بِخِلَافِ قَوْلِهَا: طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ په خلاف د ښځي د دې قول: طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ اما ته د زرو درهمو په عوض کي درې طلاقه راکړه؛ ا لِأَنَّهَا لَمَّا رَضِيَتْ بِالْبَيْنُوْنَةِ بِأَلْفٍ ځکه کله چي ښځه د زرو ادرهموا په عوض کي پر بائنه کېدلو راضي سوه كَانَتْ بِبَعْضِهَا أَرْضٰى نو د زرو ادرهموا په بعض به په درجه اولیٰ سره راضي وي.

**اللغات**: ﴿بَيْنُوْنَة﴾ د ضرب مصدر دی: بائنه کېدل. ښځه له خاوند څخه جلا کېدل (فرقت واقع کېدل).

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که یو سړی خپلي ښځي ته د طلاق واقع کولو حکم وکړي او ور ته ووایي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ یا عَلٰى أَلْف. او ښځه خپل ځان ته یو طلاق ورکړي. نو پر هغې هیڅ طلاق نه واقع کیږي: دلیل دا دی چي دلته خاوند د پوره زر درهمو په عوض کي د خپلي ښځي په بائنه کېدلو راضي سوی دی. نو د زرو درهمو په عوض کي د خپل ملکیت په زوال د خاوند راضي کېدل د دې خبري دلیل نه دی چي هغه تر زر درهمه د کمو درهمو په عوض کي هم د خپل ملکیت په زوال راضي دی. د دې په خلاف که ښځه خپل خاوند ته داسي ووایي: طَلِّقْنِيْ ثَلَاثًا بِأَلْفٍ. او خاوند هغې ته یو طلاق ور کړي. نو په دې صورت کي پر ښځي د زرو درهمو د دریمي حصې په عوض کي یو طلاق واقع کیږي: ځکه کله چي دا ښځه د زرو درهمو په عوض کي د خپل ځان پر بائنه کېدلو راضي ده. نو تر هغه د کمو درهمو په عوض کي به په درجه اولیٰ د خپل ځان پر بینونت راضي وي.

## د مال په عوض کې د طلاق ورکولو يو صورت

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ عَلٰى أَلْفٍ او که (خاوند) ووايي: ته پر زرو (درهمو) طلاقه يې فَقَبِلَتْ او ښځه (هغه) قبول کړي طُلِّقَتْ نو ښځه طلاقيږي وَعَلَيْهَا الْأَلْفُ او پر هغې به زر (درهمه) لازم وي وَهُوَ كَقَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْفٍ او دا (جمله) د خاوند د دې قول په څير ده: أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْف وَلَابُدَّ مِنَ الْقَبُوْلِ فِي الْوَجْهَيْنِ او په دواړو صورتونو کې قبول (قبلول) ضروري دي لِأَنَّ مَعْنٰى قَوْلِهِ بِأَلْفٍ: بِعِوَضِ أَلْفٍ يَجِبُ لِيْ عَلَيْكِ ځکه چې د خاوند د دې قول بِأَلْفٍ معنیٰ ده: بِعِوَضِ أَلْفٍ يَجِبُ لِيْ عَلَيْكِ (د زرو درهمو په عوض کې کوم چې زما پر تا واجب دي) وَمَعْنٰى قَوْلِهِ عَلٰى أَلْفٍ: عَلٰى شَرْطِ أَلْفٍ يَكُوْنُ لِيْ عَلَيْكِ او د هغه د دې قول عَلٰى أَلْفٍ معنیٰ ده: عَلٰى شَرْطِ أَلْفٍ يَكُوْنُ لِيْ عَلَيْكِ (د زرو درهمو پر شرط کوم چې ما پر تا باندې دي) وَالْعِوَضُ لَايَجِبُ بِدُوْنِ قَبُوْلِهِ او له قبلولو څخه بغير عوض نه واجبيږي وَالْمُعَلَّقُ بِالشَّرْطِ لَايَنْزِلُ قَبْلَ وُجُوْدِهِ او کوم شی چې پر شرط معلق وي هغه د شرط له وجود څخه مخکې نه واقع کيږي (يعني تر څو چې شرط موجود نه سي. تر هغه وخته د شرط حکم نه موجوديږي) وَالطَّلَاقُ بَائِنٌ او د طلاق به بائن وي لِمَاقُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړ.

**تشريح ؛ صورت د مسئلې:** دا دې چې أَنْتِ طَالِقٌ عَلٰى أَلْفٍ او أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْفٍ دواړه د ښځې پر قبول موقوف دي. که ښځې په مجلس کې طلاق او مال قبول کړ. نو طلاق بائن به واقع کيږي. د بِأَلْفٍ معنیٰ ده "د زرو درهمو په عوض کې ته طلاقه يې چې هغه به ته ما ته راکوې. او د عَلٰى أَلْفٍ معنیٰ ده "د زرو درهمو پر شرط..." . خلاصه دا چې په اول صورت (بِأَلْفٍ) کې زر درهمه عوض دي. او په دويم صورت (عَلٰى أَلْفٍ) کې زر درهمه شرط دی. او ښکاره خبره ده چې له قبول څخه بغير نه عوض واجبيږي. او نه د شرط له وجود څخه مخکې معلّق بِالشرط (مشروط) واقع کيږي. نو ځکه موږ وايو چې په دواړو صورتونو کې قبول (قبلول) شرط او ضروري دي. او کله چې ښځه طلاق قبول کړي. نو پر هغې به عوض لازميږي.

**والطلاق بائن إلخ:** فرمايي چې په دې دواړو صورتونو کې طلاق بائن واقع کيږي: ځکه چې دا د مال په بدله کې طلاق ورکول دي. او د مال په بدله کې په طلاق ورکولو سره طلاق بائن واقع کيږي (ځکه مخکې ذکر سوه چې د مال په بدله کې طلاق ورکول خلع ده. وَالْخُلْعُ تَطْلِيْقَةٌ بَائِنَةٌ. الحديث).

## د "أَنْتِ طَالِقٌ وَعَلَيْكِ أَلْفٌ..." بيان

وَلَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَعَلَيْكِ أَلْفٌ او كه [خاوند] خپلي ښځي ته ووايي: ته طلاقه يې او پر تا باندي زر [درهمه] دي فَقَبِلَتْ او ښځه [هغه] قبول كړي أَوْ قَالَ لِعَبْدِهِ: أَنْتَ حُرٌّ وَعَلَيْكَ أَلْفٌ يا [مالک] خپل غلام ته ووايي: ته آزاد يې او پر تا باندي زر [درهمه] دي فَقَبِلَ او غلام يې قبول كړي عَتَقَ الْعَبْدُ وَطُلِّقَتِ الْمَرْأَةُ نو غلام آزاديږي او ښځه طلاقيږي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر دوی دواړو هيڅ شی واجب نه دی وَكَذَا إِذَا لَمْ يَقْبَلَا او همدارنګه [په هغه صورت کي] کله چي دواړه قبول نه وکړي وَقَالَا: عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْأَلْفُ إِذَا قَبِلَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دوی کي به پر هر يوه زر [درهمه] واجب وي کله چي قبول وکړي وَإِذَا لَمْ يَقْبَلْ لَا يَقَعُ الطَّلَاقُ وَالْعَتَاقُ او کله چي دوی دواړه [قبول نه وكړي نو طلاق او آزادي به نه واقع كيږي لَهُمَا: أَنَّ هَذَا الْكَلَامَ يُسْتَعْمَلُ لِلْمُعَاوَضَةِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دا كلام د معاوضې لپاره استعماليږي فَإِنَّ قَوْلَهُمْ: اِحْمِلْ هَذَا الْمَتَاعَ وَلَكَ دِرْهَمٌ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِمْ: بِدِرْهَمٍ ځكه چي د عربو دا قول: اِحْمِلْ هَذَا الْمَتَاعَ وَلَكَ دِرْهَمٌ د [اِحْمِلْ هَذَا الْمَتَاعَ] بِدِرْهَمٍ په مرتبه [او معنیٰ] سره دی ايعني د دواړو معنیٰ يوه ده چي: دا سامان د يوه درهم په عوض کي پورته کړه!] وَلَهُ: أَنَّهُ جُمْلَةٌ تَامَّةٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي عَلَيْكَ أَلْفٌ پوره جمله ده فَلَا تَرْتَبِطُ بِمَا قَبْلَهُ إِلَّا بِدَلَالَةٍ نو له دليل څخه بغير به د خپل ماقبل سره نه مربوط كيږي [يعني له دلالة الحال څخه بغير به د خپل ماقبل سره نه متصل كيږي] إِذِ الْأَصْلُ فِيهَا الِاسْتِقْلَالُ ځكه چي اصل په جمله كي مستقل كېدل دي [يعني د جملې مستقل كېدل أصل دي] وَلَا دَلَالَةَ او [دلته د ربط] هيڅ دليل نسته لِأَنَّ الطَّلَاقَ وَالْعَتَاقَ يَنْفَكَّانِ عَنِ الْمَالِ ځكه چي طلاق او عتاق دواړه له مال څخه جلا كيږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ په خلاف د بيع او اجارې لِأَنَّهُمَا لَا يُوجَدَانِ دُونَهُ ځكه چي دا دواړه له مال څخه بغير نه موجوديږي.

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۴، ص:۷۳). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۷]

**اللغات:** ﴿مَتَاع﴾ سامان. ﴿تَامَّة﴾ پوره. بشپړ. مکمل. ﴿تَرْتَبِطُ﴾ دافتعال مضارع ده: ربط لرل. تعلق لرل. مربوط کېدل (متصل کېدل). اړوند کېدل. ﴿يَنْفَكَّان﴾ دانفعال مضارع ده: جلا کېدل. بېلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک خپلې ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَعَلَيْكِ أَلْفٌ (يعني ته طلاقه يې خو پر تا زر درهمه واجب دي چې هغه به ما ته راکوې). او ښځه هغه قبول کړي. يا يو مالک خپل غلام ته ووايي: أَنْتَ حُرٌّ وَعَلَيْكَ أَلْفٌ. او غلام هغه قبول کړي. نو په دې صورت کې ښځه طلاقيږي او غلام آزاديږي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه پر ښځې أَلف (زر درهمه) واجبيږي او نه پر غلام. لېکن د صاحبينو په نېز پر دواړو أَلف. أَلف واجبيږي.

دويمه مختلف فيه مسئله دا ده چې که ښځه او غلام د أَلف شرط قبول نه کړي. نو د صاحبينو په نېز نه طلاق واقع کيږي او نه عِتاق. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم طلاق واقع کيږي او هم آزادي ثابتيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د عَلَيْکَ أَلْفٌ جمله د معاوضې لپاره استعماليږي. او په معاوضاتو کې داسې الفاظ د "باء" په معنیٰ سره وي. لکه څرنګه چې "اِحْمَلْ هٰذَا الْمَتَاعَ وَلَكَ دِرْهَمٌ" د "اِحْمَلْ هٰذَا الْمَتَاعَ بِدِرْهم" په معنیٰ سره دی. او څرنګه چې خلع هم عقدِ معاوضه دی. نو ځکه به دلته وعَلَيْکَ د "باء" په معنیٰ سره وي. ګواکې خاوند خپلې ښځې ته داسې وويل: أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْف. او د أَنْتِ طَالِقٌ بِأَلْفٍ دويلو په صورت کې حکم دا دی چې که ښځه دلته مال قبول کړي. نو طلاق واقع کيږي او مال د هغې پر ذمه لازميږي. او که يې قبول نه کړي. نو طلاق نه واقع کيږي او د هغې پر ذمه مال نه لازميږي (همدا حکم د أَنْتِ حُرٌّ بِأَلْفٍ دی). لهذا دلته هم همدغه حکم دی.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې عَلَيْکَ أَلف جمله تامه (پوره جمله ده). ځکه چې پر مبتداء او خبرې مشتمله ده. او په جمله تامه کې مستقل کېدل اصل دی. نو د دغه استقلال په وجه هغه د يو څه دليل څخه بغير د ما قبل سره نه مربوط کيږي. او دلته د ماقبل سره د مربوط کېدلو هيڅ دليل نسته. ځکه چې طلاق او عتاق دواړه د مال څخه جلا کيږي. نو ځکه موږ وايو چې که ښځه يا غلام د مال ورکول قبول نه کړي. نو پر هغو هيڅ شی نه واجبيږي.

بخلاف البيع والإجارة: په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي. حاصل يې دا دی چې طلاق او عتاق پر بيع او اجاره قياسول صحيح نه دي. ځکه چې اجاره او بيع دواړه خالص عقد معاوضه دي چې له مال څخه بغير دوی نه موجوديږي. نو په دوی کي به د دلالة الحال په وجه لَكَ دِرْهَمٌ د بِدِرْهَمٍ په معنیٰ سره وي. لېکن طلاق او عتاق په عامه توګه له عوض څخه بغير وي. او د سخاوت او شرافت خاوندان د دې شيانو عوض نه اخلي. لهذا په طلاق او عتاق کي چې تر څو صراحتاً عوض ذکر نه کړی سي تر هغه وخته پر عوض هيڅ دليل قائمېدای نه سي. نو په دې وجه طلاق او عتاق پر بيع او اجاره قياسول صحيح نه دي.

## په "طَلَاق عَلَى الْمَال" کي د خيار شرط لګول

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنِّي بِالْخِيَارِ أَوْ عَلَى أَنَّكِ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ او که [خاوند] ووايي: ته پر زرو [درهمو] طلاقه يې په دې شرط چې ما ته يا تا ته به درې ورځې خيار [اختيار] وي فَقَبِلَتْ او ښځه يې قبول کړي فَالْخِيَارُ بَاطِلٌ إِذَا كَانَ لِلزَّوْجِ نو خيار به باطل وي کله چې هغه د خاوند لپاره وي وَهُوَ جَائِزٌ إِذَا كَانَ لِلْمَرْأَةِ او هغه [خيار] به جائز وي کله چې د ښځي لپاره وي فَإِنْ رَدَّتِ الْخِيَارَ فِي الثَّلَاثِ نو که ښځه په درې ورځو کي خيار ردّ کړي بَطَلَ نو [طلاق] به باطليږي وَإِنْ لَمْ تَرُدَّ او که ښځه [خيار] ردّ نه کړي طَلُقَتْ نو هغه به طلاقيږي وَلَزِمَهَا الْأَلْفُ او پر هغې به زر [درهمه] لازم وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ◆ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: الْخِيَارُ بَاطِلٌ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې خيار په دواړو صورتونو کي باطل دی وَالطَّلَاقُ وَاقِعٌ او طلاق واقع دی وَعَلَيْهَا أَلْفُ دِرْهَمٍ او پر ښځي زر درهمه واجب دي لِأَنَّ الْخِيَارَ لِلْفَسْخِ بَعْدَ الْانْعِقَادِ لَا لِلْمَنْعِ مِنَ الْانْعِقَادِ ځکه چې خيار [د خلع] تر منعقد کېدلو وروسته د فسخ کولو لپاره وي. [د خلع] له منعقد کېدلو څخه د منع کولو لپاره نه وي وَالتَّصَرُّفَانِ لَا يَحْتَمِلَانِ الْفَسْخَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او دواړه تصرفه له دواړو طرفونو څخه د فسخ احتمال نه لري لِأَنَّهُ فِي جَانِبِهِ يَمِينٌ وَمِنْ جَانِبِهَا شَرْطُهَا ځکه چې خلع د خاوند په طرف کي يمين ده او [خلع] د ښځي په طرف کي د يمين شرط ده وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْخُلْعَ فِي جَانِبِهَا بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ او د امام صاحب دليل دا دی چې خلع د ښځي په طرف کي د بيع په مرتبه او معنیٰ

◆ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية (ج:١، ص:٤٩٩). [القول الراجح ج:٢٨]

سره ده حَتّٰى يَصِحَّ رُجُوعُهَا وَلَا يَتَوَقَّفُ عَلٰى مَا وَرَاءِ الْمَجْلِسِ همدا وجه ده چي د ښځي رجوع کول صحيح دي او [خلع د ښځي په حق کي] پر ما وراء د مجلس [هم] نه موقوفه کيږي فَيَصِحُّ اشْتِرَاطُ الْخِيَارِ فِيهِ نو په دې کي به د خيار شرط لګول صحيح وي أَمَّا فِي جَانِبِهِ يَمِينٌ ليکن [خلع] د خاوند په طرف کي يمين ده حَتّٰى لَا يَصِحُّ رُجُوعُهُ وَيَتَوَقَّفُ عَلٰى مَا وَرَاءِ الْمَجْلِسِ همدا وجه ده چي [له خلع څخه] د خاوند رجوع کول صحيح نه دي او [خلع د هغه په حق کي] پر ما وراء د مجلس نه موقوفه کيږي وَلَا خِيَارَ فِي الْأَيْمَانِ او په قسمونو کي هيڅ اختيار نسته وَجَانِبُ الْعَبْدِ فِي الْعَتَاقِ مِثْلُ جَانِبِهَا فِي الطَّلَاقِ او په آزادېدلو کي د غلام طرف [او درجه] داسي ده لکه په طلاق کي د ښځي طرف [او درجه].

**اللغات**: ﴿رَدَّتْ﴾ د ضرب ماضي ده: ردول، واپس کول، انکار کول. ﴿لَا يَتَوَقَّفُ﴾ د تفعّل نفي صيغه ده: موقوف کېدل. ﴿أَيْمَان﴾ جمع د يَمِيْنٌ ده: قسمونه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د زرو درهمو په عوض کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي، ليکن د خپل ځان لپاره يا د ښځي لپاره د درې ورځو خيار شرط کړي، او ښځه دا د خيار شرط قبول کړي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي که خيار د خاوند لپاره وي، نو هغه باطليږي او پر ښځي طلاق واقع کيږي، او که خيار د ښځي لپاره وي، نو هغه باقي پاتيږي، لهذا که ښځه په دريو ورځو کي خيار رد کړي، نو طلاق به باطليږي، او که تر درې ورځو پوري خيار رد نه کړي، نو طلاق به واقع کيږي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دواړو صورتونو کي خيار باطليږي هغه که د خاوند لپاره وي او که د ښځي لپاره وي، او په دواړو صورتونو کي طلاق واقع کيږي، او پر ښځي زر درهمه واجبيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي خيار د دې لپاره وي چي د عقد تر انعقاد وروسته عقد فسخ کړی سي، او د دې لپاره نه چي د عقد انعقاد منع کړی سي، او دلته د خاوند إيجاب (طلاق ورکول) او د ښځي قبول د فسخ کېدلو احتمال نه لري، ځکه مخکي موږ وويل چي د مال په بدله کي طلاق ورکول خلع ده (يعني طَلَاق عَلَى المَال د خلع په معنیٰ سره دی)، او خلع د خاوند په طرف کي يمين (قسم) دی، او د ښځي په طرف کي د يمين شرط دی، او يمين فسخ نه قبلوي، لهذا د يمين شرط به هم فسخ نه قبلوي، نو ځکه به دلته عقد يعني طَلَاق عَلَى المَال (خلع) منعقد کيږي، او خيار به باطليږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د ښځي په طرف کي خلع د بيع په معنیٰ سره ده، ځکه چي څرنګه په بيع کي رجوع کول صحيح وي او بيع پر ما وراء د مجلس نه موقوف کيږي، همداسي په خلع کي

هم رجوع کول صحیح دي. او خلع هم د ښځي په حق کي پر ما وراء د مجلس نه موقوف کيږي (يعني که خلع د ښځي له طرفه وي. نو په هغه مجلس کي د خاوند لپاره جواب ورکول [ايجاب] ضروري دی. نه تر مجلس وروسته. لکه په بيع کي چي هم په مجلس کي دننه جواب ورکول ضروري دي. نه تر مجلس وروسته). او په بيع کي د خيار شرط لګول صحيح دي. نو په خلع کي به هم د خيار شرط لګول صحيح وي. لهذا که خيار د ښځي لپاره وي. نو جائز به وي.

لېکن که د خاوند لپاره خيار وي. نو صحيح نه دی: ځکه چي خلع د خاوند په طرف کي يمين دی. همدا وجه ده چي تر خلع کولو وروسته خاوند (له خلع څخه) رجوع نه سي کولای. همدارنګه د خاوند په حق کي خلع پر ما وراء د مجلس موقوف کيږي (يعني که خلع د خاوند له طرفه وي. او ښځي ته په بل مجلس کي د خلع خبر ورسيږي. نو ښځه په هغه مجلس کي هم خلع قبلولای سي). نو معلومه سوه چي خلع د خاوند په جانب کي يمين ده (ځکه چي په يمين کي هم رجوع صحيح نه ده او نه هغه پر مجلس منحصر کيږي). او يمين چي کله تر خوله ووځي. نو په هغه کي هيڅ خيار نه چليږي او نه هغه فسخ کيږي. نو ځکه به دلته د خاوند لپاره خيار جائز نه وي.

وجانب العبد إلخ: د دې حاصل دا دی چي په طَلَاق عَلَى الْمَال کي چي د خيار په هکله کومه درجه د ښځي ده. په عتاق کي هغه درجه د غلام ده. يعني که مالک د يو څه مال په عوض کي د خيار پر شرط خپل غلام آزاد کړي. نو که خيار د غلام لپاره وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خيار صحيح دی. او که خيار د مالک لپاره وي. نو خيار باطليږي. لېکن د صاحبينو په نېز په دواړو صورتونو کي خيار باطليږي. هغه که د مالک لپاره وي. او که د غلام لپاره وي. او غلام آزاديږي.

## د "طَلَاقَ عَلَى الْمَال" په قبلولو کي د خاوند او ښځي د اختلاف بيان

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: طَلَّقْتُكِ أَمْسِ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ فَلَمْ تَقْبَلِيْ او څوک چي خپلي ښځي ته [داسي] ووايي: ما د زرو [درهمو] په عوض کي پرون [تېره ورځ] تا ته طلاق درکړی او تا [هغه] قبول نه کړی فَقَالَتْ: قَبِلْتُ او ښځه ووايي: چي ما هغه قبول کړی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ نو قول به د خاوند معتبر وي وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ بِعْتُ مِنْكَ هَذَا الْعَبْدَ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ أَمْسِ فَلَمْ تَقْبَلْ او څوک چي بل سړي ته ووايي: ما د زرو [درهمو] په عوض کي پرون دا غلام پر تا خرڅ کړی او تا قبول نه کړی فَقَالَ: قَبِلْتُ او هغه [بل سړی] ووايي: چي ما قبول کړی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي نو قول به د مشتري [د دې بل سړي] معتبر وي وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ الطَّلَاقَ بِالْمَالِ يَمِيْنٌ مِنْ جَانِبِهِ او وجه د فرق دا ده: چي د مال په بدله کي طلاق

اور کول ا د خاوند له طرفه قسم دی فَالْإِقْرَارُ بِهِ لَا يَكُونُ إِقْرَارًا بِالشَّرْطِ نو د قسم اقرار کول به د شرط اقرار کول نه وي لِصِحَّتِهِ بِدُونِهِ ځکه چې قسم له شرط څخه بغير هم صحيح کيږي أَمَّا الْبَيْعُ فَلَا يَتِمُّ إِلَّا بِالْقَبُولِ پاته سوه بيع نو هغه له قبول [قبلولو] څخه بغير نه پوره کيږي وَالْإِقْرَارُ بِهِ إِقْرَارٌ بِمَا لَا يَتِمُّ إِلَّا بِهِ او د بيع اقرار کول د هغه شي اقرار کول دي چې له هغه څخه بغير بيع نه پوره کيږي فَإِنْكَارُهُ الْقَبُولَ رُجُوعٌ مِنْهُ نو ا د مشتري ا له قبول څخه د بائع انکار کول د بائع له طرفه رجوع کول دي.

**اللغات:** ﴿أَمْسِ﴾ پرون، تېره ورځ. ﴿لَمْ تَقْبَلِيْ﴾ د سمع له باب څخه د جحد صيغه ده: قبلول، قبول کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي، او دواړي يو له بل څخه جلا دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړی خپلې ښځې ته ووايي چې "ما د زرو درهمو په عوض کې پرون تا ته طلاق درکړی وو ليکن تا هغه قبول نه کړی"، او ښځه ووايي چې "ما قبول کړی"، نو په دې صورت کې به د خاوند قول (يعني د عدم قبول) معتبر وي، او د ښځې خبره به نه منل کيږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که مثلاً زيد خالد ته ووايي چې "وروره! ما پرون پر تا د زرو درهمو په عوض کې خپل غلام خرڅ کړی وو، ليکن تا قبول نه کړی"، او خالد په جواب کې ورته ووايي چې "ما خو هغه قبول کړی"، نو په دې صورت کې به د مُشتري (خالد) قول معتبر وي، او بيع به ثابتيږي.

صاحب د هدايه فرمايي چې په دې دواړو مسئلو کې فرق دا دی چې اوله مسئله د طَلَاق عَلَى الْمَال ده، او طَلَاق عَلَى الْمَال د خاوند په طرف کې قسم دی، او قسم په حالف (قسم اخيستونکي) سره پوره کيږي، لهذا د خاوند له طرفه د قسم په اقرار کولو سره (يعني د طلاق على المال په اقرار کولو سره) دا نه لازميږي چې د هغه اقرار دې د ښځې د قبول اقرار هم وي (يعني د خاوند په اقرار سره دا نه ثابتيږي چې د خاوند اقرار به د ښځې د قبلولو اقرار هم وي)، ځکه چې يمين له شرط يعني (د ښځې) له قبول څخه بغير هم صحيح کيږي، لهذا د خاوند دا قول فَلَمْ تَقْبَلِيْ (تا هغه قبول نه کړی) د خپل قول څخه رجوع کول نه سو (بلکې دا د هغه له طرفه سوال سو چې تا ولي قبول نه کړی)، لهذا اوس که ښځه پر خپل قول قَبِلْتُ ګواهي پېش کړي نو صحيح ده، کنې د خاوند قول به مَعَ الْيَمِيْن معتبر وي.

د دې په خلاف د بيع مسئله ده، نو په بيع کې قبول (قبلول) رکن دی، او له قبول څخه بغير بيع نه پوره کيږي، لهذا د بيع اقرار کول د يو داسې شي اقرار کول دي چې هغه له قبول څخه بغير نه پوره کيږي، اوس که بائع د مشتري له قبول څخه انکار کوي، نو ګواکې هغه د خپل بيع څخه رجوع کول غواړي، نو ځکه به د مشتري اقرار د بائع پر انکار غالبه کيږي او بيع به ثابتيږي.

## د "مُبارات" بيان

قَالَ: وَالْمُبَارَأَةُ كَالْخُلْعِ فرمايي: او يو تر بله د خاوند او ښځي بري کول د خلع په څير دي كِلَاهُمَا يُسْقِطَانِ كُلَّ حَقٍّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الزَّوْجَيْنِ عَلَى الآخَرِ مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِالنِّكَاحِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [خلع او مبارات] دواړه هر هغه د نکاح سره متعلق حق ساقطوي کوم چي په خاوند او ښځه کي د هر يوه پر هغه بل وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: لَا يَسْقُطُ فِيهِمَا إِلَّا مَا سَمَّيَاهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په خلع او مبارات کي [فقط] هغه حقوق ساقطيږي کوم چي ښځي او خاوند ذکر کړي وي وَأَبُو يُوسُفَ مَعَهُ فِي الْخُلْعِ وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي الْمُبَارَأَةِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلع کي د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی او په مبارات کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ هَذِهِ مُعَاوَضَةٌ د امام محمد دليل دا دی: چي مبارات [او خلع] معاوضه ده ايعني دواړه د معاوضې عقدونه دي‌ا وَفِي الْمُعَاوَضَاتِ يُعْتَبَرُ الْمَشْرُوطُ لَا غَيْرُهُ او په معاوضاتو کي [فقط] د مشروط اعتبار کيږي، نه د بل شي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْمُبَارَأَةَ مُفَاعَلَةٌ مِنَ الْبَرَاءَةِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مبارات له برائت څخه د مفاعلې [د باب] صيغه ده فَتَقْتَضِيهَا مِنَ الْجَانِبَيْنِ نو له دواړو طرفونو څخه د برائت تقاضا کوي وَأَنَّهُ مُطْلَقٌ او برائت [بري کېدل] مطلق دي قَيَّدْنَاهُ بِحُقُوقِ النِّكَاحِ لِدَلَالَةِ الْغَرَضِ نو [ځکه] موږ د غرض د دلالت پر بنياد د نکاح په حقوقو سره هغه مقيد کړی أَمَّا الْخُلْعُ فَمُقْتَضَاهُ الِانْخِلَاعُ او پاته سوه خلع نو د هغې مقتضا جدايي [جلا کېدل] دي وَقَدْ حَصَلَ فِي نَقْضِ النِّكَاحِ او دا [جدايي] د نکاح په ماتېدلو [ختمېدلو] سره حاصل سوه وَلَا ضَرُورَةَ إِلَى انْقِطَاعِ الْأَحْكَامِ نو [ځکه] د نورو احکامو منقطع کولو ته ضرورت نسته وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْخُلْعَ يُنْبِئُ عَنِ الْفَصْلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي خلع د جلا کولو ابيلولو [خبر ورکوي وَمِنْهُ خَلْعُ النَّعْلِ وَخَلْعُ الْعَمَلِ او له همدغه [معنیٰ] څخه خَلْعُ النَّعْلِ [د څپلی کاږل] او خَلْعُ الْعَمَلِ [د کار پرېښوول] دي [ځکه چي د دې دواړو معنیٰ ده: څپلی له پښې څخه جلا کول. او له کار څخه ځان جلا کول] وَهُوَ مُطْلَقٌ كَالْمُبَارَأَةِ نو د مبارات په څير خلع [هم] مطلق ده فَيُعْمَلُ بِإِطْلَاقِهِمَا فِي النِّكَاحِ وَأَحْكَامِهِ وَحُقُوقِهِ نو په نکاح کي او د نکاح په احکامو او حقوقو کي به د خلع او مبارات پر اطلاق عمل کيږي.

---

۞ القول الراجح: فقول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۱۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۲۹]

**اللغات:** ﴿مُبَارَاة﴾ د مفاعلې مصدر دی: یو تر بله سره بري کول (یعني چې خاوند خپله ښځه د حقوقو څخه بري [او معافه] کړي او ښځه خپل خاوند د حقوقو څخه بري کړي). ﴿سَمَّیَاه﴾ د تفعیل له باب څخه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: نومول، تاکل، ذکر کول (بیانول). ﴿اِنْخِلَاع﴾ د انفعال مصدر دی: جلا کېدل، علیحده کېدل. ﴿نَعْل﴾ څپلۍ (له څرمني یا داسي بل شي څخه جوړ د پښو کولو شی). ﴿خَلْع﴾ د فتح مصدر دی: جلا کول، کښل (کاږل)، پرېښوول، معزوله کول (په دې ټولو معناوو کي د "جلا کولو" مفهوم سته).

**تشریح:** صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي دا بیانوي چې مُبارات (یعني د ښځي او خاوند یو تر بله بري کول) د خلع په څېر دي، یعني له مبارات او خلع څخه هر یو داسي دی چې خاوند او ښځه د هر هغه حق څخه بري کوي کوم چې د نکاح سره تعلق لري (یعني په دې دواړو کي هر یو خاوند او ښځه د نکاح د ټولو حقوقو څخه بري کوي)، مثلاً مهر، او د تیرو ورځو نفقه. خو په خلع او مبارات کي د عدت نفقه او سکنیٰ نه ساقطیږي، لېکن که ښځه د عدت د نفقې په عوض کي د خاوند سره خلع وکړي، نو بیا نفقه ساقطیږي، سکنیٰ نه ساقطیږي، ځکه چې سکنیٰ د شریعت حق دی، او د شریعت حق د هیچا په ساقطولو سره نه ساقطیږي، دا ټوله تفصیل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې په خلع او مبارات سره فقط هغه حقوق ساقطیږي کوم چې خاوند او ښځه ذکر کړي، او کوم حقوق چې ذکرنه کړي، هغه نه ساقطیږي. او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په خلع او مبارات کي فرق کوي، د خلع په صورت کي هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی (چې په خلع کي فقط د خاوند او ښځي ذکر سوي حقوق ساقطیږي)، لېکن د مبارات په صورت کي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی (چې علی الإطلاق ټوله حقوق ساقطیږي).

**د امام محمد دلیل:** دا دی چې په خلع او مبارات کي د عوض او معاوضې معامله ده، نو دا دواړه عقد معاوضه دي، او په معاوضاتو کي فقط د مشروط اعتبار کیږي (یعني فقط د هغه شي اعتبار کیږي کوم چې بیان او ذکر سي)، لهذا په دې دواړو کي به فقط هغه شیان ساقطیږي کوم چې خاوند او ښځه ذکر کړي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چې مباراة د مفاعلې د باب مصدر دی، او د مفاعلي د باب خاصه اشتراک ده، لهذا مبارات له دواړو طرفونو څخه د بري کېدلو تقاضا کوي (یعني چې په خاوند او ښځه کي هر یو د بل څخه بري سي).

او د برائت لفظ مطلق دی. ټولو حقوقو لره شامل دی. هغه که د نکاح سره تعلق لري. او که یې نه لري. لېکن مونږ دا د نکاح د حقوقو سره مقید کړی دی. او دلیل د هغوی (حقوقو) غرض دی. یعني غرض د هغي جګړې او جنګ ختمول دي کوم چي د نکاح (د حقوقو) په وجه سره پیدا سوې وي. نو ځکه به براءت په هغه حقوقو سره مقید کیږي کوم چي په نکاح سره ثابت سوي وي. او پاته سوه خلع نو د هغې مقتضیٰ اِنۡخِلَاع یعني "جلا کېدل" دي. او دا معنیٰ د نکاح په ماتېدلو او ختمېدلو سره حاصلیږي. نو په خلع سره به نکاح ختمیږي او خاوند او ښځه چي د کومو حقوقو د سقوط تذکره کړې وي. فقط هغه به ساقطیږي. او علی الإطلاق د نکاح ټوله حقوق به نه ساقطیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي خلع د جلا کولو او بېلولو په معنیٰ سره ده. لکه څرنګه چي د خَلۡعُ النَّعۡل معنیٰ ده "په پوره توګه څپلی له پښې څخه جلا کول (کاږل)". همدارنګه د خَلۡعُ الۡعَمَل معنیٰ ده "په پوره توګه له کار څخه ځان جلا کول (پرېښوول)". لهذا کله چي خلع د پوره او کامل جلا کولو په معنیٰ سره ده. او مبارات هم د کامل جلا کولو په معنیٰ سره دی. نو څرنګه چي مبارات مطلق دی. همداسي به خلع هم مطلق وي. او د مبارات په څیر به په خلع سره هم علی الإطلاق د نکاح ټوله حقوق ساقطیږي. هغه که خاوند او ښځي ذکر کړي وي. او که نه وي.

## د کوچنۍ لور لپاره د هغې په مال سره خلع کول

| وَمَنۡ خَلَعَ اِبۡنَتَهٗ وَهِيَ صَغِيۡرَةٌ بِمَالِهَا او کوم څوک چي د خپلي کوچنۍ لور خلع وکړي د هغې په مال سره لَمۡ يَجُزۡ عَلَيۡهَا نو دا [خلع] پر هغې جائز نه ده لِأَنَّهٗ لَا نَظَرَ لَهَا فِيۡهِ ځکه چي په دې کي د هغې لپاره هیڅ شفقت نسته إِذِ الۡبُضۡعُ فِيۡ حَالَةِ الۡخُرُوۡجِ غَيۡرُ مُتَقَوَّمٍ ځکه چي بضع اله ملکیت څخه ا د وتلو په وخت کي متقوم نه وي وَالۡبَدَلُ مُتَقَوَّمٌ او بدل [د خلع] متقوم وي بِخِلَافِ النِّكَاحِ لِأَنَّ الۡبُضۡعَ مُتَقَوَّمٌ عِنۡدَ الدُّخُوۡلِ په خلاف د نکاح. ځکه چي بضع املکیت ته ا د داخلېدلو په وخت کي متقوم وي وَلِهٰذَا يُعۡتَبَرُ خَلۡعُ الۡمَرِيۡضَةِ مِنَ الثُّلُثِ او له همدې وجهي د مریضي ښځي خلع [د هغې د مال] له دریمي حصې څخه معتبره ده [یعني که په مرضُ الموت مبتلا ښځه د مرض په حالت کي خلع کول وغواړي. نو د بضع قیمت نه سي ورکولای. بلکي فقط د خپل مال په دریمه حصه سره خلع کولای سي. نو معلومه سوه چي بضع د خروج په حالت کي متقوم نه وي] وَنِكَاحُ الۡمَرِيۡضِ بِمَهۡرِ الۡمِثۡلِ مِنۡ جَمِيۡعِ الۡمَالِ او د مریض سړي نکاح د ټوله مال پر مهر مثل معتبره ده [یعني که په مرضُ الموت مبتلا سړی په مهرِ مثل سره نکاح وکړي. او په هغه کي ټوله مال مصرف سي. نو هم د هغه نکاح جائزه. ځکه چي هغه د بضع په بدله کي مال ورکوي. نو |
|---|

معلومه سوه چې بضع د دخول په حالت کې متقوم وي] وَإِذَا لَمْ يَجُزْ لَا يَسْقُطُ الْمَهْرُ وَلَا يَسْتَحِقُّ مَالَهَا او کله چې [د پلار] خلع جائز نه سوه نو مهر به نه ساقطیږي او خاوند به د نجلۍ د مال نه مستحق کیږي ثُمَّ يَقَعُ الطَّلَاقُ فِي رِوَايَةٍ وَفِي رِوَايَةٍ لَا يَقَعُ بیا په یوه روایت کې طلاق واقع کیږي او په روایت کې طلاق نه کیږي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ [لیکن] اول روایت زیات صحیح ده لِأَنَّهُ تَعْلِيقٌ بِشَرْطِ قَبُولِهِ ځکه چې [د خاوند] طلاق ورکول د پلار د قبول پر شرط معلق دي فَيُعْتَبَرُ بِالتَّعْلِيقِ بِسَائِرِ الشُّرُوطِ لهذا په نورو شرطونو سره پر معلق کولو باندې به دا قیاسیږي.

**اللغات:** ﴿نَظَر﴾ شفقت، قُربت، مصلحت. ﴿بضع﴾ د ښځې فرج (شرمګاه).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که پلار د خپلې کوچنۍ لور نکاح د یو چا سره وکړي. بیا تر هغه وروسته پلار د هغې په مال سره خلع وکړي، نو شرعاً دا خلع معتبره نه ده: دلیل دا دی چې پلار د دې کوچنۍ نجلۍ ولي دی. او د هغه ولایت پر شفقت او اُلفت باندې مبني دي. لهذا چیرې چې د ولي له طرفه شفقت نه وي، هلته به د هغه تصرف نه نافذیږي. او دلته د کوچنۍ لور په مال سره په خلع کولو کې هیڅ شفقت نسته (ځکه چې په دې کې بې ځایه د کوچنۍ نجلۍ مال مصرفیږي). نو ځکه به دا خلع صحیح نه وي. ځکه چې د ښځې بضع د خروج په حالت کې غیر متقوم وي (یعنې کله چې ښځه د یو چا له نکاح څخه د طلاق یا د خلع په ذریعه وځي، نو په هغه حالت کې د ښځې بضع قیمت نه لري. لکه مخکې چې دا خبره په تفصیل سره ذکر سوه). حالانکې د خلع بدل او عوض متقوم دی. او ښکاره خبره ده چې د غیر متقوم مال په مقابله کې متقوم مال مصرفول (خرچول) حماقت او ناپوهي ده. نو ځکه به دلته د کوچنۍ نجلۍ خلع نه نافذیږي.

**بخلاف النکاح إلخ:** د دې په خلاف که پلار د خپلې کوچنۍ لور نکاح د مهر مثل په عوض کې د یو چا سره وکړي، نو دا نکاح به صحیح وي، ځکه چې په دې کې دوې خبرې سته: ① یوه خبره د بضع دخول دی (یعنې د أجنبي سړي په ملکیت کې د نجلۍ بضع داخلېدل، او د هغه په نکاح کېدل). او د دخول په حالت کې بضع متقوم وي. لهذا دلته د مال په عوض کې د مال تبادله راغله. او په دې کې د ولي له طرف څخه بشپړ شفقت سته. ② دویم خبره دا ده چې دا نکاح د مهر مثل په عوض سوې ده. نو په دې کې خو نور هم شفقت او رحمت موجود سو. همدا فرق په خلع او نکاح کې دی. یعنې د صغیرې (کوچنۍ نجلۍ) خلع باطل ده او نکاح یې جائز ده.

لنډه دا چې کله د کوچنۍ نجلۍ خلع باطل ده. نو نه به مهر ساقطیږي. او نه به خاوند ته د دې نجلۍ له مال څخه یو شی ورکول کیږي.

**ثم یقع الطلاق إلخ**: فرمايي چي خلع خو صحيح او جائز نه ده. لېکن که په دې صورت کې خاوند کوچنۍ نجلۍ ته طلاق ورکړي او پلار هغه قبول کړي. نو آيا طلاق به واقع کېږي، که نه؟ په دې سلسله کي دوه روايتونه دي: ① طلاق به واقع کېږي. ② نه به واقع کېږي. لېکن صحيح روايت دا دی چي طلاق به واقع کېږي، د دې روايت دليل دا دی چي دلته د پلار د قبلولو پر شرط طلاق معلق سوی دی. او پلار هغه قبول کړی دی. نو ځکه به طلاق واقع کېږي. لکه څرنګه چي کله نور شيان د پلار د قبول پر شرط يا د يو بل چا د قبول پر شرط معلق کړی سي. نو د هغه په قبلولو سره دا شيان لازمېږي. لهذا همداسي به دلته هم د پلار په قبلولو سره طلاق واقع کېږي.

او د اول روايت دليل دا دی چي پلار پر دې شرط طلاق قبول کړی وو چي پر نجلۍ مال لازم سي او له خاوند څخه مهر ساقط سي. او دلته نه پر نجلۍ مال لازم سو. او نه له خاوند څخه مهر ساقط سو. لهذا د شرط د نشتوالي په وجه د پلار قبلول صحيح نه سو. نو ځکه به طلاق هم نه واقع کېږي.

## د خلع په عوض کي د لور له طرفه د پلار ضامن کېدل

| |
|---|
| **وَإِنْ خَالَعَهَا عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنَّهُ ضَامِنٌ** او که پلار د زرو [درهمو] په عوض کي د خپلي [کوچنۍ] لور خلع وکړي پر دې شرط چي پلار به [د هغه زرو درهمو] ضامن وي **فَالْخُلْعُ وَاقِعٌ وَالْأَلْفُ عَلَى الْأَبِ** نو خلع واقع کېږي او زر [درهمه] به پر پلار لازم وي **لِأَنَّ اشْتِرَاطَ بَدَلِ الْخُلْعِ عَلَى الْأَجْنَبِيِّ صَحِيحٌ فَعَلَى الْأَبِ أَوْلَى** ځکه چي پر يو پردي سړي [هم] د خلع د بدل [عوض] شرط لګول صحيح دي نو پر پلار [خو] به په درجه اولیٰ صحيح وي [په تېره مسئله کي خلع ځکه نه صحيح کېده چي هلته د پلار له طرفه شفقت نه وو او بې ځايه د نجلۍ مال مصرفېدی. لېکن دلته د خلع بدل پر پلار لازمېږي، لهذا دلته نقصان نسته. نو ځکه به خلع صحيح وي، ځکه چي د خلع بدل پر يو أجنبي سړي لازمول هم صحيح دي، حالانکي د أجنبي سړي د دې نجلۍ سره هيڅ شفقت او قربت نسته. نو پر پلار خو به په طريقه اولیٰ د خلع بدل لازمول صحيح وي] **وَلَا يَسْقُطُ مَهْرُهَا** او د هغې مهر به نه ساقطېږي [يعني د بالغي ښځي مهر خو په خلع سره ساقطېږي. لېکن دلته د دې کوچنۍ نجلۍ مهر نه ساقطېږي] **لِأَنَّهُ لَمْ يَدْخُلْ تَحْتَ وِلَايَةِ الْأَبِ** ځکه مهر د پلار په ولايت کي داخل نه دی [ځکه چي د پلار په ولايت کي هغه شی داخل وي په کوم شي کي چي شفقت وي. يعني کوم شی چي د دې کوچنۍ د فايدې لپاره وي. او د خلع په وخت کي مهر ساقطول د نجلۍ په حق کي نقصان دی. او د شفقت خلاف دی. نو ځکه به د پلار په خلع کولو سره د کوچنۍ نجلۍ مهر نه ساقطېږي]. |

**اللغات**: ﴿ضَامِنٌ﴾ د ضرب اسم فاعل دی: ذمه وار (ذمه دار).

**تشريح**: مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## د کوچنۍ نجلۍ سره خلع کول

وَإِنْ شَرَطَ الْأَلْفَ عَلَيْهَا او که [خاوند] پر کوچنۍ نجلۍ د زرو [درهمو] شرط ولګوي تَوَقَّفَ عَلَى قَبُولِهَا نو د خلع وقوع به د ښځي پر قبوله موقوفه وي إِنْ كَانَتْ مِنْ أَهْلِ الْقَبُولِ [په دې شرط] که چیري ښځه د قبول کولو أهل وي فَإِنْ قَبِلَتْ نو که ښځه قبول وکړي وَقَعَ الطَّلَاقُ لِوُجُودِ الشَّرْطِ نو د شرط موجودېدلو په وجه به طلاق واقع کیږي وَلَا يَجِبُ الْمَالُ او مال به نه واجبیږي لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الْغَرَامَةِ ځکه چي صَغِیْرَه د تاوان له أهل څخه نه ده فَإِنْ قَبِلَهُ الأَبُ عَنْهَا او که د هغې له طرف څخه پلار [د خلع بدل] قبول کړي فَفِيْهِ رِوَايَتَانِ نو په دې هکله دوه روایتونه دي.

**اللغات:** ﴿غَرَامَة﴾ تاوان (نقصان)، جرمانه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که دیو چا په نکاح کي یوه کوچنۍ نجلۍ وي، او هغه د دې نجلۍ سره د زرو درهمو په عوض کي خلع وکړي، او زر درهمه پر نجلۍ لازم کړي (چي دا به ته ما ته راکوې)، نو په دې صورت کي به د خلع وقوع پر دوو شیانو موقوفه وي: ① د نجلۍ پر قبول (قبلولو)، ② او په نجلۍ کي به د قبلولو أهلیت وي، یعني هغې ته به معلومه وي چي خلع طلاق دی او په خلع کي خاوند ته مال ورکول کیږي.

که دا دواړه شیان موجود وي، نو طلاق به واقع کیږي، لېکن پر نجلۍ به مال نه لازمیږي: ځکه پر کوچنۍ نجلۍ (صَغِیْرَه) باندي نقصان او تاوان واجبېدای نه سي، ځکه چي هغه د دې أهل نه ده. لهذا دا خلع به د مال د لزوم څخه بغیر واقع کیږي.

**فإن قبله إلخ:** فرمايي چي که د کوچنۍ نجلۍ د مال ذمه واري پلار قبوله کړي، نو د دې د صحت په هکله روایتونه دي: ① د یوه روایت مطابق دا قبلول صحیح دي، ② او د بل روایت مطابق صحیح نه دي. لېکن صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چي اول روایت زیات صحیح دی. ځکه چي په دې کي د نجلۍ نفع ده چي بغیر له څه مصرفه هغه له خاوند څخه خلاصون تر لاسه کوي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَكَذَا إِنْ خَالَعَهَا عَلَى مَهْرِهَا او همدارنګه که خاوند د [کوچنۍ] نجلۍ سره د هغې پر مهر خلع وکړي وَلَمْ يَضْمَنِ الْأَبُ الْمَهْرَ او پلار د مهر ضامن نه سي تَوَقَّفَ عَلَى قَبُولِهَا نو دا [خلع] به د نجلۍ پر قبول موقوفه وي فَإِنْ قَبِلَتْ که هغې قبول وکړی طُلِّقَتْ وَلَا يَسْقُطُ الْمَهْرُ نو طلاقیږي به او مهر به نه

ساقطیږي وَإِنْ قَبِلَ الْأَبُ عَنْهَا او که پلار د هغې له طرفه (د خلع بدل) قبول کړي فَعَلَى الرِّوَايَتَيْنِ نو (دا صورت) پر دوو روایتونو دی.

**تشریح:** دا مسئله هم د مخکنی مسئلې په څیر ده. فرق صرف دا دی چې دلته د خلع بدل د کوچنی نجلی مهر دی. نو په دې صورت کې به هم د خلع وقوع د نجلی پر قبلولو موقوفه وي. که نجلی هغه قبول کړي. نو د مهر له سقوط څخه بغیر به خلع واقع کیږي او نجلی به طلاقیږي.

او که د نجلی له طرفه د هغې پلار د مهر ذمه واري قبوله کړي. نو بیا په دې صورت کې هم هغه مخکني دوه روایتونه دي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ ضَمِنَ الْأَبُ الْمَهْرَ او که پلار د مهر ضامن سي وَهُوَ أَلْفُ دِرْهَمٍ او مهر زر درهمه وي طُلِّقَتْ نو هغه (صغیره) طلاقیږي لِوُجُودِ قَبُولِهِ ځکه چې (دلته) د پلار قبول موجود سو وَهُوَ الشَّرْطُ او هم هغه شرط وو وَيَلْزَمُهُ خَمْسُمِائَةٍ اسْتِحْسَانًا او پر پلار به استحساناً پنځه سوه درهم لازم وي وَفِي الْقِيَاسِ يَلْزَمُهُ الْأَلْفُ (لیکن) قیاساً به پر هغه زر درهمه لازم وي وَأَصْلُهُ فِي الْكَبِيرَةِ إِذَا اخْتَلَعَتْ قَبْلَ الدُّخُولِ عَلَى أَلْفٍ او د دې (حکم) أصل د بالغي ښځي په حق کې دی کله چې هغه تر دخول مخکې د زرو درهمو په عوض کې خلع وکړي. وَمَهْرُهَا أَلْفٌ او د هغې مهر (هم) زر درهمه وي فَفِي الْقِيَاسِ عَلَيْهَا خَمْسُمِائَةٍ زَائِدَةٌ نو په قیاس کې به پر هغې پنځه سوه درهم نور لازم وي ایعني ټوله به زر درهمه پر لازم وي) وَفِي الِاسْتِحْسَانِ لَا شَيْءَ عَلَيْهَا او په استحسان کې به پر هغې هیڅ شی لازم نه وي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ عَادَةً حَاصِلُ مَا يَلْزَمُ لَهَا ځکه په (داسې) خلع سره عموماً د هغه شي حاصلول مرادیږي کوم چې د ښځې لپاره لازم (سوی) وي. ایعني د داسې خلع مطلب دا وي چې پر خاوند چې د ښځې کوم شی لازم سوی وي هغه خاوند ته حاصل سي، او دلته د خاوند په خلع کولو سره ټوله مهر هغه ته حاصل سوی دی. لهذا پر ښځې نور څه لازمېدل پکار نه دي)

**اللغات:** ﴿ضَمِنَ﴾ د سمع له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي صیغه ده: ضامن کېدل. ضمانت اخیستل (ذمه واري اخیستل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د کوچنی نجلی سره د هغې پر مهر خلع وکړي. او د هغې مهر زر درهمه ټاکل سوی وي (او تر اوسه خاوند هغه اداء کړی نه وي) او د نجلی پلار د هغې له طرفه د دې زرو درهمو ضمانت واخلي. نو په دې صورت کې چې کله هم پلار ضامن وګرځي. نو

سمدستي پر هغې خلع او طلاق واقع کيږي : دليل دا دی چي کله پلار د هغې ضامن سي. نو ګواکي د پلار له طرفه قبول موجود سو. او همدا قبول کول د خلع د وقوع لپاره شرط دي. نو ځکه به د قبول په موجودېدلو سره سمدستي نجلۍ مُخْتَلِعة او مطلقه ګرځي.

پاته سوه دا مسئله چي پر پلار به څومره دراهم لازم وي؟ نو په دې سلسله کي د قياس او استحسان جلا جلا تقاضا ده. د استحسان تقاضا دا ده چي د پلار پر ذمه فقط پنځه سوه (٥٠٠) دراهم لازميږي. ځکه چي کوچنۍ نجلۍ به غير مدخول بها وي (يعني خاوند به تر اوسه دخول په کړی نه وي). او د خلع بدل د هغې د مهر په اندازه ټاکل سوی دی. بلکي بعينه د هغې مهر ټاکل سوی دی. او مهر زر دراهم دي. او تر اوسه خاوند مهر اداء کړی هم نه دی. او دا ښکاره مسئله ده چي کله ښځي ته تر دخول مخکي طلاق ورکول سي نو هغه د نصف مهر حقداره ګرځي. او څرنګه چي دلته هم کوچنۍ نجلۍ غير مدخول بها منل سوې ده. او هغې ته تر دخول مخکي طلاق ورکول سوی دی (ځکه چي خلع طلاق دی). نو د هغې مهر به هم پنځه سوه دراهم پاتيږي. او دا به ويل کيږي چي خاوند پر پنځه سوه دراهمو خلع کړې ده. او د مهر (يعني د خلع د بدل) ضمانت پلار اخيستی دی. او هغه پنځه سوه دراهم دي. نو ځکه به پر پلار پنځه سوه دارهم واجب وي.

لېکن د قياس تقاضا دا ده چي پر پلار به زر درهم واجب وي. ځکه چي دلته پلار پر ځان زر دراهم لازم کړي دي.

وأصله في الكبيرة إلخ: فرمايي چي د دې مسئلې بنياد بالغه ښځه ده. يعني که د بالغي ښځي مهر زر درهمه ټاکل سوی وي. او بيا خاوند تر دخول مخکي د هغې سره پر زرو درهمو خلع وکړي (يعني د هغې پر ټاکل سوي مهر خلع ور سره وکړي. او خاوند تر اوسه مهر ورکړی نه وي). نو د قياس تقاضا دا ده چي پر دې ښځي پنځه سوه دراهم نور لازميږي. ځکه چي د طلاق قبل الدّخول په وجه د خاوند پر ذمه د ښځي نيم مهر (پنځه سوه دراهم) پاته سو. نو ځکه به اوس ښځه خاوند ته پنځه سوه نور دارهم ورکوي چي د خاوند زر دراهم پوره سي.

او د استحسان تقاضا دا ده چي پر ښځي هيڅ شی هم نه لازميږي. ځکه د داسي خلع کولو مطلب دا وي چي خاوند له مهر څخه خلاص سي (او ښځي ته يو پاولی هم ورنه کړي). او دلته خاوند په پوره توګه له مهر څخه خلاص دی ځکه چي د هغه له طرفه يو درهم هم ښځي ته نه ورکول کيږي. نو ځکه استحساناً پر ښځي نور پنځه سوه دراهم لازمول پکار نه دي.



# بَابُ الظِّهَارِ

## (دا) باب د ظهار (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب د خلع احکام بيان کړل. اوس د ظهار احکام بيانوي. په خلع او ظهار کې مناسبت دا دی چې د دواړو بنياد پر نافرمانۍ او سرکښۍ دی. خو څرنګه چې په خلع کې نکاح هم ختميږي او حرمت هم ثابتيږي، او په ظهار کې فقط حرمت ثابتيږي او نکاح باقي پاتيږي، نو په دې وجه خلع تر ظهار مخکې بيان سوه.

**د ظهار لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** په لغت کې د ظِهَار څو معناوې دي: ① خپلې ښځې ته أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ ويل (يعني ته داسې پر ما حرامه یې لکه د خپلې مور شا چې پر ما حرامه ده) ② مدد کول. ③ لاندې باندې جامې اغوستل. ④ په اوسنۍ عربۍ کې الظِّهَار د ملا درد ته هم وايي. (خو په لغت کې عموماً له دې لفظ څخه اوله معنیٰ مراديږي).

د ظهار شرعي معنیٰ ده: تَشْبِيهُ الْمُحَلَّلَةِ بِالْمُحَرَّمَةِ عَلَى التَّأْبِيْدِ (يعني د داسې ښځې سره د خپلې منکوحه ښځې تشبيه ورکول کوم چې د همېشه لپاره حرامه وي) لکه مور، خور او داسې نور◆.

### د ظهار حکم او تعريف

| وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ او کله خاوند خپلې ښځې ته و[داسې] ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ [ته پر ما داسې یې لکه زما د مور شا] فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْهِ نو ښځه پر هغه [خاوند] حرامه سوه لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا وَلَا مَسُّهَا وَلَا تَقْبِيلُهَا او د خاوند لپاره روا نه دي د هغې [ښځې] سره وطي کول او نه د هغې مسه کول او نه د هغې مچول حَتَّى يُكَفِّرَ عَنْ ظِهَارِهِ تر دې چې خاوند د خپل ظهار کفاره ورکړي |
|---|

◆ **فايده:** صاحب د مصباح المنير د ظهار وجه تسميه او تفسير داسې بيان کړی دی: ظَاهَرَ مِنْ امْرَأَتِهِ ظِهَارًا مِثْلُ قَاتَلَ قِتَالًا وَتَظَهَّرَ: إِذَا قَالَ لَهَا أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. قِيلَ: إِنَّمَا خُصَّ ذَلِكَ بِذِكْرِ الظَّهْرِ لِأَنَّ الظَّهْرَ مِنَ الدَّابَّةِ مَوْضِعُ الرُّكُوبِ وَالْمَرْأَةُ مَرْكُوبَةٌ وَقْتَ الْغِشْيَانِ. فَرُكُوبُ الْأُمِّ مُسْتَعَارٌ مِنْ رُكُوبِ الدَّابَّةِ ثُمَّ شُبِّهَ رُكُوبُ الزَّوْجَةِ بِرُكُوبِ الْأُمِّ الَّذِيْ هُوَ مُمْتَنِعٌ وَهُوَ اسْتِعَارَةٌ لَطِيفَةٌ فَكَأَنَّهُ قَالَ رُكُوبُكِ لِلنِّكَاحِ حَرَامٌ عَلَيَّ. (مصباح المنير ج:۲، ص:۳۸۷، مکتبة العلمية، بيروت)

لِقَوْلِهٖ تَعَالٰی: وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ... إِلٰی أَنْ قَالَ: فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ أَنْ يَّتَمَآسَّا [المجادلة: ۳] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او کوم خلک چې د خپلو ښځو سره ظهار کوي.... تر دې چې فرمايلي يې دي: نو [پر هغو لازم دي] آزادول د غلام مخکې تر دې چې [خاوند او ښځه] وطي سره وکړي وَالظِّهَارُ كَانَ طَلَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ او ظهار د جاهليت په زمانه کې طلاق وو فَقَرَّرَ الشَّرْعُ أَصْلَهٗ نو شريعت د هغه أصل باقي پرېښوده وَنَقَلَ حُكْمَهٗ إِلٰی تَحْرِيْمٍ مُّؤَقَّتٍ بِالْكَفَّارَةِ غَيْرِ مُزِيْلٍ لِّلنِّكَاحِ او د هغه حکم يې وداسې تحريم ته نقل کړی کوم چې په کفاره سره متعين دی [او] کوم چې د نکاح ختمونکی نه دی وَهٰذَا لِأَنَّهٗ جِنَايَةٌ او دا ځکه چې ظهار يو جرم دی لِكَوْنِهٖ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ځکه چې هغه بده وينا او دروغ دي فَيُنَاسِبُ الْمُجَازَاةَ عَلَيْهَا بِالْحُرْمَةِ نو مناسب معلومه سوه چې [اسري ته] پر دغه بده وينا [د ښځې] په حرامولو سره سزا ورکول سي وَارْتِفَاعُهَا بِالْكَفَّارَةِ او د دې حرمت ختمېدل په کفاره سره دي [يعني د ظهار حرمت په کفاره سره ختميږي] ثُمَّ الْوَطْءُ إِذَا حَرُمَ حَرُمَ بِدَوَاعِيْهِ بيا چې کله وطي حرام کړی سوې نو د خپلو دواعيو سره حرام کړی سوې كَيْ لَا يَقَعَ فِيْهِ د دې لپاره چې خاوند [د دواعيو په وجه] په وطي کې واقع نه سي كَمَا فِي الْإِحْرَامِ لکه څرنګه چې په احرام کې [دواعي د وطي حرام دي] بِخِلَافِ الْحَائِضِ وَالصَّائِمِ په خلاف د حائضې او روژتي [ښځې] لِأَنَّهٗ يَكْثُرُ وُجُوْدُهُمَا ځکه چې د دې دواړو [حيض او روژې] وجود [پېښېدل] زيات وي [يعني بار، بار پېښيږي] فَلَوْ حَرُمَ الدَّوَاعِيْ يُفْضِيْ إِلَى الْحَرَجِ لهذا که [په دوی کې] دواعي حرام کړل سي نو دا به د حرج سبب جوړ سي وَلَا كَذٰلِكَ الظِّهَارُ وَالْإِحْرَامُ او ظهار او إحرام داسې نه دي.

**اللغات:** ﴿تَقْبِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: مچول (مچه اخيستل)، ښکلول. ﴿يُكَفِّر﴾ د تفعيل مضارع ده: کفاره ورکول (کفاره اداء کول). ﴿مُؤَقَّت﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: نېټه دار، ټاکل سوی، ترېو خاص وخت پورې. ﴿مُزِيْل﴾ د افعال فاعل دی: زائلونکی، ختمونکی. ﴿جِنَايَة﴾ جرم، غلطي. ﴿زُوْر﴾ دروغ (دروغ). ﴿مُجَازَاة﴾ د مفاعلې مصدر دی: بدله ورکول، سزا ورکول. ﴿اِرْتِفَاع﴾ د افتعال مصدر دی: پورته کېدل (ليرې کېدل، ختمېدل).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د خپلې ښځې سره ظهار وکړي. نو ښځه پر هغه حراميږي. او د ظهار له کفارې څخه مخکې نه خاوند د هغې سره وطي کولای سي. او نه يې مچولای او

مسه کولای سي: د دې حکم دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: وَالَّذِيْنَ يُظَاهِرُوْنَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا... (إلخ). یعني کوم خلک چي د خپلو ښځو سره ظهار کوي. او بیا د خپل قول او عمل تلافي کول غواړي. نو هغو ته حکم دا دی چي یو غلام به آزادوي.

له دې آیت څخه دا خبره څرګنده سوه چي تر څو چي مُظاهر (ظهار کونکی خاوند) غلام آزاد نه کړي. تر هغه وخته ښځه د هغه لپاره حلاله نه ګرځي.

**وکان إلخ:** فرمایي چي د جاهلیت په زمانه کي علی الإطلاق خلکو ظهار طلاق شماری. لېکن شریعت د هغه إطلاق مقید. او مؤقت کړی او دا حکم یې وکړی چي فقط د کفارې تر اداء کولو پوري به ښځه پر مُظاهر حرامه وي. او د شریعت د دغه حکم علت دا دی چي ظهار کول یو جرم دی. ځکه چي په دې کي فحش او بده وینا ده. او د قرآن کریم په ژبه دا یو قبیح شی دی. لکه په قرآن کي چي ذکر سوي دي: وَإِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا. او ښکاره خبره ده چي په شریعت کي د درواغو او د قباحت هیڅ ګنجائش نسته. نو ځکه به مظاهر ته د خپل بد قول او عمل سزا ورکول کیږي. او کومي ښځي ته چي هغه رد وبد ویلي دي. هغه به پر دغه سړي حرامیږي. تر دې چي هغه کفاره اداء کړي او د دې چټل عمل داغونه پاک او صفا کړي. ځکه چي د شریعت همدا قانون دی چي إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ. یعني بدي په نېکۍ سره ختمیږي. (بنایة ج:۵. ص:۳۲۵)

**ثم إذا حرم إلخ:** د دې حاصل دا دی چي څرنګه پر مظاهر وطي حرام دي. همداسي د وطي دواعي مثلاً مسه کول او مچول داسي نور هم پر حرام دي. ځکه که دا شیان حرام نه کړی سي. نو آخر به له خاوند څخه وطي وسي او په حرام عمل به مبتلا سي. لهذا څرنګه چي د محرم (إحرام تړونکي سړي) لپاره وطي او د وطي دواعي دواړه حرام دي. همداسي به د مظاهر لپاره هم دا دواړه شیان حرام وي.

د دې په خلاف حائضه او صائمه (روژتي) ښځه ده. نو د دوی سره فقط وطي کول حرام دي. لېکن دواعي د وطي حرام نه دي. ځکه چي حیض او روژه کثیرُ الوقوع دي. بار. بار پیښیږي. نو که په هغوی کي دواعي د وطي هم حرام وګرځول سي، نو بیا به خاوند او ښځي ته حرج او تکلیف لاحق سي. او په شریعت کي حرج مدفوع او لیري کړی سوی دی. نو په دې وجه د حائضې او روژتي ښځي په حق کي دواعي د وطي صحیح او جائز دي. خو څرنګه چي د حیض او روژې په مقابله کي ظهار او إحرام قلیلُ الوجود او نادرُ الوقوع دي. کله نا کله پیښیږي. نو ځکه به په دوی کي وطي هم حرام وي. او دواعي د وطي به هم حرام او ممنوع وي.

## له كفاره وركولو څخه مخكې د جماع كولو حكم

فَإِنْ وَطِئَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ او كه [خاوند] د ښځې سره وطي وكړي مخكې تر دې چې كفاره اداء كړي إِسْتَغْفَرَ اللهَ تَعَالَىٰ نو د الله تعالىٰ څخه دې بخښنه وغواړي ايعني توبه او استغفار دې وكړي] وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ غَيْرُ الْكَفَّارَةِ الْأُوْلَىٰ او پر هغه له اولې كفارې څخه بغير بل هيڅ شى واجب نه دى وَلَا يَعُودُ حَتَّىٰ يُكَفِّرَ او نه دې راګرځي اوطي ته. يعني بل وار دې وطي نه كوي] تر دې چې كفاره اداء كړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام [1] لِلَّذِىْ وَاقَعَ فِي ظِهَارِهِ قَبْلَ الْكَفَّارَةِ ځكه چې نبي ﷺ وفرمايل هغه سړي ته كوم چې په ظهار كې تر كفاره وركولو مخكې جماع كړې وه: اِسْتَغْفِرِ اللهَ وَلَا تَعُدْ حَتَّىٰ تُكَفِّرَ د الله څخه بخښنه وغواړه او مه راګرځه ايعني بل وار وطي مه كوه] تر دې چې كفاره اداء كړې وَلَوْكَانَ شَيْءٌ آخَرُ وَاجِبًا لَبَيَّنَهُ عَلَيْهِ السَّلَام او كه پر دغه سړي [اله اولې كفارې څخه بغير] بل شى واجب واى نو نبي ﷺ به [خامخا] هغه ذكر كړي واى قَالَ: وَهٰذَا اللَّفْظُ لَا يَكُوْنُ إِلَّا ظِهَارًا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا لفظ فقط ظهار دى ايعني دا فقط د ظهار لپاره دى] لِأَنَّهُ صَرِيْحٌ فِيْهِ ځكه چې دا په ظهار كې صريح دى ايعني د ظهار په معنىٰ كې صريح دى] وَلَوْنَوَىٰ بِهِ الطَّلَاقَ او كه خاوند په دې سره د طلاق نيت وكړي لَا يَصِحُّ نو صحيح نه دي لِأَنَّهُ مَنْسُوْخٌ ځكه چې د هغه طلاق كېدل منسوخ سوي دي فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الْإِتْيَانِ بِهِ نو ځكه به خاوند ته د داسې كولو اختيار نه وي.

**اللغات:** ﴿وَاقَعَ﴾ د مفاعلې ماضي ده: جماع كول (كور والى كول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو مُظاهر سړى د كفارې تر اداء كولو مخكې د خپلې ښځې سره جماع وكړي. نو هغه ته پكار دي چې توبه او استغفار وكړي. او كومه كفاره چې واجب سوې ده. هغه دې ژر تر ژره اداء كړي. او پر دې سړي له اولې كفارې (كفاره اولىٰ) څخه بغير بل هيڅ شى واجب نه دى. دليل دا دى چې د سلمه بن صخر بياضي په نامه صحابي نبي كريم ﷺ ته راغلى او ويې ويل چې ما د خپلې ښځې سره ظهار وكړى او بيرته مې د هغې سره جماع وكړه. نو نبي ﷺ هغه ته حكم وكړى چې د الله څخه مغفرت او بخښنه وغواړه او د آينده لپاره توبه وكړه. او تر څو چې دې كفاره اداء كړې نه وي. تر هغه وخته بيا د ښځې سره وطي مه كوه.

[1] ـرجه ابن ماجه فى كتاب الطلاق، باب المظاهر، حديث رقم:٢٠٦٥

په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسو چې که پر دغه صحابي له استغفار او کفاره اولیٰ څخه علاوه بل شی لازم وای، نو نبي کريم ﷺ به يقيناً هغه ذکر کړي وای او د هغه حکم به يې کړي وای. نو د نبي ﷺ حکم نه کول او د بل شي نه ذکر کول د دې خبرې دليل دا دی چې پر مُظاهر له کفاره اولیٰ څخه بغير بل شی واجب نه دی.

**قال وهذا إلخ:** فرمايي چې أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ د ظهار لپاره صريحه جمله ده، لهذا په دې جملې سره فقط ظهار واقع کيږي، او که يو سړی په دې جملې سره د طلاق نيت وکړي، نو د هغه نيت معتبر او صحيح نه دی: ځکه چې په دې جملې سره د طلاق مراد ول منسوخ سوي دي، او په شريعت کې د منسوخ حکم هيڅ اعتبار نسته.

## د کومو اندامونو په تشبيه سره ظهار ثابتيږي؟

**وَإِذَا قَالَ: أَنْتِ عَلَيَّ كَبَطْنِ أُمِّيْ أَوْ كَفَخِذِهَا أَوْ كَفَرْجِهَا** او که [خاوند خپلې ښځې ته] ووايي: ته پر ما داسې يې لکه زما د مور نس يا [داسې يې] لکه د هغې ورون يا [داسې يې] لکه د هغې شرمګاه **فَهُوَ مُظَاهِرٌ** نو هغه ظهار کونکی دی **لِأَنَّ الظِّهَارَ لَيْسَ إِلَّا تَشْبِيهُ الْمُحَلَّلَةِ بِالْمُحَرَّمَةِ** ځکه چې ظهار نه دی مګر د محرمه ښځې سره د حلالې ښځې تشبيه ورکول [يعني ظهار همدې ته وايي چې د يو محرمه ښځې سره د خپلې مايني تشبيه ورکول سي] **وَهٰذَا الْمَعْنَى يَتَحَقَّقُ فِي عُضْوٍ لَا يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَيْهِ** او دا معنیٰ په [هر] هغه اندام کې ثابتيږي چې د هغه وطرف ته کتل جائز نه وي.

**اللغات:** ﴿مُحَلَّلَة﴾ د تفعيل له باب څخه د مفعول صيغه ده: حلاله کړی سوې ښځه (ماينه).

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې ظهار فقط د دې جملې أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ سره خاص نه دی، بلکې د محرمه ښځې د هر هغه اندام په تشبيه سره ظهار ثابتيږي چې هغه ته د محرم سړي کتل صحيح نه وي؛ همدا وجه ده که خاوند خپلې ښځې ته ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ كَبَطْنِ أُمِّيْ يا كَفَخِذِ أُمِّيْ يا كَفَرْجِ أُمِّيْ، نو په دې ټولو صورتونو کې هغه ظهار کونکی ګرځي، ځکه چې د هغه لپاره د محرمه ښځې و دغه اندامونو ته کتل صحيح نه دي.

## د کومو ښځو په تشبيه سره ظهار ثابتيږي؟

**وَكَذَا إِنْ شَبَّهَهَا بِمَنْ لَا يَحِلُّ لَهُ النَّظَرُ إِلَيْهَا عَلَى التَّأْبِيدِ مِنْ مَحَارِمِهِ** او همدارنګه که [خاوند] د ښځې [ماينې] تشبيه ورکړي په خپلو محارمو کې د داسې ښځې سره چې د هغې وطرف ته ا د شهوت په نظر سره ا کتل د همېشه لپاره حرام وي **مِثْلَ: أُخْتِهِ أَوْ عَمَّتِهِ أَوْ أُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ** لکه [د هغه] خپله خور يا

خپله امه یا خپله رضاعي مور [سره تشبیه ورکول] لِأَنَّهُنَّ فِي التَّحْرِيمِ الْمُؤَبَّدِ كَالْأُمِّ ځکه چي دا ښځي د همېشه لپاره په حرامېدلو کي د مور په څېر دي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دئ چي ظهار فقط د مور د تشبیه سره خاص نه دی. بلکي د هر هغه ښځي سره د خپلي مابېنې په تشبیه ورکولو سره ظهار ثابتیږي چي د هغه ښځي وطرف ته د شهوت په نظر سره د محرم سړي کتل حرام وي. مثلاً: خاله، خور، امه او رضاعي مور او داسي نور. او دغه ښځو ته د شهوت په نظر سره کتل حرام دي. نو که خاوند په دوی کي د یو ښځي سره د خپلي مابېنې تشبیه ورکړي، نو ظهار ثابتیږي.

## د یو جزء سره تشبیه ورکول

وَكَذٰلِكَ إِذَا قَالَ: رَأْسُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي او همدارنګه که [خاوند خپلي ښځي ته] ووایي: ستا سر پر ما داسي دی لکه د خپلي مور شا أَوْ فَرْجُكِ أَوْ وَجْهُكِ أَوْ رَقَبَتُكِ أَوْ نِصْفُكِ أَوْ ثُلُثُكِ یا ستا فرج [پر ما داسي دی لکه د خپلي مور شا] یا ستا مخ یا ستا غاړه یا ستا نیمه حصه یا ستا دریمه حصه [پر ما داسي ده لکه د خپلي مور شا] لِأَنَّهُ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ ځکه چي د دې الفاظو [اندامونو] په ذریعه له ټوله بدن څخه تعبیر کیږي [یعني په دغه هر یوه اندام سره په محاوره کي ټوله بدن مرادیږي] وَيَثْبُتُ الْحُكْمُ فِي الشَّائِعِ او حکم [اول] په جزء شائع کي ثابتیږي ثُمَّ يَتَعَدَّى بیا [په ټوله بدن کي] متعدي کیږي كَمَا بَيَّنَّاهُ فِي الطَّلَاقِ لکه په طلاق کي چي موږ د دې بیان وکړی.

**اللغات**: ﴿الشَّائِعِ﴾ د ټوله جسم څلورمه حصه، یا نصف، یا دریمه حصې، همدې ته جزءِ شائع (مشترک جزء) وایي. ځکه چي د ټوله جسم په هر. هر جزء کي نصف یا څلورمه حصه یا دریمه حصه شائع ده.

**تشريح**: فرمایي که خاوند خپلي ښځي ته داسي ووایي: رَأْسُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. یا داسي ووایي: فَرْجُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. یا: رَقَبَتُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. یا: نِصْفُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. یا: ثُلُثُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي. نو په دې ټولو صورتونو کي ظهار ثابتیږي. دلیل دا دی چي په دغه ذکر سوو اندامونو کي د هر اندام په ذریعه د ښځي له ټوله جسم او بدن څخه تعبیر کیږي، ځکه مخکي ذکر سوه چي په کوم اندام سره چي ټوله جسم مرادیږي، هغه اندام ته که طلاق ورکول سي نو پر ټوله ښځي طلاق واقع کیږي. نو همداسي به په هغه اندام سره ظهار هم ثابتیږي. ځکه په کوم اندام سره چي له ټوله بدن څخه تعبیر

کيږي. د محرمه ښځې د هغه اندام سره تشبيه ورکول داسې سو لکه د ټوله محرمه ښځې سره تشبيه ورکول. نو ځکه به په دغه ذکر سوو اندامونو سره ظهار ثابتيږي.

**ويثبت الحکم إلخ**: د دې عبارت مطلب دا دی چې که خاوند د خپلې ښځې د جسم د څلورمې يا دريمې حصې سره يا د نصف سره ظهار وکړي. نو د جسم د هر اندام په څلورمه يا دريمه حصه يا نصف کې ظهار ثابتيږي. بيا له هغه ځخه په ټوله اندام کې سرايت کوي او همدارنګه بيا په ټوله جسم کې خپريږي او ظهار ثابتيږي. لکه کله چې د ښځې نصف ته طلاق ورکول سي. نو د هغه د سرايت کولو او خپرېدلو په وجه پر پوره ښځې طلاق واقع کيږي.

## د "أَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي يا كَأُمِّي" حکم

**وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي أَوْ كَأُمِّي** او که [خاوند] ووايي: ته پر ما د خپلې مور په مثل سره يې يا [ته پر ما] د خپلې مور په رقم [اخير] يې **يُرْجَعُ إِلَى نِيَّتِهِ** نو [په دې صورت کې] به د خاوند د نيت وطرف ته رجوع کيږي **لِيَنْكَشِفَ حُكْمُهُ** د دې لپاره چې د هغه حکم ښکاره سي **فَإِنْ قَالَ: أَرَدْتُ الْكَرَامَةَ** نو که هغه [خاوند] ووايي: چې ما په دې سره د عزت [احترام] اراده کړې ده **فَهُوَ كَمَا قَالَ** نو همداسې به وي لکه هغه چې وايي **لِأَنَّ التَّكْرِيمَ بِالتَّشْبِيهِ فَاشٍ فِي الْكَلَامِ** ځکه چې د تشبيه ورکولو په ذريعه احترام کول [د خلکو] په کلام کې رواج دي **وَإِنْ قَالَ: أَرَدْتُ الظِّهَارَ** او که هغه ووايي: چې ما د ظهار اراده کړې ده **فَهُوَ ظِهَارٌ** نو هغه به ظهار وي **لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِجَمِيعِهَا** ځکه چې دا [د ښځې] [د ټولو اندامونو سره] تشبيه ورکول دي **وَفِيهِ تَشْبِيهٌ بِالْعُضْوِ** او [که څه هم] په دې [ټوله ښځه] کې د اندام [يعني د شا] سره تشبيه ورکول سته ايعني په دې مثالو کې د مور د ټولو اندامونو سره د مابينې تشبيه ورکول سوې ده. چې په هغه کې شا هم راغله. نو د شا سره هم تشبيه ورکول سوې ده. خو څرنګه چې په صراحت سره د شا اظهر الفظ نسته. نو ځکه به نيت ته ضرورت وي] **لَكِنَّهُ لَيْسَ بِصَرِيحٍ** ليکن هغه صريح نه دی [يعني په صراحت سره د شا لفظ ذکر سوی نه دی] **فَيَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ** نو ځکه به نيت ته محتاج وي **وَإِنْ قَالَ: أَرَدْتُ الطَّلَاقَ** او که هغه ووايي: ما د طلاق اراده کړې ده **فَهُوَ طَلَاقٌ بَائِنٌ** نو هغه به طلاق بائن وي **لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِالْأُمِّ فِي الْحُرْمَةِ** ځکه چې دا په حرمت کې د مور سره تشبيه ورکول دي **فَكَأَنَّهُ قَالَ: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ** نو ګواکې خاوند داسې وويل: ته پر ما حرامه يې **وَنَوَى الطَّلَاقَ** او په دې سره يې د طلاق نيت [هم] وکړی **وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ** او که [په

دې سره اد خاوند هيڅ نيت نه وي فَلَيْسَ بِشَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به دا هيڅ شی نه وي لِاحْتِمَالِ الْحَمْلِ عَلَى الْكَرَامَةِ پر عزت [احترام] باندې د حمل کولو د احتمال په وجه وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَكُونُ ظِهَارًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا به ظهار وي لِأَنَّ التَّشْبِيهَ بِعُضْوٍ مِنْهَا لَمَّا كَانَ ظِهَارًا ځکه کله چې د مور د يوه اندام سره تشبيه ورکول ظهار دی فَالتَّشْبِيهُ بِجَمِيعِهَا أَوْلَى نو [د هغې] د ټولو اندامونو سره به تشبيه ورکول په درجه اولی سره ظهار وي وَإِنْ عَنَى بِهِ التَّحْرِيمَ لَا غَيْرُ او که خاوند په دې سره د تحريم اراده کړې وي، نه د بل شي فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ هُوَ إِيلَاءٌ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به هغه ايلاء وي لِيَكُونَ الثَّابِتُ بِهِ أَدْنَى الْحُرْمَتَيْنِ د دې لپاره چې په دې سره په دواړو حرمتونو کې ادنی [اسپک] حرمت ثابت سي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ظِهَارٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به ظهار وي لِأَنَّ كَافَ التَّشْبِيهِ تَخْتَصُّ بِهِ ځکه چې کاف د تشبيه د ظهار سره خاص وي.

**اللغات:** ﴿يَنْكَشِفُ﴾ د انفعال مضارع ده: څرګندېدل، ښکاره کېدل. ﴿كَرَامَةٌ﴾ عزت او احترام. ﴿تَكْرِيمٌ﴾ د تفعيل مصدر دی: عزت ورکول. ﴿فَاشٍ﴾ عام، رائج. ﴿يَفْتَقِرُ﴾ د افتعال مضارع ده: محتاج کېدل، ضرورت پيدا کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې د خاوند د دوو جملو په هکله د هغه د نيت او ارادې په اعتبار سره څو مسئلې بيان سوي دي، چې هغه به انشاء الله په ترتيب سره ذکر سي، تر ټولو مخکې تاسې هغه دوو جملو ته پاملرنه وکړئ!: ① يوه جمله دا چې خاوند خپلې ښځې ته داسې ووايي أَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي. ② يا داسې ورته ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ كَأُمِّي. نو په دې دواړو صورتونو کې به تر ټولو مخکې له هغه څخه د نيت پوښتنه کيږي، او د نيت مطابق به فيصله کيږي:

(۱)...نو که خاوند ووايي چې ما د تکريم او احترام په خاطر د مور سره دا تشبيه ورکړې ده. يعني څرنګه چې زما زمور زما په نېز د احترام او تعظيم لائقه ده، همداسې ته هم زما په نېز د احترام او تعظيم لائقه يې، نو اوس حکم دا دی چې د هغه دا نيت به معتبر وي، او د هغه کلام به پر احترام او تعظيم حمل کيږي. دليل دا دی چې په دې کلام کې د احترام او تعظيم احتمال هم سته، ځکه چې د خلکو په عرف او اصطلاح کې له دې کلام څخه تکريم او احترام مراديږي.

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في الدر المختار (ج:٢، ص:٦٢٦). [القول الراجح ج:١، ص:٣٥١]

(۲)... او که چیرې خاوند ووایي چې ما په دې جملې سره د ظهار نیت کړی دی، نو د هغه دا نیت به هم معتبر وي او ظهار به ثابتیږي: دلیل دا دی چې ظهار د محرمه ښځې سره د خپلې ښځې تشبیه ورکولو ته وایي. او هغه تشبیه دلته سته. ځکه چې په أَنْتِ عَلَيَّ كَأُمِّيْ کې د پوره مور سره تشبیه ورکول سوې ده (نه فقط د هغې د یو اندام سره). او په دویمه جمله یعنې په مثل أُمِّيْ کې هم د مور سره تشبیه ورکول سوې ده. او کله چې د یوه اندام په تشبیه سره ظهار ثابتیږي. نو د ټولو اندامونو د مجموعې په تشبیه سره خو به په درجه اولیٰ ظهار ثابتیږي. لیکن څرنګه چې أَنْتِ عَلَيَّ او كَأُمِّيْ تشبیهات صریحه نه دي، نو ځکه به په دوی کې نیت ته کتل کیږي. او د نیت مطابق به فیصله کیږي.

(۳)... که خاوند ووایي چې ما په دې جمله سره د طلاق نیت کړی دی. نو دا نیت هم صحیح دی. او پر ښځې به طلاق بائن واقع کیږي: دلیل دا دی چې دا کلام "په حرمت کې د مور سره د تشبیه ورکولو" احتمال هم لري. لهذا دا کلام داسې سو لکه خاوند چې ووایي: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّيْ یا مِثْلُ أُمِّيْ. او په أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ سره که خاوند د طلاق نیت وکړي. نو د کنایه توب په وجه په دې جمله سره طلاق بائن واقع کیږي (یعنې ځکه چې أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ کنایه جمله ده. او په کنایاتو سره طلاق بائن واقع کیږي. نو دلته به هم د طلاق د نیت کولو په صورت کې طلاق بائن واقع کیږي).

(۴)... او که خاوند ووایي چې ما په دې کلام سره هیڅ نیت کړی نه دی. بلکې هسې مې تر خولې دا الفاظ ووتل. نو په دې صورت کې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا کلام لغوه کیږي. او دا به پر هیڅ شي هم نه حمل کیږي: دلیل دا دی چې په دې کې د تکریم احتمال هم سته. او د طلاق او ظهار احتمال هم سته. نو د یو مُرجّح دلیل څخه بغیر به پر یوه شي هم نه حمل کیږي.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې صورت کې به دغه کلام ظهار وي. ځکه کله چې د مور د یوه اندام سره تشبیه ورکول ظهار دی. نو د هغې د ټوله بدن سره تشبیه ورکول به په درجه اولیٰ سره ظهار وي. نو ځکه به له نیت څخه بغیر هم په دې جملو کې ظهار ثابتیږي.

(۵)... او که خاوند په دې جملو سره د تحریم (یعنې پر خپل ځان د ښځې حرامولو) اراده کړې وي. نو په دې صورت کې به هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز دا ظهار وي. لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز به ایلاء وي. د امام ابو یوسف دلیل دا دی چې د ظهار په مقابله کې د ایلاء حرمت خفیف او ادنیٰ دی. ځکه چې د ایلاء حرمت څلور میاشتې وروسته ثابتیږي. او بېله کفارې د وطې په ذریعه هغه ختم کېدای سي. او ایلاء مباح او جائز ده. نو په دې وجه سره د ایلاء حرمت د ظهار تر حرمت سپک او

ادنیٰ دی. او د فقهې قاعد دا ده چې "يُخْتَارُ أَهْوَنُ الشَّرَّيْن". يعني کله چې په يوه مسئله کې دوې بدياني جمع سي. نو په هغوی کې به سپکه او خفيفه بدې اختياريږي.

د امام محمد دليل دا دی چې په دې دوو جملو کې د تشبيه حروف "مِثْل او کاف" ذکر سوي دي. او د تشبيه حروف د ظهار سره خاص دي. نو ځکه به په دې صورت کې هم د خاوند قول پر ظهار حمل کيږي او په دې جملو سره به ظهار ثابتيږي.

## د "أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّي" حکم

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّي او که [خاوند] ووايي: ته پر ما د خپلي مور په څير حرامه يې وَنَوَى ظِهَارًا أَوْ طَلَاقًا او په دې سره د ظهار يا د طلاق نيت وکړي فَهُوَعَلَى مَانَوَى نو [حکم] به همداسي وي لکه څرنګه چې هغه نيت کړی وي [يعني حکم به د هغه د نيت مطابق وي] لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ ځکه چې دا کلام د دواړو صورتونو احتمال لري الظِّهَارُ لِمَكَانِ التَّشْبِيهِ وَالطَّلَاقُ لِمَكَانِ التَّحْرِيمِ [۱] د تشبيه په وجه سره د ظهار [احتمال لري] [۲] او د تحريم په وجه سره د طلاق [احتمال لري] وَالتَّشْبِيهُ تَأْكِيدٌ لَهُ او تشبيه د تحريم د تأکيد لپاره ده وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ او که [په دې سره] د خاوند هيڅ نيت نه وي فَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ إِيلَاءٌ نو [دا] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول ايلاء دی وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ ظِهَارٌ ❁ او د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول ظهار دی وَالْوَجْهَانِ بَيَّنَّاهُمَا او دواړه صورتونو موږ [مخکي] بيان کړي دي.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل واضح دی چې د خاوند په دې قول "أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَأُمِّي" کې د طلاق احتمال هم سته او د ظهار احتمال هم سته. نو د کوم شي نيت چې خاوند کړی وي. هغه به ثابتيږي: په دې جمله کې د ظهار احتمال په دې توګه سته چې د تشبيه حرف (کاف) پکښې ذکر سوی دی. کوم چې د ظهار لپاره خاص دی. او د طلاق احتمال په دې توګه پکښې سته چې أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ کنايه جمله ده. او په کنايه جملو او الفاظو سره طلاق بائن واقع کيږي. او که په دې جملې سره خاوند د طلاق نيت کړی وي. نو د هغه پر ښځې يو طلاق بائن واقع کيږي. او تر أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ وروسته تشبيه به يعني كَأُمِّي به د همدغه تحريم لپاره تأکيد وي.

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الخانية (ج:۲، ص:۲۶۴)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۲۷). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۵۲]

وإن لم إلخ: فرمايي که په دې سره د خاوند هيڅ نيت نه وي نو له دې څخه به د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز ايلاء مراد وي لأنه أدنىٰ و أخف من الظهار. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به له دې څخه ظهار مراد وي لأن كاف التشبيه تختص بالظهار كما مر آنفًا.

## د ظهار يو څو الفاظ

وإن قال: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَظَهْرِ أُمِّي او که [خاوند] ووايي: ته پر ما داسي حرامه يې لکه زما د مور شا وَنَوَىٰ بِهِ طَلَاقًا أَوْ إِيلَاءً او په دې سره د طلاق يا د ايلاء نيت وکړي لَمْ يَكُنْ إِلَّا ظِهَارًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به فقط ظهار وي وَقَالَا: هُوَ عَلَىٰ مَا نَوَىٰ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: هغه به داسي وي لکه ده چي يې نيت کړی وي ايعني حکم به د ده د نيت مطابق وي] لِأَنَّ التَّحْرِيمَ يَحْتَمِلُ كُلَّ ذٰلِكَ ځکه چي تحريم د دې ټولو اظهار، طلاق او ايلاء] احتمال لري عَلَىٰ مَا بَيَّنَّا لکه مونږ چي امخکي] بيان کړه غَيْرَ أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ إِذَا نَوَى الطَّلَاقَ خو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چي کله خاوند د طلاق نيت وکړي لَا يَكُونُ ظِهَارًا نو دا به ظهار نه وي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَكُونَانِ جَمِيعًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به طلاق او ظهار دواړه وي وَقَدْ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ او دا په خپل ځای کي پېژندل سوي [معلوم سوي] دي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ صَرِيحٌ فِي الظِّهَارِ د امام صاحب دليل دا دی: چي دا کلام د ظهار لپاره صريح دی فَلَا يَحْتَمِلُ غَيْرَهُ نو له هغه څخه بغير [د بل شي] احتمال به نه لري ثُمَّ هُوَ مُحْكَمٌ بيا هغه محکم [هم] دی فَيُرَدُّ التَّحْرِيمُ إِلَيْهِ نو تحريم به د هغه [ظهار] وطرف ته ګرځول کيږي انو ځکه به ظهار په ثابتيږي].

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ كَظَهْرِ أُمِّي. او په دې کلام سره هغه د طلاق يا د ايلاء نيت وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا کلام فقط د ظهار لپاره وي (يعني د هغه په نېز په دې سره نه طلاق واقع کيږي او نه ايلاء). او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي خاوند د کوم شي نيت کړی وي هغه ثابتيږي. يعني که نيت يې د ظهار وي، نو ظهار ثابتيږي. او که نيت يې د طلاق يا د ايلاء وي، نو طلاق يا ايلاء واقع کيږي.

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:٤، ص:٩٢). [القول الراجح ج:١، ص:٣٥٣]

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي دا کلام أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ... په مذکوره شیانو (ظهار، طلاق او ایلاء) کي د هر شي احتمال لري، او د احتمالي معنیٰ نیت کول صحیح دي، نو ځکه به د هغه د نیت مطابق فیصله کیږي.

لېکن د صاحبینو په اقوالو کي هم فرق سته، هغه دا چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز که خاوند په خپل دې کلام سره د طلاق نیت کړی وي نو صرف طلاق واقع کیږي، او ظهار نه ثابتیږي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز طلاق او ظهار دواړه ثابتیږي.

د امام محمد دلیل دا دی چي کله خاوند خپلي ښځي ته دا جمله أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ وویله، نو په دې سره طلاقِ بائن واقع سو، لهذا تر دې وروسته په كَظَهْرِ اُمِّيْ سره ظهار ثابتېدای نه سي، ځکه چي تر بینونت وروسته ظهار نه صحیح کیږي.

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي طلاق خو به په أَنْتِ عَلَيَّ حَرامٌ سره د خاوند د نیت په وجه واقع کیږي، او ظهار به په كَظَهْرِ اُمِّيْ سره ثابتیږي، ځکه چي دا جمله د ظهار لپاره صریحه ده، لهذا د دې جملې د ظاهر څخه به د خاوند لپاره د انحراف کولو ګنجائش نه وي.

**د امام صاحب دلیل**: امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایلي وو چي په پورتنی جمله سره فقط ظهار ثابتیږي، د هغه دلیل دا دی چي كَظَهْرِ اُمِّيْ د ظهار د معنیٰ لپاره صریح دی، همدا وجه ده چي په دې الفاظو سره د ظهار کولو په وخت کي د نیت ضرورت نسته، نو په دې الفاظو کي د ظهار څخه بغیر د بل شي یعني د طلاق او ایلاء احتمال کېدای نه سي، او د بل شي د احتمال د نشتوالي په وجه دا الفاظ یعني كَظَهْرِ اُمِّيْ د ظهار په معنیٰ کي مُحکم دي، او د أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ الفاظ څو احتمالات لري، او قاعده دا ده چي محتمل به د محکم وطرف ته ګرځول کیږي، نو د دغه قاعدې په وجه به أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ هم د ظهار وطرف ته ګرځول کیږي، او په دې جملې سره به یوازي ظهار ثابتیږي.

## ظهار فقط دخپلي ښځي سره کېدای سي

قَالَ: وَلَا يَكُونُ الظِّهَارُ إِلَّا مِنَ الزَّوْجَةِ فرمایي: او نه کیږي ظهار مګر د خپلي ښځي څخه حَتَّى لَوْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ حتی که د خپلي مینځي څخه ظهار وکړي لَمْ يَكُنْ مُظَاهِرًا نو ظهار کونکی نه ګرځي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: مِنْ نِسَائِهِمْ [المجادلة: ٣] ځکه چي الله تعالیٰ فرمایلي دي: [او کوم خلک چي ظهار کوي] د خپلو ښځو څخه وَلِأَنَّ الْحِلَّ فِي الْأَمَةِ تَابِعٌ او په دې وجه [هم] چي په مینځه کي حلال کېدل تابع دي فَلَا تُلْحَقُ بِالْمَنْكُوحَةِ نو هغه به د منکوحه ښځي سره نه لاحق کیږي وَلِأَنَّ الظِّهَارَ مَنْقُولٌ عَنِ الطَّلَاقِ

او په دې وجه (هم) چې ظهار له طلاق څخه نقل سوی دی وَلَا طَلَاقَ فِي الْمَمْلُوْكَةِ او د مملوکه (مينځې) په حق کې طلاق نسته.

**اللغات:** ﴿أَمَةٌ﴾ مينځه. جمع: آمَاء.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د ظهار ثابتېدلو تعلق فقط د منکوحه ښځې سره دی. او له منکوحه ښځې څخه بغير د نورو مملوکه ښځو سره ظهار نه صحيح کيږي. همدا وجه ده که يو سړی د خپلې غير منکوحه مينځې سره ظهار وکړي. نو هغه ته مُظاهر نه ويل کيږي. د منکوحه ښځې سره د ظهار خاصېدلو ① يو دليل دا دی چې د ظهار په آيت يعني په وَالَّذِيْنَ يُظَاهِرُوْنَ مِنْ نِّسَائِهِمْ کې د "نِسَاء لفظ استعمال سوی دی. او د نِسَاء لفظ که څه هم منکوحه او مملوکه ټولو ښځو ته عام دی. لېکن دلته په سياق او سباق سره دا لفظ د منکوحه ښځو لپاره متعين دی. او له دې څخه فقط خپلې منکوحه ښځې مراد دي. نو معلومه سوه چې د غير منکوحه ښځو سره ظهار کېدلای نه سي.

② دويم دليل دا دی چې په مينځه کې د فرج حلت مقصود بالذات نه دی. بلکې ملک يمين مقصود دی. لېکن په منکوحه ښځې کې د فرج حلت مقصود بالذات دی. لهذا غير مقصود بالذات به د مقصود بالذات سره نه لاحق کيږي.

③ دريم دليل دا دی چې د ظهار حکم له طلاق څخه را نقل سوی دی. په دې توګه چې ظهار به د جاهليت په زمانه کې طلاق شمارل کېدی. او څرنګه چې د مملوکه مينځې په حق کې طلاق نسته. نو کوم شی چې د طلاق څخه منقول وي يعني ظهار. هغه به هم د مملوکه مينځې په حق کې نه وي.

## د ظهار يو ځانګړی صورت

فَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً بِغَيْرِ أَمْرِهَا او (که يو څوک) د يوې ښځې سره د هغې له حکم (اجازې) څخه پرته نکاح وکړي ثُمَّ ظَاهَرَ مِنْهَا بيا له هغې څخه ظهار وکړي ثُمَّ أَجَازَتِ النِّكَاحَ (او) بيا ښځه د نکاح اجازه ورکړي فَالظِّهَارُ بَاطِلٌ نو ظهار باطل دی لِأَنَّهُ صَادِقٌ فِي التَّشْبِيْهِ وَقْتَ التَّصَرُّفِ ځکه چې دا سړی د تصرف کولو (ظهار کولو) په وخت کې اد محرمه ښځې سره) په تشبيه ورکولو کې رښتونی دی فَلَمْ يَكُنْ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ نو دا به بده (او غلطه) وينا (خبره) نه وي وَالظِّهَارُ لَيْسَ بِحَقٍّ مِنْ حُقُوْقِهِ حَتَّى يَتَوَقَّفَ او ظهار د نکاح د حقوقو څخه (يو حق) نه دی چې (هغه) پر نکاح) موقوف سي بِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ په خلاف د غاصب څخه د رانيونکي آزادول لِأَنَّهُ مِنْ حُقُوْقِ الْمِلْكِ ځکه چې آزادول د ملکيت له حقوقو څخه (يو حق) دی.

**اللغات:** ﴿يَتَوَقَّفُ﴾ د تفعّل مضارع ده: موقوف کېدل. ﴿إِعْتَاق﴾ د افعال مصدر دی: غلام آزادول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د یو ښځي له اجازې څخه بغیر د هغې سره نکاح وکړي (یعني د ښځي له طرفه یو فضولي د هغې نکاح د دغه سړي سره وکړي)، او بیا دا سړی د ښځي تر اجازه ورکولو مخکي د هغې سره ظهار وکړي، او وروسته ښځه ده ته د نکاح اجازه ورکړي، نو نکاح صحیح کیږي. او ظهار باطلیږي: دلیل دا دی چي دا سړی د ظهار ولو پر موقع په تشبیه ورکولو کي رښتونی دی. ځکه چي دا ښځه رښتیا هم تر اجازه ورکولو مخکي د ده لپاره حرامه وه. لهذا د ظهار رکن یعني د محرمه ښځي سره د خپلي ښځي تشبیه ورکول موجود نه سو. نو د هغه خبره مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا یعني د هغه خبره دروغ او غلطه نه سوه. او ظهار مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ته وايي. لهذا کله چي د ظهار رکن موجود نه سو، نو دا سړی به هم مُظاهر نه وي.

**والظهار ليس بحقوق إلخ:** په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چي دلته که څه هم د ظهار کولو په وخت کي نکاح نسته، لیکن کله چي ښځي د نکاح اجازه ورکړه، نو تر نکاح وروسته ظهار منعقد کېدل پکار دي. د دې په جواب کي فرمايي چي ظهار د نکاح د حقوقو او لوازماتو څخه نه دی. نکاح خو د همېشه اوسېدلو لپاره ده. نه د ظهار کولو لپاره. نو ځکه به د نکاح تر اجازه ورکولو وروسته ظهار نه منعقد کیږي. بلکي ظهار به باطلیږي. دغه مسئلې ته یوه بله نژدې مسئله هم سته هغه دا چي که مثلاً خالد د زید غلام غصب کړي، او پر عُمر یې خرڅ کړي، نو د خالد بیع صحیح نه ده. او که عُمر هغه غلام آزاد کړي. نو د عُمر آزادول هم صحیح نه دي، ځکه چي غلام په حقیقت کي د زید دی. او خالد د هغه له اجازت څخه بغیر خرڅ کړی دی. لهذا د خالد بیع هم صحیح نه ده. او د عُمر آزادول هم صحیح نه دي. لیکن که وروسته زید د بیع اجازه ورکړه، نو بیع هم صحیح کیږي. او غلام هم آزادیږي. د دې وجه دا ده چي آزادول د ملکیت د حقوقو څخه یو حق دي او په شریعت کي د آزادولو ترغیب هم سوی دی. لهذا کله چي هم د بیع صحیح کېدلو په ذریعه د عُمر ملکیت قائم سي، نو غلام به آزادیږي. او ظهار د نکاح د حقوقو څخه نه دی. نو ځکه به تر نکاح وروسته ظهار نه واقع کیږي. نو په دغه مسئله او د مغصوب غلام د آزادولو په مسئله کي فرق سته. لهذا یوه پر بلې قیاسول صحیح نه دي.

## د ټولو ښځو سره په یوه وار ظهار کول

| |
|---|
| **وَمَنْ قَالَ لِنِسَائِهِ: أَنْتُنَّ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي** او کوم څوک چي خپلو ښځو ته ووايي: تاسي (ټوله) پر ما داسي یاست لکه زما د مور شا **كَانَ مُظَاهِرًا مِنْهُنَّ جَمِيعًا** نو هغه به له دې ټولو څخه ظهار کونکی وي لِأَنَّهُ أَضَافَ الظِّهَارَ إِلَيْهِنَّ ځکه چي هغه د دوی (ټولو) وطرف ته د ظهار نسبت کړی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ نو داسي سو لکه هغه چي اد ټولو وطرف ته د طلاق نسبت وکړي وَعَلَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدَةٍ |

كَفَّارَةٌ او پر هغه د هري ښځي لپاره يوه كفاره واجب ده لِأَنَّ الْحُرْمَةَ تَثْبُتُ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدَةٍ ځکه چي حرمت د هري يوې په حق کي ثابت دی وَالْكَفَّارَةُ لِإِنْهَاءِ الْحُرْمَةِ او كفاره د حرمت ختمولو لپاره ده فَيَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِهَا نو د حرمت د تعدد [څو والي] په وجه به كفاره [هم] متعدده كيږي بِخِلَافِ الْإِيلَاءِ مِنْهُنَّ په خلاف د خپلو [ټولو] ښځو څخه د ايلاء كولو لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيهِ لِصِيَانَةِ حُرْمَةِ الْاسْمِ ځکه چي په ايلاء کي كفاره د الله تعالىٰ د نامه د حرمت [عزت] د ساتلو لپاره ده وَلَمْ يَتَعَدَّدْ ذِكْرُ الْاسْمِ او [په ايلاء کي] د الله د نامه تذكره متعدد نه وي [نو كفاره به هم نه متعدده كيږي].

**اللغات:** ﴿إِنْهَاءِ﴾ د افعال مصدر دی: ختمول. ﴿يَتَعَدَّدُ﴾ د تفعّل مضارع ده: څو واره كېدل (يعني ډېر واره يو كار يا يو شی كېدل). ﴿صِيَانَة﴾ د نصر مصدر دی: ساتنه كول (ساتل). حفاظت كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه د يو سړي څلور ښځي وي، او هغه په يوه وار ټولو ته ووايي: أَنْتُنَّ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ (تاسي ټوله پر ما داسي حرامي ياست لكه زما د مور شا). نو هغه د دې ټولو ښځو سره ظهار كوونكی ګرځي: دليل دا دی چي هغه د خپل ټولو ښځو وطرف ته ظهار منسوب كړی دی. نو داسي سو لكه د ټولو وطرف ته چي طلاق منسوب كړي او أَنْتُنَّ طَوَالِقُ ووايي. نو په دې سره په يوه وار پر ټولو ښځو طلاق واقع كيږي، لهذا دلته به هم په يوه وار د ټولو ښځو سره د هغه ظهار ثابتيږي.

**وعليه لكل واحد إلخ:** فرمايي څرنګه چي دلته د ټولو ښځو سره ظهار ثابتيږي، همداسي به پر دغه سړي د هري ښځي له طرفه كفاره هم واجب وي: دليل دا دی چي د ظهار په وجه د هري ښځي په حق كي حرمت ثابت سو. او دا حرمت فقط د كفارې په ذريعه ختميږي. نو ځكه به د هري ښځي له طرفه پر خاوند يوه كفاره واجب وي، د دې لپاره چي هر ښځه د هغه لپاره حلاله وګرځي.

**بخلاف الايلاء إلخ:** فرمايي د دې په خلاف كه يو څوک د خپل ټولو ښځو سره پر يوه ځای ايلاء وكړي. نو په دې صورت كي د ايلاء ختمولو لپاره فقط يوه كفاره واجب ده. او د هري ښځي له طرفه جلا. جلا د كفارهٔ يمين اداء كولو ضرورت نسته: دليل دا دی چي په ايلاء كي ځكه كفاره واجبيږي چي د الله د نامه (قسم) حرمت او تعظيم باقي وساتل سي. او په ايلاء كي فقط يو وار د الله نوم اخيستل كيږي. څو واره نه اخيستل كيږي، نو ځكه به د هغه لپاره فقط يوه كفاره واجبيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِي الْكَفَّارَةِ

## (دا) فصل په (بيان د) كفاره (وركولو) كي دى

**تشريح:** مخكي تر دې مصنف رَحِمَهُ الله د ظهار د حكم يعني د وطي د حرمت تفصيلات بيان كړل. اوس په دې فصل كي هغه شى بيانوي چي د هغه په ذريعه دا حُرمت ختميږي (يعني كفاره).

### كفارهٔ يمين (د ظهار كفاره)

| |
|---|
| قَالَ: وَكَفَّارَةُ الظِّهَارِ عِتْقُ رَقَبَةٍ فرمايي: او كفاره د ظهار يو غلام آزادول دي فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ لېكن كه [مُظاهر] غلام پيدا نه كړي نو [بيا] دوې مياشتې پرلپسې روژه نيول دي فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ لېكن كه [د دې] قدرت [هم] نه لري فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا نو [بيا] شپېتو [۶۰] مسكينانو ته خوراك وركول دي لِلنَّصِّ الْوَارِدِ فِيهِ دهغه آيت په وجه كوم چي په دې باره كي وارد سوى دى فَإِنَّهُ يُفِيدُ الْكَفَّارَةَ عَلَىٰ هٰذَا التَّرْتِيْبِ ځكه چي هغه آيت د همدغه ترتيب مطابق د كفارې [وركولو] فايده [او خبر] وركوي. |

**اللغات:** ﴿مُتَتَابِعَيْنِ﴾ د تفاعل له باب څخه د تثنيه مذكر اسمِ فاعل صيغه ده: پرلپسې (پر له پسې)، مسلسل. بې له څه وقفې. ﴿إِطْعَامُ﴾ د افعال مصدر دى: بل چا ته خوراك وركول (ډوډۍ وركول).

**تشريح:** په دې عبارت كي د كفارهٔ ظهار تفسير او ترتيب ذكر سوى دى. چي د هغه تفصيل دا دى چي د مُظاهر (ظهار كونكي خاوند) لپاره تر ټوله ښه او اعلىٰ كفاره د غلام آزادول دي. لېكن كه مُظاهر پر دې قدرت نه لري، نو پر دويم نمبر مسلسل دوې مياشتې روژه نيول دي. او كه مُظاهر كمزورى وي او د روژو طاقت نه لري، نو اوس آخري درجه دا ده چي هغه به شپېتو (۶۰) مسكينانو ته خوارك (ډوډۍ) وركوي.

صاحب د هدايې فرمايي چي دا حكم او ترتيب د قرآن په دې آيت سره ثابت دى: فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَّتَمَاسَّا. تر هغه وروسته دا حكم سوى دى: فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ

قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا. او تر هغه وروسته متصلاً آخري دا حکم سوی دی: فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا...(الخ). [سورة المجادلة ۳، ۴]

په همدغه آيت سره د کفارهٔ ظهار حکم ثابت دی. او څرنګه چې دلته فَإِنْ لَمْ او فَإِنْ لَمْ کي د "فاء" په ذريعه يو حکم پر بل عطف سوی دی. او فاء د ترتيب لپاره راځي، نه د تخيير لپاره. نو ځکه به د آيت د ترتيب مطابق کفاره اداء کيږي.

## د کفارهٔ ظهار د اداء کولو وخت

قَالَ: وَكُلُّ ذٰلِكَ قَبْلَ الْمَسِيْسِ فرمايي: او دا ټوله کفارې تر وطي مخکي دي وَهٰذَا فِي الْإِعْتَاقِ وَالصَّوْمِ ظَاهِرٌ او دا [حکم] په آزادولو او روژه نيولو کي ښکاره دی لِلتَّنْصِيْصِ عَلَيْهِ ځکه چې پر دې باندي [په آيت کي] صراحت سوی دی وَكَذَا فِي الْإِطْعَامِ او همدارنګه په خوراک ورکولو کي [هم دا حکم دی] لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيْهِ مَنْهِيَّةٌ لِلْحُرْمَةِ ځکه چې کفاره په ظهار کي د حرمت ختمونکې ده فَلَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيْمِهَا عَلَى الْوَطْءِ نو پر وطي د کفارې مخکي کول ضروري دي لِيَكُوْنَ الْوَطْءُ حَلَالًا د دې لپاره چې وطي حلالي وګرځي.

**اللغات:** ﴿مَسِيْس﴾ مصدر دی. له سمع او نصر دواړو څخه راځي، مَسَّ يَمَسُّ مَسًّا و مَسِيْسًا و مِسِيْسٰى: مسه کول. لاس ور وړل. رسېدل (مراد ځني وطي او جماع کول دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د ظهار په کفاراتو کي هره کفاره تر وطي مخکي اداء کول ضروري دي. هغه که إِعْتَاق (د غلام آزادول) وي. يا صِيَام (روژې نيول) وي. يا إِطْعَام (خوراک ورکول) وي: ځکه چې په قرآن کي د إعتاق او صيام سره صراحتاً د مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا قيد ذکر سوی دی. او د إطعام سره که څه هم دا قيد ذکر سوی نه دی، خو دا هم تر وطي مخکي اداء کول ضروري دي. ځکه چې په کفاره سره مقصود د ظهار حرمت ختمول دي. نو په دې وجه تر وطي مخکي کفاره اداء کول ضروري دي. چې وطي حلالي او جائز وګرځي.

## په کفاره کي د جائز غلام بيان

قَالَ: وَتُجْزِئُ فِي الْعِتْقِ الرَّقَبَةُ الْكَافِرَةُ وَالْمُسْلِمَةُ وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى وَالصَّغِيْرُ وَالْكَبِيْرُ فرمايي: او په آزادولو کي کافر. مسلمان. نر. ماده. کوچنی او لوی [هر يو] غلام کافي دی لِأَنَّ اِسْمَ الرَّقَبَةِ يُطْلَقُ عَلٰى هٰؤُلَاءِ ځکه چې پر دې ټولو د رَقَبَة د لفظ اطلاق کيږي [کوم چې په آيت کي ذکر سوی دی] إِذْ هِيَ عِبَارَةٌ عَنِ

الذَّاتِ الْمَرْقُوْقِ الْمَمْلُوْكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي رقبه عبارت ده له هغه ذات څخه کوم چي په هره توګه غلام او مملوک وي ايعني په هر ډول سره ترغلامۍ او ملکيت لاندي وي۱ وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِي الْكَافِرَةِ او امام شافعي په رقبه کافره [کافر غلام] کي زموږ مخالف دی وَيَقُوْلُ: الْكَفَّارَةُ حَقُّ اللهِ تَعَالٰى او فرمايي: چي کفاره د الله حق ده فَلَا يَجُوْزُ صَرْفُهُ إِلٰى عَدُوِّ اللهِ نو د الله د دښمن وطرف ته به د کفارې ګرځول جائز نه وي كَالزَّكَاةِ لکه زکاة [چي کافر ته ورکول جائز نه دي] وَنَحْنُ نَقُوْلُ: الْمَنْصُوْصُ عَلَيْهِ إِعْتَاقُ الرَّقَبَةِ او موږ وايو: پر کوم شي چي نص [آيت] وارد سوی دی هغه رقبه آزادول دي وَقَدْ تَحَقَّقَ او [په کافر غلام سره هم] آزادول ثابتيږي وَقَصْدُهُ مِنَ الْإِعْتَاقِ التَّمَكُّنُ مِنَ الطَّاعَةِ او په آزادولو سره د هغه [کفاره ورکونکي] اراده د الله پر اطاعت قدرت ورکول دي ثُمَّ مُقَارَنَةُ الْمَعْصِيَةِ يُحَالُ بِهِ إِلٰى سُوْءِ اخْتِيَارِهِ بيا د ګناه سره [د کافر غلام] متصل اوسېدل د هغه د بد اختيار وطرف ته منتقل کيږي. ايعني که بيا هم غلام د اطاعت او اسلام پر لاره ولاړ نه سي، نو دا به د هغه پر بدبختۍ او د بدي لاري پر اختيارولو حمل کيږي۱

**اللغات:** ﴿تُجْزِئُ﴾ د افعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي معلومي صيغه ده: کافي کېدل. ﴿مَرْقُوْق﴾ د ضرب له باب څخه مفعول دی: غلام جوړ سوی (تر غلامۍ لاندي). ﴿صَرْف﴾ د ضرب مصدر دی: ګرځول، خرچول (مصرفول). ﴿التَّمَكُّن﴾ د تفعل مصدر دی: قدرت ورکول. ﴿مُقَارَنَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: متصل کېدل، يو ځای کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي په کفارهٔ ظهار کي د إِعْتَاق (غلام آزادولو) حکم هر ډول رقبې ته شامل دی. او په هغه کي د اسلام يا د مذکر او بالغ کېدلو هيڅ قيد او تخصيص نسته. او په کافره، مؤنثه او نابالغه رقبه سره هم زموږ په نيز إعتاق ثابتيږي او کفاره اداء کيږي: دليل دا دی چي رَقَبَة هغه ذات ته وايي، کوم چي په هر ډول سره مملوک او غلام وي. او دا صفت چي څرنګه په مسلمانه او بالغه رقبه کي سته، همداسي په کافره او صغيره رقبه کي هم سته: او څرنګه چي په دې آيت فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ کي لفظ د رَقَبَة مطلق دی، نو ځکه به هر ډول رقبه په دې لفظ کي شامل او داخل وي.

صاحب د هدايې فرمايي چي په مؤنثه او صغيره رقبه کي امام شافعي رَحِمَهُ الله زموږ سره موافق دی. ليکن په کافره رقبه کي هغه زموږ مخالف دی. او د هغه په نيز په کافره رقبه سره کفاره نه اداء کيږي. او دليل دا بيانوي چي کفاره د الله تعالیٰ حق دی. نو د الله د دښمن وطرف ته د هغه منتقل کول جائز نه دي. لکه څرنګه چي زکاة د الله تعالیٰ حق دی. او هغه کافر ته ورکول جائز نه دي.

**وقصده إلخ**: په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰه د دليل (الكفارة حق الله تعالى) جواب ورکوي. حاصل د جواب دا دی چې په رقبه آزادولو سره د کفاره اداء کونکي سړي مقصد همدغه وي چې رقبه د مالک د خدمت څخه نجات ترلاسه کړي او د الله تعالیٰ پر اطاعت قادره سي، او ډېره ممکنه ده چې د دې عمل په وجه د رقبهکافره زړه نرم سي او په اسلام سره مشرفه سي، لیکن که بیا هم هغه اسلام نه راوړي. نو دا به د رقبه کافره پر ګمراهۍ او بد اختیار حمل کیږي، او په دې سره په کفاره اداء کېدلو کي هيڅ فرق نه راځي.

## په کفاره کي د ناجائز غلام تفصیل

وَلَا تُجْزِئُ الْعَمْيَاءُ وَلَا الْمَقْطُوعَةُ الْيَدَيْنِ أَوِ الرِّجْلَيْنِ او نه کافي کیږي [په آزادولو کي] ړنده رقبه [غلام] او هغه چي دواړه لاسونه یا دواړي پښې پرېکړی سوي وي لِأَنَّ الْفَائِتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي [په دوی کي] د منفعت جنس فوت سوی دی وَهُوَ الْبَصَرُ أَوِ الْبَطْشُ أَوِ الْمَشْيُ او هغه دید [الیدل] دي یا نیول دي یا تګ کول دي وَهُوَ الْمَانِعُ او دا [جنس د منفعت فوتېدل له کفارې څخه] مانع دي أَمَّا إِذَا اخْتَلَّتِ الْمَنْفَعَةُ لیکن کله چي منفعت عیبي وي [یعني خلل او یو عیب پکښي راغلی وي] فَهُوَ غَيْرُ مَانِعٍ نو هغه [له کفارې څخه] مانع نه دی حَتَّى يَجُوزُ الْعَوْرَاءُ وَمَقْطُوعَةُ إِحْدَى الْيَدَيْنِ وَإِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مِنْ خِلَافٍ تر دې چي جائز دی یو سترګی غلام [رقبه] او هغه چي د جلا، جلا طرف څخه یې یو لاس او یوه پښه پرېکړی سوې وي لِأَنَّهُ مَا فَاتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي جنس د منفعت فوت سوی نه دی بَلِ اخْتَلَّتْ بلکي عیبي سوي دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتَا مَقْطُوعَتَيْنِ مِنْ جَانِبٍ وَاحِدٍ په خلاف د هغه کله چي یو لاس او یوه پښه دواړه له یوه طرف څخه پرېکړی سوي وي حَيْثُ لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی لِفَوَاتِ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْمَشْيِ ځکه [په دې صورت کي] د تګ کولو د منفعت جنس فوت سوی دی إِذْ هُوَ عَلَيْهِ مُتَعَذِّرٌ ځکه چي د هغه لپاره تګ کول مشکل [استونزمن] دي وَيَجُوزُ الْأَصَمُّ او جائز دی [په آزادولو کي] کوڼ غلام وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يَجُوزَ او قیاس دا دی: چي جائز نه دي وَهُوَ رِوَايَةُ النَّوَادِرِ او همدا د نوادر روایت دی لِأَنَّ الْفَائِتَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي [په هغه کي] جنس د منفعت فوت سوی دی إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّا الْجَوَازَ لیکن موږ استحساناً [هغه] جائز ګرځولی دی لِأَنَّ أَصْلَ الْمَنْفَعَةِ بَاقٍ ځکه چي [په هغه کي] اصل منفعت پاته دی فَإِنَّهُ إِذَا صِيحَ عَلَيْهِ سَمِعَ ځکه کله چي پر هغه چیغه ووهل سي نو [خامخا څه نا څه] اوري حَتَّى لَوْ

كَانَ بِحَالٍ لَا يَسْمَعُ أَصْلًا تر دې که هغه په داسې حالت کې وي چې بالکل نه اوري بِأَنْ وُلِدَ أَصَمَّ وَهُوَ الْأَخْرَسُ په دې توګه چې هغه کوڼ پیدا سوی وي او ګونګی (هم) وي لَا يُجْزِئُهُ نو (د هغه آزادول) کافي نه دي.

**اللغات:** ﴿فَائِتٌ﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، لازمي باب دی: فوتېدونکی (فوت کړی سوی). ﴿جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ﴾ د نفع او فایدې جنس (دلته له منفعت څخه مراد د انسان په بدن کې هغه قوت دی چې په هغه سره انسان یو نفع اخلي او یو کار په اداء کوي، مثلاً دید چې په دې سره انسان د لیدلو نفع اخلي او د لیدني، کتني کار په کوي او داسې نور. جنس د منفعت ختمېدل معنیٰ ده چې بالکل د دغه قوت ختمېدل، مثلاً د لیدلو یا تګ کولو قوت ختمېدل). ﴿بَصَر﴾ دید، بینایي، لیدنه. ﴿إِخْتَلَّتْ﴾ د افتعال ماضي ده: خلل پکښې راتلل (عیبجن کېدل، تاواني کېدل)، خرابېدل. ﴿عَوْرَاء﴾ د أَعْوَر مؤنث دی: هغه چې یو سترګه یې نه وي، یا داغ او ګل په وجه په یوه سترګه نه ویني، (یو سترګی). ﴿صِيْحَ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي مجهول صیغه ده: چیغه وهل، په زوره نعره کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د ظهار په کفاره کې ړنده رقبه (ړوند غلام یا مینځه) آزادول جائز نه دي، همدارنګه هغه رقبه آزادول هم جائز نه دي چې دواړه لاسونه یا دواړې پښې یې نه وي: دلیل دا دی چې په دغه دواړو رقباتو کې د منفعت جنس یعني لیدل او نیول یا تګ کول فوت سوي دي، او د کومې رقبې چې جنس د منفعت فوت سوی وي هغه د هلاک سوې رقبې په درجه کې وي، او هلاک سوې رقبه آزادول جائز نه دي، نو دې رقباتو آزادول به هم جائز نه وي.

**أَمَّا إِذَا إلخ:** د دې حاصل دا دی که د یو رقبې جنس د منفعت په پوره توګه فوت سوی نه وي، بلکې په منفعت کې یې خلل او عیب راغلی وي، نو داسې رقبه آزادول جائز دي، او د منفعت اختلال د کفارې د جواز مانع نه دی، لهذا د هغه رقبې آزادول جائز دي چې یوه سترګه یې نه وي، همدارنګه د هغه رقبې آزادول هم جائز دي چې له یو طرف څخه یې یو لاس پرېکړی سوي وي او له بل طرف څخه یې پښه پرېکړی سوې وي؛ ځکه چې په دې رقباتو کې جنس د منفعت فوت سوی نه دی، بلکې مختل او عیبي سوی دی، او اختلال د جواز مانع نه دی.

**بخلاف ما إذا إلخ:** فرمایي که د رقبې یو لاس او یوه پښه دواړه په یوه طرف کې پرېکړی سوي وي. یعني راسته لاس او راسته پښه یا چپه لاس او چپه پښه یې پرېکړی سوي وي، نو د داسې رقبې آزادول هم جائز نه دي؛ ځکه په دې کې هم جنس د منفعت فوت دی، ځکه چې په داسې حالت کې تګ کول متعذر او ستونزمن دي.

**ويجو الأصم إلخ**: د دې حاصل دا دی چې کڼه رقبه (کوڼ غلام او مینځه) آزادول جائز دي. لېکن قياساً جائز نه دي. او همدا د نوادر روايت دی؛ ځکه چې د ړانده په څېر د کاڼه په حق کې هم جنس د منفعت فوت سوی دی. او لږ څه مخکې دا خبره ذکر سوه چې جنس د منفعت فوتېدل د جواز مانع دي. لېکن استحساناً داسې رقبه آزادول جائز دي. ځکه چې د داسې رقبې أصل منفعت فوت سوی نه دی. بلکې د کوڼوالي په وجه مختل او عيبي سوي دی. همدا وجه ده که په زوره چيغه ووهل نو کوڼ سړی يې هم څه نا څه اوري. معلومه سوه چې د کاڼه انسان أصل منفعت فوت سوی نه دی. بلکې مختل سوی دی. او د مختل منفعت والا رقبه آزادول جائز دي. لېکن که يوه رقبه مور زاده کڼه وي او بالکل هيڅ هم نه اوري. نو د داسې رقبې آزادول جائز نه دي؛ ځکه چې په هغې کې بالکل جنس د منفعت فوت سوی دی.

**فايده**: صاحب د هدايې تر "وَلَدَ أَصَمَّ" وروسته د "وَهُوَ الأَخْرَسُ" په ذکر کولو سره د مور زاده کوڼ علامې او نښې ته اشاره کړې ده. يعني د مور زاده کوڼ علامه دا ده چې هغه به ګونګی وي. (عيني)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| **وَلَا يَجُوزُ مَقْطُوعُ إِبْهَامَيِ الْيَدَيْنِ** او جائز نه دي [هغه رقبه آزادول] چې د دواړو لاسو بټې ګوتې يې پرې کړی سوي وي **لِأَنَّ قُوَّةَ الْبَطْشِ بِهِمَا** ځکه چې د نيولو قوت په همدې دوو ګوتو سره دی [يعني د لاسو د نيولو طاقت د بټو ګوتو سره تعلق لري، ځکه چې د شيانو په نيولو او را اخيستلو کې بټه ګوته يو ځانګړی رول لري] **فَبِفَوَاتِهِمَا يَفُوتُ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ** نو د دې واړو ګوتو په فوتېدلو سره به جنس د منفعت فوتيږي **وَلَا يَجُوزُ الْمَجْنُونُ الَّذِي لَا يَعْقِلُ** او جائز نه دي [په آزادولو کې] هغه لېونی [رقبه] کوم چې [هيڅ] عقل نه لري **لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْجَوَارِحِ لَا يَكُونُ إِلَّا بِالْعَقْلِ** ځکه چې له اندامو څخه فايده اخيستل فقط په عقل سره کيږي **فَكَانَ فَائِتَ الْمَنَافِعِ** نو دا [رقبه ډېرو] منافعو لره فوتونکې سوه **وَالَّذِي يُجَنُّ وَيُفِيقُ** او هغه رقبه کوم چې په جنون [هم] مبتلا کيږي او په سد کې [هم] راځي **يُجْزِئُهُ** نو هغه کافي ده اد کفارې لپاره] **لِأَنَّ الِاخْتِلَالَ غَيْرُ مَانِعٍ** ځکه چې د منفعت مختل کېدل [د کفارې له جواز څخه] مانع نه دی **وَلَا يُجْزِئُ عِتْقُ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ** او د مدبر او أم ولد [رقبې] آزادول کافي نه دي **لِاسْتِحْقَاقِهِمَا الْحُرِّيَّةَ بِجِهَةٍ** ځکه چې دا دواړه په يوه درجه سره د آزادۍ مستحق دي **فَكَانَ الرِّقُّ فِيهِمَا نَاقِصًا** نو رقيت به په دوی دواړو کې ناقص وي **وَكَذَا الْمُكَاتَبُ الَّذِي أَدَّى بَعْضَ الْمَالِ** او همدا رنګه [کافي نه دي آزادول د] هغه مکاتب چې څه |

مال یې اداء کړی وي لِأَنَّ إِعْتَاقَهُ يَكُونُ بِبَدَلٍ ځکه چي د هغه آزادول په عوض سره وګرځي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يُجْزِئُهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دی: چي [د هغه آزادول] کافي دي لِقِيَامِ الرِّقِّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي [په هغه کي] په هر اعتبار سره رقیت موجود دی وَلِهٰذَا تَقْبَلُ الْكِتَابَةُ الْاِنْفِسَاخَ لهٰـ همدې وجهي عقد کتابت فسخ کېدل قبلوي بِخِلَافِ أُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ وَالتَّدْبِيرِ په خلاف د اُم ولد کېدلو او د مُدبّر کېدلو لِأَنَّهُمَا لَا يَحْتَمِلَانِ الْاِنْفِسَاخَ ځکه چي دا دواړه فسخ کېدل نه زغمي انه قبلوي]

**اللغات:** ﴿إِبْهَام﴾ بټه ګوته. غټه ګوته. ﴿بَطْش﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه مصدر دی: ټينګ نيول (په سختي سره نيول). ﴿جَوَارِح﴾ جسماني اندامونه. ﴿يُجَنُّ﴾ د نصر له باب څخه د مضارع مجهولي صيغه ده: لېونی کېدل. عقل ختمېدل. ﴿يُفِيقُ﴾ د افعال له باب څخه د مضارع معلومي صيغه ده: جوړېدل. په سد کي راتلل. مرض ختمېدل. ﴿إِخْتِلَال﴾ د افتعال مصدر دی: خلل پکښي راتلل. عيبي کېدل. تاواني کېدل. ﴿رِقّ﴾ غلامي. غلامتوب (رقيت). ﴿إِنْفِسَاخ﴾ د انفعال مصدر دی: فسخ کېدل (زايلېدل. ختمېدل).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د کوم غلام يا مينځي چي د دواړو لاسو بټې ګوتي نه وي. نو داسي رقبه (غلام او مينځه) په کفاره کي آزادول جائز نه دي: دليل دا دی چي د دواړو بټو ګوتو په نشتوالي سره د رقبې د نيولو قوت ختميږي. نو د نيولو د قوت په نشتوالي سره جنس د منفعت ختميږي. او جنس د منفعت فوتېدل د جواز مانع دي. نو ځکه به د داسي رقبې آزادول جائز نه وي.

**ولايجوز المجنون الخ:** فرمايي د لېوني غلام يا مينځي آزادول هم جائز نه دي: دليل دا دی چي له اندامونو څخه نفع اخيستل بغير له عقل څخه ممکن نه دي. نو دا هم فائتُ المنفعة سو. لېکن کومه رقبه چي کله په حالت د لېونتوب کي وي. او کله بيا جوړه وي او عقل يې پر ځای وي. نو د هغه آزادول جائز دي: دليل دا دی چي د کله نا کله جوړېدلو په وجه هغه فقط مختلُ المنفعة سوه. او د مختل المنفعة آزادول صحيح دي.

**ولايجزئ عتق المدبر:** د دې حاصل دا دی چي مدبر او اُم ولد رقبه په کفاره کي آزادول جائز نه دي: دليل دا دی چي په قرآن کي فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ ذکر سوي دي. او رَقَبَة مطلق ده. او مطلق چي کله ذکر سي. نو له هغه څخه فرد کامل مراديږي. او مدبر او اُم ولد د رقبې فرد کامل نه دي. ځکه چي مدبر د "تدبير" په وجه د آزادېدلو مستحق سوی دی. او اُم ولد هم د "استيلاد" په وجه د آزادی مستحقه ده. لهذا معلومه

سوه چې په دې دواړو کې د رقیت معنیٰ ناقصه ده. نو د مِنْ کُل وجه مرقوق نه کېدلو په وجه د دوی آزادول جائز نه دي.

وكذا المكاتب: فرمايي چې د ظهار په کفاره کې د هغه مکاتب آزادول هم جائز نه دي چې د بدل کتابت څه حصه يې اداء کړې وي؛ دليل دا دی چې د هغه آزادول به په عوض سره وګرځي (يعني څومره پيسې چې يې اداء کړې وي، هغومره آزادي به يې د خپلو پيسو په بدله کې راسي، نه د آزادونکي). او عوض او بدل د قُربت (عبادت) معنیٰ باطلوي. همدا ظاهر روايت دی. (او بل دليل دا دی چې کله مکاتب څه پيسې [يعني د بدل کتابت څه حصه] اداء کړي، نو ګواکي هغومره حصه آزاد سو. لهذا هغه ناقص غلام سو، نو ځکه به يې آزادول جائز نه وي).

په دې سلسله کې حسن بن زياد د امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل کړی دی چې داسي مکاتب آزادول هم جائز دي؛ دليل دا دی چې تر څو مکاتب خپل ټوله بدل کتابت اداء نه کړي، تر هغه وخته پوري مکاتب مِنْ کُل وجه رقيق او غلام وي. لکه څرنګه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ" (يعني تر څو چې پر مکاتب يو درهم هم پاته وي. هغه غلام دی). همدا وجه ده که مکاتب تر څه بدل کتابت اداء کولو وروسته کتابت فسخ کول وغواړي. نو هغه يې فسخ کولای سي. معلومه سوه چې په هغه کې رقيت باقي پاته دی. نو ځکه به د هغه آزادول هم جائز او صحيح وي.

د دې په خلاف "استيلاد" او "تدبير" د فسخ کېدلو احتمال نه لري. او په هغوی کې رقيت هم ناقص پاته وي. نو ځکه به د أم ولد او مدبر آزادول جائز نه وي.

## مکاتب په کفاره کې آزادول

فَإِنْ أَعْتَقَ مُكَاتَبًا لَمْ يُؤَدِّ شَيْئًا او که [مظاهر] يو داسي مکاتب آزاد کړي چې هغه هيڅ شي اداء کړی نه وي جَازَ نو جائز دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لَهُ: أَنَّهُ اسْتَحَقَّ الْحُرِّيَّةَ بِجِهَةِ الْكِتَابَةِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د کتابت په وجه سره دا غلام د آزادۍ مستحق سوی دی فَأَشْبَهَ الْمُدَبَّرَ نو هغه د مدبر سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّ الرِّقَّ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او زموږ دليل دا دی: چې

[په هغه کې] په هره توګه رقيت موجود دی عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه [مخکې] چې مونږ بيان کړه وَلِقَوْلِهٖ ﷺ [1]: اَلْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ [همدارنګه] د نبي ﷺ د دې قول په وجه چې: مکاتب [تر هغه وخته] غلام دی تر څو چې پر هغه يو درهم [هم] پاته وي وَالْكِتَابَةُ لَا يُنَافِيْهِ او کتابت [مکاتب جوړول] د آزادۍ منافي نه دی فَإِنَّهٗ فَكُّ الْحَجْرِ ځکه چې کتابت [له غلام څخه] د بنديز ليرې کول دي بِمَنْزِلَةِ الْإِذْنِ فِي التِّجَارَةِ [او کتابت] د تجارت د اجازت په درجه کې دی إِلَّا أَنَّهٗ بِعِوَضٍ خو هغه [کتابت] د عوض په بدله کې دی [يعني کتابت د مال په عوض کې آزادولو ته وايي] فَيَلْزَمُ مِنْ جَانِبِهٖ نو ځکه به د مالک له طرفه لازم وي وَلَوْ كَانَ مَانِعًا او که کتابت [يعني که مکاتب جوړول له إعتاق څخه] مانع وی يَنْفَسِخُ مُقْتَضَى الْإِعْتَاقِ نو [بيا] به د إعتاق په تقاضا سره کتابت فسخ کيږي إِذْ هُوَ يَحْتَمِلُهٗ ځکه چې هغه د فسخ کېدلو احتمال لري إِلَّا أَنَّهٗ تُسَلَّمُ لَهُ الْأَكْسَابُ وَالْأَوْلَادُ خو [د مکاتب] ګټه او اولاد به مکاتب ته سپارل کيږي لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي حَقِّ الْمَحَلِّ بِجِهَةِ الْكِتَابَةِ ځکه چې آزادي د دغه محل په حق کې د کتابت په وجه سره ده أَوْ لِأَنَّ الْفَسْخَ ضَرُوْرِيٌّ لَا يَظْهَرُ فِيْ حَقِّ الْوَلَدِ وَالْكَسْبِ يا ځکه چې فسخ ضرورتاً [د مجبورۍ په وجه] ثابته ده چې هغه به د بچي او ګټې په حق کې نه ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿فکّ﴾ د سمع مصدر دی: ماتول، خلاصول، ليرې کول. الحِجْر: پابندي، بنديز. فکّ الحِجْر: له غلام څخه پابندي او بنديز ليرې کول (پوره ته کول). ﴿أکساب﴾ جمع د کِسْبٌ ده: ګټه (ګټلی مال). ﴿تُسَلَّمُ﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع صيغه ده: سپارل (ورسپارل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د ظهار په کفاره کې زمونږ په نيز داسې مکاتب آزادول جائز دي چې هغه د بدل کتابت هيڅ حصه اداء کړې نه وي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د داسې مکاتب آزادول جائز نه دي.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی، مکاتب پر مدبر قياسوي، يعني څرنګه چې د "تدبير" په وجه مدبر د آزادۍ مستحق ګرځي، او د هغه په رقيت کې کمتوب راځي، همدارنګه د عقد کتابت په وجه مکاتب هم د آزادۍ مستحق ګرځېدلی دي، او د هغه په رقيت کې کمي راغلې ده، نو د مدبر په څېر به د هغه آزادول هم جائز نه وي.

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب العتق، باب في المكاتب يؤدى بعض كتابته، حديث رقم: ۳۹۲۶.

**زموږ دلیل**: دا دی چي تر څو مکاتب د بدلِ کتابت هیڅ حصه اداء کړي نه وي. تر هغه مکاتب مِنْ کُل وجه رقیق (مکمل غلام) وي. او بیا د مخکني حدیث "اَلمُکَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ" په وجه هم پر مکاتب د رقیت او غلامۍ مُهر لګېدلی دی. لهذا هغه شرعاً مکمل غلام دی. نو ځکه به د هغه آزادول جائز وي.

**والکتابة لاینافیه إلخ**: مخکي ذکر سوه چي کله مکاتب څه بدل کتابت اداء کړي نو دا د آزادۍ منافي دي (یعني د داسي مکاتب آزادول جائز نه دي). لېکن له غلام څخه فقط مکاتب جوړول د آزادۍ منافي نه دي. ځکه چي په کتابت کي هم د غلامیت (رقیت) لیري کول دي (لکه په آزادي کي چي د غلامیت لیري کول سته). نو څرنګه چي د تجارت اجازت ورکول د غلامیت منافي نه دیي. همداسي مکاتب جوړول هم د آزادۍ منافي نه دي. لېکن څرنګه چي دا (کتابت) د قیمت او مال په عوض کي آزادول دي. نو ځکه به دا د مالک له طرفه لازم وي (یعني هغه به خامخا مکاتب غلام آزادول غواړي. ځکه چي هغه ته پیسې ورکول کیږي). که هغه د کتابت فسخ کېدل وغواړي. نو د مکاتب له رضا څخه بغیر یې فسخ کولای نه سي. لېکن څرنګه چي د تجارت اجازت د مالک پر ذمه لازم نه دی. نو ځکه هغه د مَأْذُوْن فی التِّجَارة غلام له رضا څخه بغیر اجازت ختمولای سي. او غلام له تجارت څخه منع کولای سي. ځکه چي اجازت په خپله د مالک په لاس کي دي. د هغه پر ذمه لازم نه دی.

**ولو کان مانعا إلخ**: اوس ذکر سوه چي مکاتب جوړول د آزادولو منافي نه دي. لېکن که بیا هم هغه د آزادلو منافي وي. نو هم د مکاتب پر آزادېدلو هیڅ اثر نه پرېوځي. ځکه کله چي هم مُظاهر یو مکاتب آزادوي. نو د آزادولو د تقاضا په وجه به تر آزادېدلو مخکي. مخکي عقدِ کتابت فسخ کیږي. او هغه به مکمل غلام جوړیږي. او د مکمل غلام آزادول جائز دي.

**إلّا انه یسلم إلخ**: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي کله تر آزادېدلو مخکي عقدِ کتابت فسخ کیږي. نو باید د مکاتب د عقدِ کتابت د زماني ګټه او بچی د هغه د مالک وي (ځکه چي د عقدِ کتابت په وجه هغه رقیق او غلام سو. او د غلام ټوله شیان د خپل مالک وي). لکه څرنګه چي مالک مَأْذُوْن فی التِّجَارة غلام آزاد کړي. نو د هغه ګټه او بچی د خپل مالک وي. لهذا د دغه مکاتب ګټه او بچی هم د مالک په ملکیت کي راتلل پکار دي. نو د هغه جواب ورکوي چي دلته آزادي د مکاتب کېدلو په وجه سره ده. نو ځکه به د عقد کتابت (مکاتب کېدلو) د زماني بچی او ګټه ټوله د مکاتب وي. او مالک ته به نه ور کول کیږي.

**ولأن الفسخ:** دويم جواب دا دی چې دلته په دې مسئلې کې د مجبورۍ او ضرورت په وجه تر آزادۍ مخکې، مخکې کتابت فسخ سوی دی (چې هغه ته اقتضاء فسخ کېدل وايي). لهذا څومره چې ضرورت او مجبوري وي، فقط د هغه اعتبار به کيږي، او د بچي او ګټي په حق کې به کتابت نه فسخ کيږي (لِأَنَّ الضَّرُوْرَةَ تَتَقَدَّرُ بِقَدرِهَا)، نو ځکه به دا دواړه شيان فقط د مکاتب وي. او مالک ته به نه ورکول کيږي.

**اصول:** اصول دا دی چې د کتابت په زمانه کې چې کوم مال مکاتب وګټي. تر آزادېدلو وروسته به هغه ټوله مکاتب ته ورکول کيږي، نه مالک ته. مالک ته به فقط بدل کتابت ورکول کيږي.

## پلار يا زوی د کفارې په نيت رانيول

| |
|---|
| وَإِنْ اشْتَرَى أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ او که [مظاهر] خپل پلار يا خپل زوی رانيسي يَنْوِي بِالشِّرَاءِ الْكَفَّارَةَ [او] په رانيولو سره يې نيت د کفارې [اداء کولو] وي جَازَ عَنْهَا نو د کفارې څخه جائز دي [يعني د هغه په کفاره کې د دې دواړو آزادول جائز دي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ او پر همدغه اختلاف د قسم کفاره ده وَالْمَسْأَلَةُ تَأْتِيكَ فِي كِتَابِ الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللهُ او دا مسئله به انشاء الله تعالیٰ په کتاب الأيمان کې تا ته راسي. |

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د کفارې اداء کولو په نيت خپل پلار يا خپل زوی رانيسي (کوم چې د يو بل سړي په ملکيت کې وي)، نو زموږ په نيز د هغه کفاره اداء کيږي (ځکه که څه هم په دې کې د قرابت او د ذی رحم محرم اړخ سته، ليکن هغه د کفارې په نيت رانيولی دی)، ليکن د ائمه ثلاثه وو په نيز د هغه کفاره نه اداء کيږي. زموږ او د دوی دا اختلاف د قسم په کفاره کې هم دی، چې د هغه پوره تفصيل او تشريح به انشاء الله په کتابُ الأيمان کې ذکر سي.

## د مشترک غلام يوه حصه آزادول

| |
|---|
| فَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ وَهُوَ مُوسِرٌ او که [مظاهر] د مشترک غلام نيمه حصه آزاده کړي حال دا چې هغه [مظاهر] مالدار [هم] وي وَضَمِنَ قِيمَةَ بَاقِيهِ او د پاته [نيمي] حصې ضامن سي لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ نو دا [إعتاق] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دی وَيَجُوزُ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو په نيز جائز دی لِأَنَّهُ يَمْلِكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ بِالضَّمَانِ ځکه چې هغه به د ضامن کېدلو په وجه د خپل ملګري |

---

۞ القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۶۳۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۵۵]

اشريک ا د حصې مالک وي فَصَارَ مُعْتِقًا كُلَّ الْعَبْدِ عَنِ الْكَفَّارَةِ نو هغه په کفاره کي د ټوله غلام آزادونکی سو وَهُوَ مِلْكُهٗ او دا غلام د هغه ملکيت دی ايعني آزادونکی سړی (مظاهر) د دې غلام مالک دی ا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا په خلاف د هغه صورت کله چي آزادونکی تنګ لاسی اغریب ا وي لِأَنَّهٗ وَجَبَ عَلَيْهِ السِّعَايَةُ فِي نَصِيبِ الشَّرِيكِ ځکه چي اپه دې صورت کي ا پر غلام د ادويم ا شريک په حصه کي کوښښ کول ضروري سو فَيَكُونُ إِعْتَاقًا بِعِوَضٍ نو دا به په عوض سره آزادول وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ نَصِيبَ صَاحِبِهِ يَنْتَقِصُ عَلَى مِلْكِهٖ د امام صاحب دليل دا دی: چي د دې اآزادونکي ا سړي د ملګري حصه به د هغه په ملکيت کي ناقصه سي ايعني کله چي آزادونکی مشترک غلام آزاد کړي، نو د شريک په حصه کي به نقص راسي ا ثُمَّ يَتَحَوَّلُ إِلَيْهِ بِالضَّمَانِ بيا به په ضمان اضامن کېدلو ا سره د ده اآزادونکي ا وطرف ته نقل سي ايعني تر نقص وروسته به دآزادونکي د ضمان په وجه دا حصه دآزادونکي وطرف ته نقل سي ا وَمِثْلُهٗ يَمْنَعُ الْكَفَّارَةَ او داسي کېدل اد ظهار ا له کفارې څخه مانع دي ايعني په دې توګه دظهار کفاره اداء کول ممنوع دي ا.

**اللغات**: ﴿السِّعَايَةُ﴾ دفتح مصدر دی: کوښښ کول (زيار ايستل، خواري کښل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مظاهر دظهار په کفاره کي مشترک غلام آزاد کړي (کوم چي د ده او د خپل ملګري په مينځ کي مشترک وي)، او د خپل ملګر د حصې د قيمت ضمانت واخلي، اوس د دې إعتاق (آزادولو) څه حکم دی؟ په دې سلسله کي به تر ټولو مخکي د مُعتق (آزادونکي) يعني د مظاهر حالت ته کتل کيږي، که هغه غريب او تنګ لاسی وي، نو د ټولو په نېز غلام نه آزاديږي، لېکن هغه مالدار وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، د صاحبينو په نېز إعتاق جائز دی، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دی.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي کله مظاهر د خپلي حصې نصف غلام آزاد کړی او د شريک (ملګري) د حصې د قيمت ضامن سو، نو ګواکي هغه د شريک حصې هم مالک سو، لهذا په دې توګه هغه د ټوله غلام آزادونکی سو، نو ځکه به د هغه إعتاق (آزادول) جائز وي.

ها! که مُعتق (مظاهر) غريب او تنګ لاسی وي، نو په دې صورت کي په داسي کولو سره غلام نه آزاديږي، ځکه چي اوس به پر غلام دا واجب وي چي هغه د خپل دويم مالک د حصې قيمت وګټي او اداء يې کړي، ځکه چي د هغه مُعتق غريب دی، نو په دې صورت کي به دا إعتاق بالعوض وګرځي

(کوم چې څه مخکې د مکاتب په مسئله کې تېر سو)، او إعتاق بالعوض په شریعت کې معتبر نه دی، لهذا د مُعتق د غربت او تنګلاسی په صورت کې به هم إعتاق هم جائز نه وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې کله مُعتق د خپلې حصې نصف آزاد کړی، نو د هغه د شریک حصه له نصف څخه څه کمه سوه، ځکه چې د غلام رقیت په ټوله مجموعه کې وو، نه په نصف کې، لهذا اوس د شریک په نصف کې ملکیت باقي پاتېدل مشکل سو، او همدې ته "نقص" وايي، اوس که څه هم مُعتق خپل شریک ته د دې حصې قیمت ورکړي او غلام ځنې رانسي، نو هم هغه نقصان باقي پاتیږي، ځکه چې په هغه کې مخکې نقصان راغلی دی، لهذا هغه نقصان به پاته وي، او داسي به ګڼل کیږي چې معتق (مظاهر) کامل غلام نه دی آزاد کړی، بلکې تر هغه یې څه ناقص آزاد کړی دی، حالانکې د إعتاق د جواز لپاره د کامل او مکمل غلام آزادول ضروري دي، نو ځکه به دلته د امام صاحب په نېز إعتاق جائز نه وي.

## په کفاره کې په نصف، نصف سره خپل غلام آزادول

وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ او که [مظاهر] په خپله کفاره کې د خپل غلام نیمه حصه آزاده کړي ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيَهِ عَنْهَا بیا د هغه پاته حصه [هم] په کفاره کې آزاده کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ أَعْتَقَهُ بِكَلَامَيْنِ ځکه چې هغه [ګواکي] په دوه واره کلام کولو سره غلام آزاد کړی دی وَالنُّقْصَانُ مُتَمَكِّنٌ عَلَى مِلْكِهِ بِسَبَبِ الْإِعْتَاقِ بِجِهَةِ الْكَفَّارَةِ او هغه نقصان کوم چې د آزادونکي سړي [مظاهر] په ملکیت کې داخل سوی دی هغه په کفاره کې د آزادولو په وجه دی وَمِثْلُهُ غَيْرُ مَانِعٍ او داسې نقصان [د کفارې له جواز څخه] مانع نه دی كَمَنْ أَضْجَعَ شَاةً لِلْأُضْحِيَةِ فَأَصَابَ السِّكِّينُ عَيْنَهَا لکه یو څوک چې د قرباني کولو لپاره پسه پرېږ باسي او چاړه د هغه پر سترګه ولګیږي [نو د دې پسه قرباني جائز ده] بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه [مسئلې] کوم چې مخکې تېره سوه لِأَنَّ النُّقْصَانَ تَمَكَّنَ عَلَى مِلْكِ الشَّرِيكِ ځکه چې [هلته] د شریک په ملکیت کې نقصان داخل سوی [او پیدا سوی] دی وَهَذَا عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ ✽ او دا تفصیل د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر أصول دی أَمَّا عِنْدَهُمَا فَالْإِعْتَاقُ لَا يَتَجَزَّأُ لیکن د صاحبینو په نېز آزادول حصه، حصه [ټوټه، ټوټه] نه کیږي [یعني داسي نه سي کېدلای چې یو وار د غلام یوه حصه آزاده سي، او بله وار د هغه بله حصه آزاده سي] فَإِعْتَاقُ النِّصْفِ إِعْتَاقُ الْكُلِّ نو به د نیم

✽ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:۱، ص:۴۵۹)، وكذا في الدر المختار (ج:۲، ص:۶۲۹). [القول الراجح: ۳۵۶].

اغلام [آزادول د ټوله اغلام [آزادول وي فَلَا يَكُونُ إِعْتَاقًا بِكَلَامَيْنِ نو دا به په دوه واره كلام كولو سره آزادول نه وي.

**اللغات**: ﴿أَضْجَعَ﴾ د انعال ماضي ده: پرې ايستل (پرې باسل). ﴿لَا يَتَجَزَّى﴾ د تفعّل له باب څخه دنفي صيغه ده: ټوكړه ټوكړه كېدل. حصه حصه كېدل. پر څو حصو تقسيمېدل.

**تشريح: صورتِ د مسئلې**: دا دى كه چيري يو سړي د ظهار په كفاره كي اول فقط نيم غلام آزاد كړي، او تر هغه وروسته بيا د هغه بل نصف آزاد كړي، نو دا إعتاق جائز دى. يعني كفاره اداء كيږي. دا جواز استحساناً دى. كنې د قياس مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز إعتاق ناجائز دى. لكه په مشترك غلام كي چي مخكي د عدمِ جواز حكم تېر سو. ځكه چي په دويم نصف (نصفِ آخر) كي نقصان راغلى.

د استحسان وجه دا ده چي دغه سړي په دوه واره كلام كولو سره غلام آزاد كړى دى. او كوم نقصان چي په دويم نصف كي راغلى دى، په هغه كي هيڅ حرج نسته، ځكه چي هغه نقصان د همدغه معتِق (آزادونكي سړي) په ملكيت كي يعني په يوه ملكيت كي واقع سوى دى، او د إعتاق او كفارې په وجه سره واقع سوى دى، او داسي نقصان د كفارې له جواز څخه مانع نه دى. لكه يو سړى چي د قرباني لپاره پسه پر ځمكه پرې باسي، او د پسه پر سترګه چاړه ولګيږي او سترګه يې ختمه سي، نو دا نقصان له قربانۍ څخه مانع نه دى.

د دې په خلاف په تېره سوې مسئله كي نقصان د شريك په ملكيت كي پيدا سوى وو (نه د معتِق په ملكيت كي)، نو هغه په دې وجه مانع وو.

دا ټوله تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله د أصول او مسلک مطابق دى، او څرنګه چي د صاحبينو په نيز إعتاق نه متجزي كيږي (يعني داسي نه سي كېدلاى چي يو وار د غلام يوه حصه آزاده سي، او تر هغه وروسته بله حصه آزاده سي)، نو په دې وجه كله چي دغه سړي د خپل غلام نصف آزاد كړى، نو په هغه ګړي ټوله غلام آزاد سو، او په يوه كلام سره معامله پوره سوه، او كفاره اداء سوه.

## د پورتنۍ مسئلې د اختلاف ثمره

وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ او كه چيري [مظاهر] په خپله كفاره كي د خپل غلام نيمه حصه آزاده كړي ثُمَّ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا بيا د خپل هغه ښځي سره جماع وكړي چي ظهار يې ځني كړى وي ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيَهُ بيا د غلام پاته [نيمه] حصه آزاده كړي لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ نو د امام صاحب

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في فتح القدير (ج:٤، ص:١٠١)، وكذا في رد المحتار (ج:٢، ص:٦٣٠). [القول الراجح ج:١، ص:٣٥٧]

رَحِمَهُ الله په نیز دا [إعتاق] جائز نه دي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نیز إعتاق متجزي کیږي وَشَرْطُ الْإِعْتَاقِ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْمَسِيْسِ بِالنَّصِّ او د آیت پر بناء د إعتاق شرط دا دی چي هغه به تر جماع مخکي وي وَإِعْتَاقُ النِّصْفِ حَصَلَ بَعْدَهُ حالانکي [دلته] د نیم [غلام] آزادول تر جماع وروسته واقع سوی دی وَعِنْدَهُمَا إِعْتَاقُ النِّصْفِ إِعْتَاقُ الْكُلِّ او د صاحبینو په نیز د نیم آزادول د ټوله [غلام] آزادول دي فَحَصَلَ الْكُلُّ قَبْلَ الْمَسِيْسِ نو ټوله [غلام آزادول] تر جماع مخکي واقع سو نو ځکه به إعتاق او کفاره جائز وي]

**اللغات:** ﴿يَتَجَزّٰى﴾ د تفعّل له باب څخه د مضارع صیغه ده: ټوکره ټوکره کېدل. حصه حصه کېدل، پر څو حصو تقسیمېدل. ﴿مَسِيْس﴾ له نصر او سمع دواړو څخه مصدر دی: مسه کول (مراد څني جماع ده).

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړی د ظهار په کفاره کي خپل نیم (نصف) غلام آزاد کړي. او بیا د خپلي ښځي سره وطي وکړي، او تر هغه وروسته پاته نیم غلام آزاد کړي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دا إعتاق جائز نه دی، او د صاحبینو په نیز جائز دی.

**د امام صاحب:** دلیل دا دی چي د هغه په نیز په إعتاق کي تجزی کېدای سي (یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز عتق حصه، حصه کېدای سي). لهذا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به د نیم غلام آزادول (إعتاق) د کُل غلام آزادول نه وي. او د إعتاق شرط دا دی چي هغه به تر جماع کولو مخکي وي. ځکه چي الله تعالیٰ فرمایلي دي: فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا. او دلته نیم غلام تر جماع وروسته آزاد سوی دی. نو ځکه به جائز نه وي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي د هغو په نیز إعتاق متجزي کېدای نه سي. نو د نیم غلام آزادول به د ټوله غلام آزادول وي. لهذا د صاحبینو په نیز دلته تر جماع مخکي ټوله غلام آزاد سوی دی. نو ځکه به إعتاق صحیح او جائز وي.

## په کفاره کي د روژو نیولو بیان

وَإِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُظَاهِرُ مَا يَعْتِقُ او کله چي ظهار کونکی داسي شی [غلام] پیدا نه کړي چي آزاد یې کړي فَكَفَّارَتُهُ صَوْمُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو [بیا] د هغه کفاره دوې میاشتي پرلپسې [مسلسل] روژه نیول دي لَيْسَ فِيْهِمَا شَهْرُ رَمَضَانَ وَلَا يَوْمُ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمُ النَّحْرِ وَلَا أَيَّامُ التَّشْرِيْقِ چي په هغه دوو میاشتو کي به د

رمضان میاشته نه وي او نه به [په هغو کې] د کوچني او لوی اختر ورځ او نه به د تشریق ورځې وي أما التتابع فلأنه منصوص عليه کوم چې پرلپسې روژه نیول دي نو ځکه چې پر هغه آیت وارد سوی دی وشهر رمضان لا يقع عن الظهار او د رمضان میاشته له ظهار ځخه نه واقع کیږي لما فيه من إبطال ما أوجبه الله ځکه چې په دې کې د هغه شي باطلول دي کوم چې الله واجب کړی دی والصوم في هذه الأيام منهي عنه او روژه په دغه ورځو [د تشریق او اخترونو] کي منع کړی سوې ده فلا ينوب عن الواجب الكامل نو [دې ورځو روژه] به د کامل واجب قائم مقام نه کیږي.

**اللغات:** ﴿مُتَتَابِعَيْنَ﴾ د تفاعل له باب ځخه د تثنیه اسم فاعل صیغه ده: پرلپسې، مسلسل، بې له وقفې. ﴿مَنْهِيٌّ﴾ د فتح له باب ځخه اسمِ مفعول دی: منع کړی سوی، ممنوع. ﴿لَا يَنُوْبُ﴾ د نصر له باب ځخه د نفي صیغه ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مُظاهر د غلام پر آزادولو قدرت نه لري، په دې توګه چې غلام نه پیدا کیږي، یا غلام خو پیدا کیږي، لیکن د ده سره خوشمړي (پیسې) نه وي چې غلام په رانیسي، نو په دې صورت کي د هغه کفاره دا ده چې دوې میاشتي به پرلپسې روژه نیسي، او د دې دوو میاشتو په مینځ کي به نه د رمضان میاشته وي، او نه به د کوچني اختر، لوی اختر او د أیامِ تشریق ورځې وي.

صاحب د هدایې فرمایي چې تتابع (پرلپسې والی) ځکه شرط او ضروري دی چې په دې آیت فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ کي تتابع لازم او ضروري ګرځول سوی دی، نو په دې وجه تتابع شرط وي. او د دوو میاشتو په مینځ کي د رمضان د میاشتي نه کېدل (نشتوالی) ځکه ضروري دی چې که په رمضان کي د ظهار روژې واقع سي، نو هغه شی به باطل سي کوم چې الله تعالیٰ فرض کړی دی. او دا ښکاره خبره ده چې بنده ته د دې هیڅ حق نسته چې د الله فرض کړی سوی شی باطل کړي. نو ځکه به په هغه دوو میاشتو کي روژې نیول ضروري وي چې په مینځ کي یې د رمضان میاشت نه وي.

او د أیامِ تشریق او د اخترونو د ورځو نشتوالي ځکه ضروري دی، چې په دې ورځو کي له روژې نیولو ځخه منع سوې ده، لکه څرنګه چې د ابن عباس رضي الله عنهما په حدیث کي ذکر سوي دي: لَا تَصُوْمُوْا فِيْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ فَإِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَ شُرْبٍ وَّ بِعَالٍ (یعني په دې ورځو کي روژه مه نیسئ! ځکه چې دا د خوراک، څښاک او جماع کولو ورځې دي).

## د کفارې د روژو په مینځ کې د جماع کولو حکم

وَإِنْ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا فِي خِلَالِ الشَّهْرَيْنِ بیا که [مظاهر] د دوو میاشتو په دوران کې د هغې ښځې سره جماع وکړي چې د هغې ښځه یې ظهار کړې وي لَيْلًا عَامِدًا أَوْ نَهَارًا نَاسِيًا برابره ده که] د شپې قصداً [جماع وکړي] یا د ورځې په هېره [جماع وکړي] اِسْتَأْنَفَ الصَّوْمَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ✽ نو هغه به د طرفینو په نېز له نوي سره [له شروع ځخه] روژې نیسي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا يَسْتَأْنِفُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې له شروع ځخه به روژې نه نیسي لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ التَّتَابُعَ ځکه چې [دلته] وطي له تتابع ځخه مانع نه دي إِذْ لَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ ځکه چې په هغه سره روژه نه فاسدېږي وَهُوَ الشَّرْطُ او همدا شرط دي وَإِنْ كَانَ تَقْدِيمُهُ عَلَى الْمَسِيسِ شَرْطًا او که څه هم پر جماع د روژې مخکې کول شرط دي فَفِيمَا ذَهَبْنَا إِلَيْهِ تَقْدِيمُ الْبَعْضِ [لیکن] کوم طرف ته چې موږ تګ کړی دی ایعني کوم صورت چې موږ اختیار کړی دی] په هغه کې [پر جماع] د ځینو روژو تقدیم سته وَفِيمَا قُلْتُمْ تَأْخِيرُ الْكُلِّ عَنْهُ او کوم چې تاسي [طرفین] وایاست په هغه کې ټوله روژې له وطي ځخه مؤخر دي وَلَهُمَا: أَنَّ الشَّرْطَ فِي الصَّوْمِ أَنْ يَكُونَ قَبْلَ الْمَسِيسِ د طرفینو دلیل دا دی: چې په روژه کې شرط دا دي چې هغه به له جماع ځخه مخکې وي وَأَنْ يَكُونَ خَالِيًا عَنْهُ ضَرُورَةً بِالنَّصِّ او [همدارنګه] هغه به له جماع ځخه خالي وي د آیت د ضرورت په وجه وَهَذَا الشَّرْطُ يَنْعَدِمُ بِهِ او دا شرط په جماع کولو سره ختمېږي فَيَسْتَأْنِفُ نو ځکه به هغه [مظاهر] له شروع ځخه روژې نیسي وَإِنْ أَفْطَرَ مِنْهَا يَوْمًا بِعُذْرٍ أَوْ بِغَيْرِ عُذْرٍ او که هغه له دې [دوو میاشتو] ځخه یوه ورځ د عذر په وجه یا بېله عذره روژه ماته کړي اِسْتَأْنَفَ نو له شروع ځخه به روژې نیسي لِفَوَاتِ التَّتَابُعِ ځکه چې تتابع [پرلپسې والی] فوت سو وَهُوَ قَادِرٌ عَلَيْهِ عَادَةً حالانکې هغه [مظاهر] عادتاً پر دې قادر [هم] دی.

---

✽ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامة داماد افندي رَحِمَهُ الله : والصحيح قولهما أي الطرفين. لأن المأمور به صيام شهرين متتابعين، لا مسيس فيهما (مجمع الأنهر ج:١، ص:٤٦٠)، وكذا في رد المحتار (ج:٢، ص:٦٣١). [القول الراجح ج:١، ص:٣٥٨]

**اللغات:** ﴿إِسْتَأْنَفَ﴾ د استفعال ماضي ده: له نوي سره شروع کول، له شروع څخه يو کار راګرځول.

﴿تَقْدِيْم﴾ د تفعيل مصدر دی: مقدم کول، مخکې کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د کفارې د روژو په مينځ کې مُظاهر د خپلې ښځې سره د شپې قصداً يا د ورځې په هېره جماع وکړي، نو د طرفينو په نيز حکم دا دی چې هغه به له شروع څخه بيا روژې نيسي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به له شروع څخه روژې نه‌نيسي، بلکې مخکنی روژې به يې پاته وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې د شپې په قصداً جماع کولو سره همدارنګه د ورځې په ناسياً جماع کولو سره روژه نه فاسديږي، او کله چې روژه نه فاسديږي، نو ښکاره ده چې تتابع (پرلپسې والي) به هم فاسد نه وي، او کله چې تتابع فاسد نه دی، نو د استيناف (يعني له شروع څخه د روژو نيولو) ضرورت به هم نه وي، ځکه د عدمِ استيناف لپاره چې کوم شی شرط دی (يعني دوې مياشتې پرلپسې روژه نيول او په مينځ کې نه فاسدېدل)، هغه شرط دلته موجود دی.

**وإن كان تقديمه إلخ:** په دې سره د يو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې د دې آيت مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا په وجه د کفارهٔ روژې پر وطي او جماع مقدم کول شرط دي، او په مينځ کې د جماع کولو په وجه دا شرط موجود نه سو، لهذا په دې صورت کې به کفاره اداء کېدل پکار نه وي؟

د دې په جواب کې امام ابو يوسف فرمايي چې موږ ته هم معلومه ده چې روژې تر وطي مخکې کول شرط دي، لېکن کوم صورت چې موږ اختيار کړی دی، په هغه کې خو څه روژې له وطي څخه مخکې دي، لېکن د طرفينو په اختيار سوي صورت کې ټولې روژې له وطي څخه وروسته (مؤخر) دي، او دا خبره تسليم سوې ده چې تقديمُ البَعْض او تأخير البَعْض له تأخير الكُلّ څخه سپک او آسانه دی. لهذا د کفارې نه اداء کېدل (عدمُ اداء الكفارة) ستاسو د مسلک مطابق دي، نه زموږ د مسلک مطابق، نو ځکه به مخکنی روژې پاته وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې د روژو په ذريعه د کفارې اداء کولو په وخت کې د آيت پر بناء دوه شيان شرط دي: ① روژې به تر جماع مخکې، مخکې نيول کيږي، ② او دا ټوله روژې به له جماع څخه خالي وي. او په مينځ کې د جماع کولو په وجه سره دويم شرط فوتيږي، او د هغه په ضمن کې اول شرط هم فوتيږي (ځکه چې دا دواړه شرطونه سره لازم او ملزوم دي)، او کله چې دواړه شرطونه فوت سي، نو تتابع به هم فوت سي، لهذا اوس ښکاره خبره ده چې د استيناف حکم به بيرته راګرځي، او هغه به بيرته له شروع څخه روژې نيسي.

**وإن أفطر الخ**: د دې حاصل دا دی که يو سړی د دوو مياشتو په مينځ کې يوه روژه ماته کړي، نو پر هغه لازم دي چې بيا له شروع څخه روژې ونيسي؛ دليل دا دی چې هغه تتابع فوت کړی (او په آيت کې د تتابع حکم سوی دی)، او هغه عادتاً پر تتابع قادر دی (چې دوې مياشتې پرلپسې روژې ونيسي. ځکه چې د هغه په حق کې د ښځې په څير د حيض مانع نسته چې تتابع يې ور ختم کړي)، نو ځکه به استيناف پر هغه لازم وي.

## غلام به په کوم شي سره کفاره اداء کوي؟

وَإِنْ ظَاهَرَ الْعَبْدُ او که غلام [د خپلې ښځې سره] ظهار وکړي لَمْ يَجُزْ فِي الْكَفَّارَةِ إِلَّا الصَّوْمُ نو [د هغه] په کفاره کې له روژې څخه بغير [بل شی] جائز نه دی لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ ځکه چې هغه لره هيڅ ملکيت نسته فَلَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ التَّكْفِيرِ بِالْمَالِ نو ځکه به د مال په ذريعه د کفاره اداء کولو أهل نه وي وَإِنْ أَعْتَقَ الْمَوْلَى أَوْ أَطْعَمَ عَنْهُ او که چيري مولیٰ [مالک] د هغه له طرفه [غلام] آزاد کړي يا [د هغه له طرفه مسکينانو ته] خوراک وکړي لَمْ يُجْزِهِ نو دا [هم] د هغه لپاره کافي نه دي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الْمِلْكِ ځکه چې هغه [غلام] د مالک جوړېدلو أهل نه دی فَلَا يَصِيرُ مَالِكًا بِتَمْلِيكِهِ نو ځکه به د مولیٰ په مالک کولو سره هغه مالک نه جوړېږي.

**اللغات**: ﴿لَمْ يُجْزِ﴾ د افعال له باب څخه د جحد صيغه ده، په اصل کې لَمْ يُجْزِئْ وو: کافي نه دي، جائز نه دي. ﴿تَكْفِيْر﴾ د تفعيل مصدر دی: کفاره ورکول (کفاره اداء کول).

**تشريح : مسئله** : دا ده که غلام د خپلې ښځې سره ظهار وکړي، نو د هغه کفاره فقط په روژو سره اداء کيږي، له روژو څخه بغير په بل شي سره د هغه کفاره نه اداء کيږي، نه په إعتاق (غلام آزادولو) سره او نه په إطعام (خوراک ورکولو) سره؛ دليل دا دی چې غلام د هيڅ شي ملکيت نه لري، خال دا چې د إعتاق او إطعام لپاره مال ضروري دي، او غلام خالي لاسی دی، او بيا په هغه کې د مالک جوړېدلو صلاحيت هم نه سته، نو که مالک د هغه له طرفه غلام آزاد کړي، يا خوراک ورکړي، نو هم جائز نه دي، ځکه چې په غلام کې بالکل د مالک جوړېدلو صلاحيت نسته، نو د بل په تمليک سره هغه مالک کېدلای نه سي، لهذا لازماً به هغه په روژو سره کفاره اداء کوي.

## په کفاره کې د خوراک ورکولو بیان

وَإِذَا لَمْ يَسْتَطِعِ الْمُظَاهِرُ الصِّيَامَ او کله چې ظهار کونکی د روژو [نیولو] قدرت نه لري أَطْعَمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا نو شپیتو [۶۰] مسکینانو ته دې خوراک ورکړي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا [المجادلة: ۴] ځکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: او څوک چې [د روژو نیولو] طاقت نه لري نو بیا [د ظهار کفاره] شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکول دي وَيُطْعِمُ كُلَّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ أَوْ قِيمَةَ ذَلِكَ او مُظاهر به هر مسکین ته نیم صاع غنم یا یو صاع خورما یا یو صاع أوربشي یا د دې شیانو قیمت ورکوي لِقَوْلِهِ [1] فِي حَدِيثِ أَوْسِ بْنِ الصَّامِتِ وَسَهْلِ بْنِ صَخْرٍ ځکه چې د أوس بن صامت او سهل بن صخر په حدیث کې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: لِكُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ "د هر مسکین لپاره به نیم صاع غنم وي" وَلِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ دَفْعُ حَاجَةِ الْيَوْمِ لِكُلِّ مِسْكِينٍ او ځکه چې معتبر د هر مسکین د یوې ورځې حاجت لیرې کول دي فَيُعْتَبَرُ بِصَدَقَةِ الْفِطْرِ نو دا به پر صدقه فطر [سرسایه] باندې قیاسیږي وَقَوْلُهُ: أَوْ قِيمَةَ ذَلِكَ مَذْهَبُنَا او [په متن کې] د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول: أَوْ قِيمَتُهُ ذَلِكَ زموږ مذهب دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الزَّكَاةِ او په کتاب الزکاة کې موږ دا [مسئله] ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿نصف صَاع﴾ نیم صاع (پاو کم دوه کېلو کیږي [په پاکستاني کېلو سره]، او یو صاع درې نیم کېلو کیږي)، ﴿بُرّ﴾ غنم.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د مظاهر په حق کې د کفارې تر ټولو اعلیٰ درجه دا ده چې غلام آزاد کړي، لېکن که مظاهر پر غلام قدرت نه لري، نو حکم دا دی چې روژې ونیسي. دا دویمه درجه ده. او که د روژو نیولو قدرت هم نه لري، نو اوس دریمه او آخري وجه دا ده چې شپیتو (۶۰) مسکینانو ته خوراک یا غله ورکړي؛ دلیل دا آیت دی: فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا.

ښکاره دې وي چې کله څوک د ظهار کفاره د طَعَام په ذریعه اداء کوي، نو هغه ته دا خبره په پام کې نیول پکار دي چې د طَعَام مقدار به هم پوره او مکمل وي او تعداد به هم پوره وي، یعني پوره شپیتو منسکینانو ته به طعام ورکوي، او هر، هر مسکین ته به د نیم صاع په مقدار غنم ورکوي، تر دې مقدار به نه کم ورکوي، او نه زیات؛ د دې مسئلې دلیل هغه أحادیث دي کوم چې له حضرت أوس بن صامت او

---

[1] تخریج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه باب في كفارة اليمين من قال نصف صاع، حديث رقم: ۱۲۲۰۴

حضرت سهل بن صخر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوی دی، چې په هغوی کې د دې خبرې وضاحت سوی دی چې د روژې نه نيولو په صورت کې به مظاهر شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکوي يا غله به ورکوي او د هغه مقدار به له غنمو څخه نصف صاع وي، او له خورما يا اُوربشو څخه به يو صاع وي.

د دې مسئلې عقلي دليل دا دی چې د کَفَّارَه بِالطَّعَامِ مقصد دا دی چې د هر. هر مسکين د يوې ورځې حاجت پوره کړی سي. نو د ظهار کفاره به د مقدار په هکله پر صدقة الفطر قياسيږي. او څرنګه چې د صدقة الفطر مقدار د غنمو نيم صاع يا د خورما او اُوربشو يو صاع دی. نو په کفارهٔ ظهار کې به هم د هر مسکين په حق کې همدغه مقدار وي، او ټولو مسکينانو ته به دېرش (۳۰) صاعه غنم ورکوي. يا شپېته (۶۰) صاعه خورما يا اُوربشي. يا به د دې شيانو په اندازه قيمت ورکوي.

**وقوله إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چې په متن کې د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول أَوْ قِيمَتُهُ ذٰلِکَ. دا زموږ د احنافو مسلک دی چې زموږ په نېز په صدقة الفطر، ظهار او داسي نورو کې د غلې (غنمو. خورما...) قيمت ورکول کېدای سي، لېکن د شوافعو په نېز خاص د غلې اداء کول ضروري دي. او د هغو په نېز په قيمت ورکولو سره واجب فِي الذمه نه ساقطيږي. فرمايي چې دا اختلاف موږ په کتاب الزکاة کې په تفصيل سره بيان کړی. فأنتظروا إني معكم من المنتظرين

## په کفاره کې دوه جلا قسمه خوراک ورکول

| |
|---|
| **فَإِنْ أَعْطٰى مَنًّا مِنْ بُرٍّ وَمَنَوَيْنِ مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيْرٍ** او که [مظاهر په کفاره کې] يو مَن غنم او دوه مَنه خورما يا اُوربشي ورکړي **جَازَ** نو جائز دي **لِحُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ** ځکه چې مقصود حاصل سو **إِذِ الْجِنْسُ مُتَّحِدٌ** ځکه چې [د دوی] جنس سره يو دی [من حيث الإطعام ودفع الجوع] |

**اللغات**: ﴿مَنّ﴾ له دې څخه مراد د عربو من چې هغه د صاع څلورمه حصه کېږي، او څلور منه يو صاع کيږي.

**تشريح**: يو صاع ټوله څلور منه کيږي. نو په دې اعتبار سره يو من د صاع رُبع (څلورمه حصه) سوه. اوس که يو مظاهر مسکينانو ته يو من غنم ورکړي او دوه منه خورما ورکړي. نو څرنګه چې دا ټوله د نيم صاع غنمو سره برابره سول. نو ځکه د إطعام مقصود حاصل سو. او بيا د غنم. خورما او اُوربشو جنس هم د خوراک او لوږې دفع کولو په اعتبار سره متحد دی (يعني دا ټوله شيانو په مقصود کې سره يو دي). لهذا داسي کول صحيح او جائز دي.

## بل چا ته د خوراک ورکولو حکم

وَإِنْ أَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنْهُ مِنْ ظِهَارِهِ او که [مظاهر] بل چا ته دا حکم وکړي چې هغه د ده د ظهار له طرفه [مسکینانو ته] خوراک ورکړي فَفَعَلَ او هغه [بل سړی] دا کار وکړي أَجْزَأَهُ نو دا [د مظاهر له طرفه] کافي دي لِأَنَّهُ اِسْتِقْرَاضٌ مَعْنًى ځکه چې دا د معنیٰ په اعتبار سره قرض اخیستل دي ایعني دا د پور غوښتلو په معنیٰ سره دي] وَالْفَقِيرُ قَابِضٌ لَهُ أَوَّلًا او فقیر اول د مظاهر لپاره قبضه کونکی دی ثُمَّ لِنَفْسِهِ بیا د خپل ځان لپاره [قبضه کونکی دی] فَتَحَقَّقَ تَمَلُّكُهُ ثُمَّ تَمْلِيكُهُ نو [په دې صورت کې] د مظاهر مالک کېدل او د فقیر مالک جوړول ثابت سو.

**اللغات:** ﴿إِسْتِقْرَاض﴾ د استفعال مصدر دی: قرض اخیستل. پور غوښتل. ﴿تَمَلُّک﴾ د تفعل مصدر دی: په خپله (دیو شي) مالک جوړېدل. ﴿تَمْلِيک﴾ د تفعیل مصدر دی: بل څوک (دیو شي) مالک جوړول.

**تشریح: مسئله:** دا ده که مظاهر یو بل سړي ته حکم وکړي چې زما له طرفه مسکینانو ته خوراک ورکړه. او هغه همداسې وکړي، نو جائز او صحیح دي؛ دلیل دا دی چې دا شکل معناً د قرض اخیستلو په شیر دی. یعني ګواکي مظاهر له هغه سړي څخه قرض واخیستی. او پر دغه قرض (خوراک) قبضه داسې وسوه چې فقیر ګواکي اول د مظاهر له طرفه پر خوراک قبضه وکړه. وروسته یې د خپل ځان له طرفه قبضه وکړه. نو کله چې فقیر د مظاهر له طرفه قبضه وکړه. نو په دې سره د مظاهر مالک کېدل ثابت سو. او کله چې فقیر د خپل ځان له طرفه قبضه وکړه. نو هغه د مسکین مالک جوړېدل هم ثابت سو (یعني ګواکي مظاهر په خپله د دې خوراک مالک وو او مساکین یې د دې مالکان جوړ کړل. او همدغه مقصود دي). نو ځکه به په دې تو ګه کفاره ورکول جائز وي.

## شپېتو (۶۰) مسکینانو ته (له تملیک څخه بغیر) خوراک ورکول

فَإِنْ غَدَّاهُمْ وَعَشَّاهُمْ نو که [مظاهر] دوی [مساکینو] ته سهار او ماښام خوراک ورکړي جَازَ نو جائز دي قَلِيلًا كَانَ مَا أَكَلُوا أَوْ كَثِيرًا هغه که دوی [مساکین] لږ خوراک وکړي او که ډېر وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُجْزِئُهُ إِلَّا التَّمْلِيكُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې له تملیک [مالک جوړولو] څخه بغیر [بل شی] د مظاهر لپاره کافي نه دی اِعْتِبَارًا بِالزَّكَاةِ وَصَدَقَةِ الْفِطْرِ په زکاة او صدقه فطر [سرسایه] باندې په قیاسولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ التَّمْلِيكَ أَدْفَعُ لِلْحَاجَةِ او دا [حکم] ځکه دی چې تملیک زیات لیري کونکی

[پوره کونکی] دی د حاجت فَلَايَنُوبُ مَنَابَهُ الْإِبَاحَةُ نو ځکه به إباحت [مباح کول] د هغه نه قائم مقام کيږي وَلَنَا. أَنَّ الْمَنْصُوصَ عَلَيْهِ هُوَ الْإِطْعَامُ او زموږ دليل دا دی: چي د کوم شي په باره کي آيت وارد سوی دی هغه إطعام [خوراک ورکول] دي وَهُوَحَقِيقَةٌ فِي التَّمْكِينِ مِنَ الطَّعْمِ او إطعام په حقيقت کي پر طعام [خوراک کولو] باندي قدرت ورکول دي وَفِي الْإِبَاحَةِ ذٰلِكَ كَمَا فِي التَّمْلِيكِ او د تمليک په څير په مباح کولو کي [هم] دا معنیٰ سته أَمَّا الْوَاجِبُ فِي الزَّكَاةِ الْإِيتَاءُ ليکن په زکاة کي واجب إيتاء [ورکول] دي وَفِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ الْأَدَاءُ او په صدقه فطر کي واجب اداء [اداء کول] دي وَهُمَا لِلتَّمْلِيكِ حَقِيقَةً او دا دواړه د حقيقتاً مالک جوړولو لپاره دي.

**اللغات:** ﴿غَدّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: د سهار خوراک ورکول (د سهار په وخت کي خوراک ورکول). ﴿عَشّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: د ماخوستن ډوډۍ ورکول (د ماخوستن په وخت کي خوراک ورکول). ﴿إِبَاحَة﴾ د افعال مصدر دی: مباح کول، روا کول، اجازه ورکول. ﴿تَمْكِين﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت ورکول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو مظاهر يوه شپه او ورځ شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکړي.

نو دا جائز دي. برابر ده که دا مساکين زيات خوراک وکړي يا کم: دليل دا دی چي د إطعام (خوراک ورکولو) مقصود د مساکينو د يوې ورځي ضرورت پوره کول دي. او دا ضرورت د سهار او ماښام په خوراک ورکولو سره پوره کيږي. نو ځکه دا جائز دي. ليکن امام شافعي رَحِمَهُ الله خوراک پر زکاة او صدقه فطر قياسوي. يعني څرنګه چي په زکاة او صدقه فطر کي تمليک (مالک جوړول) ضروري دي همداسي په طعام کي هم تمليک ضروري دی. او إطعام (يعني خوراک ورکول) د تمليک قائم مقام نه دي.

زموږ دليل دا دی چي په قرآن کريم کي د إطعام لفظ راغلی دی (فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا). او د إطعام حقيقي معنیٰ ده: "پر طعام قدورت ورکول". نو څرنګه چي دا معنیٰ په تمليک (مالک جوړولو) کي سته همداسي په إطعام کي هم سته. بلکي که غور وسي، نو په إطعام کي په پوره توګه د تمليک معنیٰ سته او په إطعام سره د مساکينو ضرورت زيات پوره کيږي. ځکه چي په دې

صورت کي نه هغو ته د خوراک پخولو ضرورت پرېوځي، او نه د هغوی غوړي، مرچ، مساله او داسي نور مصرفيږي (ځکه چي هغوی ته تيار خوراک ورکول کيږي).

أما الواجب إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي د ظهار د کفارې إِطْعَام پر زکاة او صدقه فطر قياسول صحيح نه دي: ځکه چي په زکاة کي اِيْتَاء (ورکول) او په صدقه فطر کي اَدَاء (اداء کول) فرض دي، او اِيْتَاء او اَدَاء دواړه د تمليک لپاره دي، او دا معنیٰ په دې دواړو کي (پر مال) په قدرت ورکولو سره نه ثابتيږي، لېکن د ظهار په کفاره کي اِيْتَاء او اداء ضروري نه دي، نو ځکه به پر طعام په قدرت ورکولو سره کفاره اداء کيږي (سره د دې چي په طعام ورکولو کي د تمليک معنیٰ هم سته).

## د پورتنی مسئلې يو بل صورت

| وَلَوْ كَانَ فِيْمَنْ عَشَّاهُمْ صَبِيٌّ فَطِيْمٌ او که په هغو مسکينانو کي يو شپږ خواره کوچنی وي چي هغو ته [ظهار کونکي] د مابنام خوراک ورکړی وي ايعني داسي کوچنی وي کوم چي له شيدو څخه تازه پرېکړی سوي وي] لَا يُجْزِئُهُ نو دا [د هغه لپاره] کافي نه دي [يعني کفاره نه اداء کيږي] لِأَنَّهُ لَا يَسْتَوْفِيْ كَامِلًا ځکه چي داسي کوچنی پوره خوراک کولای نه سي وَلَا بُدَّ مِنَ الْإِدَامِ فِيْ خُبْزِ الشَّعِيْرِ او د اُوربشو د ډوډۍ په صورت کي کتغ [سالن] ورکول ضروري دي لِيُمْكِنَهُ الْاِسْتِيْفَاءُ إِلَى الشِّبَعِ د دې لپاره چي هغه [مساکينو] لره په ماړه نس خوراک کول ممکن وي وَفِيْ خُبْزِ الْحِنْطَةِ لَا يُشْتَرَطُ الْإِدَامُ او د غنمو د ډوډۍ په صورت کي سالن [ورکول] شرط نه دي. |
|---|

**اللغات:** ﴿فَطِيْم﴾ هغه کوچنی کوم چي له شيدو څخه تازه پرېکړی سوي وي او خوراک ور شروع سوي وي، ﴿لَا يَسْتَوْفِيْ﴾ د إستفعال له باب څخه د نفي صيغه ده، اِسْتَوْفَى يَسْتَوْفِيْ اِسْتِيْفَاءً: خپل حق پوره اخيستل، په پوره توګه يو شی تر لاسه کول (مراد ځني کاملاً خوراک کول دي)، ﴿إِدَام﴾ کتغ، سالن، ترکاري، لمده بل، داسي شی چي ډوډۍ ور سره وخوړل سي، ﴿الشِّبْع﴾ موړتيا (نس مړېدل)، ﴿حِنْطَة﴾ غنم، په عربي کي د غنمو لپاره څو نومونه استعماليږي، چي هغه دا دي: الحِنْطَة، البُرّ، القَمْح، الطَّعَام، لکه څرنګه چي صاحب د مصباح المنير وايي: "اَلْحِنْطَةُ وَالْقَمْحُ وَالْبُرُّ وَالطَّعَامُ وَاحِدٌ". (مصباح المنير ج:۱، ص:۱۵۳)

**تشریح: مسئله**: دا ده کومو مسکینانو ته چې مظاهر سهار او ماښام خوراک ورکړی وي. که په هغو کې ښېر خواره کوچني وي. نو کفاره نه اداء کیږي: دلیل دا دی چې ښېر خوراه کوچني پوره خوراک (طعام) نه سي خوړلای. ځکه چې د هغه غذا طعام نه ده. بلکې څه شیدې او څه طعام. لهذا فقط په طعام سره هغه پوره خوراک کونکي نه شمارل کیږي. نو ځکه به کفاره هم نه اداء کیږي.

**ولا بد إلخ**: فرمایي که په خوراک کې د اُوربشو ډوډۍ وي. نو د هغه سره کتنغ (ترکاري) ورکول هم ضروري دي. د دې لپاره چې ښه په ماړه نس خوراک وکړي. لیکن که د غنمو ډوډۍ وي. نو له کتنغ څخه بغیر هم کار کیږي. ځکه چې د غنمو ډوډۍ له کتنغ څخه بغیر هم په خوند سره خوړل کیږي (خصوصاً په پخوا زمانه کې خو د غنمو ډوډۍ د مسکین لپاره د کتنغ په درجه کې وه).

## فقط یوه مسکین ته خوراک ورکول

وَإِنْ أَطْعَمَ مِسْكِينًا وَاحِدًا سِتِّينَ يَوْمًا او که [مظاهر] یوه مسکین ته شپېته ورځې خوراک ورکړي أَجْزَأَهُ نو [د هغه لپاره] کافي دي وَإِنْ أَعْطَاهُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ او که یوه مسکین ته یې په یوه ورځ ورکړي لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا عَنْ يَوْمِهِ نو دا نه کافي کیږي مګر د هغه یوې ورځې له طرفه لِأَنَّ الْمَقْصُودَ سَدُّ خَلَّةِ الْمُحْتَاجِ ځکه چې مقصود د محتاج [مسکین] حاجت پوره کول دي وَالْحَاجَةُ تَتَجَدَّدُ فِي كُلِّ يَوْمٍ او حاجت هره ورځ نوی پیدا کیږي فَالدَّفْعُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي كَالدَّفْعِ إِلَى غَيْرِهِ نو هغه [یوه] مسکین ته دویمه ورځ ورکول داسې دي لکه بل مسکین ته ورکول وَهَذَا فِي الْإِبَاحَةِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ او دا [حکم] په مباح کولو کې بغیر له اختلاف څخه دی وَأَمَّا التَّمْلِيكُ مِنْ مِسْكِينٍ وَاحِدٍ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ بِدَفَعَاتٍ او کوم چې په یوه ورځ کې په څو وارو سره یو مسکین مالک جوړول دي فَقَدْ قِيلَ: لَا يُجْزِئُهُ نو ویل سوي دي: چې دا کافي نه دي وَقَدْ قِيلَ: يُجْزِئُهُ او ویل سوي دي: چې کافي دي لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى التَّمْلِيكِ تَتَجَدَّدُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ ځکه چې د تملیک ضرورت په یوه ورځ کې [څو واره] نوی پیدا کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ بِدَفْعَةٍ وَاحِدَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چې [یوه مسکین ته] په یوه وار [ټوله مقدار] ورکړي انو په دې صورت کې کفاره نه اداء کیږي] لِأَنَّ التَّفْرِيقَ وَاجِبٌ بِالنَّصِّ ځکه چې په متفرقه توګه [ورکول] په نص سره واجب دي.

**اللغات:** ﴿يَوْمِهِ﴾ په هغه ورځ. ﴿سَدّ﴾ د نصر مصدر دی: بندول، ختمول. خَلَّة: حاجت، ضرورت. سَدُّ خَلَّة: حاجت ليرې کول، حاجت پوره کول. ﴿تَتَجَدَّد﴾ د تفعل مضارع ده: نوي کېدل، جديد کېدل. ﴿إِبَاحَة﴾ د افعال مصدر دی: روا کول، مباح کول، اجازه ورکول. ﴿دَفَعَات﴾ جمع د دَفْعَةٌ ده: وار، ځل، نوبت. دَفَعَات: ډېر وارونه. ﴿تَفْرِيق﴾ د تفعيل مصدر دی: جلا کول، عليحده کول، دوه شيان سره بېلول (مراد ځني په جلا، جلا توګه او په وقفه، وقفه سره طعام ورکول دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مظاهر فقط يوه مسکين ته شپېته ورځي خوراک ورکړي، نو کفاره اداء کيږي. او که په يوه ورځ کي ټوله خوراک (شپېته واره) ورکړي. نو په دې سره فقط د يوې ورځي کفاره اداء کيږي: دليل دا دی چي په کفاره سره مقصود د مسکين حاجت ليرې کول دي. او حاجت هره ورځ نوی پيدا کيږي. نو دويم وار همدغه مسکين ته خوراک ورکول داسي سو لکه بل مسکين ته چي خوراک ورکړي. نو تر شپېتو ورځو پوري يوه مسکين ته خوراک ورکول داسي سو لکه شپېتو مسکينانو ته چي خوراک ورکړي. نو ځکه به په دې صورت کي کفاره اداء کيږي.

**وهذا في الإباحة إلخ:** فرمايي چي هره ورځ مسکين ته خوراک ورکول او هغه ته مباح کول دا بغير له اختلاف څخه جائز دي. يعني د دې په جواز کي د هيڅا اختلاف نسته. پاته سو د مسئلې دويم صورت يعني که يوه مسکين ته د اباحت په توګه شپېته واره ټوله خوراک ورکول سي. نو بالاتفاق جائز نه دي. ځکه چي واجب شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکول دي. او هغه دلته موجود نه سو. نه حقيقتاً او نه حکماً. حقيقتاً خو ځکه موجود نه سو چي دا يو مسکين دی. او حکماً ځکه موجود نه سو. چي يوه سړي ته فقط په يوه ورځ کي شپېته واره د خوراک حاجت نه پيښيږي.

او پاته سوه دا مسئله چي که يو مسکين ته په يوه ورځ کي شپېته واره (جلا جلا) غله ورکول سي (يعني په يوه ورځ کي په شپېتو وارو سره هغه د کفارې د ټوله مقدار غلې مالک جوړ کړی سي).
نو په دې باره کي اختلاف دی. ځيني فقهاء فرمايي چي دا هم ناجائز دی: ځکه چي معتبر حاجت ليرې کول دي. او د ځيني فقهاؤ رايه دا ده چي دا صورت جائز دی: ځکه چي د تمليک ضرورت په يوه ورځ کي څو واره نوي کېدلای سي (يعني يو انسان ته فقط په يوه ورځ کي هم ډېر واره حاجت پيښ کېدلای سي).

د دې په خلاف که په يوه ورځ کي په يوه وار سره د ټوله مقدار مالک جوړ کړی سي، نو بالاتفاق جائز نه دي. ځکه چي په متفرقه توګه (جلا، جلا ورکول) د قرآن په دې آيت سره واجب دي: فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا. نو ځکه به په يو واره د ټوله مقدار په ورکولو سره کفاره نه اداء کيږي.

## "إِطْعَام" (خوراک ورکولو) په دوران کې جماع کول

وَإِنْ قَرِبَ الَّتِيْ ظَاهَرَ مِنْهَا فِيْ خِلَالِ الْإِطْعَامِ او که [مظاهر، مسکینانو ته [د خوراک ورکولو په دوران کې د هغه ښځې سره وطي وکړي چې له هغې څخه يې ظهار کړی وو لَمْ يَسْتَأْنِفْ نو له شروع څخه به خوراک نه ورکوي لِأَنَّهُ تَعَالٰى مَا شَرَطَ فِي الْإِطْعَامِ أَنْ يَكُوْنَ قَبْلَ الْمَسِيْسِ ځکه چې الله تعالیٰ په خوراک ورکولو دا شرط نه دی لګولی چې هغه [إِطْعَام] به تر وطي کولو مخکې وي إِلَّا أَنَّهُ يُمْنَعُ مِنَ الْمَسِيْسِ قَبْلَهُ لیکن تر خوراک ورکولو مخکې به هغه له وطي کولو څخه منع کیږي لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَقْدِرُ عَلَى الْإِعْتَاقِ أَوِ الصَّوْمِ ځکه کېدای سي چې هغه [مظاهر] پر آزادولو او روژې نیولو قدرت پیدا کړي فَيَقَعَانِ بَعْدَ الْمَسِيْسِ نو دا دواړه [صوم یا إعتاق] به تر وطي کولو وروسته واقع سي وَالْمَنْعُ لِمَعْنًى فِيْ غَيْرِهِ او هغه ممانعت کوم چې د داسې معنیٰ په وجه وي چې هغه [معنیٰ] په غیر [بل شي] کې وي لَا يُعْدِمُ الْمَشْرُوْعِيَّةَ فِيْ نَفْسِهِ [هغه ممانعت] داسې مشروعیت نه ختموي کوم چې فی ذاته وي.

**اللغات**: ﴿قَرُبَ﴾ د واحد مذکر غائب ماضي صیغه ده. له کرُم او سمع دواړو بابونو څخه راځي: نژدې کېدل. مراد ځنې وطي او جماع کول دي. ﴿لَمْ يَسْتَأْنِفْ﴾ د استفعال له باب څخه د جحد صیغه ده. اِسْتَأْنَفَ يَسْتَأْنِفُ اِسْتِئْنَافًا: له نوي سره راګرځول. له شروع څخه کول. ﴿لَا يُعْدِمُ﴾ د افعال له باب څخه د نفي صیغه ده. أَعْدَمَ يُعْدِمُ إِعْدَامًا: نیستي کول (معدوم کول). ورکول. ختمول (د إعدام او پانسي حکم جاري کول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مظاهر خاوند یوه مسکین ته خوراک ورکول شروع وکړي. او شپېته ورځې لا پوره سوې نه وي چې مظاهر د خپل هغه ښځې سره وطي وکړي چې له هغې څخه يې ظهار کړی وي. نو په دغه وطي سره په هغه کفاره کې هیڅ خلل نه راځي او پر خاوند له شروع څخه خوراک ورکول لازم نه دي: دلیل دا دی چې په قرآن کریم کې د إِطْعَام (خوراک ورکولو) سره د مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا قید او شرط نه دی ذکر سوی. نو ځکه به د إِطْعَام په دوران کې د وطي کولو په وجه استیناف نه لازمیږي.

ها! دا خبره ضروري ده چې د إِطْعَام تر تکمیل او بشپړتیا مخکې به مظاهر له وطي څخه منع کیږي. ځکه کېدای سي (یعني دا احتمال سته) چې دغه مظاهر د إِطْعَام تر تکمیل مخکې پر صَوْم یا

إعْتَاق قدرت پیدا کړي او د هغه کفاره به د صوم یا إعتاق وطرف ته نقل سي او د وطي کولو په وجه به صوم یا إعتاق تر وطي وروسته واقع سي، حالانکي په قرآن کي د صوم او إعتاق سره د قَبْلَ أَنْ يَتَمَاسَّا قید ذکر سوی دی (چي دا دواړه به تر وطي مخکي پوره کیږي)، نو ځکه د احتیاطا تقاضا همدا ده چي دغه سړی د إطْعَام تر تکمیل مخکي له وطي څخه منع کړی سي.

والمنع لمعنیٰ إلخ: د دې حاصل دا دی چي تر إطْعَام مخکي یا د هغه په دوران کي وطي کول ممنوع لغیره دي (یعني د یو بل احتمال په وجه منع دی، کوم چي موږ ذکر کړی)، او إطْعَام (خوراک ورکول) مشروع لذاته دي، او قاعده دا ده چي ممنوع لغیره د مشروع لذاته منافي نه دی. لهذا د إطْعَام په دوران کي یا تر إطْعَام مخکي به وطي کول إطْعَام نه فاسدوي، او کله چي إطْعَام نه فاسدوي. نو د وطي کولو په صورت کي به د استیناف ضرورت هم نه وي.

## په یوه وخت کي دوې کفارې اداء کول

وَإِذَا أَطْعَمَ عَنْ ظِهَارَيْنِ سِتِّينَ مِسْكِينًا او کله چي [مظاهر] د دوو ظهارونو [له کفارې] څخه شپېتو مسکینانو ته خوراک ورکړي كُلُّ مِسْكِينٍ صَاعًا مِنْ بُرٍّ هر مسکین ته یو صاع د غنمو [ورکړي] لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ✽ نو د شیخینو په نیز دا فقط د یوه ظهار له طرفه کافي کیږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يُجْزِئُهُ عَنْهُمَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د دواړو ظهارونو له طرفه کافي کیږي وَإِنْ أَطْعَمَ ذَلِكَ عَنْ إِفْطَارٍ وَظِهَارٍ او که هغه د افطار او ظهار [له کفارې] څخه خوراک ورکړي أَجْزَأَهُ عَنْهُمَا نو [بالاتفاق] د دواړو له طرفه کافي کیږي لَهُ: أَنَّ بِالْمُؤَدَّى وَفَاءً بِهِمَا د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي کوم طعام چي اداء سوی دی هغه کافي دی د دواړو ظهارونو [کفارو] لپاره وَالْمَصْرُوفُ إِلَيْهِ مَحَلٌّ لَهُمَا او پر چا چي طعام خرچ کړی سوی دي [یعني چا ته چي طعام ورکول سوی دی] هغه د دې محل هم دی فَيَقَعُ عَنْهُمَا لهذا دا طعام به د دواړو ظهارونو له طرفه واقع کیږي [اداء کیږي] كَمَا لَوِ اخْتَلَفَ السَّبَبُ أَوْ فَرَّقَ فِي الدَّفْعِ لکه په هغه صورت کي [چي دواړو له طرفه اداء کیږي] کله چي سبب مختلف سي یا [مظاهر] په ورکولو کي تفریق وکړي [یعني یو صاع جلا جلا ورکړي] وَلَهُمَا: أَنَّ

✽ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٦٣٤)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٥١٢).[القول الراجح ج:١، ص:٣٥٩]

النِّيَّةَ فِي الْجِنْسِ الْوَاحِدِ لَغْوٌ د شيخينو دليل دا دی: چې په يوه جنس کې نيت لغو دی وَفِي الْجِنْسَيْنِ مُعْتَبَرَةٌ او په دوو جنسونو کې معتبر دی وَإِذَا لَغَتِ النِّيَّةُ او کله چې نيت لغو سو وَالْمُؤَدَّى يَصْلُحُ كَفَّارَةً وَاحِدَةً او اداء کړی سوی طعام [هم فقط] د يوې کفارې جوړېدلو صلاحيت لري لِأَنَّ نِصْفَ الصَّاعِ أَدْنَى الْمَقَادِيرِ ځکه چې نيم صاع ادنیٰ [کم] مقدار دی فَيَمْنَعُ النُّقْصَانَ دُونَ الزِّيَادَةِ نو نقصان ايعني له نصف صاع څخه په کم کې] به منع کيږي نه په زيات کې فَيَقَعُ عَنْهَا لهذا [اداء کړی سوی طعام به فقط] له يوې کفارې څخه واقع کيږي كَمَا إِذَا نَوَى أَصْلَ الْكَفَّارَةِ لکه په هغه صورت کې کله چې [مظاهر] د أصل کفارې نيت کړی وي بِخِلَافِ مَا إِذَا فَرَّقَ فِي الدَّفْعِ په خلاف د هغه صورت کله چې [مظاهر] په ورکولو کې تفريق کړی وي لِأَنَّهُ فِي الدَّفْعَةِ الثَّانِيَةِ فِي حُكْمِ مِسْكِينٍ آخَرَ ځکه چې هغه [مسکين] په دويم وار کې د بل مسکين په درجه کې دی.

**اللغات:** ﴿مُؤَدَّى﴾ د تفعيل له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: اداء کړی سوی (کوم شی چې اداء سوی وي)، ﴿وَفَاء﴾ په پوره توګه اداء کول، ﴿مَصْرُوْف﴾ د ضرب له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: پر چا چې خرچ او مصر سوی وي (مراد ځني هغه مسکين دی چې خوراک ورکول سوی وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که پر يو سړي دوې د ظهار کفارې واجب وي (يعني يو وار د ظهار کولو په وجه يو کفاره پر واجب سوې وي، او بل وار بيا د ظهار په وجه دويمه کفاره پر واجب سي)، او هغه د طعام (خوراک) په ذريعه کفاره اداء کول شروع کړي، او په شپېتو مسکينانو کې هر مسکين ته يو، يو صاع غنم ورکړي، نو په دې صورت کې د شيخينو په نېز فقط يوه کفاره اداء کيږي، يعني هغه سړی فقط د يوه ظهار له کفارې څخه بري کيږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا طعام د دواړو ظهارونو لپاره کفاره جوړيږي او هغه سړی بري کيږي، ها! که پر مظاهر يوه د ظهار کفاره وي او بله د إفطار (يعني د قصداً روژې ماتولو) کفاره وي، او هغه شپېتو مسکينانو ته يو، يو صاع غنم ورکړي، نو په دې صورت کې د ټولو په نېز د هغه دواړې کفارې اداء کيږي. لېکن په اول صورت کې د شيخينو په نېز فقط يوه کفاره اداء کيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دواړو ظهارونو کفارې اداء کيږي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې په يوه کفاره کې د يوه مسکين حصه نيم صاع ده. او کله چې مظاهر هر مسکين ته يو صاع غنم ورکړي، نو ښکاره خبره ده چې دا مقدار به د دواړو کفارو لپاره کافي وي. او بيا چې کومو مسکينانو ته مظاهر غنم ورکوي، هغه د کفارې محل هم دي. لهذا د دواړو ظهارونو کفاره

به اداء کیږي. لکه څرنګه چې په هغه صورت کې هم دواړې کفارې اداء کیږي، کله چې سبب مختلف وي. یعني یوه د ظهار کفاره وي. او بله د إفطار کفاره وي. یا لکه په هغه صورت کې چې هم دوې کفارې اداء کیږي کله چې هغه هر صاع دوه ځایه کړي (یعني هر صاع سره نیم. نیم کړي). او هر مسکین ته یې په متفرقه توګه ورکړي (یعني یو وار نیم صاع ورکړي. او بل وار بل نیم صاع ورکړي). نو څرنګه چې په دې صورتونو کې دوې کفارې اداء کیږي. همداسې به په پورتني صورت کې هم دوې کفارې اداء کیږي.

**د شیخینو دلیل**: دا دی چې په واحد جنس کې نیت لغو کیږي. ځکه چې نیت خو په مختلفه اجناسو او اشیاؤ کې د امتیاز (او توپیر) لپاره کیږي. او دلته چې کله دواړه د ظهار کفارې دي. نو په هغه کې د دواړو کفارو نیت کول لغو دي. او کله چې نیت لغو دی. نو د طعام (خوراک) اداء کړی سوی مقدار چې څرنګه دلته فقط د یوې کفارې صلاحیت لري. ځکه چې نیم صاع د کفارې ادنیٰ مقدار دی (ځکه چې کفاره ټوله د پرش [۳۰] صاعه کیږي په غنمو کې). لهذا تر هغه کم مقدار خو به مانع د کفارې وي. لیکن تر هغه زیات به مانع د کفارې نه وي. نو ځکه به د یوه. یوه صاع په ورکولو سره هغه سړی فقط د یوه ظهار له کفارې څخه بري کیږي. لیکن که هغه هر مسکین ته په متفرقه توګه یو صاع ورکړي. یعني یو وار نیم صاع ورکړي. او بل وار بیا نیم صاع ورکړي. نو په دې صورت کې دواړې کفارې ځکه اداء کیږي. چې په متفرقه توګه ورکول داسې دي لکه جلا. جلا مسکین ته ورکول. لهذا پر دې قیاس کول صحیح نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَمَنْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ كَفَّارَتَا ظِهَارٍ او پر کوم سړي چې د ظهار دوې کفارې واجب سي فَأَعْتَقَ رَقَبَتَيْنِ او دوه غلامه آزاد کړي لَا يَنْوِي عَنْ إِحْدَاهُمَا بِعَيْنِهَا حال دا چې په دې دواړو کې د یوې متعینې کفارې نیت نه وکړي ایعني د غلام آزادولو په وخت کې د اولې کفارې یا دویمې کفارې نیت نه وکړي. بلکې په نیت کې یې هسې یوه کفاره وي ا جَازَ عَنْهُمَا نو ادا کفاره ا د دواړو اظهارونو ا له طرفه جائز ده وَكَذَا إِذَا صَامَ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ أَوْ أَطْعَمَ مِائَةً وَعِشْرِينَ مِسْكِينًا او همدارنګه کله هغه څلور میاشتې روژې ونیسي یا یو سل و شلو ا ۱۲۰ ا مسکینانو ته خوراک ورکړي جَازَ نو اهم ا جائز دي لِأَنَّ الْجِنْسَ مُتَّحِدٌ ځکه چې اد دوی ا جنس سره یو دی فَلَا حَاجَةَ إِلَى نِيَّةٍ مُعَيَّنَةٍ نو ځکه به د یو متعین سوي نیت اکولو ا ضرورت نه وي.

**تشريح : مسئله :** دا ده چي پر کوم سړي د يوه جنس دوې کفارې واجب وي، که هغه له تعيين څخه بغير دوه غلامان آزاد کړي، يا پرلپسې څلور مياشتي روژې ونيسي، يا ۱۲۰ مسکينانو ته خوراک ورکړي. نو دا سړی له دواړو کفارو څخه بري کيږي؛ ځکه کله چي دواړي کفارې له يوه جنس څخه دي، نو بيا په هغوی کي د نيت او تعيين هيڅ ضرورت نسته، او دوه غلامان، يا څلور مياشتي روژې، يا ۱۲۰ مسکينانو ته خوراک ورکول د يوه جنس د دواړو شيانو لپاره د کفارې جوړېدلو صلاحيت هم لري. نو ځکه به دا سړی په هره توګه سره بري کيږي.

## دوې مختلفه کفارې پر يوه ځاى اداء کول

وَإِنْ أَعْتَقَ عَنْهُمَا رَقَبَةً وَاحِدَةً أَوْ صَامَ شَهْرَيْنِ او که [مظاهر] د دوو ظهارونو له طرفه يو غلام آزاد کړي يا دوې مياشتي روژې ونيسي كَانَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ذٰلِكَ عَنْ أَيِّهِمَا شَاءَ نو ده ته به اختيار وي چي دا [کفاره] متعين کړي په دې دواړو کي د هر هغه ظهار لپاره کوم چي د ده خوښه وي وَإِنْ أَعْتَقَ عَنْ ظِهَارٍ وَقَتْلٍ او که هغه د ظهار او قتل [دواړو] له طرفه يو غلام آزاد کړي لَمْ يَجُزْ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو دا به په دې دواړو کي له يوه طرفه هم جائز نه وي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يُجْزِئُهُ عَنْ أَحَدِهِمَا فِي الْفَصْلَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا [کفاره] به په دواړو صورتونو کي له يوه طرفه هم کافي نه وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ذٰلِكَ عَنْ أَحَدِهِمَا فِي الْفَصْلَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: هغه ته به اختيار وي چي په دواړو صورتونو کي دا [کفاره] د [هسي] يوه لپاره متعين کړي لِأَنَّ الْكَفَّارَاتِ كُلَّهَا بِاعْتِبَارِ اتِّحَادِ الْمَقْصُودِ جِنْسٌ وَاحِدٌ ځکه چي ټولي کفارې د مقصود په اعتبار سره يو جنس دی وَجْهُ قَوْلِ زُفَرَ: أَنَّهُ أَعْتَقَ عَنْ كُلِّ ظِهَارٍ نِصْفَ الْعَبْدِ د امام زفر رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چي [ادلته] مظاهر د هر ظهار له طرفه نصف غلام آزاد کړی دی وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ عَنْ أَحَدِهِمَا بَعْدَمَا أَعْتَقَ عَنْهُمَا او د دواړو له طرفه تر آزادولو وروسته هغه ته دا حق نسته چي دا [کفاره] د يوه لپاره متعين کړي لِخُرُوجِ الْأَمْرِ مِنْ يَدِهِ ځکه چي [اوس] معامله [او اختيار] د هغه د لاس څخه وتلی دی وَلَنَا أَنَّ نِيَّةَ التَّعْيِيْنِ فِي الْجِنْسِ الْمُتَّحِدِ غَيْرُ مُفِيدٍ او زموږ دليل دا دی: چي په متحدُ الجنس [صورت] کي د تعيين نيت کول فايده [او أثر] نه کوي فَتَلْغُو نو ځکه به [په متحدُ الجنس کي] نيت لغو کيږي وَفِي الْجِنْسِ الْمُخْتَلِفِ مُفِيدَةٌ او په مختلفُ الجنس [صورت] کي د تعيين نيت کول [فايده [او أثر] کوي وَاخْتِلَافُ الْجِنْسِ فِي الْحُكْمِ

او د جنس مختلف کېدل په حکم کي دي ايعني دلته د جنس اختلاف د حکم په اعتبار سره دی| وَهُوَ الْكَفَّارَةُ هٰهُنَا بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ او هغه دلته کفاره ده د سبب مختلف کېدلو په وجه ايعني ځکه چي سبب مختلف دی| نَظِيْرُ الْأَوَّلِ: إِذَا صَامَ يَوْمًا فِيْ قَضَاءِ رَمَضَانَ عَنْ يَوْمَيْنِ د اول [صورت] مثال دا دی: چي کله [يو سړی] د رمضان د دوو قضائي روژو له طرفه يوه ورځ روژه ونيسي يُجْزِئُهُ عَنْ قَضَاءِ يَوْمٍ وَاحِدٍ نو دا به د يوې ورځي له قضائي روژې څخه کافي وي وَنَظِيْرُ الثَّانِيْ: إِذَا كَانَ عَلَيْهِ صَوْمُ الْقَضَاءِ وَالنَّذْرِ او د دويم صورت مثال دا دی: چي کله پر يو سړي قضائي روژه او د نذر روژه وي فَإِنَّهُ لَا بُدَّ فِيْهِ مِنَ التَّمْيِيْزِ نو [په دې صورت کي] تمييز [او تعيين] کول ضروري دي.

**اللغات:** ﴿نَظِيْر﴾ مثال، جمع: نَظَائِر، ﴿صَوْمُ الْقَضَاءِ﴾ قضائي روژه (هغه روژه کوم چي د چا پر ذمه پاته وي).

**تشريح:** په عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي، او دواړي مختلف فيه دي: (١)... اوله مسئله دا ده که پر يو سړي د دوو ظهارونو دوې کفارې واجب سي، او هغه د دواړو کفارو له طرفه يو غلام آزاد کړي، نو اوس هغه ته اختيار دی که د هري کفارې لپاره دا غلام متعين کوي، د هغه لپاره يې متعين کولای سي. (٢)... دويمه مسئله دا ده که پر هغه يوه د ظهار کفاره واجب وي، او بله د قتل کفاره واجب وي، او هغه له تعيين څخه بغير يو غلام آزاد کړي، نو په دې صورت کي دا غلام د يوې کفارې له طرف څخه هم نه صحيح کيږي، دا حکم زموږ په نيز دی.

امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو مسئلو کي له يوه طرفه هم کفاره نه اداء کيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو مسئلو کي هغه ته د کفارې د متعينولو اختيار سته.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي ټولې کفارې د مقصد په اعتبار سره متحد دي؛ ځکه چي د ټولو مقصود ستر (پرده پوشي) او د ګناه زائلول دي، او په واحد جنس کي د نيت هيڅ ضرورت نسته، لهذا څرنګه چي په اوله مسئله کي هغه ته د تعيين حق سته، همداسي به په دويمه مسئله کي هغه ته د تعيين حق وي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي کله هغه د کفارې نيت نه وکړي، او د جرم (ظهار يا قتل) له تعيين څخه بغير کفاره اداء کړي، نو ګواکي دا دواړو جرمونو کفاره سوه، او ګواکي نصف، نصف غلام د هري کفارې په حق کي راغلی، او نصف غلام آزادول معتبر نه دي، نو ځکه به د يوه جرم کفاره هم نه اداء کيږي، او څرنګه چي په يوه وار د دواړو جرمونو له طرفه د کفارې اداء کولو په وجه سره اوس د سړي د لاس څخه معامله او اختيار وتلی دی، نو ځکه به تر دې وروسته هغه ته د تعيين اختيار نه وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي جرم که چيري متحدُ الجنس وي، نو نيت لغو کيږي، او که مختلفُ الجنس وي، نو نيت مفيد ګرځي، اوس دلته په اوله مسئله کي جنس متحدُ الجنس دی، يعني دواړې د ظهار کفارې دي، نو ځکه به هلته له بېله تعيينه آزادولو څخه وروسته ( يعني له إعتاق بدون التعيين څخه) وروسته هم د تعيين اختيار وي، او څرنګه چي په دويمه مسئله کي جرم مختلفُ الجنس دی، يعني يوه کفاره د ظهار ده او دويمه کفاره د قتل ده، نو ځکه به په دويمه مسئله کي نيت لغو کيږي، او ګواکي يو غلام به د دواړو کفارو له طرف څخه آزاديږي، لېکن څرنګه چي د هري کفارې په حق کي نصف غلام راځي، نو ځکه به د يوې کفارې له طرف څخه هم نه صحيح کيږي: ځکه چي نصف لره هيڅ اعتبار نسته.

**واختلاف الجنس في الحكم إلخ**: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله د قتل او ظهار په دواړو کفارو کي د غلام آزادول (إعْتَاقُ الرَّقبة) موجود سو، نو بيا دا متحدُ الجنس سو، نه مختلفُ الجنس، لهذا څرنګه چي په اوله مسئله کي مظاهر لره د هرې کفارې لپاره نيت او تعيين کول صحيح دي، همداسي په دويمه کي هم نيت او تعيين صحيح کېدل پکار دي، حالانکي تاسو په دويمه کي تعيين ممنوع ګرځولی دی! آخر د دې څه وجه ده؟

د دې په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي دلته د جنس مختلف کېدل حکماً دي (يعني د حکم په اعتبار سره د دواړو جنسونه مختلف دي)، ځکه که څه هم د دواړو کفاره إعتاق (آزادول) دی، خو د إعتاق د وجوب سبب جلا دی، ځکه چي د يوه په کفاره کي دا سبب ظهار دی او په بله کي قتل دی، او ښکاره خبره ده چي قتل او ظهار دواړه سره جلا دي، لهذا په دويمه مسئله کي د جنس اختلاف حکماً دی، او حکماً اختلاف هم مؤثر او مانع ګرځي.

**نظير الأول إلخ**: فرمايي چي د متحد الجنس والا د صورت (يعني د اولي مسئلې) مثال دا دی چي که پر يوه سړي د رمضان د دوو روژو قضاء واجب وي، او هغه له تعيين څخه بغير د يوې روژې قضاء را وګرځوي، نو هغه ته اختيار سته، په دواړو قضائي روژو کي د هري يوې لپاره دا روژه متعين کولای سي، ځکه چي دلته دواړي روژې متحدُ الجنس دي.

د مختلفُ الجنس مثال دا دی چي که د يو چا پر ذمه يوه د رمضان قضائي روژه وي، او بله د نذر روژه وي، نو که هغه له تعيين څخه بغير د يوې روژې قضاء راوګرځوي، نو له هيڅ طرف څخه هم روژه نه اداء کيږي، ځکه چي په مختلفُ الجنس شيانو کي د توپير او امتياز پيدا کولو لپاره نيت ضروري دی، او دلته هغه سړي نيت نه دي کړی. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

# بَابُ اللِّعَانِ

## (دا) باب د لعان (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** تر ظهار وروسته د لعان بیانولو وجه دا ده چې د لعان په نسبت ظهار إباحت (روایښت) ته زیات نژدې دی. دویمه خبره دا ده چې که د لعان نسبت د غیرِ منکوحه ښځې وطرف ته وکړی سي. نو حد قذف واجبیږي. او د حد واجبېدل خالص معصیت دی چې په هغه کې یوه ذره إباحت هم نه پاتیږي. لیکن په ظهار کې حتماً د إباحت شائبه او شبهه پاتیږي. نو په دې وجه لعان تر ظهار وروسته بیان سوې دی. (عنایه او بنایه)

**د لعان لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** لعان د مفاعلې د باب مصدر دی. لغوي معنیٰ یې ده: لعنت کول. له رحمت څخه لیري کول. شړل.

او د لعان شرعي معنیٰ ده: شَهَادَاتٌ تَجْرِیْ بَیْنَ الزَّوْجَیْنِ مَقْرُوْنَةٌ بِاللَّعنِ وَالْغَضَب (یعني د لعنت او غضب سره متصل هغه څلورو شهادتونه [گواهیاني] کوم چې د ښځې او خاوند په مینځ کې جاري کیږي). مطلب دا چې کله خاوند پر خپله ښځه د زنا تور ولگوي. او هیڅ گواه نه لري. نو په دې صورت کې به ښځه له خاوند څخه د څلورو قسمونو مطالبه کوي. او همدې ته لعان وایي (چې پوره تفصیل به یې په عبارت کې ذکر سي).

**د لعان رکن، سبب او شرط:** د لعان رکن هغه شهادت دی کوم چې په قسم سره مؤکد وي. او د لعان سبب دا دی چې خاوند پر خپله ښځه داسي تور (تهمت) ولگوي چې هغه د قذف موجب وي. د لعان شرط د نکاح قیام او بقاء ده.

**د لعان حکم:** تر لعان وروسته وطي او له ښځې څخه نفع اخیستل (اِسْتِمَاعٍ مِنَ الْمَرْأَة) حرامیږي. (بنایه ج: ۵. ص: ۳۶۳، بیروت)

## د لعان حقیقت او حیثیت

قَالَ: إِذَا قَذَفَ الرَّجُلُ اِمْرَأَتَهُ بِالزِّنَا فرمایي: کله چې خاوند پر خپلې ښځې د زنا تهمت [تور] ولگوي وَهُمَا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ او دوی دواړه د شهادت [گواهی] أهل وي وَالْمَرْأَةُ مِمَّنْ يُحَدُّ قَاذِفُهَا او ښځه داسي وي چې د هغې پر تهمت لگونکي حد لگېدای سي؛ یعني ښځه عاقله. بالغه. آزاده. محصنه او پاک لمنې

وي چي مخکي هيڅکله د زنا تور پر لګېدلی نه وي ا أَوْ عَلَىٰ نَسَبِ وَلَدِهَا يا اخاوند ا د خپلي ښځي د بچي د نسب نفي وکړي وَطَالَبَتْهُ بِمُوْجِبِ الْقَذْفِ او بيا ا ښځه له هغه شخه د قذف د واجبونکي العان ا مطالبه وکړي فَعَلَيْهِ اللِّعَانُ نو پر هغه لعان کول واجب دي وَالْأَصْلُ: أَنَّ اللِّعَانَ عِنْدَنَا شَهَادَاتٌ مُؤَكَّدَاتٌ بِالْأَيْمَانِ مَقْرُونَةٌ بِاللَّعْنِ او أصل دا دی: چي زموږ په نېز لعان هغه شهادتونه ا ګواهياني ا دي کوم چي په قسم سره مؤکد وي ا او ا د لعنت سره متصل وي قَائِمَةٌ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ فِي حَقِّهِ وَمَقَامَ حَدِّ الزِّنَا فِي حَقِّهَا او ا چي هغه شهادتونه ا د خاوند په حق کي د حدّ قذف قائم مقام وي او د ښځي په حق کي د حدّ زنا قائم مقام وي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ [النور: ۶] څکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: او چي د هغو العان کونکو ا سره ګواهان نه وي ماسوا له خپلو ځانو شخه وَالِاسْتِثْنَاءُ إِنَّمَا يَكُونُ مِنَ الْجِنْسِ او استثناء فقط له جنس شخه کيږي وَقَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللهِ [النور: ۶] الله تعالیٰ فرمايلي دي: نو په هغو العان کونکو ا کي د يوه العان کونکي ا شهادت څلور شهادتونه دي د الله په قسم سره نَصَّ عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْيَمِينِ الله تعالیٰ د شهادت او قسم دواړو صراحت کړی دی فَقُلْنَا: الرُّكْنُ هُوَ الشَّهَادَةُ الْمُؤَكَّدَةُ بِالْيَمِينِ نو ځکه موږ وايو: چي ا د لعان ا رکن داسي شهادت دی کوم چي په قسم سره مؤکد وي ثُمَّ قَرَنَ الرُّكْنَ فِي جَانِبِهِ بِاللَّعْنِ لَوْ كَانَ كَاذِبًا بيا الله د خاوند په طرف کي رکن ا شهادت ا د لعن سره متصل کړی دی که چيري هغه دروغجن وي وَهُوَ قَائِمٌ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ او دا د خاوند په حق کي د حدّ قذف قائم مقام دی وَفِي جَانِبِهَا بِالْغَضَبِ او ا الله تعالیٰ رکن ا د ښځي په طرف کي د غضب سره ا متصل کړی دی ا وَهُوَ قَائِمٌ مَقَامَ حَدِّ الزِّنَا او هغه د حدّ زنا قائم مقام دی. إِذَا ثَبَتَ هٰذَا نَقُولُ: لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ کله چي دا ثابته سوه نو موږ وايو: چي ضروري دي دا چي ښځه او خاوند به دواړه د شهادت أهل وي لِأَنَّ الرُّكْنَ فِيهِ الشَّهَادَةُ ځکه چي رکن په لعان کي شهادت دی وَلَا بُدَّ أَنْ تَكُونَ هِيَ مِمَّنْ يُحَدُّ قَاذِفُهَا او دا اهم ا ضروري دي چي ښځه به داسي وي چي پر تهمت لګونکي يې حد لګېدای سي لِأَنَّهُ قَائِمٌ فِي حَقِّهِ مَقَامَ حَدِّ الْقَذْفِ ځکه چي لعان د خاوند په حق کي د حدّ قذف قائم مقام دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِحْصَانِهَا لهذا د ښځي محصنه کېدل ا سپېڅلتوب ا ضروري دی وَيَجِبُ بِنَفْيِ الْوَلَدِ او د بچي ا د نسب ا په نفي کولو سره هم العان ا

واجبيږي لِأَنَّهُ لَمَّا نَفَى وَلَدَهَا ځکه کله چي خاوند د ښځي د بچي [د نسب] نفي وکړي صَارَ قَاذِفًا لَهَا ظَاهِرًا نو په ظاهري توګه هغه پر ښځي تهمت لګونکی سو وَلَا يُعْتَبَرُ احْتِمَالُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ مِنْ غَيْرِهِ بِالْوَطْءِ مِنْ شُبْهَةٍ او د دې احتمال به هيڅ اعتبار نه وي چي [کېدای سي] هغه کوچنی به د وطي بالشبهه په وجه له خاوند څخه بغير [د بل چا] وي كَمَا إِذَا نَفَى أَجْنَبِيٌّ نَسَبَهُ عَنْ أَبِيهِ الْمَعْرُوفِ لکه کله چي يو پردی سړی د کوچني د نسب نفي وکړي د هغه د معلوم پلار څخه وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي النَّسَبِ الْفِرَاشُ الصَّحِيحُ او دا ځکه چي اصل په نسب کي صحيح فراش دی وَالْفَاسِدُ مُلْحَقٌ بِهِ او فاسد فراش د صحيح فراش سره ملحق دی فَنَفْيُهُ عَنِ الْفِرَاشِ الصَّحِيحِ قَذْفٌ نو له صحيح فراش څخه د خاوند نفي [او انکار] کول تهمت دی حَتَّى يَظْهَرَ الْمُلْحَقُ بِهِ تر دې چي ښکاره سي هغه کوم چي د صحيح فراش سره ملحق دی وَيُشْتَرَطُ طَلَبُهَا او د ښځي مطالبه کول شرط دي لِأَنَّهُ حَقُّهَا ځکه چي مطالبه کول د هغې حق دی فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهَا نو [ځکه] د هغې مطالبه کول ضروري دي كَسَائِرِ الْحُقُوقِ لکه نور حقونه [يعني لکه په نورو حقونو کي چي همدا شرط دی].

**اللغات:** ﴿قَذَف﴾ د ضرب مصدر دی: پر يو چا تهمت (تومت) لګول، تور لګول، تور ترل. ﴿يُحَدّ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مذکر غائب مضارع مجهولي صيغه ده: حد جاري کول (سزا ورکول)، حد تاکل. ﴿قَاذِف﴾ د ضرب اسم فاعل دی: تهمت لګونکی، تومتګر. ﴿إِحْصَان﴾ د افعال مصدر دی: د ښځي پاک لمنه کېدل، پاک لمني، سپېڅلتوب، له ګناه او کونيتوب څخه ځان ساتل (واده والا کېدل). ﴿الفِرَاش الصَّحِيْح﴾ کله چي خاوند په صحيح نکاح کي د ښځي سره وطي کړي وي او له هغې څخه بچی پيدا سوي وي، نو دې ته الفراش الصحيح وايي (او داسي بچي ته "له صحيح فراش څخه پيدا سوی کوچنی" وايي)، ﴿الفِرَاش الفَاسِد﴾ او که په فاسده نکاح کي د وطي په وجه بچی پيدا سوی وي، يا د وطي بالشبهه په وجه بچی پيدا سوي وي، نو دې ته الفراش الفاسد وايي.

**تشريح:** په دې اوړده عبارت کي د لعان حقيقت او د هغه حيثيت څېړل سوی دی، تفصيل يې دا دی چي کله يو سړی پر خپلي ښځي د زنا تهمت ولګوي، يا د خپلي ښځي د بچي له نسب څخه انکار وکړي چي دا زما بچی نه دی بلکي د بل چا بچی دی، او خاوند او ښځه دواړه د شهادت (ګواهي) أهل

وي، يعني غلام او مينځه نه وي همدارنګه له فسق او فجور څخه پاک وي او ښځه پاک لمنه وي او د هغې پېره هيڅ مجهولَ النسب يا ولدُ الزنا (ارمونی) نه وي، او هغه د خپل خاوند څخه د لعان مطالبه کوي، نو پر خاوند لعان کول يعني په څلورو قسمونو سره د خپل برائت إظهار کول واجب او ضروري دي، همدارنګه پر ښځي هم قسم کول واجب دي.

صاحب د هدايې فرمايي چي د لعان په باب کي اصل دا دی چي زموږ په نيز د لعان شهادتونه د الله په قسم سره مؤکد دي، او دا شهادتونه د "لعان" د لفظ سره متصل دي، او لعان د خاوند په حق کي د حدِ قذف قائم مقام دی، ځکه د جاهليت په زمانه کي د قذفِ (تهمت لګولو) حدّ او سزا حدّ قذف وو.

او دا حکم د اسلام په شروع کي هم باقي وو، لکه څرنګه چي په قرآن کي ذکر سوي دي: "وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ". (يعني کوم خلک چي پر پاک لمنو (صفا) ښځو د زنا تهمت ولګوي، بيا څلور ګواهان پېش نه کړي، نو هغو ته اتيا (۸۰) دُرې سزا ورکړئ!، او د آينده لپاره د هغو ګواهي مه قبلوئ! او همدا خلک فاسقان دي)، دا حکم تر ډېرو ورځو پاته وو، لېکن وروسته د لعان آيتونه نازل سول، او هغه حکم منسوخ سو، او لعان د حدّ قذف قائم مقام کړی سو، د لعان آيتونه دا دي: "وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ○ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَةَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ○ وَيَدْرَأُ عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ○ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ" (يعني کوم خلک چي پر خپلو ښځو د زنا تهمت ولګوي، او د هغو سره تر خپلو ځانو علاوه بل هيڅوک ګواه نه وي، نو په هغو کي د يوه ګواهي همدا ده چي څلور واره د الله قسم وکړي چي زه رېښتونی يم او په پنځم وار کي دا ووايي چي پر ما دي د خدای لعنت وي که زه درواغجن يم، تر دې وروسته له ښځي څخه په دې توګه سزا ليري کېدای سي چي هغه څلور قسمه وکړي چي زما خاوند درواغجن دی او په پنځم وار کي ووايي چي پر ما دي د خدای غضب وي که هغه (زما خاوند) رېښتونی وي).

صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي په دې آيت سره زموږ استدلال په دې توګه دی چي الله د "شُهَدَاء" د لفظ څخه د "أَزْوَاج" (خاوندانو) استثناء کړې ده، او په استثناء کي اصل دا دی چي مستثنیٰ به د مستثنیٰ منه له جنس څخه وي، لهذا زَوج به له شُهَدَاء څخه وي، يعني هغه به هم شاهد (ګواه) وي، او له شهادت څخه بغير د شاهد (ګواه) تحقق کېدای نه سي، او څرنګه چي په دې مسئله

کي د لعان د حکايت بيانولو ته (او د لعان خبرو ته) شهادت وايي. لهذا لعان به د شهات سره متصل وي. او شهادت به د الله په قسم سره مؤکد وي.

**ثم قرن إلخ**: فرمايي چي د خاوند او ښځي په شهادت کي فرق دا دی چي د خاوند په حق کي د لعان رکن (يعني شهادت) د لعان د لفظ (لعنت) سره متصل سوی دی په دې شرط چي کله خاوند په خپل قسم کي درواغجن وي (يعني أَنَّ لَعْنَةَ اللّٰهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِيْنَ). او لعان د خاوند په حق کي د حدّ قذف قائم مقام دی. د دې په خلاف د ښځي په حق کي د لعان رکن (يعني شهادت) د غضب سره متصل سوی دی (يعني أَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِيْنَ). او د ښځي په حق کي لعان د حدّ زنا قائم مقام دی.

**إذا ثبت هذا إلخ**: فرمايي چي کله تاسي ته د لعان حقيقت او حيثيت معلوم سو نو دا په ياد لرئ! چي د خاوند او ښځي لپاره د شهادت أهل کېدل ځکه شرط او ضروري دي چي شهادت د لعان رکن دی. او څرنګه چي د خاوند په حق کي لعان د حدّ قذف قائم مقام دی. نو ځکه د ښځي د محصنه کېدلو (پاک لمنوالي) شرط لګول سوی دی.

**ويجب بنفي إلخ**: فرمايي چي د بچي د نسب په نفي او انکار کولو سره هم لعان واجبيږي. ځکه چي د بچي د نسب نفي کول په حقيقت کي د هغه پر مور تهمت لګول دي. او لعان د همدغه تهمت لګولو په وجه واجبيږي، نو ځکه به د بچي د نسب په نفي سره هم لعان واجبيږي. لکه يو أجنبي (پردی) سړی چي کله د يو معلوم پلار څخه د يو کوچني د نسب نفي وکړي. نو هغه سړی هم د دې کوچني پر مور تهمت لګونکی دی. او پر هغه به هم لعان واجب وي.

**ولا يعتبر إلخ**: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي که خاوند د خپلي ښځي د زوی نفي وکړي. نو په دې سره لعان واجبېدل پکار نه دي. ځکه ممکنه ده (دا احتمال سته) چي دا کوچنی د هغې بچی نه وي او هغه دي زناکاره هم نه وي. په دې توګه چي د هغې سره به وطي بالشبهه سوي وي. او د هغه وطي په سبب به دا کوچنی پيدا سوی وي. د دې په جواب کي فرمايي چي د دې احتمال او شبهي هيڅ اعتبار نسته. ځکه پر دې خبره اجماع سوې ده چي که يو أجنبي سړی له معلوم پلار څخه د يو کوچني د نسب نفي وکړي. نو په دې سره أجنبي سړی قاذف (تهمت لګونکی) شمارل کيږي. او لعان واجبيږي. همداسي به دلته هم خاوند قاذف وي. او لعان به هم واجب وي.

او د دې حکم دليل دا دی چي د نسب په سلسله کي د فراش صحيح کېدل اصل دي. او فاسد فراش د هغه صحيح فراش فرع ده. لهذا تر څو چي په يقيني توګه د فراش د فاسد کېدلو علم نه وي. تر

هغه وخته به صحیح فراش نفي کړل (یعني تر هغه وخته به د خپلي ښځي د بچي نسب نفي کول) تهمت شمارل کیږي.

**ويشترط طلبها الخ:** فرمايي چي د لعان د وجوب لپاره دا شرط او ضروري دي چي ښځه به د لعان مطالبه کوي (او د ښځي له مطالبې څخه بغير لعان نه واجبيږي)، ځکه چي لعان د هغې حق دی. او ښکاره خبره ده چي له مطالبې څخه بغير چا ته حق نه ورکول کيږي. فقط والله أعلم

## له تهمت لګولو څخه وروسته د لعان څخه د خاوند د انکار کولو حکم

فَإِنِ امْتَنَعَ مِنْهُ او که [خاوند] د لعان کولو څخه منع سي [انکار وکړي] حَبَسَهُ الْحَاكِمُ نو حاکم [واکمن] دي هغه قيد کړي حَتَّى يُلَاعِنَ أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ تر دې چي لعان وکړي يا خپل ځان دروغجن کړي [يعني ووايي: چي ما دروغ ويلي دي، ښځه زناکاره نه ده] لِأَنَّهُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ ځکه چي دا پر خاوند يو واجب سوی حق دی وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى إِيفَائِهِ او خاوند د هغه [حق] پر پوره کولو قادر [هم] دی فَيُحْبَسُ بِهِ حَتَّى يَأْتِيَ بِمَا هُوَ عَلَيْهِ أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ نو ځکه به د هغه په بدله کي قيد کيږي تر دې چي هغه حق اداء کړي کوم چي پر ده واجب دی [يعني لعان کول] يا خپل ځان دروغجن کړي لِيَرْتَفِعَ السَّبَبُ د دې لپاره چي سبب پورته سي وَلَوْ لَاعَنَ او که چيري [خاوند] لعان وکړي وَجَبَ عَلَيْهَا اللِّعَانُ نو [بيا] به پر ښځي [هم] لعان کول واجب وي لِمَا تَلَوْنَا مِنَ النَّصِّ د هغه آيت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی إِلَّا أَنَّهُ يُبْتَدَأُ بِالزَّوْجِ خو [د لعان] شروع به له خاوند څخه کيږي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُدَّعِي ځکه چي همدا خاوند [د لعان] دعوه کونکي دی [ځکه چي د هغه د تهمت لګولو په وجه لعان کيږي].

**اللغات:** ﴿إِمْتَنَعَ﴾ د افتعال ماضي ده: منع کېدل (انکار کول). ځان د بو شي څخه ساتل. ﴿حَبِسَهُ﴾ د سمع ماضي ده: قيدول. بندي کول. مجرم بندي خانې ته اچول. ﴿إِيْفَاء﴾ پوره کول (اداء کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله خاوند پر خپلي ښځي د زنا تهمت ولګوي. او بيا ښځه د لعان مطالبه وکړي. نو پر خاوند لعان کول واجب دي. لېکن که خاوند د لعان کولو څخه منع سي او انکار وکړي. نو د وخت حاکم به هغه قيدوي (او بندي خانې ته به يې اچوي). تر دې چي هغه لعان وکړي. يا خپل ځان دروغجن ثابت کړي: دليل دا دی چي د تهمت لګولو په وجه پر خاوند دا حق يعني لعان کول واجب دي. او خاوند د دې حق د پوره کولو قدرت هم لري. لهذا اوس د خاوند د خلاصون لپاره فقط دوې لاري دي، يا به هغه لعان کوي. يا به خپل ځان دروغجن بولي. د دې لپاره

چې د لعان سبب (يعني په خپل مينځ کې د ښځې او خاوند يوه او بل ته درواغجن ويل) ختم سي او پر خاوند حدَ قذف جاري سي.

او که چيري خاوند لعان وکړي، نو بيا به ښځې ته هم د لعان کولو حکم کيږي، ځکه چې په دې آيت ''وَيَدْرَأُ عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللهِ...إلخ'' کې د ښځې لپاره هم د لعان حکم سوی دی. خو د لعان شروع او ابتداء به ځکه له خاوند څخه کيږي چې اول هغه تهمت لګولی دی او هغه د لعان دروازه خلاصه کړې ده. لهذا هغه مدعي سو. نو ځکه به اول هغه لعان کوي. او د هغه تر لعان وروسته به پر ښځې لعان کول واجب وي.

## د لعان څخه د ښځې د انکار کولو حکم

فَإِنِ امْتَنَعَتْ او که چيري ښځه [د لعان کولو څخه] منع سي حَبَسَهَا الْحَاكِمُ نو حاکم دې هغه قيد کړي حَتَّى تُلَاعِنَ أَوْ تُصَدِّقَهُ تر دې چې هغه لعان وکړي يا د خاوند تصديق وکړي [چې زما خاوند رښتيا وايي، ما زنا کړې ده] لِأَنَّهُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهَا ځکه چې [د خاوند تر لعان کولو وروسته] لعان پر هغې واجب سوی حق دی وَهِيَ قَادِرَةٌ عَلَى إِيفَائِهِ او ښځه د هغه [حق] پر پوره کولو قدرت [هم] لري فَتُحْبَسُ فِيهِ نو ځکه به د هغه [حق] په بدله کې قيد کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري ښځه د لعان کولو څخه انکار وکړي. نو د خاوند په څير به ښځه هم قيدي کيږي. تر دې چې هغه لعان وکړي. يا د خپل خاوند تصديق وکړي: دليل دا دی چې د خاوند تر لعان کولو وروسته پر ښځې هم دا حق يعني لعان کول واجب دي. او څرنګه چې ښځه د دې حق د پوره کولو قدرت هم لري. نو ځکه به د انکار په صورت کې ښځه هم قيدي کيږي.

## کله چې خاوند د شهادت أهل نه وي

وَإِذَا كَانَ الزَّوْجُ عَبْدًا أَوْ كَافِرًا أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ او کله چې خاوند غلام وي يا کافر وي يا د تهمت لګولو په وجه حد پر جاري سوي وي فَقَذَفَ امْرَأَتَهُ او [بيا] هغه پر خپلې ښځې تهمت ولګوي فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر هغه حد واجب دی لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ اللِّعَانُ لِمَعْنًى مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې د خاوند له طرفه د يو معنیٰ په وجه لعان متعذر سوی دی فَيُصَارُ إِلَى الْمُوجِبِ الْأَصْلِيِّ نو ځکه به د اصلي موجب وطرف ته رجوع کيږي وَهُوَ الثَّابِتُ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ [النور: ۴] او هغه د الله تعالیٰ په دې فرمان: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ سره ثابت دی وَاللِّعَانُ خَلَفٌ عَنْهُ او لعان د هغه خليفه او نائب دی.

**اللغات:** ﴿يَرْمُوْنَ﴾ د ضرب له باب څخه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: إلزام لګول. تهمت لګول. ﴿مُحْصَنٰتِ﴾ د افعال له باب څخه د جمع مؤنث اسم مفعول صيغه ده: پاک لمني ښځې. ﴿خَلَف﴾ خليفه. نائب. بدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله خاوند پر خپلې ښځې د زنا تهمت ولګوي. او خاوند د شهادت (ګواهۍ) أهل نه وي. مثلاً غلام وي يا کافر وي يا مخکې هم د تهمت لګولو په وجه حدّ قذف پر جاري سوی وي، نو په دې صورت کې به هغه ته د لعان حکم نه کيږي. بلکې پر هغه به حدّ جاري کيږي: دليل دا دی چې دلته نقص د خاوند له طرفه دی (يعني هغه د خپل غلامتوب يا کفر يا محدود في القذف کېدلو په وجه د شهادت أهل نه دی). لهذا د لعان حکم ورته کول متعذر او ناممکن سو، نو ځکه به د قذف (تهمت لګولو) د اصلي موجب و طرف ته رجوع کيږي. چې هغه حدّ قذف دی، ځکه چې د قذف همدا سزا ده، او دغه سزا د قرآن کريم په دې آيت سره ثابته ده: "وَالَّذِينَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمَانِيْنَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا". او څرنګه چې لعان د دغه اصل (يعني د حد قذف) نائب او خليفه دی. نو په دې وجه به د نائب د ناممکنوالي په صورت کې د أصل (حد قذف) حکم بيرته راګرځي. او حدّ قذف به جاري کيږي.

## کله چې ښځه د شهادت أهل نه وي

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ او که [خاوند] د شهادت أهل وي وَهِيَ أَمَةٌ أَوْ كَافِرَةٌ أَوْ مَحْدُوْدَةٌ فِي قَذْفٍ ليکن [د هغه ښځه مينځه وي يا کافره وي يا د تهمت لګولو په وجه حد پر جاري سوی وي أَوْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا يا له داسې ښځو څخه وي چې د هغو پر تهمت لګونکي حد نه جاري کيږي بِأَنْ كَانَتْ صَبِيَّةً أَوْ مَجْنُوْنَةً أَوْ زَانِيَةً په دې توګه چې کوچنۍ نجلۍ [نابالغه] وي يا لېونۍ وي يا زناکاره وي فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ وَلَا لِعَانَ نو [په دې ټولو صورتونو کې] پر خاوند نه حد واجب دی او نه لعان لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ ځکه چې [د هغه په ښځې کې] د شهادت اهليت نسته وَهُوَ عَدَمُ الْإِحْصَانِ فِي جَانِبِهَا او هغه د ښځې په طرف کې د پاک لمنه کېدلو [سپېڅلتوب] نشتوالی دی وَامْتِنَاعُ اللِّعَانِ لِمَعْنًى مِنْ جِهَتِهَا او د لعان ممانعت د يو داسې سبب په وجه دی کوم چې د ښځې له طرفه [ثابت سوی] دی فَيَسْقُطُ |

الْحَدُّ نو ځکه به [له خاوند څخه] حد ساقطیږي كَمَا إِذَا صَدَّقَتْهُ لکه په هغه صورت کي [چي حد ساقطیږي] کله چي ښځه د خاوند تصدیق وکړي وَالْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام [1]: أَرْبَعَةٌ لَا لِعَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ أَزْوَاجِهِمْ او په دې باره کي د نبي ﷺ دا فرمان أصل دی: چي څلور [خاوندان] داسي دي چي د هغو او د هغوی د خپلو ښځو په مینځ کي لعان نسته ایعني څلور صورتونه داسي دي چي په هغوی کي د خاوند او ښځي تر مینځ لعان جاري کېدای نه سي] اَلْيَهُوْدِيَّةُ وَالنَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ وَالْمَمْلُوكَةُ تَحْتَ الْحُرِّ وَالْحُرَّةُ تَحْتَ الْمَمْلُوكِ [او هغه دا دي] ①، ② هغه یهودي او نصراني ښځه کوم چي د یو مسلمان په نکاح کي وي. ③ هغه مینځه کوم چي د آزاد سړي په نکاح کي وي. ④ هغه آزاده ښځه کوم چي د غلام په نکاح کي وي وَلَوْ كَانَا مَحْدُوْدَيْنِ فِي قَذْفٍ او که خاوند او ښځه دواړه محدود فی القذف وي فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر خاوند به حد واجب وي.

**اللغات**: ﴿إِحْصَان﴾ دا افعال مصدر دی: د ښځي پاک لمنه کېدل. پاک لمني، سپېڅلتوب. له ګناه او کونیتوب څخه ځان ساتل. ﴿صَدَّقَتْهُ﴾ د تفعیل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي معلومي صیغه ده: تصدیق کول. ریښتونی ګڼل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چیري خاوند د شهادت أهل وي. لېکن د هغه ښځه د شهادت أهلیت نه لري، په دې توګه چي هغه مینځه وي. یا کافره وي. یا د تهمت لګولو په وجه مخکي حد قذف پر جاري سوی وي. یا هغه کوچنۍ نجلۍ وي. یا لېونۍ وي. یا زانیه وي. نو په دې ټولو صورتونو کې به نه د هغې پر خاوند حد جاري کیږي. او نه به لعان ثابتیږي. لعان خو به ځکه نه ثابتیږي، چي ښځه د شهادت أهل او لائق نه ده. حالانکي د لعان لپاره د خاوند او ښځي دواړو د شهادت أهل کېدل ضروري دي. او حد به ځکه نه جاري کیږي، چي د هغه ښځه محصنه او پاک لمنې نه ده.

**وامتناع اللعان إلخ**: فرمايي څرنګه چي دلته ښځه د شهادت أهل نه ده. او بیا هغه محصنه هم نه ده. نو په دې وجه د لعان منع کېدلو سبب په خپله د هغې له طرفه متحقق سوی دی. لهذا هغه به د خاوند له ذمې څخه حدّ ساقطوي.

**والأصل إلخ**: فرمايي چي د لعان د وجوب او عدمِ وجوب په سلسله کي د نبي کریم ﷺ دا حدیث أصل دی چي: "څلور جوړې (ښځه او خاوند) داسي دي چي د هغو په مینځ کي لعان نه جاري کیږي: ① چي خاوند مسلمان وي. لېکن ښځه یهودیه وي. ② خاوند مسلمان وي. لېکن ښځه نصرانیه وي. ③ خاوند آزاد وي. لېکن ښځه مینځه وي. ④ خاوند غلام وي او ښځه آزاده وي.

[1] تخریج: أخرجه ابن ماجه فی کتاب الطلاق، باب اللعان، حدیث رقم: ٢٠٧١.

د دې په خلاف که ښځه او خاوند دواړه محدود فی القذف وي، او بیا خاوند پر ښځه د زنا تهمت ولګوي، نو په دې صورت کي به پر خاوند حدّ قذف واجب وي؛ ځکه چي د محدود فی القذف کېدلو په وجه خاوند د شهادت أهل نه دی، او څرنګه چي د لعان شروع د خاوند له طرفه کیږي، نو ځکه به د هغه په حق کي عدمِ أهلیت دلعان د منع کېدلو سبب ګرځول کیږي (یعني دا حکم به کیږي چي لعان دخاوند د ناأهل کېدلو په وجه منع سوی دی، یعني دلعان د ممانعت سبب په خپله خاوند دی، نو ځکه به پر هغه حد جارِي کیږي)، او ښځه که څه هم د محدود فی القذف کېدلو په وجه د شهادت أهل نه ده او دلعان د ممانعت سبب ده، خو څرنګه چي شروع د خاوند له طرفه کیږي، نو ځکه به د لعان په ثبوت او واقع کېدلو کي تر ټولو مخکي د خاوند أهلیت ته کتل کیږي. (عنایه)

## د لعان طریقه

وَصِفَةُ اللِّعَانِ: أَنْ يَبْتَدِئَ الْقَاضِي بِالزَّوْجِ او د لعان طریقه دا ده: چي قاضي به په خاوند شروع وکړي فَيَشْهَدُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ يَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ نو خاوند به څلور واره ګواهي ورکړي او په هر وار کي به ووایي أَشْهَدُ بِاللهِ إِنِّي لَمِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَيْتُهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا زه د الله په قسم سره ګواهي ورکوم ایا زه الله ګواه جوړوم] چي زه ریښتونی یم په هغه باره کي کوم چي ما پر ښځي د زنا تهمت لګولی دی [یعني زه ریښتونی یم په هغه دزنا په تهمت کي کوم چي ما پر ښځي لګولی دی] وَيَقُولُ فِي الْخَامِسَةِ: لَعْنَةُ اللهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَاهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا او په پنځم وار کي به ووایي: د الله لعنت دي وي پر ما که چیري زه دروغجن یم په هغه دزنا په تهمت کي کوم چي ما پر ښځي لګولی دی يُشِيرُ إِلَيْهَا فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ [او] په هر وار کي به د ښځي و طرف ته اشاره کوي ثُمَّ تَشْهَدُ الْمَرْأَةُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ تَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ بیا به ښځه څلور واره ګواهي ورکړي او په هر وار کي به ووایي أَشْهَدُ بِاللهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا زه د الله په قسم سره ګواهي ورکوم چي دغه سړی [زما خاوند] دروغجن دی په هغه تهمت د زنا کي کوم چي یې پر ما لګولی دی وَتَقُولُ فِي الْخَامِسَةِ: غَضَبُ اللهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا اوپه پنځم وار کي به ووایي: پر ما دي الله غضب وکړي که چیري هغه [زما خاوند] ریښتونی وي په هغه تهمت د زنا کي کوم چي یې پر ما لګولی دی وَالْأَصْلُ فِيهِ مَا تَلَوْنَاهُ مِنَ النَّصِّ او دلیل په دې سلسله کي هغه آیت دی کوم چي موږ تلاوت کړی وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يَأْتِي بِلَفْظَةِ الْمُوَاجَهَةِ او حسن بن زیاد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت کړی دی چي خاوند به د خطاب لفظ [د مخاطب

صيغه استعمالوي يَقُولُ: فِيمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنَ الزِّنَا او داسي به وايي: فِيْمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنَ الزِّنَا په هغه تهمت د زنا سي کوم چې ما پر تا لګولی دی لِأَنَّهُ أَقْطَعُ لِلِاحْتِمَالِ ځکه چې هغه د خطاب لفظ په پوره توګه د غير احتمال لره ختمونکی دی وَجْهُ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ: أَنَّ لَفْظَةَ الْمُغَايَبَةِ إِذَا انْضَمَّتْ إِلَيْهَا الْإِشَارَةُ انْقَطَعَ الِاحْتِمَالُ او په متن کي چې کوم عبارت ذکر سوی دی د هغه دليل دا دی: چې کله د غائب د لفظ سره اشاره يو ځای سي املاؤ سي انو اهم احتمال ختميږي.

**اللغات:** ﴿صِفَةٌ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي. يوه معنیٰ يې د "طريقې" او "کيفيت" ده. ﴿رَمَيْتُ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد متکلم ماضي معلوم صيغه ده: تهمت لګول. تور او إلزام لګول.

﴿مُوَاجَهَة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مخامخ کېدل. مراد ځني د خطاب صيغه ده. ﴿اِنْضَمَّتْ﴾ د انفعال ماضي ده: يو ځای کېدل (ملاوېدل). متصل کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د لعان کيفيت او طريقه بيان سوې ده. تر هغه مخکي تاسي دا خبره په ياد لرئ! چې کله خاوند پر خپلي ښځي تهمت ولګوي. او بيا ښځه د لعان مطالبه وکړي. نو تر ټولو مخکي دي قاضي د ښځي سره د معافۍ او بخښني خبره وکړي (چې خپل خاوند وبخښه. د لعان معامله پرېږده!). ليکن که ښځه دې ته تياره نه سي. او خاوند د تهمت (قذف) انکار وکړي. نو قاضي دي له ښځي څخه دوه عادل ګواهان طلب کړي. که ښځه ګواهان پېش نه کړی سي. يا خاوند په خپله د تهمت (قذف) اقرار وکړي. نو بيا دي له خاوند څخه بينه (ګواهان) طلب کړي. که چيري د خاوند سره هم بينه نه وي. نو بيا لعان واجبيږي. (مختصر من البناية ج:۵، ص:۳۷۳)

**د لعان طريقه:** دا ده چې قاضي به تر ټولو مخکي خاوند ته د لعان حکم وکړي. او خاوند به د ښځي وطرف ته په اشاره کولو سره پنځه واره شهادت (ګواهي) ورکړي، چې په هغه کي به څلور شهادتونه (ګواهياني) داسي ورکوي: "زه د الله په قسم سره ګواهي ورکوم چې ما د زنا کوم عيب پر ښځي لګولی دی. په هغه کي زه ريښتونی يم". او پنځم وار به ووايي: "که چيري په دې عيب لګولو کي زه درواغجن يم (يا درواغجن سم). نو پر ما دي د الله لعنت وي".

تر دې وروسته به ښځه پنځه واره شهادت ورکړي. د شروع په څلور وارو کي به داسي ووايي: "زه د الله په قسم سره ګواهي ورکوم چې دغه سړي پر ما کوم د زنا عيب لګولی دی. په هغه کي دئ درواغجن دی". او پنځم وار به ووايي: "که چيري دغه سړی په خپل عيب لګولو کي ريښتونی وي. نو پر ما دي د الله غضب وي". دا د لعان طريقه ده. او د دې دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی. کوم چې د باب

په شروع کې هم تېر سو: " وَالَّذِينَ يَرْمُوْنَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ... إلخ".

وروى الحسن إلخ: فرمايي چې حسن بن زياد د امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل کړی دی چې خاوند به په خپل شهادت کې د غائب پر ځای د مخاطب ضمير استعمالوي. او د فِيمَا رَمَيْتُهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا پر ځای به داسې وايي: فِيمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنَ الزِّنَا، ځکه چې په رَمَيْتُهَا کې "هَا" د غائب ضمير دی. او په غائب کې د غير احتمال هم پاتېږي. لېکن په حاضر او مخاطب کې په بشپړه توګه د غير احتمال ختمېږي.

خو وروسته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په کتاب کې چې د غائب کوم ضمير استعمال سوی دی، په هغه سره هم د غير احتمال ختمېږي. ځکه چې هغه د اشارې سره متصل سوی دی (او هغه ته اشاره سوې ده)، او دا ښکاره خبره ده چې اشاره هر ډول احتمال ختموي.

## تر لعان وروسته د فرقت (جدايي) بيان

قَالَ: وَإِذَا الْتَعَنَا لَا تَقَعُ الْفُرْقَةُ حَتَّى يُفَرِّقَ الْحَاكِمُ بَيْنَهُمَا فرمايي: کله چې [خاوند او ښځه] دواړه لعان وکړي نو فرقت نه واقع کېږي تر دې چې قاضي د دوی په مېنځ کې تفريق وکړي [يعني کله چې دواړه د لعان څخه فارغ سي. نو فقط د دوی په لعان کولو سره فرقت نه واقع کېږي، بلکې قاضي به د دوی په مېنځ کې تفريق کوي. نو بيا فرقت واقع کېږي] وَقَالَ زُفَرُ: تَقَعُ بِتَلَاعُنِهِمَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [فقط] د دواړو په لعان کولو سره فرقت واقع کېږي [يعني تر لعان وروسته د قاضي د تفريق کولو ضرورت نسته. بلکې تر هغه وروسته سمدسي په خپله تفريق واقع کېږي] لِأَنَّهُ تَثْبُتُ الْحُرْمَةُ الْمُؤَبَّدَةُ بِالْحَدِيثِ ځکه چې [د لعان] په حديث سره دائمي حُرمت ثابتېږي [يعني ځکه چې په دې حديث الْمُتَلَاعِنَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ سره حرمت مؤبده ثابت سوی دی. او بل دا چې په دې حديث کې د قاضي د تفريق شرط او قيد ذکر سوی نه دی. نو فقط په لعان سره به فرقت ثابتېږي. د قاضي تفريق ته به هيڅ ضرورت نه وي. دا حديث به په راتلونکې عبارت کې د تخريج او تشريح سره بيان سي] وَلَنَا أَنَّ ثُبُوتَ الْحُرْمَةِ يُفَوِّتُ الْإِمْسَاكَ بِالْمَعْرُوفِ زموږ [اول] دليل دا دی: چې د حُرمت ثبوت إمساک بالمعروف [په شرعي توګه ښځه په نکاح کې ساتل] فوتوي [يعني د لعان په وجه حرمت ثابت سو او د هغه په وجه إمساک بالمعروف ساقط سو] فَيَلْزَمُهُ التَّسْرِيحُ بِالْإِحْسَانِ نو ځکه به پر خاوند تسريح بالإحسان [په ښه توګه د ښځې پرېښوول] لازم وي [يعني کله چې د خاوند د خپل لعان په وجه إمساک بالمعروف ختم کړی. نو د آيت په وجه سمدستي پر هغه تسريح بالإحسان واجب سو. يعني چې په خپله و

ښځي ته طلاق ورکړي ا فَإِذَا امْتَنَعَ نَابَ الْقَاضِي مَنَابَهُ دَفْعًا لِلظُّلْمِ لېکن کله چي خاوند اله تسريح بالأحسان څخه امنع سو نو د ظلم لېري کولو لپاره قاضي د هغه قائم مقام سو ايعني کله چي هغه په خپله ښځي ته طلاق نه ورکړي، نو ښکاره خبره ده چي قاضي به د هغه قائم مقام جوړېږي. د دې لپاره چي ښځه د ظلم څخه وساتل سي، ځکه چي خاوند هسي په زوره پردی (أجنبي) ښځه راګرځولې دها دَلَّ عَلَيْهِ قَوْلُ ذٰلِكَ الْمُلَاعِنِ عِنْدَ النَّبِيِّ ﷺ ❶ ازموږ دويم دليل دا دی ا چي پر دې باندي دلالت کوي اد نبي ﷺ په مخ کي ا د لعان کونکي صحابي [دغه] قول كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللهِ اې الله د رسوله ! ما پر هغه ښځي درواغ وتړل فَقَالَ لَهُ: أَمْسِكْهَا نو نبي ﷺ ورته وفرمايل : چي هغه را وګرځوه! ايعني بيرته يې په خپل نکاح کي وساته ! ا فَقَالَ: إِنْ أَمْسَكْتُهَا فَهِيَ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو هغه وويل : که چيري زه دا ښځه راوګرځوم نو هغه [پر ما] په دريو طلاقو سره طلاقه ده قَالَهُ بَعْدَ اللِّعَانِ هغه دا [جمله] تر لعان کولو وروسته وويل ايعني زموږ دويم دليل دا دی چي کله حضرت عويمر عجلاني ﷺ د خپلي ښځي سره لعان وکړی نو تر لعان وروسته يې ښځي ته دري طلاقه ورکړل، له دې څخه معلومه سوه چي تر لعان وروسته هغه وخت فرقت واقع کيږي کله چي خاوند ښځي ته طلاق ورکړي يا قاضي د تفريق فيصله وکړي، فقط په لعان سره فرقت نه واقع کيږي، ځکه که فقط په لعان سره فرقت واقع کېدای، نو بيا به نبي ﷺ خامخا هغه ته د دې خبر ورکړی وای چي په لعان سره په خپله فرقت او طلاق واقع کيږي نو ستا د طلاق ورکولو هيڅ ضرورت نسته، همدارنګه نبي ﷺ به هغه ته د ښځي د راګرځولو حکم هم نه کولای ا وَتَكُونُ الْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةً بَائِنَةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ۞ او دا فرقت به طلاقِ بائن د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ايعني تر لعان وروسته چي کوم فرقت واقع کيږي، هغه د طرفينو په نېز طلاقِ بائن شمارل کيږي، او دامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز حرمت مؤبده شمارل کيږي ا لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي انْتَسَبَ إِلَيْهِ كَمَا فِي الْعِنِّينِ ځکه چي د قاضي فعل به د خاوند وطرف ته منسوب وي لکه په عنين کي [چي منسوب کيږي]. [يعني ځکه چي دلته د قاضي تفريق کول د خاوند د تفريق وطرف ته منسوب سوي دي، لکه کله چي قاضي عنين

---

❶ تخريج: أخرجه البخارى فى كتاب الطلاق باب اللعان ومن طلق بعد اللعان حديث رقم:۵۳۰۸.

حديث دا دی: أَنَّ عُوَيْمِرًا الْعَجْلَانِيَّ جَاءَ إِلَى عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيِّ... فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ. أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا. أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ. أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: قَدْ أُنْزِلَ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ. فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا. قَالَ سَهْلٌ: فَتَلَاعَنَا وَأَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ ﷺ. فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ تَلَاعُنِهِمَا. قَالَ عُوَيْمِرٌ: كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللهِ إِنْ أَمْسَكْتُهَا. فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا. قَبْلَ أَنْ يَأْمُرَهُ رَسُولُ اللهِ ﷺ.

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۲، ص:۱۲۱)، وكذا فى الهداية (ج:۱، ص:۵۱۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۶۱]

(نامرد سړي) ته د علاج لپاره یو کال مهلت ورکړي لیکن هغه جوړ نه سي، نو بیا به قاضي د عنین او د هغه د ښځي په مینځ کي تفریق کوي، او هلته د قاضي تفریق د عنین د تفریق وطرف ته منسوب کیږي او طلاق بائن شمارل کیږي، همداسي به دلته هم د قاضي تفریق طلاق بائن وي].

**اللغات:** ﴿فُرْقَت﴾ جدایي، بېلتون (مراد ځني د ښځي او خاوند تر مینځ طلاق واقع کېدل دي).

﴿مُؤَبَّدَة﴾ أبدي، دائمي، د همېشه لپاره، ﴿إِمْسَاك﴾ د افعال مصدر دی: منع کول، راګرځول، باقي ساتل، ﴿تَسْرِيْح﴾ د تفعیل مصدر دی: پرېښوول، ایله کول، ﴿عِنِّيْن﴾ نامرد، یعني هغه سړی چي د جماع کولو قدرت نه لري.

**تشریح:** مسئله په عبارت کي تشریح سوه.

## تر لعان وروسته دویم وار د واده کولو حکم

وَهُوَ خَاطِبٌ إِذَا أَكْذَبَ نَفْسَهُ عِنْدَهُمَا او [هغه لعان کونکی] خاوند نکاح کونکي دي [یعني نکاح کولای سي] کله چي خپل ځان دروغجن کړي د طرفینو په نیز وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ: هُوَتَحْرِيْمٌ مُؤَبَّدٌ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چي لعان دائمي حرمت دی لِقَوْلِهِ [1] : اَلْمُتَلَاعِنَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ أَبَدًا ځکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي: دوه لعان کونکي [خاوند او ښځه] هیڅکله هم سره یو ځای کېدای نه سي نَصَّ عَلَى التَّأْبِيْدِ [په دې حدیث کي] نبي کریم ﷺ د حرمت همېشتوب صراحت کړی دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْإِكْذَابَ رُجُوْعٌ د طرفینو دلیل دا دی: چي خپل ځان دروغجن کول [له خپل قول څخه] رجوع کول دي وَالشَّهَادَةُ بَعْدَ الرُّجُوْعِ لَا حُكْمَ لَهَا او تر رجوع کولو وروسته د شهادت هیڅ حکم نه پاتېږي وَلَا يَجْتَمِعَانِ مَا دَامَا مُتَلَاعِنَيْنِ او تر څو چي [خاوند او ښځه] دواړه لعان کونکي وي تر هغه وخته سره یو ځای کېدای نه سي وَلَمْ يَبْقَ التَّلَاعُنُ وَلَا حُكْمُهُ بَعْدَ الْإِكْذَابِ او له [خپل ځان] دروغجن کولو څخه وروسته نه لعان پاتېږي او نه د هغه حکم فَيَجْتَمِعَانِ نو ځکه به [تر هغه وروسته خاوند او ښځه] دواړه سره جمع کېدای سي.

**اللغات:** ﴿تَكْذِيْب﴾ د تفعیل مصدر دی: یو څوک دروغجن ګڼل، چا ته دروغجن ویل. دروغجن ګرځول (دروغجن کول)، د إِكْذَاب هم دغه معنیٰ ده.

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب اللعان، حديث رقم: ٢٢٥٠.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی که د لعان او تفريق څخه وروسته خاوند خپل ځان دروا غجن وګڼي (چي ما دروا غ ويلي وو)، نو آيا هغه دويم وار د دې ښځي سره نکاح کولای سي. که نه؟ په دې سلسله کي د طرفينو مسلک دا دی چي خاوند دويم وار د هغې سره نکاح کولای سي. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي تر لعان وروسته ښځه د همېشه لپاره پر دغه سړي حرامېږي. او د آينده لپاره دا سړی هيڅکله هم د هغې سره نکاح کولای نه سي.

**د امام أبو يوسف دليل :** دا حديث دی : الْمُتَلَاعِنَانَ لَا يَجْتَمِعَانِ أَبَدًا. (يعني کوم خاوند او ښځي چي لعان کړی وي. هغه هيڅکله هم سره يو ځای کېدلای نه سي). په دې حديث کي په واضحو الفاظو سره أبدي او دائمي حرمت بيان سوی دی، نو ځکه به د همېشه لپاره د لعان کونکي خاوند او ښځي نکاح حرامه وي.

**د طرفينو دليل :** دا دی چي کله تر لعان کولو وروسته خاوند خپل ځان دروا غجن وګڼي. نو ګواکي هغه له خپل قول څخه رجوع وکړه. او نه خپل قول څخه تر رجوع کولو وروسته د شهادت حکم باطل سو. او کله چي د شهادت حکم باطل سو. نو لعان هم ختم سو. نو ځکه به اوس دويم وار دوی دواړه سره يو ځای کېدای سي.

پاته سو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله حديث، نو د هغه اول جواب دا دی چي د هغه حديث صحيح مطلب دا دی "چي تر څو لعان کونکي خاوند او ښځه پر خپل لعان کولو قائم پاته وي او لعان کوي، تر هغه وخته دوی سره جمع کېدای نه سي. لېکن تر لعان وروسته سره جمع کېدای سي"، او دويم جواب دا دی چي دا حديث موقوف دی. او په موقوف حديث سره دومره قوي حکم ثابتېدای نه سي چي د همېشه لپاره يوه حلاله ښځه حرامه وګرځول سي.

## د نسب نفي کولو د تهمت لعان

وَلَوْ كَانَ الْقَذْفُ بِنَفْيِ الْوَلَدِ او که تهمت لګول د کوچني په نفي کولو سره وي نَفَى الْقَاضِي نَسَبَهُ وَأَلْحَقَهُ بِأُمِّهِ نو قاضي به د دغه کوچني نسب نفي کوي او هغه به د ده [کوچني] د مور سره ملحق کوي وَصُورَةُ اللِّعَانِ: أَنْ يَأْمُرَ الْحَاكِمُ الرَّجُلَ فَيَقُولُ او د لعان صورت به دا وي: چي حاکم به هغه [خاوند] ته حکم وکړي نو هغه به [داسي] ووايي أَشْهَدُ بِاللهِ إِنِّي لَمِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَيْتُكِ بِهِ مِنْ نَفْيِ الْوَلَدِ زه د الله په قسم سره ګواهي ورکوم چي زه رېښتونی يم د کوچني نفي کولو په تهمت کي کوم چي ما پر تا لګولی دی وَكَذَا فِي جَانِبِ الْمَرْأَةِ او همدا [حکم] د ښځي په طرف کي دی [چي هغې ته به حاکم حکم کوي او هغه به د الله په قسم سره ګواهي ورکوي]

**اللغات**: ﴿نَفْي﴾ د ضرب مصدر دی: نفي کول، انکار کول، مراد ځني "د کوچني د نسب انکار کول" دي.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که چیري خاوند پر خپلې ښځې د بچي د نسب نفي کولو تهمت لګولی وي. او دا انکار یې کړی وي چي دا زما بچی نه دي (بلکي د بل چا له نطفې څخه دی)، نو په دې صورت کي به قاضي خاوند ته د لعان حکم کوي، او تر لعان وروسته به قاضي د دې سړي څخه د کوچني نسب ساقطوي، او د کوچني د مور سره به یې یوځای کوي (یعني تر دې وروسته به کوچنی د مور په نامه سره بلل کیږي، نه د پلار په نامه سره).

او په دې صورت کي د لعان طریقه دا ده چي خاوند به داسي وایي: "ما چي پر تا د کوچني د نسب په نفي کولو کوم تهمت (د زنا) لګولی دی، په هغه کي زه رښتونی یم"، او ښځه به داسي وایي: "د کوچني د نسب په انکار سره چي تا کوم تهمت پر ما لګولی دی، په هغه کي ته درواغجن یې!". (یعني ښځه او خاوند به دواړه به خپل لعان کي د کوچني د نسب نفي کولو تذکره کوي).

## د زنا او د کوچني د نسب نفي کولو لعان

وَلَوْ قَذَفَهَا بِالزِّنَا وَنَفْيِ الْوَلَدِ او که چیري [خاوند] پر ښځې د زنا او د کوچني نفي کولو [دواړو] تهمت ولګوي [یعني که خاوند د کوچني د نسب انکار هم وکړي او پر ښځې د زنا تهمت هم ولګوي] ذَكَرَ فِي اللِّعَانِ الْأَمْرَيْنِ نو په لعان کي دي دواړي خبري ذکر کړي [یعني خاوند ته پکار دي چي د لعان کولو په وخت کي د دواړو خبرو وضاحت وکړي او داسي ووایي: فیما رمیتک به من الزنا ونفي الولد] ثُمَّ يَنْفِي الْقَاضِي نَسَبَ الْوَلَدِ وَيُلْحِقُهُ بِأُمِّهِ بیا به قاضي [له پلار څخه] د کوچني نسب نفي کړي او د هغه د مور سره به یې ملحق کړي [د دې دلیل را روان حدیث دی چي په هغه کي هم له پلار څخه د کوچني د نسب نفي کولو او د مور سره د ملحق کولو یادونه سوې ده] لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] نَفَى وَلَدَ امْرَأَةِ هِلَالِ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ هِلَالٍ وَأَلْحَقَهُ بِهَا ځکه روایت سوی دی چي نبي کریم ﷺ د حضرت هلال بن اُمیه د ښځې کوچنی د حضرت هلال څخه نفي کړی او د هغه د مور سره یې لاحق کړی [یعني کله چي حضرت هلال د خپل زوی د نسب انکار وکړی او بیا یې لعان وکړی. نو نبي ﷺ د هغه د زوی نسب د خپل مور سره ملحق کړی او له پلار (حضرت هلال) څخه یې قطع کړی] وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْ هَذَا اللِّعَانِ نَفْيُ الْوَلَدِ او ځکه چي مقصود له دغه لعان

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب اللعان حديث رقم:۲۲۵۶.

ځخه اکوم چې د کوچني دنفي په باره کې وي ا د کوچني نفي کول دي فَيُوَفَّرُ عَلَيْهِ مَقْصُودُهُ نو ځکه به د خاوند مقصود ا په بشپړه توګه ا پوره کيږي فَيَتَضَمَّنُهُ الْقَضَاءُ بِالتَّفْرِيقِ نو اد قاضي ا د جلا کولو فيصله به هغه لره شامله وي ايعني ځکه چې د دغه لعان مقصد له پلار ځخه د کوچني نفي کول دي، نو د دغه مقصد پوره کول به د قاضي ذمه واري وي چې کوچنی له پلار ځخه جلا کړي او د هغه نسب د مور سره ملحق کړي ا

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁: أَنَّ الْقَاضِيَ يُفَرِّقُ وَيَقُولُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځخه روايت دی: چې قاضي به تفريق کوي او اداسي ا به اهم ا وايي قَدْ أَلْزَمْتُهُ أُمَّهُ وَأَخْرَجْتُهُ مِنْ نَسَبِ الْأَبِ چې ما دا کوچنی د هغه د مور سره لازم کړی او د پلار له نسب ځخه مې وېستی لِأَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنْهُ ځکه چې د کوچني نفي کول له تفريق ځخه جلا دي فَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِهِ نو ځکه د نفي کولو يادونه اتذکره اکول ضروري دي.

[يعني له امام ابو يوسف ځخه روايت دا دی چې د خاوند او ښځي په مينځ کې تفريق کول جلا خبره ده، او له پلار ځخه د کوچني نسب قطع کول او د مور سره ملحق کول جلا خبره ده، نو په دې وجه د دواړو تذکره کول ضروري دي، يعني قاضي به تفريق هم کوي او په عليحده توګه به داسي هم وايي: چې ما له پلار ځخه د کوچني نسب قطع کړی او د مور سره مې د هغه نسب ومنښلوي، همداسي په حديث کې هم ذکر سوي دي ا.

**اللغات:** ﴿يُوَفَّر﴾ د تفعيل له باب ځخه د مضارع مجهولي صيغه ده: پوره کول. ﴿يَتَضَمَّنُ﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شامليدل. ﴿يَنْفَکُّ﴾ د انفعال مضارع ده: جلا کېدل، بېلېدل (يعني تفريق جلا خبره ده، او د کوچني نسب نفي کول جلا خبره ده، يعني دا دواړه يو له بل ځخه جلا دي).

**تشريح:** مسئله په عبارت کې تشريح سوه.

## له تهمت ځخه د خاوند د رجوع کولو حکم

فَإِنْ عَادَ الزَّوْجُ وَأَكْذَبَ نَفْسَهُ او که خاوند اله خپل قول ځخه ا رجوع وکړي او خپل ځان درواغجن کړي اچې ما درواغ ووېل، ښځي زنانه ده کړې ا حَدَّهُ الْقَاضِي نو قاضي دې پر هغه حد جاري کړي لِإِقْرَارِهِ بِوُجُوبِ الْحَدِّ عَلَيْهِ ځکه چې هغه پر خپل ځان د حدّ واجبېدلو اقرار کړی دی وَحَلَّ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا او د هغه لپاره د دې ښځي سره نکاح کول روا دي وَهٰذَا عِنْدَهُمَا او دا احکم ا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص: ۶۴۰)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص: ۱۱۹). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۶۲]

دی لِأَنَّهٗ لَمَّا حُدَّ لَمْ يَبْقَ أَهْلًا لِلِّعَانِ ځکه کله چي پر هغه حد جاري کړی سو نو هغه دلعان أهل پاته نه سو فَارْتَفَعَ حُكْمُهُ الْمَنُوْطُ بِهٖ نو کوم حکم چي دهغه سره متعلق وو هغه [هم] ختم سو وَهُوَ التَّحْرِيْمُ او هغه حکم تحريم دی وَكَذٰلِكَ إِنْ قَذَفَ غَيْرَهَا فَحُدَّ بِهٖ او همداسي [حکم دی] کله چي [خاوند له خپلي ښځي څخه بغير] پر بلي ښځي د زنا تهمت ولګوي او د هغه په سبب پر هغه حد جاري کړی سي لِمَا بَيَّنَّا دهغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] بيان کړی وَكَذَا إِذَا زَنَتْ فَحُدَّتْ او همداسي [حکم دی] کله چي ښځه زنا وکړي او [بيا] پر هغې حد جاري کړی سي لِانْتِفَاءِ أَهْلِيَّةِ اللِّعَانِ مِنْ جَانِبِهَا ځکه چي [په دې صورت کي] د ښځي له طرفه دلعان اهليت منتفي [ختم سوی] دی.

**اللغات:** ﴿حَدَّ﴾ د نصر ماضي ده: پر مجرم حد لګول، حدّ جاري کول، تاکل سوې شرعي سزا ورکول. ﴿مَنُوْط﴾ متعلق.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د زنا د تهمت لګولو څخه وروسته خاوند د خپل قول څخه رجوع وکړي. او خپل ځان دروا غجن وګڼي، نو په دې صورت کي د قاضي لپاره حکم دا دی چي پر هغه حدّ جاري کړي. او اتيا (۸۰) دُرې پې ووهي؛ دليل دا دی چي څه وخت خاوند په خپله د قذف اقرار وکړي. نو ګواکي هغه په خپله پر خپل ځان د حدّ لازمونکي سو. او په خپل حق کي د انسان اقرار معتبر وي. نو ځکه به پر هغه حدّ جاري کيږي.

او تر حدّ وروسته هغه خاوند او ښځه د طرفينو په نېز نکاح کولای سي؛ ځکه چي تر حدّ جاري کېدلو وروسته خاوند د لعان أهل پاته نه سو. ځکه چي لعان "شهادت" ته وايي. او د محدود فی القذف کېدلو په وجه هغه د شهادت أهل پاته نه سو. نو په دې وجه هغه د لعان أهل هم پاته نه سو. لهذا کله چي د هغه په حق کي لعان ختم او معدوم سو. نو د لعان په وجه چي کوم حکم ثابت سوی وو يعني تحريم. هغه به هم ختميږي. او دواړه به يو د بل سره نکاح کولای سي.

**وكذالك إلخ:** فرمايي که يو سړی له خپلي ښځي څخه بغير پر يو بلي ښځي د زنا تهمت ولګوي. او بيا پر هغه سړي د تهمت لګولو په وجه حد جاري کړی سي. نو د هغه لپاره د دغه ښځي سره نکاح کول جائز دي. د مخکني دليل په وجه.

**وكذا إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که خاوند او ښځه تر نکاح وروسته او تر دخول مخکي لعان وکړي. بيا ښځه زنا وکړي. او بيا پر هغې حد جاري کړی سي. نو تر دې وروسته د خاوند لپاره د دې ښځي

سره نکاح کول جائز دي؛ ځکه تر حد جاري کېدلو وروسته په دغه ښځه کي د لعان أهليت ختم سو (ځکه چي هغه د شهادت أهل پاته نه سو)، نو په دې وجه د لعان حکم يعني تحريم هم ختم سو فَلَا حَرَجَ فِي التَّزَوُّجِ.

## له تهمت لګولو څخه وروسته د لعان نه واجبېدلو صورتونه

وَإِذَا قَذَفَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ صَغِيرَةٌ أَوْ مَجْنُونَةٌ او کله چي [خاوند] پر خپلي ښځي تهمت ولګوي حال دا چي هغه کوچنۍ [نجلۍ] وي يا لېونۍ وي فَلَا لِعَانَ بَيْنَهُمَا نو [په دې صورت کي] به د خاوند او ښځي په مينځ کي لعان نه وي لِأَنَّهُ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا لَوْ كَانَ أَجْنَبِيًّا ځکه چي د داسي ښځي پر تهمت لګونکي حد نه جاري کيږي که چيري [تهمت لګونکی] پردی سړی وي فَكَذَا لَا يُلَاعِنُ الزَّوْجُ نو همداسي به په خاوند هم لعان نه کيږي [يعني د لعان حکم به نه ورته کيږي] لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه چي لعان د حدّ قذف قائم مقام دی وَكَذَا إِذَا كَانَ الزَّوْجُ صَغِيرًا أَوْ مَجْنُونًا او همدارنګه کله چي خاوند کوچنی وي يا لېونی وي [نو د خاوند او ښځي په مينځ کي به لعان نه جاري کيږي] لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ ځکه چي [په هغه کي] د شهادت اهليت نسته وَقَذْفُ الْأَخْرَسِ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ اللِّعَانُ او د ګونګي د تهمت لګولو سره لعان نه متعلق کيږي [يعني د ګونګي سړي د تهمت لګولو په وجه به پر هغه لعان نه لازميږي] لِأَنَّهُ يَتَعَلَّقُ بِالصَّرِيحِ ځکه چي لعان د صريح [جملې] سره متعلق کيږي كَحَدِّ الْقَذْفِ لکه حدّ قذف وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَهَذَا لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنِ الشُّبْهَةِ او دا [حکم] ځکه دی چي د ګونګي تهمت لګول د شبهې څخه خالي نه وي وَالْحُدُودُ تَنْدَرِئُ بِهَا او حدود په شبهې سره ختميږي [ساقطيږي]

**اللغات:** ﴿قَذْف﴾ د ضرب مصدر دی: تهمت لګول. ﴿أَخْرَس﴾ ګونګی. ﴿لَا يَعْرَى﴾ د فتح له باب څخه د نفي صيغه ده: خالي کېدل. ﴿تَنْدَرِئُ﴾ د انفعال له باب څخه د مضارع صيغه ده: ختمېدل. زائلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديو سړي ښځه کوچنۍ (نجلۍ) وي يا لېونۍ وي، او خاوند پر هغې تهمت ولګوي، نو پر خاوند لعان نه لازميږي: دليل دا دی چي د کوچنيوالي يا لېونتوب په وجه ښځه د شهادت أهل نه ده او که يو أجنبي (پردی) سړي پر دغه صغيره يا مجنونه باندي تهمت

ولګوي، نو پر هغه حد نه جاري کيږي. او څرنګه چې د خاوند په حق کې لعان د حد قائم مقام دی او پر هغه حد نه جاري کيږي، نو لعان به هم نه لازميږي.

همدارنګه که ښځه روغه وي، لېکن د هغې خاوند صغير يا مجنون وي. او پر ښځې تهمت ولګوي، نو په دې صورت کې هم لعان نه لازميږي، ځکه چې لعان د شهادت (ګواهی) څخه عبارت دی. او هغه د شهادت أهل نه دی.

**وقذف الأخرس إلخ:** د دې حاصل دا دی که ګونګی سړی پر خپلې ښځې يا پر يو بلې ښځې په اشاره سره د زنا تهمت ولګوي، نو په دې سره هم لعان نه لازميږي. دليل دا دی چې حدّ او لعان په صريح تهمت لګولو سره لازميږي. او ګونګی سړی په صريحه توګه تهمت نه سي لګولای. نو ځکه به لعان هم نه لازميږي. لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې څرنګه په نکاح، طلاق او داسې نورو کې د ګونګي سړي اشاره معتبره ده. همداسې په لعان کې هم د هغه اشاره معتبره ده. او د هغه په تهمت لګولو سره هم لعان واجبيږي. لېکن زموږ له طرفه امام شافعي ته دا جواب ورکول کيږي چې د ګونګي په اشاره کې د تهمت نه لګولو شبهه هم سته. او په شبهې سره حدّ ساقطيږي. نو ځکه به لعان هم ساقطيږي (ځکه چې لعان او حدّ سره تړلي دي).

## د حمل د نفي کولو حکم

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ: لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّيْ او کله چې خاوند اخپلې ښځې ته اووايي: ستا [په نس کې موجود] حمل زما څخه نه دی فَلَا لِعَانَ نو لعان نسته [يعني په دې صورت کې پر خاوند لعان نه لازميږي] وَهٰذَا قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَزُفَرَ او دا د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله قول دی لِأَنَّهُ لَا يَتَيَقَّنُ بِقِيَامِ الْحَمْلِ ځکه چې د حمل وجود يقيني نه دی فَلَمْ يَصِرْ قَاذِفًا نو هغه [خاوند] تهمت لګونکی نه سو وَقَالَ: أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: اللِّعَانُ يَجِبُ بِنَفْيِ الْحَمْلِ إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د حمل په نفي کولو سره به لعان واجبيږي کله چې دغه [متهمه] ښځه له شپږو مياشتو څخه په کم [مودت] کې کوچنی راوړي وَهُوَ مَعْنٰى مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ او همدغه معنیٰ ده د هغه [حکم] کوم چې په مبسوط کې ذکر سوی دی لِأَنَّا تَيَقَّنَّا بِقِيَامِ الْحَمْلِ عِنْدَهُ ځکه چې د قذف [تهمت لګولو] په

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام (فتح القدير ج:۴، ص:۱۲۴)، وكذا في الهندية (ج:۱، ص:۵۱۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۶۳]

وخت کي موږ ته د حمل د موجودېدلو يقين حاصل سو فَيَتَحَقَّقُ الْقَذْفُ نو ځکه قذف [تهمت لګول] ثابت سو قُلْنَا: إِذَا لَمْ يَكُنْ قَذْفًا فِي الْحَالِ موږ وايو: چي کله في الحاله قذف نسته يَصِيرُ كَالْمُعَلَّقِ بِالشَّرْطِ نو هغه به داسي وګرځي لکه پر شرط چي معلق کړی سوی وي فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ قَالَ: إِنْ كَانَ بِكِ حَمْلٌ فَلَيْسَ مِنِّيْ لهذا داسي به وګرځي لکه خاوند چي ويلي وي: که چيري په تا کي حمل وي [يعني که چيري تا حامله يې!] نو هغه [حمل] زما څخه نه دی وَالْقَذْفُ لَا يَصِحُّ تَعْلِيقُهُ بِالشَّرْطِ او پر شرط باندي د قذف معلق کول صحيح نه دي [نو ځکه به لعان نه لازميږي].

**اللغات:** ﴿يَتَيَقَّنُ﴾ د تفعّل مضارع ده: يقين کېدل (يقيني کېدل)، يقين حاصلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلي ښځي ته ووايي: لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّيْ چي "ستا دغه حمل زما (د نطفې) څخه نه دی"، نو د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې قول سره لعان نه لازميږي، لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که ښځه تر دې قول وروسته له شپږو مياشتو څخه په کم وخت کي کوچنی وزېږوي، نو لعان لازميږي، او په مبسوط کي همدغه حکم ذکر سوی دی.

**دليل:** د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي په کوم وخت کي چي خاوند لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّيْ ويلي دي، په هغه وخت کي د حمل وجود (د ښځي حامله کېدل) يقيني نه دي، لهذا په هغه وخت کي خاوند قاذف (تهمت لګونکی) نه سو، نو ځکه به وروسته هم هغه قاذف نه وي او لعان به نه پر لازميږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي که له شپږو مياشتو څخه په کم مودت کي کوچنی پيدا سي، نو دا خبره به يقيني سي چي د خاوند د قول لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّيْ په وخت کي ښځه حامله وه، لهذا هغه به قاذف او پر ښځي تهمت لګونکی وګرځي، نو ځکه به پر هغه لعان لازم وي.

**قلنا الخ:** په دې سره صاحب د هدايې صاحبينو ته د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه جواب ورکوي، فرمايي چي د خاوند قول (لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّيْ) في الحاله قذف او تهمت نه دی (ځکه دا به هغه وخت تهمت وګرځي، کله چي کوچنی پيدا سي)، نو دا د معلق بالشرط په څير سو يعني داسي سو لکه خاوند چي: إِنْ كَانَ بِكِ حَمْلٌ فَلَيْسَ مِنِّيْ ويلي وي، او تهمت پر شرط معلق کول صحيح نه دي، لهذا کله چي ابتداءً (في الحاله) دا کلام تهمت (قذف) نه سو، نو وروسته به هم تهمت نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

فَإِنْ قَالَ: لَهَا زَنَيْتِ وَهٰذَا الْحَمْلُ مِنَ الزِّنَا اوکه [خاوند] خپلې ښځې ته ووايي: تا زنا کړې ده او دا حمل له زنا څخه دی تَلَاعَنَا نو دواړه دې لعان وکړي لِوُجُودِ الْقَذْفِ ځکه [دلته] قذف موجود دی حَيْثُ ذَكَرَ الزِّنَا صَرِيحًا ځکه چې خاوند صراحتاً زنا ذکر کړې ده وَلَمْ يَنْفِ الْقَاضِي الْحَمْلَ او قاضي به [د دغه] حمل نفي نه کوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَنْفِيهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه به د حمل نفي کوي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] نَفَى الْوَلَدَ عَنْ هِلَالٍ ځکه چې نبي کريم ﷺ د حضرت هلال څخه [د هغه] زوی نفي کړی وو وَقَدْ قَذَفَهَا حَامِلًا [په داسې حال کې] چې حضرت هلال پر خپلې ښځې د حمل په حالت کې قذف لګولی وو وَلَنَا أَنَّ الْأَحْكَامَ لَا تَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ إِلَّا بَعْدَ الْوِلَادَةِ او زموږ دليل دا دی: چې پر حمل أحکام نه مرتب کيږي مګر تر ولادت [پيدا کېدلو] وروسته لِتَمَكُّنِ الِاحْتِمَالِ قَبْلَهُ ځکه چې تر ولادت مخکې [بل] احتمال [هم] امکان لري وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ عَرَفَ قِيَامَ الْحَبَلِ بِطَرِيقِ الْوَحْيِ او حديث پر دې [تأويل] حمل کړی سوی دی چې نبي کريم ﷺ د وحي په ذريعه د حمل وجود [يعني د حضرت هلال د ښځې حامله والی] معلوم کړی وو.

**اللغات:** ﴿حَبَل﴾ حمل. ﴿تَلَاعَنَا﴾ د تفاعل ماضي ده: يو د بل سره لعان کول (يو تر بله لعان کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی پر خپلې ښځې د زنا تهمت ولګوي او دا هم ورته ووايي چې "ستا دغه حمل هم له زنا څخه دی"، نو لعان لازميږي؛ دليل دا دی چې دلته د خاوند له طرفه په صريحو الفاظو سره تهمت لګول (قذف) موجود سو. نو ځکه به لعان لازميږي. خو زموږ په نيز به قاضي د کوچني (حمل) نسب (له پلار) څخه نه نفي کوي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به يې نفي کوي.

**د امام شافعي دليل** دا دی چې کله حضرت هلال بن اميه رضي الله عنه د حمل په حالت کې پر خپلې ښځې تهمت لګولی وو. نو نبي ﷺ د هغه د بچي نسب نفي کړی وو. له دې څخه معلومه سوه چې د کوچني نسب به نفي کيږي.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الطلاق، باب يلحق الولد بالملاعنة، حديث رقم: ٥٣١٥ تعداد.

**زموږ دليل**: دا دی چې د کوچني سره تړله احکام تر ولادت (پیدایښت) وروسته متعلق کيږي. ځکه چې تر ولادت مخکې حمل يقيني نه وي، او د غير حمل شبهه وي، نو بېله څه وجهې به د کوچني نسب (له پلار څخه) نه نفي کيږي.

**والحديث محمول إلخ**: پاته سوه دا مسئله چې نبي کريم ﷺ د حضرت هلال څخه د هغه د کوچني نسب نفي کړی وو، نو د هغه وجه دا ده چې نبي کريم ﷺ ته د وحي په ذريعه دا خبره معلومه سوې وه چې د حضرت هلال ښځه حامله ده، لهذا پر هغه به بله مسئله نه قياسيږي.

## د کوچني د نسب نفي کولو مودت

وَإِذَا نَفَى الرَّجُلُ وَلَدَ امْرَأَتِهِ عَقِيبَ الْوِلَادَةِ او کله چې خاوند [د کوچني] تر ولادت وروسته د خپلې ښځې د کوچني نفي وکړي أَوْ فِي الْحَالَةِ الَّتِي تُقْبَلُ التَّهْنِئَةُ وَتُبْتَاعُ آلَةُ الْوِلَادَةِ يا په هغه حالت کې [د کوچني نفي وکړي] کله چې [د کوچني] مبارکي قبليږي [او ورکول کيږي] يا د پيدايښت سامان رانيول کيږي صَحَّ نَفْيُهُ نو د هغه [خاوند] نفي کول صحيح دي وَلَاعَنَ بِهِ او د هغه په وجه به [خاوند] لعان کوي وَإِنْ نَفَاهُ بَعْدَ ذَلِكَ او که تر دې وروسته نفي وکړي لَاعَنَ وَيَثْبُتُ النَّسَبُ نو [هم] به هغه لعان کوي او نسب به ثابتيږي هَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دی] وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: يَصِحُّ نَفْيُهُ فِي مُدَّةِ النِّفَاسِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د خاوند نفي کول د نفاس په [ټوله] مودت کې صحيح کيږي لِأَنَّ النَّفْيَ يَصِحُّ فِي مُدَّةٍ قَصِيرَةٍ وَلَا يَصِحُّ فِي مُدَّةٍ طَوِيلَةٍ ځکه چې نفي کول په معمولي مودت کې صحيح کيږي او په اوږده مودت کې نه صحيح کيږي فَفَصَلْنَا بَيْنَهُمَا بِمُدَّةِ النِّفَاسِ نو ځکه موږ د دواړو مودتونو په مينځ کې د نفاس په مودت سره فصل کړی دی [يعني د نفاس مودت مو فاصل ګرځولی دی] لِأَنَّهُ أَثَرُ الْوِلَادَةِ ځکه چې نفاس د ولادت أثر دی وَلَهُ: أَنَّهُ لَا مَعْنَى لِلتَّقْدِيرِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د مودت ټاکلو هيڅ فايده نسته لِأَنَّ الزَّمَانَ لِلتَّأَمُّلِ ځکه چې زمانه د غور [او فکر] کولو لپاره وي وَأَحْوَالُ النَّاسِ فِيهِ مُخْتَلِفَةٌ او په دې کې د خلکو حالتونه بېلابېل وي فَاعْتَبَرْنَا مَا يَدُلُّ عَلَيْهِ نو ځکه موږ د هغه

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة علاء الدين الحصكفي رَحِمَهُ الله: والصحيح قول الإمام رَحِمَهُ الله: وكذا في الهندية (ج:١، ص:٥١٩). [القول الراجح ج:١، ص:٣٦٢]

شي اعتبار کړی دی کوم چې پر عدم نفي [د نفي پر نشتوالي] دلالت کوي وَهُوَقَبُولُهُ التَّهْنِئَةَ أَوْ سُكُوتُهُ عِنْدَ التَّهْنِئَةِ أَوِ ابْتِيَاعُهُ مَتَاعَ الْوِلَادَةِ او هغه د خاوند مبارکي قبلول یا د مبارکۍ په کې وخت د هغه چپ [خاموش] پاتېدل یا ولادت سامان رانیول دي أَوْ مُضِيُّ ذٰلِكَ الْوَقْتِ وَهُوَ مُمْتَنِعٌ عَنِ النَّفْيِ یا د دغه وخت تېرېدل دي په داسې حال کې چې خاوند [د کوچني] د نفي کولو څخه منع وي وَلَوْكَانَ غَائِبًا وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْوِلَادَةِ ثُمَّ قَدِمَ او که [خاوند] غائب وي او [د کوچني] په ولادت خبر نه وي [او بیا] هغه راسي تُعْتَبَرُ الْمُدَّةُ الَّتِي ذَكَرْنَاهَا عَلَى الْأَصْلَيْنِ نو [په دې صورت کې] به د هغه مودت اعتبار کیږي کوم چې موږ د دواړو [یعني د امام صاحب او صاحبینو د] اُصولو مطابق بیان کړی.

**اللغات:** ﴿تَهْنِيَة﴾ د تفعیل مصدر دی: مبارکي ورکول. ﴿تُبْتَاع﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهولي صیغه ده: رانیول. ﴿تَأَمُّل﴾ د تفعّل مصدر دی: غور او فکر کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د ښځي تر لنګوالي وروسته سمدستي د هغې د پیدا سوي کوچني نسب له خپل ځان څخه نفي کړي، یا په هغه وخت کي د کوچني نسب نفي کړي کله چي خلک یو بل ته او خاوند ته د کوچني د پیدایښت مبارکي ورکوي، یا په هغه وخت کي نسب نفي کړي، کله چي د کوچني د ولادت سامان رانیول کیږي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په دې دریو سره صورتونو کي نفي کول صحیح دي، او د دغه نفي په وجه پر خاوند لعان واجب دی. او که تر دې شیانو وروسته (یعني تر لنګېدلو، یا تر مبارکیانو، یا تر سامان رانیولو وروسته) خاوند د کوچني نفي وکړي، نو نفي نه صحیح کیږي. او د هغه کوچني نسب د دغه سړي (پلار) سره ثابتیږي او پر دې سړي لعان هم واجبیږي، ځکه چي قذف (تهمت) موجو سو.

د دې په خلاف د صاحبینو مسلک دا دی چي تر څو ښځه په نفاس کې وي، تر هغه وخته به د نسب په نفي کولو سره نفي ثابتیږي، او د کوچني نسب به له پلار څخه نفي کیږي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي د کوچني نسب خو په کم او معمولي مودت کي نفي کېدای سي، لېکن په اوږده مودت کي نفي کېدای نه سي، او څرنګه چي د نفاس مودت یو معمولي مودت دی او نفاس د ولادت اثر هم دی، نو ځکه موږ د نفاس مودت د اوږده او کوچني مودت تر مینځ فاصل وټاکی. او په دغه مودت کي مو د کوچني د نسب نفي کول معتبر او صحیح وګرځول.

**زموږ دلیل:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي مودت او وخت ځکه ټاکل کیږي، چي په هغه کي غور او فکر وکړی سي، لېکن څرنګه چي د انسان ذهني حالت په هر مودت او هر وخت کي یو ډول

نه پاتيږي. او هر ګړی د هغه په سوچ او فکر کي تبديلي راځي. نو په دې وجه د مودت په تعيين او ټاکلو کي هيڅ فايده نسته. نو څکه موږ هغه شيان معتبر ګرځولي دي کوم چي پر عدمِ نفي (د نفي پر نښتوالي) دلالت کوي. څکه کله چي د خلګو د مبارکيانو په وخت کي خاوند خاموش (چپ) وي. يا خاوند په خپله د خلګو مبارکي قبلوي، يا د ولادت د سامان رانيولو په وخت کي خاوند چپ ولاړ وي، نو بيا به همدا ګڼل کيږي چي هغه د کوچني پر ولادت خوشاله دی. او کوچنی خپل زوی ګڼي. او که د دغه شيانو د وقوع په وخت کي هغه د کوچني د نسب نفي وکړي، نو همدا به ګڼل کيږي چي هغه دا کوچنی خپل زوی نه ګڼي. نو څکه موږ وايو چي د دغه شيانو په وخت کي به د هغه نفي معتبره وي، لېکن تر دې شيانو وروسته به د هغه نفي لره هيڅ اعتبار نه وي.

ولو كان غائبا الخ: فرمايي که د کوچني د ولادت (پيدايښت) په وخت کي خاوند نه وي. او چيري چي خاوند وي. هلته هم د کوچني په ولادت خبر نه سي، او بيا کور ته راسي، نو تر راتللو وروسته د کوچني د نسب نفي کولو په صورت کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د خپل اُصول او مودت اعتبار کيږي (کوم چي موږ اوس بيان کړی). او د صاحبينو په نيز به د دوی د خپل مودت او اُصول اعتبار کيږي.

## د يوه غبرګولي کوچني نسب نفي کول

قال: وَإِذَا وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِي بَطْنٍ وَاحِدٍ فرمايي: او کله چي ښځه له يوه نس څخه دوه کوچنيان وزيږوي فَنَفَى الْأَوَّلَ وَاعْتَرَفَ بِالثَّانِي او [خاوند] د اول کوچني نفي وکړي او د دويم کوچني اقرار وکړي يَثْبُتُ نَسَبُهُمَا نو د دواړو نسب به ثابتيږي لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ خُلِقَا مِنْ مَاءٍ وَاحِدٍ څکه چي دوی دواړه غبرګوليان دي کوم چي له يوه مني څخه پيدا سوي دي وَحُدَّ الزَّوْجُ او پر خاوند به حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ أَكْذَبَ نَفْسَهُ بِدَعْوَى الثَّانِي څکه چي د دويم کوچني په دعوىٰ کولو سره هغه خپل ځان دروغجن ثابت کړی دی وَإِنِ اعْتَرَفَ بِالْأَوَّلِ وَنَفَى الثَّانِي او که [خاوند] د اول کوچني اقرار وکړي او د دويم کوچني نفي وکړي يَثْبُتُ نَسَبُهُمَا نو [هم] به د دواړو نسب ثابتيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَاعَنَ او [په دې صورت کي به خاوند لعان کوي لِأَنَّهُ قَاذِفٌ بِنَفْيِ الثَّانِي وَلَمْ يَرْجِعْ عَنْهُ څکه چي هغه د دويم کوچني په نفي کولو سره [پر ښځي] تهمت لګونکی دی او هغه د خپل قول څخه رجوع [هم] کړې نه ده وَالْإِقْرَارُ بِالْعِفَّةِ سَابِقٌ عَلَى الْقَذْفِ او د ښځي اد

عفت [پاک لمنوالي] اقرار کول تر تهمت لګولو مخکې دي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: إِنَّهَا عَفِيفَةٌ ثُمَّ قَالَ: هِيَ زَانِيَةٌ نو داسي سو لکه [خاوند] چي ووايي: هغه [زما ښځه] پاک لمنې ده [او] بيا ووايي: هغه زناکاره ده وَفِي ذٰلِكَ التَّلَاعُنُ او په داسي [ويلو] کي [پر خاوند او ښځي] يو د بل سره لعان کول واجبيږي كَذَا هٰذَا نو همداسي به په دغه صورت کي [هم لعان واجبيږي].

**اللغات:** ﴿تَوْأَم﴾ غبرګولی. ﴿عِفَّة﴾ پاک لمني، سپېڅلتوب. ﴿تَلَاعُن﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل سره لعان کول (يو تر بله لعان کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديوه نس څخه ديوې ښځي دوه کوچنيان پيدا سي. يعني د دواړو کوچنيانو د پيدايښت په مينځ کې له شپږو مياشتو څخه کمه فاصله وي (همدې ته بَطْن وَاحِد وايي)، او بيا خاوند د اول کوچني د نسب نفي او انکار وکړي او د دويم کوچني د نسب اقرار وکړي، نو د دغه سړي سره د دواړو کوچنيانو نسب ثابتيږي؛ ځکه چي دا دواړه غبرګوليان کوچنيان دي او ديوه مني څخه پيدا سوي دي، لهذا دا کېدلای نه سي چي يو کوچنی دي د هغه وي، او بل کوچنی دي د بل چا وي، نو په دې وجه به د دواړو کوچنيانو نسب د هغه سره ثابتيږي. او پر هغه به حدّ قذف جاري کيږي، ځکه چي هغه ديوه کوچني په انکار سره او د بل کوچني په اقرار سره خپل ځانَ دوراغجن ثابت کړی (يعني د خپل ځان تکذيب يې وکړی).

**وإن اعترف إلخ:** او که خاوند د اول کوچني د نسب اقرار وکړي، او د دويم کوچني د نسب نفي وکړي، نو په دې صورت کي هم د دواړو کوچنيانو نسب ثابتيږي، د مخکني دليل په وجه چي دا دواړه غبرګوليان دي، خو په دې صورت کي به پر خاوند حدّ نه جاري کيږي، بلکي لعان به پر واجب وي؛ حد به ځکه نه پر جاري کيږي چي د دويم کوچني تر نفي کولو وروسته هغه د خپل قول څخه رجوع نه ده کړې او د خپل ځان تکذيب يې نه دي کړی، او لعان به ځکه پر واجب وي چي د دويم کوچني په نفي کولو سره هغه پر ښځي تهمت لګونکی سو، ځکه چي د اول کوچني د نسب په اقرار کولو سره ګواکي هغه د خپلي ښځي د پاکوالي (سپېڅلتوب) اقرار کړی دی چي دا ښځه پاک لمنه ده. لېکن د دويم کوچني د نسب په انکار سره ګواکي هغه پر خپلي ښځي د زنا تهمت ولګوی چي دا ښځه زناکاره ده. او وروسته يې د هغه تکذيب هم نه وکړی، نو ځکه به لعان پر واجب وي.



# بَابُ الْعِنِّيْنِ وَغَيْرِهٖ

(دا) باب د عنّين او داسي نورو (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي د هغو خلګو احکام بيان سول. کوم چي روغ رمټ (صحيح سالم) او د نکاح صلاحيت لري. اوس له دې ځايه د هغو خلګو احکام بيانيږي کوم چي د نکاح قابل نه وي. او ښکاره خبره ده چي سالم پر غيرِ سالم مخکي وي. نو په دې وجه د عنين أحکام د روغو (سالمو) خلګو تر احکامو وروسته بيانيږي.

عِنِّيْن: هغه سړي ته وايي کوم چي د جماع او کوروالي قدرت نه لري، برابره ده د هغه آله (ذکر) دريږي او که نه دريږي. صاحب د بنايې د قاضي خان په حواله سره د هغه په تعريف کي ليکلي دي: اَلعِنِّيْنُ مَنْ لَّا يَصِلُ إِلَى النِّسَاءِ مَعَ قِيَامِ الْآلَةِ (يعني عنين هغه سړي ته وايي کوم چي ذکر هم لري، خو بيا هم د ښځي سره پر جماع کولو قدرت نه لري)، وفي الجواهر: اَلعِنِّيْنُ مَنْ لَّا يَنْتَشِرُ ذَكَرُهٗ (په جواهر کي ذکر سوي دي چي: عنين هغه کس ته وايي چي ذکر يې نه منتشر کيږي. يعني ذکر يې نه دريږي او نه لکيږي). او ويل سوي دي چي عنين ته په همدې وجه عنين وايي چي د هغه ذکر سست او ځوړند پاته وي. هيڅ انتشار نه پکښي راځي. (بنايه ج:۵، ص:۳۹۱)

## د عنين احکام

وَإِذَا كَانَ الزَّوْجُ عِنِّيْنًا او کله چي خاوند عنين [غير قادر على الجماع] وي أَجَّلَهُ الْحَاكِمُ سَنَةً نو حاکم دي هغه ته يو کال مهلت ورکړي فَإِنْ وَصَلَ إِلَيْهَا نو که هغه [دېوه کال په دوران کي] اخپلي ښځي ته ورسيږي [يعني د هغې سره جماع وکړی سي، نو صحيح ده] وَإِلَّا فَرَّقَ بَيْنَهُمَا إِذَا طَلَبَتِ الْمَرْأَةُ ذٰلِكَ کنې حاکم دي د دوی په مينځ کي تفريق وکړي [په دې شرط] کله چي ښځه د تفريق مطالبه وکړي هٰكَذَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ همداسي له حضرت عمر، حضرت علي او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه روايت سوي دي وَلِأَنَّ الْحَقَّ ثَابِتٌ لَهَا فِي الْوَطْءِ او ځکه چي د وطي په سلسله کي د ښځي حق ثابت دی وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُوْنَ الْاِمْتِنَاعُ لِعِلَّةٍ مُعْتَرِضَةٍ او احتمال لري [يعني کېدای سي] چي له وطي

څخه د خاوند منع کېدل د يو پيښېدونکي مرض په وجه وي وَيَحْتَمِلُ لِآفَةٍ أَصْلِيَّةٍ او دا احتمال [هم] لري چي [د هغه منع کېدل] د يو اصلي آفت په وجه وي فَلَا بُدَّ مِنْ مُدَّةٍ مُعَرِّفَةٍ لِذٰلِكَ نو د يو داسي مودت [ټاکل] ضروري دي چي هغه د دې معلومونکي وي وَقَدَّرْنَاهَا بِالسَّنَةِ او موږ هغه مودت يو کال ټاکلی دی لِاشْتِمَالِهَا عَلَى الْفُصُولِ الْأَرْبَعَةِ ځکه چي کال پر څلورو فصلونو مشتمل وي فَإِذَا مَضَتِ الْمُدَّةُ وَلَمْ يَصِلْ إِلَيْهَا لهذا کله چي [يو کال] مودت تېر سو او [خاوند] ښځي ته نه ورسېدی او پر جماع يې قدرت پيدا نه کړی [ تَبَيَّنَ أَنَّ الْعَجْزَ بِآفَةٍ أَصْلِيَّةٍ نو ښکاره سوه چي اله جماع څخه د هغه [ عا... کېدل د اصلي آفت په وجه دي فَفَاتَ الْإِمْسَاكُ بِالْمَعْرُوفِ وَوَجَبَ عَلَيْهِ التَّسْرِيحُ بِالْإِحْسَانِ نو إمساک بالمعروف فوت سو او پر هغه [خاوند] تسريح بالإحسان واجب سو فَإِذَا امْتَنَعَ نَابَ الْقَاضِي مَنَابَهُ [ليکن] کله چي هغه اله تسريح بالإحسان څخه [ منع سو نو قاضي د هغه قائم مقام سو فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا نو ځکه به [قاضي] د هغه او د ښځي په مينځ کي تفريق کوي وَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهَا او [د تفريق لپاره] د ښځي مطالبه کول ضروري دي لِأَنَّ التَّفْرِيقَ حَقُّهَا ځکه چي تفريق د هغې حق دی.

**اللغات:** ﴿أَجَّلَ﴾ د تفعيل ماضي ده: مهلت ورکول، مودت ټاکل. ﴿مُعْتَرِضَة﴾ د افتعال مؤنث اسم فاعل دی: عارضي، پيښېدونکې. ﴿آفَة﴾ مصيبت (مرض). ﴿مُعَرِّفَة﴾ د تفعيل مؤنث اسم فاعل دی: ور پېژندونکی، معلومونکی. ﴿نَابَ﴾ د نصر ماضي ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی عنين وي (پر جماع قدرت نه لري). او د هغه ښځه د قاضي په دربار کي د تفريق مطالبه وکړي، نو تر ټولو مخکي به قاضي د هغې خاوند ته د علاج او درملني لپاره يو کال مهلت ورکوي، که چيري هغه ديوه کال په دوران کي علاج او درملنه وکړي او پر جماع قادر سي او د ښځي د شهوت پوره کولو قدرت پيدا کړي، نو صحيح ده. او که تر يوه کال وروسته هم هغه پر جماع قادر نه سي، نو بيا به قاضي د هغه او د ښځي په مينځ کي تفريق کوي.

صاحب د هدايې فرمايي چي عنين ته د يوه کال د مهلت ورکولو حکم له حضرت عمر، حضرت علي او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه نقل سوی دی. لکه څرنګه چي صاحب د بنايې د مصنف عبد الرزاق په حواله سره د هغو اقوال داسي نقل کړي دي: "عن سعيد بن المسيب رضي الله عنه: قال قضى عمر بن الخطاب في العنين أن يؤجل سنة". "وعن علي رضي الله عنه: يؤجل العنين سنة. فإن وصل إليها وإلّا

فرّق بينهما". "وعن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قال: يؤجل العنين سنةً. فإن جامع، وإلّا فرق بينهما". (بنايه ج:۵، ص:۳۹۲). له دې ټولو آثارو څخه دا ښکاره سوه چې عنين ته به يو کال مهلت ورکول کيږي.

او د دې حکم عقلي دليل دا دی چې وطي د ښځې يو ثابت سوی حق دی، لېکن کله چې خاوند له وطي څخه منع سي، نو دا احتمال هم سته چې هغه به په يو عارضي مرض مبتلا وي، او دا احتمال هم سته چې د هغه مرض به اصلي او پيدائشي وي (يعني هغه به همداسي نامرد پيدا سوی وي). او د اصلي او عارض مرض معلومولو لپاره يو مودت ټاکل ضروري دي، نو ځکه موږ په دې سلسله کي د هغه د ازمايښت لپاره د يوه کال مودت ټاکلی دی، ځکه چې کال ټوله پر څلورو فصلونو مشتمول وي: ژمی، دوبی، پسرلی، منی (خزان)، او په دې ټولو فصلونو کي په ښه توګه د مرض هيئت او کيفيت معلوميږي، اوس که خاوند يو کال وروسته حقيقتاً پر جماع قدرت پيدا کړي، او ښځه خوشحاله کړي، نو صحيح ده، کنې همدا به ګڼل کيږي چې د هغه مرض اصلي او پيدائشي دی، نو ځکه هغه پر جماع قادر کېدای نه سي، لهذا د هغه د نه قادر کېدلو په وجه د ښځې په حق کي إمساک بالمعروف فوت سو، نو ځکه به تسريح بالإحسان (په ښه توګه د ښځې جلا کول او طلاق ورکول) واجب وي، لېکن کله چې خاوند له دې څخه منع سي، او د تسريح بالإحسان حکم عملي نه کړي، نو بيا به قاضي د خاوند قائم مقام کيږي او د دواړو په مينځ کي به تفريق کوي، د دې لپاره چې ښځه له نا أهل او نامرد خاوند څخه وژغورل سي.

## د عنين په باب کي د قاضي د تفريق حيثيت

وَتِلْكَ الْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ او دا فرقت به يو طلاق بائن وي لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي أُضِيفَ إِلَى فِعْلِ الزَّوْجِ ځکه چې د قاضي فعل به د خاوند [د فعل] وطرف ته منسوب کيږي فَكَأَنَّهُ طَلَّقَهَا بِنَفْسِهِ نو ګواکي خاوند په خپله هغې طلاق ورکړی دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: هُوَفَسْخٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا فرقت به فسخ وي لَكِنَّ النِّكَاحَ لَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ عِنْدَنَا لېکن زموږ په نيز نکاح فسخ نه قبلوي وَإِنَّمَا تَقَعُ بَائِنَةً او دا فرقت به ځکه طلاق بائن وي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ دَفْعُ الظُّلْمِ عَنْهَا لَا يَحْصُلُ إِلَّا بِهَا ځکه چې [د فرقت] مقصود يعني له ښځې څخه ظلم ليري کول هغه فقط په فرقت بائنه سره حاصليږي لِأَنَّهَا لَوْلَمْ تَكُنْ بَائِنَةً تَعُودُ مُعَلَّقَةً بِالْمُرَاجَعَةِ ځکه که چيري دا فرقت طلاق بائن نه وي

نو ښځه به [بیرته د خاوند] په مراجعت کولو سره ځوړنده وګرځي وَلَهَا كَمَالُ مَهْرِهَا إِنْ كَانَ خَلَا بِهَا او د دغه ښځې لپاره به پوره مهر وي که چیري [عنین خاوند] د هغې سره خلوت کړی وي فَإِنَّ خَلْوَةَ الْعِنِّينِ صَحِيحَةٌ ځکه چې د عنین خلوت صحیح دي وَيَجِبُ الْعِدَّةُ او عدت به [هم پر ښځې] واجب وي لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ مخکې بیان کړی دی هٰذَا إِذَا أَقَرَّ الزَّوْجُ أَنَّهُ لَمْ يَصِلْ إِلَيْهَا او دا ټوله [تفصيل] هغه وخت دی کله چې خاوند دا اقرار وکړي چې هغه ښځې ته رسېدلی نه دی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله قاضي د عنين خاوند او ښځې په مينځ کې تفريق وکړي (یا عنين په خپله ښځه پربږدي)، نو دغه فرقت (او پرېښوول) زموږ په نېز طلاق بائن دی؛ ځکه چې د قاضي دا فعل به د خاوند وطرف ته منسوب کیږي او دا به ګڼل کیږي چې په خپله خاوند هغې ته طلاق ورکړی دی، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله دا فرقت فسخ ګڼي، او په دلیل کې فرمايي چې دغه فرقت ځکه واقع سوی دی چې ښځې د تفريق مطالبه کړې ده، او هر هغه فرقت کوم چې د ښځې له طرفه وي، هغه ته فسخ ویل کیږي، ځکه چې ښځه د طلاق أهل نه دي، خو زموږ له طرفه امام شافعي ته دا جواب ورکول کیږي چې نکاح کله پوره سي، نو بیا فسخ نه قبلوي، نو ځکه به دا فرقت فسخ نه وي، او دا فرقت که څه هم د ښځې په مطالبه سره واقع سوی دی خو د دې مطالبې اصلي سبب خاوند دی، لهذا دا فرقت اصلاً د خاوند له طرفه راغلی دی، نو ځکه به طلاق بائن شمارل کیږي.

**وإنما تقع إلخ:** فرمايي چې دلته واقع سوی فرقت په دې وجه هم طلاق بائن دی چې له دغه فرق څخه مقصود دا ده چې ښځه د نا أهل خاوند څخه خلاصه سي، او دا خلاصون فقط په طلاق بائن سره ممکن دی، ځکه که طلاق رجعي واقع سي، نو بیا به خاوند د مراجعت کولو په ذریعه بیرته پر ښځه ومبنلي، او ښځه به بیله جماع هسې ځوړنده پاته سي (ځکه چې عنين پر جماع قدرت نه لري) او پورتني مقصود به حاصل نه سي.

**وإنما تقع إلخ:** فرمايي که عنين د دغه ښځې سره خلوت وکړي، نو د هغه خلوت صحيح دی او د دې خلوت په وجه پر هغه کامل مهر واجبیږي او پر ښځې به عدت هم اجب وي؛ ځکه چې دا وهم سته چې د هغې رحم به د خاوند په مني سره مشغول وي، او دا وهم فقط د عدت په ذریعه لیري کېدای سي، نو ځکه به عدت واجب وي.

**هذا إذا أقر إلخ:** فرمايي چې دغه حکم او تفصيل هغه وخت دی، کله چې خاوند دا اقرار کوي چې زه ښځې ته نژدې سوی نه یم، یعني تر اوسه مي پر وطي او جماع قدرت پیدا کړی نه دی، لېکن که خاوند انکار وکړي، نو بیا څه حکم دی؟ راتلونکي عبارت ته وګورئ!

## که خاوند له ښځې عنت (عنين کېدو) څخه انکار وکړي؟

وَلَوِاخْتَلَفَ الزَّوْجُ وَالْمَرْأَةُ فِي الْوُصُوْلِ إِلَيْهَا او که خاوند او ښځه اختلاف وکړي هغې ته په رسېدلو کې ايعني دهغې سره په وطي کولو کې| فَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِيْنِهٖ نو که چيرې ښځه ثيبه وي نو د خاوند قول به د هغه دَ قسم سره معتبر وي لِأَنَّهُ يُنْكِرُ اسْتِحْقَاقَ حَقِّ الْفُرْقَةِ ځکه چې هغه د فرقت د حق د حقداره کېدلو انکار کوي اچې ښځه د فرقت حقداره نه ده| وَالْأَصْلُ هُوَ السَّلَامَةُ فِي الْجِبِلَّةِ او اصل په پيدايښي [فطري] توګه [د ذکَر] سالم پاتېدل دي ايعني اصل همدا دي چې د پيدايښت په وخت کې د هر سړي د تناسل آله (ذکَر) صحيح، سالم وي| ثُمَّ إِنْ حَلَفَ بَطَلَ حَقُّهَا بيا که [عنين خاوند] قسم وکړي نو د ښځې حق به باطليږي وَإِنْ نَكَلَ يُؤَجَّلُ سَنَةً او که هغه اله قسم څخه| انکار وکړي نو يو کال مهلت ته به ورکول کيږي وَإِنْ كَانَتْ بِكْرًا او که [د هغه] ښځه باکره وي نَظَرَ إِلَيْهَا النِّسَاءُ نو ښځې به هغې ته ګوري ايعني د هغې معاينه او کتنه به کوي| فَإِنْ قُلْنَ: هِيَ بِكْرٌ نو که هغوی ووايي: چې هغه باکره ده أُجِّلَ سَنَةً نو [په دې صورت کې به| خاوند ته يو کال مهلت ورکول کيږي لِظُهُوْرِ كَذِبِهٖ ځکه چې د هغه دروغ ښکاره سو وَإِنْ قُلْنَ: هِيَ ثَيِّبٌ او که ښځې ووايي: چې هغه ثيبه ده [او عنين په وطي سره د هغې بکارت ختم کړی دی| يَحْلِفُ الزَّوْجُ نو خاوند به قسم کوي فَإِنْ حَلَفَ لَا حَقَّ لَهَا نو که هغه قسم وکړي نو ښځې لره به هيڅ حق [او اختيار] نه وي وَإِنْ نَكَلَ يُؤَجَّلُ سَنَةً او که [خاوند له قسم څخه] انکار وکړي نو هغه ته به يو کال مهلت ورکول کيږي.

**اللغات:** ﴿ثَيِّب﴾ واده سوې ښځه، هغه ښځه چې د بکارت پرده يې ختمه سوې وي. ﴿جِبِلَّة﴾ فطرت. ﴿نَكَلَ﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر، سمع او ضرب ټولو څخه راځي: له يو کار څخه شاته کېدل (بې ننګي ښکاره کول)، له قسم څخه انکار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که عنين خاوند دا دعویٰ وکړي چې "زه خپلې ښځې ته نژدې سوی يم او وطي مې ور سره کړې دي" لېکن ښځه انکار کوي او هغه ثيّبه وي، نو په دې صورت کې به د خاوند قول د قسم سره معتبر وي؛ دليل دا دی چې دلته خاوند د فرقت د حق نه ثابتېدلو او د وطي د ثابتېدلو دعویٰ کونکي (مدعي) دی. چې د دې مطلب دا دی چې د هغه آله (ذکَر) صحيح، سالم دی، او أصل هم دا دی چې په فطري او پيدائشي توګه د سړي ذکَر صحيح، سالم پاتيږي (نو د خاوند دعوه د أصل او ظاهري حال موافق ده)، لېکن ښځه د هغه (ذکَر) د سلامتی انکار کوي، نو په دې وجه د ښځې قول د ظاهر (ظاهري حال) خلاف دی، او د

خاوند قول د ظاهر مطابق دی. او قاعده دا ده چي د چا قول د ظاهر موافق وي. د هغه قول به د قسم سره معتبر وي، د قاعدې الفاظ دا دي: اَلْأَصْلُ أَنَّ مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِيْنِهِ. نو ځکه به د قسم سره د خاوند قول معتبر وي.

**ثم إن حلف إلخ:** فرمايي که چيري خاوند قسم وکړي، نو بيا د ښځي حق باطليږي. لېکن که هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو بيا د علاج او درملني لپاره هغه ته يو کال مهلت ورکول کيږي. دا ټوله تفصيل هغه وخت دی کله چي ښځه ثيبه وي.

لېکن که ښځه باکره وي، نو بيا به د هغې معامله څو ښځو ته سپارل کيږي چي هغوی به د دې باکري ښځي د بکورت او ثيوبت معاينه او کتنه کوي، نو که هغوی د دې ښځي د باکره والي (بکورت) فيصله وکړي. نو بيا به د هغې خاوند ته يو کال مهلت ورکول کيږي، ځکه چي خاوند درواغجن ثابت سو. او که هغوی د دې ښځي د ثيبه والي (ثيوبت) فيصله وکړي، نو بيا به له خاوند څخه قسم اخيستل کيږي، ځکه کېدای سي چي د هغې بکارت به له وطي څخه بغير د ټوپ وهلو يا داسي بل شي په وجه زائل سوی دی. لهذا که خاوند قسم وکړي (چي ما وطي ور سره کړې دي)، نو بيا به همدا طرف مؤکد سي او د ښځي حق به ختم سي. لېکن که خاوند له قسم څخه انکار وکړي، نو بيا به د ښځي دعوی ته يو ډول تقويت حاصل سي. او خاوند ته به يو کال مهلت ورکول کيږي، د دې لپاره چي هغه د علاج او درملني په ذريعه خپل ځان روغ، جوړ کړي.

صاحب د بنايې او عنايې ليکلي دي چي د ښځي د بکورت او ثيوبت معلومولو لپاره درې طريقې دي: ①... د ښځي شرمګاه (فرج) ته دي د چرګي کوچنۍ هګۍ داخله کړی سي، که هغه هګۍ په آساني سره د ښځي په شرمګاه کي ولاړه سي، نو هغه به ثيبه ګڼل کيږي. لېکن که هغه په آساني سره ولاړه نه سي، نو بيا به هغه باکره ګڼل کيږي. ②... دويم صورت دا دی چي د هغې ښځي لپاره پر دېوال متيازي کول ممکن وي، نو باکره ده. کنې ثيبه ده. ③... دريم صورت دا دی چي هګۍ دي ماته کړی سي او د ښځي شرمګاه ته دي واچول سي، که د هګۍ مواد دننه ولاړ سي. نو هغه ثيبه ده. کنې باکره ده. (بنايه ج: ۵، ص: ۳۹۵)

## د مقطوعُ الذکر خاوند او خصي خاوند حکم

وَإِنْ كَانَ مَجْبُوبًا او که [خاوند] مقطوع الذکر وي فَرَّقَ بَيْنَهُمَا فِي الْحَالِ نو د ښځي او خاوند په مېنځ کي به في الحاله [سمدستي] تفريق کيږي إِنْ طَلَبَتْ [په دې شرط] که چيري ښځه [د تفريق] مطالبه وکړي لِأَنَّهُ لَا فَائِدَةَ فِي التَّأْجِيلِ ځکه چي [هغه ته] په مهلت ورکولو کي هيڅ فائده نسته [يعني کله د خاوند ذکر پرېکړی سوی وي نو د علاج لپاره په مهلت ورکولو سره هغه نه جوړېدلای او نه پر وطي قدرت پيدا کولای سي. نو ځکه د ښځي په مطالبه سره قاضي د دوی په مېنځ کي تفريق کوي] وَالْخَصِيُّ يُؤَجَّلُ كَمَا

يُؤَجَّلُ الْعِنِّيْنُ او خصي خاوند ته به داسي مهلت ورکول کيږي لکه څرنګه چي عنين ته مهلت ورکول کيږي لِأَنَّ وَطْأَهُ مَرْجُوٌّ ځکه چي د هغه دوطي کولو اُميد سته ائکه چي د خصي ذکر موجود وي، فقط په خصيتينو (خوټو) کي يې خامي وي، نو دا اُميد سته چي په علاج کولو او په معجون يا داسي بل طاقتور درمل سره هغه جوړ سي او پر وطي قادر سي، نو ځکه به هغه ته هم د علاج لپاره يو کال مهلت ورکول کيږي.

**اللغات:** ﴿مَجْبُوْب﴾ هغه سړی چي ذکر يې پرېکړی سوي وي، ﴿خَصِي﴾ خسي هغه سړی چي خوټي (خصيتين) يې ټکول سوي وي.

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## که تر مهلت وروسته عنين د جماع کولو دعوی وکړي او ښځه انکار وکړي؟

وَإِذَا أُجِّلَ الْعِنِّيْنُ سَنَةً او کله چي عنين ته يو کال مهلت ورکول سي وَقَالَ: قَدْ جَامَعْتُهَا وَأَنْكَرَتْ او [په دې دوران کي] هغه ووايي: چي ما د ښځي سره جماع وکړه او ښځه [د هغه] انکار وکړي نُظِرَ إِلَيْهَا النِّسَاءُ نو ښځي به هغې ته وګوري [يعني د هغې معاينه به وکړي] فَإِنْ قُلْنَ: هِيَ بِكْرٌ که ښځي ووايي: چي هغه باکره ده خُيِّرَتْ نو هغې ته به اختيار ورکول کيږي لِأَنَّ شَهَادَتَهُنَّ تَأَيَّدَتْ بِمُؤَيِّدٍ وَهِيَ الْبَكَارَةُ ځکه چي د ښځو شهادت په يو مؤيد سره قوي سو چي هغه بکارت دی [د دې جملې مطلب همدا دی چي د ښځو شهادت د دې خبري تائيد وکړی چي هغه باکره ده] وَإِنْ قُلْنَ: هِيَ ثَيِّبٌ او که ښځي ووايي: چي هغه ثيبه ده حَلَفَ الزَّوْجُ نو خاوند به قسم کوي فَإِنْ نَكَلَ او که [خاوند له قسم څخه] انکار وکړي خُيِّرَتْ نو هغې ته به اختيار ورکول کيږي لِتَأَيُّدِهَا بِالنُّكُوْلِ ځکه چي [د خاوند] په انکار سره د هغې تائيد وسو وَإِنْ حَلَفَ او که [خاوند] قسم وکړي لَا تُخَيَّرُ نو هغې ته به اختيار نه ورکول کيږي.

**اللغات:** ﴿تَأَيَّدَتْ﴾ د تفعّل ماضي ده: مضبوطېدل، مؤيّد کېدل، تأئيد حاصلېدل. ﴿بَكَارَة﴾ باکره کېدل (او د ښځي په فرج کي هغه پرده کوم چي د پېغلتوب او د ښځي د سالمتوب او سپېڅلتوب نښه وي).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي کله قاضي عنين خاوند ته يو کال مهلت ورکړي، او د کال په دوران کي عنين قاضي صاحب ته ووايي چي ما خو د ښځي سره وطي وکړي او د هغې کار مي وکړی (ثيبه مي وګرځول)، لېکن ښځه بيا د دې انکار کوي، نو قاضي دي د ښځو يوه غونډه تشکيل کړي چي د دغه د

بکورت او ثيوبت معاينه وکړي، نو که هغوی دا ښځه باکره وګڼي، نو بيا به هغې ته د تفريق او عدمِ تفريق اختيار سي، او د هغې د خوښې مطابق به فيصله کيږي، ځکه چي د ښځو په شهادت سره د هغې دا دعویٰ (چي زه ثيبه نه يم، بلکي باکره يم) نوره مؤکده او مضبوطه سوه. نو ځکه به هغه ربښتوني شمارل کيږي او خاوند به دروغجن ګڼل کيږي او د ښځي د خوشی مطابق به فيصله کيږي.

لېکن که هغه ښځو وويل چي دا ښځه ثيبه ده، نو له خاوند څخه به قسم اخيستل کيږي. که چيري خاوند له قسم کولو څخه انکار وکړي، نو بيا به ښځي ته (د تفريق او عدمِ تفريق) اختيار وي. ځکه چي د قسم په انکار سره د ښځي دعویٰ مضبوطه سوه، نو ځکه به د ښځي د خوښې او اختيار مطابق فيصله کيږي، او که خاوند قسم وکړي، نو د دې ښځي حق به باطليږي او فيصله به د خاوند په لاس کي وي، ځکه چي د معاينه کونکو ښځو په شهادت او د هغه په خپل قسم سره د هغه دعویٰ مضبوطه سوه.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا فِي الْأَصْلِ او که ښځه په اصل کي [يعني دعنين سره تر نکاح کولو مخکي] ثيبه وي فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ نو د قسم سره به د هغه قول معتبر وي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او مونږ د دې [دليل] ذکر کړی دی فَإِنِ اخْتَارَتْ زَوْجَهَا بيا که ښځه خپل خاوند اختيار کړي لَمْ يَكُنْ لَهَا بَعْدَ ذَلِكَ خِيَارٌ نو تر دې وروسته به هغې ته اختيار نه وي لِأَنَّهَا رَضِيَتْ بِبُطْلَانِ حَقِّهَا ځکه چي هغه د خپل حق په باطلېدلو راضي سوه وَفِي التَّأْجِيلِ تُعْتَبَرُ السَّنَةُ الْقَمَرِيَّةُ او په مهلت ورکولو کي به د قمري کال اعتبار کيږي هُوَ الصَّحِيحُ ❁ همدا صحيح [او ظاهر روايت] دی لېکن غير ظاهر روايت دا دی چي د شمسي کال اعتبار به کيږي [وَيُحْتَسَبُ بِأَيَّامِ الْحَيْضِ وَبِشَهْرِ رَمَضَانَ او د حيض ورځي او د رمضان مياشته به [په هغه کال کي هم] شمارل کيږي لِوُجُودِ ذَلِكَ فِي السَّنَةِ ځکه چي دا په کال کي موجود دي [يعني دا ورځي او دا مياشته خامخا په کال کي راځي] وَلَا يُحْتَسَبُ بِمَرَضِهِ وَمَرَضِهَا او د خاوند او ښځي [دا] مرض [ورځي] به نه شمارل کيږي لِأَنَّ السَّنَةَ قَدْ تَخْلُو عَنْهُ ځکه چي کله نا کله کال د مرض څخه خالي وي.

---

❁ القول الراجح: هو غير ظاهر الرواية، يعني أنه يؤجل سنة شمسية، كما قال العلامة ابن الهمام (فتح القدير ج:۴، ص: ۱۳۲)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۴۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۶۵]

**اللغات:** ﴿بُطْلَان﴾ د نصر مصدر دی؛ باطلېدل. ﴿تَأْجِيل﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل، مهلت ورکول. ﴿يُحْتَسَبُ﴾ د افتعال له باب څخه د مضارع مجهولي صيغه ده: شمارل، حسابل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که ښځه له پخوا څخه ثيبه وي او بيا د جماع په هکله د عنين خاوند او ښځي اختلاف سي، نو په دې صورت کي به د خاوند قول د قسم سره معتبر وي، دليل مخکي تېر سو چي خاوند د فرقت د ثبوت منکر دی، او ښځه مدعيه ده، او کله چي د مدعي سره بينه نه وي نو د قسم سره به د منکر قول معتبر وي. او که له قسم څخه د خاوند د انکار کولو په وجه ښځي ته اختيار ورکول سي، او ښځه خپل خاوند اختيار کړي، اوس به د دأئيده لپاره د هغې خيار حق ساقط کيږي (يعني بيا به هغې د تفريق د مطالبه کولو اختيار نه وي)، ځکه چي هغې د خاوند په اختيارولو سره خپل حق باطل کړی، او د خپل حق پر باطلولو راضي هم سه.

**وفي التأجيل:** فرمايي کله چي عنين ته يو کال مهلت ورکول کيږي، نو په هغه کي به د قمري کال اعتبار کيږي (چي هغه ټوله ۳۵۴ ورځي دی)، همدا ظاهر روايت دی، او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي په هغه کي به د شمسي کال اعتبار کيږي (چي هغه ټوله ۳۶۵ ورځي دی)، او صحيح ظاهر روايت دی (چي د قمري کال اعتبار به کيږي)، لېکن صاحب د "قول الراجح" ليکلي دي چي راجح او مفتیٰ به غير ظاهر روايت دی چي په مهلت ورکولو کي به د شمسي کال اعتبار کيږي.

او د يوه کال په مودت کي به د ښځي د حيض ورځي او د رمضان مياشته هم شمارل کيږي، ځکه چي دا شيان خامخا په يوه کال کي راځي، نو ځکه به هغه له حساب څخه نه جلا کيږي، خو داسي کېدای سي چي په يوه کال کي هم مرض را نه سي، نو ځکه به د خاوند د مرض مودت او د ښځي د مرض مودت د کال په ورځو کي نه شمارل کيږي، مثلاً که يوه مياشت خاوند په مرض (ناجوړي) مبتلا سي، او يوه مياشت ښځه په مرض مبتلا سي، نو بيا به خاوند ته له يو کال څخه بغير دوې مياشتي نور مهلت ورکول کيږي، ځکه چي دا دوې مياشتي شمارل سوي نه دي.

## د ښځي د عيبونو (مرضونو) په وجه د نکاح نه فسخ کېدلو بيان

وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجَةِ عَيْبٌ او که په ښځه کي يو عيب وي فَلَا خِيَارَ لِلزَّوْجِ نو خاوند لره به د نکاح فسخ کولو اختيار نه وي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: يُرَدُّ بِالْعُيُوبِ الْخَمْسَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د پنځو عيبونو په وجه نکاح فسخ کېدلای سي وَهِيَ الْجُذَامُ وَالْبَرَصُ وَالْجُنُونُ وَالرَّتَقُ وَالْقَرْنُ او هغه جذام، پيس، لېونتوب، د جماع د لاري بندېدل او د جماع په لار کي د هډوکي پيدا کېدل دي لِأَنَّهَا تَمْنَعُ الِاسْتِيفَاءَ حِسًّا أَوْ طَبْعًا ځکه چي دا عيبونه په حسي يا طبعي توګه له مقصود حاصلولو او استفاده کولو څخه مانع دي وَالطَّبْعُ مُؤَيَّدٌ بِالشَّرْعِ او د طبع تائيد په شريعت سره سوی دی قَالَ:

الحديث ❶ : فِرَّ مِنَ الْمَجْذُوْمِ فِرَارَكَ مِنَ الْأَسَدِ نبي ﷺ فرمايلي دي: له جذام نيولي سړي څخه داسې تېښته! [ځغله] لکه له شېر څخه چې تېښتې وَلَنَا أَنَّ فَوْتَ الِاسْتِيفَاءِ أَصْلًا بِالْمَوْتِ لَا يُوجِبُ الْفَسْخَ زموږ دليل دا دى: چې د مرګ په وجه سره په پوره توګه د استفادې ختمېدل هم فسخ نه واجبوي ايعني د مرګه په وجه په پوره استفاده کول ختمېږي لېکن بيا هم نکاح نه فسخ کېږي] فَاخْتِلَالُهُ بِهٰذِهِ الْعُيُوبِ أَوْلٰى نو په دې عيبونو سره به د استفادې مختل کېدل [عيبي کېدل] په درجه اولیٰ سره فسخ نه واجبوي وَهٰذَا لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ مِنَ الثَّمَرَاتِ او دا ځکه چې استفاده [فايده اخيستل] د نکاح له ثمراتو څخه دي وَالْمُسْتَحَقُّ هُوَ التَّمَكُّنُ او [اصلي] د حق وړ هغه [پر ښځي] قدرت حاصلېدل دي وَهُوَ حَاصِلٌ او هغه [دلته خاوند ته] حاصل دي.

**اللغات:** ﴿جُذَام﴾ خوراره، پړنګ، يو ډول بده ساري ناروغي ده. ﴿بَرَص﴾ د پيس مرض. ﴿رَتْق﴾ د ښځي په شرمګاه (فرج) کي دوې لاري دي: يوه د متيازي کولو لاره ده، او بله د وطي کولو لاره ده. لېکن که دواړې لاري يو سوي وي (يعني د متيازو د لاري څخه بغير بله لاره نه وي)، او جماع ور سره کول مشکل وي، نو دې ته رَتْق وايي. ﴿قَرْن﴾ ښکر. دا هغه مرض ته وايي چې د ښځي په شرمګاه په کي د ښکر په څير هډوکي پيدا سي، او لاره دومره تنګه کړي چې د سړي لپاره خپل ذکر داخلول ناممکن وي. ﴿اِسْتِيفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: په پوره توګه حاصلول (مراد ځني مقصود حاصلول او له ښځي څخه استفاده کول دي). ﴿مَجْذُوْم﴾ جذام نيولى (جذام وهلی)، په خوراره مبتلا. ﴿تَمَكُّن﴾ د تفعل مصدر دی: قدرت حاصلول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په يوه ښځه کي داسي خطرناک عيب او مرض پيدا سي چې هغه له جماع څخه مانع وي، نو په دې صورت کي هم زموږ په نيز خاوند ته د نکاح فسخ کولو حق نسته. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که په مذکوره پنځو عيبونو کي يو عيب په ښځه کي پيدا سي، نو د دغه عيب په وجه به خاوند ته د نکاح فسخ کولو (ماتولو) حق او اختيار حاصل وي، هغه پنځه عيبونه دا دي: ① جذام، ② برص (د پس مرض)، ③ جنون (لېونتوب)، ④ رَتْق (چې د ښځي په فرج کي د متيازو د لاري څخه بغير بله لاره نه وي)، ⑤ قَرْن (چې د ښځي په شرمګاه کي هډوکي پيدا سي، او لاره دومره تنګه سي چې سړي دخول کولای نه سي)، دا پنځه عيبونه دي، او په دوی کي هر عيب له جماع څخه طبعاً مانع دی، يا حساً. لکه څرنګه چې آخري دوه يعني رتق او قرن په حسّي توګه د جماع مانع دي، ځکه که په ښځي کي دا عيبونه وي، نو بيا له ښځي څخه استفاده کول ناممکن دي، او اول درې عيبونه طبعاً د جماع مانع دي. ځکه په

❶ تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه، باب من كان يتقى المجذوم، حديث رقم: ٢٤٥٤٣

داسي عيبونو مبتلا ښځي ته د انسان خواهش نه کيږي، بلکي طبيعت يې له داسي ښځي څخه کرکه او انکار کوي، او دا انکار دومره قوي دی چي په خپله نبي کريم ﷺ د هغه تائيد کړی دی، فرمايي: فِرَّمِنَ الْمَجْذُوْمِ فِرَارَكَ مِنَ الْأَسَدِ (يعني څرنګه چي ته له شېر څخه په تېزه تښتې هغسي له جزام نيولي مريض څخه هم تښته)، نو معلومه سوه چي که په ښځه کي له دې عيبونو څخه يو عيب پيدا سي، نو بيا له هغې څخه فايده اخيستل او جماع ور سره کول ناممکن دي، لهذا د نکاح مقصد به حاصل نه سي، نو ځکه به د دې هر عيب د پيدا کېدلو په وجه خاوند لره د نکاح فسخ کولو حق وي.

ولنا الخ: زموږ دليل دا دی چي عيب که هر څومره قوي او خطرناک هم وي، لېکن تر مرګ قوي کېدلای نه سي، او د مرګ په وجه سره د جماع ناممکن کېدل او فوتېدل د نکاح فسخ کولو سبب نه دي (بلکي تر مرګ وروسته هم نکاح پاته وي، مهر او داسي نور حقوق لازم وي)، او په دې عيبونو کي که څه هم جماع کول نا ممکن دي لېکن بيا هم خاوند ته پر ښځي پوره قدرت حاصل دی، او له وطي څخه بغير هر ډول استفاده ځني کولای سي، نو دلته به په طريقه اولیٰ د نکاح فسخ کولو اجازه نه وي.

وهذا الخ: فرمايي چي جماع او وطي کول د نکاح مقصد نه دي، جماع خو د نکاح له ثمراتو او منافعو څخه ده، د نکاح مقصد پر ښځي قدرت حاصلېدل دي، او د دې عيبونو په وجود کي هم انسان ته پر ښځي قدرت حاصل وي، او له نکاح څخه همدغه مقصود دي، نو ځکه به خاوند ته د نکاح فسخ کولو حق او اختيار نه ور کول کيږي.

## د خاوند د عيبونو په وجه د نکاح نه فسخ کېدلو بيان

وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجِ جُنُوْنٌ أَوْ بَرَصٌ أَوْ جُذَامٌ او کله چي وي په خاوند باندي لېونتوب يا د پيس مرض يا د جذام مرض فَلَا خِيَارَ لَهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ * نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به [د هغه] ښځي ته [د نکاح فسخ کولو] اختيار نه وي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ: لَهَا الْخِيَارُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغې ته به اختيار وي دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا له هغې څخه د ضرر ليري کولو لپاره كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ لکه په مقطوع الذکر کېدلو او عنين کېدلو کي [چي هم دغه حکم دی] بِخِلَافِ جَانِبِهٖ په خلاف د خاوند د طرف لِأَنَّهٗ مُتَمَكِّنٌ مِنْ دَفْعِ الضَّرَرِ بِالطَّلَاقِ ځکه چي خاوند د طلاق په ذريعه د ضرر پر دفع کولو قادر دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْأَصْلَ عَدَمُ الْخِيَارِ د شيخينو دليل دا دی: چي اصل خو د اختيار

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامه ابن الهمام (فتح القدير ج:۴، ص:۱۳۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۶۷]

نشتوالي دی اچي ښځي لره د دې اختيار نه وي ا لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الزَّوْجِ ځکه چي په دې کي د خاوند حق باطلول دي وَإِنَّمَا يَثْبُتُ فِي الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ لېکن په مجبوب او عِنين کېدلو ځکه اښځي لره ا خيار ثابتيږي لِأَنَّهُمَا يُخِلَّانِ بِالْمَقْصُودِ الْمَشْرُوعِ لَهُ النِّكَاحُ ځکه چي دا دواړه اعيبونه ا په هغه مقصود کي خلل اچونکي دي دکوم امقصود ا لپاره چي نکاح مشروع سوې ده وَهَذِهِ الْعُيُوبُ غَيْرُ مُخِلَّةٍ بِهِ او دا عيوب په هغه مقصود کي خلل اچونکي نه دي فَافْتَرَقَا نو ځکه يو له بل څخه جلا سو ايعني په دواړو کي فرق ښکاره سو ا.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د يوې ښځي خاوند لېونی (پاګل) وي يا د برص او جذام په مرض مبتلا وي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه وښځي ته د نکاح فسخ کولو (ماتولو) اختيار نسته، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي ښځي ته به د دې اختيار ورکول کيږي.

**د امام محمد دليل**: قياس دی، يعني امام محمد رَحِمَهُ الله د خاوند دا مرضونه پر جَبّ (قطع الذكر) او عِنَّة (عدم القدرة على الجماع) باندي قياسوي، او د دواړو په مينځ کي علت مشترکه له ښځي څخه ضرر ليري کول دي. يعني کله چي خاوند مقطوع الذكر يا عنين وي، نو له ښځي څخه د ضرر ليري کولو لپاره هغې ته اختيار ورکول کيږي، همداسي به دلته هم له ښځي څخه د ضرر ليري کولو لپاره هغې ته اختيار ورکول کيږي. د دې په خلاف که ښځه په دې عيبونو مبتلا وه، نو خاوند ته به اختيار نه ورکول کيږي، ځکه چي خاوند د طلاق په ذريعه له خپل ځان څخه د ضرر پر دفع کولو قدرت لري، نو ځکه به هغه ته د نکاح فسخ کولو هيڅ اختيار نه وي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي اصل خو همدا خبره ده چي ښځي لره د دې اختيار نه وي، ځکه که ښځي ته د نکاح فسخ کولو اختيار ورکول سي، نو د خاوند حق به باطل سي. لېکن د قطع الذکر او عِنّة په صورت کي به ښځي ته ځکه اختيار ورکول کيږي چي دا دواړه عيبونه د نکاح شرعي مقصود يعني وطي فوت کوي، او برص او داسي نور عيبونه په پوره توګه دا مقصود نه فوت کوي، نو په مقيس (يعني برص او پاته څلور عيبونه) او په مقيس عليه (يعني په قطع الذکر او عِنّة) کي فرق راغلی، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

## ﴿د نکاح فسخ کولو ټوله اسباب په يوه نقشه کي﴾

زموږ په اوسني زمانه کي کله نا کله د ځيني وجوهاتو پر بناء د نکاح فسخ کولو او ختمولو ته سخت ضرورت پيښ سي، نو د دې ضرورت په خاطر صاحب د اثمار الهدايې د نکاح فسخ کولو ټوله اسباب په تفصيل سره بيان کړي دي، چي هغه به موږ په اختصار سره په يوه نقشه کي بيان کړو، هغه فرمايي که په دې اسبابو کي هر سبب پيدا سي، نو بيا نکاح فسخ کول او د ښځي او خاوند تر مينځ تفريق واقع کول صحيح او جائز دي، خو بايد په تفريق کولو کي تلوار نه وسي، بلکي اول د خاوند او ښځي په مينځ کي بايد د صلح کوښښ وکړی سي، او د هغوی د شکاياتو د حل کولو او د نکاح پاته کولو لپاره هره طريقه اختيار کړی سي، لېکن کله چي ټولي حربې ناکامه سي، او د نکاح پاته کولو او يو ځای اوسېدلو هيڅ صورت نه جوړېږي، نو بيا به د مجبوري په وجه نکاح فسخ کيږي او د ښځي او خاوند په مينځ کي به تفريق واقع کيږي، او هغه اسباب په لاندي ډول دي:

| شمېر | د فسخ اسباب |
|---|---|
| (١) | په خاوند او ښځه کي سخت نفرت او شقاق پيدا کېدل (چي بالکل د دواړو ګزاره ناممکنه سي). |
| (٢) | د زوجيت حقوق نه اداء کول (يعني کله چي خاوند د قدرت باوجود د ښځي سره وطي نه کوي)، که څه هم نفقه او داسي نورو حقوق اداء کوي. |
| (٣) | د قدرت باوجود ښځي ته نفقه نه ورکول. |
| (٤) | له نفقې څخه د خاوند عاجزه کېدل (په دې صورت کي که د ښځي سره هم د نفقې هيڅ انتظام نه وي، نو مجبوراً به نکاح فسخ کيږي، خو زموږ اصل فتویٰ دا ده چي بايد ښځه ګرسره په قرض او پور ګزاره وکړي او نکاح فسخ نه کړي) |
| (٥) | د ښځي سخت وهل او رټل (که خاوند ښځه سخته وهي، يا داسي بده ښکنځا ورته کوي، چي هغه د ښځي لپاره انتهايي د تحقير او تکليف سبب وي، چي د هغه په وجه د خاوند سره ګزاره کول مشکل وي، نو په دې صورت کي هم ښځي ته د نکاح فسخ کولو حق سته چي له قاضي څخه د تفريق مطالبه وکړي او نکاح فسخ کړي) |
| (٦) | د خاوند ورکېدل (يعني چي دژوند او مرګ درک يې معلوم نه وي) |
| (٧) | د خاوند درک ورکېدل (يعني دا معلومه وي چي خاوند ژوندی دی، لېکن درک او پته يې نا معلومه وي، يا يې درک معلوم وي، خو ښځي ته نه راځي او نه ښځه را غواړي او نه يې نفقه اداء کوي، په داسي صورت کي هم نکاح فسخ کول صحيح دي) |

| | |
|---|---|
| (٨) | د اختلافُ الدارين په وجه د زوجيت حقوق نه اداء کېدل (له دې څخه دارُ الحرب او دارُ الاسلام مراد نه دي، بلکې مطلب يې دا دی چې کله د دوو ملکو په مينځ کې د ويزې نظام وي، او ويزه نه پيدا کيږي، مثلاً خاوند د پاکستان وي، او ښځه د هندوستان وي، او خاوند نه خلع کوي، او نه طلاق ورکوي، نو په دې صورت کې ښځې ته د نکاح فسخ کولو اختيار سته). |
| (٩) | پر وطي د خاوند نه قادر کېدل (يعني عنين کېدل، يا د هغه ذکر پرېکېدل، يا دا چې د خاوند ذکر دومره کوچنی وي چې پر جماع قدرت نه لري). |
| (١٠) | د خاوند مجنون کېدل (يعني چې د خاوند لېونتوب داسې حدّ ته ورسيږي چې ښځه خطره ځنې محسوس کړي چې هسې نه يو چم راوکړي، خو په دغه صورت او راتلونکي صورت کې به خاوند ته د علاج لپاره يو کال مهلت ورکول کيږي). |
| (١١) | په موذي او خطرناک مرض د خاوند مبتلا کېدل (لکه د پيس مرض او داسې نور) |
| (١٢) | په غيرِ کفو کې نکاح کول (د دې ډېر صورتونه دي چې په ځينو صورتونو کې نکاح فسخ کول صحيح دي، او په ځينې صورتونو کې صحيح نه دي، د تفصيل لپاره بايد فقهي کتابونو ته مراجعه وسي). |
| (١٣) | په ډېر کم مهر نکاح کول (يعني که بالغه ښځه د خپل ولي له اجازت څخه بغير په داسې مهر نکاح وکړي، چې هغه له مهرِ مثل څخه ډېر کم وي، نو په دې صورت کې به اول خاوند ته د مهرِ مثل پوره کولو حکم کيږي، کنې بيا به نکاح فسخ کيږي). |
| (١٤) | د ښځې سره په دوکه نکاح کول (چې مثلاً زه په فلانکي ځای کې دومره جائيداد لرم، يا دومره مهر درکوم او حقيقتاً هغسې نه وي...). |
| (١٥) | خيارِ بلوغ (يعني کله چې له پلار او نيکه څخه بغير بل څوک د نابالغ هلک يا نجلۍ نکاح وکړي، که څه هم په کفو کې وي، نو تر بلوغ وروسته هغه هلک يا نجلۍ ته دا اختيار سته چې نکاح فسخ کړي يا يې باقي وساتي). |
| (١٦) | د حرمت مصاهرت په وجه تفريق (مثلاً ښځه دعویٰ وکړي چې خاوند زما په اُصولو او فروعو کې يو چا ته په شهوت سره لاس ور وړی دی، او خاوند د هغه تصديق وکړي، يا داسې يو بل صورت پېښ سي، نو د دائمي حرمت پيدا کېدلو په وجه به د دوی په مينځ کې تفريق کيږي). |
| (١٧) | د نکاحِ فاسد په وجه تفريق (مثلاً له ګواهانو څخه بغير نکاح وسي، او داسې نور). |



# بَابُ العِدَّةِ

## (دا) باب د عدت (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فُرقت او د فرقت اسباب بیان کړل. او څرنګه چي عدت هم د فرقت أثر او نښه ده. او أثر له مؤثر څخه وروسته وي، نو په دې وجه له طلاق او فسخ څخه وروسته اوس د عدت احکام او مسائل بیانوي.

**د عدت لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د عدت لغوي معنیٰ ده: شمارل، د حیض ورځي شمارل. او څرنګه چي عدت تېرونکې ښځه (معتده) د عدت په وخت کي خپلي ورځي شماري (چي څومره ورځي به په عدت کي تېروم، او څو ورځي تیري سوي دي...)، نو ځکه هغه ته "عدة" وایي.

او د عدت شرعي معنیٰ ده: تَرَبُّصٌ يَلْزَمُ الْمَرْأَةَ عِنْدَ زَوَالِ مِلْكِ الْمُتْعَةِ مُؤَكَّدًا بِالدُّخُولِ. أَوِ الْخَلْوَةِ. أَوِ الْمَوْتِ (یعني داسي انتظار او درنګ کول کوم چي پر ښځي هغه وخت لازمیږي کله چي په دخول. یا په خلوت. یا په مرګ سره مؤکّد ملک متعه [ملک نکاح] زائل سي).

د عدت تېرولو درې صورتونه دي: ① د حیض په ذریعه عدت تېرول. ② د میاشتو په ذریعه عدت تېرول. ③ د وضع حمل (کوچني زیږولو) په ذریعه عدت تېرول. د تفصیل لپاره لاندي نقشې ته وګورئ!

### ﴿د آزادي ښځي عدت﴾

| شمېر | طلاق یا وفات (مړینه) | حیض یا حمل | څومره |
|---|---|---|---|
| (١) | د طلاق یا نکاح فسخ کېدلو عدت | که ښځه حائضه وي | درې حیضونه |
| (٢) | = | که حائضه نه وي | درې میاشتي |
| (٣) | = | که حامله وي | وضع حمل |
| (۴) | د خاوند د وفات عدت | که ښځه حائضه وي | څلور میاشتي او لس ورځي |
| (۵) | = | که حائضه نه وي | څلور میاشتي او لس ورځي |
| (۶) | = | که حامله وي | وضع حمل |

## ﴿ د مينځې عدت ﴾

| نمبر | طلاق يا وفات (مړينه) | حيض يا حمل | څومره |
| --- | --- | --- | --- |
| (١) | د طلاق يا نكاح فسخ كېدلو عدت | كه مينځه حائضه وي | دوه حيضونه |
| (٢) | = | كه حائضه نه وي | يونيمه مياشت |
| (٣) | = | كه حامله وي | وضع حمل |
| (۴) | د خاوند د وفاتِ عدت | كه مينځه حائضه وي | دوې مياشتې او پنځه ورځې |
| (۵) | = | كه حائضه نه وي | دوې مياشتې او پنځه ورځې |
| (۶) | = | كه حامله وي | وضع حمل |

## د حائضې آزادې ښځې د طلاق عدت

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا او كله چې سړى خپلې ښځې ته طلاقِ بائن يا طلاقِ رجعي وركړي أَوْ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَهُمَا بِغَيْرِ طَلَاقٍ يا له طلاق څخه بغير په دوى دواړو كې فرقت واقع سي وَهِيَ حُرَّةٌ مِمَّنْ تَحِيضُ او ښځه آزاده وي او له هغو ښځو څخه وي چې حيض ورته راځي فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَقْرَاءٍ نو د هغې عدت درې حيضه دي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ [البقرة: ٢٢٧] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: او طلاقې سوې ښځې به ايساروي خپل ځانونه تر درېو مياشتو پورې وَالْفُرْقَةُ إِذَا كَانَتْ بِغَيْرِ طَلَاقٍ فَهِيَ فِي مَعْنَى الطَّلَاقِ او هغه فرقت كوم چې له طلاق څخه بغير [واقع سوى] وي هغه [هم] د طلاق په معنىٰ سره دى لِأَنَّ الْعِدَّةَ وَجَبَتْ لِلتَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ فِي الْفُرْقَةِ الطَّارِئَةِ عَلَى النِّكَاحِ ځكه عدت د دې لپاره واجب سوى دى چې [له حمل څخه] د رحم خالي والى معلوم سي په هغه فرقت كې كوم چې په نكاح كې واقع سوى [يعني د نكاح په حالت كې راغلى] دى وَهٰذَا يَتَحَقَّقُ فِيهَا او دا معنىٰ په هغه [بېله طلاقه] فرقت كې هم ثابتيږي وَالْأَقْرَاءُ الْحِيَضُ عِنْدَنَا او زموږ په نيز له أقراء څخه حيض مراد دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْأَطْهَارُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې طهرونه [ځنې] مراد دي وَاللَّفْظُ حَقِيقَةٌ فِيهِمَا او لفظ د قُرُوْء په دواړو معناوو كې حقيقت دى [يعني د حيض او طهر دواړو لپاره په حقيقي توګه استعماليږي، نه په مجازي توګه] إِذْ هُوَ مِنَ الْأَضْدَادِ ځكه چې دا لفظ له أضدادو څخه دى كَذَا قَالَهُ ابْنُ السِّكِّيتِ همداسې ابن سكيت ويلي دي وَلَا يَنْتَظِمُهُمَا جُمْلَةً او دا لفظ

دواړو معناوو ته په يوه وار شامليداى نه سي لِلِاشْتِرَاكِ ځکه چي هغه مشترک دی [په دواړو معناوو کي] وَالْحَمْلُ عَلَى الْحَيْضِ أَوْلَى او [دا لفظ] پر حيض حمل کول ډېر غوره دي إِمَّا عَمَلًا بِلَفْظِ الْجَمْعِ يا خو د جمع په لفظ باندي په عمل کولو سره لِأَنَّهُ لَوْ حُمِلَ عَلَى الْأَطْهَارِ ځکه که دا [لفظ (قروء)] پر طهر حمل کړی سي وَالطَّلَاقُ يُوقَعُ فِي طُهْرٍ او طلاق په طهر کي واقع کيږي [لهٰذا کله چي طلاق په طهر کي واقع سي] لَمْ يَبْقَ جَمْعًا نو هغه به [لفظ د] جمع پاته نه سي أَوْ لِأَنَّهُ مُعَرِّفٌ لِبَرَاءَةِ الرَّحِمِ يا ځکه چي هغه [قروء (حيض)] د رحم د خالي والي معلومونکی دی [يعني د رحم خالي والي فقط په حيض سره پېژندل کېداى سي] وَهُوَ الْمَقْصُودُ او همدا [په عدت کي] مقصود دي أَوْ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: وَعِدَّةُ الْأَمَةِ حَيْضَتَانِ يا د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: چي د مينځي عدت دوه حيضه دی فَيَلْتَحِقُ بَيَانًا بِهِ نو دا فرمان [حديث] به د دې لفظ [قروء] سره د بيان [او تفسير] په توګه ملحق کيږي.

**اللغات:** ﴿فُرْقَة﴾ جدايي، عليحدګي، بېلتون (ښځه او خاوند سره جلا کېدل)، ﴿بَرَاءَةُ الرَّحْمِ﴾ له حمل څخه د رحم پاکوالی (خالي والي)، ﴿يَتَرَبَّصْنَ﴾ د تفعّل له باب څخه د جمع مؤنث غائب مضارع صيغه ده، تَرَبَّصَ يَتَرَبَّصُ تَرَبُّصًا: انتظار کول، درنګ کول، ايسارېدل، تم کېدل، پاتېدل، (ځان) راګرځول، ﴿الطَّارِئَة﴾ د فتح له باب څخه د مؤنث اسم فاعل صيغه ده، طَرَأَ يَطْرَأُ طَرْأً: ناڅاپه راتلل، نابېره واقع کېدل، ناڅاپه يو مصيبت غوړېدل، ﴿مُعَرِّف﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: ور پېژونکی (معلومونکی)، تعريف کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي خپلي ښځي ته طلاق بائن ورکړي، يا طلاق رجعي ورکړي، يا له طلاق څخه بغير د خيار بلوغ يا خيار عتق او داسي نورو په وجه نکاح فسخ سي، او د دوی په مينځ کي فرقت واقع سي، او ښځه آزاده او د حيض والا وي (يعني حيض ورته راځي)، نو زموږ په نېز د داسي ښځي عدت درې حيضه دی، دليل دا دی چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: "کومو ښځو ته چي درې طلاقه ورکول سوي وي، هغوی به درې حيضونه انتظار کوي"، له دې څخه معلومه سوه چي د مطلقه ښځو عدت درې حيضه دی، او له طلاق څخه بغير چي کوم فرقت واقع سي، هغه هم د طلاق په حکم کي دی، نو ځکه به په هغه کي هم عدت واجب وي، ځکه چي د عدت واجبېدلو

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب سنة طلاق العبد، حديث رقم: ۲۱۸۹. والترمذي في كتاب الطلاق، باب ما جاء أن طلاق الأمة تطليقتان، حديث رقم: ۱۱۸۲.

مقصد همدا دی چې دا خبره معلومه سي چې د ښځې رحم د خاوند په اوبو سره مشغول دی او که نه (يعني ښځه حامله ده او که نه)، او څرنګه چې دا معنیٰ (او احتمال) په هغه فرقت کي هم سته کوم چې له طلاق څخه بغير وي، نو ځکه به په هغه فرقت کي هم عدت واجبيږي.

والأقراء: فرمايي چې د أَقْرَاء لفظ له أضدادو څخه دی، يعني طهر او حيض دواړو ته وايي. په دواړو معناوو کي مشترک او د دواړو لپاره حقيقت دی، همدا د مشهور لغت پوه "امامُ اللغه" ابن سکيت رايه ده، خو پر يوه ځای له دې لفظ څخه دوې معناوي مراد کېدلای نه سي. نو ځکه أحنافو له دې څخه د حيض معنیٰ مراد کړې ده، او شوافعو دا پر طهر حمل کړی دی، لېکن صاحب د هدايې فرمايي چې دا د حيض پر معنیٰ حمل کول اولیٰ او غوره دي، ځکه چې په آيت کي ثَلَاثَةَ قُرُوْء ذکر سوي دي، او قُرُوْء جمع د قَرْءٌ ده، او د جمع أقل عدد (کمه اندازه) درې ده، اوس که له دې لفظ څخه حيض مراد کړی سي، نو د درې پر عدد (يعني پر درې حيضونو باندي) به پوره عمل وسي. او که طهر مراد کړی سي، نو بيا به د دريو پر عدد باندي پوره عمل کول ناممکن وي، ځکه چې هغه به يا دوه نيم طهرونه جوړ سي، يا درې نيم طهرونه، پوره درې طهرونه به پاته نه سي، ځکه چې د حديث پر بناء په طهر کي طلاق ورکول سنت دي، نو په کوم طهر کي چې طلاق ورکول سوی وي، د هغه څه نا څه حصه خو به خامخا تېره سوې وي، اوس که ښځه دا طهر او را روان دوه طهرونه په عدت کي شمار کړي، نو ټوله به دوه نيم طهره وګرځي، او که دا طهر شمار نه کړي، بلکي را روان درې طهرونه شمار کړي، نو څه حصه به د دغه طهر هم وي، لهذا ټوله به درې نيم طهرونه سي، او که له قُرُوْء څخه حيض مراد سي، نو په پوره درې حيضونو باندي عمل کيږي، ځکه چې د سنت طريقې مطابق طلاق بالکل د طهر په آخر کي ورکول کيږي، او تر هغه وروسته سمدستي حيض شروع کيږي، نو درې حيضه به بېله شبهې مکمّل سي، او پر ثَلَاثَةَ قُرُوْء به پوره عمل وسي، نو ځکه دا لفظ د حيض پر معنیٰ حمل کول اولیٰ او غوره دي.

د دې سلسلې دويم دليل دا دی چې د عدت مقصد د رحم برائت او خالي والی معلومول دي، او دا مقصد په حيض سره حاصليږي، نه په طهر سره، نو په دې وجه به هم قُرُوْء پر حيض حمل کيږي.

دريم دليل دا دی چې په دې حديث کي طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيْقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ کي نبي کريم ﷺ دې ته اشاره کړې ده چې عدت به د حيض په حساب سره وي، ځکه چې مينځه د آزادي ښځي

تابع ده. نو د آزادي ښځي عدت به هم په حیض سره شمارل کیږي. او دا حدیث به د پورتني آیت (ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ...) لپاره بیان او مفسّر وي.

## د غیرِ حائضي او حاملې ښځي د طلاق عدت

وَإِنْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ او که هغه له داسي ښځو څخه وي چي د کم عمری یا د زیات عمر [سپین سرتوب] په وجه حیض نه ورته راځي فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ نو د هغې عدت درې میاشتي دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ [الطلاق: ۴] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: او کومي ښځي چي له حیض څخه نا اُمیده سي [هغه که په هره وجه وي، نو د هغوی عدت درې میاشتي دی] [له دې آیت څخه په واضحه توګه ثابته سوه چي د آئسه او غیرِ حائضه ښځو عدت به درې میاشتي وي] وَكَذَا الَّتِي بَلَغَتْ بِالسِّنِّ وَلَمْ تَحِضْ بِآخِرِ الْآيَةِ او همدارنګه هغه ښځه کوم چي د عمر په اعتبار سره بالغه سوې وي او حیض نه ورته راځي [د هغې عدت هم درې میاشتي دی] د آیت په آخري حصې سره [یعني کومه ښځه چي پنځلسو کالو ته ورسیږي، او هغې ته نه حیض راځي او نه حمل، نو ترپنځلس کالو وروسته به هغه بالغه شمارل کیږي، او څرنګه چي هغې ته حیض نه راځي، نو ځکه به د هغې عدت په میاشتو سره شمارل کیږي، دلیل د پورتني آیت آخري حصه ده، چي هغه داسي ده: وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ (سورة الطلاق: ۴) یعني کومو ښځو ته چي حیض نه راځي، د هغوی عدت هم درې میاشتي دی] وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا او که ښځه حامله [بلاربه] وي [برابره ده هغه آزاده وي، که مینځه وي، مطلقه وي، او که خاوند یې مړی سوي وي] فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو د هغې عدت دا دی چي حمل وزیږوي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ [الطلاق: ۴] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: او د حمل والا [حامله] ښځو عدت دا دی چي حمل وزیږوي. [په دې آیت کي أَحْمَال د جمع صیغه ده، چي د هغه مطلب دا دی چي د ټولو حمل والا ښځو عدت وضعُ الحمل دی، هغه که آزاده وي، که مینځه...].

**اللغات:** ﴿صِغَر﴾ کوچنیوالي، کم عمري، کم سني، ﴿كِبَر﴾ لوی والی، زیات عمري، بوډاتوب (سپین سرتوب)، ﴿أَجَل﴾ تاکل سوی مودت، نېټه (مراد ځني عدت دی).

**تشریح:** مسئله په عبارت کي تشریح سوه.

## د مینځې د طلاق عدت

وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً او که ښځه مینځه وي لِعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ نو د هغې عدت دوه حیضه دي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً ❶: طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ ځکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي: د مینځې الپاره] دوه طلاقه دي وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ او د هغې عدت دوه حیضه دی اله دې حدیث څخه ثابته سوه چي د مینځي عدت دوه حیضه دی] وَلِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ [عقلي دلیل] او ځکه چي رقیت نیمونکی [تنصیف کونکی] دی وَالْحَيْضَةُ لَا تَتَجَزَّأُ او یو حیض نه متجزي کیږي [یعني یو حیض څو أجزاء او ټوټې کېدلای نه سي. او تقسیم نه قبلوي] فَكَمُلَتْ نو هغه [یو حیض] پوره کړی سو فَصَارَتْ حَيْضَتَيْنِ نو دواړه دوه حیضه وګرځېدل اد عقلي دلیل خلاصه دا ده چي غلامتوب د مینځې او غلام په حق کي نعمت او سزا دواړه نیمایي کوي. او د آزادي ښځي عدت درې حیضه دی. نو باید د مینځي عدت یونیم حیض وای. لېکن څرنګه چي حیض نیمایي کېدلای نه سي. نو ځکه د هغې عدت دوه حیضه وګرځول سو] وَإِلَيْهِ أَشَارَ عُمَرُ* بِقَوْلِهِ او همدې ته حضرت عمر ﷺ په خپل دې فرمان سره اشاره کړې ده لَوِ اسْتَطَعْتُ لَجَعَلْتُهَا حَيْضَةً وَنِصْفًا "که چیري زما په وس کي وای اچي طلاق نیم کړی سي] نو ما به د ښځي عدت یو نیم حیض ټاکلي وای" وَإِنْ كَانَتْ لَا تَحِيضُ او که مینځي ته حیض نه راځي فَعِدَّتُهَا شَهْرٌ وَنِصْفٌ نو د هغې عدت به یو نیمه میاشته وي لِأَنَّهُ مُتَجَزٍّ ځکه چي میاشته متجزي کېدای سي فَأَمْكَنَ تَنْصِيفُهُ عَمَلًا بِالرِّقِّ نو په رقیت باندي په عمل کولو سره د هغه [میاشتي] نیمول ممکن دي. [دآئسه آزادي ښځي عدت درې میاشتي وي، نو دآئسه مینځي په حق کي به دا مودت نیمایي کیږي، او میاشته نیمایي کېدلای هم سي، نو ځکه به دآئسه مینځي عدت د غلامتوب په وجه یونیمه میاشته وي]

**اللغات:** ﴿رِقّ﴾ غلامتوب، غلامي. ﴿مُنَصِّف﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: نیمونکی (هغه چي بل شی نیمایي کوي)، ﴿لَا تَتَجَزَّأُ﴾ د تفعّل نفي صیغه ده: جزء، جزء کېدل، حصه، حصه کېدل. ټوکره، ټوکره کېدل، تقسیمېدل.

**تشریح:** مسئله په عبارت کي تشریح سوه.

❶ تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب الطلاق، باب سنة طلاق العبد، حدیث رقم:٢١٨٩. والترمذی فی کتاب الطلاق باب ما جاء أن طلاق الأمة تطلیقتان حدیث رقم:١١٨٢.

* أثر: دا اثر په سنن بیهقي، باب عدة الأمة (ج:٧،ص:٦٩٩) کي ذکر سوی دی. شمېره:١٥٤٥٣. پوره أثر داسي دی: أنه سمع عمر بن الخطاب يقول: لو استطعت أن أجعل عدة الأمة حيضة ونصفا، فقال رجل: فاجعلها شهرا ونصفا، فسكت عمر رضی الله عنه.

## د خاوند د وفات عدت

وَعِدَّةُ الْحُرَّةِ فِي الْوَفَاةِ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ او د آزادي ښځي عدت په وفات کي څلور میاشتي او لس ورځي دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا [سورة البقرة: ۲۳۴] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: او [کوم خلک چي وفات سي او تر شا خپلي] ښځي پرېږدي نو [د هغو] ښځي به څلور میاشتي او لس ورځي خپل ځانونه ایساروي وَعِدَّةُ الْأَمَةِ شَهْرَانِ وَخَمْسَةُ أَيَّامٍ او د مینځي عدت دوې میاشتي او پنځه ورځي دي لِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ ځکه چي رقیت تنصیف کونکی دی وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا او که ښځه حامله وي فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو د هغې عدت دا دی چي خپل حمل وزېږوي لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ [الطلاق: ۴] ځکه چي د الله دا فرمان مطلق دی: وأولات الأحمال... إلخ وَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ* او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمایلي دي. مَنْ شَاءَ بَاهَلْتُهُ أَنَّ سُورَةَ النِّسَاءِ الْقُصْرَىٰ نَزَلَتْ بَعْدَ الْآيَةِ الَّتِي فِي سُورَةِ الْبَقَرَةِ که څوک غواړي نو د هغه سره زه [پر دې خبره] مباهله کولای سم [یعني د دې خبري د نه صحیح کېدلو په صورت کي زه د هغه ملامتیا او توبیخ ته تیار یم] چي سورة نساء القُصْرىٰ [سورة الطلاق] تر هغه آیت وروسته نازل سوی دی کوم چي په سورة البقره کي دی وَقَالَ عُمَرُ*: لَوْ وَضَعَتْ وَزَوْجُهَا عَلَىٰ سَرِيرِهِ او حضرت عمر رضي الله عنه فرمایلي دي: که حامله ښځه په داسي حال کي کوچنی وزېږوي چي د هغې خاوند [د مرګ] پر تخته وي [او تر اوسه ښخ کړی سوی نه وي] لَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا نو [هم] د هغې عدت پوره کیږي وَحَلَّ لَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ او د هغې لپاره روا دي چي [د دویم خاوند سره] نکاح وکړي.

**اللغات:** ﴿النِّسَاءُ الْقُصْرَىٰ﴾ له دې څخه مراد "سورةُ الطلاق" دی، او "له النِّسَاء الكُبْرىٰ" څخه مراد "سورةُ النساء" دی، ﴿بَاهَلْتُهُ﴾ د مفاعلې له باب څخه د واحد متکلم ماضي صیغه ده، بَاهَلَ يُبَاهِلُ مُبَاهَلَةً: یو پر بل لعنت کول (یو بل ته ښېرا کول)، رد وبد ویل، ملامتول، د شریعت په اصطلاح کي د "مباهله" تعریف دا دی: یوه مختلف فیه او متنازع فیه مسئله الله ته پرېښوول او ښرا کول چي څوک دروغجن وي پر هغه دي لعنت وي او هغه دي برباد سي (فیروز اللغات)، لکه زموږ د پښتو په محاوره کي چي هم

* أثر: دا أثر په سنن بیهقي، باب عدة الحامل من الوفاة (ج: ۷، ص: ۷۰۶) کي ذکر سوی دی، شمېره: ۱۵۴۷۴. او په بخاري شریف کي هم په نورو الفاظو سره دغه أثر ذکر سوی دی. (بخاري شریف، باب تفسیر سورة الطلاق، ص: ۸۷۲، شمېره: ۴۹۱۰)

* أثر: دا أثر هم په سنن بیهقي، باب عدة الحامل من الوفاة (ج: ۷، ص: ۷۰۶) کي ذکر سوی دی، شمېره: ۱۵۴۷۶.

کله چا ته د خپلې خبرې یقین وي، او بل څوک اختلاف ور سره کوي، نو هغه لوره کوي او وایي: چې که فلانکی کار داسې نه وي یا داسې وي، نو بیا زه هر شي ته تیاریم او پر ما دې د الله غضب نازل سي، یا پر ما دې د الله او رسول لعنت وي او داسې نور. ﴿سَرِیر﴾ چارپایي، کټ (چپر کټ)، مراد ځني د جنازې کټ او تخته ده.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که چیرې د آزادې ښځې خاوند وفات وسي، او هغه حامله نه وي، نو د هغې عدت څلور میاشتې او لس ورځې دي؛ دلیل دا آیت دی: "وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا"، او که د مینځې خاوند وفات سي، نو د هغې عدت دوې میاشتې او پنځه ورځې دي، ځکه چې هغه رقیقه ده او رقیت (غلامتوب) په نعتمونو کې تنصیف کوي، او که هغه ښځه (چې خاوند یې وفات سوی وي، یا مطلقه ښځه) حامله وي، نو بیا د هغې عدت وضعُ الحمل دی، هغه که آزاده وي یا مینځه وي، دلیل دا دی چې دا آیت "وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ... إلخ" مطلق دی، هیڅ قید پکښې نسته، نو ځکه به د هرې حاملې ښځې عدت وضعُ الحمل وي، هغه که مطلقه وي او که متوفیٰ عنها زوجها وي، او که آزاده وي، یا مینځه وي، ټولو ته به دا آیت شامل وي.

**وقال عبد الله إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د اسلام په شروع کې د متوفیٰ عنها زوجها ښځې عدت مطلقاً څلور میاشتې او لس ورځې وو، هغه که حامله وي یا غیرِ حامله وي، لیکن کله چې دا آیت نازل سو: وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ... إلخ"، نو بیا هغه مطلق حکم منسوخ سو، او د حامله ښځو عدت وضعُ الحمل وګرځول سو. له همدې وجهې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي: "چې د سورة البقرة آیت یعني "وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ... إلخ" اول نازل سوی دی، او د سورة النساء القصرىٰ (سورة الطلاق) آیت یعني "وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ... إلخ" وروسته نازل سوی دی، او دا آیت د سورة البقرة د آیت لپاره ناسخ دی، او ما پر دې خبره دومره یقین دی چې په دې باره کې زه مُباهله کولو ته تیاریم"، د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د دې قول تائید د حضرت عمر رضي الله عنه په دې فرمان سره هم کیږي چې هغه وفرمایل: "که چیرې ښځه حامله وي او د هغې خاوند مړ سي، لیکن په قبر کې د خاوند تر پټولو مخکې، مخکې ښځه کوچنی وزیږوي، نو په دې صورت کې هم د هغې عدت پوره کیږي، او د هغې سره د بل سړي نکاح کول روا دي"، ځکه چې د هغې عدت وضعُ الحمل وو، او هغه موجود سو.

## د طلاق او وفات (مريني) د عدت يو ځای کېدلو صورت

وَإِذَا وَرِثَتِ الْمُطَلَّقَةُ فِي الْمَرَضِ او كله چي طلاقه سوې ښځي په مرضُ الموت كي وارثه وګرځي فَعِدَّتُهَا أَبْعَدُ الْأَجَلَيْنِ نو د هغې عدت به له دواړو عدتونو څخه هغه عدت وي دېر ليري [اوږدا عدت وي] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حكم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ثَلَاثُ حِيَضٍ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي [د هغې عدت] درې حيضه دی وَمَعْنَاهُ: إِذَا كَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا أَوْ ثَلَاثًا او د دې مطلب دا دی: چي كله طلاق بائن وي يا درې طلاقه وي أَمَّا إِذَا كَانَ رَجْعِيًّا لېكن كله چي طلاق رجعي وي فَعَلَيْهَا عِدَّةُ الْوَفَاةِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالإتفاق پر هغې د وفات عدت واجب دی لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ النِّكَاحَ قَدِ انْقَطَعَ قَبْلَ الْمَوْتِ بِالطَّلَاقِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي نكاح د طلاق په وجه سره تر مرګ مخكي ختمه سوه وَلَزِمَتْهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ او پر هغې درې حيضونه لازم سول وَإِنَّمَا تَجِبُ عِدَّةُ الْوَفَاةِ إِذَا زَالَ النِّكَاحُ فِي الْوَفَاةِ او د وفات عدت خو هغه وخت واجبېږي كله چي د وفات په وجه نكاح ختمه سوې وي إِلَّا أَنَّهُ بَقِيَ فِي حَقِّ الْإِرْثِ لَا فِي حَقِّ تَغَيُّرِ الْعِدَّةِ خو د ميراث په حق كي [اوس هم] نكاح پاته ده، نه د عدت متغير كېدلو [بدلېدلو] په حق كي بِخِلَافِ الرَّجْعِيِّ لِأَنَّ النِّكَاحَ بَاقٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ په خلاف د طلاق رجعي، ځكه چي [په هغه كي] په هر اعتبار سره نكاح پاته وي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَمَّا بَقِيَ فِي حَقِّ الْإِرْثِ او د طرفينو دليل دا دی: چي كله نكاح د ميراث په حق كي باقي پاته ده يُجْعَلُ بَاقِيًا فِي حَقِّ الْعِدَّةِ احْتِيَاطًا نو احتياطاً به د عدت په حق كي هم باقي پاتيږي فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نو دواړه به جمع كيږي وَلَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ حَتَّى وَرِثَتْهُ امْرَأَتُهُ او كه خاوند د مرتد كېدلو په وجه قتل كړی سي تر دې چي ښځه د هغه وارثه وګرځي فَعِدَّتُهَا عَلَى هٰذَا الِاخْتِلَافِ نو د هغې عدت [هم] پر همدغه اختلاف دی وَقِيلَ: عِدَّتُهَا بِالْحَيْضِ بِالْإِجْمَاعِ او ويل سوي دي: چي د هغې عدت بالإتفاق په حيض سره دی لِأَنَّ النِّكَاحَ حِينَئِذٍ مَا اعْتُبِرَ بَاقِيًا إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ فِي حَقِّ الْإِرْثِ ځكه چي په دغه صورت كي نكاح د ميراث په حق كي د مرګ تر وخته پوري باقي منل سوې نه ده لِأَنَّ الْمُسْلِمَةَ

---

[1] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في خلاصة الفتاوى (ج:۲، ص:۱۱۷)، وكذا في الدر المختار (ج:۲، ص:٦٥٧). [القول الراجح ج:۱، ص:۳٦۹]

لَا تَرِثُ مِنَ الْكَافِرِ ځکه چې مسلمانه ښځه له کافر څخه وارثه نه ګرځي.

**اللغات:** ﴿وَرِثَتْ﴾ د حَسِبَ ماضي ده: وارث کېدل. وارث ګرځېدل (د مړي ميراث خور جوړېدل).
﴿رِدَّة﴾ إرتداد، مرتد کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په خپل مرضُ الموت کي ښځي ته يو طلاقِ بائن ورکړي يا درې طلاقه ورکړي، او بيا د ښځي په عدت کي مړ سي، نو ښځه د هغه وارثه ګرځي. او د هغې عدت به أبعد الأجلين وي. يعني د طلاق او وفات په عدتونو کي چي کوم عدت اوږد وي، هغه به د ښځي عدت وي، نو پر ښځي خو د طلاق په وجه درې حيضه تېرول واجب دي. او د خاوند د وفات په وجه څلور مياشتي او لس ورځي تېرول واجب دي، نو که درې حيضونه پوره سي، لېکن څلور مياشتي او لس ورځي پوره نه سي، نو ويل کيږي به چي تر اوسه د هغې عدت پوره سوی نه دی، تر دې چي څلور مياشتي او لس ورځي پوره سي، او که چيري څلور مياشتي او لس ورځي پوره سي لېکن درې حيضه پوره نه سي، په دې توګه چي ښځه مُمْتَدَّةُ الطُّهر وي (يعني هر طهر يې ډېر وخت پاتيږي)، نو هم دا به ويل کيږي چي تر اوسه يې عدت پوره سوی نه دی، تر دې چي هغې ته درې حيضه راسي، که څه هم په مينځ کي څو کاله تېر سي، دا حکم د طرفينو په نېز دی، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هغې عدت فقط درې حيضه دی.

**ومعناه إلخ:** فرمايي چي دا اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي دغه ښځي ته طلاقِ بائن يا درې طلاقه ورکول سوي دي، او که طلاقِ رجعي ورکول سوی وي، نو بيا بالإتفاق پر هغې د وفات عدت يعني څلور مياشتي او لس ورځي واجبيږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي دلته خو د ښځي نکاح د مرګ او وفات څخه مخکي د طلاق په وجه ختمه سوې ده. او څرنګه چي د طلاق عدت درې حيضه دي، نو ځکه به اوس پر هغې درې حيضه تېرول واجب وي. او پاته سو د وفات عدت په هغه وخت کي واجبيږي، کله چي نکاح د خاوند په وفات (مرګ) سره زائله سوې وي. حالانکي دلته معامله داسي نه ده، نو ځکه به پر دغه ښځي د وفات عدت نه واجبيږي، بلکي فقط د طلاق عدت به پر واجب وي.

**إلّا أنه بقي إلخ:** په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله دلته د طلاق بائن په وجه تر مرګ مخکي نکاح ختمه سوې ده، نو دغه ښځي ته ميراث ورکول پکار نه دي. حالانکي ابو يوسف رَحِمَهُ الله هغه د وراثت حقداره ګڼي.

جواب دا دی چي دلته نکاح د صحابه وو په اجماع سره د میراث په حق کي باقي پاتيږي، مطلب دا دی چي دا ښځه اِمْرَءَةُ الفَارّ ده، او مخکي په تفصیل سره د دې خبري بحث تېر سوي چي د اِمْرَأَةُ الفَارّ وراثت پر استحقاق د صحابه وو اجماع سوې ده، نو د دې دلیل په وجه به دا ښځه د خپل خاوند وارثه ګرځي.

د دې په خلاف که خاوند دغه ښځي ته طلاق رجعي ورکړی، نو بالإتفاق پر دغه ښځي د وفات عدت واجبيږي، او هغه وارثه ګرځي، ځکه چي په طلاقِ رجعي کي په هر اعتبار سره نکاح باقي پاته وي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي کله نکاح (د صحابه وو په اجماع سره) د وراثت په حق کي باقي پاته ده، نو د احتياط لپاره به د عدت په حق کي هم باقي شمارل کيږي، لهذا دواړه عدتونه به سره جمع کيږي، ځکه چي دا ښځه خو حقيقتاً بائنه ده، او حکماً متوفىٰ عنها زوجها ده.

ولوقتل على ردته: په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د استدلال جواب ورکوي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په يو مسئلې سره دليل نيولی دی، هغه مسئله دا ده چي مرتد کله مړ سي يا ووژل سي، نو د هغه مسلمانه ښځه د خپل دغه مرتد خاوند وارثه ګرځي، حالانکي بالإجماع پر هغې د وفات عدت واجب نه دی، ځکه چي دلته نکاح د ردّت (مرتد کېدلو) په وجه زائل سوې ده، نه د مرګ په وجه، نو همدغه ډول په پورتنۍ مسئله کي هم نکاح د طلاقِ بائن په وجه سره زائل سوې ده، نه د مرګ په وجه سره، نو صاحب د هدايې فرمايي چي په دې مسئله سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله استدلال (دليل نيول) صحيح نه دی، ځکه چي دا مسئله هم مختلف فيه ده چي په دې کي به د طرفينو په نېز د ښځي عدت أبعد الأجلين وي، او د ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به عدت درې حيضه وي.

وقيل إلخ: او د مرتد د ښځي په هکله د ځينو مشائخو رايه دا ده چي زموږ د ټولو امامانو په نېز د هغې عدت په حيض سره دی (يعني هغه به د خاوند د وفات عدت نه تېروي، بلکي د طلاق عدت (يعني درې حيضه) به تېروي)، ځکه چي د هغې خاوند د إرتداد په وجه د کفر په حالت کي ووژل سوی دی، او مسلمانه ښځه د کافر وارثه نه ګرځي، نو ځکه به دا ښځه نه د هغه وارثه ګرځي، او نه به عدت تېروي.

## د عدت په دوران کي د مينځي آزادېدل

فَإِذَا أُعْتِقَتِ الْأَمَةُ فِي عِدَّتِهَا مِنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ او کله چي مينځه د خپل طلاقِ رجعي په عدت کي آزاده کړی سي اِنْتَقَلَتْ عِدَّتُهَا إِلَى عِدَّةِ الْحَرَائِرِ نو د هغې عدت به د آزادو ښځو وطرف ته منتقل کيږي ايعني که مينځي ته طلاقِ رجعي ورکول سوي وي او هغه د خپل غدت په پوره کولو لګيا وي چي په دې مينځ کي هغه آزاده کړی سي، نو اوس به هغه د آزادي ښځي په څېر درې حيضه عدت تېروي ا لِقِيَامِ النِّكَاحِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي په هره توګه نکاح پاته ده ايعني ځکه چي د طلاقِ رجعي په وجه اوس هم هغه د خاوند په نکاح کي پاته

ده، نو ګواکي هغې ته د آزادۍ په حالت کي طلاق ورکول سوی دی، او د آزادي ښځي عدت درې حیضه وي، نو ځکه به د هغې عدت هم درې حیضه وي [ وَإِنْ أُعْتِقَتْ وَهِيَ مَبْتُوتَةٌ أَوْ مُتَوَفًّى عَنْهَا زَوْجُهَا او که دا مینځه [ په داسي حال کي ] آزاده کړی سي چي هغه معتدة بائنه وي [یعني د طلاق بائن عدت تېروي] یا د هغې خاوند مړ سوي وي لَمْ تَنْتَقِلْ عِدَّتُهَا إِلَى عِدَّةِ الْحَرَائِرِ نو [په دې صورت کي] به د هغې عدت د آزادو ښځو وطرف ته نه منتقل کیږي لِزَوَالِ النِّكَاحِ بِالْبَيْنُونَةِ أَوِ الْمَوْتِ په بینونت یا مرګ سره د نکاح زائلېدلو په وجه [یعني ځکه چي د طلاق په وجه یا د خاوند د مرګ په وجه هغه د خاوند په نکاح کي پاته نه سوه، لهذا د عدت په مینځ کي آزاده سوه، نو ځکه به د هغې عدت د آزادي ښځي د عدت وطرف ته نه منتقل کیږي].

**اللغات:** ﴿حَرَائِر﴾ جمع د حُرَّةٌ ده: آزادي ښځي، ﴿مَبْتُوتَة﴾ بائنه، هغه ښځه چي طلاقِ بائن ورکول سوی وي.

**تشریح:** مسئله په عبارت کي تشریح سوه.

## د آئسي ښځي پر عدت د حیض راتللو أثر

وَإِنْ كَانَتْ آيِسَةً او که هغه [طلاقه سوې ښځه له حیض څخه] نا اُمیده وي فَاعْتَدَّتْ بِالشُّهُورِ او د میاشتو په حساب سره عدت تېروي ثُمَّ رَأَتِ الدَّمَ بیا وینه وویني اِنْتَقَضَ مَا مَضَى مِنْ عِدَّتِهَا نو تېر سوی عدت به ماتیږي وَعَلَيْهَا أَنْ تَسْتَأْنِفَ الْعِدَّةَ بِالْحَيْضِ او پر هغې به لازم وي چي له شروع څخه د حیض په حساب عدت تېر کړي وَمَعْنَاهُ: إِذَا رَأَتِ الدَّمَ عَلَى الْعَادَةِ د دې مطلب دا دی: چي کله هغه د خپل [اول] عادت مطابق وینه ووینی لِأَنَّ عَوْدَهَا يُبْطِلُ الْإِيَاسَ ځکه چي [اویم ځل] د وینې راګرځېدل نا اُمیدي ختموي [چي ښځه آیسه نه ده بلکي حائضه ده] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح دي فَظَهَرَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ خَلَفًا نو [دا خبره] ښکاره سوه چي عدة بالشهور خلیفه [بدل] نه وو وَهَذَا لِأَنَّ شَرْطَ الْخَلْفِيَّةِ تَحَقُّقُ الْيَأْسِ او دا ځکه دي چي د خلیفه شرط د نا اُمیدی [آئسه والی] ثابتېدل دي وَذَلِكَ بِاسْتِدَامَةِ الْعَجْزِ إِلَى الْمَمَاتِ او دا تر مرګه پوري د عاجزۍ په پاتېدلو سره ثابتیږي كَالْفِدْيَةِ فِي حَقِّ الشَّيْخِ الْفَانِي لکه څرنګه چي د ډېر بوډا سړي په حق کي فدیه ده.

**اللغات:** ﴿آيِسَة﴾ له حیض څخه نا اُمیده ښځه. ﴿اِعْتَدَّت﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صیغه ده: عدت تېرول. ﴿اِسْتِدَامَة﴾ د استفعال مصدر دی: همېشه پاتېدل. ﴿الشَّيْخِ الْفَانِي﴾ هغه بوډا (سپین ږیری) کوم چي د روژې نیولو طاقت نه لري.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره او آسانه دی چي که یوه ښځه له حیض څخه نا اُمیده وي (او څو میاشتې پرلپسې حیض ورته راغلی نه وي). بیا هغې ته طلاق ورکول سي، او هغه د میاشتو په حساب خپل عدت تېرول شروع کړي. لېکن د عدت په دروان کي یو وار هغې ته وینه راسي. او دا وینه د هغې د مخکني عادت مطابق وي. یعني بهېدونکې وینه وي او د حیض د وینو په څیر ډېره بدبویه وي (بنایه). نو اوس حکم دا دی چي د هغې په حق کي عِدة بالشهور باطل سو. اوس پر هغې باندي له شروع څخه عِدة بالحیض تېرول لازم او ضروري دي. ځکه چي د عادت مطابق د وینې په راګرځلاو سره دا خبره ښکاره سوه چي عدة بالشهور د هغې په حق کي د عدة بالحیض بدل نه سو. ځکه چي د بدل لپاره دا شرط دی چي انسان په خپل ټوله ژوند کي پر أصل قادر نه سي (یعني بدل هغه وخت د أصل پر ځای درېږي کله چي د همېشه لپاره انسان پر أصل قدرت پیدا نه کړي). او کله چي پر أصل قدرت پیدا کړي. نو د بدل او نائب حکم ختمېږي. او څرنګه چي دلته هم دا ښځه د بدل په ذریعه (یعني د عدة بالشهور په ذریعه) د مقصود تر حاصلولو مخکي پر أصل قادره سوه. نو ځکه به د هغې په حق کي شرعي حکم د أصل (یعني د عدة بالحیض) وطرف، ته راګرځي. او اوس به د هغې لپاره د حیض په حساب سره عدت تېرول ضروري وي.

**کالفدیة إلخ:** مثلاً که یو ضعیف بوډا د روژې نیولو طاقت نه لري، نو د هغه په حق کي د شریعت فیصله دا ده چي هغه به فدیه ورکوي، لېکن که تر فدیه ورکولو مخکي هغه روغ رمټ سي او د روژې نیولو قدرت پیدا کړي، نو اوس به هغه له شروع څخه روژې نیسي، او د فدیې حکم باطلېږي. همداسي به دلته هم د حیض راتللو په صورت کي د عدة بالشهور حکم باطلېږي. او پر ښځي به عدة بالحیض لازم او ضروري وي.

## د حائضې ښځي پر عدت د هغې د آئسه کېدلو أثر

وَلَوْحَاضَتْ حَيْضَتَيْنِ ثُمَّ أَيِسَتْ او که ښځي ته دوه واره حیض راسي او بیا (له حیض څخه) نا اُمیده سي تَعْتَدُّ بِالشُّهُوْرِ نو هغه به د میاشتو په حساب سره عدت تېروي تَحَرُّزًا عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ اد دې لپاره) چي د بدل او مبدل له اجتماع (یو ځای کېدلو) څخه ځان وساتل سي.

**اللغات:** ﴿تَحَرُّز﴾ د تفعّل مصدر دی: ځان ساتل (بچاوبدل، ځان کتل، ځان ژغورل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که مطلقه ښځه ابتداءً حائضه وي، او د حیض په شمار سره عدت تېروي، او تر دوو حیضو وروسته هغه آئسه وګرځي. نو اوس به هغه له شروع څخه درې میاشتې عدت تېروي. ځکه چي د عدت پوره کولو لپاره همدا دوې لاري دي: ① عدة بالحیض (د حیض په

حساب عدت تېرول). ② عدت بالشهور (د مياشتو په حساب عدت تېرول) او څرنګه چې دغه ښځه اوس پر عدة بالحيض قادره نه ده. نو ځکه به اوس د هغې په حق کې عدة بالشهور متعين وي. او دا عدت به له نوي سره شروع کيږي. او د دې سره به عدت بالحيض نه متصل کيږي (يعني ښځه به هغه دوه تېر سوي حيضونه په دغه عدة بالشهور کې نه شماري). کنې أصل او بدل به سره جمع سي. کوم چې صحيح نه دي.

## د "منکوحه فاسده" او د "موطوءة بالشبهة" ښځې عدت

وَالْمَنْكُوحَةُ نِكَاحًا فَاسِدًا وَالْمَوْطُوءَةُ بِشُبْهَةٍ او هغه ښځه چې فاسده نکاح ور سره سوې وي ايا هغه ښځه چې په شبهه وطي ور سره سوي وي عِدَّتُهُمَا الْحَيْضُ فِي الْفُرْقَةِ وَالْمَوْتِ د دې دواړو ښځو عدت حيض دی د فرقت او مرګ په حالت کې لِأَنَّهَا لِلتَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ ځکه چې عدت د رحم د پاکوالي پېژندلو لپاره وي لَا لِقَضَاءِ حَقِّ النِّكَاحِ نه د نکاح د حق اداء کولو لپاره وَالْحَيْضُ هُوَ الْمُعَرِّفُ او همدا حيض ور پېژندونکی دی.

**اللغات:** ﴿الْمَنْكُوحَة﴾ د فتح اسمِ مفعول دی: هغه ښځه چې نکاح ورسره سوې وي (په نکاح سوې ښځه). ﴿الْمَوْطُوءَة﴾ د سمع اسمِ مفعول دی: وطي سوې ښځه. هغه ښځه چې جماع ور سره سوې وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو چا د يوې ښځې سره فاسده نکاح کړې وي (مثلاً له ګواهانو څخه بغير يې د ښځې سره نکاح کړې وي. دا نکاح فاسده ده. او داسې ښځې ته منکوحه فاسده وايي). يا يو څوک د شپې په تياره کې د يوې ښځې سره په دې شبهه او ګومان وطي وکړي چې دا زما ښځه ده (او داسې ښځې ته موطؤة بالشبهه وايي). نو اوس خو د منکوحه فاسده ښځې او د خپل خاوند په مېنځ کې يا د موطؤة بالشبهه ښځې او د خپل واطي (وطي کونکي) په مېنځ کې تفريق کول ضروري دي. نو تر تفريق وروسته يا د خاوند او واطي تر مرګ وروسته پر دې دواړو ښځو عدت واجبيږي. او هغه به عدة بالحيض وي. دليل دا دی چې پر دغه دوو ښځو په دې وجه عدت واجبيږي چې د رحم خالي والي معلوم سي (چې آيا د دوی رحم خو به د خاوند يا واطي په اوبو سره مشغول نه وي). او دا مقصد فقط په حيض سره حاصليږي. ځکه چې کله حيض راسي. نو معلومه به سي چې رحم خالي دی. او که حيض نه راسي نو بيا به د رحم مشغولېدل معلوم سي. نو په دې وجه د دوی عدت حيض ټاکل سوی دی. ها! که دغه دوې ښځې آئسه وي او د دوی په حق کې د حيض هېڅ

أميد نه وي، يا دواړي صغيره وي، نو بيا د دوی په حق کي مياشت د حيض قائم مقام کيږي، او د مياشتو په حساب سره به عدت پوره کيږي.

## د "أمِّ ولَد" د وفات عدت

وَإِذَا مَاتَ مَوْلَى أُمِّ الْوَلَدِ عَنْهَا أَوْ أَعْتَقَهَا او که د أم ولد مالک مړ سي يا مالک هغه آزاده کړي فَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ نو د هغې عدت درې حيضه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: حَيْضَةٌ وَاحِدَةٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي يو حيض دی لِأَنَّهَا تَجِبُ بِزَوَالِ مِلْكِ الْيَمِينِ ځکه چي [د أم ولد] عدت د ملک يمين د زائلېدلو په وجه واجبيږي فَشَابَهَتِ الِاسْتِبْرَاءَ نو دا [عدت] د استبراء سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّهَا وَجَبَتْ بِزَوَالِ الْفِرَاشِ او زموږ دليل دا دی: چي [د هغې] عدت د فراش زائلېدلو په وجه واجبيږي فَأَشْبَهَ عِدَّةَ النِّكَاحِ نو دا د نکاح د عدت سره مشابه سو ثُمَّ إِمَامُنَا فِيهِ عُمَرُ بيا په دې حکم کي زموږ پېشوا حضرت عمر رضي الله عنه دی فَإِنَّهُ قَالَ: عِدَّةُ أُمِّ الْوَلَدِ ثَلَاثُ حِيَضٍ ځکه هغه فرمايلي دي: چي د أم ولد عدت درې حيضه دي وَلَوْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا تَحِيضُ او که أم ولد له هغه ښځو څخه وي چي حيض نه ورته راځي فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ نو د هغې عدت درې مياشتي دي كَمَا فِي النِّكَاحِ لکه څرنګه چي په نکاح کي دی.

**اللغات:** ﴿شَابَهَت﴾ د مفاعلې ماضي ده: مشابه کېدل، ورته کېدل. ﴿إِسْتِبْرَا﴾ د استفعال مصدر دی: د رحم د پاکوالي او خالي والي معلومات کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د أم ولد مالک مړ سي، يا مالک هغه آزاده کړي، نو د هغې عدت درې حيضه دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هغې عدت يو حيض دی، همدا د امام مالک او امام محمد مسلک دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي پر أم ولد د ملک يمين زائلېدلو په وجه عدت واجبيږي، نو د هغې عدت د استبراء سره مشابه سو، او د استبراء لپاره يو حيض کافي وي، لهذا د هغې لپاره به هم يو حيض کافي وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي پر أم ولد د فراش زائلېدلو په وجه عدت واجبيږي، نو د هغې عدت د نکاح د عدت سره مشابه سو (ځکه چي په نکاح کي هم د فراش زائلېدلو په وجه عدت واجبيږي). او څرنګه چي د نکاح عدت درې حيضه دی، نو ځکه به د أم ولد عدت هم درې حيضه وي، او بيا په دې مسئله

کي حضرت عمر رضي الله عنه هم زموږ مقتدا او پېشوا دی. ځکه چي هغه د اُم ولد عدت درې حيض ټاکلي دي. نو ځکه به د هغې عدت درې حيضه وي.

او که اُمِ ولد صيغره يا آئسه وي. حيض نه ورته راځي. نو بيا به د هغې عدت درې مياشتي وي. لکه د منکوحه غيرِ حائضه ښځي چي همدومره عدت دی.

## د نابالغه هلک د حامله ښځي د وفات عدت

وَإِذَا مَاتَ الصَّغِيرُ عَنْ اِمْرَأَتِهٖ وَبِهَا حَبَلٌ او که چيري نابالغ هلک له خپلي ښځي څخه مړ سي ايعني که چيري د يوې ښځي نابالغ خاوند مړ سي] حال دا چي ښځه حامله وي وَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو د هغې عدت دا دی چي حمل وزېږوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ۞ او دا [حکم] د طرفينو په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: عِدَّتُهَا أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغې عدت څلور مياشتي او لس ورځي دي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْحَمْلَ لَيْسَ بِثَابِتِ النَّسَبِ مِنْهُ ځکه چي [د دغه] حمل نسب له خاوند [صغير] څخه ثابت نه دی فَصَارَ كَالْحَادِثِ بَعْدَ الْمَوْتِ نو [دا حمل] داسي سو لکه [د خاوند] تر مرګ وروسته چي پيدا سوی وي وَلَهُمَا إِطْلَاقُ قَوْلِهٖ تَعَالَى: وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ [الطلاق: ۴] او د طرفينو دليل د الله د دې فرمان مطلق والی دی: وَ أُوْلَاتِ الأَحْمَالِ...[يعني د حامله ښځو عدت دا دی چي هغوی حمل وزېږوي] وَلِأَنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِمُدَّةِ وَضْعِ الْحَمْلِ فِي أُولَاتِ الْأَحْمَالِ او ځکه چي په حامله ښځو کي عدت د [هغوی] د وضعُ الحمل په مودت سره اندازه کړی سوی دی قَصُرَتِ الْمُدَّةُ أَوْ طَالَتْ [برابره ده] که د وضعُ الحمل مودت لږ سي يا اوږد سي لَا لِلتَّعَرُّفِ عَنْ فَرَاغِ الرَّحِمِ او دا عدت د رحم د فراغت معلومولو [پېژندلو] لپاره نه دی لِشَرْعِهَا بِالْأَشْهُرِ مَعَ وُجُودِ الْأَقْرَاءِ ځکه چي دا عدت [يعني د وفات عدت] د حيض په موجودګي کي [يعني د حيض باوجود هم] په مياشتو سره مشروع سوی دی لٰكِنْ لِقَضَاءِ حَقِّ النِّكَاحِ بلکي د نکاح د حق اداء کولو لپاره دی [يعني د وفات عدت د دې لپاره نه دی چي د رحم فراغت په معلوم کړی سي. بلکي د دې لپاره دی چي د نکاح حق په اداء کړی سي] وَهٰذَا الْمَعْنٰى يَتَحَقَّقُ فِي الصَّبِيِّ او دا معنیٰ په نابالغ

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الخانية (ج:٢، ص:٢٧٠)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٥٣٠).
[القول الراجح ج:١، ص:٣٧١]

هلک کي هم ثابتيږي ځکه چي د هغه نکاح هم موجوده، نو بايد د هغه د نکاح حق اداء کړی سي ا وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْحَمْلُ مِنْهُ که څه هم حمل له هغه څخه نه دی انکاح خوسته ا بِخِلَافِ الْحَمْلِ الْحَادِثِ په خلاف د هغه حمل کوم چي اد خاوند تر مرګ وروسته ا پيدا سوی وي لِأَنَّهُ وَجَبَتِ الْعِدَّةُ بِالشُّهُورِ ځکه اکله چي په هغه کي اعدت د مياشتو په حساب سره واجب سو فَلَا تَتَغَيَّرُ بِحُدُوثِ الْحَمْلِ نو ابيا ا به د حمل په پيدا کېدلو سره نه متغير کيږي وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ كَمَا وَجَبَتْ وَجَبَتْ مُقَدَّرَةً بِمُدَّةِ الْحَمْلِ او زموږ په دې مسئله کي چي څرنګه عدت واجب سو نو اسمدستي ا له هغه وخت څخه د حمل په مودت سره متعين واجب سو فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړي مسئلې سره جلا سوې ايعني په دواړو کي فرق راغلی ا وَلَا يَلْزَمُ امْرَأَةُ الْكَبِيرِ إِذَا حَدَثَ لَهَا الْحَبَلُ بَعْدَ الْمَوْتِ او اپر دې باندي ا د بالغ سړي د ښځي اعتراض نه واردیږي کله چي د بالغ سړي تر مرګ وروسته د هغې حمل ښکاره سوی وي لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ مِنْهُ ځکه چي ا په دې صورت کي د حمل انسب د هغه ابالغ خاوند ا سره ثابتيږي فَكَانَ كَالْقَائِمِ عِنْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا نو دا حمل داسي سو لکه د حکم په اعتبار سره چي د مرګ په وخت کي موجود وي وَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ الْوَلَدِ فِي الْوَجْهَيْنِ او په دواړو صورتونو کي به د کوچني ايعني د حمل ا نسب نه ثابتيږي لِأَنَّ الصَّبِيَّ لَا مَاءَ لَهُ ځکه چي نابالغ هلک لره هيڅ نطفه نه وي فَلَا يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الْعُلُوقُ نو د هغه له طرف څخه د حامله کولو اد ښځي د بلاربولو ا هيڅ تصور کېدای نه سي وَالنِّكَاحُ يَقُومُ مَقَامَهُ فِي مَوْضِعِ التَّصَوُّرِ او نکاح د تصور په ځای کي د وطي قائم مقام کيږي.

**اللغات:** ﴿حَادِث﴾ د ضرب اسمِ فاعل دی: وروسته پيدا سوی (واقع سوی). ﴿عُلُوق﴾ د ښځي په رحم کي نطفه قرار نيول. د ښځي حامله کېدل (بلاربېدل). حامله کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو نابالغه هلک مړ سي. او د هغه ښځه حامله وي. نو د طرفينو په نېز د هغې عدت وضعُ الحمل دی. او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هغې عدت څلور مياشتي او لس ورځي دي. همدا د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي د دې ښځي د حمل نسب د دغه صغير (نابالغه هلک) سره ثابت نه دی. ځکه دا خبره تسليم سوې ده چي د نابالغه هلک په وطي سره ښځه نه حامله کيږي. نو داسي سو لکه د صغير تر مرګ وروسته چي دا حمل ښکاره سوي وي (يعني لکه د صغير تر مرګ وروسته چي

ښځه حامله سوې وي). او تر مرګ وروسته د حمل ښکاره کېدلو په صورت کې بالاتفاق پر ښځې څلور میاشتې او لس ورځې واجبېږي. نو همداسې به دلته هم د دې ښځې عدت څلور میاشتې او لس ورځې وي.

**د طرفینو دلیل:** دا دی چې الله تعالیٰ په دې آیت "وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ" کې مطلقاً حکم کړی دی چې د حامله ښځو عدت وضعُ الحمل دي. برابره ده هغه که د طلاق عدت وي یا د وفات عدت وي. او برابره ده حمل که د خپل خاوند وي یا د بل چا وي. نو دا آیت به د خپل إطلاق په وجه د نابالغ هلک ښځې لره هم شامل وي. ځکه چې هغه حامله ده. که څه هم د هغې حامل ثابتُ النسب نه دی. او دویم دلیل دا دی چې د حامله ښځو په حق کې د وفات د عدت اندازه په وضعُ الحمل سره تاکل سوې ده. هغه که د وضعُ الحمل مودت لږ وي. او که زیات وي: او د وفات د عدت مقصد د نکاح حق اداء کول دي. د رحم خالي والي معلومول نه دي. د دې وجه دا ده چې په شریعت کې د وفات عدت د حیض باوجود په میاشتو سره تاکل سوی دی. نو ثابته سوه چې د دغه عدت مقصد د نکاح حق اداء کول دي، نه د رحم خالي والي (فراغت) معلومول. او دا مقصد په صغیر کې هم موجود دی. که څه هم حمل له هغه څخه نه دی. نو ځکه به د هغه د ښځې په حق کې هم عدت وضعُ الحمل وي.

**بخلاف الحمل إلخ:** په دې سره د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قیاس جواب ورکوي. حاصل یې دا دی چې کوم حمل د وفات په وخت کې موجود وي. داسې حمل پر هغه حمل قیاسول صحیح نه دي کوم چې تر وفات وروسته ښکاره سوی وي. ځکه چې د وفات په وخت کې د حمل د نشتوالي په صورت کې د نکاح د حق اداء کولو لپاره عدة بالشهور واجب سوې دی. لهذا اوس که تر دې وروسته حمل ښکاره سي، نو د هغه په وجه به دغه عدت نه متغیر کیږي. بلکې عدة بالشهور به پر خپل حالت پاته وي.

او په دې مسئله کې عدت له ابتداء څخه وضعُ الحمل تاکل سوی دی. ځکه چې د حامله ښځو عدت همدا دی چې هغوی حمل وزېږوي. لهذا په مقیس او مقیس علیه کې فرق راغلی. نو په دې وجه به یو پر بل قیاسول صحیح نه وي.

**ولایلزم إلخ:** دا د یو مقدر سوال جواب دا دی. سوال دا دی چې د بالغ سړي د ښځې په حق کې عدت ولې متغیر کیږي. یعني که د بالغ سړي د مرګ په وخت کې حمل ښکاره سوی نه وي. نو د هغه د ښځې عدت د میاشتو په حساب سره وي. او که تر مرګ وروسته حمل ښکاره سي. نو بیا د هغې عدت په وضعُ الحمل سره بدلیږي. لهذا د صغیر (نابالغه هلک) د ښځې عدت هم متغیر کېدل پکار دي. د دې په جواب کې فرمایي چې له بالغ څخه د نطفې او وطي تصور کېدای سي (یعني د هغه په وطي سره د ښځې حامله کېدل ممکن دي). نو په دې وجه به تر مرګ ورسته پیدا کېدونکی حمل د

هغه ګرځول کيږي (چي دا حمل د هغه دی. او د وفات په وخت کي هم موجود وو. او اوس ښکاره او غټ سو). نو په دې وجه به د هغه د ښځي په حق کي عدت متغير کيږي. د دې په خلاف چي څرنګه د صغير په حق کي نطفه او وطي بالکل متصور نه دي. لهذا د هغه د ښځي حمل به نه د وفات په وخت کي موجود منل کيږي. او نه به د صغير سره د حمل نسب ثابتيږي.

**ولايثبت إلخ:** فرمايي که حمل د صغير د مرګ په وخت کي موجود وي او که موجود نه وي. په دواړو صورتونو کي د صغير سره د حمل نسب نه ثابتيږي، ځکه چي د نسب د ثبوت لپاره نطفه او وطي ضروري دي. او له صغير څخه بالکل نطفه او وطي متصور نه دي. او د هغه نکاح د وطي قائم مقام منل کېدلای هم نه سي. ځکه کله چي له هغه څخه بالکل د وطي امکان او تصور نسته. نو نکاح به يې څرنګه د وطي قائم مقام سي.

## د حيض په حالت کي د طلاق سوي ښځي عدت

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ او کله چي خاوند خپلي ښځي ته د حيض په حالت کي طلاق ورکړي لَمْ تَعْتَدَّ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي وَقَعَ فِيهَا الطَّلَاقُ نو [داسي ښځه] به هغه حيض په عدت کي نه شماري په کوم حيض کي چي طلاق واقع سوی وي لِأَنَّ الْعِدَّةَ مُقَدَّرَةٌ بِثَلَاثِ حِيَضٍ كَوَامِلَ ځکه چي عدت په پوره درېو حيضو سره متعين سوی [ټاکل سوی] دی انو که ښځه هغه حيض هم په عدت کي شمار کړي، نو درې حيضه به پوره نه سي] فَلَا يَنْقُصُ عَنْهَا لهذا تر درېو حيضو به عدت نه کميږي.

**اللغات:** ﴿كَوَامِل﴾ جمع د كَامِلَة ده: پوره، بشپړ.

**تشريح:** صورت د مسئلې بالکل ښکاره دی، د تشريح ضرورت يې نسته.

## که د معتدة ښځي سره وطي بالشبهة وسي نو د دواړو عدتونو د تداخل حکم

وَإِذَا وُطِئَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِشُبْهَةٍ او کله چي د عدت تېرونکي ښځي سره وطي بالشبهه وسي فَعَلَيْهَا عِدَّةٌ أُخْرَى نو پر هغې به بل عدت [هم] واجب وي وَتَدَاخَلَتِ الْعِدَّتَانِ او دواړه عدتونه به په يو بل کي داخليږي وَيَكُونُ مَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْحَيْضِ مُحْتَسَبًا مِنْهُمَا جَمِيعًا او دا ښځه چي کوم حيضويني هغه به له دواړو عدتونو څخه شمارل کيږي وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ الْأُولَى وَلَمْ تَكْمِلِ الثَّانِيَةُ او که چيري اول عدت پوره سي او دويم عدت پوره نه سي فَعَلَيْهَا تَمَامُ الْعِدَّةِ الثَّانِيَةِ نو پر هغې به دويم عدت پوره کول واجب وي وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا [حکم] زموږ په نيز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَتَدَاخَلَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ

الله فرمايي: چي دواړه عدتونه به په يو بل کي نه داخليږي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْعِبَادَةُ ځکه [د عدت] مقصود خو عبادت دی فَإِنَّهَا عِبَادَةُ كَفٍّ عَنِ التَّزَوُّجِ وَالْخُرُوجِ ځکه چي دا [عدت] له نکاح او [دباندي] وتلو څخه د منع کېدلو عبادت دی فَلَا تَتَدَاخَلَانِ لهذا دواړه عدتونه به يو په بل کي نه داخليږي كَالصَّوْمَيْنِ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ لکه په يوه ورځ کي چي دوې روژې [نه داخليږي] وَلَنَا: أَنَّ الْمَقْصُودَ التَّعَرُّفُ عَنْ فَرَاغِ الرَّحِمِ او زموږ دليل دا دی: چي [د عدت] مقصود د رحم د فراغت معلومول دي وَقَدْ حَصَلَ بِالْوَاحِدَةِ او دا مقصد په يوه عدت سره حاصليږي فَتَتَدَاخَلَانِ لهذا دواړه عدتونه به په يو بل کي داخليږي وَمَعْنَى الْعِبَادَةِ تَابِعٌ او د عبادت معنیٰ تابع ده أَلَا تَرَى أَنَّهَا تَنْقَضِي بِدُونِ عِلْمِهَا وَمَعَ تَرْكِهَا الْكَفَّ آيا ته نه ګورې! چي عدت د ښځي له خبرېدلو څخه بغير او د ځان منع کولو [د حکم] د پرېښولو باوجود [هم] تيرېږي.

**اللغات:** ﴿تَدَاخَلَتْ﴾ د تفاعل ماضي ده: يو په بل کي داخلېدل. ﴿مُحْتَسَبًا﴾ د افتعال اسم مفعول دی: شمارل سوی، حسابل سوی (محسوب). ﴿كَفٌّ﴾ د نصر مصدر دی: منع کېدل، ځان منع کول، ځان راګرځول. ﴿التَّعَرُّف﴾ د تفعّل مصدر دی: پېژندل، معلومېدل.

**تشريح:** په متن کي له "الْمُعْتَدَّة" څخه مراد هغه ښځه ده کوم چي د طلاق بائن په عدت کي وي.

د مسئلې حقيقي صورت دا دی چي که يو سړی خپلې ښځي ته طلاق بائن ورکړي، او ښځه د عدت په دوران کي د يو بل سړي نکاح وکړي، او بيا د فساد دفع کولو په خاطر قاضي د دوی په مېنځ کي تفريق وکړي، نو اوس ښکاره خبره ده چي پر دغه ښځه به دوه عدته واجب وي، يو د مخکني خاوند عدت، او بل د دويم خاوند عدت. لېکن زموږ په نېز به په دغه دواړو عدتونو کي تداخل کيږي. او دغه ښځي ته چي هر حيض راځي، هغه به په دواړو عدتونو کي شمارل کيږي، چي د هغه صورت به داسي وي چي که چيري ښځي تر يوه حيض تېرېدلو وروسته (د دويم خاوند سره) نکاح کړې وي، نو تر تفريق وروسته به پر هغې درې حيضونه نور واجب وي چي له هغه څخه به دوه حيضه په دواړو عدتونو کي شمارل کيږي (يعني دوه حيضه به څلور حيضه ګڼل کيږي، او له هر عدت څخه به شمارل کيږي)، او څرنګه چي په اول عدت کي يو حيض مخکي لا تېر سوی وو، نو ځکه به هغه عدت پوره ګڼل کيږي (ځکه چي دوه حيضه د دې عدت په هغه کي شمارل سول او يو حيض د هغه عدت سو، نو دا يې درې حيضونه)، او پاته سو درېيم حيض به په دويم عدت کي شمارل کيږي، نو په دې توګه به دويم عدت هم پوره سي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو عدتونو کي به تداخل نه کيږي، بلکي د هر عدت لپاره به جلا، جلا درې حيضه شمارل کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي د عدت د وجوب مقصد عبادت دی، ځکه چي د عدت په دوران کي معتده ښځه د بل سړي سره نکاح کولای نه سي، او نه بېله شرعي ضرورته له کور څخه وتلای سي، او په عباداتو کي تداخل نه کيږي، مثلاً که يو سړی په يوه ورځ کي دوې روژې ونيسي، نو نه صحيح کيږي، بلکي فقط يوه يوه روژه صحيح کيږي، همداسي به يو حيض هم په دواړو عدتونو کي نه شمارل کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د عدت مقصود د رحم برائت او فراغت معلومول دي، او څرنګه چي دا مقصود په يوه عدت سره حاصليږي، لهذا بېله څه وجهي به د عدت په واجبولو سره پر ښځي انتظار (تربص) نه زياتول کيږي، او په دواړو عدتونو کي به تداخل کيږي.

ومعنى العبادة إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي موږ هم دا خبره منو چي عدت يو عبادت دی، خو په عدت کي د عبادت معنیٰ تابع ده، ځکه چي د عدت اصلي مقصود خو د رحم د فراغت طلب کول دي، همدا وجه ده که معتده ښځه خپل ځان له "کف" څخه منع نه کړي او پر "کف" عمل نه وکړي يعني بېله ضرورت له کور څخه ووځي نو هم عدت تيريږي او صحيح کيږي، يا که مثلاً هغه په دې خبره نه وي چي ما ته طلاق راکول سوی دی او درې حيضه په دغه ناخبرۍ کي تېر سي، نو هم عدت تيريږي او صحيح کيږي، لهذا که چيري د عدت اصل مقصود عبادت وای، نو بيا به په دې کارونو سره عدت باطلېدلای، لهذا د عدت نه باطلېدل د دې خبري دليل دی چي په عدت کي د عبادت معنیٰ تابع ده، او کله چي هغه تابع ده، نو ځکه به تداخل پکښي کيږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

| وَالْمُعْتَدَّةُ عَنْ وَفَاةٍ إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ او د وفات عدت تېرونکې ښځه چي کله په شبهه سره وطي کړی سي ايعني کله چي له خاوند څخه بغير يو بل څوک په شبهه جماع ور سره وکړي ا تَعْتَدُّ بِالشُّهُوْرِ نو هغه به د مياشتو ا په حساب ا عدت تېروي وَتَحْتَسِبُ بِمَا تَرَاهُ مِنَ الْحَيْضِ فِيهَا او په دې دوران کي چي کوم حيض ويني هغه به ا هم په عدت کي ا شماري تَحْقِيقًا لِلتَّدَاخُلِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ د دې لپاره چي حتی الإمکان تداخل ثابت سي. |
| --- |

**اللغات:** ﴿الْمُعْتَدَّة﴾ د افتعال اسمِ مفعول دی: عدت تېرونکې ښځه (هغه ښځه کوم چي په عده کي وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو خاوند مړ سي، او ښځه د وفات عدت (يعني څلور مياشتي او لس ورځي) تېرول شروع کړي، او د عدت په دوران کي د هغې سره وطي بالشبهه وسي. نو دا ښځه به هغسي د مياشتو په حساب خپل عدت پوره کوي، او په دې دوران کي چي کوم حيضونه هغې ته راځي، دا به له دويم حيض څخه شماري، د دې لپاره چي حتى الإمکان تداخل وسي. (مثلاً که د خاوند تر مرګ وروسته هغې دوې مياشتي عدت پوره کړی وي او دوې مياشتي او لس ورځي عدت لا پاته وي، او په دې حالت کي د هغې سره وطي بالشبهه وسي، نو اوس به دا ښځه هغه پاته دوې مياشتي او لس ورځي پوره کوي، او په دې دوو مياشتو او لس ورځو کي چي کوم دوه حيضه راځي، هغه به په دويم عدت يعني د وطي بالشبهه په عدت کي شماري، او کله چي دغه دوې مياشتي او لس ورځي هم پوره سي. نو يو حيض به بل تېروي چي د وطي بالشبهه عدت هم پوره سي).

## د عدت شروع کېدلو وخت

وَابْتِدَاءُ الْعِدَّةِ فِي الطَّلَاقِ عَقِيبَ الطَّلَاقِ او په طلاق کي به د عدت شروع له طلاق څخه وروسته وي وَفِي الْوَفَاةِ عَقِيبَ الْوَفَاةِ او [د خاوند] په وفات کي به تر وفات وروسته وي فَإِنْ لَمْ تَعْلَمْ بِالطَّلَاقِ أَوِ الْوَفَاةِ حَتَّى مَضَتْ مُدَّةُ الْعِدَّةِ نو که چيري ښځه په طلاق يا وفات خبره نه سي تر دې چي د عدت موده تېره سي فَقَدِ انْقَضَتْ عِدَّتُهَا نو د هغې عدت پوره سو لِأَنَّ سَبَبَ وُجُوبِ الْعِدَّةِ الطَّلَاقُ أَوِ الْوَفَاةُ ځکه چي د عدت واجبېدلو سبب طلاق دی يا وفات دی فَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاؤُهَا مِنْ وَقْتِ وُجُودِ السَّبَبِ نو د عدت د شروع اعتبار به [هم] د سبب موجودېدلو له وخت څخه کيږي [يعني پر ښځې د دوو سببونو په وجه عدت واجبيږي، يو دا چي خاوند طلاق ورکړي، دويم دا چي خاوند يې مړ سي، لهذا هر کله چي هم په دې دوارو کي يو سبب پيښ سي، نو عدت به شروع کيږي، که څه هم ښځه خبره نه وي، ځکه چي سبب موجود سو] وَمَشَايِخُنَا يُفْتُونَ فِي الطَّلَاقِ أَنَّ ابْتِدَاءَ هَا مِنْ وَقْتِ الْإِقْرَارِ او زموږ [د بخارى او سمرقند] مشائخو به د طلاق په صورت کي دا فتوىٰ ورکول چي د عدت شروع به [په طلاق کي] د اقرار له وخت څخه وي نَفْيًا لِتُهْمَةِ الْمُوَاضَعَةِ د دې لپاره چي د خپل مينځوي اتفاق کولو تهمت ليري سي. [يعني د طلاق د عدت په هکله به د بلخ او سمرقند علماؤ دا فتوىٰ ورکوله چي له هغه ورځي څخه به عدت شروع کيږي په کومه ورځ چي خاوند د طلاق اقرار وکړي، مثلاً که د رجب په اوله ورځ خاوند اقرار وکړي چي ما د ربيع الثاني په

اوله ورځ ښځي ته طلاق ورکړي وو نو د قاعدې خو مطابق باید د ربیع الثاني له اولي ورځي څخه عدت شروع سي. لېکن د بلخ او سمرقند مشائخو به دا فتویٰ ورکوله چي د تهمت لیري کولو لپاره به د رجب له اولي ورځي څخه عدت شروع کیږي. "تهمت دا دی چي شاید خاوند او ښځي به دا پلان جوړ کړی وي چي ما او تا به د خپلو قربانو په مخ کي پر دې خبره اتفاق وکړو چي ما څو میاشتي مخکي تا ته طلاق ورکړی دی او اوس عدت پوره سوی دی او ته اجنبیه ګرځېدلې یې. نو په دې توګه به زه تا ته د میراث له حق څخه د زیات مال وصیت وکړم". د دغه تهمت د نفي کولو په وجه به د اقرار له ورځي څخه عدت شروع کیږي.

**اللغات**: ﴿يُفْتُوْن﴾ د افعال د باب مضارع ده. أَفْتَى يُفْتِيْ إِفْتَاءً: فتویٰ ورکول. ﴿مُوَاضَعَة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: کله چي دوه خلک پر یوه خبره اتفاق وکړي، نو دې ته "مواضعت" وايي.

**تشریح**: مسئله په عبارت کي تشریح سوه.

## د نکاح فاسد د عدت شروع کېدلو وخت

وَالْعِدَّةُ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ عَقِيبَ التَّفْرِيقِ أَوْ عَزْمِ الْوَاطِئِ عَلَى تَرْكِ وَطْئِهَا او په نکاح کي به [شروع دا] عدت تر تفریق وروسته یا د وطي پر پرېښوولو د واطئ تر عزم کولو وروسته وي وَقَالَ زُفَرُ: مِنْ آخِرِ الْوَطَآتِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د عدت شروع به] له آخري وطي څخه وي لِأَنَّ الْوَطْءَ هُوَ السَّبَبُ الْمُوْجِبُ ځکه چي همدا وطي د عدت واجبونکي سبب دی وَلَنَا: أَنَّ كُلَّ وَطْءٍ وُجِدَ فِي الْعَقْدِ الْفَاسِدِ يَجْرِي مَجْرَى الْوَطْأَةِ الْوَاحِدَةِ زموږ دلیل دا دی: چي هر هغه وطي کوم چي په فاسد عقد کي پیدا سي [هغه] د یوه وطي قائم مقام کیږي لِاسْتِنَادِ الْكُلِّ إِلَى حُكْمِ عَقْدٍ وَاحِدٍ ځکه چي د ټولو [وطؤ] نسبت د یوه عقد وطرف ته کیږي وَلِهَذَا يُكْتَفَى فِي الْكُلِّ بِمَهْرٍ وَاحِدٍ او له همدې وجهي د ټولو [وطؤ] لپاره یو مهر کافي کیږي فَقَبْلَ الْمُتَارَكَةِ أَوِ الْعَزْمِ لَا تَثْبُتُ الْعِدَّةُ نو ځکه به تر تفریق یا تر عزم کولو مخکي عدت نه ثابتیږي مَعَ جَوَازِ وُجُودِ غَيْرِهِ ځکه چي له دې وطي څخه بغیر [د نورو وطؤ] د وجود امکان سته [یعني ځکه چي تر تفریق او عزم مخکي د نورو وطؤ موجودېدل ممکن دي] وَلِأَنَّ التَّمَكُّنَ عَلَى وَجْهِ الشُّبْهَةِ أُقِيمَ مَقَامَ حَقِيقَةِ الْوَطْءِ او ځکه چي د شبهه په توګه پر وطي قدرت درلودل د حقیقي وطي قائم مقام سوی دي لِخَفَائِهِ دوطي د پټوالي [مخفي والي] په وجه [یعني ځکه چي وطي یو مخفي شی دی] وَمَسَاسُ الْحَاجَةِ إِلَى مَعْرِفَةِ الْحُكْمِ فِي حَقِّ غَيْرِهِ او د ضرورت محسوسېدل له واطئ څخه بغیر [د بل چا] په حق کي د حکم

وپېژندلو ته دی. ايعني وطي ځکه مخفي او پټ أمر دي چي له واطئ څخه بغير بل څوک هم د حکم يعني د عدت معلومولو ته مجبوره کيږي، نو د بل چا په حق کي وطي يو مخفي أمر دی ا.

**اللغات:** ﴿وَاطِئ﴾ د سمع اسمِ فاعل دی: وطي کونکی، جماع کونکی. ﴿عَزْم﴾ د ضرب مصدر دی: پخه اراده کول. ﴿تَمَكُّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت حاصلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي او ښځي په مينځ کي فاسده نکاح وتړل سي. نو ښکاره خبره ده چي دا نکاح به فسخ کيږي او د دوی په مينځ کي به تفريق واقع کيږي. خو په دې صورت کي به زموږ په نيز د عدت شروع له هغه وخت څخه کيږي کله چي قاضي د خاوند او ښځي په مينځ کي تفريق وکړي او نکاح فسخ کړي. يا به له هغه وخت څخه کيږي کله چي واطي د وطي د پرېښوولو پخه اراده وکړي (او ټينګ عزم وکړي چي بيا به هيڅکله د دې ښځي سره جماع نه کوم).

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په نکاحِ فاسد کي به د وطي شروع له آخري وطي څخه کيږي. ځکه چي همدا وطي د عدت واجبېدلو سبب دی، ځکه که دغه سړي وطي نه کولای. نو پر ښځي به عدت نه واجبېدلای. معلومه سوه چي د عدت د وجوب مُحرک او سبب وطي دي. نو ځکه به د عدت شروع له آخري وطي څخه کيږي.

**ولنا إلخ:** زموږ دليل دا دی چي په عقدِ فاسد کي چي څومره وطي کيږي. هغه ټوله د يوه وطي (وطي واحد) په درجه کي دي. ځکه چي هغوی ټوله د يوه عقد وطرف ته منسوب دي. او د هغوی ټولو په وجه فقط يو مهر واجبيږي. لهذا تر تفريق يا د وطي نه کولو تر ټينګ عزم مخکي به تفريق نه ثابتيږي. ځکه چي تر تفريق او تر ټينګ عزم کولو مخکي د دويم ځل وطي کولو امکان سته. نو ځکه موږ وايو چي تر څو تفريق واقع سوی نه وي يا د وطي د پرېښوولو ټينګ عزم سوی نه وي. تر هغه وخته به عدت نه شروع کيږي.

**ولأن التمکن إلخ:** له دې ځايه دويم دليل بيانوي. حاصل يې دا دی چي حقيقي وطي يو مخفي او پټ کار دی. او وطي بالشبهه د هغه قائم مقام دي. ځکه هر هغه شی کوم چي مخفي وي او د هغه ظاهري سبب موجود وي نو دا ظاهري سبب د هغه شي قائم مقام جوړيږي. نو ځکه به قدرة على وجه الشبهة د وطي قائم مقام وي. او ښکاره خبره ده چي په نکاحِ فاسد کي تر تفريق يا د وطي نه کولو تر ټينګ عزم مخکي د قدرة على الوطي شبهه پاته وي (يعني په نکاحِ فاسد کي تر تفريق او ټينګ عزم مخکي

دا شبهه کېدای سي چي شاید خاوند به بیا د ښځي سره وطي وکړي). نو ځکه به تر تفریق واقع کېدلو یا ټینګ عزم کولو مخکي عدت نه شروع کیږي (ځکه چي د عدت شروع له هغه وخت څخه کیږي. کله چي په هره توګه د وطي شبهات ختم سي).

**ومساس الحاجة إلخ:** په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چي دا خبره موږ نه منو چي حقیقي وطي یو مخفي أمر دی. ځکه چي د عدت معلومولو ضرورت خاوند او ښځي ته دی. او د خاوند او ښځي په نېز حقیقي وطي یو معلوم أمر دی. نه مخفي أمر (یعني خاوند او ښځي ته معلومه ده چي آخري وطي کله سوي دی. نو له هغه وخت څخه به ښځه عدت شروع کوي). لهذا د خاوند او ښځي په حق کي وطي یو مخفي أمر ګرځول صحیح نه دي. د دې په جواب کي فرمایي چي کله نا کله د خاوند او ښځي څخه بغیر بل چا ته هم د عدت معلومولو ضرورت پیښیږي. مثلاً که د دغه ښځي سره یو سړی صحیح نکاح کول غواړي. نو هغه سړی دې ته مجبوره دی چي د ښځي د عدت د ابتداء او انتهاء په هکله معلومات تر لاسه کړي. نو که څه هم وطي د خاوند او ښځي په حق کي مخفي أمر نه دی. لیکن د بل چا په حق کي هغه مخفي أمر دی. نو ځکه به هغه مخفي منل کیږي.

## په عدت تېرېدلو کي د خاوند او ښځي د اختلاف په صورت کي د چا قول معتبر دی؟

وَإِذَا قَالَتْ الْمُعْتَدَّةُ: اِنْقَضَتْ عِدَّتِيْ وَكَذَّبَهَا الزَّوْجُ او کله چي معتده ښځه ووایي: چي زما عدت تېر سو كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهَا مَعَ الْيَمِيْنِ نو قول به د ښځي معتبر وي د قسم سره لِأَنَّهَا أَمِيْنَةٌ فِيْ ذٰلِكَ ځکه چي ښځه په دې باره کي امانتداره ده وَقَدْ أُتُّهِمَتْ بِالْكَذِبِ الیکن ا هغه په دروغو سره متهم ده فَتَحْلِفُ كَالْمُوْدَعِ نو ځکه به د مودَع په څیر قسم خوري ایعني ښځه د عدت تېرېدلو په سلسله کي امانتداره ده. او خاوند پر هغې تهمت لګولی دی چي ته دروغ وایې. او قاعده دا ده چي کله د امانت په خلاف هیڅ ګواه نه وي. نو أمین به قسم خوري ا.

**اللغات:** ﴿فَتَحْلِفُ﴾ د ضرب مضارع ده: قسم خوړل (قسم کول). لوړه کول. ﴿الْمُوْدَعُ﴾ د افعال اسم مفعول دی: هغه څوک چي امانت ور ته ایښول سوی وي. أمین. امانتدار (امانت ساتونکی).

**تشریح:** عبارت او صورت د مسئلې ښکاره دي. تشریح ته ضرورت نه لري.

# د هغه ښځي عدت کوم چي د طلاق په عدت کي دویم ځل نکاح وکړي او بیا طلاق ورکول سي

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ إِمْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا او کله چي خاوند خپلي ښځي ته طلاق بائن ورکړي ثُمَّ تَزَوَّجَهَا فِي عِدَّتِهَا بیا د هغې په عدت کي د هغې سره نکاح وکړي وَطَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او ابیا ا تر دخول مخکي هغې ته طلاق ورکړي فَعَلَيْهِ مَهْرٌ كَامِلٌ وَعَلَيْهَا عِدَّةٌ مُسْتَقِلَّةٌ نو پر خاوند به پوره مهر واجب وي او پر ښځي به مستقل اعلیحده ا عدت واجب وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ۞ او دا ا حکم ا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ: مُحَمَّدٌ: عَلَيْهِ نِصْفُ الْمَهْرِ وَعَلَيْهَا إِتْمَامُ الْعِدَّةِ الْأُولٰى او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي پر خاوند به نیم مهر واجب وی او ا د هغه ا پر ښځي به ا فقط ا د اول عدت پوره کول واجب وي لِأَنَّ هٰذَا طَلَاقٌ قَبْلَ الْمَسِيسِ ځکه چي دا طلاق قبل الدخول دی فَلَا يُوجِبُ كَمَالَ الْمَهْرِ وَلَا اِسْتِئْنَافَ الْعِدَّةِ لهذا نه به پوره مهر واجبوي او نه به له نوي سره د عدت شروع کول ا یعني مستقل عدت ا واجبوي وَإِكْمَالُ الْعِدَّةِ الْأُولٰى إِنَّمَا يَجِبُ بِالطَّلَاقِ الْأَوَّلِ او د اول عدت پوره کول خو د اول طلاق په وجه واجب سوي دي إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَظْهَرْ حَالَ التَّزَوُّجِ الثَّانِي خو دا چي د دویمي نکاح په وخت کي هغه ا اول عدت ا ښکاره نه سو ا یعني د دویمي نکاح په وجه پټ سو ا فَإِذَا ارْتَفَعَ بِالطَّلَاقِ الثَّانِي ظَهَرَ حُكْمُهُ الیکن کله چي دویمه نکاح په دویم طلاق سره ختمه سوه نو د اول طلاق حکم ښکاره سو كَمَا لَوْ اشْتَرٰى أُمَّ وَلَدِهٖ ثُمَّ أَعْتَقَهَا لکه یو څوک چي خپل أُم ولد رانیسي او آزاده یې کړي وَلَهُمَا: أَنَّهَا مَقْبُوضَةٌ فِي يَدِهٖ حَقِيقَةً بِالْوَطْأَةِ الْأُولٰى او د شیخینو دلیل دا دی: چي دا ښځه په اوله جماع سره حقیقتاً د خپل خاوند په قبضه کي مقیده ده وَبَقِيَ أَثَرُهُ وَهُوَ الْعِدَّةُ او د اولي جماع أثر اوس هم ا پاته دی او هغه عدت دی فَإِذَا جُدِّدَ النِّكَاحُ وَهِيَ مَقْبُوضَةٌ لهذا کله چي نکاح نوې سوه په داسي حال کي چي دا ښځه ا د خاوند ا په قبضه کي ده نَابَ ذٰلِكَ الْقَبْضُ عَنِ الْقَبْضِ الْمُسْتَحَقِّ فِي هٰذَا النِّكَاحِ نو دا قبضه د دغه ا دویمي ا نکاح د واجبي قبضې قائم مقام سوه كَالْغَاصِبِ يَشْتَرِي الْمَغْصُوبَ الَّذِي فِي يَدِهٖ لکه غاصب چي هغه مغصوب شی رانیسي کوم چي د هغه په قبضه کي وي يَصِيرُ قَابِضًا بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ نو محض په عقد سره هغه

---

۞ القول الراجح: قول الشیخین رَحِمَهُمَا الله ، کما ذکر فی رد المحتار (ج:۲، ص:۶۶۶). [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۷۱]

قابض ګرځي فَوَضَحَ بِهٰذَا أَنَّهٗ طَلَاقٌ بَعْدَ الدُّخُولِ نو په دې سره ښکاره سوه چي دا طلاق [ګواکي] تر دخول وروسته دی وَقَالَ زُفَرُ: لَا عِدَّةَ عَلَيْهَا أَصْلًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر دغه ښځي بالکل عدت واجب نه دی لِأَنَّ الْأُولٰى قَدْ سَقَطَتْ بِالتَّزَوُّجِ ځکه چي اول عدت په [دويمه] نکاح سره ساقط سو فَلَا تَعُودُ نو ځکه به هغه نه راګرځي وَالثَّانِيَةُ لَمْ تَجِبْ او دويم عدت [تر اوسه] واجب سوی نه دی وَجَوَابُهٗ مَا قُلْنَا او ددې جواب هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿إِتْمَام﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، بشپړ کول. ﴿مَسِيْس﴾ جماع کول، وطي کول. ﴿إِسْتِيْنَاف﴾ د استفعال مصدر دی: له نوي سره شروع کول. ﴿جُدِّدَ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: نوي کول، جديد کول، تازه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلي ښځي ته طلاق بائن ورکړي، او د عدت په دوران کي دويم ځل د هغې سره نکاح وکړي، لېکن تر وطي او خلوتِ صحيحه مخکي بيا هغې ته طلاق ورکړي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پر دغه خاوند ټوله مهر واجب وي، او د ده پر ښځي به مستقل دويم عدت واجب وي، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر خاوند به نيم مهر واجب وي، او پر ښځي به د اول (مخکني) عدت پوره کول واجب وي.

صاحب د ذخيرې ليکلي دي چي دا مسئله پر يوه فقهي قاعدې باندي مبني ده. د قاعدې حاصل دا دی چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د اولي نکاح دخول د دويمي نکاح دخول شمارل کيږي. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د اولي نکاح دخول د دويمي نکاح دخول نه شمارل کيږي.

او څرنګه چي دغه سړي ښځي ته په دويمه نکاح کي تر دخول او خلوت مخکي طلاق ورکړی دی، او د طلاق قبل الدخول په صورت کي پر خاوند نيم مهر واجبيږي او پر ښځي عدت نه واجبيږي، نو ځکه به دلته د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر خاوند نيم مهر واجب وي، او د دغه طلاق عدت به هم واجب نه وي، ها! د اول طلاق عدت پوره کول به پر ښځي لازم وي، ځکه چي هغه عدت د اول طلاق په وجه واجب سو، او دويمي نکاح هغه لاندي او مخفي کړی. لېکن کله چي خاوند په دويمه نکاح کي تر دخول او خلوت مخکي طلاق ورکړی، نو د دويمي نکاح حکم ختم سو. او اوس د اول طلاق أثر بير ته ښکاره سو. او څرنګه چي اول طلاق تر وطي او خلوت وروسته ورکول سوی دی. نو ځکه به هغه د عدت موجب وي، او پر ښځي به د اول (مخکني) عدت پوره کول لازم وي.

صاحب د کتاب د يو مثال په ذريعه د دې نور وضاحت کوي فرمايي چي مثلاً که يو څوک د بل سړي د مينځي سره نکاح وکړي او له هغې څخه يې کوچنی پيدا سي. او بيا هغه مينځه له دغه بل سړي (مالک) څخه رانيسي او بيا يې آزاده کړي. نو د هغه نکاح به فاسده وي او پر دې مينځي به درې حيضه واجب وي. دوه حيضه د نکاح زائلېدلو په وجه او يو حيض د آزادېدلو په وجه. ځکه چي دوه حيضه د نکاح فاسدېدلو په وجه د عدت په توګه واجب سول. او تر نکاح فاسدېدلو وروسته د هغې په حق کي د عدت حکم ښکاره نه سو. ځکه چي ملک يمين اوس هم موجود دی. او ملک يمين د عدت مانع دی. لېکن کله چي خاوند هغه آزاده کړه. نو د عدت مانع ختم سو. او د مينځي په حق کي هم د عدت حکم ښکاره سو. او پر هغې مخکښي دوه حيضه او يو بل حيض واجب سو. همدغسي دلته هم په دويمه نکاح کي د اول طلاق حکم معدوم سو. لېکن کله چي له وطي او خلوت څخه بغير ښځي ته په دويمه نکاح کي بيا طلاق ورکول سو. نو د اول طلاق حکم واپس راوګرځېدی او پر ښځي د اول عدت پوره کول لازم سو.

**ولهما إلخ:** د شيخينو دليل دا دی چي دغه ښځه د اولي جماع (وطي) په وجه د خپل خاوند په قبضه کي مقيده ده. او تر اوسه د هغه اولي جماع أثر د عدت په توګه پاته دی. لهذا کله چي خاوند د عدت په حالت کي د هغې سره دويمه نکاح وکړه. نو اوله نکاح د دويمي نکاح د قبضې قائم مقام سوه. او څرنګه چي د شيخينو په نېز د اولي نکاح دخول د دويمي نکاح دخول شمارل کيږي. نو که څه هم په دويمه نکاح کي تر وطي مخکي طلاق ورکول سوی دی خو هغه به ګواکي طلاق بعد الدخول وي. او د طلاق بعد الدخول په صورت کي پر خاوند پوره مهر واجبيږي او پر ښځي مستقل عدت واجبيږي. نو ځکه موږ وايو چي په دې مسئله کي به پر خاوند پوره مهر او پر ښځي مستقل عدت واجب وي. مثلاً زيد د خالد پُسه غصب کړی او په خپل قبضه کي يې را وستی. بيا غاصب يعني زيد له خالد څخه هغه پُسه رانيوی. نو فقط په رانيولو سره زيد پر هغه پُسه قبضه کونکی شمارل کيږي. او د نوي قبضې (قبضه جديده) ضرورت نه پيدا کيږي. بلکي اوله قبضه د دويمي قبضې يعني د اشتراء د قبضې قائم مقام کيږي. همداسي به دلته هم د اولي نکاح دخول د دويمي نکاح د دخول قائم مقام کيږي او د دويمي نکاح طلاق به بعد الدخول شمارل کيږي.

**وقال زفر إلخ:** فرمايي چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز په دې مسئله کي پر ښځي بالکل عدت واجب نه دی. يعني نه د اول عدت پوره کول پر هغې واجب دي. او نه يو بل مُستقل عدت. ځکه چي د دويمي نکاح په وجه اول عدت ساقط سو. نو ځکه به دويم ځل نه راګرځي. او په دويمه نکاح کي هم تر وطي او خلوت مخکي طلاق ورکول سوی دی. نو ځکه به هلته هم عدت واجب نه وي.

## د ذمیه او حربیه ښځې عدت

قال: وَإِذَا طَلَّقَ الذِّمِّيُّ الذِّمِّيَّةَ او كه يو ذمي سړي ذمیه ښځي ته طلاق ورکړي فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا نو پر هغې عدت واجب نه دی وَكَذَا إِذَا خَرَجَتِ الْحَرْبِيَّةُ إِلَيْنَا مُسْلِمَةً او همدارنګه کله چي حربیه ښځه اله دارُ الحرب څخه هجرت وکړي او ازموږ وطرف ته مسلمانه راسي انو پر هغې هم عدت واجب نه دی ا فَإِنْ تَزَوَّجَتْ نو كه هغه نكاح وكړي جَازَ انو د هغې نكاح ا جائز ده إِلَّا أَنْ تَكُونَ حَامِلًا خو دا چي هغه حامله وي انو نكاح يې ممنوع ده ا وَهَذَا كُلُّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا ټوله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا: عَلَيْهَا وَعَلَى الذِّمِّيَّةِ الْعِدَّةُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر حربيه ښځي او پر ذمیه ښځي عدت واجب دی أَمَّا الذِّمِّيَّةُ فَالِاخْتِلَافُ فِيهَا نَظِيرُ الِاخْتِلَافِ فِي نِكَاحِهِمْ مَحَارِمَهُمْ پاته سوه ذمیه ښځه نو د هغې په هكله ازموږ د امامانو ا دا اختلاف د هغه اختلاف په څير دی كوم چي د خپلو محارمو سره د ذميانو د نكاح كولو په سلسله كي دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي كِتَابِ النِّكَاحِ او موږ [دا مسئله او اختلاف] په كتابُ النكاح كي بيان كړی دی وَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ فِيمَا إِذَا كَانَ مُعْتَقَدُهُمْ أَنَّهُ لَا عِدَّةَ عَلَيْهَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول په هغه صورت كي دی كله چي د ذميانو دا عقيده وي چي [د هغوا] پر مطلقه ښځي عدت نسته وَأَمَّا الْمُهَاجِرَةُ فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا: أَنَّ الْفُرْقَةَ لَوْ وَقَعَتْ بِسَبَبٍ آخَرَ وَجَبَتِ الْعِدَّةُ پاته سوه مهاجره [حربيه] ښځه نو د هغې په هكله د صاحبينو د قول وجه دا ده چي: كه چيري په يو بل سبب سره [د خاوند او مهاجره ښځي په مينځ كي] فرقت واقع كېدای نو عدت به واجبېدای فَكَذَا بِسَبَبِ التَّبَايُنِ نو همداسي به [د دارېنو] د تباين په سبب هم [عدت واجبيږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا هَاجَرَ الرَّجُلُ وَتَرَكَهَا په خلاف د هغه صورت كله چي سړی اله دارُ الحرب څخه ا هجرت وكړي او ښځه [په دارُ الحرب كي] پرېږدي لِعَدَمِ التَّبْلِيغِ د اشرعي حكم ا نه رسېدلو په وجه [يعني ځكه چي په دارُ الحرب كي حربيه ښځي ته د شريعت حكم او دا مسئله رسېدلې نه ده، او نه پر هغې د دارُ الاسلام إجبار سته] وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى: وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ [الممتحنة: ۱۰] او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا الله تعالىٰ دا فرمان دی: او پر تاسو هيڅ حرج نسته چي د هغو [حربيه مهاجرو ښځو] سره نكاح وكړی وَلِأَنَّ الْعِدَّةَ حَيْثُ وَجَبَتْ كَانَ فِيهَا حَقُّ بَنِي آدَمَ او ځكه چيري چي [هم] عدت واجبيږي نو په هغه كي دانسان حق وي وَالْحَرْبِيُّ مُلْحَقٌ بِالْجَمَادِ او حربي اګرسره انسان نه دی بلكي [د جماداتو سره ملحق دی حَتَّى كَانَ مَحَلًّا لِلتَّمَلُّكِ همدا وجه ده چي هغه د ملكيت

محل دی ایعني هغه د مسلمان سړي مملوک کېدلای سي او مسلمان سړی هغه رانیولای سي او خرڅولای سي. لکه نور جمادات (مثلاً اوسپنه، ډبري او خاوري...) چي د ملکیت محل دي | إِلَّا أَنْ تَكُونَ حَامِلًا خو دا چي هغه حامله وي انو بیا د هغې سره نکاح جائز نه ده | لِأَنَّ فِي بَطْنِهَا وَلَدًا ثَابِتَ النَّسَبِ ځکه چي د هغې په نس کي ثابتُ النسب کوچنی دی. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يَجُوزُ نِكَاحُهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چي د دَغه حاملې سره نکاح جائز ده وَلَا يَطَؤُهَا كَالْحُبْلَى مِنَ الزِّنَا الیکن | د هغې سره به | خاوند | وطي نه کوي لکه د زنا څخه بلاربه سوې ښځه | چي هم دا حکم لري | وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او اول | قول | زیات صحیح دی.

**اللغات:** ﴿حُبْلَى﴾ بلاربه ښځه، حامله (حملداره).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو ذمي سړي خپلي ذمیه ښځي ته طلاق ورکړي. یا یوه حربیه ښځه له دارُ الحرب څخه دارُ الاسلام ته راسي او اسلام راوړي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دې دواړو ښځو عدت واجب نه دی، او دا ښځي که وغواړي نو بېله عدته نکاح کولای سي. ها! که حربیه ښځه حامله وي نو بیا هغه په دارُ الاسلام کي له وضعُ الحمل څخه مخکي نکاح نه سي کولای. صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په دواړو صورتونو کي پر دواړو ښځو عدت واجب دی. لېکن ښکاره دي وي چي د ذمي ښځي په هکله د امام صاحب دا قول "چي عدت نه واجبیږي" په هغه وخت کي دی. کله چي د ذمیانو دا عقیده وي چي د هغو پر مطلقه ښځي عدت لازم نه دی.

پاته سوه مهاجره حربیه کوم چي له دارُ الحرب څخه و دارُ الاسلام ته هجرت کړی وي. نو پر هغې د عدت واجبېدلو په هکله د صاحبینو دلیل دا دی چي که د دارَینو له تباین څخه بغیر په یوه بله وجه مثلاً د وفات یا طلاق په وجه د دوی په مینځ کي فرقت واقع سي نو په هغه سره عدت واجبیږي. نو د دارَینو د تباین په وجه چي کوم فرقت واقع کیږي، په هغه سره به هم عدت واجبیږي.

ها! که چیري د ښځي پر ځای خاوند له دارُ الحرب څخه هجرت وکړي دارُ الاسلام ته راسي. نو بیا د هغه پر ښځي عدت نه واجبیږي، ځکه چي په دارُ الحرب کي د هغه ښځي ته د شریعت حکم رسېدلی نه دی. لهذا کله چي هغې ته د شریعت حکم رسېدلی نه دی. نو عدت به څرنګه واجب سي!.

**ولأبي حنيفة إلخ**: د امام صاحب دليل دا آيت دی "يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ" وروسته الله تعالیٰ فرمايي: "وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ .. إلخ". د دې ټوله آيت خلاصه دا ده چې كه حربيه ښځې اسلام راوړي او دارُ الاسلام ته هجرت وكړي. نو تاسي له هغوی څخه ايماني امتحان واخلئ! او بيا د هغوی سره نكاح وكړئ. په دې كې هيڅ حرج نشته.

صاحب د بنايې فرمايي چې په دې آيت سره په دې توګه دليل نيول كيږي چې الله تعالیٰ مطلق "لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ" فرمايلي دي. او په دې آيت كې د عدت تېرولو هيڅ قيد نشته. لهذا كه عدت واجب كړی سي نو د قرآن پر آيت به اضافه او زياتوب راسي كوم چې صحيح نه دي.

**ولأن العدة حيث إلخ**: عقلي دليل دا دی چې د عدت واجبېدلو مطلب دا دی چې د انسان حق اداء سي او د هغه د اوبو حفاظت وسي. او كافر د انسانانو له فهرس څخه وتلی دی او د جماداتو او حيواناتو سره ملحق دی. همدا وجه ده چې د هغه خرڅول او رانيول صحيح دي او پر هغه د انسان ملكيت ثابتيږي. نو ځكه به د هغه د اوبو هيڅ حفاظت نه كيږي او د هغه پر ښځې به عدت نه واجبيږي. ها! كه د هغه ښځه حامله وي. نو تر وضعُ الحمل مخكې د هغې سره نكاح كول جائز نه دي. ځكه چې د حربي سړي سره د هغې حمل ثابتُ النسب دی او فراش يې ثابت دی. نو د دې حديث: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَسْقِيَنَّ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ" په وجه به د حربيه ښځې سره تر وضعُ الحمل مخكې نكاح كول جائز نه وي.

**وعن أبي حنيفة إلخ**: فرمايي چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د حربيه مهاجره ښځې سره نكاح جائز ده. كه څه هم هغه حامله وي. ليكن تر وضعُ الحمل مخكې به د هغې سره وطي نه كيږي. لكه څرنګه چې د حامله مِن الزنا ښځې سره نكاح جائز ده او تر وضعُ الحمل مخكې وطي ور سره كول ممنوع دي. ليكن اول قول (يعني د نكاح نه جائز كېدلو قول) زيات صحيح دی. ځكه كله چې د هغې حمل ثابتُ النسب دی. نو بيا په هغه كې څه لاس وهل مناسب نه دي. فقط والله أعلم



# فَصْلٌ فِي الْحِدَادِ

## (دا) فصل په (بيان د) ماتم (او غم) كولو كي دى

**تشريح:** مخکې تر دې خودې د عدت د وجوب په هکله بيان وسو چې پر کومو ښځو عدت واجبيږي. او پر کومو ښځو نه واجبيږي. په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله هغه شيان بيانوي چې پر معتده ښځو د هغوی کول يا نه کول واجب دي.

### په عدت کي ماتم کول (سينګار او داسي نور پرېښوول)

قَالَ: وَعَلَى الْمَبْتُوتَةِ وَالْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا إِذَا كَانَتْ بَالِغَةً مُسْلِمَةً الْحِدَادُ فرمايي: او پر جلا سوي ښځي اکوم چي له خاوند څخه په قطعي توګه جلا سوې وي! او پر هغه ښځي چي خاوند يې مړ سوي وي کله چي هغه بالغه مسلمانه وي ماتم کول واجب دي أَمَّا الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا فَلِقَوْلِهِ ﷺ [1] کوم چي متوفى عنها زوجها ده نو ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ إِلَّا عَلَى زَوْجِهَا أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا روا نه دي د هغه ښځي لپاره کوم چي په الله او په ورځ د آخرت ايمان لري چي هغه تر دريو ورځو زيات پر يو مړي ماتم وکړي مګر پر خپل خاوند څلور مياشتي او لس ورځي [ماتم کول د هغې لپاره روا دي] وَأَمَّا الْمَبْتُوتَةُ فَمَذْهَبُنَا او کوم چي مبتوته [او د هغې مسئله] ده نو دا زموږ مذهب دی. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا حِدَادَ عَلَيْهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغې حداد کول واجب نه دي لِأَنَّهُ وَجَبَ إِظْهَارًا لِلتَّأَسُّفِ عَلَى فَوْتِ زَوْجٍ وَفَّى بِعَهْدِهَا إِلَى مَمَاتِهِ ځکه چي "حداد" د داسي خاوند پر مرګ باندي د افسوس ښکاره کولو لپاره واجب سوی دی چي هغه تر خپل مرګه پوري د ښځي معاهده پوره کړې وي ايعني تر خپل مرګه پوري يې د ښځي سره وفاء کړې وي! وَقَدْ أَوْحَشَهَا بِالْإِبَانَةِ حالانکي خاوند دغه مبتوته ښځه د جلا کولو په وجه په وحشت کي واچوله فَلَا تَأَسُّفَ بِفَوْتِهِ لهذا د داسي خاوند پر جدايي هيڅ افسوس لازم نه دی وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ [2] نَهَى

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب إحداد المرأة على غير زوجها، حديث رقم: ۱۲۸۰، ۱۲۸۱.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب فيما تجتنب المعتدة في عدتها، حديث رقم: ۲۳۰۵، ۲۳۰۲.

الْمُعْتَدَّةَ أَنْ تَخْتَضِبَ بِالْحِنَّاءِ وَقَالَ: اَلْحِنَّاءُ طِيبٌ او زموږ دليل دا روايت دی چي نبي ﷺ معتده ښځه د نکريزو لګولو څخه منع کړه او ويې فرمايل: چي نکريزي ايو دولا خوشبويي ده ايعني په نکريزو کي هم يو رقم ښه بوی سته ا وَلِأَنَّهُ يَجِبُ إِظْهَارًا لِلتَّأَسُّفِ عَلَى فَوْتِ نِعْمَةِ النِّكَاحِ الَّذِي هُوَ سَبَبٌ لِصَوْنِهَا وَكِفَايَةِ مُؤَنِهَا او ځکه چي حداد په دې وجه واجبيږي چي د نکاح د نعمت پر فوتېدلو د افسوس [او غم] إظهار وسي چي هغه [د نکاح نعمت] د ښځي د حفاظت او د هغې د ضروریاتو د کفايت سبب دی وَالْإِبَانَةُ أَقْطَعُ لَهَا مِنَ الْمَوْتِ او ابانت د ښځي لپاره [د خاوند] تر مرګ هم زيات [د دغه نعمت] زائلونکی دی ايعني د ښځي د قطعي جلا کېدلو په وجه د نکاح نعمت په پوره توګه سملستي ختميږي. لېکن د خاوند تر مرګ وروسته د دې نعمت أثر د عدت تر ورځو پوري پاته وي] حَتَّى كَانَ لَهَا أَنْ تَغْسِلَهُ مَيِّتًا قَبْلَ الْإِبَانَةِ لَا بَعْدَهَا همدا وجه ده چي تر إبانت مخکي د ښځي لپاره جائز دي چي خپل مړه سوي خاوند ته غسل ورکړي [او] تر إبانت وروسته جائز نه دي.

**اللغات:** ﴿حِدَاد﴾ له نصر او ضرب څخه مصدر دی: ماتم کول. افسوس او غم ښکاره کول. ښکلا او سينګار پرېښوول او له کور څخه دباندي نه وتل. ﴿إِبَانَة﴾ د افعال مصدر دی: باتنه کول. جلا کول. فرقت واقع کول. ﴿تَخْتَضِبُ﴾ د افتعال مضارع ده: رنګول. نکريزي لګول. ﴿حِنَّاء﴾ نکريزي. ﴿طِيب﴾ خوشبويي. عطر. ﴿صَوْن﴾ د نصر مصدر دی: حفاظت. ساتنه. ﴿مُؤَن﴾ جمع د مَؤُنَةٌ ده: خرڅې (ضروريات).

**تشريح:** په دې عبارت کي د حداد (ماتم کولو) بيان دی. حاصل يې دا دی چي پر مبتوته ښځي او پر متوفیٰ عنها زوجها ښځي واجب دي چي ماتم وکړي او غم او پرېشاني ښکاره کړي (مبتوته هغه ښځي ته وايي چي د هغې او خاوند په مينځ کي فرقت واقع سي. هغه که په طلاق بائن سره وي. يا که په طلاقِ مغلظ يا خلع سره وي. متوفیٰ عنها زوجها هغه ښځي ته وايي چي خاوند يې مړ سي). پر متوفیٰ عنها زوجها ښځي باندي د حداد واجبېدلو دليل دا حديث مبارک دی: لَا تَحِلُّ لِإِمْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تَحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ إِلَّا عَلَى زَوْجِهَا أَرْبَعَةَ شَهْرٍ وَعَشْرًا (يعني کومه ښځه چي په الله او په آخرت باندي ايمان لري. پر هغې واجب دي چي د خپل خاوند پر مرګ څلور مياشتي او لس ورځي ماتم وکړي).

د متوفیٰ عنها ښځي لپاره خو د ټولو په نېز حداد کول واجب دي، لېکن پر مبتوته ښځي د حداد واجبېدلو حکم فقط زموږ په نېز دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر مبتوته ښځي حداد کول واجب نه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي حداد فقط د هغه خاوند د مرګ په وجه واجبيږي. کوم چي تر مرګه پوري د ښځي سره ملګري او وفاء کړي وي، او د خپل ژوند تر آخري ګړي پوريٰ د ښځي په غم او دوک کي شريک سوی وي، او څرنګه چي بائنه کونکی خاوند ښځه په خپل ژوند کي د طلاق په وحشت او ترهه کي اچوي، لهذا د داسي خاوند پر بېلتون او جدايي به هيڅ افسوس نه کيږي. بلکي فقط عدت به واجب وي.

**د امام صاحب دليل**: دا حديث دی: "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى الْمُعْتَدَّةَ أَنْ تَخْتَضِبَ بِالْحِنَاءِ..." يعني نبي کريم ﷺ معتده ښځه د نکريزو له استعمال څخه منع کړې ده. په دې حديث کي مطلقاً معتده ښځه د نکريزو له استعمال څخه منع سوې ده. او د معتدةُ الطلاق يا معتدةُ الوفاة ښځي هيڅ تفصيل پکښي ذکر سوی نه دی، نو ځکه به پر هري معتده ښځي ماتم کول واجب وي. هغه که طلاق عدت تېروي يا د وفات عدت تېروي.

**ولأنه يجب إلخ**: پر معتدةُ الطلاق او مبتوته ښځي د عدت واجبېدلو عقلي دليل دا دی چي د حداد واجبېدلو وجه دا ده چي د نکاح په څير د غټ نعمت پر فوتېدلو د غم او افسوس اظهار وسي. ځکه چي ښځه د نکاح په ذريعه له ګناهونو څخه ساتل کيږي. او د نفقې او نورو ضروري شيانو خرچه د خاوند له طرفه ور کول کيږي. او دا نعمت چي څرنګه د خاوند د مرګ په وجه زائليږي. همداسي په إبانت (جلا کېدلو) سره هم زائليږي. بلکي په ابانت سره زيات زائليږي. ځکه د مرګ په صورت کي خو څلور مياشتي او لس ورځي د زوجيت او نکاح اثر پاته وي، لېکن تر ابانت وروسته نه پاتيږي. همدا وجه ده چي د خاوند تر مرګ وروسته ښځه هغه ته غسل ور کولای سي. لېکن تر إبانت وروسته غسل نه سي ور کولای. نو په دې وجه هم پر مبتوته ښځي حداد واجبېدل مفيد او مناسب معلوميږي.

لېکن صحيح خبره دا ده چي پر مبتوته ښځي د حداد نه واجبېدل غوره او مناسب دی. ځکه چي نن سبا په معمولي وجهه سره ابانت واقع کيږي. نو ښځه خوار کی به د څومره خاوندانو لپاره ماتم او غم کوي. لهذا همدا غوره ده چي پر مبتوته ښځي حداد واجب نه سي.

## د حداد تعريف او وضاحت

وَالْحِدَادُ وَيُقَالُ الْإِحْدَادُ وَهُمَا لُغَتَانِ او حداد چي هغه ته إحداد [هم] ويل كيږي او دا دواړه دوه لغتونه دي أَنْ تَتْرُكَ الطِّيبَ وَالزِّينَةَ وَالْكُحْلَ وَالدُّهْنَ الْمُطَيَّبَ وَغَيْرَ الْمُطَيَّبِ [هغه دا دی] چي ښځه پريږدي خوشبويي [عطر] لګول او ښکلا [سينګار] كول او رانجه لګول او بوی لرونکي يا نا بويه تېل [روغن] لګول إِلَّا مِنْ عُذْرٍ مګر د عذر په وجه اد دې شيانو استعمالول روا دي [ وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِلَّا مِنْ وَجَعٍ او په جامع صغير كي دي: مګر د درد په وجه وَالْمَعْنَى فِيهِ وَجْهَانِ او د حداد کولو په باره کي دوه قسمه دليل دې ايعني پر مړي د ماتم كولو دوې وجهي او دوه دليلونه دي] أَحَدُهُمَا مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ إِظْهَارِ التَّأَسُّفِ [۱] يو ادليل] له دوی څخه هغه دی کوم چي موږ [مخکي] ذكر كړی يعني د افسوس إظهار كول [غم او پرېشاني څرګندول] وَالثَّانِي: أَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ دَوَاعِي الرَّغْبَةِ فِيهَا او دويم [دليل] دا دی: چي دغه شيان ايعني عطر يا رانجه استعمالول او داسي نور] د رغبت [او خواهش] اسباب دي وَهِيَ مَمْنُوعَةٌ عَنِ النِّكَاحِ حالانكي هغه [معتده ښځه] له نكاح څخه منع سوې ده فَتَجْتَنِبُهَا كَيْ لَا تَصِيرَ ذَرِيعَةً إِلَى الْوُقُوعِ فِي الْمُحَرَّمِ نو له دې شيانو څخه به پرهېز كوي د دې لپاره چي دا شيان په حرام كار كي د واقع كېدلو ذريعه جوړه نه سي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ [1] لَمْ يَأْذَنْ لِلْمُعْتَدَّةِ فِي الِاكْتِحَالِ او دا صحيح دي ايعني په صحيح روايت كي ذكر سوي دي] چي نبي ﷺ معتده ښځي ته د رانجو لګولو اجازه نه وركړه وَالدُّهْنُ لَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ طِيبٍ او تېل له يو ډول خوشبويۍ څخه خالي نه وي وَفِيهِ زِينَةُ الشَّعْرِ او په دې كي د وروېښتانو ښكلا [هم] سته وَلِهَذَا يُمْنَعُ الْمُحْرِمُ عَنْهُ له همدې وجهي احرام تړونكی كس له هغه څخه منع كيږي قَالَ: إِلَّا مِنْ عُذْرٍ امام قدوري رَحِمَهُ الله [ځكه] فرمايلي دي: مګر د عذر په وجه اد دې شيانو استعمالول روا دي] لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً ځكه چي په دې كي ضرورت دی وَالْمُرَادُ الدَّوَاءُ لَا الزِّينَةُ او مقصود دواء ده نه ښكلا وَلَوِ اعْتَادَتِ الدُّهْنَ او كه ښځه په تېلو لګولو عادت وي فَخَافَتْ وَجَعًا او له درد څخه وبيريږي ايعني غالب ګومان يې دا وي چي كه تېل نه ولګوم نو پر سر به مي درد سي يا مثلاً ږېښې او لاسونه به مي وچاودي] فَإِنْ كَانَ ذَلِكَ أَمْرًا ظَاهِرًا نو كه دا يو ښكاره خبره وي ايعني غالب ګومان همدا وي چي كه تېل او

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الطلاق، باب الكحل للحادة، حديث رقم: ۵۳۳۸ بمعناه.

روغن استعمال نه کړي نو خامخا به يې پر سردرد سي يا داسي نور ا يُبَاحُ لَهَا نو د هغې لپاره به ا تېل لګول ا روا وي لِأَنَّ الْغَالِبَ كَالْوَاقِعِ ځکه چي غالب شی د واقع شي په څير دی ايعني د کوم شي چي غالب ګومان وي هغه داسي دی لکه واقع سوی شی ا وَكَذَا لُبْسُ الْحَرِيرِإِذَا احْتَاجَتْ إِلَيْهِ لِعُذْرٍ او همدارنګه که د عذر په وجه ښځه د وربښمو اغوستلو ته مجبوره سي لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي هيڅ حرج نسته وَلَا تَخْتَضِبُ بِالْحِنَّاءِ او امعتده اښځه به نه رنګوي اخپل پښې. لاسونه او وربښتان ا په نکريزو سره ايعني نکريزي به نه استعمالوي ا لَمَا رَوَيْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ روايت کړی دی وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِعُصْفُرٍ وَلَا بِزَعْفَرَانٍ او نه به امعتده ښځه ا داسي جامې اغوندي کوم چي رنګول سوي وي په عصفر او زعفران سره لِأَنَّهُ يَفُوحُ مِنْهُ رَائِحَةُ الطِّيبِ ځکه چي له هغه څخه اهم اخوشبويي ادعطرو بوی ا راپورته کيږي.

**اللغات:** ﴿حِدَاد﴾ او إحدَاد دواړه په يوه معنیٰ سره دي. له نصر او ضرب څخه مصدر دی: ماتم کول، افسوس او غم څرګندول. ﴿مُطَيَّب﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: هغه شی چي ښه بوی لري. خوشبوداره. ښه بوی والا. ﴿تَجْتَنِب﴾ د افتعال مضارع ده: پرهيز کول. ځان ساتل. ﴿حِنَاء﴾ نکريزي. ﴿العُصْفر﴾ يو ډول بوټي دی چي له هغه څخه ژړ رنګ جوړيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کي د حداد تعريف او حقيقت بيان سوی دی. فرمايي چي د حداد او إحداد معنیٰ دا ده چي ښځه د عدت په دوران کي د زينت، ښکلا او سينګار ټوله شيان پريږدي. مثلاً عطر (خوشبويي)، رانجه، تېل، روغن، سورخي، کريم (او زموږ د زمانې ډول ډول د سينګار اسباب) او داسي نور. ها! که د مرض او مجبورۍ په وجه د زينت او ښکلا يو شی استعمال کړي. مثلاً سر غوړ کړي د دې لپاره چي پر سريې درد نه سي (يا بدن غوړ کړي د دې لپاره چي نه وچاودي) او داسي نور. نو بيا د دې شيانو په استعمالولو کي هيڅ حرج او پروا نسته.

صاحب د هدايې فرمايي چي د معتده ښځي په حق کي د ماتم او حداد کولو دوه دليلونه دي. يو دليل خو هغه دی کوم چي مخکي تېر سو يعني د نکاح په څير د غټ نعمت پر زوال باندي افسوس او ماتم څرګندول. دويم دليل دا دی چي که ښځه د زينت او ښکلا شيان استعمال کړي. نو د خلکو زړه به هغې ته مائل سي او د هغې سره به د نکاح کولو رغبت څرګند کړي او ښځه به هم نکاح ته رغبت وکړي. حالانکي د عدت په دوران کي ښځه له نکاح څخه منع سوې ده. نو ځکه به احتياطاً معتده ښځه د دې شيانو له استعمال څخه پرهيز کوي چي په يو حرام کار مبتلا نه سي.

همدا وجه ده چي کله د نبي کريم ﷺ څخه يوې ښځي د رانجو لګولو اجازه وغوښتل. نو د همدغه خرابيو په وجه نبي ﷺ هغې ته اجازه نه ورکړه. او د معتده ښځي لپاره روغن (تېل) استعمالول هم ممنوع دي. ځکه چي په روغنو کي هم يو ډول خوشبويي او د وېښتانو ښکلا وي. له همدې وجهي مُحرم (احرام تړونکي کس) د روغنو له استمال څخه منع سوی دی. ځکه چي په إحرام کي هم زينت او ښکلا اختيارول ممنوع دي.

قال إلا من عذر إلخ: په متن کي وويل سوه چي معتده ښځه د عذر په وجه د ښکلا او زينت شي استعمالولای سي. ځکه چي په هغه کي ضرورت دی. او د هغه په استعمالولو سره زينت مقصود نه دی. بلکي دواء او علاج مقصود دی. همدارنګه که ښځه د تېلو او روغنو په استعمال عادي وي. او که هغه پرېږدي. نو دا يې غالب ګومان وي چي پر سره به يې درد سي يا د بدن پوست به يې وچادي او په تکليف به متبلا سي. نو هغې ته د تېلو د استعمالولو اجازه سته. ځکه کوم شی چي غالب وي هغه د واقع په څېر وي (يعني د کوم شي د واقع کېدلو چي غالب ګومان وي. هغه داسي دی لکه واقع سوی). نو ځکه به د ښځي لپاره تېل استعمالول جائز وي. پر همدغه قياس که يو څوک د عذر (مثلاً د خارښت) په وجه د ورېښمو اغوستلو مجبور سي. نو بيا د ورېښم اغوستل هم جائز دي.

ولا تختضب: فرمايي چي د معتده ښځي لپاره د نکريزو استعمالول هم جائز نه دي. ځکه چي نبي ﷺ نکريزو ته خوشبويي (عطر) ويلي دي. همدارنګه د معتده ښځي لپاره په عصفر يا زعفران سره رنګول سوې جامې اغوستل هم ممنوع دي. ځکه چي له دې څخه هم خوشبويي را پورته کيږي. او معتده ښځه له خوشبويۍ څخه منع سوې ده.

## د کافري ښځي لپاره د حداد حکم

قال: وَلَا حِدَادَ عَلَى كَافِرَةٍ فرمايي: او پر کافري ښځي حداد [ماتم] کول لازم نه دي لِأَنَّهَا غَيْرُ مُخَاطَبَةٍ بِحُقُوقِ الشَّرْعِ ځکه چي هغه د شريعت په حقوقو مخاطبه نه ده [ځکه چي د شريعت خطاب هغه کس ته وي کوم چي اسلام راوړی وي. او بل دا چي پر کافري او ذميه ښځي عدت نسته. نو حداد به هم پر لازم نه وي] وَلَا عَلَى صَغِيرَةٍ او نه پر نابالغه نجلۍ باندي احداد کول لازم دي [ لِأَنَّ الْخِطَابَ مَوْضُوعٌ عَنْهَا ځکه چي له نابالغه نجلۍ څخه [د شريعت] خطاب پورته سوی دی [کافره ښځه د کفر په وجه د شريعت مخاطبه نه ده او نابالغه نجلۍ د کوچنيوالي په وجه د شريعت مخاطبه نه ده. نو ځکه به پر دواړو حداد نه وي] وَعَلَى الْأَمَةِ الْإِحْدَادُ او پر مينځي حداد کول واجب دی [يعني که خاوند مينځي ته طلاق ورکړي يا د هغې خاوند مړ سي. نو پر هغې د عدت سره ماتم کول هم لازم دي] لِأَنَّهَا مُخَاطَبَةٌ بِحُقُوقِ اللهِ تَعَالَى فِيمَا

لَيْسَ فِيهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْمَوْلَى ځکه چي مينځه په هغه کارو کي د الله په حقوقو مخاطبه وي چي په هغوی کي د مالک حق نه باطليږي ا او په ماتم کولو سره د مالک حق نه باطليږي، ځکه په کومه زمانه کي چي ښځه عدت تېروي، په هغه زمانه کي مالک هم د هغې سره وطي نه سي کولای. نو ځکه هغې ته هم د زينت او سينګار ضرورت نسته او په ماتم کولو کي هيڅ حرج نسته ا بِخِلَافِ الْمَنْعِ مِنَ الْخُرُوجِ په خلاف د دباندي وتلو د ممانعت ا يعني مينځه د عدت په زمانه کي دباندي وتلای سي، او که هغه له دباندي وتلو څخه منع سي، نو د مالک کار به ودرېږي او د مالک حق به باطل سي ا لِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ حَقِّهِ ځکه چي په دې کي د مالک حق باطليږي وَحَقُّ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ لِحَاجَتِهِ او د بنده حق د هغه د ضرورت پر بناء مخکي سوی دی ا يعني د ضرورت پر بناء د بنده حق د الله پر حق مقدم دی، نو ځکه به مينځه له دباندي وتلو څخه نه منع کيږي ا.

**اللغات:** ﴿حِدَاد﴾ له نصر او ضرب څخه مصدر دی: ماتم کول، افسوس او غم ځرګندول. ښکلا او سينګار پرېښوول او له کور څخه دباندي نه وتل.

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## د اُمّ ولد او منکوحهٔ فاسده ښځي لپاره د حداد حکم

قَالَ: وَلَيْسَ فِي عِدَّةِ أُمِّ الْوَلَدِ وَلَا فِي عِدَّةِ النِّكَاحِ الْفَاسِدِ إِحْدَادٌ فرمايي: چي د اُم ولد په عدت کي او د نکاحِ فاسد په عدت کي حِداد کول نسته لِأَنَّهَا مَا فَاتَهَا نِعْمَةُ النِّكَاحِ لِتُظْهِرَ التَّأَسُّفَ ځکه چي د هغې اُمِ ولد او منکوحه فاسده ا په حق کي د نکاح نعمت فوت سوی نه دی چي د افسوس إظهار وکړي وَالْإِبَاحَةُ أَصْلٌ او ا د زينت او سينګار ا روا کېدل أصل دي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که مالک خپل اُمِ ولد مينځه آزاده کړي يا مالک مړ سي. يا يو څوک د ښځي سره نکاحِ فاسد وکړي (او د نکاح د فساد په وجه فرقت واقع سي). نو پر دې دواړو ښځو ماتم کول (حداد) واجب نه دی: ځکه چي حداد هغه وخت واجبيږي کله چي د نکاح په څير غټ نعمت زائل سي. او د اُم ولد او منکوحه فاسده ښځي په حق کي نکاح زائله سوې نه ده. نو ځکه به د افسوس د إظهار لپاره پر هغې ماتم او غم کول واجب نه وي، ځکه چي د زينت او سينګار اباحت اصل دی. لهذا دا حکم به پر خپل اصل باقي پاته وي.

## معتده ښځې ته د نکاح پیغام استول

وَلَا يَنْبَغِي أَنْ تُخْطَبَ الْمُعْتَدَّةُ او پکار نه دي چې د معتده ښځې سره کوزده وسبې ایعني هغې ته د نکاح پیغام استول مناسب نه دي ا وَلَا بَأْسَ بِالتَّعْرِيضِ فِي الْخِطْبَةِ اخوا په کوزده کې اشاره کول څه پروا نه لري ایعني اشارتاً د نکاح پیغام ورکول پروا نه لري ا لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ...إِلَى أَنْ قَالَ: وَلَٰكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَنْ تَقُولُوا قَوْلًا مَعْرُوفًا [البقرة: ۲۳۵] ځکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: او نسته هیڅ ګناه په تاسې باندې په دې کې چې تاسې اشاره کوئ! د [معتده] ښځو د نکاح په پیغام [کوزده] کې... تر دې چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: او لېکن تاسو په پټه [هم] د هغو سره [د نکاح] وعده مه کوئ! خو دا چې د [د شریعت او] قاعدې مطابق یوه خبره [ورته] وکړئ وَقَالَ عليه السلام: السِّرُّ النِّكَاحُ [1] او نبي ﷺ فرمایلي دي: چې [په لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا کې] له سِرّ څخه مراد نکاح ده وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: التَّعْرِيضُ أَنْ يَقُولَ: إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أَتَزَوَّجَ او له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه نقل سوي دي: تعریض دا دی چې سړی ووایي: زه غواړم چې نکاح وکړم وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فِي الْقَوْلِ الْمَعْرُوفِ: إِنِّي فِيكِ لَرَاغِبٌ وَإِنِّي أُرِيدُ أَنْ نَجْتَمِعَ او د قول معروف په هکله له سعید بن جبیر رضي الله عنه څخه نقل سوي دي: چې زه ستا خواهشمند یم [ما و تا ته رغبت کیږي] او زه غواړم چې سره یو ځای سو.

**اللغات:** ﴿تُخْطَبُ﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: کوزده کول، د نکاح پیغام ورکول. ﴿تَعْرِيضٌ﴾ د تفعیل مصدر دی: یو خبره په اشاره سره کول. ﴿خِطْبَةٌ﴾ کوزده، د نکاح پیغام.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دئ چې کومه ښځه په عدت کې وي، هغې ته صراحتاً د نکاح پیغام استول ممنوع او نامناسب دي؛ ځکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: "وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ" (یعني [د معتده ښځو سره] د نکاح اراده هم مه کوئ! تر دې چې د عدت زمانه پوره سي)، لېکن اشارتاً او کنایتاً د نکاح په پیغام ورکولو کې هیڅ حرج نسته، ځکه قرآن کریم په خپله په دې آیت سره د دې اجازه ورکړې ده: "وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ".

---

[1] تخریج: ... أحمد، وقال ... هذا الحديث غريب جدًا.

د تعریض مطلب دا دی چې سړی د ښځې په مخ کې داسې خبره ذکر کړي چې هغه پر نکاح کولو دلالت کوي. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: تعريض دا دی چې سړی داسې ووايي: زه نکاح کول غواړم". يا "زه غواړم چې ما ته خدای نېکه ښځه راکړي" او داسې نور.

لېکن ښکاره دې وي چې په تعريض کې به بالکل د نکاح هیڅ وعده نه کوي. نه صراحتاً او نه کنايتاً. ځکه چې الله تعالیٰ د نکاح له وعدې څخه هم منع کړې ده. فرمايي: وَلَٰكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا". نبي ﷺ فرمايلي دي چې له "سِرّ" څخه مراد نکاح ده. لهذا په دې سره د نکاح د وعدې ممانعت ثابت سو. او د "قَوْل مَعْرُوف" په هکله سعيد بن جبير رحمه الله فرمايلي دي چې د دې معنیٰ دا ده: چې سړی داسې ووايي: ما تا ته رغبت کېږي (ما ته خوښه يې!). يا زه غواړم چې دواړه سره يو ځای سو.

## د معتده ښځې لپاره د کور څخه وتل

وَلَا يَجُوزُ لِلْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ وَالْمَبْتُوتَةِ الْخُرُوجُ مِنْ بَيْتِهَا لَيْلًا وَلَا نَهَارًا او د مطلقه رجعيه او مبتوته ښځې لپاره د خپل کور څخه وتل جائز نه دي نه په شپه کې او نه په ورځ کې وَالْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا تَخْرُجُ نَهَارًا وَبَعْضَ اللَّيْلِ وَلَا تَبِيتُ فِي غَيْرِ مَنْزِلِهَا او متوفیٰ عنها زوجها [کونډه سوې ښځه] په ورځ کې او د شپې په څه حصه کې وتلای سي [لېکن] د خپل کور څخه بغير [بل ځای] به شپه نه تېروي أَمَّا الْمُطَلَّقَةُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ [الطلاق: ۱] کوم چې مطلقه ښځه ده نو ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: مه باسئ! مطلقه ښځې له خپلو کورنو څخه او هغوی دې هم نه وځي مګر دا چې هغوی ښکاره بې حيايي وکړي قِيلَ: الْفَاحِشَةُ نَفْسُ الْخُرُوجِ ويل سوي دي: چې مراد له فاحشه څخه په خپله وتل دي وَقِيلَ: الزِّنَا او ويل سوي دي: چې امراد له هغه څخه] زنا ده وَيَخْرُجْنَ لِإِقَامَةِ الْحَدِّ او هغه ښځې به د حد جاري کېدو لپاره وځي وَأَمَّا الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا فَلِأَنَّهُ لَا نَفَقَةَ لَهَا او کوم چې کونډه سوې ښځه ده نو ځکه اله کور څخه وتلای سي [چې د هغې لپاره نفقه نه وي فَتَحْتَاجُ إِلَى الْخُرُوجِ نَهَارًا لِطَلَبِ الْمَعَاشِ نو هغه په ورځ کې د رزق [او روزۍ] د طلب لپاره وتلو ته مجبوره وي وَقَدْ يَمْتَدُّ إِلَى أَنْ يَهْجُمَ اللَّيْلُ او کله نا کله دا طلب [د روزۍ] د شپې تر راتګو پورې ځنډېږي وَلَا كَذَٰلِكَ الْمُطَلَّقَةُ او مطلقه ښځه داسې نه ده لِأَنَّ النَّفَقَةَ دَارَّةٌ عَلَيْهَا مِنْ مَالِ زَوْجِهَا

ځکه چي نفقه د هغې د خاوند د مال څخه پر هغې [مسلسل] جاري وي حَتّٰى لَوِ اخْتَلَعَتْ عَلٰى نَفَقَةِ عِدَّتِهَا تر دې که څېرې هغه د خپل عدت پر نفقه خلع وکړي قِيلَ: إِنَّهَا تَخْرُجُ نَهَارًا نو ويل سوي دي: چي [په دې صورت کي د روزۍ د طلب لپاره] هغه د ورځي وتلای سي وَقِيلَ: لَا تَخْرُجُ او ويل سوي دي: چي نه سي وتلای لِأَنَّهَا أَسْقَطَتْ حَقَّهَا ځکه چي هغې خپل حق ساقط کړی فَلَا يَبْطُلُ بِهِ حَقٌّ عَلَيْهَا نو د دې په وجه به هغه حق نه باطلېږي کوم چي پر هغې لازم دی.

**اللغات:** ﴿مَبْتُوتَةَ﴾ له خاوند څخه جلا سوې ښځه، بائنه. ﴿فَاحِشَةٌ مُبَيِّنَةٌ﴾ څرګنده بدي، ښکاره بې حيائي. ﴿دَارَّةٌ﴾ بهېدونکي، جاري.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کومي ښځي ته طلاقِ رجعي يا طلاقِ بائن ورکول سوی وي. د هغه ښځي لپاره جائز نه دي چي له يو شرعي يا انساني ضرورت څخه بغير د شپې او ورځي په هيڅ حصه کي له کور څخه ووځي. لېکن د شرعي ضرورت مثلاً د حدّ جاري کېدلو لپاره يا د انساني ضرورت مثلاً د قضاءِ حاجت يا خوراک راوړلو لپاره له کور څخه د معتده ښځي وتل جائز دي. د دې په خلاف د متوفیٰ عنها زوجها ښځه په ورځ کي هم له کور څخه وتلای سي، او د شپې په څه حصه کي هم وتلای سي. خو د خوب او شپه تېرولو انتظام به په هغه کور او خونه کي کوي چيري چي دا ښځه عدت تېروي: د دې دليل چي مطلقه ښځي به له کور څخه نه وځي د قرآن کريم دا آيت دی: "لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ" (يعني تر څو چي معتده ښځو ښکاره بې حيائي کړې نه وي. تر هغه وخته پوري تاسي هغوی له کورو څخه مه باسئ! او نه دي هغوی په خپله وځي). يعني کله چي معتده ښځه فَاحِشَةٌ مُبَيِّنَةٌ وکړي، نو بيا خاوند هغه له کور څخه ايستلای سي. د فَاحِشَةٌ مُبَيِّنَةٌ دري مطلبه دي: ①... ابراهيم نخعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د فاحشة مبينة مطلب دا دی چي ښځه بېله ضرورته له کور څخه ووځي، نو په دې صورت کي به خاوند هغه له کور څخه باسي. يا يې مطلب دا دی چي د معتده ښځي بېله ضرورته وتل فحش او بې حيائي ده. يعني که هغه يو وار په خپله ووځي بې حيائي وکړي، نو بيا د هغې لپاره وتل جائز دي. ②... ابن مسعود ﷛ فرمايي چي له دې څخه مراد زناء ده. يعني که معتده ښځي زنا وکړي، نو د حد جاري کېدو لپاره هغه له کور څخه ايستل کېدلای سي. اول مطلب امام صاحب رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی. او دويم مطلب امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی. ③... دريم مطلب يې دا دی چي که معتده ښځه د خاوند أهل او خاندان ته ښکنځا او رد و بد وايي، نو بيا هغه له کور څخه ايستل کېدای سي.

والمتوفی عنها زوجها الخ: د متوفیٰ عنها زوجها لپاره جائز دي چې ټوله ورځ یا د شپې په څه حصه کې له کور څخه ووځي، ځکه چې د خاوند د مرګ په وجه کېدای سي چې هغې ته د عدت د ورځو خرچه او نفقه پاته سوې نه وي، نو د روزي او معاش ګټلو ته به هغه مجبوره وي. او ښکاره خبره ده چې کاروبار کله نا کله په شپه کې هم راځي (یا مثلاً کله چې هغه کور ته راځي نو شپه پر راځي)، نو ځکه به د هغې لپاره د شپې په لږ حصه کې وتل هم جائز وي.

د دې په خلاف د مطلقه ښځې دا حالت نه دی، ځکه چې د عدت په زمانه کې مطلقه ښځې ته مسلسل د خاوند له طرفه نفقه او خرچه ورکول کیږي، نو ځکه د هغې لپاره دباندي وتل جائز نه دي. همدا وجه ده که یو ښځه د خپلې نفقې په بدله کې خلع وکړي، نو د ځیني حضراتو رایه دا ده چې په دې صورت کې د هغې لپاره د معاش د طلب په خاطر وتل جائز دي. او د ځیني حضراتو رایه دا ده چې په دې صورت کې د هغې لپاره وتل جائز نه دي، ځکه چې هغې په خپله خلع کړې ده او خپل حق یې په خپله ساقط کړی دی. نو د هغې په خپل فعل سره به د شریعت حق نه باطلیږي.

## عدت به په کوم کور کي تېرول کیږي؟

وَعَلَى الْمُعْتَدَّةِ أَنْ تَعْتَدَّ فِي الْمَنْزِلِ الَّذِي يُضَافُ إِلَيْهَا بِالسُّكْنٰى حَالَ وُقُوعِ الْفُرْقَةِ وَالْمَوْتِ او پر معتده ښځې واجب دي چې په هغه کور کي عدت تېر کړي چې د فرقت او (د خاوند) د مرګ په وخت کې د ښځې وطرف ته د استوګنې په توګه د هغه کور نسبت کیږي لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ [الطلاق: ۱] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: او دا ښځې له خپلو کورو څخه مه باسئ! وَالْبَيْتُ الْمُضَافُ إِلَيْهَا هُوَ الْبَيْتُ الَّذِي تَسْكُنُهُ او ښځې ته چې د کوم کور نسبت کیږي دا هماغه کور وي چې ښځه پکښې اوسیږي وَلِهٰذَا لَوْ زَارَتْ أَهْلَهَا وَطَلَّقَهَا زَوْجُهَا همدا وجه ده که ښځه د خپلې کورنۍ د زیارت لپاره ولاړه سي او د هغې خاوند (هلته) طلاق ورکړي كَانَ عَلَيْهَا أَنْ تَعُودَ إِلٰى مَنْزِلِهَا فَتَعْتَدَّ فِيهِ نو پر هغې به لازم وي چې خپل کور ته واپس راسي او په هغه کي عدت تېر کړي وَقَالَ عليه السلام [1] لِلَّتِي قُتِلَ زَوْجُهَا اُسْكُنِي فِي بَيْتِكِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ او نبي ﷺ وفرمایل هغه ښځې ته چې خاوند یې وژل سوی وو: ته په خپل کور کي اوسه! تر دې چې د عدت نېټه پوره سي.

اللغات: ﴿يُضَافُ﴾ د افعال مضارع مجهوله ده: نسبت کول، منسوب کېدل. ﴿أَجَل﴾ نېټه، مودت (موده).

[1] تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الطلاق، باب أن تعتد المتوفى عنها زوجها، حديث رقم: ۱۲۰۴.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی د طلاق یا د خاوند وفات په وخت کې چې ښځه په کومه خونه (کوټه) کې اوسیږي، پر ښځې لازم دي چې په هغه خونه کې عدت تېر کړي: دلیل دا آیت دی: "وَلَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ". او د ښځې بَیْت (کور) هغه دی چې په هغه کې ښځه اوسیږي. همدا وجه ده که ښځه د خپل پلار په کور کې وي، او خاوند هلته طلاق ورکړي، نو هم پر ښځې واجب دي چې له هغه ځای څخه خپل کور ته راسي، او عدت په کور کې تېر کړي: دلیل یې دا دی چې د یوې ښځې خاوند شهید سو. نو نبي کریم ﷺ هغې ته وفرمایل چې "په خپل کور کې اووسه! او تر څو چې د شرعي قاعدې مطابق ستا عدت پوره سوی نه وي، تر هغه وخته پوري له کور څخه مه وځه!". له دې څخه دا خبره ښکاره سوه چې پر ښځې واجب دي چې په خپل استوګنځي کې عدت تېر کړي.

## که د خاوند په کور کې د اوسېدلو امکان نه وي؟

وَإِنْ كَانَ نَصِيبُهَا مِنْ دَارِ الْمَيِّتِ لَا يَكْفِيهَا او که د مړه خاوند له کور څخه د ښځې حصه د هغې لپاره کافي نه وي فَأَخْرَجَهَا الْوَرَثَةُ مِنْ نَصِيبِهِمْ او ورثه [هم] هغه له خپلې حصې څخه وباسي اِنْتَقَلَتْ نو دا ښځه دې ابل ځای ته] منتقل سي لِأَنَّ هٰذَا الِانْتِقَالَ بِعُذْرٍ ځکه چې دا منتقل کېدل د عذر په وجه دي وَالْعِبَادَاتُ تُؤَثِّرُ فِيهَا الْأَعْذَارُ او عذرونه په عباداتو کې اغېز کوي فَصَارَ كَمَا إِذَا خَافَتْ عَلَى مَتَاعِهَا نو داسي سو لکه کله چې ښځه پر خپل سامان وبیریږي [چې غلا به سي] أَوْ خَافَتْ سُقُوطَ الْمَنْزِلِ یا ښځه د کور پر نړېدلو وبیریږي أَوْ كَانَتْ فِيهَا بِأَجْرٍ وَلَا تَجِدُ مَا تُؤَدِّيهِ یا ښځه په هغه کور کې په کرایه [استوګنه] وي او [اوس] یو داسي شی پیدا نه کړي چې کرایه په اداء کړي.

**اللغات:** ﴿نَصِيْب﴾ برخه، حصه. ﴿وَرَثَة﴾ جمع د وَارِث ده. لکه طَلَبَة چې جمع د طَالِب ده: میراث خوره (هغه کسان کوم چې د مړي په مال کې د میراث حق لري). ﴿سُقُوْط﴾ د نصر مصدر دی: را لوېدل (نړېدل). ﴿أَجْر﴾ اُجرت، کرایه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د ښځې خاوند مړ سي، او ورثه د میراث مال سره تقسیم کړي. او په کوم ځای کې چې خاوند اوسیږي، هغه هم تقسیم کړي، او د ښځې په برخه کې دومره ځای راسي چې په هغه کې ښځه اوسېدلای نه سي، او ورثه هم دې ته تیار نه وي چې خپله حصه هغې ته ورکړي. نو په دې صورت کې د ښځې لپاره صحیح دي چې بل محفوظ او پرده ناک ځای ته نقل سي او هلته عدت تېر کړي: دلیل دا دی چې دا انتقال د عذر په وجه دی، او په عباداتو کې أعذار مؤثر او اغېزمن دي. لهذا دا عذر به هم د "كَفٌّ عَنِ الْخُرُوْجِ" په عبادت کې مؤثر وي.

**وصار کما إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چې د دې مثال داسې دی لکه کله چې معتده ښځه پر دې ويېرېږي چې مال به مې غلا سي يا خونه به ونړېږي. يا مثلاً هغه د کرايې په کور کې اوسېږي او د کرايې وس نه لري. نو په دې صورتونو کې هم متعده ښځه انتقال کولای سي. ځکه چې عذر موجود سو. همداسې به په پورتنې صورت کې (يعنې کله چې د استوګنې لپاره لږ حصه پاته سي) انتقال کول صحيح او جائز وي.

## په عدت کې له خاوند څخه د ستر (پردې) کولو حکم

**ثُمَّ إِنْ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بِطَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ** بيا که چيرې په طلاق بائن يا په درېو طلاقو سره فرقت واقع سي **لَابُدَّ مِنْ سُتْرَةٍ بَيْنَهُمَا** نو د خاوند او ښځې په مېنځ کې پرده ضروري ده **ثُمَّ لَا بَأْسَ** او بيا اتر پرده کولو وروسته په استوګنه کې ا هيڅ پروا نسته **لِأَنَّهُ مُعْتَرِفٌ بِالْحُرْمَةِ** ځکه چې خاوند اد ښځې ا د حرمت اقرار کونکی دی **إِلَّا أَنْ يَكُونَ فَاسِقًا يُخَافُ عَلَيْهَا مِنْهُ** مګر دا چې خاوند فاسق وي او له هغه څخه پر ښځې اد حملې کولو ا بېره وي **فَحِينَئِذٍ تَخْرُجُ** نو په دې وخت کې به ښځه اد خاوند له کور څخه ا وځي **لِأَنَّهُ عُذْرٌ** ځکه چې دا يو عذر دی **وَلَا تَخْرُجُ عَمَّا انْتَقَلَتْ إِلَيْهِ** او کوم ځای ته چې ښځه منتقل سي له هغه ځای څخه دې نه وځي **وَالْأَوْلَى أَنْ يَخْرُجَ هُوَ وَيَتْرُكَهَا** او غوره دا ده چې خاوند په خپله ووځي او ښځه پرېږدي.

**اللغات:** ﴿فُرْقَةٌ﴾ جدايي، بېلتون. ﴿سُتْرَةٌ﴾ پرده.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی که چيرې د خاوند او ښځې په مېنځ کې طلاق بائن يا طلاق مغلظ واقع سي. نو اوس له نکاح څخه بغير يو ځای د دوی اوسېدل صحيح نه دي. بلکې په کومه خونه(کوټه) کې چې ښځه عدت تېروي، په هغه کې به د پردې او ستر بندوبست کوي او له خاوند څخه به پرده کوي. او کله چې پرده وکړي. نو بيا هيڅ حرج او ګناه نسته. ځکه چې خاوند او ښځه دواړه د حرمت معترف او منونکې سول. نو يقين همدا دی چې اوس به دواړه يو بل ته نه نژدې کيږي او معامله به نه خرابوي. لېکن که چيرې خاوند فاسق وي او دا خطره وي چې اوس به خاوند تهوله معامله خرابه کړي او ناجائز کار به وکړي. نو په دې وخت کې جائز دي چې ښځه له کور څخه بل ځای ته نقل سي. ځکه چې په ناجائز کار کې د مبتلا کېدلو عذر موجود سو. لېکن کوم ځای ته چې ښځه يو وار نقل سي. نو بيا به له يو سخت عذر څخه بغير له هغه ځای څخه نه نقل کيږي. ځکه چې اوس هماغه ځای د ښځې د عدت لپاره متعين سو.

والأولیٰ إلخ: مخکې په آیت سره ثابته سوه چې پر ښځې په خپله خونه (استوګنځي) کې عدت تېرول واجب دي او پر خاوند په خپله خونه کې اوسېدل واجب نه دي، فقط مباح دي. نو په دې وجه غوره خبره دا ده چې په خپله خاوند له خونې (استوګنځي) څخه ولاړ سي او بل ځای ته نقل سي.

## د خاوند په کور کې د عدت نه تېرولو یو عذر

| وَإِنْ جَعَلَا بَيْنَهُمَا اِمْرَأَةً ثِقَةً تَقْدِرُ عَلَى الْحَيْلُولَةِ او که ښځه او خاوند په خپل مینځ کې داسې باوري ښځه متعینه کړي چې هغه [د دوی په مینځ کې] د حایل جوړېدلو قدرت لري فَحَسَنٌ نو ښه [کار] دی وَإِنْ ضَاقَ عَلَيْهِمَا الْمَنْزِلُ فَلْتَخْرُجْ وَالْأَوْلَى خُرُوجُهُ او که پر دوی دواړو ځای تنګ سي نو ښځه دې ووځي [اخوا] غوره د خاوند وتل دي |
| --- |

**تشریح:** فرمایي چې غوره خبره دا ده چې ښځه او خاوند دواړه په خپل مینځ کې یوه ثقه او باوري ښځه د پردې او ستر په توګه هم وساتي. د دې لپاره چې معامله خرابه نه سي او یو بل نه نژدې نه سي. او که کور دومره تنګ وي چې درې خلګ پکښې اوسېدلای نه سي. نو بیا د ښځې لپاره جائز دي چې بل ځای ته نقل سي. او ښه خبر دا ده چې خاوند بل ځای ته نقل سي. د دې وجهه په مخکښې عبارت کې تېره سوه.

## د ښځې او خاوند د سفر په حالت کې د خاوند د مرګ بیان

| وَإِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ مَعَ زَوْجِهَا إِلَى مَكَّةَ او کله چې ښځه د خپل خاوند سره د مکې وطرف ته روانه سي فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا او خاوند [په لاره کې] هغې ته درې طلاقه ورکړي أَوْ مَاتَ عَنْهَا فِي غَيْرِ مِصْرٍ یا له ښار څخه بغیر [په صحراء] کې خاوند مړ سي فَإِنْ كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مِصْرِهَا أَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ نو که د ښځې او د هغې د ښار په مینځ کې تر دریو ورځو کمه مسافه وي رَجَعَتْ إِلَى مِصْرِهَا نو ښځه دې د خپل ښار وطرف ته واپس وګرځي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِابْتِدَاءِ الْخُرُوجِ مَعْنًى بَلْ هُوَ بِنَاءٌ ځکه چې دا خروج د معنیٰ په اعتبار سره د خروج ابتداء نه ده بلکې دا بناء ده [یعني ځکه چې دا له شروع څخه وتل نه دي. بلکې بناء وتل دي] وَإِنْ كَانَتْ مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ او که د دریو ورځو مسافه وي إِنْ شَاءَتْ رَجَعَتْ وَإِنْ شَاءَتْ مَضَتْ نو که وغواړي واپس دې وګرځي [خپل ښار ته] او که وغواړي نو ولاړه دې سي [خپل د مقصد ځای ته] سَوَاءٌ كَانَ مَعَهَا وَلِيٌّ أَوْ لَمْ يَكُنْ برابره ده د هغې سره یو ولي [محرم] وي او که نه وي مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ إِلَى الْمَقْصِدِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ أَيْضًا د دې مطلب دا دی چې کله د مقصد [د ځای] وطرف ته هم درې ورځې مسافه وي لِأَنَّ |
| --- |

الْمُكْثَ فِي ذٰلِكَ الْمَكَانِ أَخْوَفُ عَلَيْهَا مِنَ الْخُرُوجِ ځکه چې په دې ځای کې پاتېدل د ښځې په حق کې له وتلو څخه زيات خطرناک دي إِلَّا أَنَّ الرُّجُوعَ أَوْلٰى خو واپس اخپل ښار ته ا تلل زيات غوره دي لِيَكُونَ الِاعْتِدَادُ فِي مَنْزِلِ الزَّوْجِ د دې لپاره چې عدت تېرول د خاوند په کور کې وي.

**اللغات:** ﴿مَسِيْرَةٌ﴾ تګ، مسافه، فاصله، ﴿مَضَتْ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: تېرېدل، جاري ساتل، پوره کول (مراد ځني خپل سفر جاري ساتل دي).

**تشريح:** د دې حاصل دا دی که چيري خاوند او ښځه مثلاً له افغانستان څخه مکې مبارکې ته روان وي، او په لاره کې خاوند هغې ته طلاق ورکړي يا خاوند مړ سي، نو په کوم ځای کې چې دا معامله پېښه سي، که چيري د هغه ځای او د ښځې د ښار په مېنځ کې د سفر تر مودت کمه مسافه وي، يعني تر دريو ورځو په کم وخت کې ښځه خپل ښار ته رسېدلای سي، نو حکم دا دی چې دا ښځه بېرته خپل ښار ته واپس راسي او په خپل استوګنځي کې عدت تېر کړي؛ ځکه چې دغه واپس راتلل د معنیٰ په اعتبار سره ابتداءً خروج نه دي، بلکې کوم چې اول خروج وو، دا پر هغه مبني دی، او ابتداءً خروج ځکه نه دی چې د سفر تر مودت کمه مسافه وتل د مُعتدّې ښځې لپاره جائز او مباح دي، لهذا کور ته په واپس راتللو کې هيڅ حرج نسته.

**وإن كانت مسيرة إلخ:** او که چيري د هغه ځای او مکې مبارکې په مېنځ کې هم درې ورځې مسافه وي او د ښځې ښار هم د دريو ورځو پر مسافه وي، نو په دې صورت کې ښځې ته اختيار دی، که زړه يې غواړي نو خپل وطن ته دې واپس راسي، او که زړه يې نه غواړي نو مقصود ځای يعني مکې ته دې ولاړه سي، برابره ده د هغې سره ولي (ذی رحم محرم) وي او که نه وي، خو خپل وطن ته واپس راتلل زيات غوره دي، ځکه چې پر هغه ځای (يعني د خاوند د مرګ يا د طلاق پر ځای) پاتېدل او هلته د بېګانه توب په حالت کې عدت تېرول د ښځې د واپس راتللو په نسبت زيات خطرناک دي، نو ځکه له هغه ځای څخه نقل کېدل او بېرته خپل وطن ته واپس راتلل زيات غوره دي، د دې لپاره چې دغه ښځه د خپلوانو سره ووېني او د خاوند د مرګ غم يې لږ سپک سي او د خاوند په کور کې عدت تېر کړي.

(او که چيري د هغه ځای او د مکې مبارکې په مېنځ کې تر دريو ورځو کمه مسافه وي او د ښار مسافه زياته وي، نو په دې صورت کې مکې ته تلل پکار دي، ځکه چې د هغې لپاره کمه مسافه پرېکول ستونزمن نه دي، صاحب د هدايې دا صورت نه دی ذکر کړی).

**يادونه:** پورتني ټوله صورتونه په هغه وخت کې دي، کله چې د ټکټ او د جهاز پرېشاني نه وي، لېکن که ټکټ داسي وي چې واپس خپل وطن ته راتلل ممکن نه وي، نو بيا د مقصد ځای ته تلل جائز دي، ځکه چې مجبوري ده.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قال: إِلَّا أَنْ يَكُونَ طَلَّقَهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا زَوْجُهَا فِي مِصْرٍ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: خو دا چې خاوند ښځې ته په ښار کې درې طلاقه ورکړي وي يا مړ سوی وي فَإِنَّهَا لَا تَخْرُجُ حَتَّى تَعْتَدَّ نو [په دې صورت کې] به ښځه اله هغه ښار څخه] نه وځي تر دې چې عدت پوره کړي ثُمَّ تَخْرُجُ إِنْ كَانَ لَهَا مَحْرَمٌ بيا به [په هغه وخت کې له ښار څخه وځي] که چيرې د هغې سره يو محرم [ولي] وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ * او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: إِنْ كَانَ مَعَهَا مَحْرَمٌ فَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمِصْرِ قَبْلَ أَنْ تَعْتَدَّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که چيرې د دې ښځې سره يو محرم وي نو دا هيڅ پروا نه لري چې هغه تر عدت پوره کولو مخکې له ښار څخه ووځي لَهُمَا: أَنَّ نَفْسَ الْخُرُوجِ مُبَاحٌ دَفْعًا لِأَذَى الْغُرْبَةِ وَحْشَةِ الْوَحْدَةِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې خودې وتل روا دي د بېګانه توب او د تنهايي د وحشت ليرې کولو لپاره فَهٰذَا عُذْرٌ او دا يو عذر [هم] دی وَإِنَّمَا الْحُرْمَةُ لِلسَّفَرِ او حرمت [فقط] د سفر په وجه دی وَقَدِ ارْتَفَعَتْ بِالْمَحْرَمِ او د محرم په وجه هغه [هم] ليرې سو وَلَهُ: أَنَّ الْعِدَّةَ أَمْنَعُ مِنَ الْخُرُوجِ مِنْ عَدَمِ الْمَحْرَمِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د بېله محرمه سفر کولو څخه به په عدت کې وتل زيات ممنوع وي فَإِنَّ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَخْرُجَ إِلَى مَا دُونَ السَّفَرِ بِغَيْرِ مُحْرِمٍ ځکه چې د ښځې لپاره له محرم څخه بغير د سفر تر مسافې کمه اندازه وتل جائز دي وَلَيْسَ لِلْمُعْتَدَّةِ ذٰلِكَ [ليکن] د معتده ښځې لپاره دا جائز نه دي فَلَمَّا حَرُمَ عَلَيْهَا الْخُرُوجُ إِلَى السَّفَرِ بِغَيْرِ الْمَحْرَمِ لهذا کله چې د ښځې لپاره بېله محرمه په سفر وتل حرام دي فَفِي الْعِدَّةِ أَوْلَى نو په عدت کې خو به په طريقه اولیٰ سره حرام وي.

**اللغات**: ﴿غُرْبَة﴾ پرديسي، مسافري، بېګانه توب. ﴿وَحْدَة﴾ تنهايي، يوازېتوب (يوازي والی).

**تشريح**: مخکې چې کوم د طلاق او د خاوند د مرګ په وجه خپل وطن ته د واپس تللو يا نه تللو مسئله بيان سوه، هغه د صحراء او بيابان په هکله وه (يعني کله چې له ښار څخه بغير په صحراء کې

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:٤، ص:١٦٩)، وكذا في الدر المختار (ج:٢، ص:٦٧٦). [القول الراجح ج:١، ص:٢٧٣]

خاوند مړ سي یا ښځي ته طلاق ورکړي)، اوس په دې عبارت کي د مصر او ښار مسئله بیانوي، د مسئلې حاصل دا دی چي که خاوند د سفر په دوران کي ښځي ته په یو ښار کي طلاق ورکړي، یا په یو ښار کي خاوند مړ سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي دا ښځه به هلته عدت پوره کوي او تر عدت پوره کولو مخکي به له هغه ښار څخه قدم هم نه باسي، بیا چي کله عدت پوره سي، نو هم به له محرم څخه بغیر له هغه ځای څخه نه وځي، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: که چیري د ښځي سره یو محرم وي، نو له هغه ځای څخه تر عدت پوره کېدلو مخکي هم وتل صحیح دي او په هغه ښار کي عدت پوره کول ضروري نه دي، ځکه چي د مسافرۍ او بېګانه توب د تکلیف لیري کولو لپاره او د وحشت ختمولو لپاره نفس خروج مباح او جائز دی، او د مسافرۍ تکلیف او د تنهایي ډېره یو ډول عذر هم دی، او تاسو مخکي وویل چي د عذر په وجه انتقال کول صحیح دي، نو ځکه به د دغه معتده ښځي لپاره هم له ښار څخه وتل جائز وي، او بیا د ښځي په حق کي د سفر د حرمت سبب د محرم قریب نشتوالی دی، او څرنګه چي دلته د هغې سره محرم قریب موجود دی، نو په دې وجه به هم د ښځي لپاره وتل جائز وي.

<u>وله أن العدة إلخ</u>: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چي که یو ښځه له محرم څخه بغیر سفر وکړي، نو دا ممنوع دي، لېکن دا ممانعت د کمي درجې دی، ځکه چي د ښځي لپاره د سفر له مودت څخه په کمه مسافه وتل جائز دي، لېکن د عدت له ځای څخه د ښځي وتل بالکل جائز نه دي، نو دا ممانعت د غټې درجې سو، نو ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي چي که څه هم محرم موجود وي، نو بیا هم له هغه ښار څخه وتل صحیح نه دي، بلکي هلته عدت تېرول ضروري دي.

**یادونه**: دا په هغه صورت کي کله چي په هغه ښار کي د عدت تېرولو سهولت وي، او که هیڅ سهولت او ګنجائش نه وي، یا مثلاً د ټکټ، وېزې او جهاز مشکلات وي، نو بیا کور ته د ښځي راتلل جائز دي، ځکه چي دا سخت عذر دی.



# بَابُ ثُبُوتِ النَّسَبِ

## (دا) باب د نسب ثابتېدلو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب د معتده ښځې د درې قسمونو په هکله بیان وکړې یعنې: ذواتُ الحیض، ذواتُ الأشهر، ذواتُ الأحمال (حامله ښځې)، اوس په دې باب کې د هغه شي بیان کوي کوم چې د ذواتُ الأحمال ښځو سره لازم دی چې هغه "ثبوتُ النسب" دی، د دې لپاره چې د ملزوم او لازم په مینځ کې مناسبت او مطابقت باقي پاته سي.

### د نسب ثابتېدلو یو مثال

**وَمَنْ قَالَ: إِنْ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ فَهِيَ طَالِقٌ** او څوک چې ووایي: که ما د فلانی ښځې سره نکاح وکړه نو هغه طلاقه ده **فَتَزَوَّجَهَا** بیا دا سړی د هغې ښځې سره نکاح وکړي **فَوَلَدَتْ وَلَدًا لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ يَوْمِ تَزَوَّجَهَا** او [بیا] ښځه د نکاح له ورځې څخه پر شپږمه میاشته کوچنی وزېږوي **فَهُوَ ابْنُهُ وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ** نو دا کوچنی د دې سړي زوی دی او پر ده تولهٔ مهر واجب دی **أَمَّا النَّسَبُ فَلِأَنَّهَا فِرَاشُهُ** پاته سو [ثبوت د] نسب نو هغه ځکه چې دا ښځه د ده فراش ده **لِأَنَّهَا لَمَّا جَاءَتْ بِالْوَلَدِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ النِّكَاحِ** ځکه کله چې دې ښځې د نکاح له وخت څخه پر شپږمه میاشته کوچنی راوړی **فَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْهَا مِنَ وَقْتِ الطَّلَاقِ** نو [ګواکې] هغې د طلاق له وخت څخه تر شپږو میاشتو په کم [مودت] کې کوچنی راوړی دی **فَكَانَ الْعُلُوقُ قَبْلَهُ فِي حَالَةِ النِّكَاحِ** نو [ګواکې] تر طلاق مخکې د نکاح په حالت کې علوق [حمل] وسو **وَالتَّصَوُّرُ ثَابِتٌ** او [په نکاح کې د علوق] تصور ثابت دی [یعنې دلته د حمل امکان هم سته] **بِأَنْ تَزَوَّجَهَا وَهُوَ يُخَالِطُهَا فَوَافَقَ الْإِنْزَالُ النِّكَاحَ** [هغه] په دې توګه چې هغه سړی د دې ښځې د مخالطت [وطي] کولو په حالت کې نکاح وکړي نو انزال به د نکاح سره موافق سي **وَالنَّسَبُ يُحْتَاطُ فِي إِثْبَاتِهِ** او د نسب په ثابتولو کې احتیاط کیږي **وَأَمَّا الْمَهْرُ فَلِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ النَّسَبُ مِنْهُ** او کوم چې مهر دی نو ځکه کله چې د هغه سړي سره اد کوچني انسب ثابت سو **جُعِلَ وَاطِئًا حُكْمًا** نو هغه د حکم په اعتبار سره واطئ وګرځېدی **فَتَأَكَّدَ الْمَهْرُ بِهِ** نو د هغه په وجه سره مهر مؤکد سو.

**اللغات:** ﴿عُلُوْق﴾ مصدر دی: د ښځې رحم ته نطفه رسېدل (په رحم کې د نطفې قرار نیول). حامله کېدل، حمل. ﴿يُخَالِط﴾ د مفاعلې مضارع ده: ګډون کول (مرځني وطي او جماع کول دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چیري یو سړي داسي ووايي: که زه د فلانۍ ښځې سره نکاح وکړم نو هغې ته طلاق دی، لېکن بیا دا سړی د هغې سره نکاح وکړي، او ښځه د نکاح له وخت څخه شپږ میاشتي وروسته کوچنی وزېږوي، نو د دې کوچني نسبت له همدغه سړي سره ثابتیږي. او پر دې سړي به تول مهر واجب وي، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د کوچني نسب به ځکه د دې سړي سره ثابتیږي چي دا ښځه د دې سړي فراش ده، او په حدیث کي د صاحبُ الفراش لپاره نسب ثابت منل سوی دی، لکه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ، وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَر". (یعني کوچنی به د صاحبُ الفراش وي، او د زاني لپاره به ډبره (رجم) وي)، نو ځکه به د کوچني نسب د دې سړي سره ثابت وي.

او بل دا چي کله ښځه د نکاح له وخت څخه شپږ میاشتي وروسته کوچنی وزېږوي، نو دا خبره ښکاره سوه چي دا کوچنی د طلاق له وخت څخه تر شپږو میاشتو په کم مودت کي پیدا سوی دی. او دا ثابته سوه چي تر طلاق مخکي د نکاح پر وخت د ښځي په نس کي علوق (یعني د نطفې وجود) وو، او د دې علوق د ثبوت امکان هم سته، هغه په دې توګه چي دغه سړی د ښځي سره د مخالطت او جماع په وخت کي نکاح وکړي، او د ایجاب او قبول په وخت کي انزال وکړي، او د طلاق واقع کېدلو سره متصل خاوند له خپل کار (جماع) څخه فارغ سي، لهذا د دې امکان په وجه به کوچنی د دې سړي وي، ځکه چي د نسب د ثبوت په معامله کي احتیاط کیږي، او حتی الإمکان دا کوښښ کیږي چي د کوچني نسب ثابت سي، او بیا د فقهي دا قاعده هم د دې تأئید کوي چي: "الأَصْلُ عِنْدَنَا أَنَّ الْعِبْرَةَ فِيْ ثُبُوْتِ النَّسَبِ بِصِحَّةِ الْفِرَاشِ وَكَوْنِ الزَّوْجِ مِنْ أَهْلِه، لَا بِالتَّمَكُّنِ مِنَ الْوَطى" (یعني د نسب د ثبوت په هکله زموږ په نیز [فقط] د دې خبري اعتبار کیږي چي فراش به صحیح وي او خاوند به د وطي قابل وي، او قدرت علی الوطي شرط نه دي)، او دلته دواړه شیان موجود دي.

**وأما المهر إلخ:** فرمايي کله چي د دې سړي سره د کوچني نسب ثابت سي، نو دا سړی به حکماً واطئ شمارل کیږي، او د ښځي طلاق به طلاق بعد الدخول منل کیږي، او د طلاق بعد الدخول په صورت کي پر خاوند تول مهر واجبیږي، لهذا دلته به هم پر خاوند تول مهر واجب وي.

## د مطلقه رجعيه ښځې د کوچني (بچي) نسب

قال: وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِسَنَتَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ فرمايي: او د مطلقه رجعيه ښځې د کوچني نسب ثابتيږي کله چې هغه په دوه کاله يا تر دې په زيات مودت کې کوچنی وزېږوي مَالَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا [په دې شرط] تر څو چې هغې د عدت تېرېدلو اقرار کړی نه وي لِاحْتِمَالِ الْعُلُوقِ فِي حَالَةِ الْعِدَّةِ ځکه چې [دلته] د عدت په حالت کې د علوق [او وطي] احتمال سته لِجَوَازِ أَنَّهَا تَكُونُ مُمْتَدَّةَ الطُّهْرِ ځکه ممکنه ده چې دا ښځه ممتدةُ الطهر وي وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ او که هغه ښځه له دوو کالو څخه په کم مودت کې کوچنی وزېږوي بَانَتْ مِنْ زَوْجِهَا بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ نو د عدت تېرېدلو په وجه هغه له خاوند څخه بائنه کېږي وَثَبَتَ نَسَبُهُ او د کوچني نسب ثابتيږي لِوُجُودِ الْعُلُوقِ فِي النِّكَاحِ أَوْ فِي الْعِدَّةِ ځکه چې [په دې صورت کې] په نکاح يا عدت کې علوق موجود سو وَلَا يَصِيرُ مُرَاجِعًا او خاوند به رجعت کونکي نه ګرځي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْعُلُوقَ قَبْلَ الطَّلَاقِ ځکه چې [دلته] تر طلاق مخکې هم د علوق احتمال سته وَيَحْتَمِلُ بَعْدَهُ او تر طلاق وروسته [هم د علوق احتمال سته] فَلَا يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِالشَّكِّ نو د شک په وجه به هغه رجعت کونکی نه ګرځي وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ او که هغه ښځه له دوو کالو څخه په زائد مودت کې کوچنی وزېږوي كَانَتْ رَجْعَةً نو دا به رجعت وي لِأَنَّ الْعُلُوقَ بَعْدَ الطَّلَاقِ ځکه چې [دلته] علوق تر طلاق وروسته دی وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ مِنْهُ او ظاهري حالت همدا دی چې دا [علوق] به له خاوند څخه وي لِانْتِفَاءِ الزِّنَا مِنْهَا ځکه له ښځې څخه زنا منتفي ده [ځکه چې د مسلماني ښځې په حق کې د دې إمکان نسته چې هغې به زنا کړې وي] فَيَصِيرُ بِالْوَطْءِ مُرَاجِعًا نو په وطي کولو سره به هغه رجعت کونکی وګرځي.

**اللغات:** ﴿اِنْقِضَاء﴾ د انفعال مصدر دی: تېرېدل، پوره کېدل. ﴿عُلُوق﴾ د ښځې رحم ته نطفه رسېدل (په رحم کې د نطفې قرار نيول)، حامله کېدل، حمل. ﴿بَانَت﴾ د ضرب ماضي ده: بائنه کېدل، جلا کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د احنافو په نېز امکاني او خيالي نسب هم ثابتيږي. همدا وجه ده که يو سړی خپلې ښځې ته طلاق رجعي ورکړي. او دا ښځه د طلاق له وخت څخه په دوو کالو کې دننه يا له دې څخه په زيات مودت کې کوچنی وزېږوي. نو د دې کوچني نسب د همدغه سړي سره

ثابتيږي په دې شرط چي ښځي په دې دوران کي د عدت تېرېدلو (انقضاء عدت) اقرار کړی نه وي، ځکه چي د انقضاءِ عدت د اقرار نه کولو په صورت کي موږ دا ښځه ممتدةُ الطهر شمارلای سو. او د هغې د عدت د اوږدوالي په وجه دا امکان سته چي د عدت په زمانه کي به خاوند د هغې سره وطي کړې وي. او د مطلقه رجعيه ښځي سره وطي کول روا دي. لهذا په دې وطي سره خو به يوه طرف ته د کوچني نسب ثابتيږي، او بل به رجعت ثابتيږي.

**وإن جاءت به لأقل إلخ:** او که دا ښځه تر دوو کالو په کم مودت کي کوچنی وزېږوي. نو دا ښځه له خپل خاوند څخه بائنه کيږي: ځکه چي د حامله کېدلو په وجه به د هغې عدت وضعُ الحمل وي. او په وضعُ الحمل سره هغه بائنه ګرځي. خو په دې صورت کي هم د کوچني نسب د دې سړي (خاوند) سره ثابتيږي، ځکه چي دغه وطي خو به يا د نکاح په حالت کي سوي وي، يا به په عدت کي سوي وي. او څرنګه چي دا ښځه معتده رجعيه ده. لهذا د عدت په حالت کي به د هغې سره وطي کول شرعاً صحيح وي، نو ځکه به هغه کوچنی د همدغه سړي سره ثابتُ النسب وي. خو په دې وطي سره به دا سړی رجعت کونکي نه ګرځي، ځکه چي دلته په دغه وطي کي شک دی چي هغه قبلَ الطلاق دي او که بعدَ الطلاق دي. لهذا په دې حواله سره په رجعت کي شبهه راغله. او د شک او شبهي په وخت کي رجعت نه ثابتيږي.

**وإن جاءت به لأكثر إلخ:** د دې حاصل دا دی که د طلاق له وقت څخه تر دوو کالو وروسته (يعني له دوو کالو څخه په زيات مودت کي) کوچنی پيدا سي، نو په دې صورت کي نسب هم ثابتيږي او رجعت هم ثابتيږي. ځکه چي تر دوو کالو په زيات مودت کي د کوچني پيدا کېدل د دې خبري دليل دا دی چي علوق تر طلاق وروسته د عدت په حالت کي واقع سوی دی. ځکه چي د حمل اکثره مودت دوه کاله وي. او دا کوچنی تر دوو کالو وروسته (يعني تر دوو کالو په زيات مودت کي) پيدا سوی دی. او د ښځي له طرفه د زناء منتفي کېدلو په وجه ظاهري حال هم دا دی چي دغه علوق به د خاوند وي. لهذا کله چي دا علوق د عدت په دوران کي واقع سوی دی، نو ځکه به د رجعت موجب او سبب وي.

## د بائنه ښځي د کوچني نسب

> **وَالْمَبْتُوتَةُ يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ** او کومي ښځي ته چي طلاق بائن ورکول سوی وي د هغې د کوچني نسب ثابتيږي کله چي هغه تر دوو کالو په کم مودت کي کوچنی وزېږوي **لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ قَائِمًا وَقْتَ الطَّلَاقِ** ځکه چي ادلته ا د طلاق په وخت کي د

کوچني د موجودېدلو احتمال سته فَلَا يُتَيَقَّنُ بِزَوَالِ الْفِرَاشِ قَبْلَ الْعُلُوقِ لهذا تر علوق مخکې به د فراش زائلېدل يقيني نه وي فَيَثْبُتُ النَّسَبُ احْتِيَاطًا نو ځکه به احتياطاً نسب ثابتيږي وَإِذَا جَاءَتْ بِهِ لِتَمَامِ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْفُرْقَةِ او که ښځه د فرقت [طلاق] له وخت څخه پر پوره دوو کالو کوچنی وزېږوي لَمْ يَثْبُتْ نو [د هغه نسب د خاوند سره] نه ثابتيږي لِأَنَّ الْحَمْلَ حَادِثٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ ځکه چي حمل تر طلاق وروسته پيدا سوی دی فَلَا يَكُونُ مِنْهُ نو ځکه به هغه له خاوند څخه نه وي لِأَنَّ وَطْأَهَا حَرَامٌ ځکه چي [په دې صورت کي] د ښځي سره وطي کول حرام دي إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَهُ مګر دا چي خاوند د کوچني دعویٰ وکړي لِأَنَّهُ الْتَزَمَهُ ځکه چي خاوند د هغه التزام وکړی ايعني ځکه چي په دې صورت کي خاوند د هغه نسب پر ځان لازم کړی] وَلَهُ وَجْهٌ بِأَنْ وَطِئَهَا بِشُبْهَةٍ فِي الْعِدَّةِ او د دې يو توجيه دا ده چي خاوند به په عدت کي د دې ښځي سره وطي بالشبهه کړي وي.

**اللغات:** ﴿مَبْتُوتَة﴾ مؤنث اسمِ مفعول دی: مُطلقه بائنه (هغه ښځه چي بائن طلاق ورکول سوی وي)، ﴿إِلْتِزَمَ﴾ د افتعال ماضي ده: د يو شي التزام کول، پر ځان يو شی لازمول، په خپله غاړه اخيستل.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که خاوند ښځي ته طلاق بائن ورکړي يا درې طلاقه (طلاق مغلظ) ورکړي، او بيا دا ښځه د طلاق له وقت څخه تر دوو کالو په کم مودت کي کوچنی وزېږوي، نو دا کوچنی له همدغه خاوند څخه ثابتُ النسب ګرځي: دليل دا دی چي تر دوو کالو په کم مودت کي د کوچني په پيدايښت سره دا خبره ځرګنده سوه چي د طلاق په وخت کي د ښځي په نس کي کوچنی وو، لهذا تر علوق مخکي د ښځي د فراش زائلېدل يقيني نه سو، نو ځکه به احتياطاً د دې کوچني نسب ثابتيږي، ځکه چي د نسب په ثبوت کي ډېر احتياط کيږي (او دا کوښښ کيږي چي په يو ډول نه يو ډول د بچي نسب ثابت سي، کنې ټوله ژوند به د ارموني په تور تورن وي).

**وإذا جاءت به لتمام الخ:** (۲)... دويمه مسئله دا ده که د طلاق له وخت څخه ښځه تيک د دوو کالو د پوره کېدلو په وخت کي کوچنی وزېږوي، نو د خاوند سره د هغه نسب نه ثابتيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي همدا خبره يقيني ده چي دا علوق (حمل) تر طلاق وروسته پيدا سوی دی، ځکه که دا تر طلاق مخکي ومنل سي نو دلته به د حمل اکثره مودت تر دوو کالو زيات منل کيږي او دا صحيح نه

دي، لهذا دا حمل به بعد الطلاق وي، نو ځکه به د خاوند سره د کوچني نسب نه ثابتیږي، او دلته بله توجیه او تأویل هم کېدای نه سي، ځکه چي د مطلقه بائنه ښځي سره په هیڅ صورت کي وطي کول روا نه دي.

ها! که خاوند د کوچني د نسب دعویٰ وکړي او د هغه منلو ته تیار سي، نو بیا د هغه سره د کوچني نسب ثابتیږي، ځکه چي په دې صورت کي هغه په خپله د کوچني نسب د خپل ځان سره لازم کړی، لهذا اوس د هغه د منع کولو هیڅ ضرورت نسته، او دلته دا توجیه هم کېدای سي چي شاید خاوند به د مطلقه بائنه ښځي سره په عدت کي وطي بالشبهه کړي وي، لهذا د دې احتمال په خاطر به احتیاطاً د دغه کوچني نسب ثابتیږي.

## د مطلقه صغیره نجلۍ د کوچني نسب

فَإِنْ كَانَتِ الْمَبْتُوتَةُ صَغِيرَةً يُجَامَعُ مِثْلُهَا او که مطلقه بائنه دومره کوچنۍ [نجلۍ] وي چي د هغه ډول نجلۍ سره جماع کېدای سي [یعني د هغې سره جماع کول ممکن وي] فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِتِسْعَةِ أَشْهُرٍ او بیا هغه [د طلاق له وخت څخه] پر نهمه میاشته کوچنی وزیږوي لَمْ يَلْزَمْهُ نو هغه کوچنی [یعني د هغه نسب] د خاوند سره نه لازمیږي حَتَّى تَأْتِيَ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ تِسْعَةِ أَشْهُرٍ تر دې چي هغه له نهو میاشتو څخه په کم مودت کي کوچنی وزیږوي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ ۞ : يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ إِلَى سَنَتَيْنِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چي تر دوو کالو پوري له خاوند څخه [د کوچني] نسب ثابتیږي لِأَنَّهَا مُعْتَدَّةٌ ځکه چي دا صغیره معتده ده يُحْتَمَلُ أَنْ تَكُونَ حَامِلًا او دا احتمال سته چي هغه به حامله وي وَلَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او هغې د عدت تېرېدلو اقرار [هم] کړی نه دی فَأَشْبَهَتِ الْكَبِيرَةَ نو هغه د کبیره [بالغي] ښځي سره مشابه سوه وَلَهُمَا: أَنَّ لِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا جِهَةً مُتَعَيِّنَةً او د طرفینو دلیل دا دی: چي د هغې د عدت تېرېدلو لپاره یو متعین وخت سته [یعني د هغې د عدت لپاره یو معلوم مودت ټاکل سوی دی] وَهُوَ الْأَشْهُرُ او هغه [د عدت] میاشتي دي فَبِمُضِيِّهَا يَحْكُمُ الشَّرْعُ بِالِانْقِضَاءِ نو د هغوی [میاشتو] په تېرېدلو سره شریعت د عدت تېرېدلو حکم کوي وَهُوَ فِي الدَّلَالَةِ فَوْقَ إِقْرَارِهَا او د شریعت حکم په دلالت کي د ښځي تر اقرار [ډېر] اوچت دی لِأَنَّهُ لَا

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۷۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷۴]

يَحْتَمِلُ الْخِلَافَ ځکه چي د شريعت حکم د خلاف [او درواغو] احتمال نه لري وَالْإِقْرَارُ يَحْتَمِلُهُ او اقرار د خلاف احتمال لري وَإِنْ كَانَتْ مُطَلَّقَةً طَلَاقًا رَجْعِيًّا او که دا صغيره په طلاق رجعي سره مطلقه وي [طلاق رجعي ورکول سوی وي] فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَهُمَا نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز همدغه حکم دی وَعِنْدَهُ يَثْبُتُ إِلَى سَبْعَةٍ وَعِشْرِينَ شَهْرًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز [په دې صورت کي] تر اوويشت [۲۷] مياشتو پوري [د کوچني] نسب ثابتيږي لِأَنَّهُ يُجْعَلُ وَاطِئًا فِي آخِرِ الْعِدَّةِ ځکه چي د عدت په آخر کي به خاوند وطي کونکی ګرځول کيږي وَهِيَ الثَّلَاثَةُ الْأَشْهُرُ او هغه [عدت] درې مياشتي دی ثُمَّ تَأْتِي بِهِ لِأَكْثَرِ مُدَّةِ الْحَبَلِ بيا هغې [صغيرې] د حمل په اکثر مودت کي کوچنی وزېږوی وَهُوَ سَنَتَانِ او هغه دوه کاله دی وَإِنْ كَانَتِ الصَّغِيرَةُ ادَّعَتِ الْحَبَلَ فِي الْعِدَّةِ او که سغيره د عدت په دوران کي د حمل دعوی وکړي فَالْجَوَابُ فِيهَا وَفِي الْكَبِيرَةِ سَوَاءٌ نوو د هغې او د بالغي ښځي حکم برابر دی لِأَنَّ بِإِقْرَارِهَا يُحْكَمُ بِبُلُوغِهَا ځکه چي د صغيرې په اقرار سره به د هغې د بلوغت حکم کيږي.

**اللغات:** ﴿حَبَل﴾ حامله کېدل (بلاربېدل). ﴿بُلُوغ﴾ بالغه کېدل (بلوغت).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند داسي کوچنۍ نجلۍ (صغيره) ته طلاق بائن ورکړي چي د هغې سره جماع کېدلای سي، او بيا دا صغيره د طلاق له وخت څخه پر نهمه مياشته کوچنی وزېږوي او په دې دوران کي د عدت تېرېدلو اقرار هم نه وکړي، نو د طرفينو په نېز د هغې د خاوند سره د کوچني نسب لازميږي (يعني د هغه سره په لازمي توګه د کوچني نسب ثابتيږي). ها! که صغيره له نهو مياشتو څخه په کم مودت کي کوچنی وزېږوي، نو بيا د صاحبينو په نېز د کوچني نسب د خاوند سره لازميږي او د هغه سره ثابتيږي. د دې په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چي تر دوو کالو پوري به د هغه نسب د خاوند سره لازميږي او د طلاق له وقت څخه به په دوو کالو کي د پيدا کېدونکي کوچني نسب د خاوند سره ثابتيږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي دا ښځه صغيره معتده ده، او د هغې سره جماع کول امکان لري، نو د دې امکان په خاطر د هغې د حامله کېدلو احتمال هم سته، او دا احتمال دوه ډوله کېدلای سي: ① دا صغيره به د طلاق په وخت کي حامله وي. ② يا تر درېو مياشتو وروسته به له عدت تېرولو څخه بعد ښغه حامله سوې وي. په اول صورت کي به د هغې عدت وضعُ الحمل وي، او په دويم صورت کي به هغه د بالغه (کبيره) ښځي سره مشابه وي. او څرنګه چي هغې د عدت تېرېدلو اقرار کړی نه دي. نو

ځکه به د بالغه (کبیره) ښځي په څیر تر دوو کالو پوري د هغې د کوچني نسب (د خاوند سره) ثابتیږي. (عنایه)

**د طرفینو دلیل**: دا دی چي د دې نجلۍ د عدت تېرېدلو وخت متعین او تاکل سوی دی چي هغه درې میاشتي دی، ځکه چي الله تعالیٰ فرمایي: "وَاللَّآئِيْ لَمْ يَحِضْنَ" (یعني کومو ښځو ته چي بالکل حیض نه راځي، د هغو عدت هم درې میاشتي دی)، لهذا له درې میاشتو څخه وروسته شریعت د هغې د عدت د تېرېدلو حکم کړی دی، برابره ده که هغې د عدت اقرار کړی وي، که نه وي. او د شریعت فیصله او حکم د ښځي له اقرار څخه زیات مضبوط او مستحکم دی، ځکه چي هغه د خلاف واقع احتمال نه لري، لېکن د ښځي اقرار د دې احتمال لري، لهذا د شریعت د حکم په مقابله کي به د ښځي د اقرار هیڅ حیثیت نه وي.

**وإن كانت إلخ**: فرمایي که چیري دا صغیره مطلقه رجعیه وي (یعني خاوند طلاقِ رجعي ورکړی وي).

نو هم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز همدا حکم دی، یعني که د طلاق له وخت څخه تر نهو میاشتو په کم مودت کي کوچنی پیدا سي، نو نسب ثابتیږي، کنې نه ثابتیږي. لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي تر اوویشت (۲۷) میاشتو پوري د کوچني نسب ثابتیږي، ځکه چي د طلاقِ رجعي په صورت کي د ښځي سره د عدت په دوران کي وطي کول صحیح دي، لهذا دا به ویل کیږي چي خاوند به د عدت په آخري ورځو کي د هغې سره وطي کړي وي، او دا کوچنی به د حمل په اکثر مودت کي پیدا سوی وي، نو څلورویشت (۲۴) میاشتي به د حمل د اکثر مودت لپاره وي. او درې میاشتي به د عدت وي چي ټوله به اوویشت میاشتي کیږي.

**وإن كانت إلخ**: د دې حاصل دا دی که چیري صغیره نجلۍ د خپل عدت په دوران کي د حمل دعویٰ وکړي (چي زه حامله یم)، نو په دې صورت کي د هغې حکم د کبیره (بالغي) ښځي د حکم په څیر دی، ځکه چي د حمل د دعویٰ په وجه هغه د کبیره ښځي سره لاحقه سوه. او بالغي ښځي ته که طلاقِ بائن ورکول سوي وي، نو تر دوو کالو په کم مودت کي له هغې څخه د پیدا سوي کوچني نسب ثابتیږي. او که هغې ته طلاقِ رجعي ورکول سوي وي، نو تر اوویشت میاشتو پوري یې د کوچني نسب ثابتیږي. (عنایه)

## د معتدة الوفات ښځي د کوچني نسب

> **وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا مَا بَيْنَ الْوَفَاةِ وَبَيْنَ السَّنَتَيْنِ** او د کونډي سوي ښځي د بچي نسب به د خاوند د مرګ او د دوو کالو په مینځ کي ثابتیږي (یعني د خاوند له مرګ څخه وروسته به تر دوو کالو

پوري ثابتيږي] وَقَالَ زُفَرُ: إِذَا جَاءَتْ بِهِ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّةِ الْوَفَاةِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري دا ښځه د وفات تر عدت پوره کېدلو شپږ مياشتي وروسته کوچنی وزېږوي لَا يَثْبُتُ النَّسَبُ نو [د هغه] نسب نه ثابتيږي لِأَنَّ الشَّرْعَ حَكَمَ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا بِالشُّهُورِ ځکه چي شريعت [د هغې په حق کي] د مياشتو په ذريعه د هغې د عدت تېرېدلو حکم کړی دی لِتَعَيُّنِ الْجِهَةِ ځکه چي [د هغې د عدت] جهت متعين دی. فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّتْ بِالِانْقِضَاءِ نو داسي سو لکه هغې چي [په خپله د عدت تېرېدلو اقرار کړی وي كَمَا بَيَّنَّا فِي الصَّغِيرَةِ لکه د صغيرې په هکله چي موږ [د دې] بيان وکړی إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: لِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا جِهَةٌ أُخْرَى لېکن موږ وايو: چي د هغې د عدت تېرېدلو بل جهت [او صورت] هم سته وَهُوَ وَضْعُ الْحَبَلِ او هغه د حمل زېږول دي بِخِلَافِ الصَّغِيرَةِ په خلاف د صغيرې لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا عَدَمُ الْحَبَلِ ځکه چي اصل په هغې کي د حمل نشتوالی دی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِمَحَلٍّ قَبْلَ الْبُلُوغِ ځکه چي هغه [صغيره] تر بلوغ مخکي [د حمل] محل نه ده وَفِيهِ شَكٌّ او [د هغې] په بلوغت کي شک دی.

**اللغات:** ﴿إِنْقِضَاء﴾ د انفعال مصدر دی: پوره کېدل، تېرېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که چيري د يوې ښځي خاوند مړ سي، او هغه ښځه کبيره بالغه وي، نو زموږ په نېز که هغه د خاوند تر مرګ (وفات) وروسته په دوو کالو کي دننه کوچنی وزېږوي، نو د دې کوچني نسب د خاوند سره ثابتيږي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي که د وفات تر عدت وروسته يعني که د څلورو مياشتو او لسو ورځو تر تکميل وروسته شپږ مياشتي بعد (يعني پر شپږمه مياشته) دا ښځه کوچنی وزېږوي، نو د هغه کوچني نسب د خاوند سره نه ثابتيږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي کله د عدت په دوران کي د دې ښځي حمل ښکاره نه سو، او هغې د حمل دعویٰ او اقرار هم نه وکړه، نو د شريعت له طرفه چي د وفات د عدت کوم مودت ټاکل سوی دی يعني څلور مياشتي او لس ورځي، پر هغه مودت به د دې ښځي عدت پوره کيږي، او دا به په خپله د ښځي د عدت تېرېدلو د اقرار په څېر وي (يعني کله چي دا ټاکل سوی مودت پوره سي، نو ګواکي په خپله ښځي د خپل عدت تېرېدلو اقرار وکړ)، او تر عدت تېرېدلو وروسته شپږ مياشتي يا له دې څخه په زيات مودت کي د پيدا سوي کوچني نسبت نه ثابتيږي، لهذا دلته به هم شپږ مياشتي يا تر هغه وروسته د پيدا سوي کوچني نسبت نه ثابتيږي، لکه په تېر عبارت کي چي د صغيره نجلۍ په هکله د دې وضاحت وسو.

**الا ان القول الخ:** موږ د امام زفر رَحِمَهُ الله په جواب کې وایو چې کبیره پر صغیره قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې کبیره بالغه وي، او د هغې حامله کېدل یقیني وي، او بیا تر عدت تېرېدلو مخکې د حامله کېدلو په صورت کې د هغې عدت وضعُ الحمل وي، نو ځکه موږ وایو چې که په دوو کالو کې دننه د هغې کوچنی پیدا سي، نو د کوچني نسب به ثابتیږي، د دې په خلاف صغیره له بلوغ څخه مخکې د حمل محل نه وي، نو د صغیرې نه حامله کېدل أصل او متیقن دي، او د هغې د بلوغت مسئله مشکوکه ده، او څرنګه چې د شک په مقابله کې د یقین درجه لوړه ده، نو ځکه به د صغیره په حق کې پر یقین یعني پر عدمِ بلوغ عمل کیږي، او پر شک یعني پر بلوغ او حمل به عمل نه کیږي، لهذا د امام زفر قیاس به هم صحیح نه وي.

## د عدت تېرېدلو تر اقرار کولو وروسته د کوچني پیدا کېدل

وَإِذَا اعْتَرَفَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا او کله چې معتده ښځه د خپل عدت تېرېدلو اقرار وکړي ثُمَّ جَاءَتْ بِالْوَلَدِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ بیا تر شپږو میاشتو په کم مودت کې کوچنی وزیږوي يَثْبُتُ نَسَبُهُ نو د هغه نسب ثابتیږي لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُهَا بِيَقِينٍ ځکه چې [په دې صورت کې] په یقیني توګه د هغې دروغ ښکاره سوه فَبَطَلَ الْإِقْرَارُ نو [په دې وجه] اقرار باطل سو وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ او که هغه پر شپږمه میاشته کوچنی وزیږوي لَمْ يَثْبُتْ نو [د هغه نسب] نه ثابتیږي لِأَنَّا لَمْ نَعْلَمْ بِبُطْلَانِ الْإِقْرَارِ ځکه چې [په دې صورت کې] موږ [په یقیني توګه] د اقرار په باطلېدلو خبر نه سو لِاحْتِمَالِ الْحُدُوثِ بَعْدَهُ ځکه چې [دلته] تر اقرار وروسته [د حمل] پیدا کېدلو احتمال سته وَهٰذَا اللَّفْظُ بِإِطْلَاقِهِ يَتَنَاوَلُ كُلَّ مُعْتَدَّةٍ او [په متن کې] اذا د المُعْتَدَّةُ الفظ د مطلق کېدلو په وجه هرې معتده ښځې لره شاملیږي.

**اللغات:** ﴿يَتَنَاوَلُ﴾ د تفاعل مضارع ده: شاملېدل.

**تشریح: مسئله:** دا ده که چیرې معتده ښځه د خپل عدت پوره کېدلو اقرار وکړي، او تر دې وروسته له شپږو میاشتو څخه په کم مودت کې کوچنی وزیږوي، نو د دې کوچني نسب د خاوند سره ثابتیږي: ځکه چې تر اقرار وروسته له شپږو میاشتو څخه په کم مودت کې د کوچني پیدا کېدل د دې خبرې دلیل دا دی چې د اقرار په وخت کې دا ښځه حامله وه، نو په دې وجه د هغې عدت وضعُ الحمل سو، نه تاکل سوی جهت (کوم چې درې حیضه یا څلور میاشتې او لس ورځې کیږي). لهذا دا ښځه د عدت تېرېدلو په اقرار کې درواغجنه سوه، نو ځکه به د هغې اقرار باطلیږي او نسب به ثابتیږي.

لېکن که تر اقرار شپږ میاشتي وروسته یا تر دې په زیات مودت کې هغه کوچنی وزېږوي. نو بیا د کوچني نسب نه ثابتیږي؛ ځکه په دې صورت کې دا احتمال سته چې تر اقرار وروسته به دا ښځه حامله سوې وي. لهذا په دې صورت کې د اقرار باطلېدل یقیني نه دي. نو ځکه به د هغې اقرار نه باطلیږي او نسب به هم نه ثابتیږي.

وهذا اللفظ إلخ: فرمایي چې په متن کې د "الْمُعْتَدَّة" لفظ مطلق دی. نو ځکه به هغه هري معتده ښځي لره شامل وي. هغه که معتدة الوفاة وي، یا معتده رجعیه یا بائنه وي، د ټولو به همدغه حکم وي.

## د معتدة الطلاق ښځي د کوچني نسب

وَإِذَا وَلَدَتِ الْمُعْتَدَّةُ وَلَدًا او کله چې معتده ښځه بچی وزېږوي لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَشْهَدَ بِوِلَادَتِهَا رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ نو (د هغې) د بچي نسب نه ثابتیږي تر دې چې دوه سړیان یا یو سړی او دوې ښځي د دې بچي د ولادت ګواهي ورکړي إِلَّا أَنْ يَكُونَ هُنَاكَ حَبَلٌ ظَاهِرٌ أَوْ اعْتِرَافٌ مِنْ قِبَلِ الزَّوْجِ مګر دا چې هلته (د عدت په زمانه کې) حمل ښکاره وي، یا د خاوند له طرفه اقرار وسي فَيَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْ غَيْرِ شَهَادَةٍ نو (په دې دوو صورتونو کې) له ګواهۍ څخه بغیر (د کوچني) نسب ثابتیږي وَقَالَ[*]: أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: يَثْبُتُ فِي الْجَمِيعِ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې په ټولو صورتونو کې (فقط) د یوې ښځي په ګواهۍ سره نسب ثابتیږي لِأَنَّ الْفِرَاشَ قَائِمٌ بِقِيَامِ الْعِدَّةِ ځکه چې (دلته) د عدت د موجود والي په وجه فراش ثابت دی وَهُوَ مُلْزِمٌ لِلنَّسَبِ او همدا فراش د نسب لازمونکی (او ثابتونکی) دی وَالْحَاجَةُ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ أَنَّهُ مِنْهَا او ضرورت د بچي و تعیین ته دی چې هغه د همدغه ښځي څخه دی (یعني اوس فقط د دې خبري د ثبوت ضرورت دی چې بچی د دغه ښځي دی) فَيَتَعَيَّنُ بِشَهَادَتِهَا نو هغه به د یوې ښځي په ګواهۍ سره متعین کیږي كَمَا فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ لکه د نکاح د موجود والي په حالت کې (چې هغه د یوې ښځي په ګواهۍ سره متعین کیږي) وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْعِدَّةَ تَنْقَضِي بِإِقْرَارِهَا بِوَضْعِ الْحَمْلِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې د ښځي د وضع

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:۲، ص:۲۷۲)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۸۰).
[الفوز الراجح ج:۱، ص: ۳۷۶]

الحمل په اقرار کولو سره عدت تیریږي [ختميږي] وَالْمُنْقَضِيُ لَيْسَ بِحُجَّةٍ او تېر سوی شی حجت نه وي فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى إِثْبَاتِ النَّسَبِ ابْتِدَاءً نو له شروع څخه د نسب ثابتولو ته ضرورت محسوس سو فَيُشْتَرَطُ كَمَالُ الْحُجَّةِ نو [ځکه] به [په هغه کي] کامل حجت شرط وي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ ظَهَرَ الْحَبَلُ أَوْ صَدَرَ الِاعْتِرَافُ مِنَ الزَّوْجِ په خلاف د هغه صورت کله چي حمل ښکاره وي یا د خاوند له طرفه اقرار صادر سي لِأَنَّ النَّسَبَ ثَابِتٌ قَبْلَ الْوِلَادَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] نسب تر ولادت مخکي ثابت سوی دی وَالتَّعْيِينُ يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهَا او تعيين [فقط] د يوې ښځي په ګواهي سره ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿مُلْزِم﴾ د افعال اسم فاعل دی: لازمونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که معتده ښځه کوچنی وزیږوي، او خاوند د هغه انکار وکړي (چي دا زما بچی نه دی). نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز هغه وخت د دې کوچني نسب ثابتیږي کله چي دوه خلک یا یو سړی او دوې ښځي د دې کوچني د ولادت ګواهي ورکړي (چي دا کوچنی ستا له ښځي څخه پیدا سوی دی). هاا که چیري حمل ښکاره او څرګند وي. یا خاوند د هغه ومنلو ته تیار وي. نو له ګواهۍ څخه بغیر د هغه نسب ثابتیږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په ټولو صورتونو کي فقط د يوې ښځي (دايي) په ګواهۍ سره نسب ثابتيږي. برابره ده حمل ښکاره او څرګند وي. که نه وي. او برابره ده خاوند د حمل اقرار کړی وي یا یې انکار کړی وي، په هر صورت کي د يوې ښځي په ګواهۍ سره نسب ثابتيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د عدت موجودېدلو په وجه د ښځي فراش کېدل ثابت او متيقن دي (چي هغه د خپل خاوند فراش ده او په يقيني توګه د هغه تر نکاح لاندي ده). او همدا "فراش کېدل" د نسب د ثبوت لپاره کافي دي. نو ځکه دلته د نسب ثابتېدو لپاره د هيڅ ګواهي ضرورت نسته. خو فقط د دې ضرورت سته چي دا معلومه سي چي دغه کوچنی د همدغه ښځي څخه پيدا سوی دی. او د دې کار لپاره فقط د يوې ښځي (دايي) ګواهي کافي ده. نو ځکه موږ وايو چي په ټوله صورتونو کي د يوې ښځي په ګواهۍ سره نسب ثابتيږي. لکه په هغه صورت کي چي هم د يوې ښځي په ګواهۍ سره نسب ثابتيږي. کله چي نکاح باقي وي او ښځه کوچنی وزيږوي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي کله دې ښځي د وضع الحمل اقرار وکړی (چي زما کوچنی پيدا سو). نو د هغې د اقرار په وجه د هغې عدت تېر سو. او کوم شی چي تېر سي. هغه حجت جوړېدلای نه سي. نو ځکه به د خاوند د انکار په صورت کي له نوي سره د نسب ثابتولو ته ضرورت او حاجت

وي، او له نوي سره د نسب ثابتولو لپاره کامل شهادت او کامل حجت ضروري دی، نو ځکه موږ وایو چې د خاوند د انکار په صورت کې به د شهادت نصاب یعني د دوو عادلو خلکو یا د یوه سړي او دوو ښځو ګواهي شرط وي، د دې په خلک که حمل ظاهر او څرګند وي، یا خاوند د هغه اقرار کړی وي، نو بیا د نسب ثابتولو ضرورت نسته، لهذا کامل شهادت به هم شرط نه وي، او فقط د یوې ښځې ګواهي به کافي وي.

## د معتدة الوفات ښځې د کوچني د نسب ثابتېدلو طریقه

فَإِنْ كَانَتْ مُعْتَدَّةً عَنْ وَفَاةٍ او که ښځه د وفات عدت تېرونکې وي [او بیا هغه د ولادت دعوی وکړي] فَصَدَّقَهَا الْوَرَثَةُ فِي الْوِلَادَةِ او وراثان د ولادت په هکله د هغې تصدیق وکړي وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى الْوِلَادَةِ أَحَدٌ [لیکن] پر ولادت هیڅ ګواهي نه ورکړي فَهُوَ ابْنُهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو دا کوچنی [زموږ] د ټولو امامانو پر قول د هغه [خاوند] زوی دی وَهٰذَا فِي حَقِّ الْإِرْثِ ظَاهِرٌ او دا [حکم] خو د وراثت په حق کې ښکاره دی لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِمْ ځکه چې میراث د وارثانو خالص حق دی فَيُقْبَلُ فِيهِ تَصْدِيقُهُمْ نو [ځکه] به په دې کې د هغو تصدیق کېږي أَمَّا فِي حَقِّ النَّسَبِ هَلْ يَثْبُتُ فِي حَقِّ غَيْرِهِمْ او پاته سو د نسب په حق کې! نو آیا له وارثانو څخه بغیر [د بل چا] په حق کې نسب ثابتېږي قَالُوا: إِذَا كَانُوا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ علماؤ فرمایلي دي: که چېرې وارثان د شهادت أهل وي يَثْبُتُ نو ثابتېږي لِقِيَامِ الْحُجَّةِ د حجت قائمېدلو په وجه [یعني ځکه چې کامل او شرعي حجت قائم سو] وَلِهٰذَا قِيلَ: تُشْتَرَطُ لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ او له همدې وجهې ویل سوي دي: چې د شهادت [ګواهۍ] لفظ شرط دی وَقِيلَ: لَا تُشْتَرَطُ او [دا هم] ویل سوي دي: چې د شهادت لفظ شرط نه دی لِأَنَّ الثُّبُوتَ فِي حَقِّ غَيْرِهِمْ تَبَعٌ لِلثُّبُوتِ فِي حَقِّهِمْ بِإِقْرَارِهِمْ ځکه چې د وارثانو د اقرار په وجه د نسب ثبوت له دوی څخه بغیر د بل چا په حق کې د ثبوت تابع دی وَمَا ثَبَتَ تَبَعًا لَا يُرَاعَى فِيهِ الشَّرَائِطُ او کوم شی چې د تابع په توګه ثابت سي په هغه کې د شرائطو مراعات نه کېږي.

**اللغات:** ﴿لَا يُرَاعَى﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي صیغه ده: مراعات کول، خیال ساتل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یوې ښځې خاوند مړ سي، او بیا دا ښځه د دوو کالو له پوره کېدلو څخه مخکې د کوچني پیدا کېدلو دعوی وکړي، او د خاوند له وارثانو څخه یو څو خلک د دې

دعویٰ تصدیق هم وکړي، لیکن دا خلک دولادت ګواهي نه ورکړي، نو فقط دهغو تصدق دولادت د ثبوت لپاره کافي دی، او دهغو په تصدیق سره ددې کوچني نسب دخپل پلار سره ثابتیږي، دا مسئله متفق علیها ده.

صاحب دهدایې فرمایي چې دوراثت په حق کي ددې کوچني دنسب ثابتېدل ښکاره دي (یعني دنورو ورثهٔ (میراث خوړونکو) په څیر به دغه کوچني ته هم دپلار په مال او جائیداد کي حصه ورکول کیږي، او کوچنی به وراث شمارل کیږي)، ځکه چې میراث خالص دورثهٔ حق دی، لهذا د هغو په حق کي به دهغو تصدیق خامخا منل کیږي، او په هغه کي به دګواهی یا دبل قید شرط نه لګول کیږي.

أما في حق النسب إلخ: ددې عبارت حاصل دا دی چي که وارثان اقرار او تصدیق وکړي چي دا کوچنی دفلانکي سړي بچی دی (ددې خاوند بچی نه دی)، نو آیا ددوی په اقرار سره دکوچني نسب دهغه سړي ثابتیږي، که نه؟ نو په دې سلسله کي دعلماؤ رایه دا ده چي که اقرار کونکي وارثان دشهادت أهل وي، یعني ټوله نارینه وي، یا ځیني نارینه او ځیني ښځي وي، او ټوله عادلان وي، نو دهغو په اقرار سره دبل چا په حق کي هم نسب ثابتیږي، کنې نه ثابتیږي، ځکه چي دا حجت کامله دی او شهادت تامه دی، او شهادت تامه په هر طرف کي نسب ثابتوي.

ولهذا قيل إلخ: صاحب دکتاب وفرمایل چي اقرار کونکي وارثان به دشهادت أهل وي، نو له همدې وجهې ځیني علماؤ دا شرط لګولی دی چي دا وارثان به دشهادت په لفظ سره ګواهي ورکوي، ددې لپاره چي شهادت مکمل او بشپړ سي، او ځیني حضراتو فرمایلي دي چي دشهادت په لفظ سره ګواهي ورکول شرط نه دي، ځکه چي ددغه وارثانو داقرار په وجه أصلاً ددوی په حق کي نسب ثابتیږي، او بیا ددوی په واسطه دبل چا په حق کي ثابتیږي (یعني دوارثانو داقرار په وجه دکوچني نسب دهغو په حق کي أصل دی، او دبل چا په حق کي تابع دی)، او په تابع شي کي دشرائطو خیال نه ساتل کیږي، بلکي هغه له شرائطو څخه بغیر هم ثابتیږي.

## د منکوحه ښځي د کوچني د نسب ثابتېدلو مودت

وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ إِمْرَأَةً او کله چي سړی دیوې ښځي سره نکاح وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ يَوْمِ تَزَوَّجَهَا او [بیا] دا ښځه د نکاح له ورځي څخه تر شپږو میاشتو په کم مودت کي بچی وزېږوي لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ نو د هغه نسب نه ثابتیږي لِأَنَّ الْعُلُوقَ سَابِقٌ عَلَى النِّكَاحِ ځکه چي [په دې

صورت کې إعلوق پر نکاح مخکې دی فَلَا يَكُونُ مِنْهُ نو إځکه إ به هغه له خاوند څخه نه وي وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا او که دا ښځه پر شپږمه مياشت يا تر دې په زائد مودت کې کوچنی وزېږوي يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نو له خاوند څخه د هغه نسب ثابتیږي اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ أَوْ سَكَتَ هغه که خاوند اقرار وکړي يا چپ پاته سي لِأَنَّ الْفِرَاشَ قَائِمٌ وَالْمُدَّةُ تَامَّةٌ ځکه چې فراش إهم إ موجود دی او إد ولادت إ مودت إهم إ پوره دی فَإِنْ جَحَدَ الْوِلَادَةَ بيا که خاوند د ولادت انکار وکړي يَثْبُتُ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ تَشْهَدُ بِالْوِلَادَةِ نو هغه إولادت إ د يوې داسې ښځې په ګواهۍ سره ثابتيږي کوم چې د ولادت ګواهي ورکړي حَتَّى لَوْ نَفَاهُ الزَّوْجُ تر دې که خاوند د هغه إبچي إ نفي وکړي يُلَاعِنُ نو لعان به کوي لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ بِالْفِرَاشِ الْقَائِمِ ځکه چې په قائم إاو موجود إ فراش سره إخامخا إ نسب ثابتيږي وَاللِّعَانُ إِنَّمَا يَجِبُ بِالْقَذْفِ او إدلته إ لعان إفقط إ د تهمت لګولو په وجه واجبيږي وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَتِهِ وُجُودُ الْوَلَدِ او د لعان لپاره د بچي موجودېدل ضروري نه دي فَإِنَّهُ يَصِحُّ بِدُونِهِ ځکه چې لعان بغير له بچي څخه إهم إ صحيح کيږي.

**اللغات:** ﴿عُلُوق﴾ د ښځې په رحم کې نطفه قرار نيول، حامله کېدل (اِسْتِقْرَارُ الْحَمْل). ﴿فَصَاعِدًا﴾ يا تر دې زيات. ﴿نَفَا﴾ د ضرب ماضي ده: نفي کول (د کوچني د نسب انکار کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک د يوې ښځې سره نکاح وکړي، او هغه ښځه د نکاح له ورځې څخه تر شپږو مياشتو مخکې کوچنی وزېږوي، نو د هغه کوچني نسب د دې سړي سره نه ثابتيږي، ځکه چې د حمل أقل مودت شپږ مياشتې دی، او څرنګه چې دا کوچنی تر شپږو مياشتو مخکې پيدا سوی دی، نو ځکه به هغه د خاوند له وطي او نطفې څخه نه وي، نو نسب به يې هم د خاوند سره نه ثابتيږي. لېکن که د نکاح له وخت څخه شپږ مياشتې وروسته يا له هغه څخه په زيات مودت کې کوچنی پيدا سي، نو بيا د هغه نسب د خاوند (پلار) سره ثابتيږي، برابره ده خاوند د هغه د ولادت اقرار وکړي يا سکوت اختيار کړي، په دې دواړو صورتونو کې د کوچني نسب د خاوند سره ثابتيږي، ځکه چې د هغه مور د خاوند فراش ده. او د ولادت مودت (يعني شپږ مياشتې) هم پوره سوي دي.

هوا! که تر شپږو مياشتو وروسته کوچنی پيدا سي او خاوند د هغه د ولادت انکار وکړي، نو په دې صورت کې فقط د يوې داسې ښځې په ګواهي سره د کوچني ولادت ثابتيږي چې هغه د ولادت (يعني د ښځې د لنګوالي) په وخت کې موجوده وي (هغه که دايي وي يا بله ښځه وي). او د بل

شهادت هیڅ ضرورت نسته، لیکن که خاوند اوس هم هغه خپل بچی نه شماري او د هغه نفي وکړي. نو بیا پر خاوند لعان واجب دی، ځکه کله چې صحیح فراش موجود وي، نو د بیا د نسب په ثبوت کې هیڅ تردّد پکار نه دی، لیکن کله چې خاوند په دې صورت کې هم تردّد پیدا کړي، نو د هغه دا تردّد او انکار د هغه پر بد معاشۍ او سر زورۍ دلالت کوي، نو ځکه به هغه لعان کوي.

**واللعان إنما تجب إلخ:** دا د یو مقدر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې دلته د یوې ښځې په ګواهۍ سره د کوچني ولادت ثابت سوی دی، او بیا د خاوند د انکار کولو په وجه پر هغه لعان واجب سو، نو حاصل یې دا سو چې دلته د یوې ښځې په ګواهۍ سره لعان واجب سو! ، حالانکې لعان د حدّ په درجه کې دی چې د هغه لپاره کامل شهادت ضروري دی (یعنې دوه خلک یا یو سړی او دوې ښځې)، نو د دې په جواب کې فرمایي چې دلته د ښځې په ګواهۍ سره لعان واجب سوی نه دی، او نه د خاوند د انکار کولو په وجه لعان واجب سوی دی، بلکې لعان په دې وجه واجب سو چې خاوند په خپل انکار سره پر ښځې د زنا تهمت ولګوی (او مخکې ذکر سوه چې لعان د همدغه تهمت په وجه واجبیږي)، همدا وجه ده که تر اوسه د یو ښځې کوچنی پیدا سوی نه وي، او خاوند پر هغې د زنا تهمت ولګوي، نو هم پر خاوند لعان واجبیږي، لهذا دا اعتراض کول صحیح نه دي (چې دلته د یوې ښځې په ګواهۍ سره لعان واجب سو).

## د نکاح په مودت کې د اختلاف پر وخت د معتبر قول بیان

| |
|---|
| فَإِنْ وَلَدَتْ ثُمَّ اخْتَلَفَا او که ښځه بچی وزېږوي [او] بیا خاوند او ښځه [په هغه کې] اختلاف وکړي فَقَالَ الزَّوْجُ: تَزَوَّجْتُكِ مُنْذُ أَرْبَعَةِ او خاوند وایي: ما له څلورو میاشتو څخه ستا سره نکاح کړې ده [یعنې زما او ستا د نکاح فقط څلور میاشتې کیږي] وَقَالَتْ هِيَ: مُنْذُ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او ښځه وایي: چې له شپږو میاشتو څخه [تا زما سره نکاح کړې ده] فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو قول به د ښځې معتبر وي وَهُوَ ابْنُهُ او دا کوچنی به د خاوند زوی دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهَا ځکه چې ظاهري حالت د ښځې لپاره ګواه دی فَإِنَّهَا تَلِدُ ظَاهِرًا مِنْ نِكَاحٍ لَا مِنْ سِفَاحٍ ځکه چې ظاهري حالت همدا دی چې هغې له نکاح څخه کوچنی زېږولی دی، نه له زنا څخه وَلَمْ يَذْكُرِ الِاسْتِحْلَافَ وَهُوَ عَلَى الِاخْتِلَافِ او [دلته] امام محمد رَحِمَهُ الله د قسم اخیستلو یادونه کړې نه ده [ځکه چې] دا مسئله پر اختلاف ده. |

**اللغات:** ﴿سِفَاحٍ﴾ بدکاري، زنا. ﴿اِسْتِحْلَاف﴾ د استفعال مصدر دی: قسم اخیستل. قسم خوړل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د کوچني تر پيدا ينبت وروسته خاوند او ښځه اختلاف وکړي، خاوند ووايي چې څلور مياشتې مخکې نکاح سوې وه، نو دا کوچنی زمانه دی، او ښځه ووايي چې شپږ مياشتې مخکې نکاح سوې وه، لهذا دا ستا بچی دی، او د خاوند سره هيڅ ګواه نه وي، نو په دې صورت کې به د ښځې خبره منل کيږي؛ ځکه چې دا ښځه اوس د خاوند فراش ده، نو ظاهري حالت د همدې ګواهي ورکوي چې دا کوچنی له نکاح څخه پيدا سوی دی، نه له زنا څخه، لهذا تر څو چې خاوند د دې په خلاف ګواهي پېش نه کړي، تر هغه وخته به د کوچني نسب د خاوند سره ثابت منل کيږي.

**ولم يذكر إلخ**: قاعده دا ده چې کله د يو کس (منکر) خبره منل کيږي نو د قسم سره د هغه خبره منل کيږي (يعني له هغه څخه به قسم اخيستل کيږي)، ليکن دلته په متن کې (کوم چې د جامع صغير عبارت دی) د قسم اخيستلو تذکره نسته، د دې وجه دا ده چې د نکاح او طلاق شپږ مسئلې داسې دي چې په هغه کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د منکر خبره له قسم څخه بغير منل کيږي، او د صاحبينو په نيز د قسم سره منل کيږي، او له هغه شپږو مسئلو څخه يوه مسئله همدا ده، نو ځکه دلته د قسم يادونه سوې نه ده.

## که خاوند طلاق پر ولادت معلق کړی وي نو په دې صورت کې د ولادت په هکله د يوې ښځې د ګواهۍ حکم

| |
|---|
| **وَإِنْ قَالَ: لِامْرَأَتِهِ إِذَا وَلَدْتِ وَلَدًا فَأَنْتِ طَالِقٌ** او که [خاوند] خپلې ښځې ته ووېل: کله چې ته کوچنی وزېږوې نو [پر ما] طلاقه يې **فَشَهِدَتْ اِمْرَأَةٌ عَلَى الْوِلَادَةِ** [او] بيا يوې ښځې [د کوچني] پر زېږېدلو ګواهي ورکړه **لَمْ تَطْلُقْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه نه طلاقيږي **وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: تَطْلُقُ** او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې طلاقيږي **لِأَنَّ شَهَادَتَهَا حُجَّةٌ فِي ذَلِكَ** ځکه چې د ولادت په هکله د يوې ښځې ګواهي حجت ده **قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ** ❶ **: شَهَادَةُ النِّسَاءِ جَائِزَةٌ فِيمَا لَا يَسْتَطِيعُ الرِّجَالُ النَّظَرَ إِلَيْهِ** نبي ﷺ فرمايلي دي: په هغه اُمورو کې د ښځو ګواهي جائز ده چې خلک هغوی ته د کتلو قدرت نه لري **وَلِأَنَّهَا لَمَّا قُبِلَتْ فِي الْوِلَادَةِ** او ځکه کله چې په ولادت کې د يوې ښځې |

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۴، ص:۱۸۰)، و كذا في الهندية (ج:۱، ص:۲۲۲). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۷۷]

❶ تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه، باب ما تجوز فيه شهادة النساء، حديث رقم: ۲۰۷۰۸ بمعناه.

ګواهي مقبوله ده تُقْبَلُ فِيمَا يَنْبَتنِي عَلَيْهَا نو په هغه شي کي به هم قبليږي کوم چي پر ولادت مبني وي وَهُوَ الطَّلَاقُ او هغه طلاق دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا ادَّعَتِ الْحِنْثَ او د امام صاحب دليل دا دی: چي [دلته] ښځي [د خاوند] د حانث کېدلو دعویٰ کړې ده فَلَا يَثْبُتُ إِلَّا بِحُجَّةٍ تَامَّةٍ لهذا د کامل حجت څخه بغير به هغه نه ثابتيږي وَهٰذَا لِأَنَّ شَهَادَتَهُنَّ ضَرُورِيَّةٌ فِي حَقِّ الْوِلَادَةِ او دا [حکم] ځکه [دی] چي د ولادت په حق کي د ښځو ګواهي د ضرورت پر بناء [جائز] ده فَلَا تَظْهَرُ فِي حَقِّ الطَّلَاقِ نو [ځکه] به د طلاق په حق کي هغه [د ولادت ګواهي] نه ښکاره کيږي [او د طلاق په حق کي به أثر نه کوي] لِأَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنْهَا ځکه چي طلاق له ولادت څخه جلا کېدای سي.

**اللغت:** ﴿اِدَّعَتْ﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده. په اصل کي اِدْتَعَتْ وو: دعویٰ کول (دعوه کول). ﴿حِنْث﴾ مصدر دی: حانث کېدل. قسم ماتېدل (قسم نه پوره کول). ﴿إِنْشَاء﴾ د افعال مصدر دی: پيدا کېدل (د مشروط شرط موجودېدل). ﴿حُجَّة تَامَّة﴾ کامل حجت. د دوو خلکو شهادت ته يا د يوه سړي او دوو ښځو شهادت ته "حجت تامه" وايي. او د يوې ښځي شهادت ته "حجت ناقصه" وايي. ﴿يَنْفَكّ﴾ د انفعال مضارع ده: جلا کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلي ښځي ته داسي ووايي: کله چي ستا کوچنی پيدا سي، نو ته پر ما طلاقه يې. او يو څو مياشتي وروسته يو بلي ښځي ګواهي ورکړه چي د هغې ښځي کوچنی پيدا سو. او حالت دا وو چي تر اوسه د هغې په نس کي نه حمل ښکاره سوی وو او نه خاوند د هغې د حمل اقرار کړی وو. او اوس هم خاوند د ولادت انکار وکړی (چي ته دروغ وايې! له دې ښځي څخه زما بچی نه دي پيدا سوی). نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چي دا ښځه مطلقه نه ګرځي. لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي پر دې ښځي طلاق واقع کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د ولادت مسئله او مرحله د ښځو سره خاص ده. او د ولادت د ثبوت لپاره فقط د يوې ښځي ګواهي هم کافي ده. لکه څرنګه چي دا حديث هم د دې تائيد کوي: "شهادة النساء جائزة فيما لايستطيع الرّجال النظر إليه" (يعني کومو شيانو ته چي د سړي کتل جائز نه وي. په هغوی کي فقط د ښځو ګواهي جائز ده. [او هلته به د ښځي د ګواهي مطابق فيصله کيږي]). نو ځکه به د يوې ښځي په ګواهي سره ولادت ثابتيږي. او څرنګه چي دلته خاوند طلاق پر ولادت

معلق کړی وو. لهذا کله چې ولادت ثابت سو. نو خامخا به طلاق هم واقع کیږي. او دا ښځه به مطلقه ګرځي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چې دلته ښځي د ولادت په دعویٰ سره د خاوند د حانث کېدلو یعني د طلاق واقع کېدلو دعویٰ کړې ده (یعني کله چې خاوند طلاق پر ولادت معلق کړی. او ښځي وویل چې زما کوچنی پیدا سو. نو د دې مطلب دا دی چې زه طلاقه یم. او ته (خاوند) په خپل قسم کي حانث سوې)، او څرنګه چې خاوند د دې مُنکر دی. او دا یوه أهمه معامله ده. نو ځکه به د دې د ثبوت لپاره حجت کامله او شهادت تامه پکار وي، او د یوې ښځي ګواهي حجتِ ناقصه دی. نو ځکه به د هغې په ګواهۍ سره د طلاق وقوع نه ثابتیږي. ها! د هغې په ګواهۍ سره به فقط ولادت او نسب ثابتیږي. ځکه چې د ولادت په باره کي د ضرورت پر بناء د ښځو ګواهي معتبره ده. او قاعده دا ده چې "الضَّرُوْرَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا" (یعني کوم شی چې ضرورتاً ثابت وي، هغه د ضرورت په اندازه ثابتیږي. تر ضرورت تجاوز نه کیږي). لهذا د یوې ښځي (دایي) ګواهي به فقط د ولادت په ثبوت کي مؤثره وي. لېکن د طلاق په وقوع کي به د هغه هیڅ أثر نه وي. ځکه چې طلاق له ولادت څخه علیحده شی دی. یعني په دې دواړو کي تلازم نسته چې که ولادت وو نو طلاق به خامخا وي. ځکه کله نا کله طلاق وي او ولادت نه وي، او کله ولادت وي او طلاق نه وي. لهذا کله چې د یوې ښځي په ګواهۍ سره ولادت ثابت سي نو له هغه څخه دا نه لازمیږي چې طلاق دې هم په هغه ګواهي سره ثابت سي (بلکي د طلاق لپاره حجت تامه او کامل شهادت پکار دی).

## په بورتني صورت کي د حمل په هکله د خاوند د اقرار حکم

وَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ قَدْ أَقَرَّ بِالْحَبَلِ او که خاوند [د ښځي] د حامله کېدلو اقرار کړی وي طَلُقَتْ مِنْ غَيْرِ شَهَادَةٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا ښځه له ګواهۍ څخه بغیر طلاقیږي وَعِنْدَهُمَا[*] تُشْتَرَطُ شَهَادَةُ الْقَابِلَةِ او د صاحبینو په نېز به د دایي ګواهي شرط وي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ حُجَّةٍ لِدَعْوَاهَا الْحِنْثَ ځکه چې د ښځي د حنث د دعویٰ لپاره حجت ضروري دی [یعني د ښځي دا دعویٰ کول چې خاوند حانث سوی دی د هغه لپاره حجت ضروري دی] وَشَهَادَتُهَا حُجَّةٌ فِيهِ او د دایي [یعني د یوې ښځي] ګواهي په دې هکله حجت ده عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه [مخکي] چې موږ [د دې] بیان وکړی وَلَهُ: أَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْحَبَلِ إِقْرَارٌ بِمَا

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۴، ص:۱۸۰)، وكذا في الكفاية (ج:۴، ص:۱۸۰)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۶۸۳). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۷۸]

يُفْضِيْ إِلَيْهِ د امام صاحب دليل دا دی: چې د حمل إقرار د هغه شي اقرار دی چې د هغه وطرف ته حمل رسېدل کوي [يعني د حمل په اقرار کي د هغه شي اقرار هم شامل دی چې حمل د هغه سبب دی] وَهُوَ الْوِلَادَةُ او هغه ولادت دی [يعني حمل د ولادت سبب دی. نو د حمل اقرار به ولادت لره هم شامل وي] وَلِأَنَّهُ أَقَرَّ بِكَوْنِهَا مُؤْتَمِنَةً او په دې وجه [هم] چې خاوند د ښځې د امانتدارۍ اقرار کړی دی فَيُقْبَلُ قَوْلُهَا فِيْ رَدِّ الْأَمَانَةِ نو د امانت په واپس کولو کي به د ښځې خبره منل کيږي.

**اللغات:** ﴿حَبَلْ﴾ مصدر دی: حمل، حامله کېدل. ﴿قَابِلَةٌ﴾ دايي، دايه، هغه ښځه چې د لنګوالي په وخت کي د لنګي ښځې خدمت کوي او د کوچني په زېږيدو کي د هغې مرسته کوي. ﴿مُؤْتَمِنَةٌ﴾ د افتعال مؤنث اسمِ فاعل دی: امان ساتونکې ښځه (امانتداره).

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته ووايي: کله چې ستا کوچنی پيدا سي، نو ته پر ما طلاقه يې، او تر دې وروسته خاوند د خپلې ښځې د حمل اقرار وکړي (چې هغه حامله ده)، او بيا چې کله ښځه د ولادت دعویٰ وکړي (چې زما کوچنی پيدا سو)، نو خاوند د هغه انکار نه وکړي، نو دا ښځه له شهادت او ګواهۍ څخه بغير د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز طلاقيږي. لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په دې صورت کي هم د طلاق د وقوع لپاره د مخکي په څېر د يوې ښځې (يعني د دايي) ګواهي شرط ده.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې دغه ښځې د ولادت د دعویٰ کولو په وجه د خپل خاوند د حانث کېدلو دعویٰ کړې ده. لهذا د دې لپاره يو حجت ضروري دی. او دا حجت د يوې ښځې (دايي) په ګواهۍ سره ثابتيږي. نو ځکه به د طلاق د وقوع لپاره د يوې ښځې ګواهي شرط وي، ځکه چې د ولادت په سلسله کي همدا يوه ګواهي حجت ده.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې دلته د خاوند اقرار د ولادت د ثبوت لپاره تر ټولو ښکاره او څرګند دليل دی. او په دې اقرار کي د ولادت اقرار هم شامل دی، يعني د حمل په اقرار کولو سره ګواکي خاوند د ولادت اقرار هم کړی دی. نو ځکه اوس به د ګواهۍ هيڅ ضرورت نه وي.

دويم دليل دا دی چې کله خاوند د ښځې د حامله کېدلو اقرار وکړی، نو د هغه په ضمن کي د دې خبري اقرار هم راغلی چې دا ښځه امانتداره ده او د هغې په نس کي فقط د خاوند نطفه ده. او قاعده دا ده چې د امانت په سلسله کي د امانتدار (أمين) خبره منل کيږي، نو ځکه به دلته هم د ردُ الأمانت (يعني د ولادت) په هکله د شهادت څخه بغير د ښځې خبره منل کيږي، او ښځه به طلاقيږي.

## د حمل اکثره مودت

قال: وَأَكْثَرُ مُدَّةِ الْحَمْلِ سَنَتَانِ فرمايي: چي د حمل اکثره مودت دوه کاله دی لِقَوْلِ* عَائِشَةَ ځکه چي حضرت عائشي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي اَلْوَلَدُ لَا يَبْقٰى فِي الْبَطْنِ أَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ وَلَوْ بِظِلِّ مِغْزَلٍ کوچنی تر دوو کالو زيات د مور په نس کي نه پاتيږي که څه هم هغه د څرخې د کړي د سايې په شير اباريک او نری ا وي ا د انسان کوچنی عموماً په نهو مياشتو کي پيدا کيږي، او که څه هم کوچنی د حمل په وخت کي دومره باريک وي چي ګرسره په سترګو نه ليدل کيږي، نو بيا هم په دوو کالو کي په کرار. کرار غټېدلو سره پوره کيږي او پيدا کيږي. تر دې زيات هغه په نس کي پاتېداى نه سي. نو په دې وجه د حمل اکثره مودت دوه کاله دی. نه زيات ا

وَأَقَلُّهُ سِتَّةُ أَشْهُرٍ او د حمل کم مودت شپږ مياشتي دی ايعني کم از کم په شپږو مياشتو کي هم سالم بشپړ کوچنی پيدا کېدلای سي. تر هغه مخکي سالم کوچنی امکان نه لري، او که تر شپږو مياشتو مخکي سالم کوچنی پيدا سي. نو د هغه مطلب به دا وي چي د ښځي سره تر شپږو مياشتو مخکي وطي سوي دي، دليل راتلونکی آيت دی ا لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا [الأحقاف: ١٥] ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: چي د بچي حمل او اله تي شخخه ا د هغه پرېکول په دېرشو [۳۰] مياشتو کي وي ثُمَّ قَالَ: وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ [لقمان: ١٤] بيا يې فرمايلي دي: او اله تي څخه ا د هغه پرېکول په دوو کالو کي وي فَبَقِيَ لِلْحَمْلِ سِتَّةُ أَشْهُرٍ نو د حمل لپاره شپږ مياشتي پاته سوې ايعني په اول آيت کي د حمل مودت او د شيدو ورکولو مودت دېرش مياشتي ټاکل سوی دی. او په دويم آيت کي د شيدو ورکولو مودت دوه کاله ټاکل سوی دی چي ښځه به دوه کاله کوچني ته شيدې ورکوي لکه په دې آيت کي چي هم دغه مودت ذکر سوی دی: ''وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ''. نو د حمل لپاره شپږ مياشتي پاته سوې. لهذا په دې آيت سره ثابته سوه چي د حمل کم از کم مودت شپږ مياشتي دی ا وَالشَّافِعِيُّ يُقَدِّرُ الْأَكْثَرَ بِأَرْبَعِ سِنِينَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د حمل اکثره مودت په څلورو کالو سره اندازه کړی دی ا د هغه دليل دا دی چي ځيني کوچنيان تر دوو کالو زيات د مور په نس کي پاتيږي، لکه محمد بن عجلان چي د مور په نس کي څلور کاله پاته وو، او ضحاک بن مزاحم پنځه کاله پاته وو. لهذا دوه کاله د حمل أکثره مودت ټاکل صحيح نه دي ا وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ او زموږ روايت کړی سوی أثر د هغه په خلاف حجت دی وَالظَّاهِرُ أَنَّهَا قَالَتْهُ سَمَاعًا او ظاهري حالت همدغه دی چي حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به دا أثر اله نبي ﷺ څخه ا اورېدلی او ذکر کړی وي إِذِ الْعَقْلُ لَا

* أثر: دا أثر په سنن بيهقي کي ذکر سوی دی (سنن البيهقي، باب ما جاء في أكثر الحمل، ج:٧، ص:٧٢٨، رقم:١٥٥٥٢).

يَهْتَدِيْ إِلَيْهِ ځکه چي عقل و دې طرف ته لار نه سي پيدا کولای ايعني عقل و دغه اندازې او مودت ته نه سي رسېدلای. لهذا دا أثر د حديث په درجه کي سو. نو ځکه به د حمل أکثره مودت دوه کاله وي[.

**اللغات:** ﴿ظِلّ﴾ سايه. ﴿مَغْزَل﴾ د څرخې کړی (ګردی او سپنيزه حلقه). څرخه هغه آله ته وايي، چي د هغې په ذريعه له مالوچو (پمبې) څخه تارونه جوړيږي. د څرخې په مينځ کي د تار جوړلو لپاره د اوسپنې ګردی کړی (حلقه) وي. کله چي هغه سر ـ ګرځي راګرځي، نو سايه يې دومره انتهائي باريکه وي چي ګرسره نه ليدل کيږي. د ظِلّ مَغْزَل مطلب دا دی چي که حمل دومره کوچنی او باريک وي لکه د څرخې د کړي سايه. نو بيا هم هغه خامخا په دوو کالو کي غځيږي او دباندي راوځي. ﴿فِصَال﴾ له تي څخه د کوچني پرېکول. له شيدو څخه پرېکول.

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## د مطلقه مينځي د رانيولو په صورت کي د هغې د کوچني د نسب حکم

وَمَنْ تَزَوَّجَ أَمَةً فَطَلَّقَهَا او کوم سړی چي د يوې مينځي سره نکاح وکړي او [بيا تر وطي وروسته] طلاق ورکړي ثُمَّ اشْتَرَاهَا او بيا دا سړی هغه مينځه رانيسي فَإِنْ جَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ يَوْمِ اشْتَرَاهَا نو که هغه مينځه د رانيولو له ورځي څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کي کوچنی وزېږوي لَزِمَهُ وَإِلَّا لَمْ يَلْزَمْهُ نو د خاوند سره به هغه [يعني د کوچني نسب] لازميږي، کنې نه به لازميږي لِأَنَّهُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ وَلَدُ الْمُعْتَدَّةِ ځکه چي په اول صورت کي دا کوچنی د معتدې ښځي بچی دی فَإِنَّ الْعُلُوقَ سَابِقٌ عَلَى الشِّرَاءِ ځکه چي [په اول صورت کي] علوق پر رانيولو مخکي سوی دی وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي وَلَدُ الْمَمْلُوكَةِ او په دويم صورت کي هغه د مملوکه ښځي بچی دی لِأَنَّهُ يُضَافُ الْحَادِثُ إِلَى أَقْرَبِ وَقْتِهِ ځکه چي نوی پيدا سوی شی خپل نږدې وخت ته منسوب کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ دَعْوَةٍ نو ځکه [د نسب] دعوىٰ کول ضروري دي وَهٰذَا إِذَا كَانَ الطَّلَاقُ وَاحِدًا بَائِنًا أَوْ خُلْعًا أَوْ رَجْعِيًّا او دا تفصيل په هغه وخت کي دی کله چي يو طلاقِ بائن وي يا خلع وي يا يو طلاقِ رجعي وي أَمَّا إِذَا كَانَ اثْنَتَيْنِ لېکن که دوه طلاقه وي يَثْبُتُ النَّسَبُ إِلَى سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الطَّلَاقِ نو [په دې صورت کي] د طلاق له وخت څخه تر دوو کالو پوري نسب ثابتيږي لِأَنَّهَا حَرُمَتْ عَلَيْهِ حُرْمَةً غَلِيظَةً ځکه چي مينځه [په دوو طلاقو سره] پر خپل خاوند په حرمت غليظه سره حرامه سوه فَلَا يُضَافُ الْعُلُوقُ إِلَّا إِلَى مَا قَبْلَهُ لهذا علوق به [فقط]

له طلاق څخه د مخکني حالت وطرف ته منسوب کيږي لِأَنَّهَا لَا تَحِلُّ بِالشِّرَاءِ ځکه چې په رانيولو سره دا مينځه حلاله نه ګرځي.

**اللغات:** ﴿يُضَافُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: نسبت کول، منسوب کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د بل چا د مينځې سره نکاح وکړي، او تر وطي وروسته هغې ته طلاق ورکړي، او بيا (تر عدت وروسته) مينځه رانيسي، نو که د رانيولو له وخت څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کې دا مينځه کوچنی وزېږوي، نو د مشتري (خاوند) پر ذمه به د هغه نسب لازم وي او د مشتري سره به د هغه نسب ثابتيږي. او که له شپږو مياشتو څخه په زيات مودت کې کوچنی پيدا سي، نو بيا د مشتري (خاوند) پر ذمه د هغه نسب نه لازميږي.

دا دوه صورتونه سول. د اول صورت دليل دا دی چې تر شپږو مياشتو په کم مودت کې د کوچني په پيدا کېدلو سره دا خبره ثابته سوه چې دلته تر رانيولو مخکې دغه نطفې د مينځې په رحم کې قرار نيولی دی. او تر رانيولو مخکې مينځه معتده وه (يعني د طلاق په عدت کې وه)، نو ځکه دا د معتدې ښځې بچی سو. او د معتدې ښځې د بچي نسب له دعوی څخه بغير ثابتيږي، نو ځکه به په دې صورت کې د دغه کوچني نسب پر خاوند لازم وي. او په دويم صورت کې يعني کله چې له شپږو مياشتو څخه په زيات مودت کې کوچنی پيدا سي، نو په دې صورت کې دا خبره ښکاره سوه چې تر رانيولو وروسته د ملک يمين په حالت کې نطفې قرار نيولی دی، نو دا د مملوکه مينځې بچی سو، ځکه قاعده دا ده چې حادث (نو پيدا سوی شی) هغه وخت ته منسوب کيږي کوم چې هغه ته نژدې وي، نو ځکه موږ وايو چې په دې دويم صورت کې د نسب دعوی کول ضروري دي.

**وهذا إذا إلخ:** فرمايي چې دا مخکې بيان سوی تفصيل په هغه صورت کې دی کله چې خاوند دغه مينځې ته يو طلاق بائن يا يو طلاق رجعي ورکړی وي، يا هغې د خاوند سره خلع کړې وي، ليکن که خاوند هغې ته دوه طلاقه ورکړي وي، نو د طلاق له وخت څخه تر دوو کالو پورې نسب ثابتيږي، ځکه چې د مينځې په حق کې دوه طلاقه طلاق مغلظ دی، لهذا په دوو طلاقو سره مينځه مغلظه بائنه وګرځېده او د خاوند لپاره حرامه سوه، نو اوس د خاوند لپاره د هغې سره وطي کول ممکن نه دي، نه د نکاح په توګه او نه د ملک يمين په توګه، لهذا اوس به د مَا بَعْدَ الطَّلَاقِ وطرف ته علوق نه منسوب کيږي، بلکې هغه به د قبل الطلاق پر حالت باندې حمل کيږي، او که د طلاق له وخت څخه په دوو کالو کې دننه کوچنی پيداسو، نو د هغه نسب به ثابتيږي.

## د أم ولد جوړېدلو يو صورت

وَمَنْ قَالَ: لِأَمَتِهِ: إِنْ كَانَ فِي بَطْنِكِ وَلَدٌ او کوم سړی چې خپلې مينځې ته ووايي: که چيري ستا په نس کې کوچنی وي فَهُوَ مِنِّي نو هغه زما [له نطفې] څخه دی فَشَهِدَتْ عَلَى الْوِلَادَةِ امْرَأَةٌ او بيا يوه ښځه [د کوچني] پر ولادت ګواهي ورکړي فَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ نو هغه مينځه به د دې سړي أم ولد وي لِأَنَّ

الْحَاجَةَ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ ځکه چې حاجت [فقط] د کوچني وتعيين ته دی ايعني اوس فقط د دې خبرې ضرورت سته چې د کوچني ولادت متعين سي] وَيَثْبُتُ ذٰلِكَ بِشَهَادَةِ الْقَابِلَةِ بِالْإِجْمَاعِ او [د ولادت تعيين] بالاتفاق د دايي په ګواهۍ سره ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿قَابِلَة﴾ دايي، دايه (هغه ښځه چې د لنګوالي په وخت کي د لنګي ښځي مرسته کوي).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپلي مينځي ته ووايي: که ستا په نس کي کوچنی وي، نو هغه زما بچی دي، نو په دې سره مالک د کوچني اقرار هم وکړي او دعوی يې هم وکړه، لهذا اوس که فقط يوه ښځه د کوچني د ولادت ګواهي ورکړي (چې دا کوچنی له همدغه مينځي څخه پيدا سوی دی)، نو د کوچني نسب د مالک سره ثابتيږي، دا مسئله متفق عليها ده.

## آيا د کوچني د نسب ثبوت به د هغه مور ته متعدي کيږي، که نه؟

وَمَنْ قَالَ لِغُلَامٍ: هُوَ ابْنِيْ او کوم سړی چې ديوه هلک په باره کي وويل: چې هغه زما زوی دی ثُمَّ مَاتَ بيا دا سړی مړ سو فَجَاءَتْ أُمُّ الْغُلَامِ وَقَالَتْ أَنَا امْرَأَتُهُ او [بيا] د هلک مور راغله او ويې ويل: چې زه د دې سړي ښځه يم فَهِيَ امْرَأَتُهُ وَهُوَ ابْنُهُ يَرِثَانِهِ نو [د هلک مور] به د هغه ښځه وي او هلک به د هغه زوی وي [او] دواړه به د هغه وارثان [ميراث خوره] ګرځي وَفِي النَّوَادِرِ: جُعِلَ هٰذَا جَوَابُ الْاِسْتِحْسَانِ او په نوادر کي دا حکم استحسان ګرځول دی ايعني د استحسان همدا تقاضا ده چې هلک او ښځه (مور) دواړه وارثان وګرځي] وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يَكُونَ لَهَا الْمِيرَاثُ او قياس دا دی: چې د ښځي لپاره به ميراث نه وي لِأَنَّ النَّسَبَ كَمَا يَثْبُتُ بِالنِّكَاحِ الصَّحِيحِ يَثْبُتُ بِالنِّكَاحِ الْفَاسِدِ وَبِالْوَطْءِ عَنْ شُبْهَةٍ وَبِمِلْكِ الْيَمِينِ ځکه نسب چې څرنګه په نکاحِ صحيح سره ثابتيږي [همداسي] په نکاحِ فاسد او وطي بالشبهه او ملکِ يمين سره هم ثابتيږي فَلَمْ يَكُنْ قَوْلُهُ إِقْرَارًا بِالنِّكَاحِ نو د هغه [مړه سړي] قول به د نکاح اقرار نه وي وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْمَسْأَلَةَ فِيمَا إِذَا كَانَتْ مَعْرُوفَةً بِالْحُرِّيَّةِ وَبِكَوْنِهَا أُمُّ الْغُلَامِ او د استحسان دليل دا دی: چې مسئله په هغه صورت کي فرض کړی سوې ده کله چې د هغې ښځي آزادوالی او د هلک مور کېدل مشهوره وي وَالنِّكَاحُ الصَّحِيحُ هُوَ الْمُتَعَيَّنُ لِذٰلِكَ وَضْعًا وَعَادَةً او د نسب د ثبوت لپاره د وضع او عادت په اعتبار سره نکاحِ صحيح متعين ده.

**اللغات:** ﴿يَرِثَان﴾ د ضرب له باب څخه د تثنيه مذکر غائب صيغه ده: وارث کېدل (د مړي ميراث خوره جوړېدل، د مړي په مال کي د ميراث حقداره کېدل).

**تشریح : صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي د یوه هلک په باره کي ووېل چي "دا زما زوی دی". او بیا هغه سړی مړ سو. او د هلک مور راغله چي زه د هغه سړي ښځه یم او دا هلک د هغه زوی دی. نو استحساناً به مور او زوی دواړه د مړ سوي کس وارثان (میراث خوره) وي. لېکن د قیاس تقاضا دا ده چي فقط زوی به د هغه وارث وي او ښځه به وارثه نه وي: ځکه چي پلار فقط د زوی د نسب اقرار کړی دی. نه د مور. او د زوی اقرار د مور اقرار لره مستلزم نه دی. ځکه چي له نکاحِ صحیح څخه بغیر په نکاحِ فاسد کي هم په وطي کولو سره زوی پیدا کېدای سي. همدارنګه په وطی بالشبهه او ملکِ یمین کي هم په وطي کولو سره زوی پیدا کېدای سي. لهذا د مړ سوي کس دا قول "هٰذَا اِبْنِیْ" به فقط د زوی په حق کي مفید وي. او دا به د نکاح اقرار نه وي. نو په دې وجه به فقط زوی د هغه وارث وي. نه مذکوره ښځه.

د استحسان دلیل دا دی چي دا مسئله په هغه صورت کي فرض کړی سوې ده چي کله په خلکو کي دا خبره مشهوره وي چي دا ښځه آزاده ده. د دې لپاره چي په ملکِ یمین کي د وطي احتمال ختم سي. او دا خبره هم مشهور وي چي دا ښځه د هغه کوچني مور ده. د دې لپاره چي د نکاحِ فاسد او د وطي بالشبهه احتمال ختم سي. او فقط (د ښځي او خاوند په مېنځ کي) نکاحِ صحیح باقي پاته سي. او څرنګه چي نکاح صحیح د نسب د ثبوت لپاره متعین ده. نو ځکه به هغه کوچنی د همدغه ښځي وي. او مور او زوی دواړه به وراثان ګرځي او دواړو ته به میراث ورکول کیږي.

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

وَلَوْلَمْ يَعْلَمْ بِأَنَّهَا حُرَّةٌ او که معلومه او مشهوره نه وي چي هغه ښځه آزاده ده فَقَالَتِ الْوَرَثَةُ: أَنْتِ أُمُّ وَلَدٍ او وارثانو [ورته] ووېل: چي ته [زموږ د مړي] اُمِ ولد یې فَلَا مِيرَاثَ لَهَا نو د هغې لپاره به [حق د] میراث نه وي لِأَنَّ ظُهُورَ الْحُرِّيَّةِ بِاعْتِبَارِ الدَّارِ حُجَّةٌ فِي دَفْعِ الرِّقِّ ځکه چي د حُریت څرګندوالی د دارُ الاسلام په اعتبار سره د رقیت [غلامی] د دفع کولو لپاره حجت دی لَا فِي اسْتِحْقَاقِ الْمِيرَاثِ نه د میراث د حقداره کېدو لپاره [یعني د وراثت د استحقاق لپاره حجت نه دی].

**تشریح:** فرمایي که په تېره مسئله کي د هغې ښځي آزادوالی معلوم نه وي، او ورثاء هغه ښځه د مړ سوي کس اُمِ ولد وشماري (چي ته د هغه اُمِ ولد یې!)، نو په دې صورت کي به دا ښځه نه اُمِ ولد وي، او نه به میراث ورکول کیږي: میراث خو به ځکه نه ورکول کیږي، چي د هغې آزادوالی متعین نه دی. او که څه هم په دارُ الاسلام کي د هغې د موجودیت په وجه د هغې رقیت (غلامي) معدوم ګڼل کیږي، لېکن دارُ الاسلام فقط د رقیت په لیري کولو کي مؤثر دی، د وراثت په استحقاق کي د هغه هیڅ أثر نسته، نو ځکه به هغې ته میراث نه ورکول کیږي. خو هغه به مملوکه او اُمِ ولد هم نه شمارل کیږي، ځکه چي دارُ الاسلام له هغې څخه رقیت دفع کوي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ حَضَانَةِ الْوَلَدِ وَمَنْ أَحَقُّ بِهِ

(دا) باب د کوچني د پالنې او د هغه کس (په بيان کې) دی چې د کوچني (د پالني) زيات حقدار وي

**تشريح:** کله چي صاحب د کتاب د کوچني د نسب د ثبوت له أحکامو څخه فارغ سو. نو اوس د کوچني د پرورش او پالني أحکام بيانوي، ځکه چي د ولادت او د نسب تر ثبوت وروسته سمدستي اوله مرحله د پرورش او پالني ده.

**حضانة:** د نصر د باب مصدر دی: حَضَنَ يَحْضُنُ حَضَانَةً: کوچنی په غېږ کي اخيستل. د کوچني پرورش او پالنه کول. د کوچني څارنه کول (کوچنی د ځان سره ساتل)

د کوچني د پرورش او پالني حق اول د مور دی. او که مور نه وي، نو بيا دا حق د مورنی. انا وطرف ته (يعني د مور. د مور وطرف) نقل کيږي. په دغه آيت کي هم دې ته اشاره سوې ده: "وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ". [سورة البقرة: ٢٣٣]

## په خاوند او ښځه کي څوک د کوچني د پالني زيات حقدار دی ؟

**وَإِذَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ** او کله چي د خاوند او ښځي په مينځ کي فرقت واقع سي **فَالْأُمُّ أَحَقُّ بِالْوَلَدِ** نو مور د کوچني زياته حقداره ده [يعني کله چي ښځه له خاوند څخه جلا سي. نو د نابالغه کوچني د پالني او پرورش زياته حقدار د هغه مور ده] لِمَا رُوِيَ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ [2] ځکه روايت سوی دی چي يوې ښځي ووېل: اې د الله رسوله! إِنَّ ابْنِيْ هٰذَا كَانَ بَطْنِيْ لَهُ وِعَاءً وَحِجْرِيْ لَهُ حِوَاءً وَثَدْيِيْ لَهُ سِقَاءً دا زما زوی دی! زما نس د هغه لپاره لوښی وو او زما غېږه د هغه لپاره خيمه وه او زما سينه [تيان] د هغه لپاره ژی [او کوزه] وه وَزَعَمَ أَبُوهُ أَنَّهُ يَنْزِعُهُ مِنِّيْ او د هغه پلار وايي چي هغه دئ زما څخه اخلي فَقَالَ عليه السلام: أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَتَزَوَّجِيْ نو نبي ﷺ وفرمايل: ته د هغه زياته حقداره يې تر څو چي تا [ابله] نکاح کړې نه وي اله حديث څخه معلومه سوه چي مور د کوچني د پالني زياته حقداره ده] وَلِأَنَّ الْأُمَّ

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب من أحق بالولد، حديث رقم: ٢٢٧٦.

أَشْفَقُ وَأَقْدَرُ عَلَى الْحَضَانَةِ اعقلي دليل ا او ځکه چي مور زياته مشفقه [مهربانه] وي او [د کوچني] پر پالني زياته قدرت لرونکې وي فَكَانَ الدَّفْعُ إِلَيْهَا أَنْظَرَ نو هغې ته به د کوچني په سپارلو کي زيات مصلحت [او شفقت] وي ايعني د مور شفقت زيات وي، او د کوچني په پالنه کي ډېر مهارت هم لري، نو په دې وجه هم هغې ته کوچنی سپارل زيات غوره دي] وَإِلَيْهِ أَشَارَ الصِّدِّيْقُ: رِيْقُهَا خَيْرٌ لَهُ مِنْ شَهْدٍ وَعَسَلٍ عِنْدَكَ يَا عُمَرُ او همدې طرف ته ابو بکر صديق ﷺ [په خپل دې قول سره] اشاره کړې ده: اې عمره! د دې کوچني لپاره د خپلي مور نارې ستا له شاتو او عسلو څخه هم غوره دي قَالَهُ حِيْنَ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ ابو بکر ﷺ دا خبره هغه وخت وکړه کله چي د حضرت عمر ﷺ او د هغه د ښځي په مينځ کي فرقت واقع سو وَالصَّحَابَةُ حَاضِرُوْنَ مُتَوَافِرُوْنَ او [په هغه وخت کي ادېر صحابه حاضر وه ايعني يو وخت د حضرت عمر ﷺ او د خپلي ښځي په مينځ کي اختلاف راغلی او فرقت واقع سو، او حضرت عمر ﷺ وغوښتل چي خپل بچی څني راوګرځوي، نو حضرت ابو بکر ﷺ ورته وفرمايل چي ستا له شاتو ورکولو څخه د مور نارې د کوچني لپاره غوره دي، نو حضرت عمر ﷺ هغه کوچنی مور ته وسپاری].

**اللغات:** ﴿حِجْر﴾ غېږه. ﴿حِوٰی﴾ پناګاه (پناځای). خېمه. ﴿ثَدی﴾ تي (تيان). سينه. ﴿سِقَاء﴾ ژی (هغه مضبوطه خلته چي پخوا به له څرمني څخه جوړېده او د اوبو او شيدو د حفاظت لپاره به استعمالېده). د اوبو مَشک. کوزه. ﴿زَعَمَ﴾ ربښتيا يا دروغ ويل (زياتره د مشکوک أمر په باره کي استعماليږي). ﴿يَنْزِعُ﴾ د ضرب مضارع ده: په زوره اخيستل. کشول. راکښل. ﴿رِيْق﴾ نارې (لاړې). لعاب. ﴿عَسَل﴾ تيار سوي شات. ﴿شَهْد﴾ هغه شات کوم چي تر اوسه له موم څخه نه ځوړل سوي نه وي. ﴿مُتَوَافِرُوْن﴾ د تفاعل جمع مذکر اسمِ فاعل دی. تَوَافَرَ يَتَوَافَرُ تَوَافُرًا: زياتېدل. ډېرېدل.

**تشريح:** مسئله واضحه ده.

## تر مور وروسته به د پالني حق چا ته حاصل وي؟

وَالنَّفَقَةُ عَلَى الْأَبِ عَلَى مَا نَذْكُرُ او [د کوچني] نفقه به [د هغه] پر پلار لازمه وي چي دا به موږ [وروسته] ذکر کړو وَلَا تُجْبَرُ الْأُمُّ عَلَيْهِ او مور به پر پالني [او پرورش] نه مجبوره کيږي لِأَنَّهَا عَسَتْ تَعْجِزُ عَنِ الْحَضَانَةِ ځکه کېدای سي چي هغه [د کوچني] له پالني څخه عاجزه وي فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ أُمٌّ او که د کوچني مور نه وي فَأُمُّ الْأُمِّ أَوْلَى مِنْ أُمِّ الْأَبِ نو د مور. مور د پلار تر مور زياته حقداره ده وَإِنْ بَعُدَتْ

که څه هم هغه د ليري درجې وي لِأَنَّ هٰذِهِ الْوِلَايَةَ تُسْتَفَادُ مِنْ قِبَلِ الْأُمَّهَاتِ ځکه چي دا [د پرورش او پالني] ولايت د مندو له طرفه حاصليږي فَإِنْ لَمْ تَكُنْ أُمُّ الْأُمِّ او که د مور، مور نه وي فَأُمُّ الْأَبِ أَوْلٰى مِنَ الْأَخَوَاتِ نو د پلار مور تر خويندو زياته حقداره ده لِأَنَّهَا مِنَ الْأُمَّهَاتِ ځکه چي هغه د مندو په درجه کي ده وَلِهٰذَا تُحْرِزُ مِيرَاثَهُنَّ السُّدُسَ او له همدې وجهي هغې ته د مندو ميراث يعني شپږمه حصه ورکول کيږي وَلِأَنَّهَا أَوْفَرُ شَفَقَةً لِلْأَوْلَادِ اوځکه چي د مور پلار [هم] د کوچنيانو لپاره زيات شفقت لرونکې [زياته مهربانه] وي فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ جَدَّةٌ او که د کوچني انا [د پلار مور] نه وي فَالْأَخَوَاتُ أَوْلٰى مِنَ الْعَمَّاتِ وَالْخَالَاتِ نو [بيا] خويندي له امه ګانو او خاله ګانو څخه زيات حقداره دي لِأَنَّهُنَّ بَنَاتُ الْأَبَوَيْنِ ځکه چي هغوی [د کوچني] د مور و پلار لوڼي دي وَلِهٰذَا قُدِّمْنَ فِي الْمِيرَاثِ او له همدې کبله هغوی په ميراث کي مخکي سوي دي وَفِي رِوَايَةٍ: اَلْخَالَةُ أَوْلٰى مِنَ الْأُخْتِ لِأَبٍ او په يوه روايت کي دي: چي خاله تر مېرېزې [ناسکه] خور زياته حقداره ده [يعني هغه خور کوم چي د کوچني سره فقط په پلار شريکه وي] لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: اَلْخَالَةُ وَالِدَةٌ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: خاله مور ده [يعني خاله د مور په درجه کي ده] وَقِيلَ فِي قَوْلِهِ تَعَالٰى وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ [يوسف: ۱۰۰]: أَنَّهَا كَانَتْ خَالَتَهُ [همدارنګه] د الله د دې فرمان "وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْش" په تفسير کي ويل سوي دي: چي هغه د حضرت يوسف عليه السلام خاله وه.

**اللغات:** ﴿نَفَقَة﴾ خرچه (خرڅ)، ﴿عَسَتْ﴾ کېدای سي چي، ﴿حَضَانَة﴾ د نصر مصدر دی: حَضَنَ يَحْضُنُ حِضَانَةً: کوچنی په غېږ کي اخيستل، د کوچني پرورش او پالنه کول. (کوچنی د ځان سره ساتل)، ﴿تُسْتَفَاد﴾ د استفعال مضارع مجهوله ده: فايده اخيستل، ترلاسه کول (حاصلول). ﴿أَبَوَيْه﴾ أَبَوَيْن: پلار او مور، "وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْش" (او حضرت يوسف عليه السلام خپل پلار او مور د باداشاهۍ و تخت ته پورته کړل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د کوچني د پالني او پرورش د زمانې خرچه به پر پلار لازمه وي (د دې پوره تفصيل به په بَابُ النَّفَقَة کي ذکر سي)، او د کوچنيو د پالني زيات حقدار د هغه مور

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلح باب كيف يكتب، حديث رقم: ۳۶۹۹.

ده، لېکن که مور د کوچني پالنه نه وکړي، نو هغه به پر پالني او پرورش نه مجبوره کيږي، کېداى سي چي هغه به يو عذر او مجبوري لري او د کوچني د پالني قدرت به نه لري.

**فإن لم تكن له إلخ:** که د کوچني مور نه وي، نو بيا د هغه د تربيت او پالني حق د مورنۍ انا دى (يعني د مور، د مور حق دى)، که څه هم د ليري انا وي، او دا د پلار تر مور زياته غوره ده، ځکه د پالني حق د مور د قريبانو وطرف ته نقل کيږي، ځکه چي د مور په قريبانو کي محبت زيات وي.

او که مورنۍ انا (د مور، مور) موجوده نه وي، يا موجوده وي، لېکن هغه دا حق اخيستل نه غواړي. نو بيا به د کوچني د پالني حق د پلار مور (پلارنۍ انا) ته ورکول کيږي، د خوندو په مقابله کي هغې ته ترجيح حاصل دى؛ ځکه چي هغه د مور په درجه کي ده، همدا وجه ده که مور نه وي، نو د پلار مور ته په ميراث کي شپږمه حصه ورکول کيږي، او د تجربې لرلو په وجه هغه پر کوچني زياته مهربانه ده، نو ځکه به تر مورنۍ انا وروسته هغه د پالني زياته حقداره وي.

**فإن لم تكن له جدة إلخ:** که د پلار مور نه وي، نو بيا خور تر خاله او تر امه مخکي د کوچني د پالني حقداره ده؛ ځکه چي دا د کوچني د پلار او مور لور ده، او نسب يې هغه ته نژدې دى، همدا وجه ده که خور موجوده وي، نو خاله او امه ته ميراث نه ورکول کيږي، نو ځکه به د پالني حق هم هغې ته ورکول کيږي.

**وفي رواية إلخ:** په يوه روايت کي ذکر سوي دي چي که د پلار مور (پلارنۍ انا) موجوده نه وي او حقيقي خور هم موجوده نه وي (يعني هغه خور چي د کوچني سره په پلار او مور دواړو شريکه وي)، نو بيا تر علاتي خور (يعني تر مېرېزې خو کوم فقط په پلار ور سره شريکه وي) خاله زياته حقداره ده؛ ځکه په حديث کي خاله ته د مور درجه ورکول سوې ده، او تر خور د مور حق زيات دى، همدارنګه په دې آيت "وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ" کي هم د يوه تفسير مطابق په أَبَوَيْن (پلار او مور) کي د حضرت يوسف ؑ مور نه، بلکي خاله داخله ده، ځکه په رواياتو کي راځي چي مصر ته د حضرت يعقوب ؑ تر رسېدلو مخکي د حضرت يوسف ؑ مور مړه سوې وه، نو په دې آيت کي هم خاله ته مور ويل سوي دي، نو ځکه به د پلار تر مور وروسته خاله د کوچني د پالني زياته حقداره وي.

## تر مور وروسته به د پالني حق چا ته حاصل وي؟

**وَتُقَدَّمُ الْأُخْتُ لِأَبٍ وَأُمٍّ** او په پلار او مور شريکه [حقيقي] خور به اله نورو خوندو څخه [مخکي کيږي **لِأَنَّهَا أَشْفَقُ** ځکه چي هغه زياته مهربانه وي **ثُمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأُمِّ** بيا به په مور شريکه خور [مخکي کيږي] **ثُمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأَبِ** بيا به په پلار شريکه [مېرزى] خور [مخکي کيږي] **لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُنَّ مِنَ**

قِبَلِ الْأُمِّ ځکه چې د دوی لپاره [د پالنې] حق د مور له طرفه ثابت دی ثُمَّ الْخَالَاتُ أَوْلَى مِنَ الْعَمَّاتِ بيا خاله ګانې تر امه ګانو زيات حقداره دي تَرْجِيحًا لِقَرَابَةِ الْأُمِّ د مور قرابت ته په ترجيح ورکولو سره وَيَنْزِلْنَ كَمَا نَزَلْنَ الْأَخَوَاتُ او هغوی به [درجه په درجه] واقع کيږي لکه څرنګه چې خوندې [درجه په درجه] واقع کيږي [يعني په خاله ګانو کې به د خوندو ترتيب جاري کيږي] مَعْنَاهُ: تَرْجِيحُ ذَاتِ قَرَابَتَيْنِ ثُمَّ قَرَابَةِ الْأُمِّ د دې مطلب دا دی: چې دوو قرابتونو والا [خاله] ته به [اول] ترجيح ورکول کيږي بيا د مور قرابت والا ته [ترجيح ورکول کيږي] ثُمَّ الْعَمَّاتُ يَنْزِلْنَ كَذَلِكَ بيا به امه ګانې هم داسې [درجه په درجه] واقع کيږي.

**اللغات:** ﴿يَنْزِلْنَ﴾ د ضرب له باب څخه د جمع مؤنث غائب مضارع صيغه ده: شوه کېدل، نازلېدل، واقع کېدل. ﴿تَرْجِيحًا﴾ د تفعيل مصدر دی: غوره ګڼل، غوره والي، باندې والي (يو شی تر بل شي غوره او وړاندې ګڼل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د پرورش او پالنې د حق دار ومدار پر قرابت او زيات شفقت باندې دی، نو په دې وجه به د مور او انا د نشتوالي په صورت کې حقيقي خور تر علاتي او اخيافي خور زياته مخکې وي؛ ځکه چې هغه د کوچني سره په پلار او مور دواړو شريکه ده، او د هغې شفقت تر نورو خوندو زيات دی، بيا که حقيقي خور نه وي، نو بيا د کوچني اخيافي خور (يعني په مور شريکه خور) تر علاتي خور مخکې ده، او په ټولو آخر کې د علاتي خور (مېرېزې خور) نمبر دی؛ ځکه چې د پالنې حق د مور له طرفه ثابتيږي، لهذا کومه ښځه چې مور ته زياته نژدې وي، په هغه حساب سره به د هغې حصه او نوبت وي.

**يادونه:** خوندې پر درې قسمه دي: ①... يوه هغه چې د کوچني سره په پلار او مور دواړو شريکه وي، دې ته حقيقي او خپله خور وايي، ②... کوم چې فقط په مور شريکه وي، دې ته اخيافي خور وايي، ③.. کوم چې فقط په پلار شريکه وي، دې ته علاتي او مېرېزې (ناسکه) خور وايي.

**ثم الخالات إلخ:** که چيرې د کوچني خاله او امه دواړې موجوده وي، نو د کوچني پالنې حق به خاله ته ورکول کيږي. او په هغه کې به د حقيقي، اخيافي او علاتي خاله اعتبار درجه په درجه کيږي (يعني تر ټولو مخکې به حقيقي خاله ته د پالنې حق ورکول کيږي، بيا به...)، او که خاله نه وي، نو بيا به دا حق درجه په درجه امه ګانو ته ورکول کيږي.

## په واده کولو سره د پالني او پرورش حق ساقطېدل

وَكُلُّ مَنْ تَزَوَّجَتْ مِنْ هٰؤُلَاءِ او له دې [مذکوره] ښځو څخه چې هره يوه نکاح وکړي يَسْقُطُ حَقُّهَا نو د هغې حق ساقطيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلِأَنَّ زَوْجَ الْأُمِّ إِذَا كَانَ أَجْنَبِيًّا او ځکه کله چې د مور خاوند پردی سړی وي يُعْطِيهِ نَزْرًا وَيَنْظُرُ إِلَيْهِ شَزْرًا نو هغه به کوچني ته کمزوری [ناقص] شی ورکوي او هغه ته به په تېز [او سپک] نظر ګوري فَلَا نَظَرَ نو اد کوچني په حق کي [به شفقت ثابت نه سي قَالَ: إِلَّا الْجَدَّةَ إِذَا كَانَ زَوْجُهَا الْجَدَّ فرمايي: مګر [مورنۍ] انا کله چې د هغې خاوند نيکه [د پلار، پلار] وي لِأَنَّهُ قَامَ مَقَامَ أَبِيهِ ځکه چې نيکه د هغه د پلار قائم مقام دی فَيَنْظُرُ لَهُ نو هغه به کوچني ته [د شفقت په نظر] ګوري وَكَذٰلِكَ كُلُّ زَوْجٍ هُوَ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او همدارنګه هر هغه خاوند کوم چې د دې کوچني ذو رحم محرم [نژدې قريب] وي لِقِيَامِ الشَّفَقَةِ ځکه چې [په هغه کي] شفقت موجود دی نَظَرًا إِلَى الْقَرَابَةِ الْقَرِيبَةِ نژدې قرابت ته په نظر کولو سره وَمَنْ سَقَطَ حَقُّهَا بِالتَّزَوُّجِ او د کومې ښځې [د پالني] حق چې ساقط سي يَعُودُ إِذَا ارْتَفَعَتِ الزَّوْجِيَّةُ نو هغه [بيرته] راګرځي کله چې زوجيت [او نکاح] ختمه سي لِأَنَّ الْمَانِعَ قَدْ زَالَ ځکه چې مانع ليري سو.

**اللغات:** ﴿تَزَوَّجَتْ﴾ د تفعّل ماضي ده: واده کول. نکاح کول. ﴿نَزْر﴾ بې قيمته او بې ارزښته شی. د کمي درجې شی. کمزوری او ناقص سامان. ﴿شَزْر﴾ غصه. عيب بيانول (سپکاوی کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله په مخکنۍ ښځو (خور. خاله او داسي نورو) کي يوه ښځه د أجنبي سړي سره نکاح وکړي (يعني چې هغه سړی د کوچني ذی رحم محرم قريب نه وي). نو د هغې ښځې د پالني حق ساقطيږي. لېکن که د کوچني د ذی رحم محرم قريب سره نکاح وکړي. نو بيا د هغې د پالني حق نه ساقطيږي. مثلاً د کوچني مورنۍ انا د هغه د پلارني نيکه سره نکاح وکړي. نو د هغې د پالني حق نه ساقطيږي: دليل دا حديث دی: "أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَتَزَوَّجِي" (يعني نبي ﷺ د کوچني مور ته وويل: ته په هغه وخت کي د کوچني د پالني حقداره يې! تر څو چې دي نکاح کړې نه وي). نو ځکه به تر نکاح وروسته د پالني حق ساقطيږي. او د أجنبي (پردي) سړي سره د نکاح په وجه ځکه د پالني حق ساقطيږي. چې پر کوچني باندي د أجنبي سړي شفقت او محبت نه وي. نو کېداى سي چې کوچني ته تکليف ورکړي. او ښځه خو تر خاوند لاندي وي. د خاوند له اجازې څخه بغير هيڅ نه سي کولاى. نو ځکه به د اجنبي سړي په نکاح سره د ښځې د پالني حق ساقطيږي.

**وإلا الجدة إلخ:** د وَكُلّ مَنْ تَزَوَّجَ څخه استثناء کوي فرمايي چي که د کوچني مورنۍ انا (د مور، مور) د هغه د پلارني نيکه (د پلار، پلار) سره نکاح وکړي، نو په دې سره د مورنۍ انا حق نه ساقطيږي، ځکه چي پلارنی نیکه د پلار په درجه کي دی، او هغه هم پر کوچني شفقت او مهرباني لري، نو ځکه به د انا د پالني حق نه ساقطيږي.

**وكذلك إلخ:** فرمايي که حقداره ښځه د کوچني د ذی رحم محرم قريب سره نکاح وکړي، نو د هغې حق نه ساقطيږي، ځکه چي په دې صورت کي به قريب خامخا پر کوچني شفقت لري، نو ځکه به د ښځي د پالني حق نه ساقطيږي، همدا قاعده کليه ده.

**ومن سقط إلخ:** فرمايي که د أجنبي سړي سره د نکاح کولو په وجه د حقداري ښځي حق ساقط سي، او بيا خاوند هغې ته طلاق ورکړي، يا خاوند مړ سي او نکاح ختمه سي، نو د هغې د پالني حق بيرته راګرځي، ځکه کوم شی چي د حق مانع وو، هغه ختم سو.

## ﴿ د پالني په حق کي د ټولو ښځو ترتيب ﴾

د کوچني د پالني حقداره اول مور ده، بيا مورنۍ انا ده، بيا پلارنۍ انا ده، بيا خپله (حقيقي) خور، بيا اخيافي خور (يعني هغه خور چي د کوچني سره په مور شريکه)، بيا علّاتي خور (يعني مېرزۍ خور)، بيا حقيقي خاله ، بيا اخيافي خاله او بيا علّاتي خاله، بيا حقيقي امه، بيا اخيافي امه او بيا علاتي امه.

## ﴿ د پالني په حق کي د عصباتو ترتيب ﴾

که د کوچني د پالني لپاره په ښځو کي هيڅوک نه وي، نو بيا د کوچني اول حقدار پلار دی، بيا پلارنی نيکه (د پلار، پلار)، بيا ور نيکه...، بيا خپل (حقيقي) ورور، بيا علاتي (مېرزی) ورور، بيا د حقيقي ورور زوی (حقيقي وراره)، بيا د علّاتي ورور زوی، بيا حقيقي اکا، بيا مېرزی اکا، بيا د حقيقي اکا زوی، بيا د مېرزي اکا زوی.

## د پالني د حقداره خلکو بيان

| |
|---|
| **فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لِلصَّبِيِّ اِمْرَأَةٌ مِنْ أَهْلِهِ** او که د کوچني له کورنۍ څخه ا د هغه د پالني لپاره ا هيڅ ښځه نه وه **فَاخْتَصَمَ فِيهِ الرِّجَالُ** او ابيا ا د هغه ا د پالني ا په باره کي خلکو ا اختلاف او ا جګړه وکړه **فَأَوْلَاهُمْ أَقْرَبُهُمْ تَعْصِيبًا** نو په هغو کي به تر ټولو حقدار هغه کس وي کوم چي ا کوچني ته ا په عصبه والي کي زيات نژدې وي **لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لِلْأَقْرَبِ** ځکه چي ولايت د نژدې قريب لپاره وي **وَقَدْ عُرِفَ التَّرْتِيبُ فِي** |

مَوْضِعِهٖ او [د عصباتو] ترتیب په خپل ځای کې معلوم سو غَيْرَ أَنَّ الصَّغِيْرَةَ لَا تُدْفَعُ إِلٰى عَصَبَةٍ غَيْرِ مَحْرَمٍ لېکن کوچنۍ نجلۍ به نامحرمه عصبه ته نه ورکول کیږي كَمَوْلَى الْعَتَاقَةِ وَابْنِ الْعَمِّ لکه آزادونکی مالک او د اکا زوی تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ له فتنې څخه د حفاظت لپاره.

**اللغات:** ﴿إِخْتَصَمَ﴾ د افتعال ماضي ده: جنګ او جګړه کول. ﴿عَتَاقَة﴾ آزادونکی، مَوْلٰى عَتَاقَه: هغه مالک چې خپله مینځه آزاده کړي، مولیٰ عتاقه هم په عصباتو کې داخل دی. ﴿تَحَرُّز﴾ د تفعّل مصدر دی: ځان ساتل، ځان ژغورل (حفاظت کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د کوچني په قریبانو کې یوه داسې ښځه نه وي چې هغه د کوچني پالنه وکړي، لېکن نارینه قریبان وي چې هغوی د پالنې د حق مطالبه کوي. نو اول به هغه قریب ته ورکول کیږي کوم چې په عصبه والي کې کوچني ته زیات نژدې وي، ځکه چې دا ولایت د أقرب لپاره دی. لهذا څوک چې څومره نژدې عصبه وي، د هغه حق به مخکې وي. د عصباتو ترتیب مونږ مخکې بیان کړی، هلته یې وګورئ! او د عصباتو په آخر کې د مولیٰ عتاقه نمبر دی. لېکن ښکاره ده وي چې د مولیٰ عتاق حق فقط په نارینه کوچني کې ثابتیږي، همدا وجه وه که دیوې نجلۍ د پالنې لپاره په قریبانو کې هیڅوک پیدا نه سي، نو دا نجلۍ به مولیٰ عتاقه ته نه سپارل کیږي، همدارنګه دا نجلۍ به د اکا زامنو ته هم نه سپارل کیږي، ځکه که نجلۍ هغو ته وسپارل سي، نو د فتنې او ګړبړ خطره سته.

## هلک به څومره مودت پالل کیږي؟

وَالْأُمُّ وَالْجَدَّةُ أَحَقُّ بِالْغُلَامِ مور او انا [تر هغه وخته] د هلک [د پالنې] حقداره دي حَتّٰى يَأْكُلَ وَحْدَهٗ وَيَشْرَبَ وَحْدَهٗ وَيَلْبَسَ وَحْدَهٗ وَيَسْتَنْجِيَ وَحْدَهٗ تر دې چې هغه یوازې [تنها] خوراک او څښاک کولای سي او یوازې جامې اغوستلای سي او یوازې استنجاء کولای سي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: حَتّٰى يَسْتَغْنِيَ فَيَأْكُلُ وَحْدَهٗ وَيَشْرَبُ وَحْدَهٗ وَيَلْبَسُ وَحْدَهٗ او په جامع صغیر کې دي: تر دې چې هلک مستغني [بې نیازه] سي او یوازې خوراک او څښاک کولای سي او یوازې جامې اغوستلای سي وَالْمَعْنٰى وَاحِدٌ او [د دواړو] مطلب یوه دی لِأَنَّ تَمَامَ الْاِسْتِغْنَاءِ بِالْقُدْرَةِ عَلَى الْاِسْتِنْجَاءِ ځکه چې د استغناء پوره والی پر استنجاء باندې د قدرت په ذریعه وي [یعنې پوره استغناء هغه وخت حاصلیږي، کله چې کوچنی پر استنجاء کولو قدرت پیدا کړي] وَوَجْهُهٗ: أَنَّهٗ إِذَا اسْتَغْنٰى يَحْتَاجُ إِلَى التَّأَدُّبِ وَالتَّخَلُّقِ بِآدَابِ الرِّجَالِ وَأَخْلَاقِهِمْ او د دې

وجهه اچي تر مستغني والي وروسته به کوچنی د پلار و پالنې ته نقل کيږي اداده: چي کله کوچنی مستغني سي نو هغه د ادب زده کړي ته او د خلکو د آدابو او اخلاقو اختيارولو ته محتاج وي وَالْأَبُ أَقْدَرُ عَلَى التَّأْدِيبِ وَالتَّثْقِيفِ او پلار د ادب او تهذيب پر ور زده کولو زيات قدرت لرونکی وي وَالْخَصَّافُ قَدَّرَ الِاسْتِغْنَاءَ بِسَبْعِ سِنِينَ اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ او خصاف رَحِمَهُ الله مستغني والي په اوو کالو سره اندازه کړی دی، پر غالب حالت باندي په قياس کولو سره.

**اللغات:** ﴿وَحدَهُ﴾ يوازي، تنها، ﴿تَأَدُّب﴾ د تفعّل مصدر دی: ادب زده کول، ﴿تَخَلُّق﴾ د تفعّل مصدر دی: اخلاق اختيارول ﴿تَثْقِيف﴾ انسانيت ور زده کول، ثقافت او تهذيب ور زده کول (مُهذّب جوړول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مور او انا تر هغه وخته پوري د کوچني د پالني حقداره دي، تر څو چي کوچنی خپل ذاتي کارونه په خپله شروع کړي، او د بل چا له خدمت څخه مستغني سي، مثلاً په خپله خوراک او څښاک کوي، او په خپله استنجاء وهي (او ځان پاکوي)، جامې اغوندي، عموماً د اوو کالو په عمر کي کوچنی دغه حالت ته رسيږي، صاحب د کتاب فرمايي چي په قدوري کي د "قدرة على الاستنجاء" تذکره سوې ده، او په جامع صغير کي د مطلق "استغناء" تذکره سوې ده، خو د دواړو مطلب يو دی، ځکه چي کوچنی ته هغه وخت استغناء حاصليږي، کله چي هغه پر استنجاء کولو قادر سي، لنډه دا چي کله کوچنی پر دې شيانو قدرت پيدا کړي، نو اوس د مور او انا حق ختميږي، او کوچنی به د پلار نګراني او څارني ته نقل کيږي، د دې لپاره چي اوس د خلکو اخلاق، آداب او د کار او کسب طريقې زده کړي، او ښکاره خبره ده چي پلار ته پر دې شيانو زيات قدرت حاصل دی، ها! که تر دې وروسته د پلار په رضا کوچنی د انا او مور په پالنه کي پاته سي، نو څه پروا نه لري، لېکن که مور او پلار د کوچني په پالنه کي اختلاف وکړي، نو قاضي به تر اوو کالو وروسته دا کوچنی پلار ته حواله کوي، بيا د ښځي لپاره د کوچني د پالني حق نسته.

**والخصاف إلخ:** حضرت شيخ خصاف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي هلک غالباً د اوو کالو په عمر کي د مور له خدمت څخه مستغني کيږي، لهذا تر اوو کالو خو به کوچنی د مور او انا تر پالني لاندي وي، او تر هغه وروسته به د پلار وطرف ته نقل کيږي، صاحب د بنايې ليکلي دي: وعليه الفتوىٰ وكذا في الكافي وغيره. (بنايه ج:۵، ص:۴۷۹)

## نجلۍ به څومره مودت پالل کيږي؟

وَالْأُمُّ وَالْجَدَّةُ أَحَقُّ بِالْجَارِيَةِ حَتَّى تَحِيضَ مور او انا [تر هغه وخته] د نجلۍ [د پالنې] حقداره تر دې چې نجلۍ ته حيض راسي لِأَنَّ بَعْدَ الِاسْتِغْنَاءِ تَحْتَاجُ إِلَى مَعْرِفَةِ آدَابِ النِّسَاءِ ځکه چې تر استغناء وروسته هغه د ښځينه آدابو پېژندنې [او زده کړې] ته محتاجه وي وَالْمَرْأَةُ عَلَى ذٰلِكَ أَقْدَرُ او ښځه پر دې زيات قدرت لري وَبَعْدَ الْبُلُوغِ تَحْتَاجُ إِلَى التَّحْصِينِ وَالْحِفْظِ او تر بلوغت وروسته نجلۍ پاکوالي او اله بد کارۍ څخه] حفاظت ته محتاجه وي وَالْأَبُ فِيهِ أَقْوَى وَأَهْدَى او په دې هکله پلار زيات قوي او زيات لاربښوونکی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ ●: أَنَّهَا تُدْفَعُ إِلَى الْأَبِ إِذَا بَلَغَتْ حَدَّ الشَّهْوَةِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې نجلۍ به [هغه وخت] پلار ته حواله کيږي کله چې د شهوت حدّ ته ورسيږي لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى الصِّيَانَةِ ځکه چې [په دغه وخت کې د نجلۍ] د ساتنې ضرورت ثابت سو.

**اللغات:** ﴿جَارِيَة﴾ نجلۍ. ﴿تَحْصِين﴾ د تفعيل مصدر دی: د ښځې حفاظت کول. ښځه پاک لمنې ساتل. ﴿أَهْدَى﴾ د ضرب له باب څخه د اسم تفضيل صيغه ده: زيات لاربښوونکی (لاره ور ښوونکی). ﴿صِيَانَة﴾ حفاظت. ساتنه (ژغورنه).

**تشريح:** په دې عبارت کې د نجلۍ د پرورش (پالنې) مودت بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چې تر څو نجلۍ ته حيض راغلی نه وي او بالغه سوې نه وي، تر هغه وخته پورې مور او انا د نجلۍ د پالنې حقداره دي (او پر اووم کال به هغه پلار ته نه حواله کيږي)؛ ځکه چې په اوو کالو کې هغه د مور او انا له خدمت څخه مستغني کيږي، تر اوو کالو وروسته هغې ته د ښځينه کارونو د زده کولو ضرورت پيدا کيږي (مثلاً ډوډۍ پخول او داسي نور)، او په دې هکله ښځه زيات مهارت لري. نو ځکه به تر اوو کالو وروسته تر حيض راتلو پورې نجلۍ د مور او انا سره اوسيږي، او تر حيض راتلو وروسته د دې ضرورت پيدا کيږي چې نجلۍ له زنا او بد کارۍ څخه پاکه وساتل سي، او په دې هکله پلار زيات قوت او مهارت لري، نو ځکه به تر حيض راتلو او تر بالغه کېدلو وروسته نجلۍ د پلار حفاظت او پالنې ته حواله کيږي، او پلار به د دې زيات حقدار وي.

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۴، ص:۱۸۸)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص:۱۷۰)، وكذا في ردّ المحتار (ج:۲، ص:۶۹۶) [illegible]

**وعن محمد إلخ:** له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي کله نجلۍ د شهوت حد ته ورسيږي (چي هغه پر نهم يا لسم کال د شهوت حد ته رسيږي)، نو پلار ته به حواله کيږي، ځکه چي اوس له زنا څخه د هغې د ساتلو ضرورت پيدا سو، او په دې هکله پلار زيات قوت لري. نو ځکه به هغه ته حواله کيږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَمَنْ سِوَى الْأُمِّ وَالْجَدَّةِ أَحَقُّ بِالْجَارِيَةِ حَتَّى تَبْلُغَ حَدًّا تُشْتَهَى او له مور او انا څخه بغير [بله ښځه، تر هغه وخته] د نجلۍ [د پالني] حقداره ده تر دې چي هغه د شهوت حد ته ورسيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: حَتَّى تَسْتَغْنِيَ او په جامع صغير کي دي: تر دې چي هغه مستغني سي لِأَنَّهَا لَا تَقْدِرُ عَلَى اسْتِخْدَامِهَا ځکه چي هغه [بله ښځه] له دې نجلۍ څخه د خدمت اخيستلو قدرت [او اجازت] نه لري وَلِهَذَا لَا تُؤَاجِرُهَا لِلْخِدْمَةِ او له همدې وجهي هغه دا نجلۍ په أجرت [او کرايه] نسي نيولای فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُودُ نو [د ادب زده کولو] مقصود به حاصل نه سي [يعني که دا نجلۍ پلار ته حواله نه کړی سي، او هغه بله ښځي له دې څخه خپل کار او خدمت اخلي. نو دا نجلۍ به د ادب او اخلاقو له زده کړي څخه محرومه سي] بِخِلَافِ الْأُمِّ وَالْجَدَّةِ په خلاف د مور او انا لِقُدْرَتِهِمَا عَلَيْهِ شَرْعًا ځکه چي دا دواړه شرعاً پر خدمت اخيستلو قدرت لري.

**اللغات:** ﴿إِسْتِخْدَام﴾ د استفعال مصدر دی: خدمت اخيستل (له يو چا څخه کار اخيستل). ﴿لَا تُؤَاجِر﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي صيغه ده: أجر ورکول (أجرت او کرايه ورکول).

**تشريح: مسئله:** دا ده که له مور او انا څخه بغير بله ښځه (مثلاً خاله، يا امه...) د نجلۍ پالنه کوي، نو دا ښځه به تر هغه وخته د نجلۍ پالنه او څارنه کوي، تر څو چي هغه د شهوت حد ته ورسيږي، او کله چي هغه د شهوت قابله سي، نو پلار ته به حواله کيږي، او په جامع صغير کي ذکر سوي دي چي تر هغه وخته به يې پالنه کوي، چي نجلۍ د بل چا له خدمت څخه مستغني سي؛ ځکه کله چي نجلۍ د شهوت حد ته ورسيږي، يا له خدمت څخه مستغني سي، نو په هغې کي د کار او خدمت وړتيا پيدا کيږي او ممکنه ده چي دغه بله ښځه (خاله، يا امه...) خپل خدمت او کار ځني واخلي، او د کور په کار کي يې مصروفه کړي، حالانکي له مور او انا څخه بغير بل چا ته شرعاً دا حق نسته چي له نجلۍ څخه خلمت واخلي. همدا وجه ده چي بله ښځه هغه د خدلت لپاره په اجُرت او مزدورۍ هم نيولای نه سي، لهذا غوره همدا ده چي کله نجلۍ د شهوت حد ته ورسيږي، نو پلار ته دي حواله کړی سي، د دې لپاره چي د تعليم، آدابو او اخلاقو مقصد حاصل سي. کنې دا مقصد به فوت سي.

## د مينځې لپاره د پالنې حق

قَالَ: وَالْأَمَةُ إِذَا أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا وَأُمُّ الْوَلَدِ إِذَا أُعْتِقَتْ كَالْحُرَّةِ فِي حَقِّ الْوَلَدِ فرمايي: او مينځه چې کله خپل مالک آزاده کړي او اُم ولد چې کله آزاده کړی سي نو د کوچني په حق کي دا دواړي دآزادي ښځي په شير دي لِأَنَّهُمَا حُرَّتَانِ أَوَانَ ثُبُوتِ الْحَقِّ ځکه چې د حق ثابتېدلو په وخت کي دا دواړي ښځي آزادي دي وَلَيْسَ لَهُمَا قَبْلَ الْعِتْقِ حَقٌّ فِي الْوَلَدِ [ليکن] تر آزادېدلو مخکي د هلک [د پالني] په باره کي د دې دواړو ښځو لپاره هيڅ حق نسته لِعَجْزِهِمَا عَنِ الْحَضَانَةِ بِالِاشْتِغَالِ بِخِدْمَةِ الْمَوْلَى ځکه چې [په هغه وخت کي] د مالک په خدمت باندي د مشغولېدلو په وجه دا دواړي ښځي [د کوچني] له پالني [او پرورش] څخه عاجزه وي.

**اللغـات:** ﴿أَوَان﴾ وخـت، دوران، موسـم. ﴿إِشْـتِغَال﴾ د افتعـال مصـدر دی: مشـغول کېـدل (مشغولتيا)، مصروفه کېدل، په يو بل کار اخته کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی کـه مالک د يـو سړي سره د خپلي مينځي نکاح وکړي، او هغه مينځه کوچنی وزېږوي، يا يوه مينځه د مالک اُم ولد وي (يعني له مالک څخه يې کـوچنی پيـدا سوی وي)، نو تر حُرّيت (آزادېدلو) مخکي دا مينځه او اُم ولد د کوچني د پالني نه حقداره کيږي، ځکه چي تر حُريت مخکي دا دواړي ښځي د خپل مالک په خدمت کي مشغوله وي، او ښکاره خبره ده چي په داسي حالت کي هغوی د کوچني پالنه او پرورش نه سي کولای، نو ځکه به تر حُريت مخکي د هغوی لپاره د پالني حق نه ثابتيږي، ها! کله چي مينځه او اُم ولد آزادي کړی سي، نو د هغوی دا حق بيرته راګرځي، او د آزادي مور په شير به هغه هم تر ټولو مخکي د پالني او پرورش حقداره وي.

## د ذمي ښځي لپاره د پالني حق

وَالذِّمِّيَّةُ أَحَقُّ بِوَلَدِهَا الْمُسْلِمِ مَا لَمْ يَعْقِلِ الْأَدْيَانَ او ذمي ښځه د خپل مسلمان کوچني زياته حقداره ده تر څو چي دا کوچنی په أديانو [او مذهبونو] نه پوهيږي أَوْ يُخَافُ أَنْ يَأْلَفَ الْكُفْرَ يا دا ېېره [او خطره] وي چي د کفر سره به د هغه محبت پيدا سي لِلنَّظَرِ قَبْلَ ذٰلِكَ وَاحْتِمَالِ الضَّرَرِ بَعْدَهُ ځکه چي تر دې مخکي [د هغه په حق کي] شفقت سته او تر دې وروسته د ضرر احتمال سته.

**اللغات:** ﴿يَأْلَفُ﴾ د سمع مضارع ده: محبت کول، روږدېدل، بلد کېدل (عادت کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مسلمان سړی د ذمي (يا کتابي) ښځي سره نکاح وکړي، او له هغې څخه يې کوچنی پيدا سي، نو د دې کوچني د تربيت او پالني حق به مور تـه سـپارل کيږي، او

تر څو چې دا کوچنی د لا شعورۍ په حالت کې وي، يعني په دين او مذهب نه پوهېږي، تر هغه وخته به د مور تر پالنې لاندې وي، ځکه چې شفقت او مصلحت همدا دی چې په کوچنيوالي کې هغه د مور تر پالنې لاندې وي، لېکن کله چې هغه په دين او مذهب پوه سي، يا دا خطره پيدا سي چې شايد کوچنی به د مور له دين څخه متأثر سي او هغه به يې په فطرت کې واخښل سي، نو بيا به پلار دا کوچنی له بې ديني مور څخه واپس اخلي، ځکه که اوس مور نه پرېښوول سي، نو کوچني ته به سخت ضرر لاحق سي، لهذا په "الوَلَدُ يَتْبَعُ خَيْرَ الأَبَوَيْنِ دِيْنًا" به عمل کېږي او کوچنی به واپس له مور څخه اخيستل کېږي.

## په پالنه او تربيت کې د کوچني د اختيار مسئله

وَلَا خِيَارَ لِلْغُلَامِ وَالْجَارِيَةِ او هلک او نجلۍ لره [په خپله] هيڅ اختيار نسته [يعني څومره وخت چې مور (يا بله ښځه) د کوچني د پالنې حقداره وي، هغومره وخت به کوچنی د مور (يا بلې ښځې) سره اوسېږي، په دې دوران کې به کوچني ته دا اختيار نه ورکول کېږي چې هغه په پلار او مور کې يو انتخاب کړي، دا اختيار به تر غتوالي وروسته ورکول کېږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُمَا الْخِيَارُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغو لپاره اختيار سته لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ خَيَّرَ [1] ځکه چې نبي ﷺ اختيار ورکړی دی [د امام شافعي دليل دا دی چې نبي ﷺ د رافع بن سنان کوچني [الور] ته اختيار ورکړی او هغه مور ته ميلان وکړی، بيا نبي ﷺ دعاء وکړه "اللّٰهُمَّ اهْدِهَا"، نو بيا هغه پلار (رافع بن سنان) ته ميلان وکړی، لنډه دا چې په دې حديث سره ثابته سوه چې نبي ﷺ کوچني ته اختيار ورکړی دی، نو ځکه به کوچني ته اختيار ورکول کېږي] وَلَنَا: أَنَّهُ لِقُصُورِ عَقْلِهِ يَخْتَارُ مَنْ عِنْدَهُ الدَّعَةُ زموږ دليل دا دی: چې کوچنی به د خپلې کم عقلۍ په وجه هغه يو اختيار کړي چې د هغه سره [کوچني په] راحت وي لِتَخْلِيَتِهِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّعِبِ د دې لپاره چې هغه کوچني لوبې ته ايله کړي [يعني کوچنی به آسانۍ والا کس انتخاب کړي چې ما لوبې ته ايله کړي] فَلَا يَتَحَقَّقُ النَّظَرُ نو شفقت به ثابت نه سي [زموږ د دليل حاصل دا دی چې کوچنی بې عقل او بې شعوره وي، که هغه ته اختيار ورکول سي، نو په پلار او مور کې به هغه يو انتخاب کړي کوم يو چې کوچنی خپل سر ته ايله کوي او پر هغه هيڅ بنديز نه لګوي، او ښکاره خبره ده چې په دې توګه به هغه خراب اموخته سي، پالنه به يې پر غلطه طريقه وسي او د هغه په حق کې به شفقت معدوم سي، نو ځکه به اختيار نه ورکول کېږي، همدارنګه په صحيح روايت سره دا خبره

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب من أحق بالولد، حديث رقم: ۲۲۷۷.

هم ثابته ده چې صحابه هيڅکله و هيڅ کوچني ته اختيار ورکړى نه دى! وَقَدْ صَحَّ أَنَّ الصَّحَابَةَ لَمْ يُخَيِّرُوا او په صحيح روايت کې ذکر سوي دي چې صحابه وو کوچني ته اختيار ورکړى نه دى أَمَّا الْحَدِيثُ فَقُلْنَا قَدْ قَالَ الطَّيِّلاً: اللَّهُمَّ اهْدِهِ او پاته سو د امام شافعي حديث! نو موږ وايو چې نبي ﷺ فرمايلي دي: اې الله هغه ته هدايت وکړه فَوُفِّقَ لِاخْتِيَارِهِ الْأَنْظَرِ بِدُعَائِهِ الطَّيِّلاً نو د نبي کريم ﷺ د دعاء په برکت هغه کوچني ته د زيات شفقت والا کس د اختيارولو توفيق ورکول سو د امام شافعي د حديث دوه جوابه ورکول سوي دي، يو جواب دا دى چې نبي ﷺ هغه کوچني (د رافع بن سنان لور) ته دعاء وکړه "اللَّهُمَّ اهْدِهَا" چې اې الله هغه ته هدايت وکړې، نو د نبي ﷺ د دعاء په برکت هغه ته د داسې انسان د انتخابولو توفيق حاصل سو کوم چې د هغه په حق کې مشفق او د هغه د ژوند لپاره غوره وو (يعني پلار)، کنې هغه به د مور وطرف ته ميلان کړى واى، او ښکاره خبره ده چې له نبي ﷺ څخه وروسته نه چا ته د دې حق سته او نه د چا په دعاء دومره اثر سته. نو ځکه به کوچني اختيار ورکول کېدلاى نه سي! أَوْ يُحْمَلُ عَلَى مَا إِذَا كَانَ بَالِغًا يا دا حديث به پر هغه صورت حمل کيږي کله چې کوچنى بالغ وي دويم جواب دا دى چې هغه کوچنى بالغ وو، نو ځکه نبي ﷺ هغه ته اختيار ورکړى، او تر بلوغت وروسته خو موږ هم اختيار ورکوو. لېکن د هدايې عربي شارحينو ليکلي دي چې د مصنف رَحِمَهُ الله دا دويم جواب صحيح نه دى، ځکه چې په پورتني حديث کې د "وَهِيَ فَطِيمٌ" جمله هم ذکر سوي دى، نو ځکه به دا د کوچني پر بلوغت حمل کول صحيح نه وي! والله أعلم وعلمه أتم

**اللغات:** ﴿دَعَة﴾ راحت، آرام. ﴿تَخْلِيَة﴾ د تفعيل مصدر دى: پرېښوول، ايله کول.

**تشريح:** مسئله په عبارت کې په تفصيل سره تشريح سوه.



● تخريج: اخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب إذا أسلم أحد الأبوين، حديث رقم: ٢٢٤٤.

## فَصْلٌ (أَرَادَتِ الْمُطَلَّقَةُ أَنْ تَخْرُجَ بِوَلَدِهَا مِنَ الْمِصْرِ)

## (دا) فصل (له ښار څخه د بچي د ايستلو په بيان کي) دی

### د حضانت او پالني په مودت کي بچی د خپل پلار له ښار څخه نقل کول

وَإِذَا أَرَادَتِ الْمُطَلَّقَةُ أَنْ تَخْرُجَ بِوَلَدِهَا مِنَ الْمِصْرِ او کله چي طلاقه سوې ښځه اراده وکړي چي خپل بچی له ښار څخه وباسي [او بل ځای ته یې نقل کړي] فَلَيْسَ لَهَا ذٰلِكَ نو هغې لره د دې اختيار نسته لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِضْرَارِ بِالْأَبِ ځکه چي په دې کي پلار ته تکليف رسول دي إِلَّا أَنْ تَخْرُجَ بِهِ إِلَى وَطَنِهَا مګر دا چي هغه خپل وطن ته کوچنی يووسي وَقَدْ كَانَ الزَّوْجُ تَزَوَّجَهَا فِيهِ حال دا چي خاوند [هم] په هغه وطن کي د هغې سره نکاح کړې وي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْمَقَامَ فِيهِ عُرْفًا وَشَرْعًا ځکه چي [په نکاح کولو سره] خاوند د عرف او شرع دواړو په اعتبار سره هلته پر خپل ځان پاتېدل لازم کړه قَالَ الطَّيْلاً [1]: مَنْ تَأَهَّلَ بِبَلْدَةٍ فَهُوَ مِنْهُمْ نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم سړی چي په يو ښار کي نکاح وکړي نو دا سړی هم له هغه خلکو څخه دی وَلِهٰذَا يَصِيرُ الْحَرْبِيُّ بِهِ ذِمِّيًّا او له همدې وجهي حربي [په دارُ الاسلام کي] په نکاح کولو سره ذمي ګرځي وَإِنْ أَرَادَتِ الْخُرُوجَ إِلَى مِصْرٍ غَيْرِ وَطَنِهَا او که مُطلّقه ښځه له خپل وطن څخه بغير [بل ځای] ته [د کوچني] د ايستلو اراده وکړي وَقَدْ كَانَ التَّزَوُّجُ فِيهِ او په هغه ځای کي نکاح [هم] سوې وي أَشَارَ فِي الْكِتَابِ إِلَى أَنَّهُ لَيْسَ لَهَا ذٰلِكَ نو په متن کي و دې ته اشاره سوې ده چي [په دې صورت کي] ښځي لره د دې اختيار نسته وَهٰذَا رِوَايَةُ كِتَابِ الطَّلَاقِ او دا د کتابُ الطلاق روايت دی وَذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: أَنَّ لَهَا ذٰلِكَ او په جامع صغير کي ذکر سوي دي: چي هغې لره د دې اختيار سته لِأَنَّ الْعَقْدَ مَتَى وُجِدَ فِي مَكَانٍ يُوجِبُ أَحْكَامَهُ فِيهِ ځکه کله چي عقد يو ځای واقع کيږي نو د عقد أحکام [هم] په هغه ځای کي واجبيږي كَمَا يُوجِبُ الْبَيْعُ التَّسْلِيمَ فِي مَكَانِهِ لکه بيع چي [هم] په خپل [د بيع]

---

[1] ... والمسند (ج:١، ص:٦٢).

په ځای کي د مبيع ور سپارل واجبوي وَمِنْ جُمْلَةِ ذٰلِكَ حَقُّ إِمْسَاكِ الْأَوْلَادِ او له دې جملې څخه ايمني د عقد له أحكامو څخه د بچيانو د راګرځولو حق هم دی ايمني د عقد نکاح يو حکم دا هم دی چي کوچنی به د ځان سره ساتي او د هغه پالنه به کوي وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّ التَّزَوُّجَ فِي دَارِ الْغُرْبَةِ لَيْسَ الْتِزَامًا لِلْمُكْثِ فِيهِ عُرْفًا داول روايت دليل دا دی: چي په بېګانه [پردي] وطن کي په نکاح کولو سره د عرف له رويه هلته پاتېدل نه لازميږي وَهٰذَا أَصَحُّ او دا [روايت] زيات صحيح دي وَالْحَاصِلُ: أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْأَمْرَيْنِ جَمِيعًا: الْوَطَنِ وَوُجُودُ النِّكَاحِ او حاصل دا دی: چي [د هلک د ايستلو او نقل کولو لپاره] دوه شيان ضروري دي: وطن او [په هغه وطن کي] د نکاح موجودېدل وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا كَانَ بَيْنَ الْمِصْرَيْنِ تَفَاوُتٌ او دا ټوله تفصيل په هغه صورت کي دی کله چي د دواړو ښاونو په مينځ کي توپير [او ليري والی] وي أَمَّا إِذَا تَقَارَبَا بِحَيْثُ يُمْكِنُ لِلْوَالِدِ أَنْ يُطَالِعَ وَلَدَهُ وَيَبِيتَ فِي بَيْتِهِ لېکن که دواړه ښارونه سره نژدې وي په دې توګه چي د پلار لپاره دا ممکنه وي چي [د ورځي] خپل بچی ويني او شپه په خپل کور کي تېره کړي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو [په دې صورت کي د کوچني په نقل کولو کي] هيڅ حرج [او ګناه] نسته وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الْقَرْيَتَيْنِ او د دوو کلو [او قصبو] هم دا حکم دی وَلَوِ انْتَقَلَتْ مِنْ قَرْيَةِ الْمِصْرِ إِلَى الْمِصْرِ او که ښځه د ښار له کلي څخه د ښار وطرف ته نقل سي لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي هيڅ حرج نسته لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلصَّغِيرِ ځکه چي په دې د کوچني لپاره شفقت [او مصلحت] سته حَيْثُ يَتَخَلَّقُ بِأَخْلَاقِ أَهْلِ الْمِصْرِ ځکه چي هغه به د ښاريانو اخلاق اختيار کړي وَلَيْسَ فِيهِ ضَرَرٌ بِالْأَبِ او په دې کي د پلار لپاره هيڅ نقصان نسته وَفِي عَكْسِهِ ضَرَرٌ بِالصَّغِيرِ لېکن [د دې په برعکس صورت کي د کوچني لپاره نقصان سته لِتَخَلُّقِهِ بِأَخْلَاقِ أَهْلِ السَّوَادِ ځکه چي هغه به د أطرافي [ساراييي] خلکو اخلاق اختيار کړي فَلَيْسَ لَهَا ذٰلِكَ نو ځکه به ښځي ته د دې اختيار نه وي.

**اللغات:** ﴿تَأَهَّلَ﴾ د تفعّل مصدر دی: کورنی جوړول، واده کول. ﴿إِمْسَاك﴾ د افعال مصدر دی: راګرځول (د ځان سره ساتل). ﴿دَارُ الْغُرْبَةِ﴾ بېګانه وطن، پردېس. ﴿يُطَالِعُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: مشاهده کول، کتل. ﴿يَبِيتُ﴾ د ضرب مضارع ده: شپه تېرول. ﴿الْقَرْيَةِ﴾ قصبه، ښار ګوټی، دلته څني مراد هغه علاقه او کلي دي کوم چي د ښار په أطرافو (صحراء) کي وي، چي هغه ته زموږ په

اصطلاح کې د صحرا کلی او علاقه وايي، ﴿أَهْلَ السَّوَادِ﴾ هغه خلک کوم چې د ښار په أطرافو (صحراء) کې استوګن وي، چې هغه ته زموږ په اصطلاح سارايي (صحرايي) خلک وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي، او تر عدت تېرېدلو وروسته وغواړي چې خپل بچی له ښار څخه دباندې يو بل ځای ته يوسي، نو هغې ته شرعاً د دې اختيار نسته، ځکه چې په دې سره د پلار او زوی په مينځ کې جدايي راځي او پلار ته تکليف رسيږي، نو له پلار څخه د تکليف ليرې کولو په خاطر به د ښځې لپاره د کوچنې د نقل کولو اختيار او اجازه نه وي، ها! که دا ښځه وغواړي چې بچی خپل وطن ته بوځي، په داسې حال کې چې خاوند هم په هغه وطن کې د دې ښځې سره نکاح کړې وي، نو بيا ښځې ته د دې اختيار او اجازه سته. ځکه کله چې خاوند د ښځې په وطن کې نکاح وکړه، نو د عرف او شرع دواړو په اعتبار سره يې هلته پر ځان اوسېدل لازم کړه، عرفاً خو په دې توګه چې عموماً خاوند په هغه ښار کې اوسيږي، چې په هغه کې يې نکاح کړې وي، او شرعاً په دې توګه چې په حديث کې ذکر سوي دي: "مَنْ تَأَهَّلَ بِبَلْدَةٍ فَهُوَمِنْهُمْ" (يعني کوم کس چې په يو ښار کې نکاح وکړي، دا کس د هغه ځای له خلکو څخه شمارل کيږي)، همدا وجه ده کوم سړی چې په يو ښار کې نکاح کړې وي، نو هلته به د مقيم په څېر لمونځ کوي، لکه څرنګه چې يو صحابي فرمايي: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: مَنْ تَأَهَّلَ فِيْ بَلْدَةٍ فَيُصَلِّ بِصَلَاةِ الْمُقِيْمِ" (يعني څوک چې په يو ښار کې نکاح وکړي، نو هغه به هلته د مقيم کس په څېر لمونځ کوي)، له دې څخه معلومه سوه چې مُطَلّقه ښځه خپل وطن ته بچی نقل کولای سي.

**ولهذا يصير الحربي إلخ:** د هدايې عربي شارحينو ليکلي دي چې دا جمله د کاتب غلطي ده، په نورو کتابونو کې عبارت په دې توګه ذکر سوی دی: "أَنَّ الْمُسْتَأْمِنَ إِذَا تَزَوَّجَ ذِمِّيَّةً لَا يَصِيْرُ ذِمِّيًّا. لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا وَيَرْجِعَ"، (يعني که يو حربي کافر دارُ الاسلام ته راسي او أمن واخلي، او هلته د يوې ذمي ښځې سره نکاح وکړي، نو هغه ذمي نه ګرځي، ځکه کېدای سي چې هغه به ذمي ښځې ته طلاق ورکړي او واپس به دارُ الحرب ته ولاړ سي)، لېکن شارح د أحسن الهدايې فرمايي چې زما په نېز دا تصحيح هم مناسب نه دي، ځکه چې د "وَلِهٰذَا يَصِيْرُ" تعلق د "اِلْتَزَمَ الْمَقَامَ فِيْهِ عُرْفًا وَشَرْعًا" سره دی، نو غوره توجيه دا ده چې د هدايې دا جمله او عبارت صحيح ومنل سي او د وَلِهٰذَا يَصِيْرُ الْحَرْبِيُّ بِهِ ذِمِّيًّا... إلخ حاصل او مطلب دا را وبستل سي چې "که يو حرابي دارُ الاسلام ته راسي او امن واخلي، بيا هغه د يوې ذميه ښځې سره نکاح وکړي، نو پر داسې حربي هم د ذميه ښځې احکام جاري

کیږي، او هغه هم ذمي ګرځي"، او په دې حدیث مَنْ تَأَهَّلَ بِبَلْدَةٍ فَهُوَ مِنْهُمْ سره د دې توجیه تائید هم کیږي. والله أعلم بحقیقة الحال.

**وإن أرادت إلخ:** فرمایي که ښځه له خپل وطن څخه بغیر یو بل وطن او ښار ته د بچي د نقل کولو اراده وکړي، نو په دې باره کي دوه روایتونه دي: ① د متن (قدوري) او د مبسوط د کتابُ الطلاق روایت دا دی چي ښځي ته دا اختیار نسته چي بل وطن ته بچی نقل کړي. ② د جامع صغیر روایت دا دی چي هغې ته به دا اختیار ورکول کیږي، ځکه په کوم ځای کي چي عقد واقع کیږي. هلته د دغه عقد احکام هم جاري کیږي. مثلاً که په یو ځای کي د بیع عقد واقع سي، نو په هغه ځای کي د بیع احکام یعني د مبیع او ثمن اداء کول هم لازمیږي، او څرنګه چي د عقد په احکامو کي د بچي د راګرځولو حق هم سته (چي ښځه بچی را وګرځوي او د ځان سره یې وساتي)، نو ځکه به ښځي ته د دې اختیار ورکول کیږي. لیکن صاحب د هدایې فرمایي چي اول روایت زیات صحیح دی. او د اول روایت مطابق د بچي د نقل کولو لپاره دوې خبري ضروري دي: ① یو دا چي خپل ښار او وطن به وي. ② او په دې ښار به کي خاوند نکاح کړې وي.

خو دا ټوله تفصیلات هغه وخت دي، چي کله د دواړو ښارونو په مینځ کي دومره فاصله وي چي که پلار په ورځ کي د بچي ښار ته ولاړ سي، نو ماښام خپل ښار ته واپس نه سي راتللای (نو په دې صورت کي ښځه کوچنی هغه بل ښار ته نه سي نقل کولای)، لیکن که دواړه ښارونه دومره نژدې وي چي پلار په شپه کي خپل کور ته واپس راتللای سي (چي هغه تقریباً شپږ میله فاصله کیږي)، نو بیا په دې کي هیڅ حرج نسته چي ښځه له یوه ښار څخه بل ښار ته بچی نقل کړي، ځکه چي په دې صورت کي پلار ته تکلیف نه رسیږي، همدا حکم دوو قریو او علاقو دی، یعني که د یوه کلي او بل کلي په مینځ کي کمه فاصله وي چي پلار واپس خپل کلي او علاقې ته راتلای سي، نو داسي کلي ته هم د بچي په نقل کولو کي هیڅ حرج نسته.

**ولو انتقلت من قرية المصر إلخ:** فرمایي که یو کلی ښار ته نژدې وي، او ښځه له هغه کلي څخه ودغه ښار ته کوچنی نقل کړي، نو په دې کي هم هیڅ حرج او پروا نسته، ځکه په دې کي د بچي فایده ده چي هغه به د ښاریانو اخلاق زده کړه، او په ښه ژوند او غوره چاپېریال کي به غټ سي، او په دې کي د پلار هیڅ نقصان نسته.

لیکن که ښځه په ښار کي وي، او بیا بچی د صحراء کلي ته نقل کړي، نو ښځي ته د دې اختیار او اجازه نسته، ځکه چي په دې صورت کي به بچی د صحراء د خلکو اخلاق او عادات زده کړي، او د هغه ژوند به تباه وبرباد سي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ النَّفَقَةِ

## (دا) باب د نفقې (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب د کوچني د تربیت او پالنې احکام بیان کړل، اوس له دې ځایه د هغه شي أحکام بیانوي، کوم چې د تربیت او پالنې سره لازم دی، یعنې د نفقې أحکام بیانوي، ځکه چې له نفقې ځخه بغیر پالنه او تربیت نه پوره کیږي.

نَفَقَة اسم دی د إِنْفَاق (خرچولو) په معنیٰ سره، په اصطلاح کې نفقه دې ته وایې چې یو چا ته مسلسل خوراک او د ژوند تېرولو خرچه ورکول سي، نفقه د لاندې کسانو لپاره واجبیږي:

① ښځه (مانېنه)، ② اولاد، ③ مور او پلار، ⑤ ذوی الأرحام.

د دې ټولو تفصیل او تشریح به په کتاب کې ذکر سي.

### د ښځې د نفقې حق

قَالَ: النَّفَقَةُ وَاجِبَةٌ لِلزَّوْجَةِ عَلَىٰ زَوْجِهَا مُسْلِمَةً كَانَتْ أَوْ كَافِرَةً فرمایي: د ښځې نفقه د هغې پر خاوند واجبه ده، هغه که ښځه مسلمانه وي یا کافره وي إِذَا سَلَّمَتْ نَفْسَهَا إِلَىٰ مَنْزِلِهِ [په دې شرط] کله چې هغه خپل ځان د خاوند کور ته وسپاري فَعَلَيْهِ نَفَقَتُهَا وَكِسْوَتُهَا وَسُكْنَاهَا نو پر خاوند د هغې نفقه او د هغې جامې او د هغې استوګنه واجب ده وَالْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ [الطلاق: ۷] او أصل په دې باره کې د الله تعالیٰ دا فرمان دی: او نفقه دې ورکړي د وس [او طاقت] خاوند د خپل وس مطابق وَقَوْلُهُ تَعَالَىٰ: وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ [البقرة: ۲۳۳] او د الله تعالیٰ دا فرمان دی: د چا لپاره چې کوچنی زیږول سوی وي [یعنې پلار] پر هغه واجب ده د مندو روزي او د هغوی جامې د قاعدې مطابق وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي حَدِيثِ[1] حَجَّةِ الْوَدَاعِ: وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ [همدارنګه] د حجة الوداع والا په حدیث کې د نبي ﷺ دا قول دی: [اې خلکو!] پر تاسې د خپلو ښځو روزي او د هغوی جامې د قاعدې مطابق واجب دي وَلِأَنَّ النَّفَقَةَ جَزَاءُ الْاِحْتِبَاسِ او ځکه

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب صفة حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ۱۹۰۵.

چې نفقه د ایسار بدلو بدله ده ایعني ښځه ټوله عمر د خاوند د خدمت لپاره د هغه په کور کې ایسار او بندې وي.
نو هغې ته به د عوض او بدلې په توګه نفقه ورکول واجب وي] فَكُلُّ مَنْ كَانَ مَحْبُوسًا بِحَقٍّ مَقْصُودٍ لِغَيْرِهِ نو هر هغه کس کوم چې د بل سړي د مقصود حق په وجه ایسار [او بندي] وي كَانَتْ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ نو د هغه نفقه به پر دې سړي واجب وي أَصْلُهُ الْقَاضِي وَالْعَامِلُ فِي الصَّدَقَاتِ د دې أصل قاضي او د صدقاتو [راټولونکی] عامل دی وَهٰذِهِ الدَّلَائِلُ لَا فَصْلَ فِيهَا او په دې دلائلو کې هیڅ تفصیل نسته ایعني په دې دوو آیتونو او یوه حدیث کې د مسلمانې او کافرې ښځې تر مینځ هیڅ تفصیل او توپیر سوی نه دی، بلکې مطلق ښځې ته د نفقې ورکولو حکم سوی دی] فَتَسْتَوِي فِيهَا الْمُسْلِمَةُ وَالْكَافِرَةُ نو ځکه به په نفقه کې مسلمانه ښځه او کافره ښځه سره برابر وي.

**اللغات:** ﴿كِسْوَة﴾ جامې، کالي، ﴿سُكْنٰى﴾ په معنیٰ سره د "إسْكَان" دی، یعني یو څوک په یو کور کې اوسول (د استوګنې لپاره مفت ځای ورته برابرول)، صاحب د معجم الوسط یې داسې تعریف کړی دی: "السُّكْنٰى: الإسكان وأن تسكن إنسانا منزلًا بِلَا أُجْرَة".

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې مطلقاً د هرې ښځې (مایني) نفقه پر خاوند واجب ده، هغه که کافره وي، که مسلمانه یا کتابیه وي، په دې شرط چې هغې ښځې خپل ځان خاوند ته او د خاوند کور ته سپارلی وي، او د ښځې په نفقه کې جامې، خوراک، او د استوګنې انتظام داخل دي، او د نفقې د وجوب دلیل دا آیتونه دي: ①... لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ، ②... وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ، همدارنګه نبي ﷺ د حجة الوداع په خطبه کې خلکو ته وفرمایل: وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ. په دې آیتونو او حدیث سره په دې توګه دلیل نیول کیږي، چې په دې ټولو کې مطلقاً ښځې ته د نفقې ورکولو حکم سوی دی، او د مسلمانې یا کافرې ښځې هیڅ قید او تمیز پکښې نسته، لهذا هر هغه ښځه کوم چې خپل ذات خاوند ته حواله کړي، هغې ته به نفقه ورکول کیږي، هغه که مسلمانه وي، یا کافره وي.

**ولأن النفقه إلخ:** د نفقې د وجوب عقلي دلیل دا دی چې نفقه د محبوس او بندي او ساتلو بدله ده، نو هر هغه کس کوم چې د بل سړي د کار او خدمت لپاره ځان محبوس او بندي وساتي، نو د هغه نفقه او خرچه پر دې سړي واجبیږي، او څرنګه چې ښځه هم خپل ځان د خاوند د مقصد او منفعت لپاره محبوس کوي، نو ځکه به د هغې نفقه هم پر خاوند واجب وي، لکه قاضي او د زکات ټولونکی عامل چې هغو خپل ځانونه د مسلمانانو د معاملاتو لپاره محبوس او مقید کړي دي، نو د دوی دواړو نفقه پر

مسلمانانو ده، او د مسلمانانو له بېنک (بيت المال) څخه به دوی ته نفقه او خرچه ورکول کيږي. نو له همدې (قاضي او عامل) څخه دا خبره ښکاره سوه چې که څوک ديو سړي د کار لپاره خپل ځان محبوس کړي، نو پر دې سړي به د هغه نفقه او خرچه واجب وي.

## د نفقې د تعيين معيار

وَيُعْتَبَرُ فِي ذٰلِكَ حَالُهُمَا جَمِيعًا او د نفقې [د مقدار] په باره کې به د خاوند او ښځې دواړو د حالت اعتبار کيږي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَهٰذَا اخْتِيَارُ الْخَصَّافِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى ناتوانه بنده [صاحب د کتاب] فرمايي: چې دا د امام خصاف رَحِمَهُ الله اختيار سوی قول دی او پر همدغه فتویٰ ده وَتَفْسِيرُهُ: أَنَّهُمَا إِذَا كَانَا مُوسِرَيْنِ تَجِبُ نَفَقَةُ الْيَسَارِ او د دې وضاحت دا دی: چې که خاوند او ښځه دواړه مالداره [شتمن] وي نو د مالدارۍ والا [د اعلیٰ درجې] نفقه واجبيږي وَإِنْ كَانَا مُعْسِرَيْنِ فَنَفَقَةُ الْإِعْسَارِ او که دواړه غريبان [مفلسه] وي نو د غريبۍ والا [د کمې درجې] نفقه واجبيږي وَإِنْ كَانَتْ مُعْسِرَةً وَالزَّوْجُ مُوسِرًا او که ښځه غريبه وي او خاوند مالدار وي فَنَفَقَتُهَا دُونَ نَفَقَةِ الْمُوسِرَاتِ وَفَوْقَ نَفَقَةِ الْمُعْسِرَاتِ نو د هغې نفقه به له مالدارو ښځو څخه کمه وي او له غريبو ښځو څخه به زياته وي ايعني په دې صورت کې د مينځوی درجې نفقه واجبيږي] وَقَالَ الْكَرْخِيُّ: يُعْتَبَرُ حَالُ الزَّوْجِ او امام کرخي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې د خاوند د حالت اعتبار به کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ [الطلاق: ۷] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: نفقه دې ورکړي د وس [او طاقت] څښتن د خپل وس مطابق وَجْهُ الْأَوَّلِ قَوْلُهُ عليه السلام لِهِنْدَ امْرَأَةِ أَبِي سُفْيَانَ [1] د اول قول دليل دا دی چې نبي ﷺ د ابو سفيان ښځې "هند" ته وفرمايل خُذِيْ مِنْ مَالِ زَوْجِكِ مَا يَكْفِيكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوفِ ته د خپل خاوند له مال څخه دومره اندازه [نفقه] اخله! چې ستا او ستا د بچي لپاره په اعتدال سره کفايت کوي اِعْتَبَرَ حَالَهَا نبي ﷺ د ښځې د حالت اعتبار کړی دی وَهُوَ الْفِقْهُ او همدا د پوهې [مطابق] خبره ده فَإِنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ بِطَرِيقِ الْكِفَايَةِ ځکه چې نفقه د کفايت په توګه واجبيږي وَالْفَقِيرَةُ لَا تَفْتَقِرُ إِلٰى كِفَايَةِ الْمُوسِرَاتِ او غريبه ښځه د مالدارو ښځو کفايت ته اړتيا نه لري فَلَا مَعْنٰى لِلزِّيَادَةِ لهذا ادهغې په حق

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في الرجل يأخذ حقه من تحت يده، حديث رقم: ۳۵۳۲. وابن ماجه في كتاب التجارات، باب ما للرجل من مال ولده، حديث رقم: ۲۲۹۳.

کي اد زیاتي نفقې اواجبولو لره اهیڅ معنیٰ پاته نه سوه وَأَمَّا النَّصُّ فَنَحْنُ نَقُولُ بِمُوجَبِهِ أَنَّهُ يُخَاطَبُ بِقَدْرِ وُسْعِهِ وَالْبَاقِي دَيْنٌ فِي ذِمَّتِهِ او کوم چي [د امام شافعي ذکر سوی] آیت دی نو مونږ [هم] د هغه د حکم قائل یو چي خاوند [اوس] د خپل وس مطابق مخاطب دی او پاته [نفقه] به د هغه پر ذمه قرض وي وَمَعْنَى قَوْلِهِ بِالْمَعْرُوفِ: الْوَسَطُ او د الله تعالیٰ د دې فرمان "بِالْمَعْرُوفِ" معنیٰ ده: د مینځوي درجې [نفقه] وَهُوَ الْوَاجِبُ او همدا واجب ده وَبِهِ يَتَبَيَّنُ أَنَّهُ لَا مَعْنَى لِلتَّقْدِيرِ او په همدې [بِالْمَعْرُوفِ] سره دا ښکاره سوه چي د [یو معلوم مقدار] متعینولو لره هیڅ معنیٰ نسته كَمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ أَنَّهُ عَلَى الْمُوسِرِ مُدَّانِ وَعَلَى الْمُعْسِرِ مُدٌّ وَعَلَى الْمُتَوَسِّطِ مُدٌّ وَنِصْفُ مُدٍّ لکه څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله و دې طرف ته تګ کړی دی چي د مالدار خاوند پر ذمه دوه مده واجب دي او د غریب خاوند پر ذمه یو مُد واجب دی او د متوسط خاوند پر ذمه یو نیم مُد واجب دی لِأَنَّ مَا وَجَبَ كِفَايَةً لَا يَتَقَدَّرُ شَرْعًا فِي نَفْسِهِ ځکه کوم شی چي د کفایت په توګه واجبیږي هغه د خپل ذات په اعتبار سره شرعاً متعیّن کېدلای نه سي.

**اللغات:** ﴿مُوْسِر﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: پراخ لاسی، مالدار، شتمن. ﴿مُعْسِر﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: تنګلاسی، غریب، مفلس. ﴿يَكْفِيْكَ﴾ د ضرب مضارع ده: کافي کېدل، کفایت کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د نفقې د حقیقت او مقدار په سلسله کي مفتیٰ به قول دا دی چي د خاوند او ښځي دواړو د حالت اعتبار به کیږي، او د دوی د حالت او حیثیت مطابق به نفقه متعین کیږي. همدا قول امام خصاف رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی، او د دې قول تفسیر دا دی چي که خاوند او ښځه دواړه مالدار وي، نو پر خاوند به نَفَقَةُ الْيَسَار (د مالدارۍ او فراخۍ نفقه) واجب وي، او که دوی دواړه تنګ لاسي او غریبان وي، نو پر خاوند نَفَقَةُ الإِعْسَار (د غریبۍ او مفلسۍ والا نفقه) واجب وي. او که په خاوند او ښځه کي یو مالدار وي او بل غریب وي، نو په دې صورت کي به د مینځوي درجې نفقه واجب وي، یعني هغه به د مالداري ښځي له نفقې څخه کمه وي او د غریبي ښځي له نفقې څخه به څه زیاته وي، همدا معتبر او معتمد قول دی. د دې په خلاف د امام کرخي او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله رایه دا ده چي که په خاوند او ښځه کي یو مالدار وي او بل غریب وي، نو په دې صورت کي به د خاوند د حالت اعتبار کیږي، لهذا که هغه مالدار وي، نو پر هغه به نفقةُ الیَسَار واجب وي، او که هغه غریب وي، نو نفقةُ الإعسَار به واجب وي.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا آيت دی: "لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهٖ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰهُ اللهُ"، (يعني وس او طاقت لرونکی سړی دې د خپل وس مطابق نفقه ورکوي، او تنګلاسی (غريب) سړي ته چې الله څه ورکړي وي، د هغه مطابق دې نفقه ورکوي)، امام شافعي او امام کرخي رَحِمَهُمَا اللّٰه په دې آيت سره په دې توګه دليل نيسي چې الله تعالیٰ د مالدارۍ او غريبۍ (يُسر او عُسر) په دواړو حالتونو کې د خاوند د حالت اعتبار کړی دی، نو ځکه موږ د هغه اعتبار کوو. او بل دا چې که د ښځې د حالت اعتبار وسي، او پر غريب سړي د مالدارې ښځې نفقه واجب سي، مثلاً د مالدارې ښځې نفقه هره ورځ پنځه درهمه وي، او د هغې خاوند هره ورځ دوه درهمه ګټي، نو پاته درې درهمه به هغه غريب له کومې خوا ورکړي، دا خو بې فايدې خبره ده او تکليف ما لا يُطاق دی، نو ځکه به د سړي د حالت اعتبار کيږي.

**وجه الأول إلخ:** د اول (مفتیٰ به) قول دليل دا دی چې نبي ﷺ ته د ابو سفيان ښځې هنده بنت عتبه شکايت وکړی او ويې ويل: "يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيْحٌ لَا يُعْطِيْنِيْ مَا يَكْفِيْنِيْ وَوَلَدِيْ إِلَّا مَا أَخَذْتُ مِنْهُ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ" (اې د الله رسوله! [زما خاوند] ابو سفيان يو بخيل سړی دی او هغه ما ته دومره نفقه نه راکوي چې هغه زما او زما د بچيانو لپاره کفايت وکړي، مګر هغه [زموږ لپاره کفايت کوي] چې زه يې د ده د ناخبرۍ په حالت کې [په پټه] واخلم)، نو نبي ﷺ ورته وفرمايل: "خُذِيْ مِنْ مَالِ زَوْجِكِ مَا يَكْفِيْكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ" (يعني د خپل خاوند له مال څخه دومره اندازه اخله چې هغه ستا او ستا د بچيانو لپاره د اعتدال په توګه کافي سي). څرنګه چې په دې روايت کې نبي ﷺ د ښځې د حالت اعتبار کړی دی، لهذا موږ هم د ښځې د حالت اعتبار کوو، او د هوښيارۍ خبره هم دا ده چې د ښځې د حالت اعتبار وسي، ځکه چې نفقه د کفايت په توګه واجبيږي. او کومه ښځه چې غريبه وي، هغې لره د مالدارې ښځې کفايت پکار نه دی، نو ځکه به د ښځې د حالت او کفايت په اعتبار سره هغې ته نفقې ورکول کيږي او له ضرورت څخه زيات شی به نه ورکول کيږي.

**وأما النص إلخ:** په دې عبارت سره امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰه ته جواب ورکوي، امام شافعي په دې آيت "لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ... إلخ" سره دليل نيولی وو، چې په دې آيت کې د سړي د حالت اعتبار سوی دی اوس که د ښځې د حالت اعتبار وسي، او پر غريب سړي د مالدارې ښځې نفقه واجب سي، نو دا به تکليف ما لا يُطاق وي، د دې په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې موږ هم د دې آيت په حکم عمل کوو، هغه په دې توګه چې غريب سړی به په اوس حالت کې د خپل وس مطابق نفقه اداء کوي،

او پاته نفقه به د هغه پر ذمه قرض وي، مثلاً که د مالداري ښځې نفقه هره ورځ پنځه درهمه وي، او غريب خاوند هغې ته هره ورځ فقط دوه درهمه نفقه ورکوي، نو د هرې ورځې درې درهمه به پر هغه قرض پاتيږي، او کله چې هم غريب خاوند مالدار او شتمن سي، نو په هغه وخت کي به دا قرض اداء کوي.

**ومعنى قوله إلخ**: فرمايي چي په مخکني آيت "وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ" کي له "بِالْمَعْرُوفِ" څخه "بِالْوَسَطِ" مراد دی، يعني د أوسط درجې نفقه واجب ده (چي د هغه مطلب او حاصل دا سو چي که ښځه مالداره وي، او خاوند غريب وي، نو د أوسط درجې نفقه به واجب وي).

**وبه يتبين إلخ**: په پورتني آيت او حديث کې چي کوم دا خبره وسوه چي ښځه به معروف نفقه يعني د اعتدال مطابق نفقه اخلي او خاوند به معروف نفقه ښځې ته ورکوي، په هغه کي د معروف مطلب دا دی چي نفقه به د خاوند د حالت او د هغه وخت او موسم سره مناسب وي، نو په دې سره معلومه سوه چي په هيڅ حالت کي به هم د نفقې لپاره يو معلوم مقدار نه ټاکل کيږي، لکه څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله پر مالدار سړي دوه مُده، او پر متوسط سړي يو نيم مُد او پر غريب سړي يو مُد واجبوي، دا صحيح نه دي ځکه چي په شريعت کي نفقه د کفايت او اعتدال په اندازه واجب سوې ده (چي د هر سړي د حالت او د هغه وخت مطابق به نفقه واجب وي)، او أحوال او أوقات بېلا بېل دي، نو ځکه به د نفقې لپاره يو معلوم مقدار نه ټاکل کيږي.

## د هغه ښځي نفقه کوم چي د مهر په وجه خپل ځان خاوند ته نه سپاري

وَإِنِ امْتَنَعَتْ مِنْ تَسْلِيمِ نَفْسِهَا حَتَّى يُعْطِيَهَا مَهْرَهَا او که ښځه [خاوند ته] د خپل ځان له ور سپارلو څخه منع سي تر دې چي [خاوند] هغې ته مهر ورکړي فَلَهَا النَّفَقَةُ نو د هغې لپاره به نفقه [واجب] وي لِأَنَّهُ مَنْعٌ بِحَقٍّ ځکه چي دا [د خپل] حق په وجه منع کېدل دي فَكَانَ فَوْتُ الِاحْتِبَاسِ لِمَعْنًى مِنْ قِبَلِهِ لهذا د احتباس فوتېدل [ختمېدل] به د يو داسي معنیٰ په وجه سره وي کوم چي د خاوند له طرفه وي فَيُجْعَلُ كَلَا فَائِتٍ نو هغه [احتباس] به داسي ګڼل کيږي لکه فوت سوی چي نه وي.

**اللغات**: ﴿اِحْتِبَاس﴾ د افتعال مصدر دی: ځان محبوس او بندي ساتل، ښځه چي خپل ځان د خاوند د خدمت لپاره د هغه په کور کي ايسار او بندي وساتي او خاوند ته پر خپل ځان د جماع قدرت ورکوي، نو دې ته "احتباس" وايي، د همدغه "احتباس" په وجه ښځه د نفقې حقداره جوړيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه په دې وجه خاوند ته ځان نه حواله کوي چې ما ته خپل مهر راکړه (بيا زه تا ته خپل ځان حواله کوم)، نو په دې صورت کې به ښځې ته نفقه ورکول کيږي؛ ځکه چې ښځه د خاوند د مهر نه ورکولو په وجه بضع نه ورته سپاري، نو داسې سو لکه د خاوندد شرارت وجه چې ښځه له خپل ځان څخه احتباس ختم کړي (او خپل ځان آزاد وساتي)، او د خاوند د شرارت او د خپل حق په وجه احتباس ختمول داسې دي لکه احتباس نه ختمول. نو ځکه به ښځې ته نفقه ورکول کيږي، يعني ښځه د خپل حق په وجه ځان او بضع نه ورته سپاري. لهذا هغه ناشزه (نافرمانه) نه سوه، او ګواکې هغې خپل ځان او بضع ورته وسپارل. نو ځکه به نفقه ورکول کيږي.

## د نافرمانې ښځې نفقه

وَإِنْ نَشَزَتْ او که ښځه نافرماني [او د خاوند د حکم مخالفت] وکړي فَلَا نَفَقَةَ لَهَا حَتّٰى تَعُودَ إِلٰى مَنْزِلِهٖ نو د هغې لپاره به نفقه نه وي تر دې چې هغه خپل کور ته واپس راسي لِأَنَّ فَوْتَ الْاِحْتِبَاسِ مِنْهَا ځکه چې د احتباس فوتېدل د ښځې له طرفه دي وَإِنْ عَادَتْ جَاءَ الْاِحْتِبَاسُ او که هغه واپس [کور ته] راسي نو احتباس [هم واپس] راغلی فَتَجِبُ النَّفَقَةُ نو نفقه به واجب وي بِخِلَافِ مَا إِذَا امْتَنَعَتْ مِنَ التَّمْكِيْنِ فِي بَيْتِ الزَّوْجِ په خلاف د هغه صورت کله چې ښځه [خاوند ته پر خپل ځان باندي] له قدرت ورکولو څخه منع سي د خاوند په کور کي لِأَنَّ الْاِحْتِبَاسَ قَائِمٌ ځکه چې [په هغه صورت کې] احتباس موجود دی وَالزَّوْجُ يَقْدِرُ عَلَى الْوَطْءِ كَرْهًا او خاوند په زوره پر وطي کولو قدرت [هم] لري.

**اللغات:** ﴿نَشَزَتْ﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه د ماضي صيغه ده: نافرماني کول (سرکښي کول)، نفرت کول. ﴿تَمْكِيْن﴾ د تفعيل مصدر دی: (بل چا ته) قدرت ورکول. ﴿كَرْهًا﴾ او كُرْهًا: جبراً، په زوره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه له يو شرعي عذر څخه بغير نافرماني وکړي او له کور څخه ولاړه سي، نو تر څو چې هغه واپس کور ته نه راسي، تر هغه وخته به نفقه نه ورکول کيږي؛ ځکه چې بلته په خپله ښځې احتباس ختم کړی او فوت کړی دی. نو ځکه به د هغې نفقه هم بنديږي، لېکن کله چې هغه بيا واپس راسي او خپل ځان د خاوند په کور کي محبوس او بندي کړي، نو بيرته به نفقه ور شروع کيږي.

**بخلاف ما إلخ:** او که ښځه د خاوند په کور کي اوسيږي لېکن خاوند ته پر خپل ځان د جماع قدرت نه ورکوي، نو په دې صورت کي به هم نفقه ورکول کيږي، ځکه چې په کور کي د اوسېدلو په وجه

احتباس موجود دی، او خاوند په زوره هم جماع ورسره کولای سي، نو ځکه به دا ښځه د نفقې حقداره وي (لېکن که ښځه دومره قوي وي یا ملکي قانون داسي وي چي د هغې سره په زوره جماع کېدلای نه سي، نو بیا په کور کي د هغې د اوسېدلو باوجود به نفقه نه ورکول کیږي، ځکه چي په حقیقت کي احتباس پاته نه سو).

## د کوچنۍ نجلۍ نفقه

وَإِنْ كَانَتْ صَغِيرَةً لَا يُسْتَمْتَعُ بِهَا او که ښځه دومره کوچنۍ [نابالغه] وي چي نفع ځني اخیستل کېدلای نه سي [یعني د هغې سره جماع کول ممکن نه وي] فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو د هغې لپاره به نفقه [واجب] نه وي لِأَنَّ امْتِنَاعَ الِاسْتِمْتَاعِ لِمَعْنًى فِيهَا ځکه چي د استمتاع [جماع] ممانعت دیو داسي سبب په وجه دی چي هغه سبب په ښځي کي دی وَالِاحْتِبَاسُ الْمُوجِبُ مَا يَكُونُ وَسِيلَةً إِلَى مَقْصُودٍ مُسْتَحَقٍّ بِالنِّكَاحِ حالانکي [د نفقې] واجبونکی احتباس هغه دی کوم چي د نکاح په ذریعه د ثابت سوي مقصود وسیله وي وَلَمْ يُوجَدْ او [دلته] هغه احتباس موجود نه سو بِخِلَافِ الْمَرِيضَةِ عَلَى مَا نُبَيِّنُ په خلاف د مریضې [ناروغې] ښځي چي موږ به [د هغه حکم وروسته] بیان کړو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهَا النَّفَقَةُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د صغیرې [نا بالغه نجلۍ] لپاره به نفقه [واجب] وي لِأَنَّهَا عِوَضٌ مِنَ الْمِلْكِ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نېز نفقه د ملکیت عوض ده كَمَا فِي الْمَمْلُوكَةِ بِمِلْكِ الْيَمِينِ لکه په ملک یمین سره د مملوکه [مینځي] نفقه وَلَنَا: أَنَّ الْمَهْرَ عِوَضٌ عَنِ الْمِلْكِ او زموږ دلیل دا دی چي د ملکیت عوض مهر دی وَلَا يَجْتَمِعُ الْعِوَضَانِ عَنْ مُعَوَّضٍ وَاحِدٍ او دیوه معوض په حق کي دوه عوضونه سره جمع کېدلای نه سي فَلَهَا الْمَهْرُ دُونَ النَّفَقَةِ لهذا د هغې لپاره به [فقط] مهر وي، نه نفقه وَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ صَغِيرًا لَا يَقْدِرُ عَلَى الْوَطْءِ وَهِيَ كَبِيرَةٌ او که خاوند دومره کوچنی [او نابالغ] وي چي پر جماع کولو قدرت نه لري او ښځه غټه [بالغه] وي فَلَهَا النَّفَقَةُ مِنْ مَالِهِ نو د هغې لپاره به د خاوند له مال ځخه نفقه [واجب] وي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ قَدْ تَحَقَّقَ مِنْهَا ځکه چي د هغې له طرفه اخپل ځان او بضع او رسپارل ثابت سو وَإِنَّمَا الْعَجْزُ مِنْ قِبَلِهِ او عاجزي [فقط] د خاوند له طرفه ده فَصَارَ كَالْمَجْبُوبِ وَالْعِنِّينِ نو هغه [نابالغ خاوند] داسي سو لکه مقطوع الذکر او عنین.

**اللغات:** ﴿لَا يُسْتَمْتَعُ﴾ د استعال لـه باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: نفع اخيستل، فايده حاصلول، ﴿مَجْبُوْب﴾ هغه سړی چي د تناسل آله (ذکر) يې پرېکړی سوي وي، ﴿عِنِّيْن﴾ هغه سړی چي پر جماع کولو هيڅ قدرت نه لري (نامرد).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند غټ او بالغ وي او ښځه کوچنۍ او نابالغه وي (مثلاً د اُوو کالو وي)، او د هغې سره جماع کول ممکن نه وي، نو زموږ په نيز پر خاوند د هغې لپاره نفقه واجب نه ده، ځکه چي دلته پر جماع باندي قدرت نه ورکول ديو داسي سبب په وجه دي چي هغه په ښځه کي موجود دی، يعني د هغې کوچنيوالی او نابالغتوب، لهذا که څه هم احتباس موجود دی، خو هغه ناقص دی، نو د دې سبب په وجه به هغه له مستحقي نفقې څخه منع کيږي، ځکه چي نفقه د هغه احتباس په وجه واجبيږي کوم چي کامل او بشپړ وي، او چي په هغه کي د خاوند لپاره کما حقهٗ د وطي او استمتاع قدرت وي، او دلته داسي کامل احتباس نسته، نو ځکه به نفقه هم نه واجبيږي.

د دې په خلاف د مريضي ښځي مسئله ده، نو هغه به وروسته بيان سي، لهذا اوس تاسو په مريضي ښځي سره دليل مه نيسئ او اعتراض مه کوئ!.

**وقال الشافعي إلخ:** په دې سلسله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي د صغيره (کوچنۍ نجلۍ) لپاره نفقه واجب ده، او خاوند به هغې ته نفقه ورکوي، ځکه چي د هغه په نيز نفقه د ملکيت عوض ده، او دلته هم د نکاح ملکيت (ملک نکاح) موجود دی او ښځه د خاوند په کور کي ده، نو ځکه به پر خاوند نفقه واجب وي، لکه يو سړی چي مينځه رانيسي او د هغې مالک سي، نو پر هغه باندي هم د مينځي نفقه واجب ده.

زموږ دليل دا دی چي نفقه د ملکيت (ملک نکاح) عوض نه ده، بلکي د ملکيت عوض خو مهر دی، لهذا اوس نفقه د ملکيت (ملک نکاح) عوض نه سي جوړېدلای، کنې ديو معوض په بدله کي به دوه عوضونه سره جمع سي، او داسي نه سي کېدلای، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره به صحيح نه وي چي نفقه د ملکيت (ملک نکاح) عوض ده.

**وإن كان إلخ:** او که خاوند دومره کوچنی (نابالغه هلک) وي چي پر جماع قدرت نه لري، او ښځه بالغه وي او خپل ځان يې هغه ته سپارلی وي، نو په دې صورت کي به ښځه د نفقې مستحقه وي، او د خاوند له مال څخه به هغې ته نفقه ورکول کيږي؛ ځکه ښځي خپله بضع او خپل ځان هغه ته سپارلی دی، او د ښځي له طرفه احتباس ثابت او کامل دی، نو ځکه به نفقه ورکول کيږي، پاته سوه د خاوند عاجزي، نو هغه په خپله د خاوند له طرفه ده، په هغه کي د ښځي هيڅ دخل نسته، لهذا د دې شي په وجه به د ښځي په نفقه کي خلل نه راځي، لکه څرنگه چي د مقطوعُ الذکر او عنين ښځي ته نفقه ورکول کيږي، همداسي به د صغير او نابالغه هلک ښځي ته هم نفقه ورکول کيږي.

## د قیدي ښځې نفقه

وَإِذَا حُبِسَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَيْنٍ او کله چې د قرض په وجه ښځه قیدي کړی سي فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو د هغې لپاره به نفقه [واجب] نه وي لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ مِنْهَا بِالْمُمَاطَلَةِ ځکه چې د احتباس فوتېدل د ښځې له طرفه دي د ټال متهول کولو په وجه [نه د خاوند له طرفه] وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْهَا بِأَنْ كَانَتْ عَاجِزَةً او که د ښځې له طرفه احتباس نه وي په دې توګه چې هغه [د قرض له اداء کولو څخه] عاجزه وي فَلَيْسَ مِنْهُ نو [هم] د احتباس [فوتېدل] د خاوند له طرفه نه دي وَكَذَا إِذَا غَصَبَهَا رَجُلٌ كَرْهًا فَذَهَبَ بِهَا او همدارنګه که یو څوک په زوره [یوه] ښځه غصب کړي او [د خپل ځان سره یې] بوځي انو د هغې لپاره به هم نفقه واجب نه وي] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّ لَهَا النَّفَقَةَ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دی: چې د هغې لپاره به نفقه [واجب] وي وَالْفَتْوَى عَلَى الْأَوَّلِ او فتویٰ پر اول قول ده لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ لَيْسَ مِنْهُ لِيُجْعَلَ بَاقِيًا تَقْدِيرًا ځکه چې د احتباس فوتېدل د خاوند له طرفه نه دي چې حکماً احتباس باقي ومنل سي وَكَذَا إِذَا حَجَّتْ مَعَ مَحْرَمٍ او همدارنګه [د ښځې لپاره به نفقه واجب نه وي] کله چې هغه د یو محرم سره حج وکړي لِأَنَّ فَوْتَ الِاحْتِبَاسِ مِنْهَا ځکه چې د احتباس فوتېدل د هغې له طرفه دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّ لَهَا النَّفَقَةَ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چې د هغې لپاره به نفقه [واجب] وي لِأَنَّ إِقَامَةَ الْفَرْضِ عُذْرٌ ځکه چې فرض اداء کول یو عذر دی وَلَكِنْ تَجِبُ عَلَيْهِ نَفَقَةُ الْحَضَرِ لیکن پر خاوند به د حضر [د ښځې د مقیم والي] نفقه واجب وي دُونَ السَّفَرِ نه د سفر لِأَنَّهَا هِيَ الْمُسْتَحِقَّةُ عَلَيْهِ ځکه چې همدا [د حضر] نفقه پر خاوند واجب ده وَلَوْ سَافَرَ مَعَهَا الزَّوْجُ او که خاوند [هم] د هغې سره سفر وکړي تَجِبُ النَّفَقَةُ بِالِاتِّفَاقِ نو په اتفاق سره نفقه واجبیږي لِأَنَّ الِاحْتِبَاسَ قَائِمٌ ځکه چې احتباس موجود سو لِقِيَامِهِ عَلَيْهَا ځکه چې خاوند [هم] د ښځې سره موجود دی وَتَجِبُ نَفَقَةُ الْحَضَرِ دُونَ السَّفَرِ او [په دې صورت کې هم] د حضر نفقه واجبیږي، نه د سفر وَلَا يَجِبُ الْكِرَاءُ او کرایه نه واجبیږي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ [اوس] ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿حُبِسَتْ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهولې صیغه ده: بندي کول. قیدي کول (بندیخانې ته اچول). ﴿مُمَاطَلَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: ټال متهال کول (ټال متهول کول). چا ته په یو

کار کي پلمه کول، غولول، (د قدرت باوجود د يو چا قرض نه ورکول). ﴿حَضَر﴾ د سفر ضد. مقيم والي (په خپل وطن کي حاضر والي)، ﴿کِرَاء﴾ کرايه (أجرت).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي ښځه د قرض (او پور) په وجه قيدي کړی سي، او د هغه په وجه احتباس فوت سي، نو پر خاوند د هغې نفقه واجب نه ده؛ ځکه چي دلته د ښځي په وجه احتباس فوت سوی او ختم سوی دی، ځکه که چيري ښځي په قرض اداء کولو کي ټال متول نه کولای نو هغه به نه قيد کېدلای. لهذا د هغې ټال متول کول د احتباس سبب او دليل دی. نو ځکه به د هغې واجبه نفقه ساقطيږي.

او که د قرض نه اداء کول د مماطلت او ټال متول په وجه نه وي، بلکي د ښځي د مجبوری او غريبی په وجه دوي، او ښځه د قرض پر اداء کولو قدرت نه لري، نو په دې صورت کي هم ښځي لره دا حق نسته چي له خاوند څخه د نفقې د حق مطالبه وکړي، ځکه چي په دې صورت کي استقراض يعني قرض اخيستل د احتباس د ختمولو سبب دی. او د دې سبب په وجه به دا ښځه له واجبې نفقې څخه محروميږي.

**وکذا إذا إلخ:** فرمايي که يو بل سړی د يو چا ښځه غصب کړي او احتباس ختم سي. نو هم به دا مغصوبه ښځه د نفقې حقداره نه وي، همدا مفتیٰ به قول او ظاهر روايت دی. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه (په نوادر کي) يو روايت دا دی چي مغصوبه ښځي ته به نفقه ورکول کيږي، ځکه چي هغه په دې سلسله کي مجبوره ده، او هغې په خپله خوښه او رضا خپل ځان قيدي کړی نه دی. لهذا د ښځي له طرفه د احتباس ختمول ثابت نه سو. د اول (مفتیٰ به) قول دليل دا دی چي کله دلته د خاوند له طرفه په هيڅ ډول د احتباس ختمول ثابت سوي نه دي، نو هغه (احتباس) به حکماً هم باقي نه منل کيږي. او له احتباس څخه بغير ښځه د نفقې مستحقه نه ګرځي، نو ځکه به مغصوبه ښځي ته هم نفقه نه ورکول کيږي، همدارنګه که يوه ښځه د يو محرم (قريب) سره د حج په سفر ولاړه سي، نو هغې ته به هم نفقه نه ورکول کيږي، ځکه چي په دې صورت کي د احتباس ختمول د ښځي له طرفه دي کوم چي د نفقې د وجوب منافي دي.

لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې صورت کي هم د ښځي لپاره نفقه واجبوي. او حج کول يو عذر ګڼي، خو هغه هم پر خاوند د حَضَرْ نفقه واجبوي، نه د سَفر نفقه. ځکه چي پر خاوند فقط د حَضَر نفقه واجب سوې ده. نه د سفر (ځکه چي د سفر نفقه خو ډېره ګرانه پرېوځي او د خاوند مال ور ختموي).

**ولوسافر إلخ:** فرمايي که د ښځې سره په سفر کې د هغې خاوند هم موجود وي، نو بالاتفاق د ښځې لپاره نفقه واجبيږي، ځکه چې إحتباس موجود سو. خو په دې صورت کې به هم ښځې ته د حضر نفقه ورکوي، نه د سفر (يعني د سفر مصارف او لګښتونه به نه ورکوي)، لېکن که خاوند په خپله د تبرع او احسان په توګه هغې ته د سفر نفقه ورکړي، نو دا ښه خبره ده، همدارنګه پر خاوند د هغې کرايه هم واجب نه ده. -ځکه چې کرايه هم د سفر په نفقې کې داخله ده، او پر خاوند فقط د حضر نفقه واجب ده.

## د مريضي ښځې نفقه

**وَإِنْ مَرِضَتْ فِي مَنْزِلِ الزَّوْجِ** او که ښځه د خاوند په کور کې ناروغه سي **فَلَهَا النَّفَقَةُ** نو د هغې لپاره به [استحسانا] نفقه [واجب] وي [همدا ظاهر روايت دی] **وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا نَفَقَةَ لَهَا إِذَا كَانَ مَرَضًا يَمْنَعُ مِنَ الْجِمَاعِ** او قياس دا دی: چې د هغې لپاره به نفقه [واجب] نه وي کله چې هغه يو داسې مرض وي کوم چې له جماع څخه مانع وي **لِفَوْتِ الِاحْتِبَاسِ لِلِاسْتِمْتَاعِ** ځکه چې د استمتاع [جماع] لپاره احتباس فوت سو **وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الِاحْتِبَاسَ قَائِمٌ** د استحسان دليل دا دی: چې احتباس [اوس هم] موجود دی **فَإِنَّهُ يَسْتَأْنِسُ بِهَا** ځکه چې خاوند په هغې [مريضې ښځې] سره وحشت لېرې کوي [يعني د هغې په ذريعه د خاوند ديغت او أفكار ختميږي] **وَيَمَسُّهَا** او [خاوند] هغه مسه کولای سي **وَتَحْفَظُ الْبَيْتَ** [همدارنګه] دا ښځه [د خاوند] د کور ساتنه کوي **وَالْمَانِعُ بِعَارِضٍ** او مانع د يو عارض [مرض] په وجه دی **فَأَشْبَهَ الْحَيْضَ** نو دا د حيض سره مشابه سو **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهَا إِذَا سَلَّمَتْ نَفْسَهَا ثُمَّ مَرِضَتْ** او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې که دا ښځه [اول] خپل ځان [خاوند ته] وسپاري او بيا مريضه سي **تَجِبُ النَّفَقَةُ** نو نفقه واجبيږي **لِتَحَقُّقِ التَّسْلِيمِ** ځکه چې ورسپارل موجود سو **وَلَوْ مَرِضَتْ ثُمَّ سَلَّمَتْ** او که [اول] دا ښځه مريضه سي بيا [خپل ځان] ور وسپاري **لَا تَجِبُ** نو نفقه نه واجبيږي **لِأَنَّ التَّسْلِيمَ لَمْ يَصِحَّ** ځکه چې ورسپارل صحيح نه سو **قَالُوا**[*]: **هٰذَا حَسَنٌ**

---

[*] القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله : ورواية عن أبي يوسف وليس الفتوى عليه، بل ظاهر الرواية ... الأصح... والمختار وجوب النفقة لتحقق الاحتباس...وهو ظاهر الرواية (فتح القدير ج:۴، ص:۱۹۹)، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله : أو مرض في بيت الزوج فإن لها النفقة استحساناً، لقيام الاحتباس، وكذا لو مرضت، ثم إليه نقلت، أو فيها نقلت ولنفسها ما منعت، وعليه الفتوى (رد المحتار ج:۲، ص:۷۰۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸۱]

مشائخو فرمايلي دي: چي همدا ښه [قول] دی وَفِي لَفْظِ الْكِتَابِ مَا يُشِيرُ إِلَيْهِ او د کتاب [متن] لفظ [هم] ودې وطرف ته اشاره کوي.

**اللغات:** ﴿إِسْتِمْتَاع﴾ د استفعال مصدر دی: (له ښځې څخه) نفع اخيستل (مراد ځني جماع ور سره کول دي). ﴿يَسْتَأْنِسُ﴾ د استفعال مضارع ده: اُنس حاصلول، روږدېدل (بلد کېدل)، د يو چا په ذريعه خپل وحشت (او ديغت) ليري کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه د خاوند کور ته راسي او هلته ناروغه (مريضه) سي، نو پر خاوند د هغې نفقه واجب ده، هغه که د ښځې مرض له جماع څخه مانع وي او که نه وي. او د قياس تقاضا دا ده چي که د هغې مرض له جماع څخه مانع وي، نو نفقه واجبېدل پکار نه دي، ځکه چي د جماع په حق کي د ښځې له طرفه احتباس ختم سو، نو د هغې احتباس کامل پاته نه سو، او ښځه له کامل احتباس څخه بغير د نفقې نه حقداره کيږي.

د استحسان دليل دا دی چي احتباس اوس هم موجود دی، ځکه چي ښځه د خاوند په کور کي محبوسه ده، او خاوند په هغې سره وحشت ليري کوي (يعني د هغې په وجوديې زړه يې خوشحاله وي او په زړه کي يې ديغت او خوابدي نه وي)، او له جماع څخه بغير د هغې د هر اندام څخه نفع او خوند اخيستلای سي (او جماع هم د ډېر عمر لپاره ناممکنه ده، بلکي خدای به يې بيرته جوړه کړي)، همدارنګه هغه د خاوند د کور حفاظت کوي کوم چي د احتباس يو غټ جزء دی، او مرض يو عارضي شی دی چي په هغه کي د ښځې هيڅ دخل نسته، نو څرنګه چي حيض من جانبِ الله او عارضي دی، او په هغه سره نفقه نه بنديږي. همداسي مرض هم عارضي او من جانب الله دی، نو د هغه په وجه هم نفقه بندول پکار نه دي.

**وعن أبي يوسف إلخ:** او په دې سلسله کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چي که چيري ښځه اول خپل ځان خاوند ته حواله کړي (او د جماع لپاره خپله بضع ورته وسپاري)، او بيا مريضه سي، نو د هغې لپاره به نفقه واجب وي، او که اول هغه مريضه سي او بيا يې ورته وسپاري، نو نفقه به واجب نه وي؛ ځکه چي په اول صورت کي د ښځې له طرفه خپل ځان (او بضع) ور سپارل موجود سو، او په دويم صورت کي د مرض په وجه ور سپارل صحيح نه سو (يعني تر مرض وروسته ورسپارل داسي سو لکه نه ورسپارل). او زموږ علماؤ همدغه تفصيل مناسب او ښه ګڼلی دی، او د قدوري په عبارت (يعني په متن کي) هم و دې طرف ته اشاره سوې ده (ځکه چي په متن کي ذکر سوي دي: مَرِضَتْ فِيْ مَنْزِلِ الزَّوْجِ. په دې جمله کي ودې ته اشاره سوې ده چي که ښځه اول ځان ورته وسپاري او بيا ناروغه سي، نو نفقه به ور کول کيږي).

## پر مالدار خاوند د خپلې ښځې د خادم نفقه

قَالَ: وَتُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ النَّفَقَةُ إِذَا كَانَ مُوسِرًا وَنَفَقَةُ خَادِمِهَا فرمايي: کله چي خاوند مالدار [شتمن] وي نو پر هغه به [د خپلې ښځې] نفقه او د هغې د خادم نفقه [هم] واجب وي وَالْمُرَادُ بِهٰذَا بَيَانُ نَفَقَةِ

الْخَادِمِ او مقصود په دې [عبارت] سره د خادم نفقه بیانول دي وَلِهٰذَا ذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَتُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ إِذَا كَانَ مُوسِرًا نَفَقَةُ خَادِمِهَا او له همدې وجهې [د قدوري] په ځینې نسخو کې داسې ذکر سوي دي: او کله چې خاوند مالدار وي نو پر هغه به د ښځې د خادم نفقه [هم] واجب وي وَوَجْهُهُ: أَنَّ كِفَايَتَهَا وَاجِبَةٌ عَلَيْهِ او د دې وجه دا ده: چې پر خاوند د ښځې کفایت واجب دی وَهٰذَا مِنْ تَمَامِهَا او د خادم نفقه د ښځې د کفایت له بشپړتیا څخه ده [یعني د ښځې کفایت په خادم سره پوره کیږي] إِذْ لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ ځکه چې له خادم څخه د ښځې چاره نسته.

**اللغات:** ﴿مُوْسِر﴾ د افعال اسم فاعل دی: مالدار، شتمن، دلته مراد له مالدار څخه هغه خاوند دی چې دومره مال ور سره وي چې هغه ته خیرات او صدقه ورکول حرام وي، دومره مال ضروري نه دی چې پر هغه زکاة واجبیږي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند مالدار وي، نو پر هغه د ښځې د نفقې سره د ښځې د خادم (مزدور) نفقه هم واجب ده، خادم که نر وي او که ښځه وي. او په دې عبارت سره اصل مقصود د خادم نفقه بیانول دي (ځکه د ښځې د نفقې بیان خو مخکې هم وسو)، له همدې وجهې د قدوري په ځینو نسخو کې دا عبارت داسې ذکر سوی دی: "وَتُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ إِذَا كَانَ مُوْسِرًا نَفَقَةُ خَادِمِهَا"، یعني په هغه کې فقط د خادم د نفقې وضاحت او صراحت موجود دی؛ د خادم د نفقې د وجوب دلیل دا دی چې پر خاوند د ښځې کفایت کول ضروري دي، او د ښځې د خدمت لپاره د یوه خادم موجودېدل د هغې له کفایت څخه دی، نو ځکه به د ښځې د خادم نفقه هم واجب وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَا تُفْرَضُ لِأَكْثَرَ مِنْ نَفَقَةِ خَادِمٍ وَاحِدٍ او د یوه خادم له نفقې څخه به د زیات نه واجبیږي [یعني پر مالدار خاوند به فقط د ښځې یوه خادم ته نفقه ورکول واجب وي، نه بل خادم ته] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: تُفْرَضُ لِخَادِمَيْنِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د دوو خادمانو لپاره به نفقه واجبیږي لِأَنَّهَا تَحْتَاجُ إِلَى أَحَدِهِمَا لِمَصَالِحِ الدَّاخِلِ وَإِلَى الْآخَرِ

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: ...المرأة إذا كانت من بنات الأشراف، ولها خدم، يجبر الزوج على نفقه الخادمين...وبأخوذ به عند المشائخ قول أبي يوسف (ردّ المحتار ج:۲، ص:۷۱۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸۲]

لِمَصَالِحِ الْخَارِجِ ځکه چې ښځه يوه خادم ته د داخلي [کورني] مصالحو [او ضروررياتو] لپاره اړتيا لري او بل خادم ته د بهرني مصالحو لپاره اړتيا لري وَلَهُمَا: أَنَّ الْوَاحِدَ يَقُومُ بِالْأَمْرَيْنِ او د طرفينو دليل دا دی: چې يو خادم [داخلي او بهرني] دواړه کارونه پوره کولای سي فَلَا ضَرُورَةَ إِلَى اثْنَيْنِ لهذا دوو خادمانو ته اړتيا نسته وَلِأَنَّهُ لَوْ تَوَلَّى كِفَايَتَهَا بِنَفْسِهِ او ځکه که خاوند په خپله د ښځي د کفايت ذمه واري واخلي [چې ستا ټوله کارونه زه کوم] كَانَ كَافِيًا نو دا کافي دي فَكَذَا إِذَا أَقَامَ الْوَاحِدَ مَقَامَ نَفْسِهِ نو همداسي [به دا هم کافي وي] کله چې خاوند پر خپل ځای يو [خادم] ودروي وَقَالُوا: إِنَّ الزَّوْجَ الْمُوسِرَ يَلْزَمُهُ مِنْ نَفَقَةِ الْخَادِمِ مَا يَلْزَمُ الْمُعْسِرَ مِنْ نَفَقَةِ امْرَأَتِهِ مشائخو فرمايلي دي: پر مالدار خاوند به د خادم د نفقې دومره مقدار لازم وي څومره مقدار چې پر غريب سړي د خپلي ښځي له نفقې څخه لازميږي [يعني مالدار خاوند به د خپلي ښځي خادم ته دومره نفقه ورکوي، څومره نفقه چې غريب سړی خپلي ښځي ته ورکوي] وَهُوَ أَدْنَى الْكِفَايَةِ او هغه د ادنیٰ درجې کفايت دی [يعني د غريب سړي نفقه د ادنیٰ درجې نفقه ده کوم چې د ښځي لپاره کافي سي] وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: إِذَا كَانَ مُوسِرًا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ لَا تَجِبُ نَفَقَةُ الْخَادِمِ عِنْدَ إِعْسَارِهِ او په متن کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول: "إِذَا كَانَ مُوسِرًا" و دې طرف ته اشاره ده چې د خاوند د غريبوالي په وخت کي پر هغه د خادم نفقه نه واجبيږي وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد روايت دی وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح [روايت] دی خِلَافًا لِمَا قَالَهُ مُحَمَّدٌ په خلاف د هغه کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله ويلي دي لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْمُعْسِرِ أَدْنَى الْكِفَايَةِ ځکه چې واجب پر غريب سړي د ادنیٰ درجې کفايت دی وَهِيَ قَدْ تَكْتَفِي بِخِدْمَةِ نَفْسِهَا او کله ښځه [په خپله] د خپل خدمت لپاره کافي وي [لهذا د خادم د نفقې ضرورت نسته].

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله او د جمهورو علماؤ په نيز پر خاوند فقط د ښځي د يوه خادم نفقه واجب ده، ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د ښځي د دوو خادمانو نفقه پر خاوند واجبېدای سي، ځکه چې د کور او بهر د ضرورياتو په حساب سره ښځي ته د دوو خادمانو ضرورت وي. نو د هغې د ضرورت پوره کولو لپاره به دوه خادمان مقرر کيږي. او پر خاوند به د دواړو نفقه واجب وي.

**ولهما إلخ**: د طرفينو دليل دا دی چې يو خادم هم د کور او بهر ضروريات پوره کولای سي، لهذا د دوو خادمانو ضرورت نسته. دويم دليل دا دی چې که خاوند په خپله د ښځي ضروريات پوره کوي، نو دا کافي دي، لهذا کله چې خاوند پر خپل ځای يو خادم د ښځي د ضرورياتو لپاره مقرر کړي، نو هغه به هم کافي وي.

**قالوا إلخ**: فرمايي چې د خادم د نفقې د مقدار په هکله مشائخو فرمايلي دي چې د خادم لپاره پر مالدار سړي دومره نفقه واجب ده، څومره چې پر غريب سړي د خپلي ښځي لپاره واجب ده، او پر غريب سړي د ادنیٰ درجې نفقه واجب ده، يعني د ډوډۍ سره مالک يا شيدې ورکول (ډوډۍ او غوښې د اعلیٰ درجې نفقه ده، او ډودۍ او د زيتون تېل د مينځوې درجې نفقه ده، او ډوډۍ، مالګه او شيدې د ادنیٰ درجې نفقه ده).

**وقوله في الكتاب إلخ**: په متن کي ذکر سوي دي "إِذَا كَانَ مُوسِرًا"، په دغه قيد سره ودې خبري ته اشاره سوې ده چې د خادم نفقه په هغه صورت کې پر خاوند واجب ده، کله چې هغه مالدار وي، لېکن که خاوند غريب او مفلس وي، نو بيا پر هغه د خادم نفقه واجب نه ده، همدا روايت حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل کړی دی، او همدا صحيح روايت دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې که د ښځي سره مخکي يو خادم وي، نو د هغه نفقه هم پر غريب خاوند لازم ده، خو د صحيح روايت په مقابله کي د هغه قول هيڅ حيثيت نه لري، د صحيح روايت دليل دا دی چې پر غريب خاوند د ښځي د ادنیٰ درجې کفايت واجب دی (ځکه چې نفقه د هر سړي د حالت مطابق واجبيږي)، او ښځه (د مجبورۍ په وخت کي) خپل کار په خپله هم کولای سي، نو ځکه به پر غريب خاوند د خادم نفقه واجب او لازم نه وي.

## که خاوند له نفقې څخه عاجز سي؟

وَمَنْ أَعْسَرَ بِنَفَقَةِ امْرَأَتِهِ او څوک چې د خپلي ښځي له نفقې څخه عاجز سي لَمْ يُفَرَّقْ بَيْنَهُمَا نو په دوی دواړو کي به تفريق نه کيږي ايعني قاضي به د دوی په مينځ کي تفريق نه واقع کوي، او نکاح به نه فسخ کوي، او ښځي ته هم پکار دي چې له قاضي او حاکم څخه د نکاح فسخ کولو مطالبه نه وکړي ا وَيُقَالُ لَهَا: اِسْتَدِيْنِيْ عَلَيْهِ او ښځي ته به ويل کيږي: چې د خپل خاوند پر ذمه ايعني د خپل خاوند په نامه ا قرض اخله! ا او په هغه ګزاره کوه! ا وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُفَرَّقُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې ا د دوی په مينځ کي به ا تفريق کيږي ايعني کله چې خاوند له نفقې څخه عاجزه سي، نو قاضي به د دوی په مينځ کي تفريق واقع

کوي [ لِأَنَّهُ عَجَزَعَنِ الْإِمْسَاكِ بِالْمَعْرُوفِ ځکه چې خاوند له إمساک بالمعروف څخه عاجز سو فَيَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ فِي التَّفْرِيقِ لهذا په تفریق کولو کې به قاضي د هغه قائم مقام کیږي كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ لکه په قطع الذکر او عنین کېدلو کې [چې قاضي قائم مقام کیږي] بَلْ أَوْلَى بلکې دا کار [تفریق] به په درجه اولیٰ کیږي لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى النَّفَقَةِ أَقْوَى ځکه چې د نفقې ضرورت قوي دی [د امام شافعي د دلیل حاصل دا دی چې څرنګه قاضي په هغه وخت کې د خاوند نائب جوړیږي او تفریق واقع کوي کله چې خاوند له جماع څخه عاجز سي، همداسې به له نفقې څخه د خاوند د عاجزه کېدلو په صورت کې قاضي په درجه اولیٰ تفریق واقع کوي، ځکه چې له جماع څخه بغیر انسان ژوندی پاتېدای سي، لیکن له نفقې څخه بغیر ژوندی پاتېدل مشکل دي، نو ځکه به دلته په درجه اولیٰ تفریق واقع کیږي] وَلَنَا: أَنَّ حَقَّهُ يَبْطُلُ زموږ دلیل دا دی: چې د خاوند حق باطلیږي [یعني په تفریق واقع کېدلو سره د خاوند حق باطلیږي] وَحَقَّهَا يَتَأَخَّرُ او د ښځې حق مؤخر کېدای سي [په دې توګه چې قاضي تفریق واقع نه کړي، بلکې د نفقې حق د خاوند پر ذمه قرض متعین کړي او ښځې ته ووایي: چې ته د خاوند په نامه قرض اخله. او کله چې خاوند مالدار سي نو ستا قرض به اداء کوي] وَالْأَوَّلُ أَقْوَى فِي الضَّرَرِ او په نقصان کې اول زیات قوي دی [یعني که تفریق واقع سي او د خاوند حق باطل سي، نو دا د خاوند او ښځې دواړو په حق کې ښکاره نقصان دی، لیکن که تفریق واقع نه سي، بلکې نفقه د خاوند پر ذمه قرض سي، نو دا د دواړو په حق کې مفیده خبره ده] وَهٰذَا لِأَنَّ النَّفَقَةَ تَصِيرُ دَيْنًا بِفَرْضِ الْقَاضِي او دا ځکه چې نفقه د قاضي په متعینولو سره [د خاوند پر ذمه] قرض ګرځي [یعني د ښځې د نفقې حق ځکه مؤخر کېدای سي چې که چیرې قاضي د خاوند پر ذمه نفقه د قرض په توګه متعین کړي (او ښځې ته ووایي چې د خاوند په نامه قرض اخله!). نو هغه قرض ګرځي، او کله چې خاوند مالدار سي، په هغه زمانه کې به ښځه له خاوند څخه خپل د نفقې قرض اخلي (یعني د قرض اداء کولو مطالبه به ځني کوي) ، لهذا له نفقې څخه د خاوند د عاجزه کېدلو په صورت کې به تفریق نه واقع کیږي] فَتَسْتَوْفِي فِي الزَّمَانِ الثَّانِي او ښځه به په بله زمانه کې [له خاوند څخه] هغه [د نفقې قرض] په پوره توګه واخلي وَفَوْتُ الْمَالِ وَهُوَ تَابِعٌ فِي النِّكَاحِ لَا يَلْحَقُ بِمَا هُوَ الْمَقْصُودُ وَهُوَ التَّنَاسُلُ او د مال فوت‌ېدل به (حال دا چې هغه په نکاح کې تابع دي) د هغه شي سره نه لاحق کیږي کوم چې مقصود دی چې هغه نسل [او اولاد] پیدا کول دي [په دې سره امام شافعي ته جواب ورکوي، هغه فرمایلي وو چې کله له جماع څخه د عاجزی په صورت کې تفریق واقع کیږي، نو له نفقې څخه د عاجزی په صورت کې به خامخا تفریق واقع کیږي، نو په دې جمله سره د هغه جواب ورکوي چې په نکاح کې مال یعني نفقه تابع ده، لیکن جماع یعني توالد او تناسل په نکاح کې أصل دی، نو ځکه به له جماع څخه د عاجزی په صورت کې تفریق واقع کیږي، او تابع پر أصل قیاسول او یو د بل سره لاحق کول صحیح نه دي، لهذا د امام شافعي دلیل او قیاس به صحیح نه وي] وَفَائِدَةُ الْأَمْرِ

بِالاِسْتِدَانَةِ مَعَ الْفَرْضِ أَنْ يُمْكِنَهَا إِحَالَةُ الْغَرِيْمِ عَلَى الزَّوْجِ او دِ نفقې د فرضيت باوجود د قرض اخيستلو د حکم فايده دا ده چې د ښځې لپاره دا ممکن سي چې قرض غوښتونکی پر خاوند حواله کړی سي

[يعني قاضي به ځکه ښځې ته وايي "اِسْتَدِيْنِيْ عَلَيْه" (چې د خاوند په نامه قرض اخله!)، د دې فايده دا ده چې وروسته به ښځه دا قرض پر خاوند حواله کولای سي او قرض غوښتونکی به له خاوند څخه د قرض مطالبه کوي، نه له ښځې څخه. او که قاضي د خاوند په نامه د قرض اخيستلو حکم نه ورته وکړي، نو قرض غوښتونکی به له ښځې څخه د قرض مطالبه کوي او ښځه به پر خاوند قرض نه سي حواله کولای، نو ځکه به قاضي د "اِسْتَدِيْنِيْ عَلَيْه" حکم هم ورته کوي] فَأَمَّا إِذَا كَانَتِ الاِسْتِدَانَةُ بِغَيْرِ أَمْرِ الْقَاضِي كَانَتِ الْمُطَالَبَةُ عَلَيْهَا دُوْنَ الزَّوْجِ ليکن که قرض اخيستل د قاضي له حکم څخه بغير وي نو [د قرض غوښتونکي] مطالبه به پر ښځې وي، نه پر خاوند.

**اللغات:** ﴿أُعْسِرَ﴾ د افعال ماضي ده: تنګ لاسه کېدل، مفلسه کېدل، (بې وسه کېدل).

﴿اِسْتَدِيْنِيْ﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث امر حاضر صيغه ده: قرض اخيستل، په پور اخيستل. ﴿جَبّ﴾ ذکر (د تناسل آله) پرېکېدل، ﴿عِنَّة﴾ نامردي، له جماع څخه عاجزه کېدل.

﴿إِحَالَة﴾ پر بل چا حواله کول (مثلاً زيد قرض واخلي، او د خالد پر ذمه يې واچوي چې زما قرض به له خالد څخه اخلې!. همدې ته حواله وايي)، ﴿غَرِيْم﴾ قرض غوښتونکی (هغه کس چې پر بل چا يې پور باندي وي).

**تشريح:** مسئله په عبارت کې تشريح سوه.

## که تر غربت وروسته خاوند مالدار سي نو د نفقې د بدلون حکم

وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لَهَا بِنَفَقَةِ الإِعْسَارِ او که چېري قاضي د ښځې لپاره د غربت والا د نفقې فيصله وکړه ثُمَّ أَيْسَرَ [او] بيا خاوند مالدار سو فَخَاصَمَتْهُ او ښځې دعوی وکړه تَمَّمَ لَهَا نَفَقَةَ الْمُوْسِرِ نو [قاضي] به د هغې لپاره د مالدار سړي [د نفقې په څېر] نفقه ور پوره کوي لِأَنَّ النَّفَقَةَ تَخْتَلِفُ بِحَسَبِ الْيَسَارِ وَالإِعْسَارِ ځکه چې نفقه د مالدارۍ او غربت په اعتبار سره بدلېږي وَمَا قَضَى بِهِ تَقْدِيْرُ نَفَقَةٍ لَمْ تَجِبْ او قاضي چې د کومې نفقې فيصله کړې ده هغه د داسې نفقې اندازه ده کوم چې تر اوسه واجب سوې نه ده فَإِذَا تَبَدَّلَ حَالُهُ لهذا کله د خاوند حالت بدل سو فَلَهَا الْمُطَالَبَةُ بِتَمَامِ حَقِّهَا نو د ښځې پوره حق د مطالبې کولو اختيار وي.

**اللغات:** ﴿إِعْسَار﴾ د افعال مصدر دی: تنګلاسي، غربت، ﴿خَاصَمَتْ﴾ د مفاعلې ماضي ده: جنګ او جګړه کول، دعوىٰ کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يوې ښځې خاوند غريب وو، او قاضي د ښځې لپاره د نَفَقَةُ الْيَسَار (د غربت والا نفقې) فيصله وکړه، او بيا خاوند مالدار سو، او ښځې د قاضي په دبار کې دعوىٰ وکړه چې زما خاوند اوس مالدار سو، نو قاضي به اوس د نَفَقَةُ الْيَسَار (د مالدارۍ والا نفقې) فيصله کوي؛ ځکه چې د غربت والا نفقه د مجبورۍ او غريبۍ په وجه وه، اوس خاوند مالدار سو، نو ځکه به اوس پر هغه د اعلىٰ درجې نفقه (نفقةُ اليَسَار) واجب وي.

**وما قطى إلخ:** په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله يو وار د قاضي په قضاوت (فيصله) سره د ښځې نفقه متعين سوه، نو بيا په هغه کې تغيّر او بدلون راوستل پکار نه دي، ځکه چې په تغيّر او تبدّل سره د قاضي اوله فيصله فسخ کيږي، او دا مناسب نه دي، د دې په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې دلته د قاضي فيصله نه باطليږي، ځکه چې د ښځې نفقه په يوه وار نه واجبيږي، بلکې هره ورځ جلا، جلا (د خاوند د حالت مطابق) نفقه واجبيږي، لهذا قاضي چې کومه اوله فيصله کړې وه، هغه د همېشه لپاره نه وه، بلکې هغه د داسې نفقې اندازه وه، کوم چې تر اوسه واجب سوې نه وه، ځکه چې د هغې تر وجوب مخکې د وجوب د سبب بدلېدلو (يعني د خاوند د حالت بدلېدلو) امکان او احتمال وو، او د دې احتمال په وجه به دلته د قاضي فيصله حتمي او قطعي نه وي، لهذا کله چې هغه حتمي نه ده، نو وروسته به په هغه کې تغيّر او بدلون راوستل ممکن وي، او دغه بدلون ته به فسخ او بطلان نه ويل کيږي. (عنايه، بنايه ج:۵، ص:۵۱۰)

## څه وخت وروسته د تېر وخت د نفقې مطالبه کول

وَإِذَا مَضَتْ مُدَّةٌ لَمْ يُنْفِقِ الزَّوْجُ عَلَيْهَا او کله چې يو څو وخت تېر سي او خاوند [په دې وخت کې] ښځې ته نفقه نه ورکړي وَطَالَبَتْهُ بِذَلِكَ او [بيا] ښځه له خاوند څخه د دې [نفقې] مطالبه وکړي فَلَا شَيْءَ لَهَا نو د هغې لپاره به هيڅ نفقه [واجب] نه وي إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْقَاضِي فَرَضَ لَهَا النَّفَقَةَ خو دا چې قاضي د هغې لپاره نفقه مُتعيّنه کړي أَوْ صَالَحَتِ الزَّوْجَ عَلَى مِقْدَارِهَا يا ښځه د خاوند سره د نفقې پر [معلوم] مقدار صلح [اوموافقه] وکړي فَيَقْضِي لَهَا بِنَفَقَةِ مَا مَضَى نو [په دې صورت کې] به د ښځې لپاره د تېر وخت د نفقې فيصله کيږي لِأَنَّ النَّفَقَةَ صِلَةٌ وَلَيْسَتْ بِعِوَضٍ عِنْدَنَا ځکه چې زموږ په نيز نفقه عطيه ده او

عوض نه دی عَلٰی مَا مَرَّ مِن قَبْلُ لکه مخکي چي [دا خبره] تېره سوه فَلَا يُسْتَحْكَمُ الْوُجُوبُ فِيهَا إِلَّا بِالْقَضَاءِ نو د قاضي له قضاء [فيصلې] څخه بغير به په نفقه کي وجوب نه مؤکد کيږي كَالْهِبَةِ لَا تُوجِبُ الْمِلْكَ إِلَّا بِمُؤَكِّدٍ وَهُوَ الْقَبْضُ لکه هبه چي د مؤکد کونکي شي څخه بغير نه واجبيږي چي هغه [مُؤَكِّد شی] قبضه ده وَالصُّلْحُ بِمَنْزِلَةِ الْقَضَاءِ او صُلح [او موافقه] کول [د قاضي] د قضاء په درجه کي ده لِأَنَّ وِلَايَتَهُ عَلٰى نَفْسِهِ أَقْوٰى مِنْ وِلَايَةِ الْقَاضِي ځکه چي پر خپل ځان د خاوند ولايت د قاضي تر ولايت زيات قوي دی بِخِلَافِ الْمَهْرِ لِأَنَّهُ عِوَضٌ په خلاف د مهر. ځکه چي هغه عوض دی.

**اللغات:** ﴿صَالَحَتْ﴾ د مفاعلې ماضي ده: صلح کول، سوله کول، موافقه کول (يعني د جنجال او جګړې پر ختمولو تړون او موافقه کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه مثلاً يو څو مياشتي (يا څو ورځي) له خاوند څخه نفقه نه واخلي، او بيا له خاوند څخه د تير و مياشتو نفقه وغواړي، نو هغې ته به هيڅ نفقه نه ورکول کيږي: ځکه چي د تېر سوي وخت نفقه د خاوند پر ذمه قرض نه ګرځي چي ښځه کله وغواړي د هغه مطالبه وکړي، لهذا وروسته به د ښځي غوښتني او مطالبې لره هيڅ اعتبار نه وي. ها! که قاضي پر خاوند د نفقې يو معلوم مقدار ټاکلی وي (چي دومره مقدار نفقه به ته ښځي ته ورکوې)، يا په خپله ښځي د خاوند سره پر يو معلوم مقدار صلح او موافقه (تړون) کړې وي (چي ته به ما ته دومره مقدار نفقه راکوې)، نو په دې دواړو صورتونو کي به خاوند د تېر سوي وخت په حساب سره نفقه ورکوي: دليل دا دی چي زموږ په نېز نفقه عوض نه دی چي پر ذمه لازم کړی سي، بلکي نفقه يو عطيه او بخشش دی، لهذا د نفقې د قطعي ثبوت او استحکام لپاره د قاضي قضاء ضروري ده، او له قضاء څخه بغير نفقه نه مستحکم کيږي، ځکه چي په عطياتو او صِلاتو کي زور او جبر نه چليږي، لهذا څرنګه چي هبه له قبضې څخه بغير ملکيت نه ثابتوي، همداسي نفقه هم له قضاء څخه بغير نه واجبيږي.

**والصلح الخ:** فرمايي چي د خاوند او ښځي په خپل مينځ کي صلح او مفوافقه کول داسي دي لکه د قاضي قضاء، ځکه قاضي چي پر يو چا څومره ولايت لري، يو سړي ته پر خپل ځان تر هغه زيات ولايت حاصل وي (يعني پر خپل ځان د خاوند ولايت د قاضي تر ولايت زيات وي)، له همدې کبله خاوند ته دا اختيار سته چي هغه د قاضي په ټاکل سوي (متعين سوي) مقدار نفقه کي اضافه وکړي، لهذا هغه ته به دا اختيار هم وي چي د قاضي له قضاء او فيصلې څخه بغير د ښځي سره پر يو مقدار صلح او تړون وکړي.

د دې په خلاف د مهر معامله ده، ځکه چې مهر عوض دی (عطیه او صله نه ده)، نو په دې وجه به هغه د قاضي له قضاء څخه بغیر هم واجبیږي، او که هر څو وخت وروسته ښځه د مهر مطالبه وکړي، نو ښځي ته به خپل مهر ورکول کیږي.

## د تېر وخت له نفقې اداء کولو څخه مخکې د خاوند د مرګ حکم

وَإِنْ مَاتَ الزَّوْجُ بَعْدَمَا قُضِيَ عَلَيْهِ بِالنَّفَقَةِ او که خاوند مړ سي وروسته تر دې چې پر هغه باندې ا د قاضي له طرفه ا د نفقې اورکولو ا فیصله وسي وَمَضَى شُهُورٌ او ا په دې مینځ کې ا څو میاشتې اله نفقې ورکولو څخه بغیر ا تیرې سي سَقَطَتِ النَّفَقَةُ نو نفقه ساقطیږي وَكَذَا إِذَا مَاتَتِ الزَّوْجَةُ او همدارنګه ا نفقه ساقطیږي ا کله چې ښځه مړه سي لِأَنَّ النَّفَقَةَ صِلَةٌ ځکه چې نفقه یو عطیه ده وَالصِّلَاتُ تَسْقُطُ بِالْمَوْتِ او عطیات د مرګ په وجه ساقطیږي كَالْهِبَةِ تَبْطُلُ بِالْمَوْتِ قَبْلَ الْقَبْضِ لکه هبه چې تر قبضه کولو مخکې د مرګ په وجه ساقطیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَصِيرُ دَيْنًا قَبْلَ الْقَضَاءِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نفقه ا د خاوند پر ذمه ا د قاضي تر قضاء ا فیصلې ا مخکې ا هم ا قرض ګرځي وَلَا تَسْقُطُ بِالْمَوْتِ او د مرګ په وجه نه ساقطیږي لِأَنَّهُ عِوَضٌ عِنْدَهُ ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز نفقه ا د ملک نکاح ا عوض ده فَصَارَ كَسَائِرِ الدُّيُونِ نو داسې سوه لکه نور قرضونه ا او عوضونه ا وَجَوَابُهُ قَدْ بَيَّنَّاهُ او د دې جواب موږ ا مخکې ا بیان کړی دی.

**اللغات:** ﴿قُضِيَ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي مجهول صیغه ده (ماضي معلوم هم کېدای سي. او ضمیر به یې قاضي او فیصله کونکي ته راجع وي): فیصله کول. قضاوت کول.

﴿صِلَةٌ﴾ عطیه، بخشش، له عوض څخه بغیر ورکړه، چا ته یو شی مفت (په وړیا توګه) ورکول.

﴿دُيُوْن﴾ جمع د "دَيْنٌ" ده: قرضونه (پوروونه)، قرضې.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که قاضي د یوې ښځې لپاره د نفقې فیصله وکړه (چې خاوند به هره ورځ تا ته خپله نفقه درکوي)، تر دې وروسته خاوند مثلاً څلور میاشتې ژوندی وو. او د دې مودت نفقه یې اداء نه کړه او بیا خاوند مړ سو، نو د دې څلورو میاشتو نفقه ساقطیږي (او د خاوند له پاته سوي مال څخه به ښځې ته دغه نفقه نه ورکول کیږي)، همدارنګه که د خاوند پر ځای ښځه مړه سي، نو هم نفقه ساقطیږي: دلیل دا دی چې زموږ په نیز نفقه عطیه ده. او د مرګ په وجه ټوله عطیات ساقطیږي. او عطیات د قرض په توګه نه واجبیږي. لکه په هبه کې چې دا حکم دی یعني که خالد

چي زيد ته يو شی هبه کړي، او بيا د زيد تر قبضه کولو مخکي خالد مړ سي يا زيد مړ سي (يعني زيد لا تر اوسه پر هغه شي قبضه کړي نه وي چي خالد [واهب] مړ سي، يا په خپله زيد [موهوب لهٗ] مړ سي)، نو په دې دواړو صورتونو کي هبه ساقطيږي (ځکه چي هبه هم يو عطيه ده). لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نفقه عطيه نه ده، بلکي د ملک نکاح (ملک بضع) عوض ده، نو څرنګه چي مهر يا نور قرضونه (او عوضونه) بغير د قاضي له قضاء څخه د سړي پر ذمه قرض دي، همداسي به نفقه هم د قاضي له قضاء څخه بغير د خاوند پر ذمه قرض وي، او د مرګ په وجه به هغه نه ساقطيږي، بلکي که خاوند مړ سي، نو د هغه له پاته سوي مال څخه به ښځي ته (د څلور مياشتو) نفقه ورکول کيږي، او که ښځه مړه سي، نو هغه نفقه به د ښځي په وارثانو کي تقسيميږي.

صاحب د هدايې فرمايي چي د دې جواب مخکي بيان سو چي نفقه عطيه ده، او د ملک نکاح عوض نه ده، د ملک نکاح عوض فقط مهر دی، او که نفقه هم د ملک نکاح عوض وګرځول سي، نو د يوه شي لپاره به دوه عوضونه ثابت سي، او دا صحيح نه دي، نو ځکه به نفقه عطيه او صِله منل کيږي، نه عوض او بدل.

## که خاوند د يو څو وخت نفقه مخکي (پر يوه ځای) ورکړي او بيا مړ سي (حکم او اختلاف)

وَإِنْ أَسْلَفَهَا نَفَقَةَ السَّنَةِ او که [خاوند] ښځي ته د يوه کال نفقه په قرض ورکړي أَيْ عَجَّلَهَا يعني د يوه کال نفقه [ورته] وړاندي ورکړي ثُمَّ مَاتَ او بيا [خاوند] مړ سي لَمْ يُسْتَرْجَعْ مِنْهَا شَيْءٌ نو له ښځي څخه به هيڅ شی واپس نه اخيستل کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ●: يُحْتَسَبُ لَهَا نَفَقَةُ مَا مَضٰى وَمَا بَقِيَ لِلزَّوْجِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ښځي لپاره به د تېر سوي مودت نفقه شمارل کيږي [ور پرېښوول کيږي] او کوم څه چي باقي پاته سي هغه به د خاوند [د وارثانو] لپاره وي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول [هم] دی وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْكِسْوَةُ او پر همدغه اختلاف [ښځي ته] جامې ورکول دي لِأَنَّهَا اسْتَعْجَلَتْ عِوَضًا عَمَّا تَسْتَحِقُّهُ عَلَيْهِ بِالِاحْتِبَاسِ ځکه ښځي چي د احتباس په عوض کي پر خاوند د کوم شي حق درلودی هغه يې وړاندي واخيستی وَقَدْ بَطَلَ الِاسْتِحْقَاقُ بِالْمَوْتِ او [د خاوند] په مرګ سره استحقاق

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله : والفتوىٰ على قولهما (فتح القدير ج:٢ ص:٢٠٥)، وكذا في رد المحتار (ج:٢، ص:٧١٧). [القول الراجح ج:١، ص: ٣٨٥]

[حقداره کېدل] باطل سو ﴿فَيَبْطُلُ الْعِوَضُ بِقَدْرِهٖ﴾ نو د هغه په اندازه به عوض [هم] باطلیږي ﴿كَرِزْقِ الْقَاضِي وَعَطَاءِ الْمُقَاتَلَةِ﴾ لکه د قاضي روزينه [تنخا] او دِ مجاهدينو [او عسكرو] وظيفه [او خوراکه] ﴿وَلَهُمَا: أَنَّهُ صِلَةٌ وَقَدْ اتَّصَلَ بِهِ الْقَبْضُ﴾ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي نفقه يو عطيه ده او [دلته] د هغې سره قبضه [هم] متصل سوې ده ﴿وَلَا رُجُوعَ فِي الصِّلَاتِ بَعْدَ الْمَوْتِ﴾ او په عطياتو کي تر مرگ وروسته رجوع نه سي کېدلای ﴿لِانْتِهَاءِ حُكْمِهَا﴾ ځکه چي [په مرگ سره] د عطياتو حکم انتهاء ته رسيږي [يعني په مرگ سره د عطياتو حکم نور مستحکم کيږي، او د رجوع هيڅ گنجائش نه پکښي پاتيږي] ﴿كَمَا فِي الْهِبَةِ﴾ لکه په هبه کي [چي هم دغه حکم دی] ﴿وَلِهٰذَا لَوْ هَلَكَتْ مِنْ غَيْرِ اسْتِهْلَاكٍ﴾ همدا وجه ده که له [قصداً] هلاکولو څخه بغير نفقه [په خپله] هلاکه سي ﴿لَا يُسْتَرَدُّ شَيْءٌ مِنْهَا بِالْإِجْمَاعِ﴾ نو له ښځي څخه به هيڅ شی واپس نه اخيستل کيږي ﴿وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهَا إِذَا قَبَضَتْ نَفَقَةَ الشَّهْرِ أَوْ مَا دُونَهُ﴾ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي کله ښځه د يوې مياشتي يا له هغه څخه د کم مودت پر نفقې قبضه وکړي ﴿لَا يُسْتَرْجَعُ مِنْهَا شَيْءٌ﴾ نو له هغې څخه به هيڅ شی واپس نه اخيستل کيږي ﴿لِأَنَّهُ يَسِيرٌ﴾ ځکه چي هغه معمولي غوندي وي ﴿فَصَارَ فِي حُكْمِ الْحَالِ﴾ نو هغه د اوسني حالت په حکم کي سو.

**اللغات:** ﴿أَسْلَفَ﴾ د افعال ماضي ده: په قرض ورکول (په پور ورکول)، ﴿عَجَّلَ﴾ د تفعيل ماضي ده: تلوار کول، ژر اداء کول، وړاندي ورکول. ﴿مُقَاتَلَة﴾ جنگ کونکي خلک، مراد ځني فوج، عسکر او مجاهدين دي. ﴿لَا يُسْتَرَدُّ﴾ د استفعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: واپس اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلي ښځي ته د يوه کال نفقه وړاندي (پر يوه ځای ورکړي)، او بيا له يوه کال پوره کېدلو څخه مخکي خاوند مړ سي يا په خپله ښځه مړه سي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چي له دې ښځي څخه به هيڅ شی واپس نه اخيستل کيږي، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي تر مرگ مخکي چي څومره وخت تېر سوی وي (يعني څومره وخت چي خاوند ژوندی وي)، هغه ته به حساب کيږي او ښځي ته به هغومره نفقه ورکول کيږي، او کومه نفقه چي پاته سي، هغه به له ښځي څخه واپس اخيستل کيږي، او خاوند يا د هغه وارثانو ته به حواله کيږي (مثلاً که خاوند د يوه کال نفقه ورکړي، او شپږ مياشتي هغه ژوندی وي. او بيا مړ سي، نو د

شپږو میاشتو نفقه به له ښځي څخه واپس اخیستل کیږي. او هغې ته به فقط د خاوند دژوند (شپږو میاشتو) نفقه ور پرېښوول کیږي). همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی. او ښځي ته کِسوَة یعني جامې ورکول هم پر دغه اختلاف دي.

**دلیل**: د امام محمد او امام شافعي دلیل دا دی چي نفقه ښځي ته د احتباس په عوض کي ورکول کیږي. لهذا څومره ورځي چي احتباس پاته وي (یعني څومره ورځي چي ښځه د خاوند په نکاح کي او د هغه په کور کي محبوسه وي). د هغومره ورځو نفقه به ښځي ته ورپرېښوول کیږي. او د څومره ورځو احتباس چي ختم سي. د هغومره ورځو نفقه به له ښځي څخه واپس اخیستل کیږي. لکه که قاضي یا یو مجاهد (او عسکر) ته چي پر یوه ځای د ټوله کال وظیفه (تنخا) او خوراکه مخکي ورکول سي. او شپږ میاشتي وروسته قاضي یا مجاهد (او عسکر) له کار څخه برطرفه کړی سي. یا دوی مړه سي. نو د پاته شپږو میاشتو وظیفه او خوراکه به واپس له دوی څخه اخیستل کیږي. نو همداسي به دلته هم د پاته ورځو نفقه له ښځي څخه واپس اخیستل کیږي.

**د شیخینو دلیل**: دا دی چي زموږ په نېز نفقه عطیه او صله ده. او د عطیاتو قاعده دا ده چي هغوی په قبضه سره بشپړ کیږي. او په مرګ سره د هغوی حکم انتهاء ته رسیږي. او نور مستحکم کیږي. یعني تر مرګ مخکي خو د رجوع څه ګنجائش پکښې وي. لېکن تر مرګ وروسته په هغوی کي د رجوع کولو هیڅ ګنجائش نه پاتیږي. او دلته پر نفقې قبضه هم سوې ده. او مرګ هم واقع سوی دی. نو ځکه به اوس د نفقې په هکله هیڅ حساب وکتاب نه کیږي. او له ښځي څخه به واپس نه اخیستل کیږي. ځکه چي اوس د نفقې حکم بشپړ او مستحکم سو. لکه څرنګه چي هبه په قبضه او مرګ سره پوره کیږي او بیا په هغه کي هیڅ رجوع کېدلای نه سي. همدا وجه ده که د ښځي له تعدیٰ څخه بغیر نفقه هلاکه سي. نو بالإجماع له هغې څخه هیڅ شی واپس اخیستل کېدلای نه سي. ځکه چي په هلاکېدلو سره د نفقې حکم انتهاء ته ورسېدی.

**وعن محمد إلخ**: فرمایي چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د محمد بن رستم یو روایت دا دی چي که ښځه له خاوند څخه پر یوه ځای د یوې میاشتي نفقه مخکي واخلي. یا تر یوې میاشتي کمه نفقه مخکي ځني واخلي. بیا په دواړو کي یو مړ سي. نو پاته نفقه به له ښځي څخه واپس نه اخیستل کیږي. ځکه چي د یوې میاشتي نفقه معمولي او لږ غوندي وي. او عموماً خاوند پر یوه ځای د یوې میاشتي نفقه مخکي ورکوي (ځکه چي هره ورځ نفقه ورکول مشکل وي). نو ځکه به داسي ګڼل کیږي. چي خاوند ښځي ته (فقط) د نن ورځي واجبه نفقه ورکړه. او کله چي خاوند فقط د یوې ورځي نفقه ښځي ته ورکړي او بیا په هغه ورځ مړ سي. نو د هغې یوې ورځ نفقه له ښځي څخه واپس اخیستل کېدلای نه سي. همداسي به دغه (د یوې میاشتي) نفقه هم له هغې څخه واپس اخیستل کېدلای نه سي.

## د غلام خاوند پر ذمه باندي د نفقې حکم

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ حُرَّةً او که غلام د يوې آزادي ښځي سره نکاح وکړي فَنَفَقَتُهَا دَيْنٌ عَلَيْهِ يُبَاعُ فِيهَا نو د هغې [آزادي ښځي] نفقه به د غلام پر ذمه قرض وي چي په هغه [قرض] کي به غلام خرڅول کيږي وَمَعْنَاهُ: إِذَا تَزَوَّجَ بِإِذْنِ الْمَوْلَى او د دې مطلب دا دی: چي کله غلام د مالک په اجازه سره نکاح وکړي لِأَنَّهُ دَيْنٌ وَجَبَ فِي ذِمَّتِهِ لِوُجُودِ سَبَبِهِ ځکه چي نفقه [د غلام په حق کي] يو قرض دی کوم چي د خپل سبب [نکاح] په وجه د غلام پر ذمه واجب سوی دی وَقَدْ ظَهَرَ وُجُوبُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى او د دې قرض وجوب د مالک په حق کي ښکاره سو. فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ كَدَيْنِ التِّجَارَةِ فِي الْعَبْدِ التَّاجِرِ نو دا قرض به د غلام د غاړي سره متعلق وي لکه د تاجر غلام په حق کي د تجارت قرض [چي د هغه د غاړي سره متعلق کيږي او په هغه کي خرڅول کيږي] وَلَهُ أَنْ يَفْتَدِيَ او مالک لره دا اختيار سته چي فديه ورکړي لِأَنَّ حَقَّهَا فِي النَّفَقَةِ لَا فِي عَيْنِ الرَّقَبَةِ ځکه چي د ښځي حق په نفقه کي دی، نه خاص په رقبه کي فَلَوْ مَاتَ الْعَبْدُ سَقَطَتْ او که غلام مړ سي نو نفقه ساقطيږي وَكَذَا إِذَا قُتِلَ فِي الصَّحِيحِ او همدارنګه د صحيح قول مطابق [نفقه ساقطيږي] کله چي غلام ووژل سي لِأَنَّهُ صِلَةٌ ځکه چي نفقه يو عطيه ده.

**اللغات:** ﴿صِلَةٌ﴾ عطيه، له عوض څخه بغير (مفت) يو شي ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام د خپل مالک په اجازه د يوې آزادي ښځي سره نکاح وکړي، نو دا نکاح صحيح او جائز ده. او د ښځي نفقه د هغه پر ذمه واجب ده. لېکن څرنګه چي د غلام سره هيڅ مال او پيسې نسته. د هغه ټوله شيان د مالک دي. نو ځکه به نفقه د هغه پر ذمه قرض وي. او که هغه نفقه اداء نه کړي، نو د هغه په بدله کي به غلام خرڅول کيږي: دليل دا دی چي نفقه د خپل سبب په وجه يعني د نکاح په وجه د غلام پر ذمه قرض وګرځېده. او څرنګه چي مالک په خپله غلام ته د نکاح اجازه ورکړې ده. نو ځکه به دا قرض د مالک سره متعلق وي. او څرنګه چي په هغه وخت کي به غلام د خپل قرض په عوض کي خرڅول کيږي کله چي مالک غلام ته د تجارت اجازه ورکړې وي او غلام ډېر قرضونه (پورونه) وکړي. همداسي به دلته د نفقې په قرض کي هم هغه خرڅول کيږي.

**ولوأن يفتدى إلخ:** او که مالک نه غواړي چي غلام خرڅ کړی سي. نو بيا هغه ته دا اختيار سته چي د غلام فديه ورکړې (يعني د ښځي چي څومره نفقه جوړيږي. هغه ټوله اداء کړي). ځکه چي د ښځي حق په نفقه کي دی. نه د غلام په رقبه او غاړه کي. لهذا د غلام خرڅول ضروري نه دي.

ولومات إلخ: فرمايي که تر نکاح وروسته غلام مړ سي يا ووژل سي، نو د ښځي نفقه ساقطيږي، ځکه چي نفقه زموږ په نېز صله او عطيه ده، او د مرګ په وجه سره ټوله عطيات ساقطيږي.

## د مينځي نفقه

وَإِنْ تَزَوَّجَ الْحُرُّ أَمَةً او که آزاد سړی د مينځي سره نکاح وکړي فَبَوَّأَهَا مَوْلَاهَا مَعَهُ مَنْزِلًا او مالک خپله مينځه په يو کور کي د خاوند سره شپه تېرولو [او وسېدلو] ته پرېږدي فَعَلَيْهِ النَّفَقَةُ نو پر خاوند به [د مينځي] نفقه [واجب] وي لِأَنَّهُ تَحَقَّقَ الِاحْتِبَاسُ ځکه چي احتباس ثابت سو وَإِنْ لَمْ يُبَوِّئْهَا او که مالک مينځه [د خاوند] سره شپه تېرولو ته نه پرېږدي فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو د هغې لپاره به نفقه [واجب] نه وي لِعَدَمِ الِاحْتِبَاسِ ځکه چي احتباس نسته وَالتَّبْوِيَةُ أَنْ يُخَلِّيَ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ فِي مَنْزِلِهِ وَلَا يَسْتَخْدِمَهَا او تبويت [يعني شپه تېرولو ته پرېښوول] دا دي: چي مالک په خپل کور کي خاوند او ښځه سره پرېږدي او له مينځي څخه خدمت نه اخلي وَلَوِ اسْتَخْدَمَهَا بَعْدَ التَّبْوِيَةِ او که له تبويت څخه وروسته مالک له مينځي څخه خدمت واخلي سَقَطَتِ النَّفَقَةُ نو نفقه [له خاوند څخه] ساقطيږي لِأَنَّهُ فَاتَ الِاحْتِبَاسُ ځکه چي [د خاوند په حق کي د مينځي] احتباس فوت سو وَالتَّبْوِيَةُ غَيْرُ لَازِمَةٍ عَلَى مَا مَرَّ فِي النِّكَاحِ او تبويت [پر مالک] لازم نه دی لکه په کتابُ النکاح کي چي [دا خبره] تېره سوه وَلَوْ خَدَمَتْهُ الْجَارِيَةُ أَحْيَانًا مِنْ غَيْرِ أَنْ يَسْتَخْدِمَهَا او که مينځه کله نا کله [په خپله] د مالک خدمت وکړي بغير له دې چي مالک له هغې څخه خدمت واخلي [يعني د مالک له ويلو څخه بغير مينځه د مالک خدمت وکړي] لَا تَسْقُطُ النَّفَقَةُ نو نفقه نه ساقطيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَسْتَخْدِمْهَا لِيَكُونَ اسْتِرْدَادًا ځکه مالک له هغې څخه خدمت اخيستی نه دی چي دا واپس اخيستل وګرځي وَالْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ فِي هٰذَا كَالْأَمَةِ او مدبره او أم ولد په دې سلسله کي د مينځي په څېر دي.

**اللغات:** ﴿بَوَّأَ﴾ د تفعيل ماضي ده، بَوَّأَ يُبَوِّءُ تَبْوِيَةً: اوسول، د شپه تېر لپاره ځای ورکول، ځای ورته تيارول، دلته يې معنیٰ دا ده کوم چي مصنف رَحِمَهُ الله بيان کړه يعني "مينځه د خاوند سره استوګني (او شپه تېر) ته پرېښوول"، ﴿يُخَلِّي﴾ د تفعيل مضارع ده: پرېښوول، ايله کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو آزاد سړی د بل چا د مينځي سره نکاح وکړي، او د مينځي مالک په خپل کور کي خاوند او مينځي ته د شپه تېر لپاره يوه خونه ورکړي (چي تاسو به دلته شپې

تېروي، او مالک له مينځې څخه خدمت نه اخلي. يا مالک مينځه د خاوند کور ته ايله کوي چې هلته ورځه! د خاوند سره شپې تېروه!، او په خپله له مينځې څخه خدمت نه اخلي)، نو په دې صورت کې پر خاوند د مينځې نفقه واجب ده، ځکه چې د يو ځای اوسېدلو او شپې تېرولو په وجه د مينځې له طرفه احتباس ثابت سو، او نفقه د احتباس بدله او جزاء ده، نو ځکه به پر خاوند د مينځې لپاره نفقه واجب وي.

صاحب د هدايې فرمايي چې د "تَبْوِيَت" مطلب دا دی چې مالک خپلې مينځې او د هغې خاوند ته په خپل کور کې يوه عليحده خونه ورکړي او له مينځې څخه خدمت نه اخلي. ځکه که مالک له مينځې څخه خدمت اخلي، نو احتباس به فوت سي، لهذا نفقه به هم ساقطيږي (او پر خاوند به نفقه ورکول واجب نه وي)، ځکه چې د نفقې شرط همدغه احتباس دی، نو د إِذَا فَاتَ الشَّرْطُ فَاتَ الْمَشْرُوْطُ د قاعدې په وجه به د احتباس په فوتېدلو سره نفقه هم فوتيږي، او د احتباس فوتېدل ممکن هم دي، ځکه چې د مينځې په نکاح سره پر مالک تبويت (شپه تېر او استوګنې ته پرېښوول) لازم نه دي، لکه په "بابُ نکاح الرقيق" کې چې د دې تفصيل تېر سو.

**ولو خدمته إلخ**: فرمايي که تر نکاح او تبويت وروسته مينځه د مالک له مطالبې څخه بغير په خپله کله نا کله د مالک خدمت کوي، نو په دې صورت کې نفقه نه ساقطيږي او پر خاوند د نفقې اداء کول لازم دي، ځکه چې دلته مالک له مينځې څخه خدمت اخيستی نه دی، بلکې مينځه په خپله د هغه خدمت کوي، نو دا استراد نه سو (يعني له تبويت څخه د مينځې واپس اخيستل نه سو)، لهذا تبويت هم باقي پاته سو، او احتباس هم موجود سو، نو ځکه به نفقه هم باقي پاته وي.

**والمدبرة إلخ**: فرمايي چې د نکاح، تبويت او احتباس په هکله چې څومره احکام د خالص مينځې په هکله تېر سوه، هغه ټول احکام د مدبره مينځې او د اُم ولد مينځې لپاره هم دي. لهذا په کومو صورتونو کې چې خالص مينځه د نفقې مستحقه ګرځي، په هغه ټولو صورتونو کې به مدبره او اُم ولد ته هم نفقه ورکول کيږي، او چيري چې خالص مينځه محرومه ګرځي، هلته به دا دواړې مينځې هم محرومه ګرځي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ السُّكْنٰى)

(دا) فصل (د ښځي) د استوګني (د احکامو) په بيان کي دی

**تشريح:** څرنګه چي نفقه او سکنیٰ دواړه د ښځي لپاره لازم او ضروري دي. نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دواړه يو تر بل وروسته (پرلپسې) بيان کړي دي. خو څرنګه چي د سکنیٰ په نسبت نفقې ته زيات ضرورت سته. نو په دې وجه يې د نفقې أحکام او مسائل مخکي بيان کړل. او اوس د سکنیٰ أحکام او مسائل بيانوي.

**سُکْنٰى:** د "إِسْکَان" په معنیٰ سره دی. "إِسْکَان" د إفعال د باب مصدر دی چي د هغه يوه خاصه "متعدي کېدل" دي. نو د "سُکْنٰى" او "إِسْکَان" معنیٰ ده: بل څوک په يو ځای کي استوګن کول. أوسول. مېشتول. دا په اصل کي هغه "اوسولو (استوګن کولو)" ته وايي. کوم چي بېله عوضه وي يعني "د اوسېدلو او استوګني لپاره مفت ځای ورکول". صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: "السُّکْنٰى هُوَالإِسْکَانُ وَأَنْ تُسْکِنَ إِنْسَانًا مَنْزِلًا بِلَا أُجْرَةٍ". (معجم الوسيط ج: ١، ص: ٤٤٠)

## د "سکنیٰ" حکم

وَعَلَى الزَّوْجِ أَنْ يُسْكِنَهَا فِي دَارٍ مُفْرَدَةٍ لَيْسَ فِيهَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِهِ او پر خاوند لازم دي چي ښځه په يوازي (جلا) کور کي و أوسوي چي په هغه کي د خاوند د کورنۍ هيڅ فرد (استوګن) نه وي إِلَّا أَنْ تَخْتَارَ ذٰلِكَ خو دا چي ښځه هغه (په خپله) وغواړي (چي زما سره دي بل څوک هم استوګن وي. پروا نه لري) لِأَنَّ السُّكْنٰى مِنْ كِفَايَتِهَا ځکه چي أوسول (استوګن کول) د ښځي له کفايت څخه دي (يعني په دې سره ښځه پوره کيږي او له احتياج څخه خلاصيږي. او پر خاوند د ښځي پوره کول او : بل چا له احتياج څخه د هغې ساتل واجب دي) فَيَجِبُ لَهَا كَالنَّفَقَةِ لهذا د نفقې په شير به سکنیٰ (هم) د هغې لپاره (واجب) وي وَقَدْ أَوْجَبَهُ اللهُ تَعَالٰى مَقْرُونًا بِالنَّفَقَةِ او الله تعالیٰ سکنیٰ (استوګن کول) د نفقې سره متصل واجب کړي دي وَإِذَا وَجَبَ حَقًّا لَهَا او کله چي سکنیٰ د ښځي لپاره د حق په توګه واجب سوه لَيْسَ لَهُ أَنْ يُشْرِكَ غَيْرَهَا فِيهِ نو د خاوند لپاره دا جائز نه دي چي له ښځي څخه بل څوک په سکنیٰ کي (د ښځي سره)

شریک کړي لِأَنَّهَا تَتَضَرَّرُ بِهِ ځکه چي په اشتراک سره ښځي ته تکلیف رسیږي فَإِنَّهَا لَا تَأْمَنُ عَلَى مَتَاعِهَا ځکه چي هغه به پر خپل سامان مطمئنه نه وي او هر وخت به په دې بېره کي وي چي هسي نه زما سامان غلا سي ا وَيَمْنَعُهَا ذٰلِكَ مِنَ الْمُعَاشَرَةِ مَعَ زَوْجِهَا وَمِنَ الْاِسْتِمْتَاعِ [همدارنګه] اشتراک ښځه منع کوي د خاوند له یو ځای اوسېدلو څخه او له نفع اخیستلو [جماع کولو] څخه إِلَّا أَنْ تَخْتَارَ خو دا چي ښځه [په خپله] هغه [اشتراک] وغواړي لِأَنَّهَا رَضِيَتْ بِانْتِقَاصِ حَقِّهَا ځکه چي [په دې صورت کي] هغه د خپل حق پر کمولو راضي سوه وَإِنْ كَانَ لَهُ وَلَدٌ مِنْ غَيْرِهَا او که له بلي ښځي څخه خاوند یو زوی لري [کوم چي د دې ښځي مېړزی زوی کیږي] فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسْكِنَهُ مَعَهَا نو خاوند لره جائز نه دي چي هغه د دې ښځي سره و اُوسوي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی [چي په دې سره ښځي ته تکلیف رسیږي] وَلَوْ أَسْكَنَهَا فِي بَيْتٍ مِنَ الدَّارِ مُفْرَدٍ وَلَهُ غَلْقٌ او که خاوند ښځه د خپل کور په علیحده خونه [کوټه] کي واُوسوي چي هغه خونه د بندېدلو دروازه [هم] لري كَفَاهَا نو دا د ښځي لپاره کافي دي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَدْ حَصَلَ ځکه چي مقصود حاصل سو.

**اللغات:** ﴿يُسْكِن﴾ د افعال مضارع ده: اوسول، استوګن کول، استوګنه ورکول (د اوسېدلو لپاره ځای ورکول). ﴿دَار﴾ هغه کور ته وایي چي دېوالونه پر راګرځېدلي وي. او د ضرورت ځایونه (لکه بیت الخلاء او داسي) نور پکښې وي. ﴿إِنْتِقَاص﴾ د افتعال مصدر دی: کمېدل. کمول. ﴿بَيْت﴾ د شپه تېر ځای. په اصل کي خوني او کوټې ته وایي. ﴿غَلْق﴾ د لام په ضمه سره هغه دروازې ته وایي چي بندیږي او قلف ور اچول کیږي. او د لام په فتحه سره قلف ته وایي. او د لام په سکون سره مصدر دی په معنیٰ سره د "بندولو".

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی چي کله سړی د ښځي سره نکاح وکړي او خپل کور ته یې راولي. نو پر هغه واجب دي چي د خپلي ښځي لپاره د یو داسي علیحده ځای انتظام او بندوبست وکړي. چي په هغه کي د خاوند د کورنی هیڅ فرد نه اوسیږي. بلکي هلته فقط د ښځي او خاوند حکومت وي: دلیل دا دی چي پر خاوند داسي نفقه واجب ده کوم چي د ښځي لپاره کافي وي. او سکنیٰ اواستوګنه هم له کفایت څخه ده. ځکه چي استوګنه هم د ښځي په ضروریاتو کي داخل ده. نو ځکه به هغه هم پر خاوند واجب وي. او بل دا چي د عبد الله ابن مسعود ﷺ په قرائت کي نفقه او سکنیٰ یو

ځای متصل سره ذکر سوي دي، نو په دې وجه به هم سکنیٰ واجب وي، د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه قرائت دا دی: "أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ وَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ مِنْ وُجْدِكُمْ" [سورة الطلاق:٦] (يعني تاسي د خپل وس مطابق ښځې په هغه ځای کې اوسوئ! چيرې چې تاسي اوسېږئ! او هغوی ته نفقه هم ورکوئ!) (دا د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قرائت دی).

له دې آيت څخه ثابته سوه چې د نفقې په څير ښځې ته د استوګنې لپاره ځای ورکول هم واجب دي، او کله چې د استوګنې لپاره ځای ورکول واجب دي؛ نو په هغه کې د بل چا شرکت مانع دی، ځکه چې په شرکت سره ښځې ته نقصان رسيږي چې هغه به هر وخت د خپل مال او سامان د غلا کېدلو په بېره کې وي، او د خاوند سره به د هغې يو ځای اوسېدل او جماع کول مشکل وي، نو په دې وجه عليحده ځای ورکول ضروري دي، لېکن که ښځه په خپله د خاوند د کورنۍ او قريبانو سره په يوه ځای او يوه کور کې په اوسېدلو راضي وي، نو په دې صورت کې د ښځې لپاره د عليحده ځای انتظام کول ضروري نه دي، ځکه چې ښځې په خپله خپل حق ساقط کړي.

**وإن كان له إلخ:** او که چيرې خاوند له دغه ښځې څخه بغير د يو بل ښځې څخه زوی لري (چې هغه ته د دې ښځې مېرزی زوی وايي)، نو هغه هم په دې ځای کې د ښځې سره اوسول صحيح نه دي، ځکه چې په دې سره هم ښځې ته ضرر او نقصان رسيږي (او هر وخت به د سامان غلا کېدلو او نورو مشکلاتو خطره وي).

**ولو أسكنها إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که د خاوند کور غټ وي او ډيرې خونې (کوټې) لري، او خاوند يوه عليحده خونه ښځې ته ورکړي چې په هغه کې د بندېدلو دروازه موجوده وي (چې د ضرورت په وخت کې دروازه بنده کړی سي)، نو داسې خونه هم د ښځې د استوګنې او سکنیٰ لپاره کافي ده؛ ځکه د ښځې مقصد دا دی چې د هغې سامان محفوظ سي او د خاوند سره د تنهايی په حالت کې يو ځای سي، او دا مقصد په عليحده او جلا خونه سره هم حاصلیږي.

## د خپل کورنۍ (خپلوانو) سره د ښځې د ملاقات حق

| وَلَهُ أَنْ يَمْنَعَ وَالِدَيْهَا وَوَلَدَهَا مِنْ غَيْرِهِ وَأَهْلَهَا مِنَ الدُّخُولِ عَلَيْهَا او خاوند لره دا حق سته چې هغه د ښځې مور و پلار او له بل خاوند څخه د ښځې زوی او د ښځې أهل انژدې قريبان ا ښځې ته له [تګ] راتګ څخه منع کړي لِأَنَّ الْمَنْزِلَ مِلْكُهُ ځکه چې کور د خاوند ملکيت دی فَلَهُ حَقُّ الْمَنْعِ مِنْ دُخُولِ مِلْكِهِ لهذا هغه ته به خپل ملکيت کې له داخلېدلو څخه ا د بل چا ا د منع کولو حق وي وَلَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ النَّظَرِ |
| --- |

إِلَيْهِمَا وَكَلَامِهِمَا فِي أَيِّ وَقْتٍ اخْتَارُوا او خاوند به دوی [پلار ومور او نور قريبان] د ښځي و طرف ته له کتلو او د ښځي له خبرو څخه نه منع کوي کله چي هم دوی [د ښځي ليدل او د هغې سره خبري کول] وغواړي لِمَا فِيهِ مِنْ قَطِيْعَةِ الرَّحِمِ ځکه چي په دې کي د صله رحمی [او قرابت] قطع کول دي. وَلَيْسَ لَهُ فِي ذٰلِكَ ضَرَرٌ او په دې کي د خاوند لپاره هيڅ ضرر [هم] نسته وَقِيلَ: لَا يَمْنَعُ مِنَ الدُّخُولِ وَالْكَلَامِ او [په دې مکله] ويل سوي دي: چي خاوند به [دوی] له داخلېدلو او خبرو کولو څخه نه منع کوي وَإِنَّمَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ الْقَرَارِ بلکي دوی به له [ډېر] پاتېدلو څخه منع کوي لِأَنَّ الْفِتْنَةَ فِي اللِّبَاثِ وَتَطْوِيلِ الْكَلَامِ ځکه چي په پاتېدلو او د خبرو په اوږدولو کي فتنه وي [يعني دا د فتني سبب ګرځي] وَقِيلَ: لَا يَمْنَعُهَا مِنَ الْخُرُوجِ إِلَى الْوَالِدَيْنِ وَلَا يَمْنَعُهُمَا مِنَ الدُّخُولِ عَلَيْهَا فِي كُلِّ جُمُعَةٍ او ويل سوي دي: چي خاوند به هره جمعه کي [يوه ورځ] ښځه مور و پلار ته له ورتګ څخه نه منع کوي او نه به مور وپلار ښځي ته له راتګ څخه منع کوي وَفِي غَيْرِهِمَا مِنَ الْمَحَارِمِ التَّقْدِيرُ بِسَنَةٍ او له مور وپلار څخه بغير د نورو محارمو [نژدې قريبانو] په حق کي يو کال ټاکل سوی دی وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي.

**اللغات:** ﴿قَطِيْعَة﴾ قطع کول، غوڅول، ختمول، بد چلن کول. ﴿اللِّبَاث﴾ مصدر دی: پاتېدل، درنګ کول، په يو ځای کي وخت تېرول. ﴿تَقْدِيْر﴾ اندازه کول، مودت ټاکل (مقرر کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله خاوند ښځي ته عليحده کور ورکړي، اوس هغه ته دا حق سته چي د ښځي پلار او مور (خسر او خواښې) او نور نژدې قريبان دغه کور ته له راتلو څخه منع کړي: ځکه چي دغه کور د خاوند ملکيت دی، او هغه ته په خپل ملکيت کي هر ډول حق او اختيار سته. لهذا د منع کولو حق به هم ورته حاصل وي، ها! که د ښځي پلار ومور يا نور نژدې قريبان د ښځي سره خبري کول وغواړي، نو خاوند هغه نه سي منع کولای؛ ځکه چي په دې سره صله رحمي قطع کيږي. او صله رحمي قطع کول حرام دي، په حديث کي ذکر سوي دي: "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ" (يعني د قرابت او صلهٔ رحمی قطع کونکی [ختمونکی] به جنت ته داخل نه سي). (ها! که هغوی د خاوند په خلاف يو پلان او سازش جوړوي، نو بيا يې منع کولای سي).

**وقيل إلخ:** فرمايي چي د ځيني علماؤ رايه دا ده چي که د ښځي مور او پلار کور ته راسي او د لږ ګړي لپاره يو څو خبري کول او څه وخت تېرول غواړي، نو خاوند هغوی له دې څخه نه سي منع کولای، ځکه چي په دې سره صله رحمي قطعي کيږي. لېکن که مور او پلار د شپې پاته کيږي. يا تر ډېر

وخته پوري ګپه شپه او اوردې خبري کوي. نو له دې څخه يې منع کولای سي. ځکه چي ډېر وخت تېرول يا خبري اوردول د فتنې او فساد سبب ګرځي. لهذا کوم شی چي د فساد سبب وي. پر هغه بنديز لګول صحيح دي. بلکي ضروري دي.

**وقيل إلخ:** د ځينو علماؤ رايه دا ده چي په هفته (اونۍ) کي يوه ورځ ښځه د خپل مور و پلار سره همدارنګه مور و پلار د خپلي لور (ښځي) سره ملاقات او ليدنه کتنه کولای سي. او په هغه يوه ورځ خاوند لره د منع کولو حق نسته. او له مور و پلار څخه بغير د نورو نژدې قريبانو لپاره په ټوله کال کي د يو وار ملاقات کولو اجازه سته. همدا صحيح او مفتىٰ به قول دی.

## د غائب خاوند له مال څخه د نفقې اداء کولو بيان

| |
|---|
| وَإِذَا غَابَ الرَّجُلُ وَلَهُ مَالٌ فِي يَدِ رَجُلٍ يَعْتَرِفُ بِهِ وَبِالزَّوْجِيَّةِ او کله چي يو سړی غائب سي او د هغه مال د يو داسي سړي په لاس کي [امانتاً پروت] وي چي هغه د مال اقرار کوي او [د يوې ښځي] د زوجيت [اقرار کوي چي دا ښځه د هغه زوجه (مائنه) ده] فَرَضَ الْقَاضِي فِي ذٰلِكَ الْمَالِ نَفَقَةَ زَوْجَةِ الْغَائِبِ وَوَلَدِهِ الصِّغَارِ وَوَالِدَيْهِ نو قاضي دي په دغه مال کي د غائب سړي د ښځي او د هغه د کوچني بچيانو او د هغه د مور و پلار نفقه مقرره کړي وَكَذَا إِذَا عَلِمَ الْقَاضِي ذٰلِكَ وَلَمْ يَعْتَرِفْ بِهِ او همدارنګه [په هغه صورت کي دي هم د دې کسانو لپاره نفقه مقرره کړي] کله چي قاضي په دې خبر وي او هغه سړی [مودَع] د دې قرار نه کوي لِأَنَّهُ لَمَّا أَقَرَّ بِالزَّوْجِيَّةِ وَالْوَدِيعَةِ ځکه کله چي مودَع د زوجيت او وديعت [امانت ايښنولو] اقرار وکړی فَقَدْ أَقَرَّ أَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لَهَا نو هغه د دې خبري اقرار [هم] وکړی چي دغه ښځي ته [له دې مال څخه د نفقې] د اخيستلو حق سته لِأَنَّ لَهَا أَنْ تَأْخُذَ مِنْ مَالِ الزَّوْجِ حَقَّهَا مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ ځکه چي ښځي ته دا اختيار سته چي د خاوند له رضا څخه بغير د خاوند له مال څخه خپل [د نفقې] حق واخلي وَإِقْرَارُ صَاحِبِ الْيَدِ مَقْبُولٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ او د قبضې والا [مُودَع] اقرار د منلو وړ دی لَا سِيَّمَا هٰهُنَا خصوصاً دلته فَإِنَّهُ لَوْ أَنْكَرَ أَحَدَ الْأَمْرَيْنِ ځکه که هغه [مودَع] له دوو معاملو [صورتونو] څخه انکار کولای لَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ الْمَرْأَةِ فِيهِ نو په دې سلسله کي به د ښځي بيـنه نه منل کېدلای لِأَنَّ الْمُودَعَ لَيْسَ بِخَصْمٍ فِي إِثْبَاتِ الزَّوْجِيَّةِ عَلَيْهِ ځکه چي مودَع مدعىٰ عليه نه دی پر هغه باندي [د ښځي] د زوجيت ثابتولو په صورت کي [يعني که ښځه پر مودع د زوجيت دعوىٰ وکړي. نو هغه مدعىٰ عليه جوړېدلای نه سي (أثمار |

الهدايه)] وَلَا الْمَرْأَةُ خَصْمٌ فِي إِثْبَاتِ حُقُوقِ الْغَائِبِ او نه ښځه د غائب خاوند د حقوقو په ثابتولو کي مدعي ده ايعني نه ښځه په دې دعوىٰ سره مدعيه جوړېدلاى سي چي زه د هغه غائب سړي ښځه يم] وَإِذَا ثَبَتَ فِي حَقِّهِ لهذا کله چي د مودَع [صاحبُ اليد] په حق کي [اقرار] ثابت سو تَعَدَّى إِلَى الْغَائِبِ نو د غائب خاوند وطرف ته به متعدي کيږي وَكَذَا إِذَا كَانَ الْمَالُ فِي يَدِهِ مُضَارَبَةً او همدارنګه کله چي د هغه [صاحبُ اليد] په لاس کي د مضاربت مال وي انو هم دغه حکم دی] وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الدَّيْنِ او په قرضه کي هم دغه حکم دی وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا كَانَ الْمَالُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهَا دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيرَ أَوْ طَعَامًا أَوْ كِسْوَةً مِنْ جِنْسِ حَقِّهَا دا ټوله تفصيل په هغه وخت کي دی کله چي مال د ښځي د حق له جنس څخه وي يعني درهم يا دينار وي، يا خوراک وي. يا د ښځي سره لائق جامې وي أَمَّا إِذَا كَانَ مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ لېکن که هغه مال د ښځي د حق له جنس څخه خلاف وي لَا تُفْرَضُ النَّفَقَةُ فِيهِ نو په هغه کي به نفقه نه مقرره کيږي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى الْبَيْعِ ځکه چي ادنفقې مقرر کولو لپاره به] هغه خرڅولو ته اړتيا لري ايعني که هغه مال د ښځي د حق له جنس څخه نه وي، نو هغه نه ښځه خولاړى سي او نه يو شى په رانيولاى سي، لهذا هغه به د ښځي د نفقې لپاره خامخا خرڅول کيږي] وَلَا يُبَاعُ مَالُ الْغَائِبِ بِالِاتِّفَاقِ [حالانکي] د غائب سړي مال بالاتفاق خرڅول کېدلاى نه سي أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فَلِأَنَّهُ لَا يُبَاعُ عَلَى الْحَاضِرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خو ځکه چي [کله] د حاضر سړي مال خرڅول کېداى نه سي وَكَذَا عَلَى الْغَائِبِ نو د غائب [مال] به هم خرڅول کېداى نه سي وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ يَقْضِي عَلَى الْحَاضِرِ ۞ او د صاحبينو په نېز که څه هم قاضي د حاضر سړي د مال [خرڅولو] فيصله کولاى سي لِأَنَّهُ يُعْرَفُ امْتِنَاعُهُ ځکه چي [قاضي ته] د هغه انکار کول معلوميږي [ځکه چي هغه د قاضي مخ ته حاضر دی] لَا يَقْضِي عَلَى الْغَائِبِ [لېکن] د غائب سړي د مال [خرڅولو] فيصله نه سي کولاى لِأَنَّهُ لَا يُعْرَفُ امْتِنَاعُهُ ځکه چي د هغه انکار کول [قاضي ته] معلومېداى نه سي.

۞ القول الراجح: په دې هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول راجح دی چي د قاضي لپاره د حاضر سړي مال خرڅول هم صحيح نه دي، کما قال العلامة قاضي خان رَحِمَهُ الله: ولا يباع على الزوج الحاضر عروضه في الدين والنفقه...(الخانية ج:١، ص:١٩٩ . ٢٠٠)، و كذا في خلاصه الفتاوىٰ (ج:٢، ص:٦١)، و كذا في الهندية (ج:١، ص:٥٥٢). [القول الراجح ج:١، ص:٣٦٥]

**اللغات:** ﴿وَدِيْعَة﴾ هغه شی کوم چې يو چا ته په امانت ايښول سوي وي (دلته د غائب سړي مال وديعت دی، ځکه چې هغه بل سړي ته د امانت په توګه پرې ايښي دی، او دغه بل سړي ته مُوْدَع، صَاحِبُ الْيَد وايي، د مُوْدَع معنیٰ ده: "چا ته چې مال په امانت ايښول سوي وي". او صَاحِبُ الْيَد ځکه ورته وايي، چې د غائب سړي مال د ده په لاس او قبضه کې دی). ﴿لَا سِيَّمَا﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه، ﴿خَصْم﴾ مخالف ګروپ، د دې لفظ اطلاق کله پر مدعي کيږي، او کله پر مدعیٰ عليه کيږي، دلته په "الْمُوْدَعُ لَيْسَ بِخَصْمٍ" کې له خصم څخه مراد مدعیٰ عليه دی، او په "وَلَا الْمَرْأَةُ بِخَصْمٍ" کې له خصم څخه مراد مدعي دی (يعني ښځه مدعيه ده)، ﴿كِسْوَة﴾ جامې، کالي، ﴿لَا يُبَاع﴾ د فتح له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: خرڅول (پلورل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی غائب وي، او هيڅ درک او پته يې معلومه نه وي، ليکن د يو معلوم سړي سره د هغه مال پروت وي، او دغه معلوم سړی (مودَع) دا خبره منې او اقرار کوي چې دا مال د هغه (غائب) سړي دی او دا ښځه هم د هغه (مائنه) ده، نو په دې صورت کې به قاضي له دغه مال څخه د غائب سړي (خاوند) د ښځې او د هغه د بچيانو او مور و پلار لپاره نفقه مقرره کوي، او همدا حکم په هغه وخت کې هم دی کله چې په خپله قاضي ته دا معلومه وي چې د غائب سړي مال د فلانکي کس سره پروت دی، هغه که فلانکی کس (مودَع) د مال اقرار کوي او که يې نه کوي، يعني په دې دويم صورت کې هم قاضي د غائب سړي له مال څخه د هغه د ښځې او بچيانو لپاره نفقه مقرره کولای سي.

**دليل:** د اول صورت دليل دا دی چې کله دلته مودَع سړي (صاحبُ اليد) دا خبره ومنل او اقرار يې وکړی چې دغه مال د غائب سړي دی او دا ښځه د هغه ده، نو هغه د دې خبرې اقرار هم وکړی چې دا ښځه له دې مال څخه د خپل ځان او بچيانو لپاره د نفقې اخيستلو حق لري، ځکه چې شريعت ښځې ته دومره اختيار ورکړی دی چې د خاوند له رضا څخه بغير هم هغه د خاوند له مال څخه خپله نفقه او خرچه اخيستلای سي، لهذا کله چې ښځې ته په خپله د نفقې اخيستلو اختيار سته، نو د قاضي په قضاء سره به هغې ته په درجه اولیٰ د نفقې اخيستلو حق او اختيار وي.

**واقرار صاحب اليد إلخ:** په دې سره د يو مُقدّر اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې دا مال د مودَع سړي نه دی (يعني د مال د هغه صاحبُ اليد نه دی، کوم ته چې مال پروت دی)، بلکې دا مال د غائب خاوند دی، نو د غائب خاوند په حق کې به د هغه اقرار څرنګه صحيح وي، ځکه چې په دې اقرار سره هغه (غائب خاوند) ته نقصان رسيږي؟ نو د دې په جواب کې فرمايي چې دا اقرار اول په خپله د مودَع

په حق کې ثابتيږي (ځکه چې مال د هغه سره پروت دی او هغه په خپل لاس مال (نفقه) ورکوي)، او بيا دا اقرار له هغه څخه د غائب خاوند وطرف ته متعدي کيږي (منتقل کيږي)، او که سړی په خپل حق کې اقرار وکړي، نو صحيح دی، لهذا د مودَع اقرار به صحيح وي، او د غائب خاوند وطرف ته به د هغه متعدي کېدل هم صحيح وي، خصوصاً دلته به په طريقه اولیٰ سره د هغه اقرار صحيح او مقبول وي.

**لا سيما ههنا:** دا عبارت څه ستونزمن دی، حاصل يې دا دی چې دلته په طريقه اولیٰ سره د مودَع اقرار صحيح او مقبول دی، د هغه وجه دا ده چې که چيرې دلته مودَع (صاحبُ اليد) مدعیٰ عليه وای، نو په دې صورت کې به د هغه اقرار د غائب سړي (خاوند) په حق کې نقصان مند وای، او د هغه اقرار به صحيح نه وای، لېکن دلته هغه مدعیٰ عليه جوړېدلای نه سي، نو ځکه به د هغه اقرار صحيح وي، او تر اقرار وروسته به هغه د خاوند وطرف ته منتقل کيږي، دلته مودَع سړی په دوو صورتونو کې مدعیٰ عليه جوړېدلای سي: ①... يو دا چې ښځه پر مودَع د خپل زوجيت دعویٰ وکړي (چې مودَع زما خاوند دی)، او هغه مدعیٰ عليه جوړ کړي، او ښځه داسي نه سي کولای، ځکه چې مودَع د هغې د نکاح او زوجيت سره هيڅ مطلب نه لري، نو په دې وجه هغه مدعیٰ عليه جوړېدلای نه سي. ②...
دويم صورت دادی چې ښځه پر غائب خاوند د خپل حق ثابتېدلو دعویٰ وکړي، او هغه مدعیٰ عليه جوړ کړي، لېکن دا هم نه سي کولای، ځکه چې خاوند غائب دی، او (د قاضي لپاره) پر غائب سړي فيصله کول صحيح نه دي، لهذا نه به هغه مدعیٰ عليه جوړيږي، او نه به د هغه په خلاف فيصله کيږي، لهذا کله چې دواړه صورتونه ناممکن دي، نو مودَع سړی له غائب څخه بالکل عليحده او جلا سو، نو ځکه به د مودَع اقرار په خپل حق کې وي، د غائب خاوند په حق کې نه وي، او له مودَع څخه به د غائب خاوند وطرف ته منتقل کيږي.

(په دې عبارت کې له أحدُ الأمْرَيْن څخه دغه پورتني دوه صورتونه مراد دي، اول صورت په "لأنّ المودع ليس بخصم..." سره بيان سوی دی، او دويم صورت په "ولَا المَرْأةُ خَصْمٌ..." سره بيان سوی دی، او د خَصْم تفصيل په لغاتو کې ذکر سو).

**وكذا إلخ:** فرمايي که چيرې د غائب خاوند مال د مودَع سړي سره د وديعت په توګه پروت نه وي، بلکې د مضاربت په توګه وي، نو هم دغه حکم دی، يعني له هغه څخه به نفقه مقرره کيږي. او همدارنګه که د دغه سړي سره د غائب خاوند څه قرض پروت وي، او دغه سړی د قرض او زوجيت دواړو اقرار کوي، نو هم به له دې قرض څخه نفقه مقرره کيږي.

وهذا كله إلخ: فرمايي چي د نفقې مقرر کولو په هکله چې کوم تفصيل اوس ذکر سو. دا په هغه صورت کي دی کله چي دغه د وديعت مال يا د مضاربت مال يا د قرضې مال د ښځي د حق له جنس شخه وي (يعني د نفقې له جنس څخه وي)، مطلب دا چي روپۍ او پيسې وي. يا غله وي يا د ښځي د اغوستلو جامې وي. لېکن که هغه د ښځي د حق له جنس څخه نه وي، نو په دې صورت کي به له دغه مال څخه نفقه نه مقرره کيږي؛ ځکه کله چي دغه مال د ښځي د حق له جنس څخه نه وي. نو په هغه کي له خرڅولو څخه بغير نفقه مقرره کول ممکن نه دي (بلکي د نفقې لپاره به خامخا هغه مال خرڅول کيږي)، حالانکي حکم دا دی چي د غائب سړي مال بالاتفاق خرڅول جائز نه دي، نه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز او نه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ځکه جائز نه دي. ځکه هغه فرمايي چي کله د حاضر او موجود سړي مال خرڅول د قاضي لپاره جائز نه دي، نو د غائب او غير موجود سړي مال خرڅول به څرنګه جائز سي!، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که څه هم د قاضي لپاره د حاضر سړي مال خرڅول جائز دي، لېکن د غائب سړي مال خرڅول جائز نه دي، د صاحبينو په نيز قاضي لپاره د حاضر سړي مال خرڅول ځکه جائز دي چي قاضي ته د دغه حاضر سړي په هکله دا معلوم دي چي هغه له حق اداء کولو څخه انکار کوي (ځکه چي هغه د قاضي په مخ کي انکار کوي)، لېکن د غائب سړي په هکله هغه ته دا نه معلوميږي چي آيا هغه له حق اداء کولو څخه انکار کوي او که حق اداء کول غواړي، نو په دې وجه به د قاضي لپاره د غائب سړي مال خرڅول جائز نه وي. والله أعلم وعلمه أتم

## د پورتنی مسئلي بل صورت

قَالَ: وَيَأْخُذُ مِنْهَا كَفِيلًا بِهَا نَظَرًا لِلْغَائِبِ فرمايي: او قاضي به له ښځي څخه کفيل [ضامن] اخلي پر غائب خاوند د شفقت کولو په خاطر [يا د غائب خاوند د ښېګڼي او فائدي لپاره] لِأَنَّهَا رُبَّمَا اسْتَوْفَتِ النَّفَقَةَ أَوْ طَلَّقَهَا الزَّوْجُ وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا ځکه کېدای سي چي ښځي [مخکي] پوره نفقه اخيستې وي يا [کېدای سي چي] خاوند هغې ته طلاق ورکړی وي فَرَّقَ بَيْنَ هٰذَا وَبَيْنَ الْمِيرَاثِ إِذَا قُسِمَ بَيْنَ وَرَثَةٍ حُضُورٍ بِالْبَيِّنَةِ امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې او د ميراث په مينځ کي فرق کړی دی کله چي ميراث د ګواهانو په ذريعه د حاضرو وارثانو په مينځ کي [د قاضي له طرفه] تقسيم کړی سي وَلَمْ يَقُولُوا: لَا نَعْلَمُ لَهُ وَارِثًا آخَرَ او وارثان دا نه وايي: چي موږ ته د مړي بل وارث معلوم نه دی [يعني د قاضي مخته دا خبره نه وکړي

چې زموږ څخه بغير بل وارث هم سته؛ حَيْثُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهُمُ الْكَفِيلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو په دې صورت کې به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له هغو څخه کفيل نه اخيستل کيږي لِأَنَّ هُنَاكَ الْمَكْفُولَ لَهُ مَجْهُولٌ ځکه چې هلته ايعني په ميراث کې؛ مکفول له نا معلوم دی وَهٰهُنَا مَعْلُومٌ وَهُوَ الزَّوْجُ او دلته ايعني په نفقه کې مکفول له؛ معلوم دی چې هغه خاوند دی وَيُحَلِّفُهَا بِاللهِ مَا أَعْطَاهَا النَّفَقَةَ نَظَرًا لِلْغَائِبِ او قاضي به له دغه ښځې څخه داسې قسم اخلي چې په خدای قسم! هغه ما ته نفقه راکړې نه ده، پر غائب خاوند د شفقت لپاره.

**اللغات:** ﴿كَفِيْل﴾ ضامن، ذمه وار. ﴿نَظَرًا﴾ شارحينو د دې لفظ څو معناوي کړي دي: ① د شفقت کولو په خاطر، ② د مصلحت او ښېګڼې لپاره، ③ د نفع او فايدې لپاره، ﴿إِسْتَوْفَتْ﴾ د استفعال ماضي ده: خپل حق پوره اخيستل، ﴿يُحَلِّفُ﴾ د تفعيل مضارع ده: په بل چا قسم خوړل، قسم ځنې اخيستل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کله په مخکنې صورت کې قاضي د ښځې لپاره د غائب خاوند له مال څخه نفقه مقرره کړي، نو بايد قاضي پر غائب خاوند د شفقت کولو په خاطر له ښځې څخه د دې خبرې د ضمانت لپاره کفيل واخلي چې ښځه به زيات مال نه خرڅوي او بې ځايه به د هغه مال نه مصرفوي (يعني يو کفيل به متعين کړي چې هغه به پر ښځې نګراني کوي، او دا وعده به کوي چې که چېرې دغه ښځې بې ځايه د غائب نفقه مصرف کړه، نو زه د هغه ذمه وار يم، او زه يې ورکوم): د نفقې په هکله له ښځې څخه د کفيل اخيستلو وجه دا ده چې کېدای سي خاوند به دغه ښځې ته د روانېدلو او غائبېدلو په وخت کې وړاندې (پر يوه ځای) ورکړې وي، يا خاوند به هغې ته طلاق ورکړی وي او د هغې عدت به هم پوره سوې وي، نو هغه به د نفقې حقداره نه وي بلکې پر غلطه طريقه به نفقه اخلي، نو د دې خبرې د ضمانت لپاره به کفيل ځني اخيستل کيږي چې که ښځه پر غلطه طريقه د غائب خاوند مال اخلي، نو کفيل به هغه مال خاوند ته واپس ورکوي، همدا د کفيل اخيستلو او متعينولو وجه ده.

**فرق الخ:** د "فَرَّقَ" فاعل امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، يعني امام صاحب رَحِمَهُ الله په نفقه او ميراث کې فرق کړی دی، حاصل يې دا دی چې کله يو څو خلک د قاضي په دربار کې د يو مَيِّت د وراثت دعویٰ وکړي چې موږ د دې مړي وارثان يو، او دا خبره نه وکړي چې زموږ څخه بغير بل وارث هم سته، نو قاضي به د دغه موجوده وارثانو په مېنځ کې د مړي ميراث تقسيموي او د امام صاحب په نيز به له دوی څخه کفيل نه اخلي، خو د هغه په نيز به دلته د نفقې په مسئله کې له ښځې څخه کفيل اخلي، په دې

دوارو مسئلو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د فرق وجه دا ده چي د ميراث په صورت کي دا خبره معلومه نه ده چي آيا بل وارث (مکفول لهٔ) به پيدا سي، او که نه سي (يعني د ميراث په صورت کي مکفول لهٔ مجهول دی)، نو ځکه به پر قاضي د هغه د ميراث حصه محفوظه ساتل ضروري نه وي (يعني نو ځکه به پر قاضي دا ضروري نه وي چي له وارثانو څخه د ضمانت په توګه يو کفيل واخلي چي که چيري بل وارث پيدا سي او راسي نو تاسو به هغه ته خپله حصه واپس ورکوئ). او د نفقې په صورت کي خاوند (مکفول لهٔ) معلوم دی او مال هم د خاوند دی، نو ځکه به قاضي د نفقې په مسئله کي له ښځي څخه کفيل اخلي، او کفيل به د دې ضمانت ورکوي چي که ښځه په غلطه طريقه نفقه استعمال کړي، نو زه د هغه ذمه وار يم، او زه به يې واپس ورکوم.

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

قَالَ: وَلَا يَقْضِي بِنَفَقَةٍ فِي مَالِ غَائِبٍ إِلَّا لِهَؤُلَاءِ فرمايي: فيصله به نه کوي قاضي د غائب په مال کي مګر د دغه کسانو لپاره [يعني د غائب سړي د ښځي او د هغه د مور وپلار او د هغه د کوچني بچيانو لپاره] وَوَجْهُ الْفَرْقِ: هُوَ أَنَّ نَفَقَةَ هَؤُلَاءِ وَاجِبَةٌ قَبْلَ قَضَاءِ الْقَاضِي او وجه د فرق دا ده چي د دې کسانو نفقه د قاضي تر قضا [فيصلې] مخکي [هم] واجب ده وَلِهَذَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَأْخُذُوا قَبْلَ الْقَضَاءِ او له همدې وجهي دغه کسانو ته دا اختيار سته چي د قاضي تر قضاء مخکي [هم] نفقه واخلي فَكَانَ قَضَاءُ الْقَاضِي إِعَانَةً لَهُمْ لهذا د قاضي قضاء [فيصله] به د دې کسانو لپاره د مرستې [او کومک] په توګه وي أَمَّا غَيْرُهُمْ مِنَ الْمَحَارِمِ فَنَفَقَتُهُمْ إِنَّمَا تَجِبُ بِالْقَضَاءِ لېکن له دوی څخه بغير د نورو محارمو نفقه [فقط] د قاضي په قضاء سره واجبيږي لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ ځکه چي هغه [يعني د نورو محارمو د نفقې مسئله] مختلف فيه ده وَالْقَضَاءُ عَلَى الْغَائِبِ لَا يَجُوزُ او پر غائب کس فيصله کول جائز نه دي انو ځکه به د نورو محارمو د نفقې فيصله پر غائب خاوند نه جاري کيږي] وَلَوْ لَمْ يَعْلَمِ الْقَاضِي بِذَلِكَ وَلَمْ يَكُنْ مُقِرًّا بِهِ او که قاضي په زوجيت خبر نه وي [اچي دا ښځه د هغه زوجه ده او که نه ده؟] او مودَع هم د دې قرار کونکی نه وي فَأَقَامَتِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الزَّوْجِيَّةِ او [بيا] ښځي پر خپل زوجيت بيّنه قائم کړه أَوْ لَمْ يُخَلِّفْ مَالًا يا [دا چي] خاوند مال پرې ايښی نه وو فَأَقَامَتِ الْبَيِّنَةَ لِيَفْرِضَ الْقَاضِي نَفَقَتَهَا عَلَى الْغَائِبِ وَيَأْمُرَهَا بِالِاسْتِدَانَةِ او [بيا] ښځي بيّنه قائم کړه د دې لپاره چي قاضي پر غائب د هغې نفقه مقرره کړي او ښځي ته د قرض اخيستلو

حکم وکړي لَا يَقْضِي الْقَاضِي بِذٰلِكَ نو [په دې دواړو صورتونو کې] به قاضي د دې فيصله نه کوي ايعني نفقه به نه مقرره کوي او ښځې به د "استدانة" حکم نه کوي] لِأَنَّ فِي ذٰلِكَ قَضَاءً عَلَى الْغَائِبِ ځکه چې په دې کې [هم] پر غائب فيصله کول لازميږي [او قضاء على الغائب جائز نه ده] وَقَالَ زُفَرُ: يَقْضِي فِيهِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قاضي به په دې [صورتونو] کې [د نفقې] فيصله کوي لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لَهَا ځکه چې په دې کې د ښځې لپاره شفقت [او مصلحت] دی وَلَا ضَرَرَ فِيهِ عَلَى الْغَائِبِ او پر غائب خاوند هيڅ ضرر نسته فَإِنَّهُ لَوْ حَضَرَ وَصَدَّقَهَا ځکه که چيرې هغه حاضر سي او د ښځې تصديق وکړي فَقَدْ أَخَذَتْ حَقَّهَا نو [ثابته به سي چې] ښځې خپل حق اخيستی دی وَإِنْ جَحَدَ او که هغه انکار وکړي [چې دا زما ښځه نه ده] يُحَلَّفُ نو قسم به ځني اخيستل کيږي فَإِنْ نَكَلَ فَقَدْ صَدَّقَ بيا که هغه له قسم څخه انکار وکړي نو [ګواکي] هغه [د ښځې] تصديق وکړی وَإِنْ أَقَامَتْ بَيِّنَةً او که ښځه بيّنه پېش کړي فَقَدْ ثَبَتَ حَقُّهَا نو [هم] د هغې حق ثابتيږي وَإِنْ عَجَزَتْ او که ښځه [له بيّنه پېشولو څخه] عاجزه سي يَضْمَنُ الْكَفِيلُ أَوِ الْمَرْأَةُ نو کفيل يا ښځه به [د نفقې واپس کولو] ضامن وي وَعَمَلُ الْقُضَاةِ الْيَوْمَ عَلَى هٰذَا أَنَّهُ يَقْضِي بِالنَّفَقَةِ عَلَى الْغَائِبِ لِحَاجَةِ النَّاسِ او د قاضيانو عمل نن سبا پر همدغه دی چې قاضي د خلګو د ضرورت پر بناء پر غائب سړي باندې د نفقې فيصله کوي وَهُوَ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او دا مسئله مختلف فيه ده وَفِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَقَاوِيلُ مَرْجُوعٌ عَنْهَا او په دې مسئله کې نور [هم ډېر] اقوال سته چې له هغوی څخه رجوع سوې ده [يعني هغه غير راجع او نامعتبر اقوال دي] فَلَمْ نَذْكُرْهَا نو ځکه موږ هغه ذکر نه کړل.

**اللغات:** ﴿إِعَانَة﴾ د افعال مصدر دی: د بل چامرسته او کومک کول. ﴿اِسْتِدَانَة﴾ د استفعال مصدر دی: قرض اخيستل. ﴿صَدَّقَ﴾ د تفعيل ماضي ده: تصديق کول، رېښتونی ګڼل. ﴿جَحَدَ﴾ د فتح ماضي ده: انکار کول. ﴿أَقَاوِيل﴾ جمعُ الجمع د "قَوْلٌ" ده: قولونه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې قاضي د غائب خاوند له مال څخه فقط د ښځې، او د هغه د مور و پلار او کوچني بچيانو لپاره نفقه مقرره کولای سي، او له دې څخه بغير د خاوند د نورو قريبانو لپاره مثلاً د هغه د اکا، ورور او خور لپاره نفقه نه سي مقرره کولای، ځکه چې د ښځې او د مور و پلار او بچيانو نفقه خو د قاضي تر قضاء مخکې هم د خاوند په مال کې ثابته ده، او له قضاء څخه بغير هم د دغه کسانو لپاره د نفقې او خرچې

اخيستلو اختيار سته. لهذا د دې کسانو د نفقې په سلسله کې د قاضي قضاء او فيصله فقط د دوی د اعانت او کومک لپاره ده. او د دوی په حق کې د نفقې د وجوب او لزوم سره د قاضي د قضاء هيڅ تعلق نسته. پاته سو له دوی څخه بغير د نورو قريبانو (محارمو) د نفقې مسئله. نو څرنګه چې د هغو د نفقې مسئله مختلف فيه ده. او شوافع د هغو لپاره نفقه نه ثابتوي. نو ځکه به د هغو د نفقې وجوب د قاضي پر قضاء موقوف وي. خو څرنګه چې دلته د هغو قريب (يعني خاوند) غائب دی. او پر غائب سرې فيصله کول (قضاء على الغائب) صحيح نه ده. نو ځکه به د غائب په مال کې د ښځې او د مور و پلار او کوچني بچيانو څخه بغير د نورو قريبانو لپاره نفقه مقرره کول صحيح نه وي.

**ولو لم يعلم إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که قاضي ته دا خبره معلومه نه وي چې آيا دا ښځه د غائب سړي زوجه (ښځه) ده او که نه ده. او مودَع (صاحبُ اليد) هم د هغې په حق کې اقرار نه کوي چې دا د هغه ښځه ده. لېکن دا ښځه په خپله پر خپل زوجيت ګواهان پېش کړي (چې زه د هغه ښځه يم). يا دا چې غائب خاوند بالکل مال پرې ايښی نه وي. لېکن بيا هم دا ښځه په دې نيت سره پر خپل زوجيت ګواهان پېش کړي چې قاضي زما لپاره پر غائب سړي نفقه مقرره کړي او ما ته د هغه پر نامه د قرض اخيستلو حکم راکړي. نو په دې دواړو صورتونو کې د قاضي لپاره د ښځې د ګواهانو پر ګواهي فيصله کول او پر غائب خاوند باندې نفقه مقرره کول صحيح نه دي. ځکه چې دا هم قضاء على الغائب ده. کوم چې زموږ په نيز ناجائز ده.

د دې په خلاف امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې قاضي ته پکار دي چې په دواړو صورتونو کې پر غائب خاوند نفقه مقرره کړي او ښځې ته د هغه په نامه د قرض اخيستلو حکم وکړي او له ښځې څخه يو کفيل (ضامن) واخلي. ځکه چې په داسي کولو کې د ښځې لپاره شفقت او نفع سته. او د غائب خاوند هيڅ نقصان پکښې نسته. ځکه کله چې غائب خاوند حاضر سي او د دې ښځې د قول تصديق وکړي (چې دا زما ښځه ده). نو دا خبره به ثابته سي چې ښځه په خپله دعوىٰ کې رښتونې وه او هغې خپل حق اخيستی دی. او که خاوند د هغې تکذيب وکړي (چې دا زما ښځه نه ده. دروغ وايي). نو بيا به له خاوند څخه قسم اخيستل کيږي. که هغه له قسم څخه انکار وکړي يا ښځه بيا ګواهان پېش کړي. نو بيا به هم د ښځې حق او رښتيا والی ثابت سي. او که خاوند قسم وکړي او د دې ښځې د دعوىٰ تکذيب وکړي. نو په دې صورت کې به هغه ټوله مال له ښځې څخه يا د هغې له کفيل څخه اخيستل کيږي. کوم چې د خاوند له مال څخه هغې ته ورکول سوی وي.

**وعمل القضاة إلخ:** فرمايي چې په اوسني وخت کې (يعني د مصنف رَحِمَهُ الله په وخت کې) قاضيان د امام زفر رَحِمَهُ الله پر قول عمل کوي. او د هغه د قول مطابق قاضيان د غائب خاوند په نفقه کې د نفقې حکم کوي. ځکه چې خلکو ته د دې ضرورت سته. او بيا دا مسئله مختلف فيه هم ده. او په دې کې ډېر غيرِ راجح او نامعتبر اقوال هم سته. لهذا د نامعتبر والي په وجه موږ هغه پرېښوول. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

# فَصْلٌ

**تشريح:** دا فصل هم د نفقه او سکنیٰ په بيان کې دی، لېکن د مخکنې فصل او د دې فصل په مينځ کې فرق دا دی چې په مخکنې فصل کې د هغه نفقې او سکنیٰ بيان وو کوم چې ښځې ته د نکاح په حالت کې ورکول کيږي. او په دې فصل کې هغه نفقه او سکنیٰ بيانيږي کوم چې تر نکاح ختمېدلو (او طلاق ورکولو) وروسته ښځې ته ورکول کيږي.

## د مُطلقه (طلاق سوې) ښځې لپاره د نفقې او سکنیٰ حکم

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ اِمْرَأَتَهُ او کله چې سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي فَلَهَا النَّفَقَةُ وَالسُّكْنٰى فِي عِدَّتِهَا نو د هغې [مطلّقه ښځې] لپاره به نفقه او سکنیٰ وي د عدت په زمانه کې رَجْعِيًّا كَانَ أَوْ بَائِنًا هغه که رجعي طلاق وي يا بائن طلاق وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا نَفَقَةَ لِلْمَبْتُوتَةِ إِلَّا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د مطلقه بائنه ښځې لپاره نفقه نسته خو دا چې هغه حامله وي أَمَّا الرَّجْعِيُّ فَلِأَنَّ النِّكَاحَ بَعْدَهُ قَائِمٌ کوم چې طلاقِ رجعي دی نو ځکه چې تر هغه وروسته نکاح باقي پاته وي لَا سِيَّمَا عِنْدَنَا خصوصاً زموږ په نيز فَإِنَّهُ يَحِلُّ لَهُ الْوَطْءُ ځکه چې [تر طلاقِ رجعي وروسته زموږ په نيز] د خاوند لپاره وطي روا دي وَأَمَّا الْبَائِنُ فَوَجْهُ قَوْلِهِ مَا رُوِيَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ او پاته سو طلاقِ بائن نو [په هغه کې] د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول دليل هغه حديث دی کوم چې له فاطمه بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت سوی دی قَالَتْ: طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلَاثًا [1] فَلَمْ يَفْرِضْ لِي رَسُولُ اللهِ ﷺ سُكْنٰى وَلَا نَفَقَةً هغې فرمايلي دي: چې ما ته خپل خاوند درې طلاقونه راکړه، نو نبي ﷺ نه زما لپاره سکنیٰ متعين کړه او نه نفقه وَلِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ او ځکه چې [په بائنه ښځه کې] د خاوند هيڅ ملکيت [پاته] نه وي وَهِيَ

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب في نفقة المبتوتة، حديث رقم:٢٢٨٨، وابن ماجه في كتاب الطلاق، باب رقم:١٠، حديث رقم:٢٠٢٠

مُرَتَّبَةٌ عَلَى الْمِلْكِ او نفقه پر ملکيت مرتب کيږي وَلِهٰذَا لَا تَجِبُ لِلْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا او له همدې وجهې د کونډې سوي ښځې لپاره نفقه نه واجبيږي لِانْعِدَامِهِ ځکه چې [د خاوند] ملکيت ختم سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا په خلاف د هغه صورت کله چې ښځه حامله وي لِأَنَّا عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ ځکه چې موږ اشوافعو. د هغې په هکله د نفقې وجوب] په آيت سره معلوم کړې دی. وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالٰى: وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ [الطلاق: ٦] او هغه د الله تعالىٰ دا فرمان دی: او که چيرې دغه ښځې حمل لرونکې [حاملانې] وي نو تاسې پر دوی نفقه کوئ! [يعني نفقه ورکوئ!] وَلَنَا: أَنَّ النَّفَقَةَ جَزَاءُ احْتِبَاسٍ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا او زموږ دليل دا دی چې نفقه د احتباس بدله ده لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه وَالِاحْتِبَاسُ قَائِمٌ فِي حَقِّ حُكْمٍ مَقْصُودٍ بِالنِّكَاحِ وَهُوَ الْوَلَدُ او احتباس [اوس هم] پاته دی د هغه حکم په حق کې کوم چې د نکاح مقصود دی او هغه بچی دی إِذِ الْعِدَّةُ وَاجِبَةٌ لِصِيَانَةِ الْوَلَدِ ځکه چې عدت خو د بچي [د نسب] د حفاظت لپاره واجب دی فَتَجِبُ النَّفَقَةُ نو نفقه به [هم] واجبيږي وَلِهٰذَا كَانَ لَهَا السُّكْنٰى بِالْإِجْمَاعِ او له همدې وجهې د مطلقه بائنه لپاره بالاتفاق سکنیٰ [واجب] ده وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَتْ حَامِلًا نو داسې سوه لکه کله چې هغه حامله وي [يعني هغه د حاملې په درجه کې واقع سوه] وَحَدِيثُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ رَدَّهُ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د فاطمه بنت قيس حديث عمر بن خطاب رضي الله عنه رد کړی دی فَإِنَّهُ قَالَ: لَا نَدَعُ كِتَابَ رَبِّنَا وَسُنَّةَ نَبِيِّنَا بِقَوْلِ امْرَأَةٍ لَا نَدْرِي صَدَقَتْ أَمْ كَذَبَتْ حَفِظَتْ أَمْ نَسِيَتْ هغه وفرمايل: چې موږ د خپل رب کتاب او د خپل نبي سنت د يوې داسې ښځې په خبره نه سو پرېښوولای چې ادهغې په هکله] موږ ته دا معلومه نه ده چې هغه به رښتيا وايي، که دروغ؟ [او] آيا هغې ته به [د نبي ﷺ فرمان] ياد وي، او که [ځني] هېر سوی به وي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ[1]: لِلْمُطَلَّقَةِ الثَّلَاثِ النَّفَقَةُ وَالسُّكْنٰى مَا دَامَتْ فِي الْعِدَّةِ ما له نبي ﷺ څخه واورېدل چې هغه وفرمايل: کومې ښځې ته چې درې طلاقونه ورکول سوي وي د هغې لپاره به نفقه او سکنیٰ [واجب] وي تر څو چې هغه په عدت کې وي وَرَدَّهُ أَيْضًا زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَجَابِرٌ وَعَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او [همدارنګه] هغه [د فاطمه بنت قيس حديث] زيد بن ثابت، اسامه بن زيد، حضرت جابر او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم رد کړی دی.

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الطلاق، باب ما جاء في المطلقة ثلاثا لا سكنى لها ولا نفقة، حديث رقم: ١١٨٩

**اللغات:** ﴿مَبْتُوْتَةٌ﴾ بائنه ښځه، له خاوند څخه جلا سوې ښځه. (ښځه په طلاق بائن، يا طلاق ثلاث سره مبتوته ګرځي او له خاوند څخه جلا کيږي)، ﴿لَمْ يَفْرِضْ﴾ د ضرب له باب څخه د جحد معلوم صيغه ده: متعينول، مقرر کول، ټاکل، فرض کول. ﴿إِحْتِبَاس﴾ د افتعال مصدر دی: بنديدل، محبوسه کېدل. د دې لفظ تفصيلي معنیٰ مخکي تېره سو. ﴿لَا نَدْرِيْ﴾ د ضرب له باب څخه د جمع متکلم نفي صيغه ده: خبريدل. پېژندل. (معلوميدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی کومي ښځي ته چي خاوند طلاق ورکړی وي. تر څو چي دا ښځه په عدت کي وي، تر هغه وخته پوري به د خاوند له طرفه هغې ته نفقه او سکنیٰ ورکول کيږي، هغه که مطلقه رجعيه وي، يا مطلقه بائنه وي، يا مطلقه ثلاثه وي، زموږ په نېز به هري طلاق سوي ښځي ته د عدت په دوران کي نفقه او سکنیٰ دواړه ورکول کيږي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دا دی چي فقط مطلقه رجعيه ښځي ته به نفقه او سکنیٰ ورکول کيږي، او مطلقه بائنه او ثلاثه که چيري حمل والا وي، نو هغوی ته به نفقه ورکول کيږي، کنې نه به ورکول کيږي؛ د مطلقه رجعيه ښځي مسئله خو متفق عليه ده، ځکه چي تر طلاق رجعي وروسته نکاح باقي پاتيږي خصوصاً زموږ په نېز، ځکه زموږ په نېز خو د مطلقه رجعيه ښځي سره (د عدت په وخت کې) وطي کول هم جلال دي، نو د هغې په هکله د دليل ذکر کولو هيڅ ضرورت نسته.

**د امام شافعي دليل:** د مطلقه بائنه او ثلاثه مسئله مختلف فيه ده، نو د دې مسئلې په هکله (د نفقې پر نه مستحق کېدلو) د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل هغه حديث دی کوم چي له حضرت فاطمه بن قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت سوی دی چي "طَلَّقَنِيْ زَوْجِيْ ثَلَاثًا فَلَمْ يَفْرِضْ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سُكْنٰى وَلَا نَفَقَةً" (يعني زما خاوند ماته دري طلاقونه راکړه، لېکن نبي ﷺ زما لپاره نه سکنیٰ مقرر کړه، او نه نفقه)، په دې روايت سره دا خبره ثابته سوه چي د مطلقه ثلاثه لپاره نفقه او سکنیٰ نسته، او عقلي دليل دا دی چي پر مطلقه بائنه يا ثلاثه د خاوند ملکيت ختميږي، او د شوافعو په نېز نفقه د ملک بضع عوض ده، لهذا کله چي ملک (ملکيت) ختم سي، نو نفقه به هم ختميږي، همدا وجه ده چي کونډې سوي ښځي ته نفقه او سکنیٰ نه ورکول کيږي، ځکه چي په مرګ سره د خاوند ملکيت له هغې څخه ختم سي. ها! که مطلقه بائنه يا ثلاثه حامله وي. نو بيا به ځکه نفقه ورکول کيږي چي د حامله ښځو د نفقې مستحق کېدل د قرآن په دې آيت سره ثابت دي: "وَإِنْ كُنَّ أُوْلَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوْا عَلَيْهِنَّ... إلخ" (يعني که مطلقه ښځي د حمل والا وي، نو تر حمل زېږولو پوري هغو ته نفقه ورکوئ!)، نو ځکه موږ (شوافع) د نفقې په هکله په مطلقه بائنه او مطلقه ثلاثه کي د حمل شرط لګوو.

**زموږ دليل:** دا دی چي نفقه د احتباس جزاء او بدله ده، او احتباس د هري طلاق سوي ښځي په حق کي موجود دی، هغه که رجعيه وي، يا بائنه او ثلاثه وي، ځکه چي تر طلاق وروسته هم د نکاح د مقصود يعني د وَلَد او بچي په حق کي احتباس باقي دی، او عدت په همدغه وجه واجبيږي چي د هغه بچي حفاظت وکړي

سي (او د خاوند سره يې نسب ثابت کړی سي)، لهذا کله چې د هري مُطلَقې ښځې په حق کې احتباس موجود دی، نو هري يوې ته به نفقه او سکنیٰ هم ورکول کيږي، او د دې احتباس په وجه د مطلقه بائنې لپاره بالاتفاق سکنیٰ واجب ده، حالانکې نفقه له سکنیٰ څخه زياته ضروري دي، نو ځکه به نفقه هم ورکول کيږي او بائنه ښځې ته به د حاملې ښځې درجه ورکول کيږي.

**وحديث فاطمة إلخ:** پاته سو د فاطمه بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث، نو د هغه جواب دا دی چې زياتره صحابه وو دا حديث رد کړی دی، لکه څرنګه چې حضرت عمر ﷺ فرمايي چې "د يوې ښځې په خبره سره نه موږ د خپل رب کتاب "أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ" پرېښودلای سو، او نه د خپل نبي ﷺ سنت پرېښودلای سي، حال دا چې موږ ته دا هم معلومه نه ده چې هغې ښځې به د نبي ﷺ فرمان ياد ساتلی وي او که څني هېر سوي به وي". وروسته فرمايي چې: "سمعتُ رسولَ اللهِ ﷺ يقولُ للمُطَلَّقةِ الثَّلاث النفقةُ والسُّكنىٰ مَا دامت فِي العِدّة" (يعني تر څو چې مطلقه ثلاثه په عدت کې وي، تر هغه وخته به نفقه او سکنیٰ ورکول کيږي)، په دې حديث سره زموږ دا خبره نوره هم مؤکده سوه چې مطلقه بائنه او ثلاثه ته به د عدت په ورځو کې نفقې او سکنیٰ دواړه ورکول کيږي، همدارنګه حضرت زيد بن ثابت، اسامه بن زيد، حضرت جابر او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم دا حديث رد کړی دی، نو ځکه به دا حديث د استدلال قابل نه وي.

## د کونډې سوې ښځې لپاره د نفقې حکم

وَلَا نَفَقَةَ لِلْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا او د کونډې سوې ښځې لپاره نفقه نسته لِأَنَّ احْتِبَاسَهَا لَيْسَ لِحَقِّ الزَّوْجِ بَلْ لِحَقِّ الشَّرْعِ ځکه چې د هغې احتباس د خاوند د حق لپاره نه دی، بلکې د شريعت د حق لپاره دی فَإِنَّ التَّرَبُّصَ عِبَادَةٌ مِنْهَا ځکه چې د هغې له طرفه ايسارېدل (او انتظار کول) عبادت دی أَلَا تَرٰى أَنَّ مَعْنَى التَّعَرُّفِ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ لَيْسَ بِمُرَاعًى فِيهِ آيا ته نه ګورې! چې د رحم د خالي والي معلومولو معنیٰ د هغې په عدت کې نه مراعات کيږي حَتّٰى لَا يُشْتَرَطَ فِيهَا الْحَيْضُ تر دې چې په هغې کې حيض (هم) نه شرط کيږي فَلَا تَجِبُ نَفَقَتُهَا عَلَيْهِ نو ځکه به پر (مړ سوي) خاوند د هغې نفقه نه واجبيږي وَلِأَنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ شَيْئًا فَشَيْئًا او ځکه چې نفقه په کراره، کراره (لږ، لږ) واجبيږي (په يوه وار د ټوله عمر نفقه نه واجبيږي) وَلَا مِلْكَ لَهُ بَعْدَ الْمَوْتِ او تر مرګ وروسته خاوند لره ملکيت نه وي (بلکې د وارثانو ملکيت وي) فَلَا يُمْكِنُ إِيجَابُهَا فِي مِلْكِ الْوَرَثَةِ او د وارثانو په ملکيت کې نفقه واجبول ممکن نه دي.

**اللغات:** ﴿تَرَبُّص﴾ د تفعّل مصدر دی: انتظار کول، ايساريدل، درنګ کول، په يو ځای کې وخت تيرول.
﴿تَعَرُّف﴾ د تفعّل مصدر دی: پيژندل، معلومول. ﴿إِيْجَاب﴾ د افعال مصدر دی: واجبول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې کونډې سوې ښځې ته به د عدت په دوران کې نفقه ورکول کيږي؛ دليل دا دی چې نفقه د هغه احتباس بدله ده، کوم چې د خاوند لپاره وي، او د کونډې ښځې احتباس د شريعت د حق لپاره دی، نه د خاوند د حق لپاره، ځکه کومې څلور مياشتې او لس ورځې چې هغه خپل ځان ايساروي، هغه د کونډې ښځې له طرفه عبادت دی، همدا وجه ده چې په دې مودت کې نه د هغې د رحم برائت معلومول مقصود وي، او نه په دې مودت کې هغې ته د حيض راتلل مشروط دي. نو معلومه سوه چې په عدت کې د هغې احتباس د نکاح د مقصود يعني د وَلَد او بچي لپاره نه دی، نو ځکه به د هغې لپاره نفقه هم واجب نه وي.

**ولأن النفقة إلخ:** په دې هکله دويم دليل دا دی چې (د خاوند په مال کې) د ښځې تول عمر نفقه په يوه وار نه واجبيږي، بلکې جلا، جلا او لږ، لږ واجبيږي، او تر مرګ وروسته په مال کې د خاوند ملکيت ختم سي. او وارثانو ته نقل سي نو د بل چا په ملکيت کې به نفقه څرنګه واجب کړی سي!!!، نو ځکه به د کونډې ښځې لپاره نفقه نه واجبيږي.

## په کومو صورتونو کې به ښځې ته نفقه نه ورکول کيږي؟

وَكُلُّ فُرْقَةٍ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْمَرْأَةِ بِمَعْصِيَةٍ مِثْلَ الرِّدَّةِ وَتَقْبِيلِ ابْنِ الزَّوْجِ او هر هغه فرقت کوم چې د يو ګناه په سبب د ښځې له طرفه راغلی وي لکه مرتد کيدل او د خاوند زوی [يعني مېرزی زوی په شهوت سره] مچول فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو د هغې لپاره به نفقه [واجب] نه وي لِأَنَّهَا صَارَتْ حَابِسَةً نَفْسَهَا بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه چې دا ښځه له يو حق څخه بغير د خپل ځان منع کونکې وګرځيده فَصَارَتْ كَمَا إِذَا كَانَتْ نَاشِزَةً نو داسې سوه لکه کله چې هغه نافرمانه وي بِخِلَافِ الْمَهْرِ بَعْدَ الدُّخُولِ په خلاف تر دخول وروسته د مهر لِأَنَّهُ وُجِدَ التَّسْلِيمُ فِي حَقِّ الْمَهْرِ ځکه چې [په وطې او دخول سره] د مهر په حق کې [د بضع] ور سپارل موجود سو وَبِخِلَافِ مَا إِذَا جَاءَتِ الْفُرْقَةُ مِنْ قِبَلِهَا بِغَيْرِ مَعْصِيَةٍ او په خلاف د هغه صورت کله چې له يو ګناه څخه بغير د ښځې له طرفه فرقت راغلی وي كَخِيَارِ الْعِتْقِ وَخِيَارِ الْبُلُوغِ وَالتَّفْرِيقِ لِعَدَمِ الْكَفَاءَةِ لکه خيارِ عتق او خيار بلوغ او د کُفو د نشتوالي په وجه تفريق [واقع کيدل] لِأَنَّهَا حَبَسَتْ نَفْسَهَا بِحَقٍّ ځکه چې [په دې صورت کې] ښځې د يو حق په وجه خپل ځان منع کړی او محبوس کړی دی وَذٰلِكَ لَا يُسْقِطُ النَّفَقَةَ او دا [حَبس] نفقه نه سي ساقطولای كَمَا إِذَا حَبَسَتْ نَفْسَهَا لِاسْتِيفَاءِ الْمَهْرِ لکه [په هغه

صورت کي چي حَبْس نفقه نه سي ساقطولای! کله چي ښځه د مهر اخیستلو لپاره خپل ځان اله خاوند څخه امنع کړي.

**اللغات:** ﴿فُرْقَة﴾ جدايي، ﴿مَعْصِيَة﴾ ګناه، نافرماني. ﴿تَقْبِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: مچول (ښکلول)، مچه اخیستل، ﴿حَابِسَةٌ﴾ د ضرب له باب څخه د مؤنث اسمِ فاعل صيغه ده، حَبَسَ يَحْبِسُ حَبْسًا و مَحْبَسًا: قيدي کول، بندي کول، منع کول (ځان راګرځول)، ﴿نَاشِزَة﴾ د نصر مؤنث اسمِ فاعل دی: نافرمانه ښځه، سرکښه، نفرت کونکې، ﴿اِسْتِيْفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: (خپل حق) پوره اخیستل.

**تشريح:** په دې عبارت کي معتده ښځي ته د نفقې ورکولو او نه ورکولو په هکله يوه قاعده کليه بيان سوې ده، حاصل يې دا دی چي هر هغه فرقت کوم چي د ښځي له طرفه د يو ګناه په سبب سره واقع سي، د هغه فرقت په عدت کي به ښځي ته نفقه نه ورکول کيږي. مثلاً که ښځه مرتده سي، يا ښځه خپل مېرزی (ناسکه) زوی په شهوت سره مچ کړي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورتونو کي د خاوند او ښځي تر مينځ تفريق واقع کيږي، نو تر تفريق وروسته به دغه ښځي ته د عدت د ورځو نفقه نه ورکول کيږي؛ دليل دا دی چي دا تفريق د ښځي د بدعمل په وجه واقع سوی دی، لهذا هغه د نافرماني (نَاشِزَه) ښځي په څير سوه، او نَاشِزَه ښځي ته نفقه نه ورکول کيږي. نو ځکه به هغې ته هم نفقه نه ورکول کيږي، ها! د سکنیٰ حق به ور کول کيږي.' (بنايه ج:۵، ص:۵۳۲)

**بخلاف المهر بعد الدخول إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که تر وطي او دخول وروسته ښځه يو داسې ګناه وکړي چي د هغه په وجه تفريق واقع سي، نو د ښځي مهر نه ساقطيږي، يعني فُرْقَة بِالْمَعْصِيَة فقط د نفقې په إسقاط کي مؤثِر دی، لېکن د مهر په إسقاط کي مؤثِر نه دی، ځکه چي په وطي سره د ښځي له طرفه خاوند ته د بضع ورسپارل ثابت سو، او مهر د تَسْلِيْمُ الْبِضْع بدل دی، يعني مهر ښځي ته د بضع سپارلو په بدله کي ورکول کيږي، نو ځکه به هغه واجب وي، او په دغه تفريق سره به هغه نه ساقطيږي.

**وبخلاف ما إذا جاءت إلخ:** همدارنګه که فرقت د ښځي له طرفه واقع سي، خو دا فرقت له معصيت او ګناه څخه خالي وي او د شرعي حق پر بناء وي، مثلاً منکوحه ښځه مينځه وي، او بيا آزاده سي، يا هغه نابالغه وي او بيا بالغه سي، يا ولي په غيرِ کفو کي د ښځي نکاح کړې وي، او په دې ټولو صورتونو کي ښځه له خاوند څخه فرقت او بېلتون اختيار کړي، نو که څه هم په دې صورتونو کي فرقت د ښځي له طرفه دی، خو څرنګه چي هغه له ګناه څخه خالي دی. او ښځي د يو حق په وجه ځان راګرځولی دی او فرقت يې واقع کړی دی، نو ځکه به په دې فرقت سره نفقه نه ساقطيږي، بلکي هغې ته به خپله نفقه ورکول کيږي. لکه په هغه صورت کي چي هم ښځي ته نفقه ورکول کيږي، کله چي خاوند مهرِ معجّل ټاکلی وي، او ښځه د مهر اخيستلو لپاره خپل ځان له خاوند څخه منع کړي (چي تر څو دې ما ته مهر راکړی نه وي، زه تا ته خپل ځان نه حواله کوم). نو په دې صورت کي به هم نفقه ورکول کيږي، ځکه چي دلته ځان منع کول او ځان راګرځول د يو داسې حق په وجه دي چي شريعت ښځي ته د هغه اختيار ورکړی دی.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ ارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ او كه خاوند ښځي ته درې طلاقونه وركړې [او] بيا العياذ بالله ښځه مرتده سي سَقَطَتْ نَفَقَتُهَا نو د هغې نفقه ساقطيږي وَإِنْ مَكَّنَتْ ابْنَ زَوْجِهَا مِنْ نَفْسِهَا او كه دا ښځه د خپل خاوند زوي ته [يعني مېرزي زوي ته] پر خپل ځان [د جماع] قدرت وركړي فَلَهَا النَّفَقَةُ نو د هغې لپاره به نفقه وي مَعْنَاهُ: مَكَّنَتْ بَعْدَ الطَّلَاقِ د دې مطلب دا دى: چې تر طلاق وروسته قدرت وركړي لِأَنَّ الْفُرْقَةَ تَثْبُتُ بِالطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ ځكه چې فرقت خو د درېو طلاقونو په وجه ثابت سو وَلَا عَمَلَ فِيهَا لِلرِّدَّةِ وَالتَّمْكِينِ او په فرقت كي د مرتد كېدلو او قدرت وركولو هيڅ دخل نسته إِلَّا أَنَّ الْمُرْتَدَّةَ تُحْبَسُ حَتَّى تَتُوبَ خو مرتده ښځه قيدي كيږي تر دې چې توبه وكړي وَلَا نَفَقَةَ لِلْمَحْبُوسَةِ او د قيد سوي ښځي لپاره نفقه نسته [يعني د بندي سوي ښځي لپاره پر خاوند نفقه واجب نه ده] وَالْمُمَكِّنَةُ لَا تُحْبَسُ او قدرت وركونكې ښځه نه قيدي كيږي [يعني په شريعت كي د داسي ښځي د قيدي كولو حكم سوى نه دى] فَلِهٰذَا يَقَعُ الْفَرْقُ نو په دې وجه [په دواړو صورتونو كي] فرق واقع سو.

**اللغات:** ﴿مَكَّنَتْ﴾ د تفعيل ماضي ده: د جماع قدرت وركول. ﴿تَتُوبَ﴾ د نصر مضارع ده: توبه كول (توبه كښل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو سړى خپلي ښځي ته درې طلاقه وركړل، بيا نعوذ بالله هغه ښځه مرتده سوه، نو د هغې نفقه ساقطيږي، او د عدت په ورځو كي به هغې ته نفقه نه وركول كيږي، ليكن كه هغې د عدت په ورځو كي خپل مېرزي (ناسكه) زوي ته پر خپل ځان قدرت وركړى او د هغه سره يې جماع وكړه، نو هغې ته به نفقه وركول كيږي؛ په دې دواړو صورتونو كي فرق دا دى چې فرقت خو په دواړو صورتونو د درېو طلاقونو په وجه واقع سوى دى، او د فرقت په وقوع كي د ښځي د ارتداد او تمكين (يعني پر ځان ناسكه زوى ته د قدرت وركولو) هيڅ دخل نسته، ليكن مرتده ښځه تر هغه وخت پوري قيدي كيږي (او په بنديخانه كي اچول كيږي) تر څو چې هغه توبه وكړي او كومه ښځه چې قيدي كړى سي، هغه پر خاوند د نفقې استحقاق نه لري (او هغې ته به نفقه نه وركول كيږي)، نو د مرتده ښځي د نفقې ساقطېدل د قيد او بندي كېدلو په وجه دي، د دې په خلاف مُمَكِّنَه ښځه (يعني ناسكه زوى ته پر خپل ځان قدرت وركونكې ښځه) نه قيدي كيږي، نو ځكه به هغه د نفقې مستحقه هم وي (او نفقه به وركول كيږي)، نو په دې اعتبار سره په دواړو صورتونو كي فرق راغلى.

❀❀❀

# فَصْلٌ فِيْ بَيَانِ نَفَقَةِ الْأَوْلَادِ

## (دا) فصل (د بچيانو د نفقې په بيان کي) دى

**تشريح:** څرنګه چي پر خاوند د ښځي نفقه واجب ده، همداسي د کوچني بچيانو نفقه هم د هغه پر ذمه واجب ده. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله د ښځي تر نفقې وروسته اوس د أولاد نفقه بيانوي.

## د کوچني بچيانو نفقه

وَنَفَقَةُ الْأَوْلَادِ الصِّغَارِ عَلَى الْأَبِ او د بچيانو نفقه پر پلار [واجب] ده لَايُشَارِكُهُ فِيهَا أَحَدٌ كَمَا لَا يُشَارِكُهُ فِي نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ چي په هغه کي به د پلار سره هيڅوک نه شريک کيږي لکه د ښځي په نفقه کي چي د هغه سره هيڅوک نه شريک کيږي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ [البقرة: ٢٣٣] ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: او د چا لپاره چي بچى زېږول سوى وي پر هغه [د بچي] د مندو نفقه [واجب] ده وَالْمَوْلُودُ لَهُ هُوَ الْأَبُ او مولود له همدا پلار دى.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دى چي څرنګه د ښځي نفقه فقط پر خاوند واجب ده، او په دې نفقه کي د خاوند سره د ښځي يا د خاوند بل هيڅ قريب شريک کېدلاى نه سي (چي د خاوند سره د هغې په نفقه کي مرسته وکړي)، همداسي د نابالغه بچيانو نفقه هم فقط پر خپل پلار واجب ده او د پلار سره د کوچني بچيانو په نفقه کي بل هيڅوک شريک کېدلاى نه سي، نه د بچيانو مور او نه يو بل قريب (بلکي د بچيانو د نفقې او خرڅې ټوله ذمه واري به د پلار په غاړه وي)؛ د اولاد نفقه په دې آيت سره واجب ده "وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ"، په دې آيت سره داسي دليل نيول کيږي چي الله تعالیٰ په دې آيت کي د ښځو نفقه پر خاوندانو واجب کړې ده. او د دې وجوب سبب مَوْلُود (بچى) دى، نو کله چي د سبب په وجه د مندو (أمهاتو) نفقه پر خاوندانو واجب ده. نو د مسبب نفقه خو به په درجه اولیٰ سره پر هغو واجب وي

## د شېر خواره (تي رودونکي) بچي نفقه

وَإِنْ كَانَ الصَّغِيرُ رَضِيعًا او که کوچنی شېر خوار [تی رودونکي] وي فَلَيْسَ عَلَى أُمِّهِ أَنْ تُرْضِعَهُ نو د هغه پر مور [واجب] نه دي چي هغه ته شيدې ورکړي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْكِفَايَةَ عَلَى الْأَبِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي کفايت پر پلار واجب دی وَأُجْرَةُ الرَّضَاعِ كَالنَّفَقَةِ او د رضاعت [شيدو ورکولو] اُجرت د نفقي په څير دی وَلِأَنَّهَا عَسَاهَا لَا تَقْدِرُ عَلَيْهِ لِعُذْرٍ بِهَا او څکه کېدای سي چي د يو عذر په وجه به مور پر شيدو ورکولو قدرت نه لري فَلَا مَعْنًى لِلْجَبْرِ عَلَيْهِ نو [په دې هکله] پر هغې د زور کولو هيڅ مطلب نسته وَقِيلَ فِي تَأْوِيلِ قَوْلِهِ تَعَالَى: لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا [البقرة: ۲۳۳] بِإِلْزَامِهَا الْإِرْضَاعَ مَعَ كَرَاهَتِهَا او د الله تعالیٰ د دې قول په تفسير کي ويل سوي دي: "لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا" [او په خپل بچي سره به مور ته ضرر نه رسول کيږي] په دې سره [به ضرر نه ور رسول کيږي] چي پر هغې لازم کړی سي "د شيدو ورکول" د هغې د ناخوښی باوجود وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَا بَيَانُ الْحُكْمِ او دا کوم څه چي موږ ذکر کړه [دا] د حکم بيان دی وَذٰلِكَ إِذَا كَانَ يُوجَدُ مَنْ تُرْضِعُهُ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي داسي ښځه پيدا کيږي چي کوچني ته شيدې ورکړي أَمَّا إِذَا كَانَ لَا تُوجَدُ مَنْ تُرْضِعُهُ او که داسي ښځه نه پيدا کيږي چي کوچني ته شېدو ورکړي تُجْبَرُ الْأُمُّ عَلَى الْإِرْضَاعِ نو [بيا] به مور پر شيدو ورکولو مجبوره کيږي صِيَانَةً لِلصَّبِيِّ عَنِ الضَّيَاعِ د دې لپاره چي کوچنی له ضايع کېدلو څخه وژغورل سي.

**اللغات:** ﴿رَضِيعٌ﴾ شېر خواره بچی، هغه بچي چي شيدې رودي (هغه کوچنی چي تر اوسه له تي څخه پرېکړی سوی نه وي، او کله چي پرېکړی سي نو "فَطِيم" ورته وايي) ﴿عَسٰى﴾ کېدای سي (امکان لري، ممکنه ده)، ﴿لَا تُضَارَّ﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: تکليف ورکول (تکليف رسول)، ضرر رسول. ﴿إِرْضَاعٌ﴾ د افعال مصدر دی: کوچني ته شيدې ورکول، کوچني ته تی ورکول. ﴿صِيَانَة﴾ د نصر د باب مصدر دی: ساتل، ژغورل، حفاظت کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د شېر خواره کوچني مور به پر شيدو ورکولو نه مجبوره کيږي (چي ته به خامخا او جبراً کوچني ته شيدې ورکوې)، بلکي که هغه په خپله شيدې ورکوي، نو د هغې احسان دی. کنې په دې سلسله کي به جبر او زور نه کيږي؛ د دې دليل مخکي تېر سو چي د کوچني کفالت او کفايت پر پلار واجب دی. لهذا څرنگه چي پر پلار د صغير نفقه واجب ده. همداسي د رضاعت اُجرت او خرچه هم پر هغه واجب

ده، دويم دليل دا دی چي کېدای سي مور د يو عذر او مجبوري په وجه پر شيدو ورکولو قدرت نه لري. لهذا هغه به پر شيدو ورکولو نه مجبوره کيږي. لکه څرنګه چي د دې آيت "وَلَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا" په تفسير کي ځيني مفسرينو ليکلي دي چي که د مور خوښه نه وي، نو هغه به پر شيدو ورکولو نه مجبوره کيږي. د آيت معنیٰ دا ده چي "مور ته به د کوچني په وجه ضرر نه رسول کيږي"، او د کوچني پر شيدو مور مجبوره کول هغې ته ضرر رسول دي (يعني که د هغې خوښه نه وي او پر هغې جبر او زور وکړی سي، نو په دې سره مور ته تکليف رسيږي)، نو ځکه به "مجبوره کول" په دې آيت سره جائز نه وي.

**وهذا الذي إلخ:** فرمايي کوم څه چي موږ بيان کړل، دا حکم او قضاء ده، او دا پر هغه صورت مبني دي. کله چي دايي (دايه) ښځه موجوده وي چي کوچني ته شيدې ورکړي، خو په دې صورت کي هم دياتاً خپلي مور ته پکار دي چي کوچني ته شيدې ورکړي، لېکن که يوه دايي ښځه نه وي، يا پلار د اُجرت قدرت نه لري، يا کوچنی د بلي ښځي شيدې نه رودي (او مور هم هيڅ عذر نه لري)، نو په دې صورت کي پر مور واجب دي چي کوچني ته شيدې ورکړي، او که هغه شيدې نه ورکوي، نو د هغې مجبوره کول جائز دي، ځکه که داسي نه وسي، نو کوچني به ضايع سي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: **وَيَسْتَأْجِرُ الْأَبُ مَنْ تُرْضِعُهُ عِنْدَهَا** فرمايي: او پلار به داسي ښځه په اُجرت نيسي کوم چي د مور سره ايعني د مور په کور کي] کوچني ته شيدې ورکوي **أَمَّا اسْتِيجَارُ الْأَبِ فَلِأَنَّ الْأَجْرَ عَلَيْهِ** کوم چي د پلار استيجار [په اُجرت سره د ښځي نيول] دي نو ځکه چي اُجرت پر پلار [واجب] دی **وَقَوْلُهُ عِنْدَهَا مَعْنَاهُ: إِذَا أَرَادَتْ ذٰلِكَ** او د ماتن رَحِمَهُ الله د دې قول "عِنْدَهَا" مطلب دا دی: چي کله مور هغه وغواړي ايعني کله چي د مور اراده او رضا وي چي ښځه به زما په کور کي بچي ته شيدې ورکوي] **لِأَنَّ الْحَجْرَ لَهَا** ځکه چي د پرورش [او پالني] حق د مور لپاره دی.

**اللغات:** ﴿اِسْتِيْجَار﴾ د استفعال مصدر دی: بل څوک په مزدوري نيول. په اجرت نيول (په اجاره نيول).
﴿حَجر﴾ په غېږ کي اخيستل. پررورش او پالنه کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي پلار به د شيدو ورکولو لپاره داسي ښځه په اُجرت نيسي چي هغه د کوچني د مور سره اوسيږي (يعني دايي به د مور سره اوسيږي، په هغه صورت کي کله چي د مور خوښه وي)، او که چيري د مور خوښه نه وي، نو بيا د مور سره د هغې اوسېدل ضروري نه دي، ځکه چي حَجر او پرورش فقط د مور حق دی.

او د شيدو ورکولو اُجرت فقط پر پلار واجب دی، ځکه چي د کوچني د تربيت او پالني ټول مصارف پر پلار واجب دي، نو د رضاعت اُجرت به هم پر هغه واجب وي.

## خپله منکوحه یا معتده ښځه د رضاعت لپاره په أجرت نیول

وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا وَهِيَ زَوْجَتُهُ أَوْ مُعْتَدَّتُهُ لِتُرْضِعَ وَلَدَهَا او که خاوند داسې ښځه په أجرت ونيسي چې هغه د ده [منکوحه] ښځه وي یا د ده عدت تېرونکې وي د دې لپاره چې [دا ښځه] خپل بچي ته شيدې ورکړي لَمْ يَجُزْ نو [دا] جائز نه دي لِأَنَّ الْإِرْضَاعَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهَا دِيَانَةً ځکه چې پر دې ښځې دیانتا اخپل بچي ته ا شيدې ورکول واجب دي قَالَ اللهُ تَعَالَى: وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ [البقرة: ۲۳۳] الله تعالیٰ فرمايلي دي: او مندې به خپلو بچيانو ته شيدې ورکوي إِلَّا أَنَّهَا عُذِرَتْ لِاحْتِمَالِ عَجْزِهَا مګر دا چې [مخکې] هغه د خپلې عاجزۍ [او قدرت نه لرلو] د احتمال په وجه معذوره ګڼل سوې وه فَإِذَا أَقْدَمَتْ عَلَيْهِ بِالْأَجْرِ لېکن کله چې هغې په أجرت سره د شيدو ورکولو إقدام وکړی ظَهَرَتْ قُدْرَتُهَا نو [پر شيدو ورکولو] د هغې قدرت ښکاره سو فَكَانَ الْفِعْلُ وَاجِبًا عَلَيْهَا نو ځکه به دا فعل [شيدې ورکول] پر هغې واجب وي فَلَا يَجُوزُ أَخْذُ الْأَجْرِ عَلَيْهِ او پر دې فعل به [د ښځې لپاره] أجرت اخيستل جائز نه وي وَهٰذَا فِي الْمُعْتَدَّةِ عَنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ رِوَايَةٌ وَاحِدَةٌ او دا [حکم] د هغه ښځې په هکله کوم چې د طلاق رجعي عدت تېروي يو روايت [متفق عليه حکم] دی لِأَنَّ النِّكَاحَ قَائِمٌ ځکه چې [په طلاق رجعي کې] نکاح باقي وي وَكَذَا فِي الْمَبْتُوتَةِ فِي رِوَايَةٍ او همداسې د معتده بائنه ښځې په هکله په يوه روايت کې [هم دغه حکم دی] وَفِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: جَازَ اسْتِئْجَارُهَا او په بل روايت کې [ذکر سوي] دي: چې معتده بائنه ښځه په أجرت نيول جائز دي لِأَنَّ النِّكَاحَ قَدْ زَالَ ځکه چې [د هغې نکاح] ختمه سوې ده وَجْهُ الْأُولَى أَنَّهُ بَاقٍ فِي حَقِّ بَعْضِ الْأَحْكَامِ د اول حکم دليل دا دی چې د ځينې احکامو په حق کې [او س هم د هغې] نکاح باقي ده.

**اللغات:** ﴿عُذِرَتْ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهول صيغه ده: معذوره ګرځول (معذوره شمارل). ﴿أَقْدَمَتْ﴾ د إفعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي معلوم صيغه ده: إقدام کول، په يو کار شروع کول (په يو کار لاس پورې کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپل بچي ته د شيدو ورکولو لپاره د هغه مور (يعني خپله ښځه) په أجرت ونيسي، هغه که دا ښځه د خاوند په نکاح کې وي، يا تر طلاق وروسته په عدت کې وي (يعني معتده وي)، نو دا ښځه په أجرت نيول جائز نه دي؛ ځکه چې دیانتاً پر دې ښځې په خپله شيدې ورکول واجب دي، لکه څرنګه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: "وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ (يعني مندې به

خپلو بچيانو ته شيدې ورکوي)، په دې آيت کې يُرْضِعْنَ د يَتَرَبَّصْنَ په څير خبر دی او د أمر په معنیٰ سره دی، او دا ښځه د عاجزۍ د احتمال په وجه معذوره ګڼل سوې وه (چې کېدای سي د يو د عذر په وجه به هغه پر شيدو ورکولو قدرت نه لري)، خو کله چې هغې په أجرت سره بچي ته شيدې ورکول شروع کړه؛ نو دا خبره ښکاره سوه چې هغه پر شيدو ورکولو قدرت لري، نو د الله د حکم موافق پر هغې شيدې ورکول واجب سو، لهذا پر دې کار به د هغې لپاره اجُرت اخيستل جائز نه وي.

**وهذا إلخ:** فرمايي دا مذکوره حکم (چې د بچي مور په أجرت نيول جائز نه دي) د مطلقه رجعيه ښځي په حق کي متفق عليه دی، ځکه چې تر طلاقِ رجعي وروسته نکاح قائم پاتيږي، همدا وجه ده چې د مطلقه رجعيه ښځه سره د خاوند وطي کول روا دي، او که چيري ښځه د طلاقِ بائن په عدت کې وي، نو د هغې په هکله دوه روايتونه دي: ① په يوه روايت کې هغه د خپل بچي د شيدو لپاره په أجرت نيول جائز نه دي، ② او په بل روايت کې جائز دي، دليل دا دی چې په طلاقِ بائن سره د معتده بائنه ښځي نکاح په پوره توګه ختمه سي، او د اول روايت دليل دا دی چې تر طلاقِ بائن وروسته هم د ځيني احکامو په حق کي نکاح باقي پاته وي، مثلاً عدت، او د ښځي لپاره نفقه او سکنیٰ واجبېدل.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَلَوِ اسْتَأْجَرَهَا وَهِيَ مَنْكُوحَتُهُ أَوْ مُعْتَدَّتُهُ او که خاوند خپله منکوحه ښځه يا خپله معتده ښځه په أجرت ونيسي لِإِرْضَاعِ ابْنٍ لَهُ مِنْ غَيْرِهَا د هغه بچي د شيدو ورکولو لپاره کوم چې د خاوند له بلې ښځي څخه وي [يعني که خاوند د خپل بچي د شيدو لپاره د بچي مېره په أجرت ونيسي] جَازَ نو [دا] جائز دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهَا ځکه چې [مېرزي زوی ته شېدې ورکول] پر دې ښځي واجب نه دي وَإِنِ انْقَضَتْ عِدَّتُهَا فَاسْتَأْجَرَهَا او که د دې ښځي عدت تېر سي او [بيا] خاوند هغه په أجرت ونيسي يَعْنِي لِإِرْضَاعِ وَلَدِهَا يعني د هغې د خپل بچي د شيدو ورکولو لپاره [يې په أجرت ونيسي] جَازَ نو [دا] جائز دي لِأَنَّ النِّكَاحَ قَدْ زَالَ بِالْكُلِّيَّةِ ځکه چې [تر عدت وروسته] په بشپړه توګه نکاح ختمه سوه وَصَارَتْ كَالْأَجْنَبِيَّةِ او دا ښځه د پردۍ ښځي په څير وګرځېده.

**اللغات:** «اِنْقَضَتْ» د انفعال ماضي ده: (عدت) تېرېدل، پوره کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې بچي ته د شيدو ورکولو په هکله دوې مسئلې بيان سوې دي، او دواړې جائز دي:

(۱)... که خاوند خپله منکوحه يا معتده ښځه د هغې د ناسکه (مېرزي) زوی لپاره په أجرت ونيسي، نو دا جائز دي، ځکه چې ناسکه زوی ته شيدې ورکول پر هغې واجب نه دي، نه قضاءً او نه ديانتاً، نو ځکه به د هغې لپاره أجرت اخيستل بېله شکه جائز وي، (۲)... دويمه مسئله دا ده چې کله د معتدې ښځي عدت پوره سي،

او بيا خاوند دا معتده ښځه په أجرت ونيسي چې ته خپل زوی ته شيدې ورکوه!. نو دا صورت هم جائز دی، ځکه چې د عدت په پوره کېدلو سره نکاح په پوره توګه ختمه سوه. او دا ښځه أجنبيه (پردۍ) سوه. او أجنبيه ښځه په أجرت نيول جائز دي، لهذا دا ښځه به هم په أجرت نيول جائز وي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ الْأَبُ: لَا أَسْتَأْجِرُهَا وَجَاءَ بِغَيْرِهَا او که پلار ووېل: چې زه د بچي مور په أجرت نه نيسم او له هغې څخه بغيرې بله [أجنبيه] ښځه راوستل فَرَضِيَتِ الْأُمُّ بِمِثْلِ أَجْرِ الْأَجْنَبِيَّةِ او [بيا] هغه [د بچي مور] د أجنبيه ښځې په أجرت راضي سوه [چې په دومره أجرت زه هم خپل بچي ته شيدې ورکوم] أَوْ رَضِيَتْ بِغَيْرِ أَجْرٍ يا له أجرت څخه بغير راضي سوه [چې ګرسره زه أجرت نه غواړم، او مفت خپل زوی ته شيدې ورکوم] كَانَتْ هِيَ أَحَقَّ نو هغه [د بچي مور] به زيا ته حقداره وي لِأَنَّهَا أَشْفَقُ ځکه چې هغه [د خپل بچي په حق کې] ډېره مهربانه ده فَكَانَ نَظَرًا لِلصَّبِيِّ فِي الدَّفْعِ إِلَيْهَا نو هغې ته به [د کوچني] په ورکولو کې د کوچني فايده وي [يعني د کوچني په حق کې به د شفقت او فايدې خبره همدا وي چې په دې صورت کې هغه خپل مور ته حواله کړی سي] وَإِنِ الْتَمَسَتْ زِيَادَةً او که مور د زيات أجرت مطالبه وکړي لَمْ يُجْبَرِ الزَّوْجُ عَلَيْهَا نو خاوند به پر دې نه مجبوره کېږي دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ له هغه څخه د ضرر ليرې کولو لپاره وَإِلَيْهِ الْإِشَارَةُ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَهُ بِوَلَدِهِ [البقرة: ۲۳۳] او د الله تعالیٰ په دې فرمان کې همدغه طرف ته اشاره ده: "لَا تُضَارَّ... إلخ" [چې تکليف نه به ورکول کېږي مور ته د هغې د بچي په ذريعه، او نه به پلار ته (تکليف ورکول کېږي) د هغه د بچي په ذريعه] أَيْ بِإِلْزَامِهِ لَهَا أَكْثَرَ مِنْ أُجْرَةِ الْأَجْنَبِيَّةِ يعني [تکليف به نه ورکول کېږي پلار ته] په دې سره چې پر هغه لازم کړی سي [د بچي] د مور لپاره له أجنبيه ښځې څخه زيات أجرت.

**اللغات**: ﴿أَشْفَقُ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مهربان، زيات مشفق. ﴿اِلْتَمَسَتْ﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي معلوم صيغه ده: غوښتل، مطالبه کول، تلاش کول. ﴿مَوْلُوْدٌ لَهُ﴾ د چا لپاره چې بچی زېږول سوی وي، مراد ځني پلار دی.

**تشريح**: په تېر عبارت کې دا خبره ذکر سوه چې کله د معتدې ښځې عدت پوره سي، نو بيا هغه خپل زوی ته په أجرت شيدې ورکولای سي (همدارنګه ښځه خپل ناسکه زوی ته هم په أجرت شيدې ورکولای سي)، نو که خاوند د کوچني معتده مور د کوچني لپاره په أجرت نه ونيسي، بلکې د هغې پر ځای بله أجنبيه ښځه په أجرت ونيسي، او بيا د مور محبت په جوش کې راسي او بېله أجرته زوی ته په شيدو ورکولو راضي سي، يا په

هغومره أجرت راضي سي، څومره چې اجنبيه ښځه غواړي. نو په دې صورت کې دغه معتده مور د خپل کوچني زياته حقداره ده. دليل دا دی چې مور پر خپل کوچني زياته مهربانه وي، نو د کوچني فايده او خير په دې کې دی چې خپل مور ته وسپارل سي.

او که د کوچني مور تر أجنبيه ښځې زيات أجرت وغواړي، نو خاوند (يعني د کوچني پلار) به د زيات أجرت پر ورکولو نه مجبوره کيږي، ځکه چې په دې کې د پلار تاوان او ضرر دی، حالانکي د الله تعالیٰ په دې آيت "وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُ بِوَلَدِهِ" کې له پلار څخه ضرر ليري کړی دی.

## د هغه کوچني نفقه چې دين يې (د پلار له دين څخه) مخالف وي

وَنَفَقَةُ الصَّغِيرِ وَاجِبَةٌ عَلَى أَبِيهِ وَإِنْ خَالَفَهُ فِي دِينِهِ او د کوچني [بچي] نفقه د هغه پر پلار واجب ده که څه هم کوچنی په دين کې د هغه مخالف وي كَمَا تَجِبُ نَفَقَةُ الزَّوْجَةِ عَلَى الزَّوْجِ وَإِنْ خَالَفَتْهُ فِي دِينِهِ لکه څرنګه چې د ښځې نفقه پر خاوند واجب ده که څه هم ښځه په دين کې د خاوند مخالفه وي أَمَّا الْوَلَدُ فَلِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا کوم چې بچی دی نو ځکه چې زموږ تلاوت سوی آيت اوَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ ا مطلق دی وَلِأَنَّهُ جُزْؤُهُ او ځکه چې بچی د پلار جزء دی فَيَكُونُ فِي مَعْنَى نَفْسِهِ نو د هغه د ذات په معنیٰ سره به وي وَأَمَّا الزَّوْجَةُ فَلِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْعَقْدُ الصَّحِيحُ او کوم چې ښځه ده نو ځکه چې [د هغې د نفقې] سبب عقد صحيح دی فَإِنَّهُ بِإِزَاءِ الِاحْتِبَاسِ الثَّابِتِ بِهِ ځکه چې نفقه د هغه احتباس په مقابله کې [واجب] وي کوم چې په عقد صحيح سره ثابت وي وَقَدْ صَحَّ الْعَقْدُ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرَةِ او د مسلمان سړي او کافري ښځې په مينځ کې عقد [د نکاح تړون] صحيح دی وَتَرَتَّبَ عَلَيْهِ الِاحْتِبَاسُ او پر همدغه عقد صحيح احتباس مرتب وي فَوَجَبَتِ النَّفَقَةُ نو ځکه به نفقه واجب وي وَفِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا إِنَّمَا تَجِبُ النَّفَقَةُ عَلَى الْأَبِ او په هغو ټولو صورتونو کې کوم چې موږ ذکر کړل پر پلار هغه وخت [د کوچني] نفقه واجبيږي إِذَا لَمْ يَكُنْ لِلصَّغِيرِ مَالٌ کله چې د کوچني لپاره مال نه وي أَمَّا إِذَا كَانَ ليکن که [د هغه سره] مال وي فَالْأَصْلُ أَنَّ نَفَقَةَ الْإِنْسَانِ فِي مَالِ نَفْسِهِ نو اصل دا دی چې د انسان نفقه د هغه په خپل مال کې واجبيږي صَغِيرًا كَانَ أَوْ كَبِيرًا هغه که انسان کوچنی [نابالغ] وي او که غټ [بالغ] وي.

**اللغات:** ﴿بِإِزَاءِ﴾ په مقابله کې، په بدله کې.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د نابالغه بچي نفقه پر پلار واجب ده. برابره ده که پلار او بچی دواړه په دين کې سره متحد وي او که په دين کې يو د بل مخالف وي (مثلاً پلار مسلمان وي، او بچی

عيسائي وي)، په هر صورت کې پر پلار د هغه نفقه واجب ده. لکه پر خاوند چې د ښځې نفقه واجب ده، هغه که ښځه د خاوند سره په دين کې متّحده وي او که مخالفه وي.

د بچي د نفقې واجبېدلو دليل هغه آيت دی کوم چې مخکې ذکر سو يعني "وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهُ رِزْقُهُنَّ" (يعني پر پلار د بچي د مور نفقه واجب ده)؛ او څرنګه چې دغه وجوب د بچي په ذريعه او د هغه په سبب دی، نو د بچي نفقه خو به په درجه اولیٰ سره پر پلار واجب وي.

او د دې حکم عقلي دليل دا دی چې بچی د پلار جزء دی. لهذا هغه داسې سو لکه د خپل پلار نفس او ذات (يعني هغه د پلار د نفس په حکم کې سو)، او څرنګه چې پر انسان خپل ذات ته نفقه ورکول واجب دي، همداسې به خپل جزء يعني بچي ته نفقه ورکول هم واجب وي.

**وأما الزوجة إلخ:** په دې عبارت سره د ښځې د نفقې واجبېدلو علت بيانوي، حاصل يې دا دی چې د ښځې د نفقې واجبېدلو سبب عقد صحيح (د صحيح نکاح تړون) دی، ځکه چې نفقه د احتباس جزاء ده، او احتباس په عقد صحيح سره حاصلېږي. لهذا د کوم سړي او ښځې په مېنځ کې چې عقد صحيح قائم سي، په هغه عقد کې به پر سړي د ښځې نفقه واجب وي، او څرنګه چې په مسلمان سړي او مسلماني ښځې کې هم عقد صحيح قائمېږي، همدارنګه په مسلمان سړي او کتابيه ښځه کې هم د دې آيت "وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ" پر بناء عقد صحيح قائمېږي، او احتباس په عقد صحيح سره حاصلېږي، نو ځکه موږ وايو چې پر خاوند په هر صورت کې د ښځې نفقه واجب ده، هغه که ښځه د خاوند سره په دين کې متّحد وي، يا مخالف وي.

**وفي جميع إلخ:** فرمايي د بچي (صغير) د نفقې د وجوب په هکله چې موږ کوم صورتونه ذکر کړل، په دې ټولو صورتونو کې هغه وخت پر پلار نفقه واجبېږي، کله چې د صغير سره خپل ذاتي مال نه وي، لېکن که صغير ته په ميراث کې مال پاته سوی وي، يا په هبه يا بل شي کې مال ورته حاصل سوی وي، او هغه د ده خپل ذاتي مال وي، نو په دې صورت کې به نفقه د ده په مال کې واجب وي، ځکه اصل دا دی چې د انسان نفقه په خپل مال کې واجبېږي. هغه که انسان کوچنی وي او که غټ وي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ (فِيْ نَفَقَةِ الْاٰبَاءِ وَالْاَجْدَادِ وَالْخَادِمِ)

(دا) فصل (د پلرونو، نیکه ګانو او د خام د نفقې په بیان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د أولاد نفقه بیان کړه، اوس په دې فصل کې د پلار ومور، انا، نیکه او خادم نفقه بیانوي.

## د مور وپلار او د نیکه و انا د نفقې بیان

وَعَلَى الرَّجُلِ أَنْ يُنْفِقَ عَلَى أَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ وَجَدَّاتِهِ او پر سړي [واجب] دي چې خپل مور و پلار او خپلو نیکه ګانو او اناګانو ته نفقه ورکړي إِذَا كَانُوا فُقَرَاءَ [په دې شرط] کله چې هغوی غریبان وي وَإِنْ خَالَفُوهُ فِي دِينِهِ که څه هم هغوی په دین کې د سړي مخالف وي أَمَّا الْأَبَوَانِ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا [لقمان: ۱۵] کوم چې مور وپلار دي نو ځکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: او د مور وپلار سره په دنیا کې په غوره طریقه سره ژوند تېروه! نَزَلَتِ الْآيَةُ فِي الْأَبَوَيْنِ الْكَافِرَيْنِ دا آیت د کافر مور او پلار په هکله نازل سوی دی وَلَيْسَ مِنَ الْمَعْرُوفِ أَنْ يَعِيشَ فِي نِعَمِ اللهِ تَعَالَى وَيَتْرُكَهُمَا يَمُوتَانِ جُوعًا او غوره طریقه دا نه ده چې انسان [په خپله] د الله په نعمتونو کې عیش کوي او پلار ومور [په داسې حالت کې] پرېږدي چې د لوږې مړه کیږي وَأَمَّا الْأَجْدَادُ وَالْجَدَّاتُ فَلِأَنَّهُمْ مِنَ الْآبَاءِ وَالْأُمَّهَاتِ او کوم چې نیکه ګان او اناګانې دي نو ځکه چې هغوی [هم] له پلرنو او مندو څخه دي [یعنې هغوی هم د پلار او مور په درجه کې دي] وَلِهَذَا يَقُومُ الْجَدُّ مَقَامَ الْأَبِ عِنْدَ عَدَمِهِ او له همدې وجهې د پلار د نشتوالي په وخت کې نیکه د هغه قائم مقام کیږي وَلِأَنَّهُمْ سَبَّبُوا لِإِحْيَائِهِ او ځکه چې هغوی [نیکه ګان] د انسان د زندګۍ سبب جوړ سوي وي فَاسْتَوْجَبُوا عَلَيْهِ الْإِحْيَاءَ بِمَنْزِلَةِ الْأَبَوَيْنِ نو ځکه هغوی [هم] پر انسان د مور و پلار په څېر د زندګۍ [نفقې] مستحق سول وَشَرَطَ الْفَقْرَ لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ ذَا مَالٍ او د غربت شرط څکه لګول سوی دی چې که هغه [پلار، یا مور، یا نیکه...] د مال خاوند وي فَإِيجَابُ نَفَقَتِهِ فِي مَالِهِ أَوْلَى مِنْ إِيجَابِهَا فِي مَالِ غَيْرِهِ نو د هغه په نفقه کې مال واجبول د بل په مال کې له نفقې واجبولو څخه زیات

غوره دي وَلَا يُمْنَعُ ذٰلِكَ بِاخْتِلَافِ الدِّيْنِ او دا [د نفقې واجبېدل] به د دين د اختلاف په وجه نه منع کيږي [يعني اختلافُ الدين د نفقې له وجوب څخه مانع نه دی] لِمَا تَلَوْنَا د هغه آيت په وجه کوم چې مونږ تلاوت کړی.

**اللغات:** ﴿أَجْدَاد﴾ جمع د "جَدٌّ" ده: نيکه ګان، مراد ځني د پلار، پلار او د مور پلار دی. ﴿جَدَّات﴾ جمع د "جِدَّةٌ" ده: اناګاني، مراد ځني د پلار مور، او د مور، مور ده. ﴿صَاحِبْهُمَا﴾ صَاحِبْ: د مفاعلې له باب څخه د واحد مذکر أمرِ حاضر صيغه ده. صَاحَبَ يُصَاحِبُ مُصَاحَبَةً: د يو چا سره ملګرتيا کول، د يو چا سره ژوند تېرول. ﴿سَبَّبُوْا﴾ د تفعيل ماضي ده: سبب جوړېدل، سبب ګرځېدل. ﴿إِسْتَوْجَبُوْا﴾ د استفعال ماضي ده: د واجبېدلو طلب کول (مستحق کېدل)، تقاضا کول. ﴿فَقْر﴾ غربت، تنګلاسي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې څرنګه پر سړي د خپلې ښځې او د خپلو کوچنيو بچيانو نفقه واجب ده، همدارنګه د الدَّينو (مور و پلار) او د نيکه او انا نفقه هم د هغه پر ذمه واجب ده، کله چې دغه کسان غريبان وي او نفقې او خرچې ته اړتيا لري، نو زوی او لمسي به دوی ته په اعتدال سره نفقه ورکوي، هغه که دوی په دين کې يو د بل سره متحد وي او که مخالف وي.

د مور و پلار د نفقې واجبېدلو په هکله صاحب د هدايې په دې آيت سره دليل نيولی دی "وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا" (يعني په دنيا کې د مور و پلار سره په ښه توګه ژوند تېروئ، او د هغو سره غوره سلوک کوئ!)، د دې آيت شانِ نزول دا دی چې کله حضرت سعد بن أبي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اسلام راوړی، نو د هغه مور "جميله" کافره وه، او د حضرت سعد ﷺ په اسلام راوړلو ډېره ناراضه سوه، چې د هغه په وجه يې خوراک او څښاک هم پرېښوول، حضرت سعد ﷺ نبي ﷺ ته د خپلې مور قصه بيان کړه، نو دا آيت نازل سو "وإِنْ جَاهَدَاكَ عَلٰى أَنْ تُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا... إلخ"، يعني د الله د وحدانيت او د رسولُ الله ﷺ د رسالت په هکله د مور و پلار اطاعت مه کوئ! هـا! په دنياوي معاملاتو کې د هغو سره معروفه طريقه او غوره سلوک او چلند اختيار کړئ، يعني که مور و پلار په دنياوي شيانو کې يو شي ته ضرورت لري، نو هغه پوره کوئ!، او که هغوی نفقې او خرچې ته محتاج وي، نو هغو ته نفقه او خرچه هم ورکوئ!، ځکه چې "معروفه طريقه" دا نه ده چې انسان په خپله د الله په نعمتو کې عيش او عشرت کوي او خپل مور و پلار وږي پرېږدي، يعني څرنګه چې انسان د خپل ځان او د خپلو بچيانو د خوراک او ضروورياتو فکر کوي، هغسې به د مور و پلار د خوراک او ضروورياتو فکر هم کوي، په دې آيت سره دا

خبره ثابته سوه چي که مور وپلار محتاجه وي، نو پر زوی د هغو نفقه واجب ده، که څه هم مذهب او دين يې سره متحد نه وي.

همدارنګه الله تعالیٰ په بل ځای کي فرمايلي دي: "وَلَا تَقُلْ لَّهُمَا أُفٍّ" يعني تاسي د مور وپلار مخته "أف" هم مه کوئ! ځکه چي په دې سره هغو ته تکليف رسيږي، او د احتياج او غربت په وخت کي هغو ته نفقه نه ورکول تر "أف" هم زيات سخت او ضررمن دي، نو ځکه په دې آيت سره هم د مور وپلار د نفقې وجوب فهمول کيږي. (بنايه ج:۵، ص:۴۲۱).

**وأما الأجداد إلخ**: فرمايي چي له مور وپلار څخه بغير د نيکه او انا لپاره د نفقې واجبېدلو دليل دا دی چي نيکه او انا هم د مور وپلار په درجه کي دي، همدا وجه ده چي کله پلار نه وي، نو په وراثت او داسي نورو أحکامو کي نيکه د پلار قائم مقام کيږي، او څرنګه چي مور و پلار د نفقې مستحق دي، نو نيکه او انا هم به د فقر او حتياج په وخت کي د نفقې مستحق وي، په دې هکله دويم دليل دا دی چي نيکه او انا هم د انسان د زندګی سبب دي، ځکه که چيري نيکه او انا نه وای، نو د هغه مور او پلار به هم نه وای، لهذا کله چي د انسان په وجود کي د نيکه او انا دخل سته، نو د انسان په مال کي به د دوی حصه هم وي، او د فقر او احتياج په وخت کي به دوی ته هم نفقه ورکول کيږي، او د دين په اختلاف سره به د نفقې په وجوب کي هيڅ بدلون نه راځي، ځکه چي د الله دا فرمان "وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا" مطلق دی، او د حضرت سعد رضي الله عنه د کافري مور په واقعه کي نازل سوی دی.

**وشرط الفقر إلخ**: فرمايي چي د مور وپلار، نيکه او انا په حق کي د نفقې واجبېدلو لپاره د هغو فقر او احتياج ځکه شرط دی، چي له فقر او احتياج څخه بغير پر انسان د هغو نفقه واجب نه ده، ها! که انسان د تبرّع او احسان په توګه هغو ته څه ورکړي، نو دا د هغه خپل احسان او مرانه ده، ځکه کله چي د يو چا خپل مال موجود وي، نو په خپل مال کي نفقه واجبيږي، همدا غوره هم ده چي انسان له خپل ذاتي مال څخه خپل ضروريات پوره کړي، ځکه چي خپل ګټل سوی مال د بل تر مال ډېر غوره دی، نبي صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: "كُلْ مِنْ كَدِّ يَمِيْنِكَ وَعِرَقِ جَبِيْنِكَ" (يعني له هغه څخه مال خوراک کوه، کوم چي دي په خپل لاس او په خپل زحمت او محنت سره ګټلی وي)، نو ځکه د فقر او غربت شرط ولګول سو.

**ولا يمنع ذلك**: فرمايي چي د دين اختلاف د نفقې د وجوب مانع نه دی، دليل لږ څه مخکي تېر سو چي د کافر مور او پلار سره به هم انسان په معروفه طريقه ژوند تېروي.

## ديني اختلاف کله د نفقې د وجوب مانع جوړيږي؟

وَلَا تَجِبُ النَّفَقَةُ مَعَ اِخْتِلَافِ الدِّيْنِ إِلَّا لِلزَّوْجَةِ وَالْأَبَوَيْنِ وَالْأَجْدَادِ وَالْجَدَّاتِ وَالْوَلَدِ وَوَلَدِ الْوَلَدِ او د دين د اختلاف په صورت کې [پر انسان] نفقه نه واجبيږي مګر د ښځې او د مور وپلار، نيکه ګانو، اناګانو، زوی او لمسي لپاره أَمَّا الزَّوْجَةُ فَلِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهَا وَاجِبَةٌ لَهَا بِالْعَقْدِ او کوم چې د ښځې [مسئله] ده نو د هغې دليل هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی چې د ښځې لپاره د عقد په وجه نفقه واجب ده لِاحْتِبَاسِهَا لِحَقٍّ لَهُ مَقْصُودٍ ځکه چې هغې خپل ځان د خاوند له مقصود حق څخه منع کړی دی وَهٰذَا لَا يَتَعَلَّقُ بِاتِّحَادِ الْمِلَّةِ او دا د ملت [دين] د متحد کېدلو سره هيڅ تعلق نه لري وَأَمَّا غَيْرُهَا فَلِأَنَّ الْجُزْئِيَّةَ ثَابِتَةٌ او کوم چې له ښځې څخه بغير [د مور وپلار، نيکه او داسې نورو کسانو مسئله] ده نو ځکه چې [په هغو کې د انسان] جزئيت ثابت دی وَجُزْءُ الْمَرْءِ فِي مَعْنَى نَفْسِهِ او د انسان جزء د هغه [د خپل] ذات په معنیٰ سره وي فَكَمَا لَا يَمْتَنِعُ نَفَقَةُ نَفْسِهِ لِكُفْرِهٖ لَا يَمْتَنِعُ نَفَقَةُ جُزْئِهٖ نو څرنګه چې د خپل کفر په وجه انسان پر خپل ځان نفقه نه سي منع کولای همداسې پر خپل جزء [هم] نفقه نه سي منع کولای إِلَّا أَنَّهُمْ إِذَا كَانُوا حَرْبِيِّيْنَ لَا تَجِبُ نَفَقَتُهُمْ عَلَى الْمُسْلِمِ مګر دا چې کله دا کسان حربيان وي نو پر مسلمان د هغو نفقه نه واجبيږي وَإِنْ كَانُوا مُسْتَأْمِنِيْنَ که څه هم هغوی [زموږ په دارُالاسلام کې] أمان اخيستی وي لِأَنَّا نُهِيْنَا عَنِ الْبِرِّ فِيْ حَقِّ مَنْ يُقَاتِلُنَا فِي الدِّيْنِ ځکه چې موږ د هغه خلکو په حق کې له احسان کولو څخه منع سوي يو کوم چې د دين په باره کې زموږ سره جنګ کوي.

**اللغات: ﴿مُسْتَأْمِنِيْن﴾** جمع د "مُسْتَأْمِنٌ" ده، د استفعال له باب څخه د اسم فاعل صيغه ده: هغه کافر ته وايي چې د مسلمانانو ملک ته پناه راوړي او أمان طلب کړي (هغه کافر چې د مسلمان حاکم له طرفه أمان ورکول سوي وي).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د ديني اختلاف په صورت کې له ښځې او له مور و پلار، نيکه او انا، او له زوی او لمسي څخه بغير پر انسان بل د هيچا نفقه نه واجبيږي، د ښځې نفقه ځکه د ديني اختلاف باوجود پر انسان واجب ده، چې د ښځې لپاره نفقه د عقد نکاح په وجه واجبيږي، ځکه چې ښځې خپل د خاوند د مقصود حق يعني د وطي او داسې نورو لپاره ځان محبوس کړی دی، او په دې کې د دې خبرې هيڅ دخل نسته چې د خاوند او ښځې دين به سره متحد وي، او له ښځې څخه بغير د دغه نورو کسانو نفقه ځکه لازميږي چې له هغو څخه د انسان جزء کېدل ثابت دي، يعني انسان په يوه درجه کې

د دې حضراتو جزء دی. او جزئيت او بعضيت د نفقې په وجوب کې مؤثر دی. ځکه چې د انسان جزء د هغه د ذات په معنیٰ سره وي، او کفر له هغه څخه مانع نه دی، ځکه که انسان په خپله کافر وي، نو د هغه کفر پر خپل نفس (ځان) باندې له خرچ کولو څخه مانع نه دی (يعني که انسان کافر هم وي، نو بيا هم پر خپل نفس نفقه استعمالولای سي). لهذا کله چې د نفس کفر مانع نه دی. نو د جزء او بعض کفر به هم د نفقې مانع نه وي. او په هر صورت کې به د پلار، نيکه او داسې نورو نفقه پر سړي واجب وي، لېکن که دغه کسان حربي کافران وي. يعني پر مسلمانانو يې د جنګ اعلان کړی وي. او مسلمانانو ته ځاني يا مالي نقصان ور رسوي. يا د نقصان رسونکو مرسته او کومک کوي. نو پر انسان د هغو نفقه نه واجبيږي. که څه هم دا کسان أمان واخلي او دار الإسلام ته راسي. ځکه کوم کسان چې زموږ سره د دين په باره کې جنګ او جګړه کوي. موږ له دې څخه منع سوي يو چې د هغو سره احسان وکړو، هغه که هر څوک وي. لکه څرنګه چې الله تعالیٰ په دې آيت کې فرمايلي دي: "لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ○ إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَىٰ إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ○" [سورة الممتحنة: ۸، ۹]

د دې آيت خلاصه دا ده چې کوم کفار چې د مسلمانانو په دين، ايمان او د هغو پر ښارونو او ملکونو تعرّض او تجاوز نه کوي. نو د هغو سره ښه سلوک او چلند کول د مسلمانانو لپاره صحيح دي. لېکن کوم کفار چې ظلم او جبر کوي. د مسلمانانو د مذهب. دين او مکان په هکله جنګ کوي. او مسلمانان له خپلو ښارونو څخه باسي. يا کوم کسان چې د هغو مرسته او مدد کوي. نو د داسې بدبخته دښمنانو سره دوستي او تعلق قائمول د مسلمانانو لپاره صحيح نه دي. ځکه چې د هغو سره دوستي او تعلق قائمونکو خلکو ته قرآن کريم ظالمان ويلي دي.

## د ديني اختلاف په صورت کې د ورور نفقه

وَلَا تَجِبُ عَلَى النَّصْرَانِيِّ نَفَقَةُ أَخِيْهِ الْمُسْلِمِ او پر نصراني [عيسائي] باندې د خپل مسلمان ورور نفقه نه واجبيږي وَكَذَا لَا تَجِبُ عَلَى الْمُسْلِمِ نَفَقَةُ أَخِيْهِ النَّصْرَانِيِّ او همدارنګه پر مسلمان باندې د خپل نصراني ورور نفقه نه واجبيږي لِأَنَّ النَّفَقَةَ مُتَعَلِّقَةٌ بِالْإِرْثِ بِالنَّصِّ ځکه چې د آيت په وجه نفقه د ميراث سره متعلق ده بِخِلَافِ الْعِتْقِ عِنْدَ الْمِلْكِ په خلاف د ملکيت په وخت کې د آزادېدلو لِأَنَّهُ مُتَعَلِّقٌ بِالْقَرَابَةِ وَالْمَحْرَمِيَّةِ بِالْحَدِيْثِ ځکه چې د حديث پر بناء هغه [آزادي] د قرابت او محرميت سره

متعلق ده وَلِأَنَّ الْقَرَابَةَ مُوجِبَةٌ لِلصِّلَةِ او ځکه چې قرابت صله رحمي واجبوي وَمَعَ الِاتِّفَاقِ فِي الدِّينِ آكَدُ او په دين کې د اتفاق سره [يعني د دين د متحد کېدلو په صورت کې] صله رحمه زياته مضبوطه وي وَدَوَامُ مِلْكِ الْيَمِينِ أَعْلَى فِي الْقَطِيعَةِ مِنْ حِرْمَانِ النَّفَقَةِ او [پر خپل قريب] د ملک يمين پاتېدل اد صله رحمي] په قطع کولو کې زيات [مؤثر] دي د نفقې له محرمه کولو څخه فَاعْتَبَرْنَا فِي الْأَعْلَى أَصْلَ الْعِلَّةِ وَفِي الْأَدْنَى الْعِلَّةَ الْمُؤَكَّدَةَ نو موږ په اعلیٰ [زيات مؤثر] شي کې د أصل علت اعتبار وکړی او په ادنیٰ شي کې مو د علت مؤکده اعتبار وکړي فَلِهَذَا افْتَرَقَا نو په دې وجه دواړه سره جلا سول [يعني په همدې وجهې سره په آزادي او نفقه کې فرق راغلی].

**اللغات:** ﴿صِلَةٌ﴾ صله رحمي، (د قريب سره) ښه سلوک کول، عطيه، ﴿آكَدُ﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: ډېر مضبوط، زيات مؤکّد.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې نه پر نصراني د خپل مسلمان ورور نفقه واجب ده، او نه پر مسلمان د خپل نصراني ورور نفقه واجب ده؛ دليل دا دی چې په دې آيت "وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ" کې نفقه د ميراث سره متعلق سوې ده او دې طرف ته اشاره سوې ده چې په کومو دوو کسانو کې چې ميراث جاري کيږي، فقط د هغه دوو کسانو نفقه يو پر بل واجبېدای سي، او څرنګه چې په مسلمان او ذمي ورور کې ميراث نه جاري کيږي، نو ځکه به د يوه نفقه پر بل نه واجبيږي، د دې په خلاف که يو مسلمان سړی خپل نصراني ورور رانيسي، نو هغه پر مسلمان ورور آزاديږي، ځکه چې د حديث په حکم سره د آزادي تعلق د قرابت او محرميت سره دی، حديث دا دی: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ عُتِقَ عَلَيْهِ" (يعني کوم کس چې د خپل ذی رحمِ محرم قريب مالک سي، نو هغه قريب پر ده آزاديږي).

په دې هکله دويم دليل دا دی چې قرابت صله رحمي کول (او پر قريب احسان کول) واجبوي، خصوصاً په هغه وخت کله چې دوه ډېر نژدې قريبان سره جمع سره او دواړه په دين او مذهب کې سره متحد وي، نو په دې صورت کې صله رحمي او احسان کول نور هم مؤکد ګرځي، او دا خبره تسليم سوې ده چې يو نژدې قريب د غلام په حيثيت په خپل ملکيت کې ساتل هغه ته تر نفقې نه ورکولو زيات بد او نقصان مند دي، او په دې سره د نفقې نه ورکولو په نسبت زياته صله رحمه قطع کيږي، نو ځکه موږ په اعلیٰ يعني د قريب په مملوک (او غلام) ساتلو کې د اصل علت اعتبار وکړی، يعني محض د دې اعتبار مو وکړي چې که يو سړی د خپل قريب مالک وګرځي، نو مملوک (قريب) به پر

هغه آزادیږي، هغه که په دین کي دواړه سره متحد وي، یا مخالف وي، او په ادنیٰ یعني د نفقې په سلسله کي مو د علت مؤکده یعني د اِتِّحَاد فِي الْمَذْهَب اعتبار هم وکړی، یعني نفقه به فقط په هغه وخت کي واجبیږي، کله چي دواړه سره قریبان هم وي او په دین او مذهب کي سره متحد هم وي.

لهذا څرنګه چي په نفقه نه ورکولو کي صِله رحمي قطع کول کم او ادنیٰ دي په نسبت د دې ته چي خپل قریب مملوک (او غلام) وساتل سي، نو په همدغه وجه په آزادۍ او نفقه واجبېدلو کي فرق راغلی.

## د مور و پلار نفقه

وَلَا يُشَارِكُ الْوَلَدَ فِي نَفَقَةِ أَبَوَيْهِ أَحَدٌ او د مور و پلار په نفقه کي به د زوی سره هیڅوک نه شریک کیږي لِأَنَّ لَهُمَا تَأْوِيلًا فِي مَالِ الْوَلَدِ بِالنَّصِّ ځکه چي د مور و پلار لپاره د حدیث پر بناء د خپل بچي په مال کي یو تأویل سته وَلَا تَأْوِيلَ لَهُمَا فِي مَالِ غَيْرِهِ او اله بچي څخه بغیر ا د بل چا په مال کي د هغو لپاره هیڅ تأویل نسته وَلِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِمَا او ځکه چي بچی مور و پلار ته تر ټولو خلکو نژدې قریب دی فَكَانَ أَوْلَى بِاسْتِحْقَاقِ نَفَقَتِهِمَا عَلَيْهِ نو ځکه به پر بچي د مور و پلار د نفقې استحقاق زیات وي وَهِيَ عَلَى الذُّكُورِ وَالْإِنَاثِ بِالسَّوِيَّةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په ظاهر روایت کي [د مور و پلار د نفقې] استحقاق پر نارینه ؤ او ښځینه ؤ برابر دی وَهُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح دي لِأَنَّ الْمَعْنَى يَشْمَلُهُمَا ځکه چي [د نفقې] سبب دې دواړو ته [برابر] شاملیږي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله زوی یا لور مالداره وي، او پلار و مور غریبان وي، نو له زوی او لور څخه بغیر پر بل هیڅ قریب د دوی نفقه نه واجبیږي، فقط پر زوی او لور واجبیږي: دلیل دا دی چي په حدیث کي ذکر سوي دي: "أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيكَ" (ابن ماجه شریف، حدیث شمېره: ۲۲۹۲). یعني د بچي مال د مور و پلار مال دی، لهذا د حدیث تأویل دا سو چي کله بچی مالدار وي، نو د هغه په وجه به مور و پلار هم مالدار شمارل کیږي، لېکن د بل قریب په حق کي دا تأویل نسته چي د هغه مال به د دوی (مور و پلار) مال وي، نو ځکه به د دوی نفقه فقط د بچي په مال کي واجب وي، او دویم دلیل دا دی چي نفقه د قرابت په وجه واجبیږي، او تر ټولو نژدې قریب بچی دی، د هغه سره هیڅ قریب مساوي نه دی، نو ځکه به فقط پر هغه نفقه واجب وي، ها! که د بچي سره مال نه وي، نو بیا به پر بل قریب واجب وي.

وهي على الذكور إلخ: فرمايي چي د ظاهر روايت مطابق د مور و پلار په نفقه کي زوی او لور دواړه سره برابر دي، ځکه چي پر بچي د نفقې د وجوب سبب ولادت او قرابت دی، او په دې حکم کي دواړه برابر دي، نو که د غريب سړي يو زوی او يوه لور وي، او دواړه مالداران وي، نو پر هر يوه د پلار نيمه نفقه واجبيږي، او داسي نه ده چي پر لور يوه حصه واجب سي او پر زوی دوې حصې واجب سي. همدا صحيح دي، د "هُوَ الصَّحِيْح" په ويلو سره مصنف رَحِمَهُ الله د شمس الائمه سرخي له قول څخه احتراز وکړی، ځکه هغه نفقه پر ميراث قياسوي، يعني څرنګه چي د دې آيت "لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ" مطابق په زوی او لور کي ميراث تقسيميږي، همداسي به د دې مطابق نفقه هم پر هغو واجبيږي، يعني پر زوی به پلار ته د نفقې دوې حصې ورکول واجب وي، او پر لور به يوه حصه ورکول واجب وي، لېکن صحيح او غوره ظاهر روايت دی.

## د ذي رحم محرم (نژدي قريب) نفقه کله واجبيږي؟

وَالنَّفَقَةُ لِكُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ او نفقه د هر ذي حرم محرم لپاره [وجب] ده إِذَا كَانَ صَغِيرًا فَقِيرًا أَوْ كَانَتْ امْرَأَةً بَالِغَةً فَقِيرَةً أَوْ كَانَ ذَكَرًا بَالِغًا فَقِيرًا زَمِنًا أَوْ أَعْمَى [په دې شرط] ـله چي ذي رحم محرم کس کوچنی [نابالغ] محتاج وي، يا [هغه] ښځه بالغه [او] محتاجه وي، يا [هغه] داسي بالغ محتاج وي چي شل وشوټ يا ړوند وي لِأَنَّ الصِّلَةَ فِي الْقَرَابَةِ الْقَرِيبَةِ وَاجِبَةٌ دُونَ الْبَعِيدَةِ ځکه چي صله رحمي په قرابت قريبه کي واجب ده، نه په قرابت بعيده کي وَالْفَاصِلُ أَنْ يَكُونَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ او فاصل دا دی چي هغه ذي رحم محرم وي وَقَدْ قَالَ اللهُ تَعَالَى: وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَلِكَ [البقرة: ٢٣٣] الله تعالیٰ فرمايلي دي: او پر وارث د دې په مثل [واجب] دي وَفِي قِرَاءَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ: وَعَلَى الْوَارِثِ ذِي الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ مِثْلُ ذَلِكَ او د عبد الله بن مسعود ﷺ په قرائت کي دي: او پر ذي رحم محرم وارث د دې په مثل [واجب] دي ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْحَاجَةِ بيا حاجت [محتاج کېدل] ضروري دي وَالصِّغَرِ وَالْأُنُوثَةِ وَالزَّمَانَةِ وَالْعَمَى أَمَارَةُ الْحَاجَةِ او نابالغ کېدل، ښځه کېدل، شلېدل او ړندېدل د حاجت نښي [علامي] دي لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ ځکه چي [په دې اُمورو کي] عجز [او د قدرت نشتوالی] متحقق دی فَإِنَّ الْقَادِرَ عَلَى الْكَسْبِ غَنِيٌّ بِكَسْبِهِ ځکه چي پر ګټلو [او کار کولو] باندي قدر تلرونکی کس د خپلي ګټي په سبب مالدار وي بِخِلَافِ الْأَبَوَيْنِ په خلاف د مور و پلار لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُمَا تَعَبُ الْكَسْبِ ځکه چي دوی ته په

[مال] ګټلو [او کار کولو] سره سترپيا [او ضرر] لاحقيږي وَالْوَلَدُ مَأْمُوْرٌ بِدَفْعِ الضَّرَرِ عَنْهُمَا او بچي ته له مور وپلار څخه د ضرر ليري کولو حکم سوی دی فَتَجِبُ نَفَقَتُهُمَا مَعَ قُدْرَتِهِمَا عَلَى الْكَسْبِ نو [ځکه] به د مال پر ګټلو باندي د دوی د قدرت لرلو باوجود [پر بچي] د دوی نفقه واجبيږي.

**اللغات:** ﴿ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ﴾ د حرام قرابت خاوند، هغه قريب ته وايي چي د هغه سره د همېشه لپاره نکاح حرامه وي (نژدې قريب)، ﴿زَمِن﴾ شل وشوټ، هغه کس چي لاسونه او پښې يې کار نه کوي، ﴿زَمَانَة﴾ د سمع مصدر دی: شل کېدل (شلېدل)، ﴿أَمَارَة﴾ نښه، علامه، جمع: أَمَارات، ﴿تَعَب﴾ د عين په فتحه سره: مشقت، زحمت، تکليف، سترپيا، ضرر.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي پر مالدار انسان هغه وخت د خپل ذی رحم محرم قريب نفقه واجبيږي، کله چي هغه (ذی رحم محرم قريب) نابالغ کوچنی غريب او محتاج وي، يا هغه يوه محتاجه نابالغه يا بالغه ښځه وي، همدارنګه که ذی رحم محرم بالغ وي، نو په هغه وخت کي د نفقې مستحق دی، کله چي هغه شل و شوټ يا ړوند وي او پر کسب او کار قدرت نه لري، نو کله چي په ذی رحم محرم سړي او ښځه کي دا شرطونه موجود سي، نو هغوی به د نفقې مستحق وي: او پر مالدار سړي به د هغو نفقه واجب وي، ځکه چي په قرابتِ قريبه (نژدې قرابت) کي صله رحمي کول واجب دي، نه په قرابتِ بعيده کي، لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: "وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ"، او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په قرائت کي داسي ذکر سوي دي: "وَعَلَى الْوَارِثِ ذِي الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ مِثْلُ ذٰلِكَ"، يعني د هر ذی رحم محرم وارث لپاره د ښځي او بچيانو د نفقې په څېر نفقه واجب ده، نو له همدې وجهي موږ وايو چي که په ذی رحم محرم قريب کي غربت او داسي نور شرطونه پيدا سي، نو هغه به د نفقې مستحق وي.

**والفاصل إلخ:** فرمايي چي په قرابتِ قريبه او بعيده کي "ذی رحم محرم کېدل" فاصل دی. يعني کوم خلک چي ذی رحم محرم وي، هغوی په قرابتِ بعيده کي داخل دي، او کوم چي ذی رحمِ محرم نه وي (يعني نکاح ور سره حرامه نه وي)، هغوی په قرابتِ بعيده کي داخل دي.

**ثم لا بدّ إلخ:** د دې حاصل دا دی چي ذی رحم محرم قريب هغه وخت د نفقې مستحق ګرځي، کله چي هغه محتاج او ضرورت مند وي، او نابالغ کېدل، يا ښځه کېدل، يا شلېدل (او فلجېدل) او ړندېدل دا ټوله د احتياج او ضرورت مندی علامې (نښې) دي، ځکه چي په دې ټولو صورتونو کي "عَجز عَنِ الْكَسب" ثابت دی، او کله چي "عجز عن الكسب" ثابت دی، نو ښکاره ده چي احتياج او

ضرورت هم ثابت دی، ځکه چي احتیاج او ضرورت په هغه کس کي نه وي، کوم چي ګټه او کار کولای سي، او د خپلي ګټي په وجه د نورو خلګو له مرستي او کومکه څخه مستغني وي.

خو په ذی رحم محرم قریبانو کي فقط مور و پلار داسي دي چي د "قُدْرَةٌ عَلَى الْكَسْبِ" باوجود پر انسان د هغو نفقه واجب ده، ځکه کسب او ګټه هغه وخت کیږي کله چي محنت او زیار ویستل سي، او سپین ږری پلار او ضعیفه مور که محنت او زیار وباسي، نو هغو ته به ضرر او تکلیف ورسیږي، حالانکي انسان ته له خپل مور و پلار څخه د ضرر لیري کولو حکم سوی دی. لهذا که څه هم مور و پلار پر کسب او ګټي قادر وي، نو بیا هم پر اولاد د هغو نفقه واجب ده.

## د ذی رحم محرم قریب د نفقي مقدار

قَالَ: وَيَجِبُ ذٰلِكَ عَلٰى مِقْدَارِ الْمِيْرَاثِ فرمايي: چي [د محارمو] نفقه د میراث د مقدار مطابق واجبیږي وَيُجْبَرُ عَلَيْهِ او انسان به [د هغو] پر نفقه مجبوره کیږي لِأَنَّ التَّنْصِيْصَ عَلَى الْوَارِثِ تَنْبِيْهٌ عَلٰى اعْتِبَارِ الْمِقْدَارِ ځکه چي [په آیت کي] د وارث تصریح کول تنبیه ده [د میراث] د مقدار پر معتبر کېدلو وَلِأَنَّ الْغُرْمَ بِالْغُنْمِ او ځکه چي تاوان د نفع په اندازه لازمیږي وَالْجَبْرُ لِإِيْفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ او مجبوره کول د واجب حق پوره کولو لپاره دي [یعني هغه به ځکه د محارمو پر نفقه مجبوره کول کیږي چي واجب حق اداء کړي].

**اللغات:** ﴿تَنْصِيْص﴾ د تفعیل مصدر دی: صراحت کول (څرګندول)، په ښکاره توګه په لفظو کي ذکر کول. ﴿اَلْغُرْمُ بِالْغُنْمِ﴾ دا یو محاوره ده، د "غُرْم" معنیٰ ده: تاوان، او د "غُنْم" معنیٰ ده: د غنیمت مال او نفع، د دې محاورې مطلب دا دی چي څومره غنیمت او نفع د انسان په حصه کي راځي، د هغه په اندازه به تاوان هم برداشت کوي، یعني په میراث کي چي څومره مال هغه ته حاصلیږي، په هغه حساب سره به نفقه هم اداء کوي.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي ذی رحم محرم قریب ته به د هغه مقدار مطابق نفقه ورکول کیږي، په کوم مقدار سره چي هغه ته میراث ورکول کیږي (مثلاً که دوه مالداره ورونه وي، او دوی یو ذی رحم محرم محتاج قریب لري، نو پر هر ورور د هغه نیمه نفقه واجبیږي)؛ دلیل دا آیت دی: وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ. په دې آیت کي د "الْوَارِث" په لفظ سره و دې ته اشاره سوې ده چي نفقه به د میراث د مقدار مطابق ورکول کیږي. او ځکه چي تاوان په هغه حساب سره واجبیږي، د کوم حساب مطابق چي هغه نفع اخلي، یعني په میراث کي چي څومره مال او نفع هغه ته حاصلیږي، د هغه حساب او مقدار مطابق به تاوان هم پورته کوي. او د هغه مقدار مطابق به نفقه او خرچه پر واجب وي، او هغه به د نفقې پر ورکولو مجبوره کیږي، ځکه چي دا د قرابت حق دی.

## د بالغې نجلۍ او د شل اوشوټ هلک نفقه

قَالَ: وَتَجِبُ نَفَقَةُ الِابْنَةِ الْبَالِغَةِ وَالِابْنِ الزَّمِنِ عَلَى أَبَوَيْهِ أَثْلَاثًا فرمايي: چې د بالغې نجلۍ او د شل هلک نفقه پر مور و پلار په دريو حصو سره واجب ده عَلَى الْأَبِ الثُّلُثَانِ وَعَلَى الْأُمِّ الثُّلُثُ دوې دريمې حصې پر پلار [واجب] دي او يوه دريمه حصه پر مور [واجب] ده ځکه لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَهُمَا عَلَى هٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چې د دوی لپاره ميراث هم پر دغه مقدار دی [يعني که مور و پلار د خپل بچي يا لور وارثان وګرځي، نو د دغه مقدار مطابق ميراث ورته حاصلېږي] قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: هٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ رِوَايَةُ الْخَصَّافِ وَالْحَسَنِ ناتوانه بنده وايي: دا کوم [حکم] چې امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی [دا] د امام خصاف او حسن بن زياد روايت دی وَفِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ: كُلُّ النَّفَقَةِ عَلَى الْأَبِ او په ظاهر روايت کې دي: چې ټوله نفقه پر پلار [واجب] ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ [البقرة: ۲۳۳] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: او پر پلار د بچي د مندو خوراک او جامې واجب دي وَصَارَ كَالْوَلَدِ الصَّغِيرِ او هغه [شل هلک] د کوچني [نابالغ] بچي په څېر سو وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الرِّوَايَةِ الْأُولَى: أَنَّهُ اجْتَمَعَتْ لِلْأَبِ فِي الصَّغِيرِ وِلَايَةٌ وَمَئُونَةٌ او پر اول روايت د فرق وجه دا ده: چې د پلار لپاره صغير کې ولايت او مؤنت دواړه جمع دي حَتَّى وَجَبَتْ عَلَيْهِ صَدَقَةُ فِطْرِهِ تر دې چې پر پلار د صغير صدقة الفطر [هم] واجب ده فَاخْتَصَّ بِنَفَقَتِهِ نو پلار به د صغير د نفقې سره مختص [هم] وي وَلَا كَذٰلِكَ الْكَبِيرُ او بالغ بچی داسي نه دی لِانْعِدَامِ الْوِلَايَةِ فِيهِ ځکه چې د هغه په حق کې [د پلار] ولايت معدوم دی فَتُشَارِكُهُ الْأُمُّ نو [ځکه] به مور [هم] د هغه سره شريکه کيږي وَفِي غَيْرِ الْوَالِدِ يُعْتَبَرُ قَدْرُ الْمِيرَاثِ. او له پلار څخه بغير [په بل قريب] کې د ميراث د مقدار اعتبار کيږي حَتَّى تَكُونَ نَفَقَةُ الصَّغِيرِ عَلَى الْأُمِّ وَالْجَدِّ أَثْلَاثًا تر دې چې د صغير نفقه به پر مور او نيکه د دريو حصو په حساب سره [واجب] وي وَنَفَقَةُ الْأَخِ الْمُعْسِرِ عَلَى الْأَخَوَاتِ الْمُتَفَرِّقَاتِ الْمُوسِرَاتِ أَخْمَاسًا عَلَى قَدْرِ الْمِيرَاثِ او د غريب [محتاج] ورور نفقه به پر متفرقو خونلو د پنځو حصو په حساب سره د ميراث په اندازه [واجب] وي غَيْرَ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ أَهْلِيَّةُ الْإِرْثِ فِي الْجُمْلَةِ لَا إِحْرَازُهُ خو په [دې] تولو کې د ميراث أهل کېدل معتبر دي نه د ميراث حاصلول فَإِنَّ الْمُعْسِرَ إِذَا كَانَ لَهُ خَالٌ وَابْنُ عَمٍّ نو که د يو غريب سړي ماما هم [مالدار] وي او د اکا زوی هم [مالدار] وي تَكُونُ

نَفَقَتُهٗ عَلٰى خَالِهٖ نو د هغه نفقه به د هغه پر ماما [واجب] وي وَمِيرَاثُهٗ يُحْرِزُهٗ ابْنُ عَمِّهٖ حالانکي د هغه میراث د هغه اکا حاصلوي.

**اللغات:** ﴿زَمِن﴾ شل وشوټ، هغه کس چي لاسونه او پښي يې کار نه کوي. ﴿مُؤْنَة﴾ خرڅ، مشقت. ﴿مُعْسِر﴾ د افعال اسم فاعل دی تنګلاسی کس، غريب، محتاج. ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: ذخيره کول، جمع کول (حاصلول، تر لاسه کول). ﴿خَال﴾ ماما. ﴿ابنُ عَمّ﴾ د اکا زوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د بالغي نجلی نفقه او د بالغ شل (او فلج) هلک نفقه به د هغو پر پلار ومور درې حصې واجب وي چي په هغه کي به دوې حصې پر پلار واجب وي او يوه حصه به پر مور واجب وي؛ دليل دا دی چي که پلار ومور د خپل هلک يا نجلی وارثان وګرځي نو هغو ته به هم په دغه حساب سره ميراث حاصليږي، لهذا نفقه به هم د دې مقدار مطابق واجب وي (لِأَنَّ الغُرْمَ بِالْغُنْمِ)، دا د قدوري د متن حاصل دی، او د امام خصاف او حسن بن زياد راويت دی. او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی.

او ظاهر روايت دا دی چي ټوله نفقه به پر پلار واجب وي، د ظاهر روايت دليل دا دی چي په دې آيت "وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ" کي د بچي نسبت و پلار ته سوی دی د "لام" په واسطه سره، او "لام" پر اختصاص دلالت کوي، نو ثابته سوه چي د دې نسبت سره فقط پلار خاص دی او نفقه پر همدغه نسبت موقوفه ده، نو ځکه به ټوله نفقه پر پلار واجب وي. او شل (او فلج) هلک د کوچني (صغير) په څير سو، يعني څرنګه چي د صغير ټوله نفقه پر پلار واجبيږي، همداسي به د دې هلک نفقه هم فقط پر پلار واجب وي.

او د امام خصاف رَحِمَهُ الله د روايت مطابق په صغير او کبير کي د فرق وجه دا ده چي د صغير (نابالغه بچي) په حق کي د پلار ولايت او مؤنت دواړه جمع دي، حتی چي پر پلار د نابالغ بچي له طرفه صدقة الفطر ورکول هم واجب دي، نو په دې وجه به د صغير نفقه فقط پر پلار واجب وي. او د بالغ بچي حال داسي نه دی، ځکه چي پر هغه د پلار ولايت نسته، نو د هغه په نفقه کي به د هغه مور هم د پلار سره شريکه کيږي. او له پلار څخه بغير په بل نژدې قريب کي بالاتفاق د ميراث اعتبار کيږي. مثلاً که د يو کوچني پلار نه وي، بلکي مور او نيکه يې وي، نو د هغه نفقه پر مور او نيکه درې حصې کيږي، دوې حصې به پر نيکه او يوه حصه به پر مور واجب وي.

او که د یو چا ورور غریب او محتاج وي، او هغه درې مالداره خوندې لري، یوه یې حقیقي خور وي، او یوه یې علاتي (میرزې) خور وي، او یوه یې أخیافي (مورنۍ) خور وي، نو پر هغو به د غریب ورور نفقه د میراث په مقدار پنځه حصې واجبیږي، یعني درې حصې به پر حقیقي خور واجب وي، او یوه حصه به پر علاتي خور او یوه حصه به پر أخیافي خور واجب وي.

ها! دا خبره یاد ساتئ! چې له پلار څخه بغیر په نورو نژدې قریبانو کې د میراث حاصلولو "لائق کېدل" کافي دي (یعني پر خپل نوبت به هغه ته میراث حاصلېدای سي، که څه هم حالاً [اوس] هغه له میراث څخه محرومیږي). مثلاً که د یو محتاج سړي ماما هم مالدار وي، او د اکا زوی یې هم مالدار وي، نو د هغه نفقه به پر ماما واجب وي، لیکن ماما ته به په دې صورت کې میراث نه حاصلیږي، ځکه کله چې د اکا زوی موجود وي، نو ماما له میراث څخه محروم گرځي.

## د دیني اختلاف په صورت کې د ذي رحم محرم قریب نفقه

وَلَا تَجِبُ نَفَقَتُهُمْ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّيْنِ او د ذوي رحم محارمو نفقه د دین د اختلاف سره نه واجبیږي لِبُطْلَانِ أَهْلِيَّةِ الْإِرْثِ ځکه چې [د دیني اختلاف په صورت کې] د وارث کېدلو أهلیت باطل دی وَلَا بُدَّ مِنْ اعْتِبَارِهِ حالانکي [د وارث کېدلو] اعتبار ضروري دی.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې که یو محتاج ذي رحم محرم قریب د مالدار قریب سره په دین کې متحد نه وي (مثلاً مالدار قریب مسلمان وي، او هغه عیسائي وي)، نو په دې صورت کې پر مالدار قریب د هغه نفقه نه واجبیږي، ځکه چې د دیني اختلاف په صورت کې یو قریب د بل قریب نه وارث کیږي (یعني د کافر او مسلمان قریب په مینځ کې وراثت نه جاري کیږي)، حالانکي د نفقې واجبېدلو لپاره د دې اعتبار کول ضروري دي.

## پر غریب (محتاج) سړي باندي د خپلي ښځي او بچیانو نفقه

وَلَا تَجِبُ عَلَى الْفَقِيْرِ او پر غریب [محتاج] سړي نفقه نه واجبیږي لِأَنَّهَا تَجِبُ صِلَةً ځکه چې نفقه د صله رحمۍ په توگه واجبیږي وَهُوَ يَسْتَحِقُّهَا عَلَى غَيْرِهِ او محتاج سړی پر بل چا [بل قریب] د صله رحمۍ حق لري فَكَيْفَ تَسْتَحِقُّ عَلَيْهِ لهذا پر هغه به څرنګه نفقه واجب سي بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ وَوَلَدِهِ الصَّغِيْرِ په خلاف د ښځي او د کوچني بچي د نفقې لِأَنَّهُ الْتَزَمَهَا بِالْإِقْدَامِ عَلَى الْعَقْدِ ځکه چې هغه په عقد [او نکاح] کولو سره پر خپل ځان نفقه لازم کړه إِذِ الْمَصَالِحُ لَا تَنْتَظِمُ دُوْنَهَا ځکه چې له نفقې څخه بغیر د مصالحو [او ضروریاتو] انتظام کېدلای نه سي وَلَا يَعْمَلُ فِي مِثْلِهَا الْإِعْسَارُ او په

داسې حالت کې د غربت [او احتیاج] هیڅ دخل نسته ثُمَّ الْيَسَارُ مُقَدَّرٌ بِالنِّصَابِ فِيمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ بیا مالداري په ملکِ نصاب سره اندازه سوی ده په هغه [قول] کې کوم چې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ قَدَّرَهُ بِمَا يَفْضُلُ عَلَى نَفَقَةِ نَفْسِهِ وَعِيَالِهِ شَهْرًا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چې هغه په دومره مال سره مالداري اندازه کړې ده چې هغه [مال] د سړي او د هغه د عیال د یوې میاشتې له نفقې څخه زیات سي أَوْ بِمَا يَفْضُلُ عَلَى ذَلِكَ مِنْ كَسْبِهِ الدَّائِمِ كُلَّ يَوْمٍ یا کوم [مال] چې د انسان له دائمي ګټې څخه هره ورځ پر دې مقدار [یعني د هغه او د عیال له نفقې څخه] زیات سي لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ إِنَّمَا هُوَ الْقُدْرَةُ دُونَ النِّصَابِ ځکه چې د بندګانو په حقوقو کې د قدرت اعتبار سوی دی، نه د نصاب فَإِنَّهُ لِلتَّيْسِيرِ ځکه چې نصاب خو د آسانۍ لپاره وي وَالْفَتْوَى عَلَى الْأَوَّلِ او فتوی پر اول [قول] ده لَكِنَّ النِّصَابَ نِصَابُ حِرْمَانِ الصَّدَقَةِ لېکن له نصاب څخه د زکاة حرامېدلو نصاب مراد دی. [یعني چې د انسان سره دومره مال وي چې د هغه لپاره زکاة اخیستل حرام وي].

**اللغات:** ﴿صِلَة﴾ صله رحمي، ښه سلوک، بېله عوضه (مفت) ورکول. ﴿اِلْتَزَمَ﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په غاړه اخیستل. ﴿لَا تَنْتَظِمُ﴾ د افتعال نفي صیغه ده: انتظام کېدل، برابر کېدل، سمېدل. ﴿يَسَار﴾ مالداري، شتمني، خوشحالي. ﴿تَيْسِيْر﴾ د تفعیل مصدر: آسانه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کوم سړی په خپله محتاج او ضرورت مند وي. پر هغه له ښځې او بچیانو څخه بغیر بل د هیچا نفقه نه واجبېږي. دلیل دا دی چې نفقه د احسان او صله رحمۍ لپاره واجبېږي. حالانکې محتاج سړی خپله د دې مستحق دی چې بل څوک پر هغه احسان او نفقه وکړي، نو پر هغه به څرنګه احسان او نفقه واجب سي. لېکن پر محتاج سړي د خپلې ښځې او نابالغه بچیانو نفقه واجب ده: ځکه چې هغه په نکاح (او واده) کولو سره نفقه پر خپل ځان لازم کړه. او ښکاره خبره ده چې له نفقې څخه بغیر دنیاوي ضروریات حاصلېدای نه سي. نو ځکه به پر خاوند د خپلې ښځې نفقه واجب وي، هغه که خاوند مالدار وي او که محتاج او غریب وي. لهذا دا چې د خاوند په حق کې احتیاج او غربت د نفقې له وجوب څخه مانع نه دی. او نابالغه أولاد هم د ښځې قائم مقام دي. لکه څرنګه چې په دې حدیث کې و دغه طرف ته اشاره سوې ده "خُذِيْ (مِنْ مَالِ أَبِيْ سُفْيَانَ) مَا يَكْفِيْكِ وَوَلَدَكِ". د حدیث ترجمه او تشریح مخکې ذکر سوه.

**ثم اليسار إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي دلته له يَسار او مالداري څخه مراد د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د روايت مطابق دا دی چي سړی د نصاب مالک وي (يعني دومره مال ور سره وي چي که ټوله کال له هغه څخه خپله نفقه او ضروريات پوره کړي، نو هم دومره مال څني پاتيږي چي پر هغه زکاة اخيستل حرام وي، او هغه دوه سوه درهمه کيږي. أثمار الهداية). او له امام محمد رَحِمَهُ الله روايت دا دی چي د مالداری (يَسار) اندازه ده چي د سړي سره دومره مال وي چي هغه د ده او د يوې مياشتي له نفقې څخه زيات وي، يعني که د سړي سره دومره مال وي، نو پر هغه د ذی رحم محرم قريب نفقه واجبيږي، کنې نه واجبيږي. او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت دا دی چي که د سړي د هرې ورځي له ګټي څخه دومره مال پاتيږي کوم چي د ده او بچيانو تر نفقې او ضرورياتو زياتيږي، نو هغه مالدار دی، او پر هغه د ذی رحم محرم قريب نفقه واجب ده. کنې واجب نه ده. ليکن صاحب د هدايې فرمايي چي دلته د يَسار په هکله اول قول معتبر دی (چي دومره مال به ور سره وي چي د ټوله کال له نفقې او ضرورياتو څخه وروسته هم دوه سوه درهمه پاته سي او هغه ته زکاة اخيستل حرام سي، د نفقې د وجوب لپاره همدومره مال کافي دی)، او پر همدغه قول فتویٰ هم ده.

**لكن النصاب إلخ:** فرمايي چي له نصاب څخه هغه نصاب مراد دی چي په هغه سره زکاة اخيستل حرام سي. يعني د چا سره چي دوه سوه درهمه مال وي، او د هغه له اصلي حاجت څخه زيات وي، نو پر هغه واجب دي چي خپل محتاج ذی رحم محرم ته نفقه ورکړي.

**نصاب حرمان الصدقة:** دې ته وايي چي که د سړي سره دومره مال وي چي که ټوله کال خپله نفقه او ضروريات څني پوره کړي، نو هم دومره مال څني پاتيږي چي پر هغه زکاة اخيستل حرام وي، همدې ته "نصاب حرمان الصدقة" وايي. او که پر دې نصاب کال تېر سي، نو پر هغه زکاة واجبيږي. او دې ته "نصاب الزكاة" وايي. (أثمار الهداية)

## د غائب بچي له مال څخه مور وپلار ته نفقه ورکول

وَإِذَا كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ او کله چي د غائب زوی لپاره مال وي | يعني که زوی يو خوا ته ولاړ سي. غائب سي. او په کور کي مال پريږدي، او پلار ومور يې غريبان وي | قُضِيَ فِيهِ بِنَفَقَةِ أَبَوَيْهِ نو په دې مال کي به د هغه د مور و پلار د نفقې فيصله کيږي | يعني قاضي به په دې مال کي د غائب زوی د مور و پلار لپاره نفقه مقرره کوي | وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ او د دې دليل موږ | مخکي | بيان کړی دی.

**اللغات:**

**تشريح** صورت د مسئلې او دليل دواړه واضح دي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَإِذَا بَاعَ أَبُوهُ مَتَاعَهُ فِي نَفَقَتِهِ او کله چې پلار د خپل غائب زوی سامان په خپله نفقه کې خرڅ کړي جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز جائز دي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَإِنْ بَاعَ الْعَقَارَ او که پلار [د غائب زوی] جایداد خرڅ کړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي وَفِي قَوْلِهِمَا: لَا يَجُوزُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ او د صاحبینو په قول کې په دې ټولو کې [خرڅول] جائز نه دي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قیاس دی لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ ځکه [پر غائب زوی] د پلار ولایت نسته لِانْقِطَاعِهَا بِالْبُلُوغِ ځکه چې [د زوی] د بالغ کېدلو په وجه [د پلار] ولایت ختم سوی دی وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ فِي حَالِ حَضْرَتِهِ او له همدې کبله پلار د زوی د حضور په حالت کې [د زوی د مال خرڅولو] ملکیت [او اختیار] نه لري وَلَا يَمْلِكُ الْبَيْعَ فِي دَيْنٍ لَهُ سِوَى النَّفَقَةِ او له نفقې څخه بغیر يې [بل] په هیڅ قرض کې خرڅولای نه سي وَكَذَا لَا تَمْلِكُ الْأُمُّ فِي النَّفَقَةِ او همدارنګه مور په نفقه کې اد هغه د مال خرڅولو] ملکیت نه لري وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ لِلْأَبِ وِلَايَةَ الْحِفْظِ فِي مَالِ الْغَائِبِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې پلار ته د غائب زوی په مال کې د حفاظت ولایت حاصل دی أَلَا تَرَى أَنَّ لِلْوَصِيِّ ذٰلِكَ آیا ته نه ګورې! چې وصي لره دا حق حاصل دی فَالْأَبُ أَوْلَى نو پلار ته به په درجه اولیٰ حاصل وي لِوُفُورِ شَفَقَتِهِ ځکه چې د هغه شفقت ډېر زیات دی وَبَيْعُ الْمَنْقُولِ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ او د منقول مال خرڅول د حفاظت له باب څخه دی وَلَا كَذٰلِكَ الْعَقَارُ او جایداد داسي نه دی لِأَنَّهَا مُحْصَنَةٌ بِنَفْسِهَا ځکه چې هغه په خپله [بذات خود] محفوظ وي وَبِخِلَافِ غَيْرِ الْأَبِ مِنَ الْأَقَارِبِ او په خلاف له پلار څخه بغیر د نور قریبانو لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ أَصْلًا ځکه چې هغو لره بالکل هیڅ ولایت حاصل نه دی فِي التَّصَرُّفِ حَالَةَ الصِّغَرِ وَلَا فِي الْحِفْظِ بَعْدَ الْكِبَرِ نه په کوچنیوالي کې د تصریف ولایت [ورته] حاصل دی او نه تر بلوغت وروسته د حفاظت ولایت [ورته] حاصل دی إِذَا جَازَ بَيْعُ الْأَبِ او کله چې د پلار بیع [یعني د پلار لپاره د زوی مال خرڅول] جائز دي وَالثَّمَنُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ وَهُوَ النَّفَقَةُ او ثمن د پلار د حق له جنس څخه وي چې هغه نفقه ده یعني د مال قیمت د نفقې له جنس څخه وي] فَلَهُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْهُ نو د پلار لپاره له مشتري څخه [د قیمت] اخیستل [هم] جائز دي كَمَا لَوْ بَاعَ الْعَقَارَ وَالْمَنْقُولَ عَلَى الصَّغِيرِ جَازَ لکه کله چې پلار د خپل نابالغ بچي جایداد

او منقول [مال] خرڅ کړي نو جائز دي لِكَمَالِ الْوِلَايَةِ ځکه [د پلار] ولايت کامل دی [يعني پلار ته پر زوی بشپړ ولايت حاصل دی] ثُمَّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ بِنَفَقَتِهٖ بيا پلار ته دا اختيار [هم] سته چي له دې ثمن څخه خپله نفقه واخلي لِأَنَّهٗ مِنْ جِنْسِ حَقِّهٖ ځکه چي ثمن د هغه د حق له جنس څخه دی.

**اللغات:** ﴿مَتَاع﴾ سامان، ﴿عَقَار﴾ جايداد، ځمکه، غير منقول مال، ﴿اِنْقِطَاع﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل، ﴿وُفُوْر﴾ زياتېدل، ﴿مُحْصَنَةٌ﴾ د افعال اسم مفعول دی: محفوظ، خوندي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د پلار لپاره جائز دي چي د خپلي نفقې لپاره د غائب زوی سامان خرڅ کړي، همدا استحسان دی، لېکن د غائب زوی ځمکه او جايداد خرڅول جائز نه دي، او د صاحبينو په نېز نه سامان خرڅول جائز دي، او نه ځمکه او جايداد، او قياس هم دا دی.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي پلار پر هغه (غائب زوی) ولايت نه لري، ځکه چي د بلوغت په وجه پر هغه د پلار ولايت ختم سو، همدا وجه ده که بالغ زوی حاضر وي، نو پلار د هغه د مال خرڅولو اختيار نه لري، او له نفقې څخه بغيرې د هيڅ قرضې لپاره نه سي خرڅولای، او همدارنګه مور هم د هغه جائيدا په نفقه کي نه سي خرڅولای، لهذا پلار يې هم نه سي خرڅولای.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي پلار ته د خپل غائب زوی په مال کي د حفاظت ولايت حاصل دی، لکه څرنګه چي د حفاظت په خاطر وصي ته دا ولايت حاصل دی چي د خپل غائب بالغ وارث سامان خرڅ کړي، نو کله چي وصي ته ولايت حاصل دی، نو پلار ته به په درجه اولیٰ ولايت حاصل وي، ځکه چي د پلار شفقت تر بل ولي زيات وي، او منقول مال (سامان) خرڅول د حفاظت له قسم څخه دی، لېکن په غير منقول مال (جايداد) کي دا خبره نسته، ځکه چي هغه په خپله محفوظ وي، او له پلار څخه نورو قريبانو ته دا اختيار نسته، ځکه چي هغو ته هيڅ ډول ولايت حاصل نه دی، هغو ته نه د غائب قريب (زوي) په کوچنيوالي کي د تصرف اختيار وو، او نه د غائب تر بلوغت وروسته هغو ته د حفاظت ولايت سته.

**وإذا جاز إلخ:** مخکي ثابته سوه چي پلار ته د خپل غائب زوی د مال (سامان) خرڅولو اختيار سته، نو کله چي هغه مال خرڅ کړي، او د هغه قيمت (ثمن) د پلار د حق له جنس څخه يعني د نفقې له جنس او قسم څخه وي (مثلاً طعام، غله او داسي بل شی وي)، نو پلار ته په هغه قيمت کي پوره اختيار او اجازه سته چي هغه له مشتري څخه واخلي، همدارنګه خپل پوره حق او نفقه ځني واخلي، ځکه چي دا قيمت د هغه د حق له جنس څخه دی، لکه په هغه وخت کي چي هم پلار ته د پوره

قیمت اخیستلو اختیار سته کله چي هغه د خپل صغیر (نابالغ) بچي څمکه او جایداد خرڅ کړي، ځکه چي پلار ته پر صغیر باندي پوره ولایت حاصل دی.

## د پورتني مسئلې يو صورت

وَإِنْ كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ فِي يَدِ أَبَوَيْهِ او که د غائب زوی مال د هغه د مور و پلار په قبضه کي وي وَأَنْفَقَا مِنْهُ او مور و پلار له هغه څخه نفقه [خرچه] وکړي لَمْ يَضْمَنَا نو مور و پلار [د هغه] نه ضامن کیږي لِأَنَّهُمَا اسْتَوْفَيَا حَقَّهُمَا ځکه چي دوی خپل حق اخیستی دی لِأَنَّ نَفَقَتَهُمَا وَاجِبَةٌ قَبْلَ الْقَضَاءِ عَلَى مَا مَرَّ ځکه چي د مور و پلار نفقه [د زوی په مال کي] د قاضي تر فیصلې مخکي واجب ده لکه مخکي چي دا [مسئله] تېره سوه وَقَدْ أَخَذَا جِنْسَ الْحَقِّ او دوی [دواړو] د حق جنس اخیستی دی.

**اللغات:** ﴿إِسْتَوْفَيَا﴾ د استفعال له باب څخه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: خپل حق اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زوی په سفر کي وي، او مور و پلار د هغه له مال څخه خپله نفقه واخلي، نو پر هغو هیڅ ضمان نه واجبیږي؛ دلیل دا دی چي د زوی په مال کي د مور و پلار د نفقې حق هم سته، او هغوی خپل حق اخیستی دی، نو ځکه به هیڅ ضمان او تاوان نه پر واجبیږي.

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي يَدِ أَجْنَبِيٍّ او که د غائب زوی مال د یو پردي سړي په قبضه کي وي فَأَنْفَقَ عَلَيْهِمَا بِغَيْرِ إِذْنِ الْقَاضِي او [بیا] هغه [د غائب زوی] پر مور و پلار دا مال نفقه کړي [یعني نفقه ځني ورکړي] ضَمِنَ نو هغه ضامن کیږي لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ فِي مَالِ الْغَيْرِ بِغَيْرِ وِلَايَةٍ ځکه چي هغه د بل چا په مال کي له ولایت څخه بغیر تصرف وکړی لِأَنَّهُ نَائِبٌ فِي الْحِفْظِ لَا غَيْرُ ځکه چي هغه [فقط] د حفاظت نائب دی، نه د بل شي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَهُ الْقَاضِي په خلاف د هغه صورت کله چي قاضي هغه ته حکم کړی وي لِأَنَّ أَمْرَهُ مُلْزِمٌ ځکه چي د قاضي حکم لازمونکی دی لِعُمُومِ وِلَايَتِهِ ځکه چي د قاضي ولایت عام دی وَإِذَا ضَمِنَ لَا يَرْجِعُ عَلَى الْقَابِضِ او کله چي أجنبی سړی ضامن سي نو هغه به پر قبضه کونکي امور وپلار ا رجوع نه کوي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ ځکه چي أجنبي په ضمان ورکولو سره د هغه مال مالک سو فَظَهَرَ أَنَّهُ كَانَ مُتَبَرِّعًا بِهِ نو ښکاره سوه چي هغه په خپل مال سره تبرع کونکی [صدقه کونکی] دی.

**اللغات:** ﴿أَنْفَقَ﴾ د افعال ماضـي ده: خرچـول، نفقـه كـول، ﴿مُلْزِم﴾ د افعـال اسمِ فاعـل دى: لازمونكى، ﴿مُتَبَرِّع﴾ د تفعّل اسمِ فاعل دى، تَبَرَّعَ يَتَبَرَّعُ تَبَرُّعًا: صدقه كول، خيرات كول، غير واجب شى اداء كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو سړى غائب وي، او د هغه مال ديو أجنبي سړي سره پروت وي، او دا أجنبي سړى د قاضي له اجازت څخه بغير د غائب سړي له مال څخه د هغه مور وپلار ته نفقه وركړي، نو أجنبي به د غائب سړي د مال ضامن وي؛ دليل دا دى چي هغه (أجنبي) د بل چا په مال كي له ولايت څخه بغير تصرف كړى دى، حالانكي هغه ته د دې حق نسته، ځكه چي هغه ته فقط د مال د حفاظت كولو ولايت حاصل دى، نو په تصرف كولو سره هغه متعدّي او تجاوز كونكي وګرځېدى، نو ځكه به ضمان پر واجب وي.

په خلاف د هغه صورت كله چي أجنبي د قاضي په حكم او اجازه سره د غائب سړي مور وپلار ته نفقه وركړې وي، نو په دې صورت كي پر هغه ضمان نه واجبيږي، ځكه چي د قاضي ولايت عام او تامّ دى، او د هغه حكم منل او د هغه فرمان عملي كول پر ټولو واجب او ضروري دي، نو ځكه به د قاضي په ولايت سره نفقه وركول د ضمان موجب نه وي.

وإذا ضمن إلخ: فرمايي كله چي په اول صورت كي پر أجنبي ضمان واجب سي، او غائب سړي ته خپل تاوان وركړي، نو دا أجنبي د هغه د مور وپلار څخه تاوان نه سي اخيستلاى، ځكه چي أجنبي په ضمان (تاوان) وركولو سره د هغه مال مالك سو، نو ګواكي هغه د خپل ذاتي مال څخه دوو غريبانو ته خيرات اوصدقه وركړه، او په خيرات او صدقه (تبرّعاتو) كي هيڅا ته د ردّ او رجوع كولو اختيار نسته.

## له نفقې څخه د خالي مودت بيان

وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لِلْوَلَدِ وَالْوَالِدَيْنِ وَذَوِي الْأَرْحَامِ بِالنَّفَقَةِ او كله چي قاضي [پر يو سړي] د بچي لپاره او د مور وپلار لپاره او د ذوى الأرحامو [نږدې قريبانو] لپاره د نفقې فيصله وكړي فَمَضَتْ مُدَّةٌ بيا څه مودت تېر سي سَقَطَتْ نو اد دې مودت [نفقه ساقطيږي لِأَنَّ نَفَقَةَ هَؤُلَاءِ تَجِبُ كِفَايَةً لِلْحَاجَةِ ځكه چي د دې كسانو نفقه [د دوى] د حاجت پوره كولو لپاره واجبيږي حَتَّى لَا تَجِبُ مَعَ الْيَسَارِ تر دې چي [د دوى] د مالدارۍ سره نفقه نه واجبيږي وَقَدْ حَصَلَتْ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ او د څه مودت په تېرېدلو سره كفايت حاصل سوى دى بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ إِذَا قَضَى بِهَا الْقَاضِي په خلاف د ښځي د نفقې، كله چي قاضي [پر خاوند] د هغه فيصله وكړي لِأَنَّهَا تَجِبُ مَعَ يَسَارِهَا ځكه چي د ښځي نفقه د هغې د مالدارۍ سره

ایعني د هغې د مالدار والي باوجود] واجبیږي فَلَا تَسْقُطُ بِحُصُولِ الِاسْتِغْنَاءِ فِيمَا مَضَى نو په تېر سوي مودت کي به د استغناء په حاصلېدو سره [د ښځي] نفقه نه ساقطیږي قَالَ: إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ الْقَاضِي بِالِاسْتِدَانَةِ عَلَيْهِ فرمايي: مګر دا چي قاضي [دغه کسانو ته] د غائب سړي پر نامه د قرض اخیستلو حکم کړی وي [نو بیا د تېر سوي مودت نفقه نه ساقطیږي] لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَهُ وِلَايَةٌ عَامَّةٌ ځکه چي قاضي لره عام [او بشپړ] ولایت حاصل دی فَصَارَ إِذْنُهُ كَأَمْرِ الْغَائِبِ نو د قاضي حکم کول داسي سو لکه د غائب حکم کول فَيَصِيرُ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِ نو ځکه به دا د غائب پر ذمه قرض وي فَلَا تَسْقُطُ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ نو د مودت په تېرېدلو سره به [هم] نه ساقطیږي.

**اللغات:** ﴿قَضٰی﴾ د ضرب ماضي ده: فیصله کول. ﴿یَسَار﴾ مالداري، شتمني (موړتیا). ﴿اِسْتِدَانَة﴾ د استفعال مصدر دی: قرض اخیستل (پور غوښتل).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که قاضي پریو سړي د خپل زوی، مور او پلار او د محارمو (نژدې قریبانو) د نفقې فیصله وکړي (چي ته به دغه کسانو ته نفقه ورکوې!)، تر دې وروسته یو څه مودت مثلاً دوې میاشتي له نفقې ورکولو څخه بغیر تیري سي، نو د دې دوو میاشتو نفقه ساقطیږي، ځکه چي د دې کسانو نفقه د دوی ضرورت پوره کولو لپاره واجبیږي، حتیٰ که دا کسان مالداره وي، نو بیا د دوی نفقه نه واجبیږي. لهذا کله چي له نفقې ورکولو څخه بغیر دوې میاشتي تیري سوې، نو دا خبره ښکاره سوه چي په دغه دوو میاشتو کي دوی ته د نفقې ورکولو ضرورت نه وو، نو ځکه به د دې دوو میاشتو نفقه ساقطیږي، او د هغه پر ذمه به نه واجبیږي.

د دې په خلاف که قاضي پریو سړي د خپلي ښځي نفقه مقرره کړي، او بیا له نفقې ورکولو څخه بغیر څه مودت تېر سي، نو په دې صورت کي د تېر سوي مودت نفقه باقي پاتیږي او نه ساقطیږي، ځکه چي د ښځي د مالدار والي په صورت کي هم پر خاوند د هغې نفقه واجب ده، نو ځکه به د تېر سوي مودت نفقه نه ساقطیږي، که څه هم ښځه په تېر سوي مودت کي له نفقې څخه مستغني او مالداره وي.

**قال إلخ:** فرمايي که قاضي د غائب سړي مور و پلار او د هغه ښځي او بچیانو ته د قرض اخیستلو حکم وکړي (چي تاسي د خپل غائب سړي په نامه قرض اخلئ! او ګزاره په کوئ!)، او بیا دا کسان یو څه مودت قرض نه واخلي، نو په دې صورت کي نفقه نه ساقطیږي، ځکه چي قاضي ته عام او تام (بشپړ) ولایت حاصل دی، لهذا د قاضي حکم ورکول داسي دي لکه په خپله چي غائب سړي د قرض اخیستلو حکم کړی وي، او کله چي غائب سړی دغه کسانو ته په خپل نامه د قرض اخیستلو حکم وکړي، او بیا دا کسان یو څه مودت قرض نه واخلي، نو د دوی نفقه نه ساقطیږي، لهذا په دغه پورتني صورت کي به هم د دوی نفقه نه ساقطیږي.



# فَصْلٌ (فِيْ نَفَقَةِ الْعَبْدِ وَغَيْرِهِ)

(دا) فصل (د غلام، مينځي او حيوانانو د نفقې په بيان كي) دى

## د غلام او مينځي نفقه

وَعَلَى الْمَوْلَى أَنْ يُنْفِقَ عَلَى عَبْدِهِ وَأَمَتِهِ او پر مالک واجب دي چي پر خپل غلام او مينځي [اخپل مال] نفقه كړي لِقَوْلِهِ عليه السلام فِي الْمَمَالِيكِ[1] ځكه چي نبي كريم ﷺ د غلامانو په هكله فرمايلي دي "إِنَّهُمْ إِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللهُ تَعَالَى تَحْتَ أَيْدِيكُمْ هغوى ستاسي ورونه دي. الله تعالىٰ ستاسو تر لاس لاندي كړي دي أَطْعِمُوهُمْ مِمَّا تَأْكُلُونَ وَأَلْبِسُوهُمْ مِمَّا تَلْبَسُونَ هغو ته خوراک وركوئ! له هغه څخه كوم چي تاسي خورئ او جامې وركوئ! له هغه څخه كوم چي تاسي اغوندى وَلَا تُعَذِّبُوا عِبَادَ اللهِ" او د الله بندګانو ته عذاب [او تكليف] مه وركوئ! فَإِنِ امْتَنَعَ وَكَانَ لَهُمَا كَسْبٌ او كه مالک [له نفقې وركولو څخه] منع سي او د غلام او مينځي لپاره د ګټلو [او كار كولو] صلاحيت وي اكْتَسَبَا وَأَنْفَقَا نو هغوى دي ګټه وكړي او [هغه دي پر خپلو ځانو] نفقه كړي لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلْجَانِبَيْنِ ځكه په دې كي د دواړو طرفونو لپاره فايده [او مصلحت] دى حَتَّى يَبْقَى الْمَمْلُوكُ حَيًّا وَيَبْقَى فِيهِ مِلْكُ الْمَالِكِ تر دې چي مملوک به [هم] ژوندى پاته سي او په هغه كي به د مالک كي ملكيت [هم] باقي پاته سي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا كَسْبٌ او كه غلام او مينځي لره د ګټلو صلاحيت نه وي بِأَنْ كَانَ عَبْدًا زَمِنًا أَوْ جَارِيَةً لَا يُؤَاجَرُ مِثْلُهَا په دې توګه چي غلام شل وشوټ وي يا مينځه داسي وي چي د هغې په شان مينځه په أجرت نه نيول كيږي أُجْبِرَ الْمَوْلَى عَلَى بَيْعِهِمَا نو [په دې صورت كي] به مالک د دوى پر خرڅولو مجبوره كيږي لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ الِاسْتِحْقَاقِ ځكه دوى دواړه د استحقاق أهل دي [يعني غلام او مينځه د نفقې مستحق دي] وَفِي الْبَيْعِ إِيفَاءُ حَقِّهِمَا او په خرڅولو سره د دوى حق پوره كيږي وَإِبْقَاءُ حَقِّ الْمَوْلَى بِالْخَلَفِ او د مالک حق

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الأدب، باب في حق المملوک، حديث رقم: ٥١٥٧.

په نائب [ثمن] سره باقي پاتيږي بِخِلَافِ نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ په خلاف د ښځې د نفقې لِأَنَّهَا تَصِيرُ دَيْنًا ځکه چې هغه ادخاوند پر ذمه] قرض ګرځي فَكَانَ تَأْخِيرًا نو ادهغې په حق کې ابه تأخير کيږي ايعني د هغه په نفقه کې د قرض په توګه تأخير کېداى سي] عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه وَنَفَقَةُ الْمَمْلُوكِ لَا تَصِيرُ دَيْنًا او د مملوک نفقه [د مالک پر ذمه] قرض نه ګرځي فَكَانَ إِبْطَالًا نو اد هغه حق] به باطل سي وَبِخِلَافِ سَائِرِ الْحَيَوَانَاتِ او په خلاف د ټولو حيوانانو لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الِاسْتِحْقَاقِ ځکه چې هغوى د استحقاق أهل نه دي فَلَا يُجْبَرُ عَلَى نَفَقَتِهَا نو [ځکه] به مالک د هغوى پر نفقې نه مجبوره کيږي إِلَّا أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِهِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى خو "فيما بينهُ و بين الله" به هغه ته د نفقې حکم کيږي لِأَنَّهُ عليه السلام نَهَى[2] عَنْ تَعْذِيبِ الْحَيَوَانِ ځکه چې نبي کريم ﷺ حيوان ته له عذاب ورکول څخه منع کړې ده وَفِيهِ ذَلِكَ او په دې کې [يعني په نفقه نه ورکولو کې هغوى ته] عذاب ورکول دي وَنَهَى[3] عَنْ إِضَاعَةِ الْمَالِ [همدارنګه] نبي ﷺ له مال ضايع کولو څخه منع کړې ده وَفِيهِ إِضَاعَتُهُ او په دې کې د مال ضايع کول دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يُجْبَرُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى: چې مالک به [د حيوان پر نفقې] مجبوره کيږي وَالْأَصَحُّ[*] مَا قُلْنَا [خو] صحيح هغه دي کوم چې موږ ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿مَمَالِيكُ﴾ جمع د "مَمْلُوكٌ" ده: هغه کس چې ديو چا تر ملکيت لاندې وي، مراد ځني غلام او مينځه دي، ﴿أَطْعِمُوا﴾ د افعال له باب څخه د جمع مذکر امرِ حاضر صيغه ده: بل چا ته خوراک ورکول، خوراک په خوړل، ﴿أَلْبِسُوا﴾ مخکنۍ صيغه ده: جامې (کالي) ورکول، جامې په اغوستل، ﴿دَيْن﴾ قرض (قرضه)، پور، ﴿إِضَاعَةٌ﴾ د افعال مصدر دى: ضايع کول، تلفول (له منځه وړل)، هلاکول.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الأدب، باب في حق المملوک، حديث رقم: ۱۵۶۱.

[2] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاستقرا في باب ما ينهى عن إضاعة المال، حديث رقم: ۲۴۰۷، ۲۴۰۸.

[*] القول الراجح: صاحب د القول الراجح ليکلي دي، چې په دې مسئله کې راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دى. لکه څرنګه چې علامه ابن همام رَحِمَهُ الله ليکلي دي: وعن أبي يوسف أنه يجبر في الحيوان، وهو قول الشافعي ومالک وأحمد رَحِمَهُمَا الله .....والحق ما عليه الجماعة. (فتح القدير ج:۴، ص:۲۳۱)، وقال العلامة ابن نجيم: ورجّح الطحاوي رواية أبي يوسف، وبه نأخذ (البحر الرائق ج:۴، ص:۲۱۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸۷]

**تشریح: صورت د مسئلې**: که د يو چا په ملکيت کي غلام او مينځه وي، نو ده ته پکار دي چي هغو ته نفقه ورکړي، او د هغو لپاره د کسوه و سکنیٰ انتظام وکړي، دليل دا حديث دی: "أَطْعِمُوْهُمْ مِمَّا تَأْكُلُوْن... إلخ"، په دې حديث کي غلام او مينځي ته د خوراک او جامې ورکولو تأکيد سوی دی. لېکن ښکاره دي وي چي دلته له نفقه او کسوه څخه مراد د هغه جنس دی: يعني هغو ته نفقه او جامې ورکوئ!. دا څني مراد نه دي چي خاص هغه خوراکه او جامې ورکوئ! کوم چي تاسي خورئ او اغوندئ. نو که مالک خپل غلام ته کم ارزښته جامې ورکړي او په خپله ښه جامې واغوندي، نو صحيح دي.

**فإن امتنع إلخ**: فرمايي که يو مالک د غلام يا مينځي له نفقې څخه انکار وکړي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① دا غلام او مينځه به د کار او کسب (ګټلو) صلاحيت لري. ② يا به يې نه لري. که اول صورت وي يعني د ګټې صلاحيت لري او ګټه کولای سي، نو هغو ته پکار دي چي په خپله ګټه وکړي او په هغه سره ګزاره وکړي. د دې لپاره چي د هغو ژوند وژغورل سي، نو دوی ته به هم فايده حاصله سي او مالک ته به هم فايده حاصله سي، د دوی فايده خو ښکاره ده چي ژوند به يې وژغورل سي او په ماړه نس به خوشحاله او تازه ګرځي، او دا د مالک فايده ده چي تر څو مينځه او غلام ژوندي وي، نو د مالک ملکيت به پاته وي، او هر وخت چي مالک وغواړي، نو دوی به خرڅ کړي او جېب به په ګرم کړي.

او که دويم صورت وي يعني غلام يا مينځه ګټه نه سي کولای، مثلاً غلام شل وشوت وي او د کسب طاقت نه لري، يا مينځه معذوره وي، محنت او مزدوري کولای نه سي کولای، او هيڅوک يې په أُجرت اخسيتلو ته تيار نه وي، او مالک نفقه هم نه ورکوي، نو په دې صورت کي به مالک د هغو پر خرڅولو مجبوره کيږي، ځکه کله چي مالک د نفقې نه ورکولو په وجه له إمساک بالمعروف څخه منع سو، نو اوس به پر هغه تسريح بالإحسان واجب وي، او د بيع په ذريعه تسريح بالإحسان ممکن دی، نو ځکه به مالک د غلام او مينځي پر خرڅولو مجبوره کيږي، او بيا دا چي غلام او مينځه د نفقې مستحق دي، او په بيع سره د دوی حق پوره کيږي، او مالک ته نائب يعني ثمن (قيمت) حاصليږي، لهذا په بيع کي د دواړو لپاره مصلحت او شفقت سته.

**بخلاف نفقه إلخ**: فرمايي د غلام او مينځي د مسئلې په خلاف که خاوند د ښځي له نفقې څخه انکار وکړي، نو هغه به پر طلاق ورکولو نه مجبوره کيږي، ځکه کله چي خاوند ښځي ته نفقه نه ورکوي، نو د ښځي نفقه د خاوند پر ذمه قرض پاتيږي (همدا وجه ده چي ښځه د خپلي نفقې لپاره د خاوند پر نامه

قرض اخيستلای سي) لکه مخکې چې دا خبره ذکر سوه. نو په دې وجه د هغې حق نه باطليږي. بلکې مؤخر کيږي. نو ځکه به خاوند پر طلاق ورکول نه مجبوره کيږي. لېکن د مملوک (غلام او مينځې) نفقه د خاوند پر ذمه قرض نه ګرځي (او نه دوی د مالک پر نامه قرض اخيستلای سي). لهذا د دوی نفقه مؤخر کېدلای هم نه سي. نو که مالک و مملوک ته نفقه نه ورکوي. نو د هغه حق باطليږي (او د قرض نه اخيستلو په وجه به مرګ ته نژدې سي). نو ځکه به مالک پر دې مجبوره کيږي چې مملوک ته نفقه ورکړي يا هغه خرڅ کړي (د دې لپاره چې د هغه حق له بطلان څخه وساتل سي).

بخلاف سائر إلخ: فرمايي که يو سړی خپلو حيوانانو ته نفقه (وابنه. پروړ او داسې نور) نه ورکوي. نو هغه به قضاءً پر دې نه مجبوره کيږي. ځکه چې حيوانات. څارويان او داسې نور د نفقې د استحقاق أهل نه دي (ځکه چې د قضاء او فيصلې لپاره مدعي ضروري دي. او حيوان مدعي نه سي جوړېدلای. نو په دې وجه هغه د استحقاق أهل نه دي). لېکن دغه سړي ته به دياتتاً (فيما بينه و بين الله) د نفقې ورکولو حکم کيږي او که هغه نفقه نه ورکوي. نو پر خرڅولو به مجبوره کيږي. ځکه چې په نفقه نه ورکولو سره حيوانانو ته تکليف رسيږي او په لوږي او تندې مبتلا کيږي. حالانکې په حديث کې حيوانانو ته له تکليف ورکولو څخه منع سوې ده. همدارنګه په حديث کې له بې ځايه مال ضايع کولو څخه هم منع سوې ده. او ښکاره خبره ده چې کله د حيوانانو څخه نفقه منع سي. نو هغوی په مرګ مبتلا کيږي او ضايع کيږي. نو ځکه به دياتتاً هغه ته د نفقې ورکولو حکم کيږي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي چې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې که يو مالک خپلو حيوانانو ته نفقه نه ورکوي. نو هغه به قضاءً هم پر نفقه ورکولو مجبوره کيږي. لکه څرنګه چې د غلام او مينځې په حق کې مالک مجبوره کيږي. لېکن صحيح اول قول دی چې د حيوانانو په حق کې به مالک نه مجبوره کيږي (ځکه چې حيوان مدعي جوړېدلای نه سي. نو ځکه به د هغه لپاره قضاء او فيصله کول ناممکن وي. ځکه چې له مدعي څخه بغير فيصله نه کيږي). والله أعلم و علمه أتم.



# كِتَابُ العَتَاق

## (دا) كتاب د آزادۍ (د احكامو په بيان كې) دی

**تشريح:** مخكې تر دې مصنف رَحِمَهُ الله كتابُ الطلاق بيان كړی، اوس له دې ځای څخه په كتابُ العتاق شروع كوي، دا دواړه ځكه پرلپسې بيان سوي دي چې طلاق او عتاق دواړه د إسقاط له قبيلې څخه دي، ځكه چې طلاق ملك بضع ساقطوي، او عتاق ملك رقبه ساقطوي، او طلاق ځكه تر عتاق مخكې سوی دی او د نكاح سره متصل سوی دی چې د نكاح سره طلاق مناسبت لري، نه عتاق، نو د همدې مناسبت په خاطر مصنف رَحِمَهُ الله تر كتابُ النكاح وروسته متصلاً كتابُ الطلاق بيان كړی دی، او تر هغه وروسته اوس كتابُ العتاق بيانوي.

**د عتق لغوي او اصطلاحي معنىٰ:** د عِتق او عَتاق لغوي معنىٰ ده: قوت او طاقت، عرب وايي: عَتَقَ الفَرْخ، (د چوغكې [مرغۍ] چيچی طاقتمن سو)، دا جمله هغه وخت وايي، كله چې چيچی طاقتمن سي او په خپله الوتل شروع كړي، او "عَتِيْـق" هغه آس ته وايي چې تر ټولو چابک او طاقتمن وي، او كعبې مباركې ته ځكه "البَيْتُ العَتِيْق" وايي چې كعبه په خدای وركړي طاقت سره دهر قابض او حمله كونكي دفع كوي.

د عتاق شرعي معنىٰ ده: "قُوَّةٌ حُكْمِيَّةٌ يَصِيْرُ الْمَرْءُ بِهَا أَهْلًا لِلشِّهَادَةِ وَالْوَلَايَـةِ وَالْقَضَـاء" (يعني عتاق هغه شرعي قوت ته وايي چې د هغه په ذريعه انسان (يعني رقبه) د شهادت، ولايت او فيصلې كولو أهل ګرځي".

عِتْق: آزادېدل، إِعْتَاق: آزادول، مُعْتِقْ (د تاء په كسره سره): آزادونكی (مالک)، مُعْتَق (د تاء په فتحه سره): آزاد كړې سوی (غلام)، عَتَاق: اسم دی، معنىٰ يې ده: آزادي.

**د عتق سبب:** پر دوه قسمه دی: ① يو دا چې د شرعي أمر په وجه د انسان پر ذمه إعتاق (د رقبې آزادول) واجب وي، لكه د نذر كفاره او داسې نور، ② دويم سبب دا دی چې إعتاق خو واجب نه وي، ليكن انسان د ثواب تر لاسه كولو په خاطر رقبه آزاده كړي.

**د عتق شرط:** دا دی چې مُعْتِق (آزادونكی) به بالغ، عاقل او آزاد وي، او د ملک يمين مالک به وي.

**د عتق رکن:** هغه شی چي په هغه سره آزادي واقع سي.

**د عتق حکم:** له محل (رقبې) څخه د رقيت او ملکيت زوال. (بنايه ج،۵، ص:۵۶۱، وهكذا في العناية وفتح القدير)

## د إعتاق (آزادولو) شرعي حيثيت

**الإِعْتَاقُ تَصَرُّفٌ مَنْدُوبٌ إِلَيْهِ** آزادول يو داسي عمل دی چي [په حديث کي] د هغه وطرف ته رغبت ورکول سوی دی قَالَ الطَّيْنِ ❶: "أَيُّمَا مُسْلِمٍ أَعْتَقَ مُؤْمِنًا نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم مسلمان چي يو مؤمن آزاد کړي أَعْتَقَ اللهُ تَعَالَى بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ" نو الله تعالیٰ ته به د هغه د هر اندام په بدله کي د آزادونکي مسلمان اندام [د دوږخ] له اُور څخه آزاد کړي وَلِهَذَا اسْتَحَبُّوا أَنْ يُعْتِقَ الرَّجُلُ الْعَبْدَ وَالْمَرْأَةُ الأَمَةَ له همدې وجهي علماؤ دا خبره مستحب ګرځولې ده چي سړی غلام آزاد کړي او ښځه مينځه آزاده کړي لِيَتَحَقَّقَ مُقَابَلَةُ الأَعْضَاءِ بِالأَعْضَاءِ د دې لپاره چي د ټولو اندامونو سره د ټولو اندامو مقابله ثابته سي [يعني چي د هر اندام په مقابله کي اندام راسي].

**اللغات:** ﴿مَنْدُوبٌ إِلَيْهِ﴾ د نصر له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده، نَدَبَ يَنْدُبُ نَدْبًا: د دې په باب په صله کي چي کله "إِلَى" ذکر سي، لکه دلته چي ذکر سوی دی نو معنیٰ يې راځي: بلنه ورکول، رغبت ورکول، ترغيب ورکول، پارول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي رقبه آزادول غوره او مندوب کار دی او په حديث کي د دې ډېر ثواب بيان سوی دی او د هغه وطرف ته رغبت ورکول سوی دی، حديث په عبارت کي ذکر سو، د هغه حديث په وجه د اُمت علماؤ دا خبره مستحب ګرځولې ده چي سړی خپل غلام آزاد کړي او ښځه خپله مينځه آزاده کړي، د دې لپاره چي د مُعْتِق هر اندام د رقبې (مُعْتَق) د هر اندام په مقابله کي راسي، او الله تعالیٰ د هغه هر اندام د دوږخ له اُور څخه وساتي.

## د إعتاق شرعي حيثيت

قَالَ: **الْعِتْقُ يَصِحُّ مِنَ الْحُرِّ الْبَالِغِ الْعَاقِلِ فِي مِلْكِهِ** فرمايي: چي آزادي صحيح کيږي [واقع کيږي] له آزاد، بالغ عاقل سړي څخه په خپل ملکيت کي شَرَطَ الْحُرِّيَّةَ لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي الْمِلْكِ امام قدوري

---

❶ تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب العتق، باب أيّ الرقاب أفضل، حديث رقم:۳۹۶۵. وبخاري في كتاب العتق، بـاب فـي العتق وفضله، حديث رقم:۲۵۱۷.

رَحِمَهُ اللهُ ځکه آزاد والی شرط کړی دی چې عتق فقط په ملکیت کې صحیح کیږي وَلَا مِلْكَ لِلْمَمْلُوكِ او د مملوک لپاره هیڅ ملکیت نه وي [ځکه چې د هغه ټوله څه د مالک وي] وَالْبُلُوغُ لِأَنَّ الصَّبِيَّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او بلوغ یې ځکه شرط کړی دی چې کوچنی د إعتاق [آزادولو] أهل نه دی لِكَوْنِهِ ضَرَرًا ظَاهِرًا ځکه چې په آزادولو کې ښکاره نقصان دی وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُهُ الْوَلِيُّ عَلَيْهِ او له همدې وجهې اد کوچني [ولي پر کوچني د إعتاق ملکیت نه لري وَالْعَقْلُ لِأَنَّ الْمَجْنُونَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلتَّصَرُّفِ او عقل یې ځکه شرط کړی دی چې لیونی د تصرف أهل نه دی وَلِهَذَا لَوْ قَالَ الْبَالِغُ: أَعْتَقْتُ وَأَنَا صَبِيٌّ همدا وجه ده که بالغ سړی ووایي: چې ما د کوچنیوالي په حالت کې [غلام] آزاد کړی وو فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول به د هغه معتبر وي [لېکن غلام نه آزادیږي] وَكَذَا إِذَا قَالَ الْمُعْتِقُ: أَعْتَقْتُ وَأَنَا مَجْنُونٌ او همدارنګه که آزادونکی کس ووایي: چې ما د جنون په حالت کې [غلام] آزاد کړی وو وَجُنُونُهُ كَانَ ظَاهِرًا او د هغه لېونتوب ښکاره وو [یعني ټولو ته معلوم وو، نو غلام نه آزادیږي] لِوُجُودِ الْإِسْنَادِ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ ځکه چې د إعتاق نسبت د عتق د منافي حالت وطرف ته سوی دی وَكَذَا لَوْ قَالَ الصَّبِيُّ: كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ فَهُوَ حُرٌّ إِذَا احْتَلَمْتُ او همدارنګه که کوچنی ووایي: د هر غلام چې زه مالک کېږم نو هغه آزاد دی کله چې زه بالغ سم لَا يَصِحُّ نو إعتاق نه صحیح کیږي [یعني غلام نه آزادیږي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِقَوْلٍ مُلْزِمٍ ځکه چې نابالغ کوچنی د داسې قول أهل نه دی چې هغه لازمونکی وي وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْعَبْدُ فِي مِلْكِهِ او دا [هم] ضروري دي چې غلام به د مُعْتِق په ملکیت کې وي حَتَّى لَوْ أَعْتَقَ عَبْدَ غَيْرِهِ تر دې که هغه د بل چا غلام آزاد کړي لَا يَنْفُذُ عِتْقُهُ نو د غلام عتق نه نافذیږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: لَا عِتْقَ [1] فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ ځکه چې نبي ﷺ فرمایلي دي: آزادېدل نه [نافذ] کیږي په هغه شي کې چې انسان یې مالک نه وي.

**اللغات:** ﴿شَرَطَ﴾ د نصر ماضي ده: شرط کول. شرط لګول. ﴿مُلْزِم﴾ د افعال اسم فاعل دی: لازمونکی. لَيْسَ بِأَهْلٍ لِقَوْلٍ مُلْزِمٍ: یعني بچی د دې أهل نه دی چې پر هغه خپل قول او خبره لازم سي. یعني د کوچنیوالي په حالت کې د هغه خبري لره هیڅ اعتبار نسته.

---

[1] تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الطلاق، باب ما جاء لا طلاق قبل النكاح، حديث رقم: ١١٨١. وابو داؤد في كتاب الطلاق، باب في الطلاق قبل النكاح، حديث رقم: ٢١٩.

**تشريح**: په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله د إعتاق شرائط بيان کړي دي. حاصل يې دا دی چې پر غلام هغه وخت آزادي واقع کيږي. کله چې څلور شرطونه موجود سي. او که له دې شرطونو څخه يو شرط هم کم وي. نو بيا پر غلام آزادي نه واقع کيږي.

①... اول شرط دا دی چې انسان (مُعْتِق) به په خپله آزاد وي. د غلام او مينځې له طرفه آزادي نه واقع کيږي. ②... دويم شرط دا دی چې انسان به بالغ وي. لهذا که نابالغ هلک يو غلام آزاد کړي. نو آزادي نه واقع کيږي. ③... دريم شرط دا دی چې انسان به عاقل وي. د مجنون آزادي نه واقع کيږي. ④... څلورم شرط دا دی چې غلام به د انسان په ملکيت کې وي. که چيري د بل چا په ملکيت کې وي. نو د هغه آزادول نه صحيح کيږي. او آزادي نه واقع کيږي. د هر يوه تفصيل به لاندې ذکر سي.

**شرط الحرية إلخ**: د مُعْتِق (آزادونکي) لپاره شرط دا دی چې غلام به د هغه په ملکيت کې وي. او کوم څوک چې د بل چا تر ملکيت لاندې وي (يعني غلام يا مينځه). د هغه په ملکيت کې هيڅ شی نه وي. د هغه په ملکيت کې چې کوم شيان وي. هغه ټوله د مالک وي. نو ځکه مملوک کس بل څوک نه سي آزادولای. مثلاً که يو غلام ته خپل مالک د تجارت اجازه ورکړې وي. او دغه تاجر غلام يو بل غلام رانيسي او د هغه آزادول وغواړي. نو آزادي نه واقع کيږي.

**والبلوغ إلخ**: د مُعْتِق لپاره بلوغت هم شرط دی. د دې يوه وجه خو دا ده چې نابالغه کوچنی د آزادولو أهل نه دی. او دويمه وجه دا ده چې په ظاهري توګه په آزادولو (إعتاق) کې د کوچني نقصان دی. د دې يو مثال ورکوي فرمايي چې: همدا وجه ده چې ولي د کوچني غلام نه سي آزادولای. ځکه چې په دې کې په ظاهري توګه د کوچني نقصان دی.

**والعقل إلخ**: د مُعْتِق لپاره عقل هم شرط او ضروري دي. ځکه چې مجنون د هيڅ تصرف أهل نه دی. او عتاق يو أهم تصرف دی. نو ځکه د هغه لپاره عقل هم شرط دی.

**ولهذا لو قال إلخ**: مصنف رَحِمَهُ الله وفرمايل چې د مُعْتِق لپاره بلوغت او عقل ضروري دی. نو له دې ځای څخه په همدې باره کې درې تفريعات بيانوي: ①... اوله تفريع دا ده چې که بالغ سړی دا دعوی وکړي چې ما په کوچنيوالي کې غلام آزاد کړی وو. نو د هغه خبره به منل کيږي، لېکن غلام نه آزاديږي. ②... دويمه تفريع دا ده چې که يو سړی عاقل وي. لېکن په يوه زمانه کې مجنون پاتې سوی وي. او د هغه جنون ښکاره وي يعني ټولو خلکو ته معلوم وي. او اوس د عقل په حالت کې دا خبره کوي چې د جنون په حالت کې ما غلام آزاد کړی وو. نو د هغه خبره به منل کيږي. لېکن غلام نه

آزادیږي. په پورتني دواړو صورتونو کي ځکه غلام نه آزادیږي چي مُعْتِق د خپلو آزادولو نسبت دیو داسي وخت وطرف ته کړی دی چي په هغه وخت کي مُعْتِق د آزادولو أهل او قابل نه وو. یعني هغه نابالغ وو. یا مجنون وو.

③ دریمه تفریع دا ده چي کوچني تر څو نابالغه او بچی وي نو د هغه خبري اعتبار نه کیږي. لهذا که هغه ووایي: زما په ملکیت کي چي هر څومره غلامان راسي. هغه ټوله زما د بلوغت وخت کي آزاد دي. نو د هغه غلامان نه آزادیږي: ځکه چي اوس (په کوچنیوالي کي) د هغه قول لره هیڅ اعتبار نسته. او د هغه قول پر هغه نه لازمیږي.

ولا بد أن يكون العبد إلخ: فرمایي د مُعْتِق ملکیت هم ضروري دی چي غلام به د هغه په ملکیت کي وي. نو که یو څوک د بل سړي غلام آزاد کړي. نو إعتاق (آزادول) نه صحیح کیږي. ځکه په حدیث کي ذکر سوي دي چي "لَا عِتْقَ إِلَّا فِيْمَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ". یعني انسان چي د کوم شي مالک نه وي. په هغه کي عتق نه نافذیږي. او همدارنګه دا د فقهي قاعده ده چي: "لَا يَجُوْزُ التَّصرُّفِ فِيْ مِلْكِ الْغَيْرِ". یعني د بل چا په ملکیت کي تصرف جائز نه دی. نو په دې حواله سره هم د بل چا غلام آزادول صحیح نه دي.

## د إعتاق الفاظ

وَإِذَا قَالَ لِعَبْدِهٖ أَوْ أَمَتِهٖ: أَنْتَ حُرٌّ أَوْ مُعْتَقٌ أَوْ عَتِيقٌ أَوْ مُحَرَّرٌ او کله چي مالک خپل غلام یا مینځي ته ووایي: ته آزاد یې یا ته آزاد کړی سوی یې أَوْ قَدْ حَرَّرْتُكَ أَوْ قَدْ أَعْتَقْتُكَ یا ما ته آزاد کړی یې فَقَدْ عَتَقَ نو هغه آزادیږي نَوَى بِهِ الْعِتْقَ أَوْ لَمْ يَنْوِ هغه که مالک په دې سره د عتق [آزادېدلو] نیت وکړي. یا یې نه وکړي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ صَرِيحَةٌ فِيهِ ځکه دا الفاظ د عتق لپاره صریح دي لِأَنَّهَا مُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ شَرْعًا وَعُرْفًا ځکه چي دا الفاظ د شرع او عرف دواړو په اعتبار سره د عتق لپاره مستعمل دي فَأَغْنَى ذٰلِكَ عَنِ النِّيَّةِ نو دا صریح کېدل له نیت څخه کفایت کوي [یعني دا صریح کېدل له نیت څخه بې پروایي راولي] وَالْوَضْعُ وَإِنْ كَانَ فِي الْإِخْبَارِ او د دې الفاظو وضع که څه هم د إخبار [خبر ورکولو] لپاره ده فَقَدْ جُعِلَ إِنْشَاءً فِي التَّصَرُّفَاتِ الشَّرْعِيَّةِ لِلْحَاجَةِ لېکن د ضرورت په وجه هغه په تصرفاتِ شرعیه وو کي د انشاء په معنیٰ سره ګرځول سوي ده كَمَا فِي الطَّلَاقِ وَالْبَيْعِ وَغَيْرِهِمَا لکه په طلاق او بیع او داسي نورو کي [چي داسي کیږي] وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ بِهِ الْإِخْبَارَ الْبَاطِلَ او که مالک ووایي: چي په دې الفاظو سره ما د دروغ خبر

ورکولو نيت کړی دی أَوْ أَنَّهُ حُرٌّ مِنَ الْعَمَلِ يا ا وواييې: په دې سره ما دا نيت کړی دی ا چې هغه له کار څخه آزاد دی صُدِّقَ دِيَانَةً نو دياناً به د هغه تصديق کيږي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ ځکه چې دا ا الفاظ ا د دې احتمال اهم ا لري وَلَا يُدَيَّنُ قَضَاءً ا ليکن ا قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چې دا د ظاهر خلاف دي.

**اللغات:** ﴿مُعْتَق﴾ د افعال اسمِ مفعول دی: آزاد کړی سوی. ﴿عَتِيقٌ﴾ د اسمِ مفعول (مُعْتَق) په معنیٰ سره دی: آزاد کړی سوی. د مُحَرَّرٌ هم دغه معنیٰ ده (عربي يو فصيح ژبه ده او د يوې معنیٰ لپاره ډېر الفاظ او لغات پکښې استعمال سوي وي، حتیٰ چې د شېر ازمري ا لپاره پنځه سوه نومونه استعمال سوي دي، همدارنګه د زياتره معناوو لپاره څو چنده الفاظ په کي استعمال سوي وي. دا يوازې د عربي ژبې خاصيت او ځانګړتيا ده). ﴿أَغْنَى﴾ د افعال ماضي ده: بې پروا کول. مستغني کول. لېکن کله چې د دې باب په صله کي عَنْ راسي. نو معنیٰ يې راځي: کافي کېدل (کفايت کول). نائب کېدل. ﴿لَا يُدَيَّن﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: تصديق کول.

**تشريح: صورت مسئلې:** دا دی که مالک خپل غلام يا مينځي ته وواييې: أَنْتِ حُرٌّ يا أَنْتِ مُعْتَقٌ يا أَنْتِ عَتِيقٌ يا أَنْتِ مُحَرَّرٌ يا قَدْ حَرَّرْتُكَ يا قَدْ أَعْتَقْتُكَ. نو هغه آزاديږي. هغه که مالک په دې الفاظو سره د آزادولو نيت کړی او که نه وي؛ ځکه چې دا الفاظ د آزادولو په معنیٰ کي بالاتفاق صريح او څرګند دي. او شرعاً او عرفاً د آزادولو په معنیٰ کي مستعمل دي. او الفاظ صريحه په عمل کولو کي د نيت محتاج نه دي. نو ځکه به له نيت څخه بغير هم په دې الفاظو سره آزادي واقع کيږي.

**والوضع إلخ:** په اصل وضع کي دا الفاظ (أَنْتِ حُرٌّ. أَنْتِ مُعْتَق... إلخ) که څه هم د إخبار په معنیٰ سره دي، مګر په تصرفات شرعيه کي د ضرورت په وجه د انشاء معنیٰ ته نقل سوي دي او د إنشاء په معنیٰ سره ګرځول سوي دي. لکه څرنګه چې په طلاق او بيع کي هم أَنْتِ طَالِقٌ او بِعْتُ و اِشْتَرَيْتُ د اصل وضع په اعتبار سره د إخبار لپاره دي. مګر د شرعي ضرورت په وجه د انشاء معنیٰ ته نقل سوي دي.

**ولو قال إلخ:** او که مالک وواييې: چې ما په دې الفاظو (أَنْتِ حُرٌّ... إلخ) سره دا نيت کړی دی چې "ته له کار او عمل څخه آزاد يې"، نو په دې صورت کي حکم دا دی چې دياناً د هغه تصديق کيږي. ځکه چې په دې الفاظو کي د نيت او ارادې احتمال هم سته. يعني په دې الفاظو کي هر لفظ د خپلې احتمالي معنیٰ احتمال هم لري، نو ځکه به دياناً د مالک تصديق کيږي. لېکن قضاءً به د هغه

تصديق نه کيږي. ځکه چې دا (احتمالي معنیٰ مرادول) خلافُ الظاهر دي. او په خلافُ الظاهر شيانو کې قضاءً ديو چا تصديق نه کيږي او د نيت اعتبار يې نه کيږي. نو ځکه به قضاءً د مالک نيت معتبر نه وي.

## خپل غلام ته د "اې آزاد!" ويلو حکم

وَلَوْقَالَ لَهُ: يَا حُرُّ يَا عَتِيقُ او که مالک خپل مملوک ته ووايي: اې آزاد! [يا] اې آزاد کړی سوې! يُعْتَقُ نو هغه آزاديږي لِأَنَّهُ نِدَاءٌ بِمَا هُوَ صَرِيحٌ فِي الْعِتْقِ ځکه چې دا په داسي لفظ سره رابلل [آواز کول] دي کوم چې په عتق کې صريح دی وَهُوَ لِاسْتِحْضَارِ الْمُنَادٰى بِالْوَصْفِ الْمَذْكُورِ او نداء په وصف مذکور سره د منادیٰ حاضرولو لپاره وي هٰذَا هُوَ حَقِيقَتُهُ همدا د منادیٰ حقيقت دی فَيَقْتَضِي تَحَقُّقَ الْوَصْفِ فِيهِ نو دا به په منادیٰ کې د [مذکوره] وصف د ثابتېدلو تقاضا کوي وَأَنَّهُ يَثْبُتُ مِنْ جِهَتِهِ. او دا وصف د رابلونکي [آواز کونکي] له طرفه ثابتېدای [هم] سي فَيَقْضِي بِثُبُوتِهِ تَصْدِيقًا لَهُ فِيمَا أَخْبَرَ لهذا د مالک د ورکول سوي خبر د تصديق لپاره به د دې وصف د ثابتېدلو تقاضا کوي وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى. او دا به موږ انشاء الله وروسته بيان کړو إِلَّا إِذَا سَمَّاهُ حُرًّا ثُمَّ نَادَاهُ يَا حُرُّ مګر دا چې مالک پر خپل غلام د "حُرّ" نوم ايښی وي [او بيا] هغه ته آواز وکړي: يَا حُرّ [نو غلام نه آزاديږي] لِأَنَّ مُرَادَهُ الْإِعْلَامُ بِاسْمِ عَلَمِهِ ځکه چې [دلته] د مالک مقصد په خپل نامه سره [غلام ته] خبر ورکول [د هغه رابلل] دي وَهُوَ مَا لَقَّبَهُ بِهِ يعني په هغه لقب سره کوم چې مالک غلام ته ورکړی دی وَلَوْنَادَاهُ بِالْفَارِسِيَّةِ يَا آزَادُ او که مالک په فارسي ژبه هغه ته آواز وکړي [په فارسي ژبه ورته ووايي] اے آزاد! وَقَدْ لَقَّبَهُ بِالْحُرِّ حالانکې هغه غلام ته د "حُرّ" لقب ورکړی وي قَالُوا: يُعْتَقُ نو فقهاء فرمايي: چې [په دې صورت کې] غلام آزاديږي وَكَذَا عَكْسُهُ او همدارنګه که د دې برعکس وي [نو هم غلام آزاديږي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنِدَاءٍ بِاسْمِ عَلَمِهِ ځکه چې دا په خپل نامه سره [د غلام] رابلل نه دي فَيُعْتَبَرُ إِخْبَارًا عَنِ الْوَصْفِ نو د إخبار عن الوصف اعتبار به کيږي. ايعني د حُرّيت (آزادی) په وصف سره به د خبر ورکولو اعتبار کيږي].

**اللغات:** ﴿إِسْتِحْضَار﴾ د استفعال مصدر دی: طلب د حاضرېدلو کول (حاضرول. موجودول).

﴿مُنَادٰى﴾ چا ته چې آواز وسي. څوک چې راوبلل سي. هغه ته مُنَادٰی وايي. او رابللو ته نِدَاء وايي.

﴿إِعْلَامٍ﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول. دلته ځني مراد رابلل او نداء کول دي. ﴿لَقَّبَ﴾ د تفعیل ماضي ده: لقب ورکول. لقب پر ایښوول (ځانګړی نوم پر ایښوول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مالک خپل مملوک (غلام) په دې الفاظو سره را وبولي (یعني په دې الفاظو سره آواز ورته وکړي): یَا حُرّ. یا یَا عَتِیق. نو هغه مملوک آزادیږي. ځکه چي دا په یو داسي لفظ سره رابلل دي کوم چي د آزادۍ په معنیٰ کي صریح دی. او د نداء معنیٰ ده: منادیٰ په وصف مذکور سره حاضرول. همدا د منادیٰ حقیقي معنیٰ ده. نو دا به په منادیٰ کي د دې وصف د ثابتېدلو تقاضا کوي. او دا وصف یعني "آزادي" د رابلونکي له طرفه ثابتېدای هم سي (یعني حُرّیت او آزادي داسي وصف دی چي مالک یې په غلام کي ثابتولای سي. مطلب که هغه وغواړي نو غلام آزادولای سي). لهذا د مالک د قول د تصدیق په واسطه سره په منادیٰ یعني په مملوک کي د دې وصف ثابتېدل لازم سو. او کله چي په منادیٰ یعني په مملوک کي دا وصف ثابت سو. نو مملوک به د خپل مالک له طرفه آزادیږي.

**إلاإذا إلخ:** او که یو مالک پر خپل غلام د "حُرّ" (آزاد) نوم یا لقب ایښی وي، بیا هغه ته "یَا حُرُّ" ووایي. نو غلام نه آزادیږي. ځکه چي اوس د مالک مقصود په غلام کي د حُرّیت وصف ثابتول نه دي. بلکي په خپل نامه سره د هغه رابلل (راغوښتل) دي. نو ځکه به دا کلام د حُرّیت لپاره انشاء نه وي.

**ولوناداه إلخ:** او که دیو غلام نوم یا د هغه لقب "حُرّ" وي. او مالک په فارسي ژبه کي هغه ته "اے آزاد" ووایي. نو فقهاء فرمایي چي غلام آزادیږي. همدارنګه که د هغه نوم "آزاد" وي. او مالک په عربي ژبه "یَاحُرُّ" ورته ووایي. نو هم آزادیږي. ځکه چي په دې صورت کي په خپل نامه سره د هغه رابلل موجود نه سو. نو همدا خیال به کیږي چي مالک په دې سره په دغه غلام کي د وصف (حُرّیت) ثابتولو خبر ورکوي. او په مملوک کي د وصف (حُرّیت) په ثابتولو سره مملوک آزادیږي. نو ځکه به په دې صورت کي مملوک آزادیږي.

## د جزء یا بدن وطرف ته د إعتاق نسبت کول

﴿وَكَذَا لَوْ قَالَ: رَأْسُكَ حُرٌّ أَوْ وَجْهُكَ أَوْ رَقَبَتُكَ أَوْ بَدَنُكَ﴾ همدارنګه که مالک ووایي: ستا سر آزاد دی. یا ستا مخ. یا ستا غاړه. یا ستا بدن آزاد دی. نو غلام آزادیږي ﴿أَوْ قَالَ لِأَمَتِهِ: فَرْجُكِ حُرٌّ﴾ یا خپلي مینځي ته ووایي: ستا شرمګاه آزاده ده انو مینځه آزادیږي ﴿لِأَنَّ هَذِهِ الْأَلْفَاظَ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ﴾ ځکه چي د دې الفاظو په ذریعه له ټوله بدن څخه تعبیر کیږي ﴿وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ﴾ او اد دې تفصیل ا په کتاب الطلاق

کي تېر سو وَإِنْ أَضَافَهُ إِلَىٰ جُزْءٍ شَائِعٍ او كه مالک ا د غلام ا د جزء شائع و طرف ته د آزادۍ اعتق ا نسبت وکړي يَعْتِقُ ذَٰلِكَ الْجُزْءُ نو په هغه جزء کي آزادي واقع کيږي ا بيا په ټوله بدن کي نشر کيږي او ټوله بدن آزاديږي ا وَسَيَأْتِيكَ الِاخْتِلَافُ فِيهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ او ژر به انشاء الله په دې سلسله کي اختلاف تا ته راسي.

**اللغات:** ﴿يُعَبَّرُ﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده: تعبير کول (مرادول). بيانول. ﴿جُزْء شَائِع﴾ مشترک جزء (مشترکه حصه). نشر سوی جزء (خپور سوی جزء). د بدن دريمه حصه. څلورمه حصه.... او د بدن نصف ته جزء شائع (مشترک جزء) وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل مملوک (غلام يا مينځې) ته داسي ووايي: ستا سر آزاد دی. يا ستا مخ آزاد دی. يا ستا غاړه آزاده ده. يا ستا بدان آزاد دی. يا ستا فرج آزاد دی. نو په دې ټولو صور تونو کي پر مملوک آزادي واقع کيږي. ځکه چي په دې الفاظو سره د انسان له ټوله بدن څخه تعبير کيږي، نو ځکه به له رَأْس، وَجْهُ او داسي نورو الفاظو څخه ټوله جسم او ټوله ملکيت مرادوي، او په بشپړه توګه به په مملوک کي آزادي واقع کيږي. لکه په کتابُ الطلاق کي چي د دې تفصيل تېر سو.

**وإن أضافه إلخ:** فرمايي که مالک د مملوک د يو جزء شائع و طرف آزادي منسوب کړي، مثلاً ورته ووايي: ستا دريمه حصه آزاده ده. يا ستا څلورمه حصه آزاده ده. يا مثلاً ستا لسمه حصه آزاده ده. نو اول په دې جزء کي آزادي واقع کيږي او بيا په ټوله بدن او جسم کي سرايت کوي او غلام آزاديږي. په دې سلسله کي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی چي هغه به انشاء الله ژر ستاسو په مخکي ذکر سي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ أَضَافَهُ إِلَىٰ جُزْءٍ مُعَيَّنٍ لَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنِ الْجُمْلَةِ او که مالک د يو داسي معين جزء و طرف ته د آزادۍ اعتق ا نسبت وکړي چي په هغه سره له ټوله بدن څخه تعبير نه کيږي كَالْيَدِ وَالرِّجْلِ لکه لاس او پښه لَا يَقَعُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز آزادي نه واقع کيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله وَالْكَلَامُ فِيهِ كَالْكَلَامِ فِي الطَّلَاقِ او په دې کي هغه بحث دی کوم چي په طلاق کي دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او د طلاق بحث موږ ا مخکي ا بيان کړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک د خپل مملوک آزادي د يو داسي معين جزء و طرف ته منسوبه کړي چي په هغه له ټوله بدن څخه تعبير نه کيږي. مثلاً ورته ووايي: يَدُكِ حُرٌّ. يا رِجْلُكِ حُرٌّ.

نو په دې صورت کې زموږ په نيز آزادي نه واقع کيږي. ليکن د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز په دې صورت کې هم آزادي واقع کيږي. دا مسئله د طلاق د مسئلې په شان ده. او د دې پوره تفصيل موږ په كتاب الطلاق کې بيان کړی (چې که د معين جزء وطرف ته د طلاق نسبت وسي. نو آيا طلاق واقع کيږي. کنه؟ هلته يې وګورئ!).

## د "لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكَ" ويلو حکم

وَلَوْقَالَ: لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكَ او که مالک ووايي: زما پر تا هيڅ ملکيت نسته وَنَوٰى بِهِ الْحُرِّيَّةَ او په دې سره د آزادی نيت وکړي عَتَقَ نو مملوک آزاديږي وَإِنْ لَمْ يَنْوِ او که [په دې سره د آزادی] نيت نه وکړي لَمْ يُعْتَقْ نو نه آزاديږي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنَّهُ أَرَادَ لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكَ لِأَنِّيْ بِعْتُكَ ځکه چې دا [جمله] د دې احتمال لري چې د مالک اراده به دا وي چې زما [ځکه] پر تا هيڅ ملکيت نسته ځکه چې ما ته خرڅ کړی يې وَيَحْتَمِلُ لِأَنِّيْ أَعْتَقْتُكَ او د دې احتمال [هم] لري [زما ځکه پر تا هيڅ ملکيت نسته] ځکه چې ما ته آزاد کړی يې فَلَا يَتَعَيَّنُ أَحَدُهُمَا مُرَادًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ او له دې دواړه څخه يو مراد فقط په نيت سره متعين کيږي.

**اللغات:** ﴿حُرِّيَّة﴾ آزادي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل مملوک ته ووايي: "لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكَ" (زما پر تا هيڅ ملکيت نسته. يعني اوس پر تا زما ملکيت ختم سو). او په دې سره د آزادولو نيت وکړي. نو هغه آزاديږي. او که د آزادولو نيت نه وکړي. نو هغه نه آزاديږي. ځکه چې په لَا مِلْكَ عَلَيْكَ کې د ملکيت ختمېدلو په هکله دوه احتماله سته: ① ما ته خرڅ کړي. نو ځکه اوس پر تا زما ملکيت نسته. ② ما ته آزاد کړي. نو ځکه اوس پر تا زما ملکيت نسته. لهذا دا جمله د دوو معناوو احتمال لري. نو ځکه به د آزادېدلو (عتق) د معنیٰ متعينولو لپاره نيت ضروري وي. ځکه له نيت څخه بغير به هيڅ يو احتمال متعين کېدلای نه سي.

## د "إعتاق" کنايات

قَالَ: وَكَذَا كِنَايَاتُ الْعِتْقِ فرمايي: او همداسي د عتق کنايي الفاظ دي وَذٰلِكَ مِثْلُ قَوْلِهِ: خَرَجْتَ مِنْ مِلْكِيْ او هغه لکه د مالک دا قول: ته زما له ملکيت څخه ووتې وَلَا سَبِيْلَ لِيْ عَلَيْكَ زما پر تر هيڅ لاره نسته وَلَا رِقَّ لِيْ عَلَيْكَ پر تا زما لپاره غلامتوب نسته وَقَدْ خَلَّيْتُ سَبِيْلَكَ ما ستا لاره ايله کړه اما ستا

لاره پرېښووه! لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ نَفْيَ السَّبِيلِ وَالْخُرُوجَ عَنِ الْمِلْكِ وَتَخْلِيَةَ السَّبِيلِ بِالْبَيْعِ أَوِ الْكِتَابَةِ ځکه چې دا [الفاظ] د بيع او کتابت په ذريعه له ملکيت څخه د لارې نفي کولو او [له ملکيت څخه] د وتلو او د لارې ايله کولو احتمال لري كَمَا يَحْتَمِلُ بِالْعِتْقِ لکه څرنګه چې [دا الفاظ] په آزادېدلو سره [هم] د دې [خروج عن الملكية او تخلية السبيل] احتمال لري فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو ځکه به نيت ضروري وي وَكَذَا قَوْلُهُ لِأَمَتِهِ: قَدْ أَطْلَقْتُكِ او همدارنګه د مالک دا قول خپلې مينځې ته: ما ته پرې ايښې يې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ: خَلَّيْتُ سَبِيلَكِ ځکه چې هغه د مالک د دې قول په شير دی: ما ستا لاره ايله کړه وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا [حکم] له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی بِخِلَافِ قَوْلِهِ: طَلَّقْتُكِ په خلاف د مالک د دې قول: ما تا ته طلاق درکړی دی [په دې سره آزادي نه واقع کيږي] عَلَى مَا نُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ چې وروسته به موږ انشاء الله د دې بيان وکړو.

**اللغات:** ﴿خَلَّيْتُ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: پرېښوول، ايله کول (لاره خلاصول، لاره آزادول). خَلَّيْتُ سَبِيْلَكَ: ما ستا لاره ايله کړې ده (يعني مخ دې ايله دی، هرې خوا ته چې ځې، ځه!). ﴿أَطْلَقْتُ﴾ د افعال له باب څخه مخکنی صيغه ده: پرېښوول، ايله کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک د کنايي الفاظو په ذريعه خپل مملوک آزاد کړي، مثلاً ورته ووايي: "ته زما له ملکيت څخه وتلې يې"، يا ورته ووايي: "پر تا زما هيڅ لاره نسته"، يا "پر تا زما لپاره غلامتوب نسته"، يا "ما ستا لاره ايله کړه"، نو که په دې ټولو صورتونو کې مالک د آزادېدلو (عتق) نيت کړی وي، نو پر مملوک آزادي واقع کيږي، کنې نه واقع کيږي، ځکه چې په دې الفاظو کې د بيع يا کتابت په ذريعه د ملکيت نفي کولو او د لارې ايله کولو احتمال هم سته، او د عتق په ذريعه له ملکيت څخه د وتلو او د لارې ايله کولو احتمال هم سته (يعني په دې الفاظو کې دوه احتماله سته)، لهذا د يوه احتمال د تعيين لپاره نيت ضروري دی، او د نيت مطابق به د آزادېدلو او نه آزادېدلو فيصله کيږي، نو ځکه موږ وايو چې په دې الفاظو کې د عتق د وقوع لپاره د مالک له طرفه د عتق نيت ضروري دی، که نيت وکړي، نو آزادي واقع کيږي، کنې نه واقع کيږي.

**وكذا قوله إلخ:** فرمايي که مالک خپلې مينځې ته ووايي: قَدْ أَطْلَقْتُكِ (ما ته پرېښوولې). نو په دې سره هم له نيت څخه بغير آزادي نه واقع کيږي، ځکه چې په دې کې هم د عتق او لارې ايله کولو

(تخلیةُ السبیل) دواړو احتمال سته. لهذا له نیت څخه بغیر به عتق نه ثابتیږي. همدا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دی.

د دې په خلاف که مالک خپلې مینځې ته داسې ووایي: "طَلَّقْتُكِ ما تا ته طلاق درکړی". او بیا ووایي چې ما په دې سره د آزادولو نیت کړی دی. نو په دې صورت کې د نیت کولو باوجود آزادي نه واقع کیږي. ځکه چې دا لفظ (طَلَّقْتُكِ) د طلاق لپاره صریح دی. لهذا په هیڅ صورت کې په دې سره آزادي واقع کېدلای نه سي.

## د "إعتاق" کنایات

وَلَوْقَالَ: لَا سُلْطَانَ لِيْ عَلَيْكِ او که مالک ووایي: پر تا زما هیڅ بادشاهت [سلطنت] نسته وَنَوَى الْعِتْقَ او [په دې سره] د آزاد والي نیت وکړي لَمْ يُعْتَقْ نو مملوک نه آزادیږي لِأَنَّ السُّلْطَانَ عِبَارَةٌ عَنِ الْيَدِ ځکه چې له سلطنت څخه قبضه مراد ده وَسُمِّيَ السُّلْطَانُ بِهٖ لِقِيَامِ يَدِهٖ او باچا ته ځکه سُلطان وایي چې د هغه قبضه [پر ټوله ملک] قائم وي وَقَدْ يَبْقَى الْمِلْكُ دُوْنَ الْيَدِ او کله نا کله ملکیت له قبضې څخه بغیر پاتیږي [یعنې کله حالت داسې وي چې ملکیت پاته وي، لیکن قبضه نه وي] كَمَا فِي الْمُكَاتَبِ لکه په مکاتب کې بِخِلَافِ قَوْلِهٖ: لَا سَبِيلَ لِيْ عَلَيْكِ په خلاف د مالک د دې قول: زما پر تا هیڅ لاره نسته [یعنې په دې سره آزادي واقع کیږي] لِأَنَّ نَفْيَهٗ مُطْلَقًا بِانْتِفَاءِ الْمِلْكِ ځکه چې د سبیل مطلقاً نفي کول د ملکیت په نفي کولو سره ثابتیږي [مطلب دا چې په دې جمله سره ټوله ملکیت نفي کیږي] لِأَنَّ لِلْمَوْلٰى عَلَى الْمُكَاتَبِ سَبِيلًا ځکه چې مالک پر مکاتب لاره لري فَلِهٰذَا يَحْتَمِلُ الْعِتْقَ نو په دې وجه دا [جمله] د آزادوالي احتمال لري.

**اللغات:** ﴿سُلْطَان﴾ باچا، باچاهي، سلطنت (بادشاهت)، غلبه، تسلط (قبضه). ﴿سُمِّيَ﴾ د تفعیل له باب څخه د ماضي مجهولې صیغه ده: نوم ایښوول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل مملوک ته ووایي: "لَا سُلْطَانَ لِيْ عَلَيْكَ" (زما پر تا هیڅ بادشاهت نسته) او په دې جملې سره د آزادۍ هم نیت وکړي. نو هم غلام نه آزادیږي. ځکه چې د سُلطَان معنیٰ ده: قبضه. باچا ته په همدې وجه سُلطَان وي چې پر ملک د هغه قبضه وي. لنډه دا چې سُلطَان د قبضې په معنیٰ سره دی. او کله نا کله داسې وي چې د انسان ملکیت باقي پاته وي. لیکن

قبضه يې پاته نه وي. لكه په مكاتب كي چي د مالک ملكيت پاتيږي، لېكن قبضه يې نه پاتيږي. نو ځكه به دلته په دې مسئله كي پر مملوک آزادي نه واقع كيږي.

د دې په خلاف كه مالک خپل مملوک ته "لَا سَبِيْلَ عَلَيْكَ" ووايي، او په دې سره د آزادۍ نيت وكړي، نو مملوک آزاديږي، ځكه چي د "لَا سَبِيْلَ عَلَيْكَ" مطلقاً ويل د ټوله ملكيت نفي كېدلو او ختمېدلو لره مستلزم دي، او پر مكاتب كه څه هم مالک قبضه نه لري، لېكن د ملكيت لاره پر لري. نو ځكه به د مكاتب په حق كي "لَا سَبِيْلَ عَلَيْكَ" د عتق او آزادۍ احتمال لري، او مكاتب به آزاديږي.

## غلام خپل زوی ګرځول

وَلَوْقَالَ: هٰذَا اِبْنِيْ وَثَبَتَ عَلٰى ذٰلِكَ او كه مالک ووايي: دا [غلام] زما زوی دی او پر دې ثابت پاته سي [ايعني پر خپل دې خبره ټينګ پاته سي] عَتَقَ نو هغه [غلام] آزاديږي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ: اِذَا كَانَ يُولَدُ مِثْلُهٗ لِمِثْلِهٖ او د مسئلې مطلب دا دی: چي كله د هغه [غلام] په څېر كس له داسي سړي [مالک] څخه پيدا كېداى سي فَاِنْ كَانَ لَايُوْلَدُ مِثْلُهٗ لِمِثْلِهٖ او كه د هغه په څېر كس له داسي سړي څخه نه سي پيدا كېدلای ذَكَرَهٗ بَعْدَ هٰذَا نو دا [مسئله] يې وروسته ذكر كړې ده ايعني د دې مسئلې حكم به وروسته بيان سي] ثُمَّ اِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْعَبْدِ نَسَبٌ مَعْرُوْفٌ او بيا كه د غلام نسب معلوم نه وي يَثْبُتُ نَسَبُهٗ مِنْهُ نو د هغه نسب به د دې مالک سره ثابتيږي لِاَنَّ وِلَايَةَ الدَّعْوَةِ بِالْمِلْكِ ثَابِتَةٌ ځكه چي [د نسب د دعوی] ولايت د ملک په وجه سره ثابت دی وَالْعَبْدُ مُحْتَاجٌ اِلَى النَّسَبِ او غلام نسب ته مجبور هم دی فَيَثْبُتُ نَسَبُهٗ مِنْهُ نو ځكه به د هغه نسب د مالک سره ثابتيږي وَاِذَا ثَبَتَ عَتَقَ او كله چي نسب ثابت سي نو غلام به آزاديږي لِاَنَّهٗ يَسْتَنِدُ النَّسَبُ اِلٰى وَقْتِ الْعُلُوْقِ ځكه چي نسب به د علوق د وخت وطرف ته منسوب كيږي ايعني له كوم وخت چي دا غلام د مور په نس كي قرار نيولی وي، له هغه وخت څخه به هغه آزاد شمارل كيږي] وَاِنْ كَانَ لَهٗ نَسَبٌ مَعْرُوْفٌ او كه د غلام نسب معلوم وي لَايَثْبُتُ نَسَبُهٗ مِنْهُ نو د دې مالک سره به د هغه نسب نه ثابتيږي لِلتَّعَذُّرِ ځكه چي دا ناممكن دي وَيُعْتَقُ او غلام به آزاديږي اِعْمَالًا لِلَّفْظِ فِيْ مَجَازِهٖ عِنْدَ تَعَذُّرِ اِعْمَالِهٖ بِحَقِيْقَتِهٖ ځكه چي د لفظ په حقيقي معنىٰ سره د عمل د ناممكنوالي په وخت كي د لفظ مجازي معنىٰ ته عمل وركول كيږي وَوَجْهُ الْمَجَازِ نَذْكُرُهٗ مِنْ بَعْدُ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ او د مجاز وجه [او بحث] به موږ انشاء الله وروسته ذكر كړو.

**اللغات**: ﴿يَسْتَنِدُ﴾ د استفعال مضارع ده: نسبت کېدل (منسوب کېدل). ﴿عُلُوْق﴾ د حمل قرار نیول. یعني په رحم کي نطفه قرار نیول، حامله کېدل (بلاربېدل). ﴿تَعَذُّر﴾ د تفعل مصدر دی: نا ممکن کېدل. ﴿إِعْمَال﴾ د افعال مصدر دی: عمل ورکول. ﴿حَقِيْقَة﴾ لفظ په خپله اصلي معنیٰ سره استعمالول. ﴿مَجَاز﴾ لفظ په بله معنیٰ سره استعمالول. په با ، معنیٰ سره د لفظ استعمالولو لپاره دا ضروري دي چي د حقیقي او مجازي معنیٰ په مینځ کي به یو مشترک علت موجود وي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو مالک خپل غلام ته ووایي: "هٰذا إِبْنِيْ" (دا زما زوی دی). او پر همدې خبره ټینګ پاته سي، نو که د مالک او غلام په عمر کي دومره تفاوت وي چي له مالک څخه د داسي غلام پیدا کېدل ممکن وي. نو دا غلام آزادېږي. ځکه چي په حدیث کي ذکر سوي دي: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحْمٍ مَحْرَمٍ عَتَقَ عَلَيْهِ" (یعني کوم سړی چي د خپل ذی رحم محرم قریب مالک سي، نو هغه قریب پر ده آزادېږي)، لهذا دا غلام به فوراً آزادېږي. او که د دې غلام نسب معلوم نه وي (یعني د یو بل چا سره یې نسب ثابت نه وي)، نو د مالک سره د هغه نسب هم ثابتېږي. ځکه چي د نسب د ثبوت لپاره د نسب د دعویٰ ولایت د مالک (مولیٰ) د مالک کېدلو په وجه ثابت دی. او غلام ته د نسب ثابتېدلو ضرورت هم سته (ځکه چي حرامي بچی د شریعت په نظر کي ښه خبره نه ده). نو ځکه به نسب ثابتېږي. او کله چي نسب ثابتېږي، نو غلام به هم آزادېږي. ځکه چي اوس به نسب د علوق یعني د حمل د وخت وطرف ته منسوب کېږي. او له هغه وخت څخه به آزادي هم ثابتېږي. او دغه غلام به د علوق له وخت څخه آزاد شمارل کېږي.

**وإن كان إلخ**: فرمایي که د غلام نسب معلوم وي، نو په دې صورت کي د مالک سره د هغه نسب نه ثابتېږي: ځکه کله چي د هغه نسب د یو بل چا سره ثابت وي، نو د مالک سره د هغه نسب ثابتېدل ستونزمن او ناممکن دي. لهذا نسب خو به نه ثابتېږي، لېکن غلام به آزادېږي، د دې لپاره چي لفظ پر خپله مجازي معنیٰ محمول کړی سي. ځکه قاعده دا ده چي کله د لفظ پر حقیقي معنیٰ عمل کول نا ممکن وي، نو په دې صورت کي به د مجاز وطرف ته رجوع کېږي. د قاعدې الفاظ دا دي: إِذَا تَعَذَّرَتِ الْحَقِيْقَةُ يُصَارُ إِلَى الْمَجَازِ.

# خپل غلام ته د "مولیٰ او مالک" ویلو حکم

**وَلَوْقَالَ: هٰذَا مَوْلَایَ** او که چیرې مالک اخپل غلام ته اشاره وکړي او او وایي: دا زما مولیٰ دی ایعني دا زما مالک دی ا **أَوْيَا مَوْلَایَ** یا اورته ووایي ا: اې زما مولیٰ اې زما مالکه! ا **عَتَقَ** نو اغلام ا آزادیږي **أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ اسْمَ الْمَوْلٰى وَإِنْ كَانَ يَنْتَظِمُ النَّاصِرَ وَابْنَ الْعَمِّ وَالْمُوَالَاةَ فِي الدِّيْنِ وَالْأَعْلٰى وَالْأَسْفَلَ فِي الْعَتَاقَةِ** او کوم چې اول لفظ دی ایعني هٰذا مولای ا نو ځکه چې د مولیٰ لفظ که هم څه شاملیږي مدکونکي ته او د اکا زوی ته او په دین کې موالات ته او په آزادولو کې لوړ او لاندې ته ایعني آزادونکي مالک او آزاد کړی سوي غلام ته. یعني که څه هم د مولیٰ لفظ د دې ټولو معناوو لپاره استعمالیږي ا **إِلَّا أَنَّهُ تَعَيَّنَ الْأَسْفَلُ** لیکن ادلته فقط ا لاندې ایعني آزاد کړی سوی غلام امتعین دی **فَصَارَ كَاسْمٍ خَاصٍّ لَهُ** نو اګواکې دلته ا د مولیٰ لفظ د أسفل آزاد کړی سوي غلام ا لپاره خاص وګرځېدی **وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَوْلٰى لَا يَسْتَنْصِرُ بِمَمْلُوْكِهِ عَادَةً** او دا ځکه چې مولیٰ عموماً له مملوک شخصه د مدد طلب نه کوي الهذا دلته د مولیٰ په لفظ سره ناصر (مدد کونکي) مرادېدلای نه سي ا **وَلِلْعَبْدِ نَسَبٌ مَعْرُوْفٌ** او د غلام نسب معلوم وي الهذا دلته د مولیٰ په لفظ سره ابن عمّ (د اکا د زوی) مرادېدلای نه سي ا **فَانْتَفَى الْأَوَّلُ وَالثَّانِيْ** نو اوله معنیٰ او دویمه معنیٰ ایعني ناصر او ابن عم امنتفي سوه **وَالثَّالِثُ نَوْعُ مَجَازٍ** او په دریمه معنیٰ ایعني په موالات فه الدین ا کې یو قسم مجازي معنیٰ سته **وَالْكَلَامُ لِلْحَقِيْقَةِ** حالانکې ادلته ا کلام د حقیقي معنیٰ لپاره دی **وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْعَبْدِ تُنَافِيْ كَوْنَهُ مُعْتِقًا** او د غلام و طرف ته اد مولیٰ ا نسبت کول د دې منافي دي چې هغه دي آزادونکی وي **فَتَعَيَّنَ الْمَوْلٰى الْأَسْفَلُ** نو ځکه أسفل مولیٰ آزاد کړی سوی غلام امتعین سو **فَالْتَحَقَ بِالصَّرِيْحِ** او د صریح سره لاحق سو **وَكَذَا إِذَا قَالَ لِأَمَتِهِ: هٰذِهِ مَوْلَاتِيْ** او همدارنګه که مالک خپلي مینځې ته ووایي: دا زما مالکه ده انو مینځه آزادیږي ا **لِمَا بَيَّنَّا** د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ اوس ا بیان کړی **وَلَوْقَالَ: عَنَيْتُ بِهِ الْمَوْلٰى فِي الدِّيْنِ** او که مالک ووایي: چې ما په دې سره د مولیٰ فی الدین نیت کړی دی **أَوِ الْكَذِبَ** یا د دروا غو انیت مي کړی دی ا **يُصَدَّقُ فِيْمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالٰى** نو دیانتاً (فیما بینهٗ وبین الله) به د هغه تصدیق کیږي **وَلَا يُصَدَّقُ فِي الْقَضَاءِ** لیکن په قضاء او د قاضي په دربار ا کې به د هغه تصدیق نه کیږي **لِمُخَالَفَتِهِ الظَّاهِرَ** ځکه چې دا د ظاهر خلاف دي **وَأَمَّا الثَّانِيْ فَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَيَّنَ الْأَسْفَلُ مُرَادًا** او کوم چې

دویم لفظ دی ایعني یا مولای ! نو کله چي د أسفل مراد یدل متعین سو اِلْتَحَقَ بِالصَّرِيحِ نو دا اَهم ! د صریح لفظ سره لاحق سو وَبِالنِّدَاءِ بِاللَّفْظِ الصَّرِيحِ يُعْتَقُ او په صریح لفظ ! د غلام ! په رابللو سره غلام آزادیږي بِأَنْ قَالَ: يَا حُرُّ يَا عَتِيقُ په دې توګه چي مالک ووایي: اې آزاده! !یا ! اې آزاد کړی سوې! فَكَذَا النِّدَاءُ بِهٰذَا اللَّفْظِ لهذا په دې لفظ به هم ! د غلام ! په رابللو سره ! غلام آزادیږي ! وَقَالَ زُفَرُ: لَا يُعْتَقُ فِي الثَّانِي او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چي په دویم لفظ ایعني په یا مولای ! کي غلام نه آزادیږي لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِهِ الْإِكْرَامُ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ يَا سَيِّدِي يَا مَالِكِي ځکه چي د یَا سَيِّدِي. يَا مَالِكِي په څیر په دې قول سره اَهم ! إکرام اعزت ورکول ! مرادیږي قُلْنَا: اَلْكَلَامُ لِحَقِيقَتِهِ موږ وایو: چي کلام د خپلي حقیقي معنیٰ لپاره وي ایعني موږ جواب ورکوو چي کله د کلام په حقیقي معنیٰ عمل کول ممکن وي. نو بیا له هغه څخه خپله حقیقي معنیٰ مرادیږي ! وَقَدْ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهِ او ! دلته ! په حقیقي معنیٰ عمل کول ممکن دي بِخِلَافِ مَا ذَكَرَهُ په خلاف د هغه ! الفاظو ! کوم چي امام زفر رَحِمَهُ الله ذکر کړه لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَا يَخْتَصُّ بِالْعِتْقِ ځکه چي په هغه کي ! بالکل ! داسي معنیٰ نسته کوم چي د عتق ! د معنیٰ ! سره خاص وي فَكَانَ إِكْرَامًا مَحْضًا نو ځکه به هغه محض إکرام وي ایعني له هغه څخه به محض د إکرام او عزت معنیٰ مرادیږي !.

**اللغات:** ﴿مَوْلَىٰ﴾ آزادونکی مالک، آزاد کړی سوی غلام (دا لفظ د دې دواړو معناوو لپاره استعمالیږي، خو دلته څني مراد دویمه معنیٰ "آزاد کړی سوی غلام" دی). ﴿نَاصِر﴾ د نصر له باب څخه اسم فاعل دی: مدد کونکی (مدد ګار)، مرستیال. ﴿مَوَالَات فِي الدِّيْن﴾ که یو سړی خپل کور پرېږدي او په یو بل خاندان کي استوګن سي او بیا دا سړی هغه خاندان والا ته ووایي: که زه مړ سم نو تاسي زما وارثان (میراث خوره) یاست، او که پر ما یو تاوان او قرض لازم وي نو تاسي به هغه اداء کوئ، او خاندان والا د ده خبري قبول کړي. نو داسي معاملې او تړون ته "مَوَالَات فِي الدِّيْن" وایي. ﴿الْأَعْلَىٰ فِي الْعَتَاقَة﴾ په آزادولو کي لوړ. له دې څخه آزادونکی کس مراد دی. ﴿الْأَسْفَل فِي الْعَتَاقَة﴾ په آزادولو کي لاندي. له دې څخه غلام مراد دی. ﴿لَا يَسْتَنْصِرُ﴾ د استفعال له باب څخه د نفي صیغه ده: مدد غوښتل (د مرستې طلب کول).

**یادونه:** دا عبارت څه اوږد او ستونزمن دی او صاحب د أثمار الهدایې په غوره ترتیب سره حل کړی دی. نو ځکه موږ دلته د هغه ترتیب اختیار و.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل غلام ته ووايي: يَا مَوْلَايَ (اې زما مالکه!). يا دهغه وطرف ته اشاره وکړي او ووايي: هٰذَا مَوْلَايَ (دا زما مالک دی). نو زموږ په نېز په دواړو صورتونو کي غلام آزاديږي. که څه هم مالک د غلام آزادېدلو نيت نه وکړي. ليکن د امام زفر او ائمه ثلاثه وو په نېز له نيت څخه بغير غلام نه آزاديږي.

**زموږ دليل:** زموږ د دليل خلاصه دا ده چي د "مَوْلىٰ" لفظ پنځه معناوي لري. څلور معناوي دلته نه سي مراد کېدلای، نو ځکه به پنځمه آخري معنیٰ متعين کيږي او آزادي به واقع کيږي.

**د "مولیٰ" پنځه معناوي:** ① د مولیٰ اوله معنیٰ ده: مدد کونکی (مرستيال). دا معنیٰ دلته ځکه نه سي مراد کېدلای چي مالک عموماً له خپل غلام څخه مرسته نه غواړي (بلکي خدمت په کوي). ② د مولیٰ دويمه معنیٰ ده: د اکا زوی، دا ځکه مراد کېدلای نه سي چي د غلام نسب مشهور او معروف دی، نو ځکه دهغه د اکا زوی نه سي کېدلای. ③ د مولیٰ دريمه معنیٰ ده: په دين کي دلته موالات (مَوَالَاتَ فِي الدِّيْن)، دا معنیٰ ځکه نه سي مرادېدلای چي دا د مولیٰ مجازي معنیٰ ده. حالانکي کله چي پر حقيقي معنیٰ کول ممکن وي، نو مجازي معنیٰ نه سي مرادېدلای. بلکي حقيقي معنیٰ به مراديږي. ④ د مولیٰ څلورمه معنیٰ ده: آزادونکی مالک. دا معنیٰ ځکه مراد کېدلای نه سي چي غلام آزادونکي نه سي جوړېدلای، ځکه چي هغه په خپله غلام دی. نو بل څوک به يې څنګه آزاد کړي وي!. ⑤ د مولیٰ پنځه معنیٰ ده: آزاد سوی غلام (آزاد شده غلام). مخکني څلور معناوي مراد کېدلای نه سي، نو ځکه به اوس دغه آخري پنځه معنیٰ متعين کيږي او غلام به آزاديږي. او په دې کي به د نيت هيڅ ضرورت هم نه وي، ځکه چي دلته د مولیٰ لفظ د آزادولو په معنیٰ کي صريح دی. ګواکي مالک صراحتاً وويل: "ته آزاد يې" او صريح لفظ د نيت محتاج نه وي، نو ځکه به له نيت څخه بغير هم غلام آزاديږي. (په عبارت کي له "الأَوَّلُ" څخه د مولیٰ اوله معنیٰ مراد ده يعني مدد کونکی، له "الثَّانِيْ" څخه دويمه معنیٰ مراد ده يعني د اکا زوی. له "الثَّالِث" څخه دريمه معنیٰ مراد ده يعني مولیٰ في الدين. دا د مولیٰ مجازي معنیٰ ده).

**وكذا قال لأمته إلخ:** فرمايي که مالک خپلې مينځې ته اشاره وکړي او ووايي: "هٰذِهٖ مَوْلَاتِيْ" (دا زما مالکه ده). نو دلته به هم د مولیٰ له پنځو معناګانو څخه پنځمه آخري معنیٰ متعين کيږي او مينځه به آزاديږي. دليل پورته ذکر سو.

**ولو قال عنيتُ إلخ:** او كه مالک ووايي چې ما په "هٰذا مَوْلَايَ" سره د مولیٰ في الدين (مَوَالَاتْ فِي الدِّيْن) نيت كړی دی، نو يو خو دا مجازي معنیٰ ده او بل د ظاهر خلاف ده. نو ځكه به فقط دياناً د هغه تصديق كيږي، ليكن قضاءً به د هغه تصديق نه كيږي. همدارنګه كه هغه ووايي چې "ما دروغ وويل"، نو دياناً به د هغه تصديق كيږي، ليكن قضاءً به يې خبره نه منل كيږي.

**وأما الثاني إلخ:** يعني په دويم لفظ (يَا مَوْلَايَ) كې د مولیٰ له پنځو معناګانو څخه آخري معنیٰ متعينه سوه، نو ګواكې هغه صراحتاً وويل: "اې آزاده"، نو ځكه به له نيت څخه بغير هم آزاديږي. ځكه چې په صريح لفظ كې نيت ته هيڅ ضرورت نسته.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې كه څوک خپل غلام ته "يَا سَيِّدِيْ" او "يَا مَالِكِيْ" ووايي نو نه آزاديږي، همداسې به د "يَا مَوْلَايَ" په ويلو سره هم نه آزاديږي، ځكه چې په دې لفظ سره إكرام او عزت وركول مقصود دي. آزادول مقصود نه دي.

زموږ جواب دا دی چې إكرام او عزت د "يَا مَوْلَايَ" مجازي معنیٰ ده او دلته پر حقيقي معنیٰ يعني پر "آزادولو" عمل كېداى سي، نو ځكه به د مجازي معنیٰ وطرف ته رجوع نه كيږي، بلكې حقيقي معنیٰ به مراديږي او غلام به آزاديږي. او په "يَا مَالِكِيْ" او يا "يَا سَيِّدِيْ" كې بالكل د "آزادولو" معنیٰ نسته، نو ځكه به هلته فقط د إكرام او تعظيم معنیٰ مراديږي او غلام به نه آزاديږي. په دواړو الفاظو كې همدغه فرق دی.

## خپل غلام ته د "زوی" يا "ورور" ويلو حكم

وَلَوْ قَالَ: يَا ابْنِيْ أَوْ يَا أَخِيْ او كه مالک ووايي: اې زما زويه يا اې زما وروره! لَمْ يُعْتَقْ نو غلام نه آزاديږي لِأَنَّ النِّدَاءَ لِإِعْلَامِ الْمُنَادٰى ځكه چې نداء د منادیٰ د خبرولو [رابللو] لپاره وي إِلَّا أَنَّهُ إِذَا كَانَ بِوَصْفٍ يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ مِنْ جِهَتِهٖ مګر كه هغه په يو داسې وصف سره وي چې هغه د رابلونكي له طرفه ثابتېداى سي كَانَ لِتَحْقِيْقِ ذٰلِكَ الْوَصْفِ فِي الْمُنَادٰى نو هغه به په منادیٰ كې د هغه وصف د ثبوت لپاره وي اسْتِحْضَارًا لَهُ بِالْوَصْفِ الْمَخْصُوْصِ د دې لپاره چې منادیٰ په هغه ځانګړي وصف سره حاضر كړی سي كَمَا فِي قَوْلِهٖ: يَا حُرُّ لكه د مالک په دې قول كې: يَا حُرُّ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لكه څرنګه چې [مخكې] موږ د دې بيان وكړی وَإِذَا كَانَ النِّدَاءُ بِوَصْفٍ لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ مِنْ جِهَتِهٖ. او كه چېرې نداء په داسې وصف سره وي چې

هغه د رابللونکي له طرفه نه سي ثابتېدای كَانَ لِلْإِعْلَامِ الْمُجَرَّدِ نو دا نداء به فقط د خبر ورکولو [رابللو] لپاره وي دُونَ تَحْقِيقِ الْوَصْفِ فِيهِ نه په منادیٰ کي د [هغه ځانګړي] وصف د ثابتولو لپاره لِتَعَذُّرِهِ ځکه چي د هغه ثابتول ناممکن دي وَالْبُنُوَّةُ لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا حَالَةَ النِّدَاءِ مِنْ جِهَتِهِ او زوی کېدل ازوي والي [يو داسي وصف دی چي د ندا کولو [رابللو] په وخت کي د رابللونکي له طرفه نه سي ثابتېدای لِأَنَّهُ لَوْ انْخَلَقَ مِنْ مَاءِ غَيْرِهِ لَا يَكُونُ ابْنًا لَهُ بِهٰذَا النِّدَاءِ ځکه که هغه [رابلل سوی غلام] د بل چا له نطفې څخه پيدا سوی وي نو په دې رابللو سره هغه د ده [رابلونکي] زوی نه ګرځي فَكَانَ لِمُجَرَّدِ الْإِعْلَامِ نو ځکه به دا نداء فقط د خبر ورکولو [رابللو] لپاره وي وَيُرْوٰى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ شَاذًّا أَنَّهُ يُعْتَقُ فِيهِمَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو شاذ روايت دا دی: چي په دې دواړو [الفاظو] سره غلام آزادېږي وَالِاعْتِمَادُ عَلَى الظَّاهِرِ لېکن اعتماد پر ظاهر روايت دی وَلَوْ قَالَ: يَا ابْنُ او که چيري مالک ووايي: اې زويه! لَا يُعْتَقُ نو غلام نه آزادېږي لِأَنَّ الْأَمْرَ كَمَا أَخْبَرَ ځکه چي معامله همداسي ده لکه څرنګه چي مالک خبر ورکړی دی فَإِنَّهُ ابْنُ أَبِيهِ ځکه چي دغه غلام د خپل پلار زوی دی وَكَذَا إِذَا قَالَ: يَا بُنَيَّ أَوْ يَا بُنَيَّةُ او همدارنګه کله چي مالک ووايي: اې زويکيه! يا اې لورکۍ انو دوی نه آزادېږي! لِأَنَّهُ تَصْغِيرُ الِابْنِ وَالْبِنْتِ مِنْ غَيْرِ إِضَافَةٍ ځکه چي دا له اضافت څخه بغير [فقط] د إِبن او بِنت تصغير دی وَالْأَمْرُ كَمَا أَخْبَرَ او معامله همداسي ده لکه څرنګه چي هغه خبر ورکړی دی.

**اللغات:** ﴿مُنَادٰی﴾ څوک چي راوبلل سي هغه ته "مُنادیٰ" وايي. (چا ته چي آزاد وکړی سي، څوک چي را وغوښتل سي). ﴿مُجَرَّد﴾ محض، صرف، فقط. ﴿بُنُوَّة﴾ مصدر دی: زوي کېدل، زوي والی. ﴿اِنْخَلَقَ﴾ د انفعال ماضي صيغه ده: پيدا کېدل، په وجود کي راتلل.

**تشريح:** مخکي دا خبره ذکره سوه چي که مالک خپل غلام ته په يَا حُرُّ يَا عَتِيقُ او يَا مَوْلَايَ سره نداء (آواز) وکړي (او په دې الفاظو سره غلام راوبولي) نو غلام آزادېږي. په دې عبارت کي د هغه نور وضاحت کوي او د نداء نور صورتونه بيانوي فرمايي چي که مالک خپل غلام ته په يَا ابْنِي او يَا أَخِي سره آواز وکړي (يعني اې زما زويه! يا: اې زما وروره!). نو غلام نه آزادېږي: د دې يوه دليل خو دا دی چي دغه الفاظ د محبت او ميني په توګه استعمالېږي. او کله نا کله د احترام لپاره هم استعمالېږي. لهذا د آزادولو (إعتاق) لپاره متعين نه سول. نو ځکه به په دې الفاظو سره غلام نه آزادېږي.

وَإِنَّ النِّدَاءَ لِإِعْلَامِ إِلَخ: دا دويم دليل دی کوم چې څه مشکل دی. د ټوله اوږده دليل آسانه خلاصه دا ده چې که مالک خپل غلام ته په يو داسې صفت سره نداء وکړي او په داسې صفت سره غلام را وبولي چې مالک هغه صفت په غلام کې ثابتولای سي، نو هغه صفت به ثابتيږي. مثلاً که مالک ووايي: يَا حُرُّ (اې آزاده!). نو مالک خو د آزادۍ صفت (حُرِّيَت) په غلام کې ثابتولای سي. نو ځکه به په غلام کې دغه صفت ثابتيږي او غلام به آزاديږي. لېکن که مالک په يو داسې صفت سره غلام را وبولي چې مالک هغه صفت نه سي ثابتولای. نو د مالک قول به محض د آواز کړنو او رابللو (نداء) لپاره وي او غلام به نه آزاديږي. مثلاً که يَا إِبْنِيْ ورته ووايي. نو مالک د إِبن (زوي والي) صفت په غلام کې نه سي داخلولای، ځکه چې غلام د بل چا له نطفې څخه پيدا سوی دی. نو ځکه به دغه جمله محض د نداء او رابللو لپاره وي، نه د آزادولو لپاره. همدا ظاهر روايت دی. (إِعْلَام الْمُجَرَّد: محض د خبرولو لپاره، يعني محض د رابللو او آواز کولو لپاره، إِسْتِحْضَارًا لَهُ: مخامخ هغه [منادیٰ] حاضرول).

وعن أبي حنيفة إلخ: د دې په خلاف حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو شاذ روايت دا هم نقل کړی دی چې که مالک خپل غلام ته يَا إِبنِيْ او يَا أَخِيْ ووايي. نو غلام آزاديږي. لېکن دا روايت ډېر معمولي او نادر دی. نو ځکه صاحب د هدايې فرمايي چې "وَالْإِعْتِمَادُ عَلَى الظَّاهِرِ" يعني معتمد او معتبر ظاهر روايت دی.

ولو قال إلخ: د دې حاصل دا دی که مالک خپل غلام ته ووايي: "يَا اِبْن"، يعني "اې زويه!". او داسې نه ووايي: "اې زما زويه!". نو غلام نه آزاديږي، ځکه دلته د مالک خبره د واقع مطابق ده. ځکه چې دا غلام خو به خامخا د يو چا زوی وي، همدارنګه که مالک خپل غلام ته د تصغير په توګه ووايي: "اې زويکيه!". يا مينځې ته ووايي "اې لورکې" او خپل طرف ته د هغه نسبت نه وکړي (يعني داسې نه ووايي: اې زما زويکيه!...). نو په دې صورت کې هم غلام او مينځه نه آزاديږي، ځکه چې دلته هم د مالک خبره د واقع او حقيقت مطابق ده. (الأَمْرُ كَمَا أَخْبَرَ: د دې جملې مطلب دا دی چې کوم څه مالک وايي معامله همداسې ده چې هغه خامخا د يو چا زوی دی).

## غلام ته د "زوی" ويلو يو بل صورت

| وَإِنْ قَالَ لِغُلَامٍ لَا يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ هٰذَا ابْنِيْ او که مالک يو داسې غلام ته "هٰذا إِبنِيْ" ووايي چې له داسې مالک څخه هغسې غلام پيدا کېدلای نه سي عَتَقَ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په |
|---|

نېز هغه غلام آزادېږي وَقَالَا : لَا يُعْتَقُ او صاحبين فرمايي: چې نه آزادېږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لَهُمْ: أَنَّهُ كَلَامٌ مُحَالُ الْحَقِيقَةِ د دوی دليل دا دی: چې د دې كلام [پر] حقيقت [عمل كول] محال دي [يعني پر حقيقي معنیٰ دا كلام حمل كول ناممكن دي] فَيُرَدُّ فَيَلْغُو نو ځكه به [دا كلام] ردّ كيږي او لغو كيږي كَقَوْلِهِ: أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ أَوْ قَبْلَ أَنْ تُخْلَقَ لكه د مالک دا قول اچي مردود او لغو دی چې هغه ووايي] : زما تر پيدا كېدلو مخكې ما ته آزاد كړې، يا ستا تر پيدا كېدلو مخكې ما ته آزاد كړې وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ كَلَامٌ مُحَالٌ بِحَقِيقَتِهِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا كلام كه څه هم په خپله حقيقي معنیٰ كې محال دی لِكِنَّهُ صَحِيحٌ بِمَجَازِهِ ليكن په مجازي معنیٰ كې صحيح دي [يعني پر مجازي معنیٰ د هغه حمل كول صحيح دي] لِأَنَّهُ إِخْبَارٌ عَنْ حُرِّيَّتِهِ مِنْ حِينِ مِلْكِهِ ځكه چې دا د مولیٰ د مالک كېدلو له وخت څخه د غلام آزادېدلو خبر وركول دي وَهٰذَا لِأَنَّ الْبُنُوَّةَ فِي الْمَمْلُوكِ سَبَبٌ لِحُرِّيَّتِهِ او دا [حكم] ځكه دی چې د مملوک زوی كېدل [زوي والي] د هغه د آزادېدلو سبب دی إِمَّا إِجْمَاعًا أَوْ صِلَةً لِلْقَرَابَةِ يا خو د إجماع په وجه سره يا د قرابت د صلې په وجه [يعني يا دا خبره اجماعي ده، يا د ذی رحم محرم قريب د صله رحمي په توګه ده] وَإِطْلَاقُ السَّبَبِ وَإِرَادَةُ الْمُسَبَّبِ مُسْتَجَازٌ فِي اللُّغَةِ تَجَوُّزًا او د سبب په ويلو سره مسبب مرادول [د عربو] په لغت كې مجاز دی وَلِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ مُلَازِمَةٌ لِلْبُنُوَّةِ فِي الْمَمْلُوكِ او په دې وجه [هم] چې په مملوک كې د زوي والي لپاره آزادولی لازم دی ايعني كه مملوک زوی وګرځي نو د هغه لپاره آزېدل لازمي دي (ځكه چې خپل زوی د چا غلام كېدلای نه سي) لنډه دا چې آزادوالی د زوی لپاره صفتِ لازمي دی] وَالْمُشَابَهَةُ فِي وَصْفٍ مُلَازِمٍ مِنْ طُرُقِ الْمَجَازِ او په صفت لازمي كې تشبيه وركول د مجاز له طريقو څخه يوه طريقه ده عَلَىٰ مَا عُرِفَ لكه څرنګه چې [دا] معلومه ده فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ تَحَرُّزًا عَنِ الْإِلْغَاءِ نو ځكه به كلام پر مجاز حمل كيږي د دې لپاره چې [كلام] د لغو كېدلو څخه وساتل سي بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَ بِهِ په خلاف د هغه [جملو] چې په هغه سره اصاحبينو] دليل نيولی دی لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ لَهُ فِي الْمَجَازِ ځكه چې په هغه كې د مجاز هيڅ صورت نشته

---

القول الراجح: هو قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في العناية (ج:۴، ص:۲۴۱)، وكذا في الدر المختار (ج:۳، ص:۷). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸۸]

ايعني په هغه جملو کې د مجاز هيڅ صورت نه سي جوړېدای] فَتَعَيَّنَ الْإِلْغَاءُ نو ځکه [په هغه کې] لغو کېدل متعين سو وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهٖ: قَطَعْتُ يَدَكَ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي يو څوک بل چا ته ووايي: ما [په خطا سره] ستا لاس پرېکړی فَأَخْرَجَهُمَا صَحِيْحَتَيْنِ ليکن هغه خپل دواړه لاسونه صحيح سالم راوباسي حَيْثُ لَمْ يُجْعَلْ مَجَازًا عَنِ الْإِقْرَارِ بِالْمَالِ وَالْتِزَامِهٖ نو دا به د مال له اقرار او د مال له التزام څخه مجاز نه ګرځول کيږي وَإِنْ كَانَ الْقَطْعُ سَبَبًا لِوُجُوْبِ الْمَالِ که څه هم لاس پرېکول د مال واجبېدلو سبب دی [يعني دا به مجازاً د مال اقرار کول او پر ځان د مال لازمول نه شمارل کيږي، که څه هم د لاس پرېکول د مال د واجبېدلو سبب دی] لِأَنَّ الْقَطْعَ خَطَأً سَبَبٌ لِوُجُوْبِ مَالٍ مَخْصُوْصٍ وَهُوَ الْأَرْشُ ځکه چي په خطا [غلطي] سره پرېکول د ځانګړي مال د واجبېدلو سبب دی چي هغه أرش دی [يعني هغه مال او قيمت ته أرش وايي] وَأَنَّهُ يُخَالِفُ مُطْلَقَ الْمَالِ فِي الْوَصْفِ او دا په وصف کي د مطلق مال مخالف دی [يعني دا أرش له مطلق مال څخه جلا شئ دی] حَتّٰى وَجَبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي سَنَتَيْنِ همدا وجه ده چي پر عاقله باندي دا [أرش] په دوو کالو کي واجبيږي وَلَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ بِدُوْنِ الْقَطْعِ او د لاس پرېکولو څخه بغير د أرش ثابتول ممکن نه دي وَمَا أَمْكَنَ إِثْبَاتُهُ فَالْقَطْعُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لَهُ او د کوم شي ثابتول چي ممکن دي [يعني مطلق مال] قطع د هغه سبب نه ده أَمَّا الْحُرِّيَّةُ فَلَا تَخْتَلِفُ ذَاتًا وَحُكْمًا او کوم چي آزادي ده نو هغه د ذات او حکم په اعتبار سره مختلفه نه وي [يعني په ذات او حکم کي سره جلا نه وي] فَأَمْكَنَ جَعْلُهُ مَجَازًا عَنْهُ نو [په دې وجه] له إبْن [زوی] څخه مجازاً حُرِّيت مرادول ممکن دي.

**اللغات:** ﴿صِلَةٌ﴾ ښه سلوک، صله رحمي، ﴿أَرْش﴾ د لاس پرېکولو قيمت، يعني که خالد د يو چا لاس پرېکړي، نو پر خالد (مجرم) چي د تاوان او جرمانې په توګه کوم قيمت واجبيږي هغه قيمت ته په شريعت کي "أرش" وايي، ﴿عَاقِلَة﴾ د مجرم خاندان والا، چي هغوی به په دوو کالو کي د أرش قيمت اداء کوي.

**يادونه:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې ټوله منطقي دلائل استعمال کړي دي او صاحب د أثمار الهدايې په غوره او مختصره اندازه سره حل کړي دي، نو ځکه موږ د هغه طريقه اختيارو و.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام په عمر کي تر خپل مالک مشر وي او د دومره عمر غلام له هغه مالک څخه نه سي پيدا کېدلای، او مالک د هغه غلام په باره کي ووايي چي: هٰذَا إِبْنِيْ "دا زما

زوى دى"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز غلام آزاديږي. لېکن د صاحبينو او د امام شافعي رَحِمَهُمُ الله په نېز نه آزاديږي.

**دليل**: د صاحبينو او د امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دليل دا دى چي دلته د هٰذَا إِبْنِيْ پر حقيقت عمل كول ناممكن دى، ځکه چي د غلام عمر د مالک له عمر څخه زيات دى، نو ځکه به كلام لغو كيږي. او كله چي پر حقيقي معنىٰ عمل كول ناممكن دي نو مجازي معنىٰ هم ځني مراد كېداى نه سي (ځکه دا د صاحبينو أصول چي كه پر حقيقي معنىٰ عمل كول ناممكن وي، نو مجازي معنىٰ هم مراد كېداى نه سي)؛ صاحبين د دې لپاره دوه مثالونه ذكر كوي، يو دا چي كه مالک خپل غلام ته ووايي: أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ أَخْلَقَ، يعني زما تر پيدايښت مخكي ما ته آزاد كړي وې!، نو دا كلام د ټولو په نېز لغو كيږي، دويم مثال دا دى كه مالک خپل غلام ته ووايي: أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ تَخْلُقَ يعني ستا تر پيدايښت مخكي ما ته آزاد كړي وې، نو دا كلام هم د ټولو په نېز لغو كيږي، لهذا څرنګه چي دغه كلام لغو دى، همداسي به پورتنى كلام (هٰذَا إِبْنِيْ) هم لغو وي، او پر مجازي معنىٰ هم عمل نه سي كېداى، نو ځکه به غلام نه آزاديږي. (د صاحبينو أصول دا دى چي كه پر حقيقي معنىٰ عمل كول ممكن وي لېکن په يوه وجه سره عمل كول مشكل سي، نو مجازي معنىٰ به مراديږي، لېکن كه پر حقيقي معنىٰ عمل كول ناممكن وي، نو مجازي معنىٰ هم مرادېدلاى نه سي).

**د امام صاحب دليل**: دا دى چي كه څه هم د مالک دغه جمله (هٰذَا إِبْنِيْ) پر حقيقت حمل كول ناممكن دي، لېکن پر مجاز د هغه حمل كول ممكن دي، نو ځکه به له هغه څخه مجازي معنىٰ (يعني آزادېدل) اخيستل صحيح وي، او دا جمله ځکه پر مجاز حمل كېداى سي چي مجاز په لغت كي دې ته وايي چي سبب ذكر كړى سي او مسبب ځني مراد كړى سي، او دلته داسي كول ممكن دي، ځکه چي زوى كېدل سبب دي او د هغه په وجه آزادېدل مسبب دي، نو ګواكي دلته د سبب په ذكر كولو سره مسبب مراد كړى سوى دى، يعني ګواكي مالک د زوى (إِبْنِيْ) په ويلو سره د آزادۍ (حُريت) معنىٰ مراد كړې ده او همدې ته مجاز وايي. نو ځکه به غلام آزاديږي (د امام صاحب أصول دا دى چي كه د آزادوالي لږ غوندي شائبه پيدا سي، نو هم به غلام آزاديږي).

**ولأن الحرية**: دا پر مجاز باندي (د هٰذا إِبْنِيْ) د حمل كولو دويم دليل دى، حاصل يې دا دى چي دلته زوى كېدل (زوى والي) موصوف دى او د زوى لپاره آزادي لازمي صفت دى (ځکه چي زوى خامخا پر

پلار آزادیږي)، نو ګواکي مالک د موصوف (زوی) په ذکر کولو سره صفت (آزادي) مراد کړه، نو ځکه به غلام آزادیږي او د لغو کېدلو پر ځای به کلام پر مجاز محمول کیږي.

**بخلاف ما استشهد به إلخ:** په دې عبارت سره صاحبینو ته جواب ورکوي، هغو په خپل دلیل کي دوه مثالونه ذکري کړي وه چي که مالک خپل غلام ته ووایي "أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ أَخْلُقَ" او "أَعْتَقْتُكَ قَبْلَ أَنْ تَخْلُقَ" نو دا کلام لغو دی، لهذا پورتنی کلام (هَذَا إِبْنِيْ) به هم لغو کیږي، نو د دې جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي په دغه دوو جملو کي هیڅ ډول مجازي معنیٰ نه سي جوړېدای او په هیڅ صورت کي مجازي معنیٰ ځني مراد کېدای نه سي، نو ځکه به دا کلام لغو او باطل وي.

**وهذا بخلاف إلخ:** په دې عبارت سره د "أرش" او "حُرّيت" (آزادي) په مینځ کي فرق بیانوي، حاصل یې دا دی چي د أرش لپاره لاس پرېکول سبب دي (یعني د لاس پرېکولو په وجه أرش واجبیږي) لهذا که خالد ووایي چي ما د زید لاس (په غلطي سره) پرېکړی نو پر هغه د لاس قیمت (أرش) لازمیږي، لېکن که په دغه وخت کي زید خپل لاس صحیح سلام ښکاره کړي (یعني د هغه لاس روغ وي او خالد پرېکړی نه وي) نو پر خالد أرش نه لازمیږي؛ ځکه چي لاس پرېکول او أرش دواړه سره لازم او ملزوم دي، خو کله چي د لاس پرېکول موجود نه سو نو أرش به هم نه لازمیږي، د دې په خلاف آزادي د ذات (یعني د رقیت د زوال) په اعتبار سره او د حکم (یعني د قضاء، شهادت او داسي نورو) په اعتبار سره په حقیقت او مجاز کي سره مختلفه نه ده، لهذا د "إِبْنِيْ" په ویلو سره د مجاز په توګه د آزادي معنیٰ (حُرّیت) مراد کېدای سي، نو ځکه به غلام آزادیږي.

## غلام او مینځه خپل پلار او مور ګرځول

وَلَوْقَالَ: هٰذَا أَبِي أَوْ أُمِّي او که مالک [غلام ته] ووایي: دا زما پلار دی [یا مینځي ته ووایي] دا زما مور ده وَمِثْلُهُ لَايُوْلَدُ لِمِثْلِهِمَا او د هغه په شان سړی له داسي غلام او مینځي څخه نه سي پیدا کېدای فَهُوَعَلَى الْخِلَافِ نو دا [هم] پر [مخکني] اختلاف دي [یعني دا مسئله د مخکي په څېر مختلف فیها ده] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَلَوْقَالَ لِصَبِيٍّ صَغِيْرٍ: هٰذَا جَدِّي او که مالک یو کوچني بچي ته ووایي: دا زما نیکه دی قِيْلَ: هُوَعَلَى الْخِلَافِ نو ویل سوي دي: چي دا [هم] پر اختلاف دي [یعني د هغه آزادېدل هم مختلف فیه دي] وَقِيْلَ: لَا يُعْتَقُ بِالْإِجْمَاعِ او ویل سوي دي: چي هغه بالاتفاق نه آزادیږي لِأَنَّ هٰذَا الْكَلَامَ لَا مُوجِبَ لَهُ فِي الْمِلْكِ إِلَّا بِوَاسِطَةٍ وَهُوَ الْأَبُ ځکه چي په دې کلام کي د ملکیت

سبب نسته مګر د پلار په واسطه سره وَهِيَ غَيْرُ ثَابِتَةٍ فِي كَلَامِهِ او د مالک په کلام کي [د پلار] واسطه ثابته نه ده فَتَعَذَّرَ أَنْ يُجْعَلَ مَجَازًا عَنِ الْمُوجِبِ نو ځکه مجازاً هغه [د حُريت] سبب ګرځول ناممکن سو بِخِلَافِ الْأُبُوَّةِ وَالْبُنُوَّةِ په خلاف د پلار والي او زوي والي لِأَنَّ لَهُمَا مُوجِبًا فِي الْمِلْكِ مِنْ غَيْرِ وَاسِطَةٍ ځکه چي دا دواړه له څه واسطې څخه بغير په ملک [مملوک] کي د حريت سبب دي وَلَوْ قَالَ: هٰذَا أَخِي او که مالک ووايي: دا زما ورور دی لَا يُعْتَقُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو په ظاهر روايت کي غلام نه آزاديږي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: يُعْتَقُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي هغه آزاديږي وَوَجْهُ الرِّوَايَتَيْنِ مَا بَيَّنَّاهُ او د دواړو روايتونو دليل هغه دی کوم چي موږ بيان کړی وَلَوْ قَالَ لِعَبْدِهِ: هٰذَا ابْنَتِي او که مالک خپلي غلام ته ووايي: دا زما لور ده فَقَدْ قِيلَ: عَلَى الْخِلَافِ نو ويل سوي دي: چي دا [هم] پر اختلاف دي وَقِيلَ: هُوَ بِالْإِجْمَاعِ او ويل سوي دي: چي دا په إجماع سره [متفق عليه] دي لِأَنَّ الْمُشَارَ إِلَيْهِ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الْمُسَمّٰى ځکه چي [په دې کلام کي] مشارإليه د مسمىٰ له جنس څخه نه دی [يعني کوم شي ته چي اشاره سوې ده هغه د نجلۍ له جنس څخه نه دی] فَتَعَلَّقَ الْحُكْمُ بِالْمُسَمّٰى لهذا حکم د مسمىٰ سره متعلق سو [يعني حکم به د مسمىٰ (نجلۍ) سره متعلق کيږي] وَهُوَ مَعْدُومٌ او مسمىٰ معدوم دی فَلَا يُعْتَبَرُ نو ځکه به [د دې کلام] اعتبار نه کيږي [او غلام به نه آزاديږي] وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ فِي النِّكَاحِ او په کتابُ النکاح کي موږ دا [د اشارې مسئله] څېړلې [او بيان کړې] ده [يعني د دې پوره تفصيل په کتابُ النکاح کي تېر سو].

**اللغات:** ﴿مُوجِب﴾ سبب، ﴿مُشَار إِلَيْه﴾ د کوم شي يا د کوم کس وطرف ته چي اشاره وسي هغه ته "مشار إليه" وايي.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک د خپل غلام په باره کي ووايي چي "دا زما پلار دی"، يا د مينځي په باره کي ووايي چي "دا زما مور ده"، حال دا چي هغه غلام او مينځه له مالک څخه په عمر کي کوچني وي، يا يې عمر دومره وي چي له هغوی څخه مالک نه سي پيدا کېدای (يعني د دواړو په عمر کي تفاوت وي)، نو دا مسئله هم د امام صاحب او صاحبينو په منځ مختلف فيها ده، امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي غلام آزاديږي، ځکه چي دلته به مجازي معنىٰ مراديږي، او صاحبين فرمايي چي غلام نه آزاديږي، ځکه کله چي حقيقت مراد کېدای نه سي، نو مجاز هم نه سي مراد کېدای.

**ولوقال إلخ:** او که مالک خپل دېر کوچنی غلام ته اشاره وکړي او ووايي چې "دا زما نيکه" دی، نو يو روايت دا دی چې په دې مسئله کې هم د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، يعني د صاحبينو په نېز هغه کوچنی غلام نه آزادېږي، لېکن د امام صاحب په نېز به مجازي معنیٰ مرادېږي او کوچنی آزادېږي، او بل روايت دا دی چې په دې مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم کوچنی نه آزادېږي؛ ځکه چې کوچنی د پلار په واسطه سره د مالک نيکه جوړېږي او د مالک په کلام کې د پلار ذکر نسته، لهذا دلته مجازي معنیٰ مراد کېدای نه سي، نو کوچنی به هم نه آزادېږي، د دې په خلاف د پلار او زوی په مينځ کې هيڅ واسطه نسته، لهذا هلته مجازي معنیٰ مراد کېدای سي، نو ځکه به هلته غلام آزادېږي.

**ولوقال هذا أخي إلخ:** او که يو مالک خپل غلام ته اشاره وکړي چې "دا زما ورور دی"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چې غلام آزادېږي؛ ځکه چې دلته به مجازي معنیٰ (يعني آزادېدل) مرادېږي، او دويم روايت يې دا دی چې غلام نه آزادېږي؛ ځکه چې د ورور جوړېدلو لپاره د پلار واسطه ضروري ده او د مالک په کلام کې د پلار ذکر نسته، نو مجازي معنیٰ مراد کېدای نه سي، لهذا غلام به هم نه آزادېږي.

**ولوقال لعبده إلخ:** فرمايي که مالک يو غلام ته اشاره وکړي او ووايي: "هٰذَا اِبْنَتِيْ" چې "دا زما لور ده"، نو يو روايت دا دی چې په دې مسئله کې هم د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، يعني دلته به د امام صاحب په نېز د اشارې اعتبار کيږي او مجازي معنیٰ به مرادېږي (يعني دلته مالک وغلام ته اشاره کړې ده او غلام نر دی، نو ګواکي مالک غلام ته خپل زوی ووېل) لهذا غلام به آزادېږي، لېکن د صاحبينو په نېز مجازي مرادول ناممکن دي، لهذ غلام به نه آزادېږي.

دويم روايت دا دی چې په دې مسئله کې د ټولو په نېز غلام نه آزادېږي؛ ځکه کله چې مشار إليه د مسمیٰ له جنس څخه نه وي (يعني که يو څوک په خوله يو څه ووايي او اشاره بل شي ته وکړي) نو په دې صورت کې حکم د مسمیٰ سره متعلق کيږي (يعني کوم څه چې يې په خوله ويلي وي حکم د هغه سره متعلق وي او د هغه اعتبار به کيږي)، او دلته مشار إليه يعني غلام د مسمیٰ يعني د اِبْنَتِيْ له جنس څخه نه دی، نو ځکه به د آزادۍ حکم د مسمیٰ يعني د اِبْنَتِيْ سره متعلق کيږي، خو څرنګه چې دلته مسمیٰ (اِبْنَتِيْ) معلوم دی ځکه چې غلام نجلۍ نه ده، نو ځکه به کلام لغو وي، نه به حقيقتاً په هغه سره حُرّيت ثابتيږي او نه مجازاً.

## د طلاق په الفاظو سره د مینځې آزادولو حکم

وَإِنْ قَالَ لِأَمَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ أَوْ بَائِنٌ أَوْ تَخَمَّرِي او که مالک خپلې مینځې ته ووايي: ته طلاقه یې، یا ته بائنه یې، یا پوړنی [پرونی] پر سر کړه! [ازما څخه پرده وکړه!] وَنَوَى بِهِ الْعِتْقَ او په دې سره د آزادېدلو نیت وکړي لَمْ تُعْتَقْ نو مینځه نه آزادیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُعْتَقُ إِذَا نَوَى او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: آزادیږي که چیري مالک [د عتق] نیت وکړي وَكَذَا عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ سَائِرُ أَلْفَاظِ الصَّرِيحِ وَالْكِنَايَةِ عَلَى مَا قَالَ مَشَايِخُهُمْ او همدارنګه ټوله صریح او کنایي الفاظ پر دغه اختلاف دي لکه د شوافعو مشائخو چې فرمایلي دي لَهُ: أَنَّهُ نَوَى مَا يَحْتَمِلُهُ لَفْظُهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې [دلته] مالک د داسې شي نیت کړی دی چې د مالک لفظ د هغه احتمال لري [په لنډه توګه دا چې د طلاق ألفاظ د إعتاق (آزادولو) احتمال هم لري] لِأَنَّ بَيْنَ الْمِلْكَيْنِ مُوَافَقَةً ځکه چې د دواړو ملکیتونو [ملک یمین او ملک بضع] په مینځ کې موافقت سته إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِلْكُ الْعَيْنِ ځکه چې هر یو له دوی څخه یو ذاتي ملکیت دی أَمَّا مِلْكُ الْيَمِينِ فَظَاهِرٌ کوم چې ملک یمین دی نو هغه ښکاره دی [چې ذاتي ملکیت دی] وَكَذٰلِكَ مِلْكُ النِّكَاحِ فِي حُكْمِ مِلْكِ الْعَيْنِ او همدارنګه ملک نکاح [هم] د ذاتي ملکیت په حکم کې ده حَتّٰى كَانَ التَّأْبِيدُ مِنْ شَرْطِهِ همدا وجه ده چې همېشه والي [همېشه توب] د نکاح شرط دی وَالتَّأْقِيتُ مُبْطِلًا لَهُ او مؤقت کول [یعني د نکاح لپاره یو معلوم وخت ټاکل] د نکاح لپاره باطلونکي دي وَعَمَلُ اللَّفْظَيْنِ فِي إِسْقَاطِ مَا هُوَ حَقُّهُ وَهُوَ الْمِلْكُ او د [عتق او طلاق] دواړو لفظونو عمل د هغه د حق یعنې د ملکیت ساقطولو لپاره دی وَلِهٰذَا يَصِحُّ التَّعْلِيقُ فِيهِ بِالشَّرْطِ او له همدې وجهې په إعتاق کې پر شرط معلق کول صحیح دي أَمَّا الْأَحْكَامُ فَتَثْبُتُ بِسَبَبٍ سَابِقٍ او کوم چې أحکام دي نو هغه د مخکني سبب په وجه ثابتیږي وَهُوَ كَوْنُهُ مُكَلَّفًا او هغه [مخکنی سبب] د غلام مکلف کېدل دي وَلِهٰذَا يَصْلُحُ لَفْظَةُ الْعِتْقِ وَالتَّحْرِيرِ كِنَايَةً عَنِ الطَّلَاقِ او له همدې وجهې د عتق او تحریر لفظ له طلاق څخه د کنایه کېدلو صلاحیت لري فَكَذَا عَكْسُهُ نو همداسې به د دې برعکس [هم] صحیح وي ایعني نو د طلاق لفظ به هم له تحریر او إعتاق څخه د کنایه کېدلو صلاحیت لري] وَلَنَا: أَنَّهُ نَوَى مَا لَا يَحْتَمِلُهُ لَفْظُهُ او زموږ دلیل دا دی چې [دلته] مالک [په خپل کلام سره] داسې معنیٰ مراد کړې ده چې د مالک لفظ د هغه احتمال نه لري

لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لُغَةً إِثْبَاتُ الْقُوَّةِ وَالطَّلَاقَ رَفْعُ الْقَيْدِ ځکه چې إعتاق په لغت کې د قوت ثابتولو ته وايي. حالانکې طلاق د قيد ليرې کولو [ختمولو] ته وايي وَهٰذَا لِأَنَّ الْعَبْدَ أُلْحِقَ بِالْجَمَادَاتِ او دا ځکه چې غلام (د تصرف په حق کې) د جماداتو سره لاحق سوی دی وَبِالْإِعْتَاقِ يَحْيٰى فَيَقْدِرُ او په آزادولو سره هغه ژوندی کيږي او [پر تصرّفاتو] قادر کيږي وَلَا كَذٰلِكَ الْمَنْكُوحَةُ او منکوحه [په نکاح سوې] ښځه داسې نه وي فَإِنَّهَا قَادِرَةٌ ځکه چې هغه (له مخکې څخه پر تصرّفاتو) قادره وي إِلَّا أَنَّ قَيْدَ النِّكَاحِ مَانِعٌ خو دا (جلا خبره ده) چې د نکاح قيد (د هغې لپاره) مانع وي (يعني د نکاح قيد د دې لپاره مانع وي چې منکوحه ښځه د خاوند له کور څخه بهر ووځي) وَبِالطَّلَاقِ يَرْتَفِعُ الْمَانِعُ او په طلاق سره مانع ختميږي فَتَظْهَرُ الْقُوَّةُ او (د هغې) قوت ښکاره کيږي وَلَا خَفَاءَ أَنَّ الْأَوَّلَ أَقْوٰى او په دې کې هيڅ پټوالي نسته چې اول (يعني إعتاق) زيات قوي دی وَلِأَنَّ مِلْكَ الْيَمِينِ فَوْقَ مِلْكِ النِّكَاحِ او ځکه چې ملک يمين له ملک نکاح څخه لوړ [بالا] دی فَكَانَ إِسْقَاطُهُ أَقْوٰى نو د هغه إسقاط به [هم] زيات قوي وي وَاللَّفْظُ يَصْلُحُ مَجَازًا عَمَّا هُوَ دُوْنَ حَقِيْقَتِهٖ او لفظ له خپل حقيقت څخه د کم [الاندې معنیٰ] لپاره د مجاز جوړېدلو صلاحيت لري لَا عَمَّا هُوَ فَوْقَهٗ نه له خپل حقيقت څخه د لوړ [پورته معنیٰ] لپاره (يعني لفظ له خپل حقيقت څخه د لوړې او قوي معنیٰ لپاره د مجاز جوړېدلو صلاحيت نه لري) فَلِهٰذَا امْتَنَعَ فِي الْمُتَنَازَعِ فِيهِ نو له همدې وجهې به په مختلف فيه [مسئله] کې مجاز ممتنع [ناجائز] وي وَانْسَاغَ فِي عَكْسِهٖ او د هغه په برعکس کې به جائز وي.

**اللغات:** ﴿تَخَمَّرِیْ﴾ د تفعل له باب څخه د واحد مؤنث امر حاضر صيغه ده: پوړنی پر سر کول. پرده کول. ﴿مِلْكُ الْعَيْنِ﴾ د جسم ملکيت، د ذات ملکيت. ﴿مِلْكُ الْيَمِيْنِ﴾ د غلام او مينځې ملکيت. د رقبې ملکيت (يعني پر غلام يا مينځې د يو سړي ملکيت ثابتېدلو ته ملک يمين او ملک رقبه وايي). ﴿تَأْبِيْد﴾ د تفعيل مصدر دی: د همېشه لپاره کېدل. ﴿تَأْقِيْت﴾ د تفعيل مصدر دی: مودت ټاکل، وخت مقرر کول. ﴿إِنْسَاغَ﴾ د انفعال ماضي ده: قابلِ قبول کېدل (د منلو وړ کېدل)، جائز کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو مالک خپلې مينځې ته أَنْتِ طَالِقٌ. يا أَنْتِ بَائِنٌ. يا تَخَمَّرِیْ ووايي او په دې الفاظو سره د عتق (آزادېدلو) نيت وکړي، نو د نيت باوجود زموږ

په نېز آزادي نه واقع کېږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز که مالک په دې سره نيت وکړي نو آزادي واقع کېږي، لکه څرنګه چې د شوافعو فقهاؤ فرمايلي دي، همدا اختلاف په کنايي او صريحو الفاظو کي هم دی.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې دلته مالک په خپل کلام سره يو داسي معنیٰ مراد کړې ده چې هغه معنیٰ د ده د کلام احتمالي معنیٰ ده (يعني عتق او إعتاق د طلاق د الفاظو احتمالي معنیٰ ده)، ځکه چې ملکِ يمين او ملکِ نکاح يو د بل سره موافق دي (يعني د رقبې د ملکيت او د نکاح د ملکيت په مينځ کي موافقت سته)، په دې توګه چې دا دواړه ذاتي ملکيتونه دي، په ملکِ يمين کي خو ذاتي ملکيت ظاهر او ښکاره دی (چې د غلام پر ټوله ذات د انسان ملکيت ثابتيږي او ټوله غلام د انسان په ذاتي ملکيت کي داخليږي)، او ملکِ نکاح هم د ذاتي ملکيت په حکم کي ده، ځکه چې په نکاح کي تأبيد او همېشه والی شرط دی (چې نکاح به د همېشه لپاره تړل کيږي) او مؤقت کېدل د نکاح لپاره مُبطل دي، نو په دې مناسبت ملکِ نکاح د ملکِ يمين په حکم کي ده، نو ځکه په دې الفاظو سره د عتق نيت کول او آزادي مرادول صحيح دي.

وعمل اللفظين إلخ: په دې سره د يو مقدّر سوال جواب ورکوي کوم چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر دليل واردېږي، سوال دا دی چې د طلاق ورکولو او إعتاق (آزادولو) په مينځ کي هيڅ مناسبت نسته، او د دواړو په حقيقت او حيثيت کي اختلاف دی، ځکه چې إعتاق په لغت کي قوت ثابتولو (إثباتُ القوة) ته وايي، همدا وجه ده چې تر إعتاق وروسته غلام د قضاء، شهادت او ولايت أهل ګرځي، لېکن طلاق رفعُ القيد (د نکاح قيد ليري کولو) او د ملکيت ساقطولو ته وايي، لهذا د طلاق له الفاظو څخه مجازاً او کنايتاً إعتاق مرادول صحيح نه دي، ځکه چې د إثبات او رفع په مينځ کي ډېر فرق سته.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه د دې جواب دا دی چې په طلاق او إعتاق کي مناسبت سته، ځکه چې په دواړو کي خپل ملکيت ساقطيږي، او دا جلا خبره ده چې په إعتاق کي د ټوله جسم ملکيت ختميږي او په طلاق کي فقط د بضع ملکيت ختميږي، لنډه دا چې په دواړو کي د ملکيت ساقطېدلو معنیٰ سته، نو ځکه به د طلاق له الفاظو څخه مجازاً إعتاق مرادول صحيح او جائز وي، په طلاق او إعتاق کي په دې توګه هم مناسبت سته چې څرنګه طلاق پر شرط معلق کول صحيح دي، همداسي إعتاق هم پر شرط معلق کول صحيح دي، نو په دې حواله سره هم د طلاق له الفاظو څخه مجازاً إعتاق مراد کېدای سي.

**اما الأحكام إلخ:** په دې سره هم ديو مقدر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چې کله په طلاق او إعتاق دواړو کي دإسقاط معنیٰ سته نو بيا تر إعتاق وروسته په غلام کي شهادت، ولايت، قضاء او داسي نور احکام ساقطيدل پکار دي، نه ثابتيدل، حالانکي تر إعتاق وروسته فوراً دغه احکام ثابتيږي، نو د دې په جواب کي امام شافعي فرمايي چي دلته د أحکامو أصل دار ومدار پر إعتاق نه دی، بلکي هغه د انسان د مکلف کيدلو په سبب سره ثابتيږي، ځکه چي هر انسان په فطري توګه د شهادت او داسي نورو احکامو أهل وي، ليکن په غلام کي د رقيت (غلامتوب) د عارض په وجه شهادت او نور احکام ممنوع وي، ليکن کله چي عارض (غلامتوب) ختم سي نو ممنوع شی به بيرته راګرځي، ځکه چي همدا قاعده ده: "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوع"، نو ثابته سوه چي د دغه احکامو ثبوت د إعتاق په سبب سره نه دی، بلکي په يو مخکني سبب سره دی چي هغه د انسان مکلف کيدل دي.

**ولهذا يصح إلخ:** دا د امام شافعي دويم دليل دی چي څرنګه د إعتاق او تحرير په الفاظو سره طلاق واقع کيږي نو همداسي به د طلاق په الفاظو سره آزادي هم واقع کيږي.

**زموږ دليل:** صاحب د هدايې زموږ دليل په منطقي توګه ذکر کړی دی، حاصل يې دا دی چي مالک دلته د طلاق په الفاظو سره کومه معنیٰ مراد کړې ده، هغه د ده د کلام احتمالي معنیٰ نه ده (يعني إعتاق د طلاق د الفاظو احتمالي معنیٰ نه سي کيدای)، ځکه چي د طلاق او إعتاق په مينځ کي هيڅ مناسبت نسته، ځکه د إعتاق معنیٰ ده "د تصرف قوت ثابتول"، او غلام په تصرف کولو کي د جماداتو (يعني د ډبري او داسي نورو) په څير دی، ځکه چي هغه هيڅ ډول تصرف نه سي کولای، او په إعتاق (آزادولو) کي هغه ته د تصرفاتو قوت ورکول کيږي، او د طلاق معنیٰ ده "د نکاح قيد ليري کول"، او ښځه له مخکي څخه پر تصرف کولو قدرت لري، ليکن په هغې کي فقط د نکاح قيد وي او په طلاق ورکولو سره دا قيد ختميږي، لهذا د طلاق او إعتاق په معنیٰ کي هيڅ مناسبت نسته، نو ځکه به د طلاق له الفاظو څخه مجازاً إعتاق مرادول صحيح نه وي. دويم دليل دا دی چي إعتاق قوي دی او طلاق کمزوری دی، او په کمزوري لفظ سره قوي شی مرادول صحيح نه دي، نو په دې حواله سره هم د طلاق له الفاظو څخه مجازاً إعتاق مرادول صحيح نه دي.

**ولإن ملك اليمين:** او بل دا چي ملک يمين له ملک نکاح څخه لوړ او قوي دی، نو د ملک يمين إسقاط (يعني إعتاق) به د ملک نکاح له إسقاط (يعني له طلاق) څخه لوړ او قوي وي، او قاعده دا ده چي لفظ د داسي معنیٰ لپاره مجاز جوړېدای سي چي هغه د لفظ تر حقيقي معنیٰ لاندي او کمه وي، ليکن د لوړي

معنیٰ لپاره مجاز نه سي جوړېدلای، لهذا د إعتاق د لفظ څخه به مجازاً د طلاق مرادول خو صحیح وي (ځکه چې إعتاق لوړ او قوي دی). لېکن له طلاق څخه به مجازاً د إعتاق مرادول صحیح نه وي (ځکه چې طلاق تر إعتاق لاندي او کمزوری دی).

(مُتَنَازَعٌ فِيهِ: دلته د متنازع مطلب دا دی چي له طلاق څخه مجازاً إعتاق مرادول، ځکه چي په دې کي زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله تنازع او اختلاف دی، يعني دا زموږ په نېز ناجائز دي او د امام شافعي په نېز جائز دي، او د عَكْسِهِ مطلب دا دی چي له إعتاق څخه مجازاً طلاق مرادول).

## د إعتاق يو څو نور الفاظ

وَإِذَا قَالَ لِعَبْدِهِ: أَنْتَ مِثْلُ الْحُرِّ او كله چي مالک خپل غلام ته ووايي: ته د آزاد سړي په شان يې لَمْ يُعْتَقْ نو هغه نه آزادېږي لِأَنَّ الْمِثْلَ يُسْتَعْمَلُ لِلْمُشَارَكَةِ فِي بَعْضِ الْمَعَانِي عُرْفًا ځکه چي د "مثل" لفظ د عرف په اعتبار سره په ځيني معانيو کي د مشارکت لپاره استعمالېږي فَوَقَعَ الشَّكُّ فِي الْحُرِّيَّةِ نو [ځکه] په حريت کي شک واقع سو وَلَوْ قَالَ: مَا أَنْتَ إِلَّا حُرٌّ او که مالک داسي ووايي: نه يې ته! مګر آزاد عَتَقَ نو آزادېږي لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مِنَ النَّفْيِ إِثْبَاتٌ عَلَى وَجْهِ التَّأْكِيدِ ځکه چي له نفي څخه استثناء کول په تاکيدي توګه إثبات وي كَمَا فِي كَلِمَةِ الشَّهَادَةِ لکه د شهادت په کلمه کي چي دي وَلَوْ قَالَ: رَأْسُكَ رَأْسُ حُرٍّ او که مالک ووايي: ستا سر د آزاد سر دی [يعني ستا سر د آزاد سړي د سر په شان دی] لَا يُعْتَقُ نو غلام نه آزادېږي لِأَنَّهُ تَشْبِيهٌ بِحَذْفِ حَرْفِهِ ځکه چي دا د حرفِ تشبيه په حذفولو سره تشبيه ده وَلَوْ قَالَ: رَأْسُكَ رَأْسٌ حُرٌّ او که مالک ووايي: ستا سر آزاد سر دی عَتَقَ نو هغه آزادېږي لِأَنَّهُ إِثْبَاتُ الْحُرِّيَّةِ فِيهِ ځکه چي دا په غلام کي آزادي ثابتول دي إِذِ الرَّأْسُ يُعَبَّرُ بِهِ عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ ځکه چي د سر په ذريعه له ټوله بدن څخه تعبير کيږي.

**اللغات:** ﴿مُشَارَكَة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو د بل سره شريکېدل (اشتراک).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک خپل غلام ته أَنْتَ مِثْلُ الْحُرِّ ووايي، نو په دې سره غلام نه آزادېږي، هغه که مالک په دې سره د عتق نيت وکړي او که يې نه وکړي (عنايه)؛ ځکه چي په عُرفِ عام کي د "مثل" لفظ په "ځيني اوصافو کي د اشتراک" په معنیٰ سره استعمالېږي (يعني د مثل له لفظ څخه په ځيني اوصافو کي اشتراک مرادېږي)، کامل مماثلت نه ځني مرادېږي، او څرنګه

چې دلته "مثل" مطلق دی، او تر هغه وروسته مالک هیڅ وصف ذکر کړی نه دی. نو په دې وجه پر مِثل فِي الحُريت باندې د دې مطلق "مثل" په حمل کولو کې شک پیدا سو. او د شک په وجه سره حُريت نه ثابتیږي.

**ولوقال الخ:** فرمایي چې که مالک خپل غلام ته مَا أَنتَ إِلَّا حُرٌّ ووايي، نو په دې صورت کې غلام آزادیږي؛ ځکه تر نفي وروسته چې کله إثبات راسي، نو په هغه کې تأکید وي. لکه په لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ کې چې تر نفي وروسته إثبات دی او د دې معنیٰ ده چې "له الله څخه پرته بل هیڅ معبود نسته (یعني له الله څخه بغیر بل هیڅوک د دې لائق نه دی چې هغه ته عبادت وسي)". نو د مَا أَنْتِ إِلَّا حُرٌّ معنیٰ به دا وي چې "ته بالکل او بیله شکه آزاده يې"، او کله چې په أَنْتِ حُرٌّ (ته آزاده يې!) ويلو سره غلام آزادیږي، نو په مَا أَنْتِ إِلَّا حُرٌّ (بالکل ته آزاده يې!) ويلو سره به په طریقه اولیٰ غلام آزادیږي.

**ولوقال الخ:** د دې حاصل دا دی چې که مالک خپل غلام ته په ترکیبِ اضافي سره "رَأْسُكَ رَأْسُ حُرٍّ" ووايي (یعني حُرّيت ته د غلام يو بشپړ جزء مضاف کړي)، نو غلام نه آزادیږي، ځکه چې په دې جمله کې د تشبیه کاف مقدر دی، او کله چې په أَنْتِ مِثْلُ الحُرِّ ويلو سره غلام نه آزادیږي نو په رَأْسُكَ رَأْسُ حُرٍّ ويلو سره به څنګه حُرّيت (آزادي) واقع سي!؟.

**ولوقال الخ:** فرمایي که مالک په ترکیبِ توصیفي سره رَأْسُكَ رَأْسٌ حُرٌّ ووايي (یعني د غلام بشپړ جزء او حُرّيت د موصوف او صفت په توګه ذکر کړي)، نو غلام آزادیږي، ځکه چې دلته د موصوف او صفت کېدلو په وجه په رَأْس (سر) کې حُرّيت ثابت سو، او څرنګه چې رَأْس يو بشپړ جزء دی او په هغه له ټوله بدن څخه تعبیر کیږي، نو حُريت به له رَأْس څخه د غلام په ټوله بدن کې سرایت کوي او ټوله غلام به آزادیږي.



# فَصْلٌ

**تشريح:** مخکي تر دې د اختياري إعتاق بيان وو، اوس په دې فصل کي غيرِ اختياري إعتاق بيانوي.

## که نژدې قريب د انسان غلام سي ؟ (تفصيلي بيان)

وَمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او څوک چي د خپل ذی رحم محرم [نژدې قريب] مالک سي عَتَقَ عَلَيْهِ نو هغه پر ده آزادېږي وَهٰذَا اللَّفْظُ مَرْوِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ او دا لفظ له نبي کريم ﷺ څخه نقل سوی دی وَقَالَ عليه السلام: مَنْ مَلَكَ[1] ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ فَهُوَ حُرٌّ نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي د خپل ذی رحم محرم قريب مالک سي نو هغه آزاد دی وَاللَّفْظُ بِعُمُومِهِ يَنْتَظِمُ كُلَّ قَرَابَةٍ مُؤَيَّدَةٍ بِالْمَحْرَمِيَّةِ وِلَادًا أَوْ غَيْرَهُ او دا لفظ د خپل عموم په وجه هر هغه قرابت ته شامل دی چي د هغه محرم کېدل ابدي وي هغه که د ولادت په اعتبار سره [د هغه محرميت ابدي] وي يا د غيرِ ولادت [په اعتبار سره د هغه محرميت ابدي] وي وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يُخَالِفُنَا فِي غَيْرِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په غيرِ ولادت کي زموږ مخالف دی لَهُ: أَنَّ ثُبُوتَ الْعِتْقِ مِنْ غَيْرِ مَرْضَاةِ الْمَالِكِ يَنْفِيهِ الْقِيَاسُ د هغه دليل دا دی: چي قياس د مالک له رضا [خوښی] څخه بغير د عتق د ثابتېدلو نفي کوي أَوْ لَا يَقْتَضِيهِ يا قياس د هغه تقاضا نه کوي وَالْأُخُوَّةُ وَمَا يُضَاهِيهَا نَازِلَةٌ عَنْ قَرَابَةِ الْوِلَادَةِ او [دا] ورورګلوي [قرابت] او د دې سره مشابه [بل قرابت لکه ماماتوب، وراره توب او داسي نور] د ولادت له قرابت څخه کم [د لاندي درجې] دی فَامْتَنَعَ الْإِلْحَاقُ أَوِ الِاسْتِدْلَالُ بِهِ نو ځکه د ولادت د قرابت سره [د غيرِ ولادت قرابت] ملحق کول او [په هغه سره] دليل نيول متمنع سو وَلِهٰذَا امْتَنَعَ التَّكَاتُبُ عَلَى الْمُكَاتَبِ فِي غَيْرِ الْوِلَادِ او له همدې وجهي پر مکاتب په غيرِ ولادتي قرابت کي مکاتب جوړول منع دي [يعني همدا وجه ده چي د ولادت له قريبانو څخه بغير نور قريبان د

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذى فى كتاب الأحكام، باب فيمن ملک ذا رحم محرم حديث رقم: ١٣٦٤. وابو داؤد فى كتاب العتق، حديث رقم: ٣٩٤٩.

مکاتب سره مکاتب نه ګرځي] وَلَمْ يَمْتَنِعْ فِيهِ او په ولادت کي دا منع نه دي [يعني د ولادت قربان مکاتب ګرځي] وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه دی کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّهُ مَلَكَ قَرِيبَهُ قَرَابَةً مُؤَثِّرَةً فِي الْمَحْرَمِيَّةِ او ځکه چي هغه د داسي نژدې قريب مالک سو چي د هغه قرابت په محرميت کي مؤثر دی فَيَعْتِقُ عَلَيْهِ نو ځکه به هغه پر ده آزادېږي وَهٰذَا هُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْأَصْلِ او په اصل کي همدا اذی رحم محرم کېدل] تأثير کونکي دي وَالْوِلَادُ مُلْغًى او ولادت لغو [غيرِ مؤثر] دی لِأَنَّهَا هِيَ الَّتِي يُفْتَرَضُ وَصْلُهَا ځکه چي د همدغه قرابت وصل کول [او د ذی رحم محرم سره صله رحمي کول] فرض دي وَيَحْرُمُ قَطْعُهَا او د قرابت ختمول حرام دي حَتّٰى وَجَبَتِ النَّفَقَةُ وَحَرُمَ النِّكَاحُ همدا وجه ده چي [د ذی رحم محرم] نفقه واجب ده او نکاح [ور سره] حرامه ده وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ الْمَالِكُ مُسْلِمًا أَوْ كَافِرًا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ او هيڅ فرق نسته په دې کي چي مالک مسلمان وي يا [مالک] په دارُ الاسلام کي کافر وي لِعُمُومِ الْعِلَّةِ ځکه چي علت عام دی وَالْمُكَاتَبُ إِذَا اشْتَرٰى أَخَاهُ وَمَنْ يَجْرِي مَجْرَاهُ او که مکاتب خپل ورور يا [په قرابت کي] د ورور قائمِ مقام [لکه وراره يا داسي بل قريب] رانيسي لَا يَتَكَاتَبُ عَلَيْهِ نو دا [رانيول سوی قريب] پر هغه مکاتب نه ګرځي لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ مِلْكٌ تَامٌّ يُقْدِرُهُ عَلَى الْإِعْتَاقِ ځکه چي هغه لره [دومره] کامل ملکيت حاصل نه دی چي مکاتب پر إعتاق قادر کړي وَالِافْتِرَاضُ عِنْدَ الْقُدْرَةِ او [دا مسئله] د قدرت په وخت کي فرض کړی سوی ده [يعني دا مسئله په داسي صورت کي وضع سوې او فرض کړي سوې ده کله چي آزادونکي سړي ته پر آزادولو پوره قدرت حاصل وي] بِخِلَافِ الْوِلَادِ په خلاف د ولادت [يعني په خلاف د ولادتي قرابت] لِأَنَّ الْعِتْقَ فِيهِ مِنْ مَقَاصِدِ الْكِتَابَةِ ځکه چي عتق په دې [ولادتي قرابت] کي د کتابت له مقاصدو څخه وي فَامْتَنَعَ الْبَيْعُ نو بيع ممتنع سوه فَيَعْتِقُ تَحْقِيقًا لِمَقْصُودِ الْعَقْدِ نو د عقد کتابت د مقصود ثابتولو لپاره به هغه آزادېږي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يَتَكَاتَبُ عَلَى الْأَخِ أَيْضًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي پر مکاتب د هغه ورور [هم] مکاتب ګرځي وَهُوَ قَوْلُهُمَا او همدا د صاحبينو قول دی فَلَنَا أَنْ نَمْنَعَ نو موږ ته دا اختيار سته چي موږ ا د هغه نه مکاتب کېدل] منع کړو [يا معنیٰ يې دا ده: چي موږ د امام شافعي اعتراض منع کړو] وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا مَلَكَ ابْنَةَ عَمِّهِ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي انسان خپل د اکا د لور مالک سي وَهِيَ أُخْتُهُ مِنَ الرَّضَاعِ او هغه د ده

رضاعي خور اهم ا وي لِأَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ مَاثَبَتَتْ بِالْقَرَابَةِ ځکه چې محرمیت هغه معتبر دی کوم چې په قرابت سره ثابت سي وَالصَّبِيُّ جُعِلَ أَهْلًا لِهٰذَا الْعِتْقِ او کوچنی د دې عتق أهل ګرځول سوی دی وَكَذَا الْمَجْنُونُ همداسي لېونی اهم د دې عتق أهل ګرځول سوی دی ا حَتّٰى عَتَقَ الْقَرِيبُ عَلَيْهِمَا عِنْدَ الْمِلْكِ تر دې چې د مالک کېدلو په وخت کي پر دوی دواړو اهم نژدې ا قریب آزادیږي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چي د دې عتق سره د بنده حق متعلق سو فَشَابَهَ النَّفَقَةَ نو دا د نفقې سره مشابه سو.

**اللغات:** ﴿مُؤَبَّدَة﴾ د تفعیل مؤنث اسم مفعول دی: همېشنی، دائمي. ﴿يُضَاهِيْ﴾ د مفاعلې مضارع ده: مشابه کېدل. ﴿نَازِلَـة﴾ کمتر، کمې درجې والا. ﴿تَكَاتُـب﴾ مکاتب جوړول، مکاتب ګرځول. ﴿مُلْغًى﴾ د إفعال له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده. أَلْغٰى يُلْغِيْ إِلْغَاءً: لغو کول. باطلول. ﴿يَجْرِيْ مَجْرَاه﴾ کله چي دغه دوې صیغې یو ځای سره ذکر سي، نو معنیٰ یې راځي: قائم مقام کېدل، یو شي د بل شي پر ځای درېدل، نائب کېدل. ﴿يُقَدِّرُ﴾ د تفعیل او إفعال دواړو بابونو څخه راځي: قدرت ور کول (قادر جوړول، قادر کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو انسان د خپل ذی رحم محرم (نژدې قریب) مالک سي (یعني داسي قریب چي د هغه سره د همېشه لپاره د انسان نکاح حرامه وي). نو مملوک (نژدې قریب) پر هغه آزادیږي، ځکه په حدیث کي ذکر سوي دي: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مِنْهُ عَتَقَ عَلَيْهِ". او په بل حدیث کي د "فَهُوَ حُرٌّ" الفاظ ذکر سوي دي، او دا د دې خبري دلیل دی چي که یو سړی د خپل ذی رحم محرم مالک سي، نو هغه پر ده آزادیږي، صاحب د بنایې فرمایي چي د "عَتَقَ عَلَيْهِ" لفظ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په روایت کي دی کوم چي په نسائي کي ذکر سوی دی، او د "فَهُوَ حُرٌّ" لفظ د سمرة بن جندب رضي الله عنه په روایت کي دی چي هغه په سنن أربعه وو کي ذکر سوی دی. لنډه دا چي په دې حدیث کي "ذَا رَحِم مَحْرَم" مطلق ذکر سوی دی، نو ځکه به هر هغه نژدې قریب ته شامل وي چي د هغه سره په دائمي توګه نکاح حرامه وي، هغه که دا حرمت د ولادتي قرابت په وجه سره وي. یا د غیر ولادتي قرابت په وجه سره وي (د ولادتي قرابت مثال دا دی چي انسان د خپل پلار او مور یا د نیکه او انا مالک سي. یا مور او پلار د خپل زوی یا لمسي مالکان سي، او د غیر ولادتي قرابت مثال دا دی چي انسان د خپل ورور او خور. یا د خپل وراره او خوریي. یا د ماما او د اسي نورو مالک سي). نو زموږ په نېز په دې دواړو صورتونو کي مملوک آزادیږي. لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله د غیر ولادت والا په

قرابت کي زموږ مخالف دی. د هغه په نيز فقط د ولادتي قرابت په صورت کي مملوک آزاديږي او په غير ولادتي قرابت کي د هغه په نيز حُريت او عتق مؤثر نه دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د دې حديث "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحْمٍ... إلخ" په وجه پر مملوک د مالک له رضا څخه بغير خلافُ القياس آزادي واقع کيږي، او قاعده دا ده چي "مَا ثَبَتَ عَلىٰ خِلَافِ الْقِيَاسِ فَغَيْرُهٗ لَا يُقَاسُ عَلَيْه" (يعني کوم شی چي خلافُ القياس ثابت سي، پر هغه بل شی قياس کېدای نه سي) او نه په هغه سره د دلالۀ النص په توګه پر بل شي دليل نيول کېدلای سي. او څرنګه چي په ولادتي قرابت کي مالک کېدل د حُريت لپاره خلافُ القياس مؤثر دي لهذا دا أثر به فقط د ولادتي قرابت سره خاص وي او له هغه څخه به د غيرِ ولادتي قرابت وطرف نه منتقل کيږي او په غيرِ ولادتي قرابت کي به مؤثر نه ګرځي، همدا وجه ده که يو مکاتب د خپل پلار يا د خپل زوی مالک سي نو څرنګه چي په دوی کي ولادتي قرابت موجود دی، نو په دې وجه به هغه دواړه هم مکاتب ګرځي. لېکن که يو مکاتب سړی د خپل ورور يا د خپل وراره، يا ماما او داسي نورو مالک سي، نو دا خلګ مکاتب نه ګرځي، ځکه چي په دوی کي ولادتي قرابت معدوم دی، نو په دې وجه د مکاتب مالک مکاتبت د دوی په حق کي مؤثر نه ګرځي، نو له دې څخه هم ښکاره سوه چي ولادتي قرابت د غيرِ ولادت پر قرابت قياسول صحيح نه دي.

**زموږ دليل:** زموږ اول دليل هغه حديث دی کوم چي پورته ذکر سو يعني "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحْمٍ... إلخ". په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسو چي په دې حديث کي "ذَا رَحْمٍ" مطلق دی او د ولادت يا غير ولادت هيڅ قيد پکښې ذکر سوی نه دی، نو ځکه به دا هر ډول قريب ته شامل وي، هغه که ولادتي قريب وي او که غيرِ ولادتي قريب وي.

**دويم دليل:** زموږ دويم دليل دا دی چي په حرمت کي قرابت اصل دی ولادت اصل نه دی، ځکه چي په حديث کي د "رحم" او "محرم" لفظ راغلی دی، له "رحم" څخه قرابت مراد دی او له "محرم" څخه د نکاح حرمت مراد دی. لهذا کوم سړی چي د يو داسي ذی رحم محرم قريب مالک سي چي د هغه سره د ده لپاره نکاح حرامه وي نو هغه به پر ده آزاديږي، معلومه سوه چي د عتق او حريت اصل علت قرابت دی، او که د هغه سره ولادت هم يو ځای سي نو بيا نور مؤثر ګرځي، د قرابت د اصل کېدلو يو علت دا هم دی چي په حديث کي قرابت کول فرض ګرځول سوي دي او د قرابت قطع کولو (ختمولو) ته حرام ويل سوي دي، همدا وجه ده چي د مَحرمي ښځي سره د نکاح د حرام والي باوجود د هغې نفقه واجب ده، معلومه سوه چي حريت او آزادي فقط د ولادت سره خاص کول صحيح نه دي.

**ولافرق إلخ:** فرمايي چې مالک کېدونکی کس که مسلمان وي او که کافر وي او په دارُ الاسلام کي وي، په دواړو صور تونو کي د هغه مملوک آزادېږي، ځکه چي د قرابتِ محرمه علت (يعني د نژدې قربت علت) عام دی. او هغه مسلمان او کافر ټولو ته په يوه ډول شامل دی.

**والمكاتب إذا اشتراه إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل "وَلِهٰذَا اِمْتَنَعَ التَّكَاتُب... إلخ" جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي موږ دا خبره نه تسليموو چي که يو مكاتب د خپل ورور يا ماما او داسي نورو مالک سي نو هغه مکاتب نه ګرځي، بلکي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت چي که مکاتب د خپل ورور يا ماما او نورو مالک سي، نو هغه هم مكاتب ګرځي (بناية ج:۵، ص:۵۹۳)، او كه بيا هم موږ د ورور يا ماما نه مکاتب کېدل د امام شافعي سره تسليم کړو، نو د هغه وجه غير ولادتي قرابت نه دی، بلکي وجه يې دا ده چي د آزادونکي (مُعْتِق) لپاره دا شرط دي چي هغه به په خپله آزادي وي او د ملک تام خاوند به وي، حالانکي مکاتب ته داسي ملکيت حاصل نه دی چي د هغه په وجه دا مکاتب پر إعتاق قادر سي، او دغه مسئله په هماغه صورت کي وضع سوې او فرض کړی سوې ده کله چي مُعْتِق ته پوره قدرت حاصل وي.

د دې په خلاف که مکاتب د ولادتي قريب مالک سي، نو هغه (ولادتي قريب) هم مکاتب ګرځي، او کله چي دغه مالک مکاتب آزاد سي، نو په هغه وخت کي د هغه مملوک (ولادتي قريب) هم آزاد ګرځي، ځکه چي په ولادتي قرابت کي آزادي د بدل کتابت مقصود ده، ځکه چي غلام په همدې وجه د بدل کتابت معامله کوي چي له هغه څخه رقيت (غلامتوب) ليري سي او آزاد سي، لهذا څرنګه چي دا مقصود د مالک په حق کي ثابتيږي، همداسي به د هغه د مملوک په حق کي هم ثابتيږي.

صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي: "وَأَمَّا حُرِّيَة... إلخ فَلَيْسَتْ مِنْ مَقَاصِدِ عَقْدِ الْكِتَابَةِ لِعَدَمِ لُحُوْقِ الْعَارِ بِرِقِّهِ وَلَحُوْقِهِ بِرِقِّ اِبْنِهِ وَأَبِيْه". يعني د ورور حُريت (کوم چي ولادتي قريب نه دی) د عقد کتابت له مقاصدو څخه نه دی، ځکه چي انسان خو د پلار يا د زوی په رقيت (غلامتوب) شرم محسوسوي ليکن د ورور په رقيق کېدلو هغه پروا نه کوي. (أحسن الهداية ج:۵، ص:۳۱۷)

**وعن أبي حنيفة إلخ:** د دې تشريح موږ د بنايې په حواله سره څه مخکي بيان کړه.

**وهذا بخلاف إلخ:** په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چي که چيري د ذی رحم محرم مالک کېدل د هغه د آزاد والي علت دی نو بيا د انسان دا کالور چي هغه د ده رضاعي خور هم وي بايد ذ هغې په رانيولو سره پر انسان آزاده سي (يعني که يو څوک خپل دا کالور رانيسي کوم چي د هغه رضاعي

خور هم وي نو بايد پر هغه آزاده سي) حالانکي داسي نه کيږي، د دې په جواب کي فرمايي چي په حُريت کي هغه قرابت مؤثر دی کوم چي د نکاح ابدي حرمت لره مستلزم وي، او دلته د نکاح حرمت د رضاعت په وجه سره دی، نه د قرابت په وجه سره، لهذا داسي بې ځايه سوال کول مناسب نه دي.

**والصبي إلخ**: فرمايي څرنګه چي پر عاقل او بالغ سړی خپل نږدې قريب آزاديږي، همداسي که يو کوچنی يا مجنون د خپل نږدې قريب مالک سي، نو هغه مملوک (نږدې قريب) هم پر کوچني او مجنون آزاديږي، ځکه چي د دغه عتق سره د بنده حق متعلق سو، او د عتق علت هم موجود دی، نو ځکه به عتق او حُريت واقع کيږي، او دا د نفقې سره مشابه سو، يعني کله چي انسان هيڅ قريب او وارث نه لري فقط يو کوچنی وارث لري يا يو مجنون وارث لري، نو د کوچني او مجنون په مال کي به د هغه انسان لپاره نفقه واجب وي (که چيري د بچي يا د مجنون لپاره مال وي)، همداسي به دلته هم د کوچني يا د مجنون د مالک کېدلو په صورت کي د هغو مملوک آزاديږي.

## د الله د رضا لپاره يا د شيطان او بُت په نامه د آزاد سوي غلام حکم

| |
|---|
| وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا لِوَجْهِ اللهِ تَعَالَى او کوم سړی چي د الله تعالیٰ د ذات [رضا] لپاره غلام آزاد کړي أَوْ لِلشَّيْطَانِ أَوْ لِلصَّنَمِ يا د شيطان يا بُت لپاره [غلام آزاد کړي] عَتَقَ نو غلام آزاديږي لِوُجُودِ رُكْنِ الْإِعْتَاقِ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ ځکه چي د إعتاق رکن له خپل أهل شخصه په خپل محل کي موجود سو [يعني د إعتاق رکن د إعتاق له أهل شخصه د إعتاق په محل کي صادر سو] وَوَصْفُ الْقُرْبَةِ فِي اللَّفْظِ الْأَوَّلِ زِيَادَةٌ او په اول لفظ [يعني په لِوَجْهِ اللهِ] کي د قربت صفت زيات دی فَلَا يَخْتَلُّ الْعِتْقُ بِعَدَمِهِ فِي اللَّفْظَيْنِ الْآخَرَيْنِ لهذا په وروستني دوو لفظو کي به د دې وصف په نشتوالي سره په عتق کي خلل نه راځي [يعني څرنګه چي د "وجه" لفظ زائد دی نو په دې وجه که په وروستني دوو لفظونو کي يعني په للشيطان او للصنم کي د وجه لفظ ذکر نه سي، نو بيا هم د غلام په آزادېدلو کي هيڅ خلل نه واقع کيږي، بلکي بېله شکه غلام واقع کيږي]. |

**اللغات**: ﴿وَجْه﴾ ذات. ﴿صَنَمْ﴾ بُت. ﴿قُرْبَة﴾ نېکي، ثواب. ﴿لَا يَخْتَلّ﴾ د افتعال له باب څخه د نفي صيغه ده: نقص پېښېږي راتلل، خرابېدل، عيبجن کېدل (عيبي کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د الله د رضا لپاره خپل غلام آزاد کړي، يا يې د بُت او شيطان لپاره آزاد کړي، نو په دې صورت کي غلام آزاديږي؛ ځکه چي د إعتاق رکن يعني د مُعتِق عاقل او بالغ کېدل او د هغه مالک کېدل موجود سو، لهذا اوس له عتق څخه هيڅ مانع نسته، نو ځکه به غلام آزاديږي. (مِنْ أَهْلِهِ فِيْ مَحَلِهِ: دا يو محاوره ده، د أهل مطلب دا دی چي آزادونکی عاقل او بالغ

دی. او د محل مطلب دا دی چي غلام د عاقل او بالغ سړي مملوک دی. یعني دلته د عاقل او بالغ مالک له طرفه د مملوک آزادول موجود سو. نو ځکه به هغه آزادیږي).

**ووصف إلخ**: په دې سره د عبارت إصلاح کوي، فرمايي چي په اوله جمله "أَعْتَقَ عَبْدًا لِوَجْهِ اللهِ" کي د "وَجْه" لفظ زائد دی. که چيري هغه لفظ نه وي، نو هم غلام آزاديږي. لهذا که په دويمه جمله يعني په "لِلشَّيْطَانِ" او "لِلصَّنَمِ" کي د "وَجْه" لفظ نه وي. نو هم غلام آزاديږي. خو ښکاره دې وي چي د شيطان او بت د رضا او خوشاله کولو په نيت آزادونکی سړی ګناهګار ګرځي.

## د "مُكْرَه" او "سَكْرَان" سړي إعتاق

وَعِتْقُ الْمُكْرَهِ وَالسَّكْرَانِ وَاقِعٌ او د مُکره او نشه سړي آزادول واقع دي ايعني څوک چي پر آزادولو مجبور کړی سي يا څوک چي نشه وي. د هغه آزادول واقع کيږي ا لِصُدُوْرِ الرُّكْنِ مِنَ الْأَهْلِ فِي الْمَحَلِّ ځکه چي د عتق رکن له خپل أهل شخه په محل کي صادر سو كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه څرنګه چي په طلاق کي اهمدا حکم دی چي د مُکره او نشه سړي طلاق واقع کيږي ا وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکي هم دا امسئله ا بيان کړي ده.

**اللغات**: ﴿مُكْرَه﴾ د افعال له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده: مجبور (هغه کس چي په زوره پر يو کار مجبور کړی سي. هغه کس چي جبراً يو کار په وکړی سي). ﴿سَكْرَان﴾ نشه (نشه يي).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو مالک د خپل غلام پر آزادولو مجبور کړی سي او هغه خپل غلام آزاد کړي. يا يو سړی د نشې په حالت کي خپل غلام آزاد کړي، نو په دې دواړو صورتونو کي آزادي واقع کيږي: ځکه چي د إعتاق رکن له خپل شخه أهل شخه صادر سو. يعني دلته عاقل او بالغ سړي خپل مملوک آزاد کړی. لهذا له عتق او آزادۍ شخه هيڅ مانع نسته. نو ځکه به آزادي واقع کيږي. دا په مسئله په کتابُ الطلاق کي په تفصيل سره بيان سوه.

## د مُعلق إعتاق بيان

وَإِنْ أَضَافَ الْعِتْقَ إِلَى مِلْكٍ أَوْ شَرْطٍ او که مالک اد غلام آزادي د ملکيت يا د يو شرط وطرف ته منسوب کړي صَحَّ نو صحيح دي كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه څرنګه چي په طلاق کي ادا صحيح دي ا أَمَّا الْإِضَافَةُ إِلَى الْمِلْكِ فَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ کوم چي د ملکيت وطرف ته اد آزادۍ انسبت کول دي نو په هغه کي د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ اختلاف دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ او په کتابُ الطلاق کي موږ هغه بيان

کړی دی ﴿وَأَمَّا التَّعْلِيقُ بِالشَّرْطِ فَلِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ﴾ او کوم چي پر شرط [د آزادی] معلق کول دي نو [هغه] ځکه اصحیح دي[ چي هغه إسقاط دی ﴿فَيَجْرِي فِيهِ التَّعْلِيقُ﴾ نو ځکه به په هغه کي تعليق جاري کیږي ﴿بِخِلَافِ التَّمْلِيكَاتِ﴾ په خلاف د تمليكاتو ﴿عَلَىٰ مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ﴾ لکه څرنګه چي دا په خپل ځای کي پېژندل سوي دي.

**اللغات:** ﴿أَضَافَ﴾ د افعال ماضي ده: يو شي ته د بل شي نسبت کول، منسوب کول.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو څوک د يو غلام آزادي پر خپل ملکيت معلق کړي. مثلاً داسي ووايي: "إِنْ مَلَكْتُكَ فَأَنْتَ حُرٌّ" (يعني که چيري زه ستا مالک سوم نو ته آزاد يې). يا د يو شرط وطرف ته د خپل غلام د آزادی نسبت وکړي. مثلاً داسي ووايي: "إِنْ جَاهَدْتَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَنْتَ حُرٌّ" (که چيري ته د الله په لار کي جهاد وکړې نو ته آزاد يې). نو دغه دواړه صورتونه صحيح دي لکه څرنګه چي طلاق پر ملکيت يا پر شرط معلق کول صحيح دي، او د شرط د وجود په وخت کي به غلام آزادیږي. لېکن د ملکيت په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی. يعني که پر ملکيت عتق او آزادي معلق کړی سي، نو زموږ په نېز خو (د شرط د وجود په وخت کي) آزادي واقع کيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز آزادي نه واقع کيږي. دا مسئله په كتابُ الطلاق کي په تفصيل سره بيان سوه.

**وأما التعليق إلخ:** فرمايي چي عتق پر شرط معلق کول ځکه صحيح دي چي عتق د "إسقاط" له قبيلې څخه دی (يعني په عتق سره هم د طلاق په څېر ملکيت ساقطيږي) او إسقاطات پر شرط معلق کول صحيح دي. نو ځکه به عتق پر شرط معلق کول صحيح وي. د دې په خلاف تمليكات (يعني مالک کول) پر شرط معلق کول صحيح نه دي، لکه په أصول فقه کي چي به دا خبره تاسو ته معلومه سوې وي.

## له دارُ الحرب څخه د تښتېدونکي غلام حکم

﴿وَإِذَا خَرَجَ عَبْدًا لِحَرْبِيٍّ إِلَيْنَا مُسْلِمًا﴾ او کله چي د يو حربي کافر غلام زموږ وطرف ته د اسلام راوړلو په حالت کي راسي [يعني اسلام راوړي او زموږ دارُ الاسلام ته راسي] ﴿عَتَقَ﴾ نو هغه آزادیږي ﴿لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي عَبِيدِ الطَّائِفِ[1] حِينَ خَرَجُوا إِلَيْهِ مُسْلِمِينَ﴾ ځکه چي نبي ﷺ وفرمايل د طائف د غلامانو په باره کي کله چي هغوی نبي ﷺ ته د اسلام راوړلو په حالت کي راغلل ﴿"هُمْ عُتَقَاءُ اللهِ تَعَالَىٰ"﴾ "دوی د الله آزاد کړی سوي دي" ﴿وَلِأَنَّهُ أَحْرَزَ نَفْسَهُ وَهُوَ مُسْلِمٌ﴾ او په دې وجه [هم] چي هغه د مسلمان کېدلو په حالت کي

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب عبيد المشركين يلحقون بالمسلمين، حديث رقم: ۲۷۰۰

خپل ځان محفوظ كړى دى وَلَا اسْتِرْقَاقَ عَلَى الْمُسْلِمِ ابْتِدَاءً او ابتداءً مسلمان غلام نه سي جوړېداى.

**اللغات:** ﴿أَحْرَزَ﴾ د افعال ماضي ده: ذخيره كول، خوندي كول (محفوظ كول). ﴿إِسْتِرْقَاقٌ﴾ د استفعال مصدر دى: غلام كول (غلام جوړول)، غلامي (غلامتوب).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه د يو حربي كافر غلام له دارُ الحراب څخه په تېښته بريالى سي او دارُ الاسلام ته راسي اسلام راوړي، نو دارُ الاسلام ته په راتلو سره هغه آزادېږي: ځكه چي له طائف څخه راتلونكو غلامانو ته (كوم چي ٢٣ نفره ول) نبي ﷺ "عُتَقَاءُ الله" وويل او هغوى يې آزاد وشمارل.

**ولأنه أحرز إلخ:** عقلي دليل دا دى چي ابتداءً يو مسلمان غلام جوړېداى نه سي، او دغه غلام هم اسلام راوړى دى او دارُ الاسلام ته يې پناه راوړې ده، نو ځكه به هغه آزاد شمارل كيږي، نه غلام.

## په إعتاق كي د حامله مينځي د حمل مختلف صورتونه

وَإِنْ أَعْتَقَ حَامِلًا او كه [يو شوك خپله] حامله مينځه آزاده كړي عَتَقَ حَمْلُهَا تَبَعًا لَهَا نو د مينځي په متابعت كي د هغې حمل [هم] آزادېږي إِذْ هُوَ مُتَّصِلٌ بِهَا ځكه چي حمل د مينځي سره متصل دى وَلَوْ أَعْتَقَ الْحَمْلَ خَاصَّةً او كه فقط حمل آزاد كړي عَتَقَ دُونَهَا نو له مينځي څخه بغير [فقط] حمل آزادېږي لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى إِعْتَاقِهَا ځكه چي د مينځي د آزادولو هيڅ صورت نسته مَقْصُودًا نه قصداً [د هغه هيڅ صورت سته] لِعَدَمِ الْإِضَافَةِ إِلَيْهَا ځكه چي [د مالك په كلام كي] د مينځي وطرف ته اضافت نسته وَلَا إِلَيْهِ تَبَعًا او نه د حمل په متابعت كي [د هغه هيڅ صورت سته] لِمَا فِيهِ مِنْ قَلْبِ الْمَوْضُوعِ ځكه چي په دې [تبعاً آزادېدلو] كي موضوع [پر بل مخ] اوړي ثُمَّ إِعْتَاقُ الْحَمْلِ صَحِيحٌ بيا [فقط] د حمل آزادول صحيح دي وَلَا يَصِحُّ بَيْعُهُ وَهِبَتُهُ او د حمل خرڅول او د هغه هبه كول صحيح نه دي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ نَفْسَهُ شَرْطٌ فِي الْهِبَةِ ځكه چي په هبه كي د حمل ذات ورسپارل شرط دي وَالْقُدْرَةُ عَلَيْهِ فِي الْبَيْعِ او په بيع كي [د حمل] پر ورسپارلو قدرت لرل شرط دى وَلَمْ يُوجَدْ ذَٰلِكَ بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْجَنِينِ او د حمل وطرف ته د نسبت كولو په صورت كي دا [تسليم او قدرت على التسليم] موجودېدلاى نه سي [ځكه چي حمل خو په نس كي دننه وي] وَشَيْءٌ مِنْ ذَٰلِكَ لَيْسَ بِشَرْطٍ فِي الْإِعْتَاقِ او په إعتاق كي له دې څخه

يو شی شرط نه دی فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه سره جلا سول ايعني په دواړو کي فرق راغلی ا.

**اللغات:** ﴿تَسْلِيْم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل. ﴿جَنِيْن﴾ تر پيدايښت مخکي بچي ته "جنين" وايي، حمل. ﴿إِعْتَاق﴾ آزادول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپله حامله مينځه آزاده کړي، نو حمل هم د هغې سره آزاديږي، ځکه چي حمل د مينځي سره متصل دی او د هغې تابع دي لکه خپل اندامونه چي د هغې تابع دي، نو څرنګه چي د هغې ټوله اندامونه آزاد ګرځي، همداسي به د هغې حمل هم آزاد ګرځي، او که يو مالک فقط حمل آزاد کړي، نو فقط حمل آزاديږي، او مينځه نه آزاديږي، ځکه چي جزء خو د کُل تابع کېدلای سي او په هغه کي داخلېدای سي، لېکن کُل د جزء تابع کېدلای نه سي او په هغه کي داخلېدای نه سي.

صاحب د هدايې چي کوم دليل بيان کړی، د هغه حاصل دا دی چي په دې مسئله کي د مينځي د آزادېدلو فقط دوه صورتونه دي، يا هغه به قصداً آزاده ګڼل کيږي، يا تبعاً، او دا دواړه صورتونه ناممکن دي، ځکه چي قصداً مينځه ځکه آزاده منل کېدای نه سي چي مالک فقط د هغې حمل آزاد کړی دی او د مينځي وطرف ته يې د عتق نسبت کړی نه دی، او تبعاً ځکه آزاده ګڼل کېدای نه سي چي په دې صورت کي قلبِ موضوع راځي يعني مينځه کوم چي متبوع ده هغه به تابع جوړه سي، او دا صحيح نه دي، لهذا مينځه هيڅ ډول آزادېدلای نه سي.

ثم إعتاق إلخ: د دې حاصل دا دی چي فقط حمل آزادول خو صحيح دي، لېکن فقط حمل خرڅول يا هبه کول صحيح نه دي: ځکه چي په هبه کي موهوب (هبه کړی سوی شی) ور سپارل ضروري دي، او په بيع کي د مبيع پر ور سپارلو قدرت درلودل ضروري دي، لېکن حمل خو د مور په نس کي وي، هغه نه چا ته ور سپارل کېدای سي او نه څوک د هغه پر ورسپارلو قدرت لري، نو ځکه د حمل او جنين بيع او هبه صحيح نه ده. ها! د هغه إعتاق صحيح دی، ځکه چي د إعتاق لپاره نه تسليم (ورسپارل) شرط دي او نه قدرة علی التسليم شرط دی.

## حمل د مال په عوض کي آزادول

وَلَوْ أَعْتَقَ الْحَمْلَ عَلٰى مَالٍ او که مالک د يو څه مال په عوض کي حمل آزاد کړي صَحَّ نو آزادي صحيح ده وَلَا يَجِبُ الْمَالُ او مال نه واجبيږي إِذْ لَا وَجْهَ إِلٰى إِلْزَامِ الْمَالِ عَلَى الْجَنِيْنِ ځکه چي پر جنين احمل ا د مال واجبولو هيڅ صورت نسته لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ عَلَيْهِ ځکه چي پر هغه ا د يو چا ا ولايت نسته وَلَا إِلٰى

اِلْزَامِهِ الْأُمَّ او [د هغه] پر مور [هم] د مال لازمولو هيڅ صورت نشته لِأَنَّهُ فِي حَقِّ الْعِتْقِ نَفْسٌ عَلٰى حِدَةٍ ځکه چې د آزادئ په حق کې جنين يو جلا نفس دی وَاشْتِرَاطُ بَدَلِ الْعِتْقِ عَلٰى غَيْرِ الْمُعْتَقِ لَا يَجُوْزُ او بدل عتق له معتَق [آزاد کړی شوي] علاوه پر يو بل چا شرط کول جائز نه دي عَلٰى مَا مَرَّ فِي الْخُلْعِ لکه په خلع کې چې دا [خبره] تېره شوه وَإِنَّمَا يُعْرَفُ قِيَامُ الْحَبَلِ وَقْتَ الْعِتْقِ او د عتق په وخت کې د حمل موجودېدل په هغه وخت کې معلومېږي إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْهُ کله چې د آزادېدلو له وخت څخه تر شپږو مياشتو په کم موده کې مېنځې حمل [کوچنی] زېږولی وي لِأَنَّهُ أَدْنٰى مُدَّةِ الْحَبَلِ ځکه چې دا [شپږ مياشتې] د حمل کمه موده ده.

**اللغات:** ﴿إِلْزَام﴾ د افعال مصدر دی: لازمول. ﴿حَبَل﴾ حمل. ﴿أَدْنٰى﴾ کمتر (کم از کم، لږ تر لږه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپلې مېنځې حمل د مال د يو معلوم مقدار (مثلاً د سلو درهمو) په عوض کې آزاد کړي، نو حمل خو آزادېږي، لېکن مال نه واجبېږي، ځکه چې پر جنين هيڅ ته ولايت حاصل نه دی، نو ځکه پر هغه مال (بدلِ عتق) لازمول کېدای نه شي، او د عتق او آزادئ په حواله سره جنين ته د يو مستقل نفس حيثيت حاصل دی، نو ځکه د هغه له طرفه د هغه پر مور هم مال لازمول کېدی نه شي، ځکه چې له مُعْتَق (آزاد کړي شوي کس) څخه بغير پر بل هيڅ بدل عتق (د عتق عوض) لازمول صحيح نه دي، لکه په باب الخلع کې چې دا خبره ذکر شوه، دلته له بابُ الخلع څخه د هدايې بابُ الخلع مراد نه دی، ځکه چې دا مسئله د هدايې په بابُ الخلع کې ذکر شوې نه ده، له دې څخه يا د جامع صغير بابُ الخلع مراد دی، يا د کفاية المنتهي بابُ الخلع ځنې مراد دی، کوم چې تر هدايې مخکې ليکل شوی دی. (بناية ج:۵، ص:۵۹۸، طبع: بيروت)

**وإنما إلخ:** د دې حاصل دا دی چې کله مالک حمل آزاد کړي (د مال په عوض کې يا بېله عوضه)، نو که د آزادېدلو له وخت څخه وروسته په شپږو مياشتو کې دننه حمل (بچی) پيدا شي، نو دا به ګڼل کېږي چې د آزادولو په وخت کې حمل (بچی) د مور په نس کې موجود وو، ځکه چې د حمل کم از کم موده شپږ مياشتې دي.

## د مينځې د اولاد حکم

قَالَ: وَوَلَدُ الْأَمَةِ مِنْ مَوْلَاهَا حُرٌّ فرمايي: چې له مالک څخه به د مينځې بچی آزاد وي لِأَنَّهُ مَخْلُوقٌ مِنْ مَائِهِ ځکه چې هغه د مالک له نطفې څخه پيدا سوی دی فَيُعْتَقُ عَلَيْهِ نو ځکه به پر هغه آزادېږي هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ همدا اصل دی وَلَا مُعَارِضَ لَهُ فِيهِ او په دې کې د مالک لپاره هيڅ معارض نسته او دا اعتراض به نه کيږي چې په دې بچي کې د مينځې نطفه هم سته لِأَنَّ وَلَدَ الْأَمَةِ لِمَوْلَاهَا ځکه چې د مينځې بچی د هغې د مالک دی.

**اللغات:** ﴿حُرٌّ﴾ آزاد. ﴿مَخْلُوْق﴾ د نصر له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده: پيدا کړی سوی.

**تشريح:** مسئله ښکاره ده چې که د مالک له نطفې څخه د مينځې بچی پيدا سي. نو هغه بچی آزاد دی. ځکه چې د بچي د وجود سبب يعني مالک آزاد دی. نو ښکاره خبره ده چې بچی به هم آزاد وي. او أصل هم دغه دی چې د مالک له نطفې څخه پيدا سوی بچی به آزاد وي. او پاته سوه دا اعتراض چې په بچي کې خو د مينځې نطفه هم سته. نو دهغه په جواب کې فرمايي چې د مينځې نطفه هم د مالک (مولیٰ) په ملکيت کې ده. نو ګواکې بچی فقط د ملک له نطفې څخه پيدا سوی دی. لهذا هيڅ معارض پاته نه سو. نو ځکه به بچی آزاد وي.

## د پورتنی مسئلې يو صورت

وَوَلَدُهَا مِنْ زَوْجِهَا مَمْلُوكٌ لِسَيِّدِهَا او له خاوند څخه به د مينځې بچی د هغې د مالک مملوک (غلام) وي لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الْأُمِّ بِاعْتِبَارِ الْحَضَانَةِ ځکه چې (دلته) د مور جانب راجح دی د پرورش په اعتبار کولو سره أَوْ لِاسْتِهْلَاكِ مَائِهِ بِمَائِهَا يا د مينځې په نطفه کې د خاوند د نطفې هلاکېدلو (او مغلوبېدلو) په وجه وَالْمُنَافَاةُ مُتَحَقِّقَةٌ او (دلته) منافات (هم) ثابت دی وَالزَّوْجُ قَدْ رَضِيَ بِهِ او خاوند په دې راضي دی بِخِلَافِ وَلَدِ الْمَغْرُورِ په خلاف د دوکه سوي سړي د بچي لِأَنَّ الْوَالِدَ مَا رَضِيَ بِهِ ځکه چې پلار په دې راضي نه دی.

**اللغات:** ﴿حَضَانَة﴾ پرورش. پالنه. ﴿إِسْتِهْلَاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکېدل. نيستي کېدل (معدوم کېدل). ورکېدل. ﴿مَغْرُوْر﴾ د نصر له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده: دوکه سوی (چا ته چې دوکه ورکول سوې وي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک د خپلې مينځې نکاح ديو چا سره وکړي، او له هغه څخه د مينځې بچی پيدا سي، نو دا بچی به د مالک غلام وي، هغه که د مينځې خاوند آزاد وي. يا که غلام وي (يعني هغه که مالک د خپلې مينځې نکاح د آزاد سره کړې وي. يا د غلام سره. په دواړو صورتونو کې به د مينځې بچی د هغې د مالک غلام وي). يعني په دې مسئله کې به د پلار اعتبار نه کيږي. بلکې د مور اعتبار به کيږي او مور ته به ترجيح ورکول کيږي. وجه يې په لاندې عبارت کې بيان سوې ده.

**لترجح جانب إلخ**: فرمايي چې مور ته به په دوو وجهو ترجيح ورکول کيږي: ① يوه وجه دا چې د بچې د پالنې او پرورش حق مور ته حاصل دی. ② بله وجه دا چې کله له نطفې څخه بچی جوړ سي نو ګواکې د پلار نطفه د مور په نطفه کې ورکه او مغلوبه سي. ځکه چې بچی د مور ديو اندام په څېر وي، او د هغې د بدن سره موښتی وي. همدا وجه ده چې کوچنی له مور څخه د غچې يا پنسر په ذريعه را جلا کيږي (ځکه چې بچی د مور سره موښتی وي). نو د دې وجوهاتو پر بناء بچی د مور تابع کيږي. او دلته مور ديو مالک مينځه ده. نو د هغې بچی هم به د هغې د مالک تابع او غلام وي.

**والمنافاة متحققة إلخ**: دا ديو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چې ترجيح په هغه صورت کې يو شي ته ورکول کيږي. کله چې دواړو طرفونو ته دلائل او د دوو شيانو په مينځ کې منافات وي. نو د هغه جواب ورکوي. فرمايي چې دلته هم منافات سته. ځکه چې دلته د پلار او د مور د نطفې سره جنګ دی. د پلار نطفه غواړي چې بچی د پلار تابع سي او د مور نطفه غواړي چې د مور تابع سي او بچی غلام وګرځي. نو ځکه دلته د مور د پرورش په وجه او د هغې د اندام کېدلو په وجه د مور جانب ته ترجيح ورکول سوه. او کوچنی د مور تابع او غلام وګرځول سو.

**والزوج قد رضي به إلخ**: او پاته سو دا اعتراض چې په دې کې خو د خاوند (يعني د بچې پلار) نقصان دی چې د هغه بچی د بل چا غلام وګرځي. نو فرمايي چې خاوند د مينځې سره د نکاح کولو په وجه په خپل ضرر راضي سو. ځکه کله چې هغه د بل چا د مينځې سره نکاح وکړه. نو هغه په خپله په خپل حق کې ضرر ثابت کړی. لهذا د هغه به هيڅ پروا نه کيږي.

**بخلاف ولد المغرور إلخ**: د دې په خلاف که يو ښځه ووايي چې زه آزاده يم او بيا آزاد سړی (مثلاً خالد) د هغې سره نکاح وکړي او له هغې څخه يې بچی پيدا سي. وروسته معلومه سي چې دا ښځه خو د زيد مينځه ده. لهذا دا بچی به د زيد غلام شمارل کيږي. نو دغه بچي ته "وَلَدُ الْمَغْرُوْر" (د دوکه سوي سړي بچی) وايي. ځکه چې د هغه پلار ته دوکه ورکول سوې ده چې ښځه آزاده ده لهذا د هغې بچی

به هم آزاد وي، نو په داسي صورت کي بچی د پلار تابع ګرځي او آزاد به شمارل کیږي، ځکه چي دلته پلار په خپل ضرر یعني د خپل بچي په غلام کېدلو راضي نه دی، بلکي هغه ته دوکه ورکول سوې ده، نو ځکه به بچی پلار ته حواله کیږي او آزاد به ګرځي (خو پر پلار به د بچي قیمت لازم وي).

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

وَوَلَدُ الْحُرَّةِ حُرٌّ عَلىٰ كُلِّ حَالٍ او د آزادي ښځي بچی به په هر حالت کي آزاد وي لِأَنَّ جَانِبَهَا رَاجِحٌ ځکه چي د ښځي جانب راجح دی فَيَتَّبِعُهَا فِي وَصْفِ الْحُرِّيَّةِ نو د حُريت [آزادی] په وصف کي به بچی د خپلي مور تابع کیږي كَمَا يَتَّبِعُهَا فِي الْمَمْلُوكِيَّةِ وَالْمَرْقُوقِيَّةِ وَالتَّدْبِيرِ وَأُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ وَالْكِتَابَةِ لکه څرنګه چي بچی د خپلي مور تابع کیږي په مملوک کېدلو کي او په مدبر کېدلو کي او په اُم ولد کېدلو کي او په مکاتب کېدلو کي.

**اللغات:** ﴿مَمْلُوكِيَّة﴾ مملوک کېدل، د یو چا تر ملکیت لاندي کېدل (مراد ځني غلام کېدل دي).

﴿مَرْقُوقِيَّة﴾ غلام کېدل. ﴿التَّدْبِير﴾ مدبّر کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو بچي مور آزاده وي، نو د هغې بچی په هر صورت کي آزاد دی، هغه که د بچي پلار غلام وي یا آزاد وي (په هر صورت کي بچی آزاد شمارل کیږي)، ځکه چي د مور جانب خو هسي هم راجح وي، او چي کله مور آزاده هم وي نو بیا خو هیڅ خبره نسته. یعني په دې صورت کي به په درجه اولی بچی د مور تابع ګرځي او آزاد به وي، لکه د یو بچي مور چي کله مملوکه (مینځه) وي، یا مدبره وي، یا اُم ولد یا مکاتبه وي، نو په دې ټولو صورتونو کي بچی د مور تابع ګرځي او مملوک، مدبر، اُم ولد او مکاتب شمارل کیږي (یعني که مور یې اُم ولد وه، نو بچی به هم اُم ولد او د مالک تر مرګ وروسته به دواړه آزادیږي...)، همداسي به دلته هم بچی د مور تابع ګرځي او آزاد به شمارل کیږي.



# بَابُ العَبْدِ يُعْتَقُ بَعْضُهُ

(دا) باب د هغه غلام (په بیان کی) دی چي بعضی حصه يې آزاده کړی سي

**تشریح:** کله چي صاحب د کتاب د ټوله (پوره) غلام آزادولو له بیان څخه فارغ سو. نو اوس په دې باب کي د غلام د بعضي حصې د آزادولو بیان کوي. او څرنګه چي د ټوله غلام آزادول متفق علیه او کثیرُ الوقوع دي. او د هغه څه حصه آزادول مختلف فیه دي. نو ځکه يې د ټوله غلام د آزادولو احکام مخکي بیان کړل. او اوس د "عتق البعض" احکام بیانوي. (بناية ج:۵، ص:۶۰۲)

## د غلام بعضي حصه آزادول

وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَىٰ بَعْضَ عَبْدِهِ او کله چي مالک د خپل غلام بعضي حصه آزاده کړي عَتَقَ ذٰلِكَ الْقَدْرُ نو د هغه [حصې] په اندازه دا غلام آزاديږي وَيَسْعَىٰ فِي بَقِيَّةِ قِيمَتِهِ لِمَوْلَاهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا غلام د مالک لپاره په خپل پاته قیمت کي هڅه [او کسب] کوي [یعني کسب او خواري به کاږي چي مالک ته د خپلي پاته حصې قیمت ورکړي او په بشپړه توګه آزاد سي] وَقَالَا [*]: يُعْتَقُ كُلُّهُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ټوله غلام آزاديږي وَأَصْلُهُ أَنَّ الْإِعْتَاقَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ او د دې اصل دا دی چي د امام صاحب په نېز إعتاق متجزي کېدای سي فَيَقْتَصِرُ عَلَىٰ مَا أَعْتَقَ نو پر هغه مقدار به آزادي منحصر وي کوم [مقدار] چي مالک آزاد کړی وي وَعِنْدَهُمَا لَا يَتَجَزَّأُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز إعتاق متجزي کېدای نه سي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی فَإِضَافَتُهُ إِلَى الْبَعْضِ كَإِضَافَتِهِ إِلَى الْكُلِّ نو د دوی په نېز د غلام بعضي حصې ته د إعتاق نسبت کول د ټوله غلام وطرف ته د إعتاق د نسبت کولو په څېر دي فَلِهٰذَا يُعْتَقُ كُلُّهُ نو ځکه به د غلام ټوله حصه آزاديږي لَهُمَا: أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ د دوی دلیل دا دی: چي إعتاق د عتق ثابتولو ته وايي وَهُوَ قُوَّةٌ حُكْمِيَّةٌ او

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله : وقالا من أعتق بعضه عتق كله، والصحيح قول لا اه (رد المحتار ج:۳، ص:۱۶)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص:۲۳۳). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۰]

عتق يو حكمي [شرعي] قوت دی وَإِثْبَاتُهَا بِإِزَالَةِ ضِدِّهَا او دا قوت د خپل ضد په ختمولو سره ثابتيږي وَهُوَ الرِّقُّ الَّذِي هُوَ ضَعْفٌ حُكْمِيٌّ او هغه ايعني د قوت ضد] غلامتوب دی کوم چې يو حکمي [شرعي] کمزوري ده وَهُمَا لَا يَتَجَزَّآنِ او دا دواړه متجزي کېدلای نه سي فَصَارَ كَالطَّلَاقِ وَالْعَفْوِ عَنِ الْقِصَاصِ وَالِاسْتِيلَادِ نو دا د طلاق ورکولو او د قصاص معاف کولو [بخښلو] او د اُم ولد جوړولو په شير سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ بِإِزَالَةِ الْمِلْكِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې إعتاق د ملکيت په ليري کولو [ختمولو] سره د عتق ثابتولو ته وايي أَوْ هُوَ إِزَالَةُ الْمِلْكِ يا [په خپله] إعتاق د ملکيت ليري کولو ته وايي لِأَنَّ الْمِلْكَ حَقُّهُ ځکه چې ملکيت د مالک [مُعْتِق] حق دی وَالرِّقُّ حَقُّ الشَّرْعِ أَوْ حَقُّ الْعَامَّةِ او غلامتوب [غلاموالی] د شريعت حق دی يا د عوامو اعامو خلکو] حق دی وَحُكْمُ التَّصَرُّفِ مَا يَدْخُلُ تَحْتَ وِلَايَةِ الْمُتَصَرِّفِ او د تصرف حکم هغومره اندازه وي څومره چې د متصرّف تر ولايت لاندي داخل وي وَهُوَ إِزَالَةُ حَقِّهِ لَا حَقِّ غَيْرِهِ او هغه د خپل حق ختمول دي نه د بل چا حق وَالْأَصْلُ: أَنَّ التَّصَرُّفَ يَقْتَصِرُ عَلَى مَوْضِعِ الْإِضَافَةِ او أصل دا دی: چې تصرف د نسبت پر ځای منحصر [او محدود] کيږي ايعني د تصرف حکم تر هغه ځايه پوري پاتيږي، تر کومه ځايه پوري چې د هغه نسبت سوی وي] وَالتَّعَدِّي إِلَى مَا وَرَاءَهُ ضَرُورَةَ عَدَمِ التَّجَزِّي او له هغه څخه بغير [د بل ځای] وطرف ته [د تصرف] متجاوز کېدل د نه متجزي کېدلو په وجه سره کېدای سي وَالْمِلْكُ مُتَجَزِّئٌ او ملکيت متجزي دی كَمَا فِي الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ لکه په بيع او هبه کي اچي ملکيت متجزي کېدای سي] فَيَبْقَى عَلَى الْأَصْلِ نو ځکه به [د إعتاق] تصرف پر خپل أصل پاتيږي وَتَجِبُ السِّعَايَةُ او [پر غلام] به هڅه [او کسب] کول واجب وي لِاحْتِبَاسِ مَالِيَّةِ الْبَعْضِ عِنْدَ الْعَبْدِ ځکه چې د بعضي غلام قيمت د هغه سره محبوس [بندي] دی وَالْمُسْتَسْعَى بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ عِنْدَهُ او مستسعی [پر کوم غلام چې سعی او هڅه کول واجب وي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مکاتب په درجه کي دی لِأَنَّ الْإِضَافَةَ إِلَى الْبَعْضِ تُوجِبُ ثُبُوتَ الْمَالِكِيَّةِ فِي كُلِّهِ ځکه چې د بعضي غلام وطرف ته د إعتاق نسبت کول په ټوله غلام کي د ملکيت ثابتېدل واجبوي وَبَقَاءُ الْمِلْكِ فِي بَعْضِهِ يَمْنَعُهُ او د غلام په بعضي حصه کي [د مالک] ملکيت پاتېدل دي ليپاره مانع دي فَعَمِلْنَا بِالدَّلِيلَيْنِ بِإِنْزَالِهِ مُكَاتَبًا نو ځکه موږ د دغه غلام په مکاتب ګرځولو سره

په دواړو دليلونو عمل وکړي ايعني موږ دلته په دواړو دليلونو عمل وکړي او دغه غلام مو مکاتب وګرځوي ا إِذْ
هُوَ مَالِكٌ يَدًا لَا رَقَبَةً ځکه چي مکاتب د تصرّف مالک دی، نه د رقبې وَالسِّعَايَةُ كَبَدَلِ الْكِتَابَةِ او هڅه
[کسب] کول د بدلِ کتابت په څير دي فَلَهُ أَنْ يَسْتَسْعِيَهُ نو [ځکه] مالک ته دا اختيار [هم] سته
چي په غلام هڅه [او کسب] وکړي وَلَهُ خِيَارُ أَنْ يُعْتِقَهُ او هغه ته دا اختيار [هم] سته چي غلام آزاد
کړي لِأَنَّ الْمُكَاتَبَ قَابِلٌ لِلْإِعْتَاقِ ځکه چي مکاتب د إعتاق [آزادېدلو] قابل وي غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا عَجَزَ لَا يُرَدُّ إِلَى
الرِّقِّ خو کله چي [دغه غلام له سعی او کسب څخه] عاجز سي نو هغه به د غلامتوب وطرف ته نه ردول
کيږي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ لَا إِلَى أَحَدٍ ځکه چي دا ساقطول دي بغير د يو چا وطرف ته ايعني دا بېله وجهي او بغير له
مالک څخه ساقطول دي ا فَلَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ نو ځکه به فسخ نه قبلوي بِخِلَافِ الْكِتَابَةِ الْمَقْصُودَةِ په خلاف
د مقصود کتابت ايعني په خلاف د مکاتب جوړولو ا لِأَنَّهُ عَقْدٌ يُقَالُ وَيُفْسَخُ ځکه چي هغه يو داسي عقد
دی چي په هغه کي اقاله [هم] کېدای سي او فسخ [هم] کېدای سي وَلَيْسَ فِي الطَّلَاقِ وَالْعَفْوِ عَنِ
الْقِصَاصِ حَالَةٌ مُتَوَسِّطَةٌ او په طلاق کي او له قصاص څخه په معافی کي يو منځنی حالت [او
واسطه] نسته فَأَثْبَتْنَاهُ فِي الْكُلِّ تَرْجِيحًا لِلْمُحَرِّمِ نو ځکه موږ محرم ته [پر مبيح] په ترجيح ورکولو
سره په کُل کي هغه [طلاق يا قصاص] ثابت کړی وَالِاسْتِيلَادُ مُتَجَزِّئٌ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ
په نيز أُم ولد جوړول متجز کېدای سي حَتَّى لَوِ اسْتَوْلَدَ نَصِيبَهُ مِنْ مُدَبَّرَةٍ تر دې که مالک له مدبره
مينځي څخه خپله حصه أُم ولد جوړه کړي يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ نو پر هغه حصې به [استيلاد] منحصر
[محدود] وي ايعني فقط د هغه حصې په اندازه به مدبره مينځه اُم ولد وي ا وَفِي الْقِنَّةِ لَمَّا ضَمِنَ نَصِيبَ صَاحِبِهِ
بِالْإِفْسَادِ او په خالص مملوکه مينځه کي چي کله يو شريک د اخپل ملګري د حصې ا فاسدولو په
وجه د خپل ملګري د حصې ضامن سو ايعني کله چي يې خپل ملګري ته د هغه د حصې تاوان ورکړی ا
مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ نو د ضمان [تاوان ورکولو] په وجه هغه [د خپل ملګري د حصې] مالک سو فَكَمُلَ الِاسْتِيلَادُ
نو [اوس] استيلاد بشپړ سو ايعني نو ټوله مينځه اُم ولد وګرځېده ا.

**اللغات:** ﴿يَسْعٰى﴾ د فتح مضارع ده: کوښښ او هڅه کول (د يو چا په حق او حاجت پوره کولو کي هڅه کول). زحمت او خواري کښل. مراد ځني کسب او مزدوري کول دي. ﴿يَتَجَزَّى﴾ د تفعّل

مضارع ده: ټوکړه ټوکړه کېدل، جزءجزء کېدل، حصه حصه کېدل. ﴿التَّعَدِّي﴾ د تفعل اسم مصدر دی: تجاوز. ﴿إِحْتِبَاس﴾ د افتعال مصدر دی: بندي کېدل، محبوس کېدل، منع کېدل. ﴿إِسْتِيْلَاد﴾ د استفعال مصدر دی: اُم ولد جوړول، د خپلې مینځې سره د دې لپاره وطي کول چې بچی ځنې پیدا سي. (اُمِ ولد هغه مینځې ته وايي چې له مالک څخه حامله سي او بچی یې پیدا سي. اُمِ ولد مینځه د مالک تر مرګ وروسته آزادیږي)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د خپل غلام څه حصه آزاده کړي او څه حصه یې راوګرځوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز څومره حصه چې هغه آزاده کړې وي، په هغومره حصه کې آزادي واقع کیږي، او په پاته حصه کې د مخکې په څېر غلامتوب پاتیږي. او د پاته حصې لپاره به غلام کوښښ (سعایه) او ګټه کوي او مالک ته به یې ورکوي (چې پاته حصه یې هم آزاده سي). د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ټوله غلام آزادیږي او پر هغه سعایه هم واجب نه ده.

اصل خبره دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په إعتاق کې د تجزی امکان سته (یعني د امام صاحب په نېز دا صحیح دي چې یو وار د غلام یو جزء [حصه] آزاد کړی سي. او بل وار یې بل جزء [حصه] آزاد کړی سي)، لېکن د صاحبينو په نېز په إعتاق کې د تجزی امکان نسته (یعني د هغو په نېز دا صحیح نه دي چې غلام جزء جزء او حصه حصه کړی سي). همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی یعني د هغه په نېز هم په إعتاق کې تجزی کېدای نه سي. نو د صاحبينو او د امام شافعي په نېز د نصف او بعضي غلام آزادول داسې دي لکه د ټوله غلام آزادول. او د بعضي غلام وطرف ته د إعتاق نسبت کول داسې دي لکه د ټوله غلام وطرف ته د إعتاق نسبت کول. نو ځکه به ټوله غلام آزادیږي.

**دليل:** د صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دلیل دا دی چې إعتاق د عتق ثابتولو ته وایي. او عتق یو شرعي قوت (حکمي قوت) دی چې هغه په داسې وخت کې ثابتیږي کله چې د هغه ضد بالکل ختم کړی سي (عتق ته ځکه شرعي او حکمي قوت وايي چې آزاد کړی سوی غلام ته د شریعت، په حکم کې د تصرفاتو حق حاصلیږي. یعني: ولایت، قضاء، شهادت او داسې نور تصرفات). او د شرعي قوت یعني د عتق ضد رقیت دی کوم چې شرعي (حکمي) ضعف دی. لهذا تر څو چې په بشپړه توګه شرعي ضعف ختم سوی نه وي، تر هغه وخت پوري شرعي قوت ثابتېدای نه سي. او څرنګه چې په شرعي ضعف او شرعي قوت کې تجزی نه سي کېدای، نو ځکه به د دوی په مأخذ او مشتق یعني په عتق کې هم تجزی نه کیږي. او څرنګه چې په طلاق کې تجزی نه سي کېدای او په قصاص کې تجزی نه سي کېدای چې معافي پکښې وسي او په اُمِ ولد جوړولو کې تجزی نه سي کېدای. همداسې په إعتاق او

عتق کي هم تجزی ممکنه نه ده. نو په دې وجهو سره به د بعضي غلام په آزادولو سره ټوله غلام آزاديږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د إعتاق اصل معنیٰ ده "ملکيت ليري کول او په غلام کي عتق (آزادي) ثابتول". ځکه چي مولیٰ د غلام مالک وي او همدا ملکيت د مولیٰ (مالک) حق دی. پاته سو رقيت (غلامتوب) نو هغه خو يا د شريعت حق دی يا د عوامُ الناس حق دی. رقيت د شريعت حق په دې توګه دی چي کله کافر د الله له بندګۍ او غلامۍ څخه انکار وکړی نو الله هغه ته په دې توګه بدله ورکړه چي هغه يې د خپلو بندګانو غلام جوړ کړی. او رقيت د عوامو حق په دې توګه دی چي څرنګه مجاهدين د غنيمت مالونه تقسيموي. همداسي مجاهدين قيدي غلامان او مينځي هم په خپل مينځ کي تقسيموي (عنايه او بنايه). لنډه دا چي دا خبره تسليم ده چي ملکيت فقط د مولیٰ (مالک) حق دی. او هر مالکُ په دې دائره کي دومره تصرف کولای سي څومره چي د هغه په وس کي وي. او دلته د مالک په وس کي فقط ملکيت دی، نه رقيت (ځکه چي هغه خو يا د شريعت حق دی. يا د عوامُ الناس). نو ځکه هغه همدا خپل ملکيت ختمولای سي، نه رقيت. او څرنګه چي د انسان په ملکيت کي تجزی ممکنه ده. نو همداسي به په إعتاق کي هم تجزی ممکنه وي. او خبره په اصل کي دا ده چي تصرف پر هغه ځای منحصر کيږي او تر هغه ځايه پوري پاتيږي کوم ځای ته چي د هغه نسبت سوی وي. او له هغه ځای څخه د مخ وطرف ته هغه وخت تصرف متجاوز (او متعدي) کېدلای سي کله چي هغه (تصرف او ملکيت) متجزی کېدای نه سي، لېکن څرنګه چي دلته په دې مسئله کي د مالک ملکيت متجزي کېدای سي، نو ځکه به په اعتاق کي هم تجزی کيږي. او څرنګه چي مالک د خپل غلام نصف او بعضي حصه خرڅولای او هبه کولای سي. همداسي به هغه د خپل غلام نصف يا بعضي حصه هم آزادولای سي، د دې لپاره چي تصرف تر خپل أصل ځای پوري يعني تر موضعُ التصرف پوري باقي پاته سي.

**ويجب السعاية إلخ**: د دې حاصل دا دی چي کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په بعضي غلام کي عتق ثابت سي. نو د پاته بعضي حصې د خلاصون او آزادولو لپاره د هغه په نيز پر غلام سعايه او کته کول واجب دي. او د هغه په نيز دغه غلام د مکاتب په درجه کي دی، ځکه چي دلته دوې خبري دي: ① د بعضي غلام وطرف ته د إعتاق په نسبت کولو سره دا خبره څرګنديږي چي له ټوله غلام څخه د مالک ملکيت ختم سو. ځکه چي په عتق کي تجزی نسته. ② په بعضي غلام کي د مالک د ملکيت په پاتېدو سره دا خبره څرګنديږي چي دغه ټوله غلام اوس هم د مالک تر ملکيت لاندي (مملوک) دی. ځکه چي رقيت هم نه متجزي کيږي. او کله چي دلته دغه غلام د مکاتب په درجه وګرځول سي نو

په دغه دواړو خبرو عمل کول ممکن دي، نو ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله دغه غلام د مکاتب په درجه وګرځوی، ځکه چي په مکاتب کي هم بعضي حصه آزاده وي او بعضي حصه يې د مالک تر ملکيت لاندي وي، يعني هغه د رقبې په اعتبار سره مملوک او رقيق وي، او د قبضې او تصرف په اعتبار سره آزاد او مالک وي. او څرنګه چي په مکاتب کي مالک ته دا اختيار سته چي هغه له مکاتب څخه خپل د پاته حصې قيمت واخلي او بيا يې آزاد او ايله کړي، يا يې تر قيمت اخيستلو مخکي آزاد کړي، همداسي به په دې مُعتَقُ البعض غلام کي (چي د هغه بعضي حصه آزاده سوې ده) هم مالک ته دغه اختيار حاصل وي.

خو په مکاتب او مُعتَق البعض غلام کي فقط دومره فرق سته چي که چيري مُعتَق البعض غلام له کسب او مزدورۍ څخه عاجز سي، نو بيا به هغه بير ته د رقيت (غلامتوب) وطرف ته نه ردول کيږي (يعني بير ته به د غلامتوب وطرف ته نه واپس کيږي او پر هغه به د غلام مُهر نه لګول کيږي). لېکن که مکاتب له کسب څخه عاجز سي، نو هغه به بير ته د رقيت وطرف ته ردول کيږي، د دې فرق وجه دا ده چي که چيري مورږ د مُعتَق البعض لپاره هم دا حکم وکړو چي هغه به رقيت ته ردول کيږي او واپس به غلام ګرځول کيږي، نو دا به إسْقَاط لَا إِلَىٰ أَحَد وي، يعني له څه وجهي او مالک څخه بغير به إسقاط لازم سي، ځکه چي په إسقاط کي د معاوضې معنیٰ سته، او معاوضه د دوو خلګو په مينځ کي ثابتيږي، او دلته فقط يو سړی دی او هغه مُعتَق (آزادونکی) دی. نو ځکه به له کسب څخه د عاجزه کېدلو په صورت کي مُعتَقُ البعض د رقيت وطرف ته نه ردول کيږي، د دې په خلاف مکاتب به ځکه د عاجزه کېدلو په صورت کي رقيت ته ردول کيږي چي په هغه کي إسْقَاط إِلَى الْمُكَاتَب راځي او د معاوضې معنیٰ ثابتيږي، همدا وجه ده چي په بدل کتابت کي إقاله هم کېدای سي او هغه فسخ کېدای هم سي.

**وليس فى الطلاق إلخ**: له دې ځايه د صاحبينو او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي چي هغو إعتاق پر طلاق او پر قصاص او پر استيلاد (أم ولد جوړولو) قياس کړی وو، د جواب حاصل دا دی چي د إعتاق او مملوکيت په مينځ کي يو حالت او واسطه سته، لکه مکاتب چي د ذات په اعتبار سره مملوک وي لېکن د تصرف په اعتبار سره مالک وي، لېکن د طلاق او نکاح په مينځ کي يا د قصاص او عفو (معافی) په مينځ کي هيڅ واسطه نسته، ځکه که يو څوک د خپلي ښځي نصف ته طلاق ورکړي، نو کوم نصف ته چي طلاق ورکول سوی وي، هغه به حرام وي او پاته نصف به حلال وي، همداسي که چيري نصف قصاص معاف کړی سي، نو په هغه نصف کي به بدله او قصاص اخيستل حرام وي او په پاته نصف کي به قصاص حلال وي، نو په يوه شي کي به حلال او حرام دواړه سره

جمع سي، او قاعده دا ده چې کله په يوه مسئله کې حلال او حرام دواړه سره جمع سي، نو حرام غالب کيږي او حلال مغلوب ګرځي يعني حرام ته ترجيح حاصليږي، د قاعدې الفاظ دا دي: "إِذَا اجْتَمَعَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ أَوِ الْمُحَرِّمُ وَالْمُبِيحُ غَلَبَ الْحَرَامُ وَالْمُحَرِّم"، لهذا د دغه قاعدې په رڼا کې موږ د طلاق او قصاص په مسئله کې د حرمت وجانب ته ترجيح ورکړه او د کامل طلاق او د کامل عفو (معافي) حکم مو وکړی.

همدارنګه پر استيلاد هم د صاحبينو او امام شافعي قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه چې دويم فريق يعني امام صاحب رَحِمَهُ الله د استيلاد نه متجزي کېدل نه تسليموي، بلکې د هغه په نېز استيلاد هم متجزي کيږي (يعني د هغه په نېز په اُمِ ولد کې هم تجزی کېدای سي)، همدا وجه ده که يو مالک په مدبره مينځه کې فقط خپله حصه اُمِ ولد جوړه کړي، نو جائز دي او فقط د هغه حصې په اندازه مينځه اُمِ ولد ګرځي.

وفي القنة: په دې عبارت سره د دې خبرې نور وضاحت کوي چې استيلاد متجزي کېدای سي. مينځه چې مدبره نه وي بلکې خالص مينځه وي، نو هغې ته "قِنَّة" وايي، که يو قنه مينځه د دوو خلکو په مينځ کې مشترکه وه، او يوه شريک خپله حصه اُمِ ولد جوړه کړه، نو فقط د هغه حصه اُمِ ولد ګرځي، څرنګه چې په اُمِ ولد جوړولو سره هغه په خپله حصه کې د آزادۍ شائبه راوستله (ځکه چې د هغه تر مرګ وروسته به دا حصه آزاديږي)، نو ځکه به اوس دغه سړی (شريک) و هغه دويم سړي (دويم شريک) ته د هغه د حصې ضمان (تاوان) ورکوي، کله چې ضمان ورکړي نو اوس ټوله مينځه د دغه سړي کيږي او اوس پوره مينځه اُمِ ولد ګوري، تاسو اوګورئ! دلته اول د مينځې نيمه حصه اُمِ ولد وه، تر هغه وروسته يې بيا پاته حصه اُمِ ولد سوه، نو د دې مطلب همدا دی چې په اُمِ ولد کې تجزی کېدای سي يعني استيلاد متجزي کېدای سي.

## د مشترک غلام يوه حصه آزادول

وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ که چيرې يو غلام د دوو شريکانو په مينځ کې [مشترک] وي فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ او [بيا] په دوی کې يو شريک خپله حصه آزاده کړي عَتَقَ نو [د هغه حصه] آزاديږي فَإِنْ كَانَ مُوسِرًا فَشَرِيكُهُ بِالْخِيَارِ بيا که آزادونکی [مُعتِق] مالدار وي نو د هغه شريک ته اختيار دی إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ شَرِيكَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ که خوښه يې وي نو [خپله حصه] دې [هم] آزاده کړي او که خوښه يې وي نو له خپل شريک [مُعتِق] څخه دې د خپلې حصې د قيمت ضمان [تاوان] واخلي وَإِنْ

شَاءَ اِسْتَسْعَى الْعَبْدَ او که خوښه یې وي نو په غلام دي کسب [او مزدوري] وکړي [او د خپلې حصې قیمت دې ګټې واخلي] فَإِنْ ضَمِنَ نو که چیرې هغه [له آزادونکي شریک څخه] تاوان واخلي رَجَعَ الْمُعْتِقُ عَلَى الْعَبْدِ نو مُعتق [آزادونکی شریک] به پر غلام رجوع کوي [او له غلام څخه به هغه قیمت اخلي] وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ولاء به د همدغه مُعتق [آزادونکي] لپاره وي وَإِنْ أَعْتَقَ أَوِ اسْتَسْعَى او که شریک [خپله حصه هم] آزاده کړي یا [په غلام] کسب او [مزدوري] وکړي [او د خپلې حصې قیمت ګټې واخلي] فَالْوَلَاءُ بَيْنَهُمَا نو ولاء به د دوی دواړو په مینځ کې [مشترکه] وي وَإِنْ كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا او که مُعتق [آزادونکی] غریب وي فَالشَّرِيكُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ نو شریک ته به [همدغه] اختیار وي چې که خوښه یې نو [خپله حصه] دې آزاده کړي وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ او که خوښه یې وي نو په غلام دې کسب [او مزدوري] وکړي وَالْوَلَاءُ بَيْنَهُمَا فِي الْوَجْهَيْنِ او په دې دواړو صورتونو کې به [د غلام] ولاء د دوی دواړو په مینځ کې [مشترکه] وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی وَقَالَا[*] : لَيْسَ لَهُ إِلَّا الضَّمَانُ مَعَ الْيَسَارِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې شریک ته به [د مُعتق] د مالدار والي په صورت کې فقط د ضمان اختیار وي [یعني صاحبین فرمایي چې په دې مسئله کې شریک ته فقط دا اختیار سته چې که آزادونکی شریک (مُعتق) مالدار وي، نو دا دویم شریک دې له مُعْتِق څخه تاوان واخلي، او مُعتق دغه تاوان او قیمت له غلام څخه واپس نه سي اخیستلای] وَالسِّعَايَةُ مَعَ الْإِعْسَارِ او [د مُعتق] د غریبوالي په صورت کې به [شریک ته په غلام] د کسب [او مزدورۍ] کولو اختیار وي [یعني صاحبین فرمایي: که چیرې آزادونکی شریک (مُعتق) غریب وي، نو دا دویم شریک ته به فقط دا اختیار وي چې په غلام کسب او مزدوري وکړي او د خپلې حصې قیمت ګټې واخلي] وَلَا يَرْجِعُ الْمُعْتِقُ عَلَى الْعَبْدِ او مُعتق به [په اول صورت کې] پر غلام رجوع نه کوي [یعني کله چې مُعتق مالدار وي او دویم شریک له هغه څخه د خپلې حصې تاوان واخلي، نو صاحبین فرمایي چې په دې صورت کې به مُعتق له غلام څخه هغه تاوان او قیمت واپس نه اخلي] وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ولاء به [په دواړو صورتونو کې فقط] د مُعتق [آزادونکي شریک] لپاره وي.

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۷۱)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۱]

**اللغات:** ﴿ضَمَّنَ﴾ د تفعيل ماضي ده: د ضمان ذمه وار جوړول. له يو چا څخه ضمان (تاوان) اخيستل. ﴿اِسْتَسْعٰى﴾ د استفعال ماضي ده: په غلام زحمت او خواري کښل (هڅه او محنت په کول). يعني په غلام کسب او مزدوري کول (د دې لپاره چې غلام څه مال وګټي او د خپل پاته حصې قيمت اداء کړي او په پوره توګه آزاد سي). ﴿وَلَاء﴾ هغه ميراث کوم چې له آزاد کړى سوي (مُعْتَق) غلام څخه انسان ته حاصل سي، يا په عقد موالات سره انسان ته حاصل سي.

**تشريح:** صورت د مسئلې ښکاره دی، دلائل او تفصيل به په راتلونکي عبارت کي ذکر سي.

## د پورتنۍ مسئلې په باره کي دوه أصوله

وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ تَبْتَنِي عَلٰى حَرْفَيْنِ او دا مسئله پر دوو أصولو مبني ده أَحَدُهُمَا: تَجَزِّءُ الْإِعْتَاقِ وَعَدَمُهُ له هغوى څخه يو [أصول] د إعتاق متجزي کېدل او نه متجزي کېدل دي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي مو يې دا [أصول] بيان کړى وَالثَّانِي: أَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ لَا يَمْنَعُ سِعَايَةَ الْعَبْدِ عِنْدَهُ او دويم أصول دا دی: چي د مُعتق [آزادونکي شريک] مالدار والى د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د غلام له کسب [او مزدورۍ] څخه مانع نه دی وَعِنْدَهُمَا يَمْنَعُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مانع دی لَهُمَا فِي الثَّانِي قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام فِي الرَّجُلِ يُعْتِقُ نَصِيبَهُ: "إِنْ كَانَ غَنِيًّا ضَمِنَ وَإِنْ كَانَ فَقِيرًا سَعٰى فِي حِصَّةِ الْآخَرِ" [1] په دويم أصول کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ دا قول دی د هغه سړي په باره کي کوم چي خپله حصه آزاده کړه [يعني نبي ﷺ د هغه په باره کي وفرمايل]: "که چيري دا سړى مالدار وي نو [دويم شريک د حصې د قيمت] ضامن به وي او که فقير وي نو د بل [دويم شريک] د حصې لپاره دي [په غلام] سعى [او کسب] وکړي قَسَّمَ [په دې حديث کي] نبي ﷺ تقسيم کړى دى وَالْقِسْمَةُ تُنَافِي الشَّرِكَةَ او تقسيم د شرکت منافي دی وَلَهُ أَنَّهُ احْتُبِسَتْ مَالِيَّةُ نَصِيبِهِ عِنْدَ الْعَبْدِ د امام صاحب دليل دا دی: چي د شريک د حصې قيمت د دغه غلام سره محبوس [بندي] دی فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ نو ځکه به شريک ته دا اختيار وي چي له هغه څخه تاوان واخلي كَمَا إِذَا هَبَّتِ الرِّيحُ فِي ثَوْبِ إِنْسَانٍ وَأَلْقَتْهُ فِي صَبْغِ غَيْرِهِ حَتّٰى انْصَبَغَ بِهِ لکه باد چي د يو چا جامې [کپړې] يوړ سي او د بل چا په رنګ کي يې واچوي تر دې چي جامې رنګ سي فَعَلٰى صَاحِبِ الثَّوْبِ قِيمَةُ صَبْغِ الْآخَرِ نو [په دې صورت کي] د جامو پر مالک د هغه بل چا قيمت

[1] تخريج: أخرجه مسلم في باب ذكر سعاية العبد، ص:۶۵۳، حديث رقم: ۱۵۰۳ - ۳۷۷۳ بمعناه.

واجب دی مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا هغه كه د جامو مالک مالدار وي او كه غريب وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ ذكر كړی فَكَذَا هٰهُنَا نو همداسي دلته [هم دغه حكم] دی إِلَّا أَنَّ الْعَبْدَ فَقِيرٌ خو دا چې [كله] غلام فقير وي فَيَسْتَسْعِيهِ نو هغه به په دې غلام سعی [او كسب] كوي ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ يَسَارُ التَّيْسِيرِ بيا [د مُعتِق په مالدار والي كې] د ګزارې والا مالداري معتبر ده وَهُوَ أَنْ يَمْلِكَ مِنَ الْمَالِ قَدْرَ قِيمَةِ نَصِيبِ الْآخَرِ او هغه دا ده چې مُعتِق د دې بل [دويم شريک] د حصې د قيمت په اندازه مال لري لَا يَسَارُ الْغِنٰى نه د زيات مال مالداري [يعني دلته زياته مالداري مراد نه ده] لِأَنَّ بِهِ يَعْتَدِلُ النَّظَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځكه چې په همدې [ګزارې والا مالدارۍ] سره د دواړو طرفونو رعايت [او مصلحت] معتدل پاتې كيږي بِتَحْقِيقِ مَا قَصَدَهُ الْمُعْتِقُ مِنَ الْقُرْبَةِ ځكه مُعتِق چې د كوم ثواب نيت كړی وي هغه به [هم] ثابت سي وَإِيصَالِ بَدَلِ حَقِّ السَّاكِتِ إِلَيْهِ او چپ پاتېدونكي [دويم شريک] ته به د هغه حق [هم] ورسول سي.

**اللغات:** ﴿هَبَّتْ﴾ د نصر له باب ځخه د ماضي صيغه ده: هَبَّتِ الرِّيْحُ هُبُوْبًا: باد چلېدل. هوا رَ الوتل، كله چې د دې باب په صله كې "باء" راسي، نو معنىٰ يې راځي: په هوا كول (يعني چې باد يو شی يوسي او په هوا يې كړي)، ﴿إِنْصَبَغَ﴾ د انفعال ماضي ده: رنګېدل، په رنګ كې خشتېدل. ﴿سَاكِت﴾ د نصر اسمِ فاعل دی: خاموش، چپ پاتېدونكی، نه آزادونكی (دلته دويم شريک ته ساكت ځكه وايي چې هغه خپله حصه نه ده آزاده كړې بلكې له خپلې حصې ځخه يې سكوت اختيار كړی دی)

**تشريح:** صاحب د هدايې فرمايي چې دا مسئله (يعني كله چې مُعتِق [آزادونكی شريک] خپل دويم شريک ته د هغه د حصې مال [ضمان] وركړي، نو له غلام ځخه د هغه مال اخيستل يا نه اخيستل) پر دوو قاعدو او أُصولو مبني دي: ① اول أُصول دا دی چې د امام صاحب په رَحِمَهُ الله په نيز إعتاق متجزي كېدای سي او د صاحبينو په نيز إعتاق نه سي متجزي كېدای. لكه د باب په شروع كې چې دا خبره تېره سوه. ② دويم أُصول دا دی چې كله مُعتِق (آزادونكی شريک) مالدار وي، نو د هغه مالداري د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د غلام له ګټې او كسب كولو ځخه مانع نه ده او د صاحبينو په نيز مانع ده. د اولې قاعدې دلائل مخكې د باب په اول عبارت كې تېر سول.

په دويمه قاعده کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل حاصل دا دی چي په دې مسئله کي قياس په دوو شيانو کي د يو شي تقاضا کوي، يو د دې تقاضا کوي چي مُعتِق که مالدار وي او که غريب په دواړو صورتونو کي دي پر هغه د خپل شريک لپاره ضمان واجب وي، ځکه هغه د خپلې حصې آزادولو په وجه د خپل شريک حصه خرابه او فاسده کړه، ځکه چي اوس د هغه د شريک لپاره په خپله حصه کي تصرف کول او خپل ملکيت باقي ساتل ناممکن سو، او د إفساد ضمان د مالدارۍ او مفلسۍ په وجه سره نه مختلف کيږي.

دويم قياس د دې تقاضا کوي چي پر مُعتِق دي بالکل ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چي مُعتِق په خپله حصه کي تصرف کړی دی (او فقط خپله حصه يې آزاد کړې ده) او په خپله حصه او ملکيت کي تصرف کونکی سړی تجاوز کونکی او متعدّي نه شمارل کيږي او نه پر هغه ضمان واجبيږي که څه هم د هغه د تصرف ضرر د بل چا ملکيت ته متجاوز سي، مثلاً که يو سړی د خپل کښت او فصل له پرېکولو او رېبلو څخه وروسته پاته وچو بوټو ته اُور واچوي، او د اُور په وجه د هغه د همسايه د کښت څه حصه هم وسوځل سي، نو پر دغه سړي د خپل همسايه لپاره ضمان نه واجبيږي.

څرنګه چي دا دواړه قياسونه سره متضاد دي (او هر قياس په دې مسئله کي جلا تقاضا کوي)، نو ځکه صاحبين دا دواړه قياسونه پرېږدي او پر هغه حديث عمل کوي چي په صِحَاحِ سِته کي د حضرت ابو هريره ﷺ په حواله سره ذکر سوی دی، يعني نبي کريم ﷺ د داسي سړي په هکله وفرمايل کوم چي په مشترک غلام کي خپله حصه آزاده کړې وه: "إِنْ كَانَ غَنِيًّا ضَمِنَ وَإِنْ كَانَ فَقِيْرًا سَعٰى فِيْ حِصَّةِ الْآخَرِ"، يعني که هغه مُعتِق (آزادونکی شريک) مالدار وي نو هغه به د خپل شريک د حصې د قيمت ضامن وي (يعني پر هغه به د خپل شريک د حصې لپاره ضمان او تاوان واجب وي) او که هغه غريب وي، نو د شريک د حصې لپاره دي کوښښ (او ګټه) وکړي (يعني په غلام دي کسب او ګټه وکړي او د پاته حصې قيمت او ضمان دي غلام اداء کړي)، په دې حديث کي د مُعتِق (آزادونکي شريک) د غربت او مالدارۍ په اعتبار سره نبي کريم ﷺ تقسيم کړی دی، او تقسيم د شرکت منافي دی، لهذا که مُعتِق (آزادونکی شريک) مالدار وي، نو فقط هغه به ضامن وي او پر غلام به کسب او مزدوري واجب نه وي، او که مُعتِق غريب وي، نو پر غلام به کسب او مزدوري واجب وي، نو له دې څخه معلومه سوه چي د مُعتِق مالداري د غلام له کسب او مزدورۍ څخه مانع ده.

**وله إلخ**: د امام صاحب دليل دا دی چي د شريک د حصې قيمت د دغه غلام سره محبوس پاته سو (يعني ګواکي غلام د دې شريک د حصې قيمت را وګرځوی او له شريک څخه يې منع کړی)، نو ځکه به شريک ته اختيار وي چي له هغه څخه د خپل قيمت او مال ضمان واخلي، يعني په غلام

کسب او مزدوري وکړي، او دا مسئله داسي ده لکه ديو سړي جامې چي باد يووسي او جامې ديو رنګرېز د رنګولو په ټپ کې ولوېږي چي د هغه په وجه جامې رنګ سي، يعني په جامو کي رنګ جذب سي، نو په دې صورت کي د جامو پر مالک واجب دي چي د رنګرېز د رنګ قيمت ورکړي، هغه که د جامو مالک مالدار وي او غريب وي، ځکه چي د هغه سره د رنګرېز رنګ محبوس پاته سو.
نو په دې وجه د رنګريز لپاره تاوان اخيستل جائز دي، نو همدغسي حکم دلته هم دی چي شريک به له غلام څخه خپل مال اخلي، او که غلام بالکل محتاج او فقير وي، نو په هغه دي کسب او مزدوري وکړي او خپل مال دي ځني واخلي.

او د صاحبينو د ذکر سوي حديث جواب دا دئ چي نبي ﷺ د شرط په توګه په تقسيم کړی دی، يعني سعي او کسب يې د مُعتق (آزادونکي شريک) پر غربت معلق کړي دی، او دا د مُعتق د مالدارۍ په وخت کي له استسعاء (يعني په غلام د کسب او مزدورۍ کولو) څخه منافي نه دي، ځکه کوم شی چي پر شرط معلق کړی سي نو د شرط د وجود په وخت کي د هغه موجودېدل خو ضروري دي، لېکن د شرط د نشتوالي (ناموجودوالي) په وخت کي د هغه نيستي کېدل (او نه موجودېدل) ضروري نه دي، مثلاً که يو څوک خپل غلام ته ووايي: "إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتَ حُرٌّ" (که چيري ته کور ته داخل سې، نو آزاد يې)، که په دې صورت کي غلام کور ته داخل سي نو هغه خو يقيناً آزادېږي، لېکن د نه داخلېدلو په صورت کي نه آزادېدل ضروري نه دي بلکي آزادېدای هم سي په دې توګه چي مالک هغه ته له شرط څخه بغير "أَنْتِ حُرٌّ" ووايي، نو همداسي دلته هم د مُعتق د مالدار والي باوجود په غلام کسب او مزدوري کېدای سي، معلومه سوه چي د مُعتق مالداري په غلام د کسب او مزدورۍ کولو څخه مانع نه ده.

ثم المعتبر إلخ: د دې حاصل دا دی چي دلته پر آزادونکي سړي د ضمان د وجوب لپاره د هغه په حق کي يَسَارِ تَيْسِير معتبر دی، يعني که د هغه سره دومره مال وي چي د خپل شريک حصه په اداء کړي او دغه مال د هغه له ضروریاتو (يعني د هغه او د عيال له نفقې) څخه فارغ وي، نو هغه به مالدار ګڼل کېږي (مطلب دا که هغه ګزارې والا مال لري او ګزاره يې په کېږي، نو مالدار به ګڼل کېږي) او دلته يَسَارِ غِنَاء مراد نه دی چي د هغه سره به ډېر زيات مال وي؛ ځکه چي په يَسَارِ تَيْسِير (يعني د ګزارې په مال کي) د ضمان په واجبولو کي د دواړو شريکانو فايده سته او د دواړو په حق کي شفقت او مصلحت سته، ځکه چي په دې سره به مُعتق (آزادونکې شريک) ته د هغه خپل مقصود (يعني ثواب او نېکي) حاصله سي او دويم شريک ته به د خپل حق عوض حاصل سي. والله أعلم وعلمه أتم

## پر پورتنۍ مسئلې يوه تخريج

ثُمَّ التَّخْرِيجُ عَلىٰ قَوْلِهِمَا ظَاهِرٌ بيا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول تخريج ايعني د تيري مسئلې حکم را ايستل ا ښکاره دي فَعَدَمُ رُجُوعِ الْمُعْتِقِ بِمَا ضَمِنَ عَلَى الْعَبْدِ لِعَدَمِ السِّعَايَةِ عَلَيْهِ فِي حَالَةِ الْيَسَارِ نو د مُعتق لپاره پر غلام د ضمان رجوع نه کول ځکه دي ايعني آزادونکي به ځکه له غلام څخه د تاوان مال واپس نه اخلي ا چې د مالدارۍ په حالت کي پر غلام سعي [او کسب] کول واجب نه دي وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ولاء د مُعتق [آزادونکي] لپاره ده لِأَنَّ الْعِتْقَ كُلَّهُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې ټوله عتق د هغه له طرفه [واقع سوی] دی لِعَدَمِ التَّجَزِّيءِ ځکه چې [عتق] نه متجزي کيږي وَأَمَّا التَّخْرِيجُ عَلىٰ قَوْلِهِ فَخِيَارُ الْإِعْتَاقِ لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِي الْبَاقِيْ او کوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول تخريج کول دي نو [شريک ته د خپلې حصې] د آزادولو اختيار سته ځکه چې په پاته حصه کي د هغه ملکيت قائم دی إِذِ الْإِعْتَاقُ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ ځکه چې اعتاق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز متجزي کيدای سي وَالتَّضْمِينُ لِأَنَّ الْمُعْتِقَ جَانٍ عَلَيْهِ بِإِفْسَادِهِ نَصِيبَهُ او د ضمان [تاوان] اخيستلو حق په دې وجه [شريک ته] سته چې مُعتق د هغه د حصې په فاسدولو سره پر هغه ظلم کونکی دی حَيْثُ امْتَنَعَ عَلَيْهِ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ وَنَحْوُ ذٰلِكَ مِمَّا سِوَى الْإِعْتَاقِ وَتَوَابِعِهِ وَالْاِسْتِسْعَاءُ ځکه چې [اوس] پر شريک له آزادولو او د هغه له توابعو او استسعاء څخه بغير خرڅول او هبه کول ممتنع دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَيَرْجِعُ الْمُعْتِقُ بِمَا ضَمِنَ عَلَى الْعَبْدِ او [د امام صاحب په نيز به] مُعتق پر غلام د ضمان رجوع کوي لِأَنَّهُ قَامَ مَقَامَ السَّاكِتِ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چې د ضمان اداء کولو په وجه هغه د ساکت [دويم شريک] قائم مقام سو وَقَدْ كَانَ لَهُ ذٰلِكَ بِالْاِسْتِسْعَاءِ او د ساکت لپاره دا اختيار د استسعاء په ذريعه [حاصل] وو فَكَذٰلِكَ لِلْمُعْتِقِ نو همداسي به د مُعتق لپاره [هم] دا اختيار [حاصل] وي وَلِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ضِمْنًا او په دې وجه [هم] چې مُعتق د ضمان اداء کولو په وجه د دې غلام ضمناً مالک سو فَيَصِيرُ كَأَنَّ الْكُلَّ لَهُ نو داسي به سي لکه ټوله غلام چې د هغه لپاره وي وَقَدْ عَتَقَ بَعْضُهُ حالانکي هغه د غلام بعضي حصه آزاده کړې ده فَلَهُ أَنْ يُعْتِقَ الْبَاقِيْ نو هغه ته دا اختيار سته چې پاته حصه آزاده کړي أَوْ يَسْتَسْعِيَ إِنْ شَاءَ يا که وغواړي نو [په غلام] دي کسب [او مزدوري] وکړي وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ فِي هٰذَا الْوَجْهِ او په دې صورت

کي به ولاء د مُعتق لپاره وي لِأَنَّ الْعِتْقَ كُلَّهُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي ټوله عتق د هغه له طرفه او واقع سوی ا دی حَيْثُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چي د ضمان په اداء کولو سره هغه د دغه [ټوله] غلام مالک سو.

**اللغات:** ﴿وِلَاء﴾ هغه ميراث کوم چي له آزاد کړی سوي (مُعْتَق) غلام څخه حاصل سي. يا له عقد موالات څخه حاصل سي. ﴿يَسَار﴾ مالداري، مالدار والی. ﴿مُعتِق﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: آزادونکی (څوک چي غلام آزاد کړي). ﴿جَانِي﴾ د ضرب اسمِ فاعل دی: مجرم، جنايتکار. (ظالم).

**تشريح:** څرنګه چي د تېر عبارت مسئله پر دوو جلا قاعدو او اُصولو مبني وه. او هغه دواړه اُصول د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په مينځ کي مختلف فيه وو. نو ځکه به د مسئلې تخريج هم د دواړو اُصولو مطابق جلا جلا وي. د صاحبينو په نېز به د دې مسئلې تخريج داسي وي چي کله د هغه په نېز په إعتاق کي تجزی کېدای نه سي نو په دواړو شريکانو کي چي کوم شريک غلام آزاد کړي. نو ټوله غلام به د هغه له طرفه آزاديږي. او څرنګه چي د دې حضراتو (صاحبينو) په نېز د مُعتق شريک مالداري د غلام له استسعاء څخه مانع ده. نو ځکه به دويم شريک ته فقط د خپلي حصې د قيمت اخيستلو حق وي چي هغه به دئ له مُعتق څخه اخلي او د غلام ولاء به ټوله مُعتق ته حاصليږي. ځکه چي ټوله غلام د هغه له طرفه آزاد سوی دی.

د امام صاحب پر اُصول به د دې مسئلې تخريج داسي وي چي کله د هغه په نېز په إعتاق کي تجزی کېدای نه سي، او دلته اول شريک (مُعتق) فقط خپله حصه آزاد کړې ده. نو ځکه به د دويم شريک حصه (په غلام کي) قائم پاته وي. او په هغه حصه کي به د دويم شريک ملکيت باقي وي. نو ځکه به دويم شريک ته د خپلي حصې آزادولو اختيار هم وي. همدارنګه هغه ته به له مُعتق څخه د خپلي حصې د ضمان اخيستلو اختيار هم وي: ځکه کله چي اول شريک (مُعتق) خپله حصه آزاده کړه نو اوس د دويم شريک لپاره له إعتاق او د إعتاق له توابعو يعني له اُم ولد يا مکاتب او مدبر جوړولو څخه بغير په دې غلام کي د خرڅولو او هبه کولو ټولي لاري بندي سوې. يعني اوس دويم شريک خپله حصه نه خرڅولای سي او نه يې هبه کولای سي. ځکه چي اول شريک (يعني مُعتق) د خپلي حصې په آزادولو سره د هغه حصه خرابه او فاسده کړه. او دا د هغه په حق کي يو قسم ظلم دی. نو ځکه به دويم شريک ته د ضمان اخيستلو اختيار او حق هم حاصل وي. خو کله چي مُعتق دا ضمان دويم شريک ته ورکړي نو بيا به مُعتق ته دا اختيار او حق وي چي هغومره مال له غلام څخه واپس واخلي. ځکه چي مُعتق تر ضمان اداء کولو وروسته د دويم شريک قائم مقام سو. او دويم شريک ته دا

حق وو چې په غلام کسب او ګټه وکړي او خپل د حصې مال ځني واخلي، لهذا مُعتِق ته به هم دغه حق حاصل وي.

د دې سلسلې دويم دليل دا دی چې کله مُعتِق ضمان اداء کړی نو هغه ضمناً د ټوله غلام مالک سو. او څرنګه چې هغه اول فقط خپله حصه آزاد کړې وه، نو ځکه اوس به هغه ته د غلام آزادولو حق هم حاصل وي، او دا حق به هم ورته حاصل وي چې په غلام کسب او مزدوري وکړي او خپل مال ځني واخلي. او تر ضمان ورکولو وروسته به همدغه مُعتِق ته د غلام ټوله ولاء حاصليږي، ځکه چې ټوله إعتاق د هغه له طرفه ثابت سوی دی.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَفِي حَالِ إِعْسَارِ الْمُعْتِقِ إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ او د مُعتِق [آزادونکي] د غريبوالي په حالت کي که [ساکت] شريک وغواړي نو خپله حصه دي [هم] آزاده کړي لِبَقَاءِ مِلْكِهِ ځکه چې د هغه ملکيت پاته دی وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى او که وغواړي نو [په غلام] دي کسب [او مزدوري] وکړي. لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَالْوَلَاءُ لَهُ فِي الْوَجْهَيْنِ او په دواړو صورتونو کي به د ده [ساکت شريک] لپاره [هم] ولاء وي لِأَنَّ الْعِتْقَ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې عتق د ده له طرفه [هم واقع سوی] دی وَلَا يَرْجِعُ الْمُسْتَسْعَى عَلَى الْمُعْتِقِ بِمَا أَدَّى او مستسعیٰ [غلام] به پر مُعتِق په هغه مال سره رجوع نه کوي کوم چې هغه اداء کړی دی بِإِجْمَاعٍ بَيْنَنَا په اتفاق سره زموږ [د امامانو] لِأَنَّهُ يَسْعَى لِفِكَاكِ رَقَبَتِهِ ځکه چې هغه خو خپل د غاړي د خلاصولو لپاره هڅه [او کسب] کوي وَلَا يَقْضِي دَيْنًا عَلَى الْمُعْتِقِ او داسي قرض نه اداء کوي کوم چې پر مُعتِق [لازم] وي إِذْ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِعُسْرَتِهِ ځکه چې د خپل غربت په وجه به پر مُعتِق هيڅ شی [هم] لازم نه وي بِخِلَافِ الْمَرْهُونِ إِذَا أَعْتَقَهُ الرَّاهِنُ الْمُعْسِرُ په خلاف د مرهون غلام کله چې هغه غريب راهن آزاد کړي لِأَنَّهُ يَسْعَى فِي رَقَبَتِهِ قَدْ فُكَّتْ ځکه چې [هلته] مرهون غلام د خپل داسي غاړي لپاره هڅه [او کسب] کوي چې هغه خلاصه کړی سوې [آزاده کړی سوې] ده أَوْ يَقْضِي دَيْنًا عَلَى الرَّاهِنِ يا هغه يو داسي قرض اداء کوي کوم چې پر راهن [لازم] دی فَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ نو په همدې وجه هغه پر راهن رجوع کولای سي وَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ فِي الْيُسْرِ كَقَوْلِهِمَا او د مالدار [مُعتِق] په باره کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول په څير دی وَقَالَ فِي الْعُسْرِ: يَبْقَى

نَصِيبُ السَّاكِتِ عَلَى مِلْكِهِ يُبَاعُ وَيُوهَبُ او د غريب [مُعتق] په باره کې هغه فرمايلي دي: چې د ساکت شريک [يعني د دويم شريک] حصه به د هغه په ملکيت کې باقي پاته وي چې هغه به خرڅول کېداى او هبه کېداى سي لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى تَضْمِينِ الشَّرِيكِ لِإِعْسَارِهِ ځکه چې د اول شريک [مُعتق] د غريبوالي په وجه له هغه څخه د ضمان [تاوان] اخيستلو هيڅ صورت نسته وَلَا إِلَى السِّعَايَةِ او نه [په غلام] د کسب کولو [هيڅ صورت سته] لِأَنَّ الْعَبْدَ لَيْسَ بِجَانٍ وَلَا رَاضٍ بِهِ ځکه چې غلام خو نه مجرم [جنايتکار] دی او نه په آزادۍ راضي دی وَلَا إِلَى إِعْتَاقِ الْكُلِّ او نه د ټوله غلام د آزادولو [هيڅ صورت سته] لِلْإِضْرَارِ بِالسَّاكِتِ ځکه چې [په دې کې] د ساکت شريک نقصان دی فَتَعَيَّنَ مَا عَيَّنَّاهُ نو کوم څه چې موږ متعين کړه [چې د ساکت شريک حصه به د هغه په ملکيت کې باقي پاته وي] فقط هغه متعين سوه قُلْنَا: إِلَى الِاسْتِسْعَاءِ سَبِيلٌ موږ جواب ورکوو: چې [په غلام] د کسب [او مزدورۍ] کولو لاره سته لِأَنَّهُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى الْجِنَايَةِ بَلْ يَبْتَنِي السِّعَايَةُ عَلَى احْتِبَاسِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې استسعاء جنايت [جرم کولو] ته محتاج نه ده بلکې استسعاء د قيمت پر احتباس مبني ده [چې دغه غلام د ساکت شريک قيمت محبوس کړی دی] فَلَا يُصَارُ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الْقُوَّةِ الْمُوجِبَةِ لِلْمَالِكِيَّةِ وَالضَّعْفِ السَّالِبِ لَهَا فِي شَخْصٍ وَاحِدٍ لهذا [فقط] په يوه غلام کې به دواړې خبرې يعني قوت کوم چې د ملکيت سبب دی او ضعف چې هغه د دې قوت سلبونکی دی نه جمع کيږي.

**اللغات:** ﴿إِعْسَار﴾ د افعال مصدر دی: تنګلاسي، غربت (غريبوالی)، ﴿فِكَاك﴾ د نصر مصدر دی: خلاصول (په اصل کې د قيدي او بندي لپاره استعماليږي، يعني قيدي له زولنو څخه خلاصول)، خوشي کول، ﴿نَصِيب﴾ حصه، برخه، ﴿تَضْمِين﴾ د تفعيل مصدر دی: د ضمان ذمه وار جوړول، له يو چا څخه ضمان (تاوان) اخيستل، ﴿لَا يَفْتَقِرُ﴾ د افتعال نفي صيغه ده: محتاج کېدل، مجبور کېدل، ﴿لَا يُصَار﴾ د دې معنیٰ ده: رجوع به نه کيږي، نه به ګرځول کيږي، ﴿سَالِب﴾ د نصر اسمِ فاعل دی، سَلَبَ يَسْلُبُ سَلْبًا و سَلَبًا: سلبول، يو شی په زور اخيستل.

**تشريح:** مخکې چې کومې مسئلې ذکر سوې د هغوی تعلق د مُعتق (آزادونکي) د يَسار او مالدارۍ سره وو، اوس د مُعتق د إعسار او غربت سره اړوند مسئلې بيانيږي، چې د هغوی تفصيل دا دی که مُعتق غريب او مفلس وي نو بيا به د هغه ساکت شريک ته دوه اختياره حاصل وي (ساکت شريک دويم شريک ته وايي، يعني يو شريک خو مُعتق دی او بل ساکت شريک دی، ساکت ځکه ورته وايي

چي هغه خپله حصه نه ده آزاده کړې بلکي سکوت يې اختيار کړی دی. نو د مُعتق د غربت په صورت کي هغه ته دوه اختياره حاصل دي): ① که خوښه يې وي نو خپله حصه دي آزاده کړي، ځکه چي د دغه غلام په پاته حصه کي د هغه ملکيت پاته دی. ② او که خوښه يې وي، نو په دې غلام دي کسب او خواري وکاږي او د خپلي حصې قيمت دي ځني واخلي، ځکه چي د هغه د حصې قيمت د غلام سره محبوس دی (يعني ګواکي غلام د هغه د حصې قيمت راګرځولی دی). او په دې دواړو صورتونو کي به شريک ته د خپلي حصې ولاء حاصليږي، ځکه چي په دې دواړو صورتونو کي د هغه له طرفه هم (په خپله حصه کي) عتق واقع سوی دی. او که چيري دويم صورت وي يعني ساکت شريک په غلام کسب او مزدوري وکړي. نو د امام صاحب او صاحبينو په اتفاق دغه غلام له مُعتق شخصه خپل مال واپس نه سي اخيستلای (يعني په دې صورت کي بالاتفاق غلام ته دا حق نسته چي پر مُعتق رجوع وکړي او خپل مُکتسب مال ځني واخلي)، ځکه چي دغه غلام خو د خپلي غاړي د آزادولو لپاره کسب او مزدوري کوي، او يو داسي قرض نه اداء کوي چي هغه د مُعتق پر ذمه واجب او لازم وي او غلام ته د رجوع حق حاصل سي، ځکه چي مُعتق خو له مخکي شخه غريب او مفلس دی. لهذا پر هغه باندي د يو شي د لازمېدلو هيڅ لاره نسته، نو په دې وجه غلام له مُعتق شخه مُکتسب مال واپس نه سي اخيستلای. په خلاف د هغه غلام کوم چي مرهون وي او راهن هغه آزاد کړی وي په داسي حال کي چي راهن د غربت په وجه د مرتهن قرض نه سي اداء کولای. نو په دې صورت کي به غلام خپل قيمت په کسب او مزدوري ګټي او مرتهن به يې ورکوي، بيا به يې له راهن شخه واپس اخلي (يعني د رهن په صورت کي غلام ته دا حق سته چي پر راهن رجوع وکړي او خپل مُکتسب مال ځني واخلي). ځکه چي دلته غلام د خپلي غاړي لپاره کسب او مزدوري کړې ده. حال دا چي د هغه غاړه له مخکي شخه آزاده سوې ده (ځکه چي راهن هغه آزاد کړی وو)، نو ځکه به دا غلام له راهن شخه هغه مال واپس اخلي.

**وقول الشافعي إلخ:** فرمايي چي د مُعتق د مالدار والي په صورت کي د امام شافعي قول هم د صاحبينو د قول په شير دی. ليکن که مُعتق غريب او مفلس وي نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په دې صورت کي به د غلام پاته حصه د ساکتِ شريک (دويم شريک) په ملکيت کي پاته وي او هغه ته به هر ډول اختيار حاصل وي که يې خرڅوي، يا يې هبه کوي: ځکه هغه نه له معتق شخه ضمان اخيستلای سي (ځکه چي مُعتق له مخکي شخه غريب او مفلس دی)، او نه په غلام کسب او مزدوري کولای سي. ځکه د مُعتق د آزادولو په وجه غلام مجرم نه دی. ځکه چي غلام په دې راضي نه دی (بلکي د غلام له رضاء شخه بغير مُعتق هغه آزاد کړی دی). لهذا کله چي د غلام هيڅ جرم او

خطاء نسته، نو بيا به په څه وجه په هغه مظلوم کسب او مزدوري کيږي!. همدارنګه د ټوله غلام آزادولو هم هيڅ صورت نسته؛ ځکه چي په دې کي ساکت شريک نقصان دی. نو بس يوه لاره پاته سوه يعني ساکت شريک به د خپلي حصې مالک وي او په خپله حصه کي به هغه ته د هر ډول تصرف کولو اختيار وي.

**قلنا إلخ:** صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دغه قول په جواب کي فرمايي چي په غلام د کسب او مزدورۍ کولو لپاره دا ضروري نه دي چي هغه به مجرم او جنايتکار وي بلکي د غلام سره د دويم شريک مال او ملکيت محبوس دی، نو په دې وجه په دغه غلام کسب او مزدوري کول ممکن دي، نو ځکه به په غلام کسب او مزدوري کيږي، د دې لپاره چي په يوه غلام کي د ملکيت موجب قوت يعني "عتق" او د دغه قوت سلبونکې شی يعني رقيت سره جمع نه سي.

## پر پورتنی مسئلې يوه بله تخريج

قَالَ: وَلَوْشَهِدَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشَّرِيكَيْنِ عَلَى صَاحِبِهِ بِالْعِتْقِ فرمايي: که چيري له دواړو شريکانو څخه هر يو پر خپل ملګري د غلام آزادولو ګواهي ورکړي سَعَى الْعَبْدُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِهِ نو غلام به له دوی څخه د هر يوه لپاره د هغه په حصه کي هڅه [او کسب] کوي [يعني غلام به د هر يوه د حصې لپاره خواري کاري او د هغه حصه به اداء کوي] مُوسِرَيْنِ كَانَا أَوْ مُعْسِرَيْنِ هغه که دوی دواړه مالداران [شتمن] وي يا غريبان وي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دی] وَكَذَا إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا مُوسِرًا وَالْآخَرُ مُعْسِرًا او همدارنګه که له دوی څخه يو مالدار وي او بل غريب وي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَزْعُمُ أَنَّ صَاحِبَهُ أَعْتَقَ نَصِيبَهُ ځکه چي هر يو له دوی څخه دا ګومان کوي چي د هغه ملګري خپله حصه آزاده کړې ده فَصَارَ مُكَاتَبًا فِي زَعْمِهِ عِنْدَهُ نو د ده د ګومان مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دا غلام] مکاتب سو وَحَرُمَ عَلَيْهِ الِاسْتِرْقَاقُ او پر ده غلام جوړول حرام سو [يعني دا ورته حرام سو چي خپله حصه غلام وګرځوي] فَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ نو ځکه به د خپل ځان په حق کي د ده تصديق کيږي فَيُمْنَعُ مِنِ اسْتِرْقَاقِهِ نو له جوړولو څخه به منع کيږي وَيَسْتَسْعِيهِ لېکن دئ به په غلام سعايه [کسب او مزدوري] کوي لِأَنَّا تَيَقَّنَّا بِحَقِّ الِاسْتِسْعَاءِ ځکه چي موږ ته دا يقين دی چي [ده ته] د استسعاء حق حاصل دی كَاذِبًا كَانَ أَوْ صَادِقًا هغه که دئ [په خپل دعویٰ کي] ريښتونی وي يا درواغجن وي لِأَنَّهُ مُكَاتَبُهُ أَوْ مَمْلُوكُهُ ځکه چي غلام به يا د ده مکاتب وي يا به يې مملوک وي فَلِهَذَا يَسْتَسْعِيَانِهِ نو

ځکه هغه په ادواړو کي په هر یوه ا سعایه کولای سي وَلَا یَخْتَلِفُ ذٰلِكَ بِالْیَسَارِ وَالْإِعْسَارِ او په مالداری او غربت سره به دا حکم نه مختلف کیږي لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْحَالَيْنِ فِي أَحَدِ شَيْئَيْنِ ځکه چي اد مالداري او غربت ا په دواړو حالتونو کي مالک [د إعتاق دعوىٰ کونکي] ته په دوو شیانو کي د یوه شي حق سته لِأَنَّ یَسَارَ الْمُعْتِقِ لَا یَمْنَعُ السِّعَایَةَ عِنْدَهُ ځکه چي د مُعتِق [آزادونکي شریک] مالداري د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د غلام] له سعایه څخه مانع نه ده وَقَدْ تَعَذَّرَ التَّضْمِینُ لِإِنْکَارِ الشَّرِیكِ او د شریک د انکار په وجه ضمان [تاوان] اخیستل ناممکن سو فَتَعَیَّنَ الْآخَرُ وَهُوَ السِّعَایَةُ نو ځکه [فقط] دویم شی متعین سو چي هغه سعایه [د غلام کسب او مزدوري] کول دي وَالْوَلَاءُ لَهُمَا او ولاء به د دواړو لپاره وي لِأَنَّ کُلًّا مِنْهُمَا یَقُولُ عَتَقَ نَصِیبُ صَاحِبِي عَلَیْهِ بِإِعْتَاقِهِ وَوَلَاؤُهُ لَهُ ځکه چي له دوی دواړو څخه هر یو دا خبره کوي چي زما د ملګري حصه د هغه په آزادولو سره آزاده سوې ده نو د هغه د حصې ولاء به د هغه وي [یعني هر شریک د دې خبري دعوىٰ کوي چي زما شریک خپله حصه آزاده کړې نو ځکه به ولاء د هغه وي] وَعَتَقَ نَصِیبِي بِالسِّعَایَةِ وَوَلَاؤُهُ لِي او [هر شریک دا خبره کوي چي] زما حصه په سعایه کولو سره آزاده سوې ده لهذا زما د حصې ولاء به زما وي وَقَالَ أَبُو یُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: إِنْ کَانَا مُوسِرَیْنِ [لیکن] صاحبین رَحِمَهُمَا الله رَحِمَهُمَا الله فرمایي: که چیري دواړه [شریکان] مالداره وي فَلَا سِعَایَةَ عَلَیْهِ نو پر غلام سعایه کول [واجب] نه ده لِأَنَّ کُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا یُبْرِأُ عَنْ سِعَایَتِهِ بِدَعْوَى الْعَتَاقِ عَلَى صَاحِبِهِ ځکه چي هر یو [شریک] پر خپل ملګري د ضمان د دعوىٰ په وجه سره دا غلام له سعایه کولو څخه بري کوي لِأَنَّ یَسَارَ الْمُعْتِقِ یَمْنَعُ السِّعَایَةَ عِنْدَهُمَا [او] ځکه چي د مُعتِق مالدار والی د صاحبینو په نېز اله غلام څخه] سعایه منع کوي إِلَّا أَنَّ الدَّعْوَى لَمْ تَثْبُتْ لِإِنْکَارِ الْآخَرِ خو د دویم [شریک] د انکار په وجه دعوىٰ ثابته نه سوه وَالْبَرَاءَةُ عَنِ السِّعَایَةِ قَدْ ثَبَتَتْ لِإِقْرَارِهِ عَلَى نَفْسِهِ او له استسعاء څخه [د شریک] بري کېدل پر خپل ځان د هغه په اقرار کولو سره ثابت سو وَإِنْ کَانَا مُعْسِرَیْنِ سَعَى لَهُمَا او که دواړه [شریکان] غریبان وي نو غلام به د دواړو لپاره سعایه [هڅه او کسب] کوي لِأَنَّ کُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا یَدَّعِي السِّعَایَةَ عَلَیْهِ ځکه چي له دوی دواړو څخه هر [شریک] پر غلام د سعایه کولو دعوىٰ کوي صَادِقًا کَانَ أَوْ کَاذِبًا هغه که [دوی دواړه په خپله دعوىٰ کي] ریښتوني وي یا دروغجن وي عَلَى مَا بَیَّنَّاهُ لکه

[اوس] چي موږ دا [خبره] بيان کړه إِذِ الْمُعْتِقُ مُعْسِرٌ ځکه چي [دلته هر] مُعتِق مالدار دی وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مُوسِرًا وَالْآخَرُ مُعْسِرًا سَعَى لِلْمُوسِرِ مِنْهُمَا او که يو له دوی څخه مالدار وي او بل غريب وي نو غلام به د مالدار لپاره سعايه کوي لِأَنَّهُ لَا يَدَّعِي الضَّمَانَ عَلَى صَاحِبِهِ لِإِعْسَارِهِ ځکه چي هغه [مالدار شريک] پر خپل ملګري د ضمان دعویٰ نه سي کولای، د هغه د غربت په وجه وَإِنَّمَا يَدَّعِي عَلَيْهِ السِّعَايَةَ هغه فقط پر غلام د سعايه دعویٰ کولای سي فَلَا يَتَبَرَّأُ عَنْهُ نو ځکه به غلام له سعايه څخه نه بري کيږي وَلَا يَسْعَى لِلْمُعْسِرِ مِنْهُمَا او غلام به له دوی څخه د غريب [شريک] لپاره سعايه نه کوي لِأَنَّهُ يَدَّعِي الضَّمَانَ عَلَى صَاحِبِهِ لِيَسَارِهِ ځکه چي هغه [غريب شريک] پر خپل ملګري د ضمان دعویٰ کولای سي، د هغه د مالدار والي په وجه فَيَكُونُ مُبَرِّئًا لِلْعَبْدِ عَنِ السِّعَايَةِ نو ځکه به هغه له سعايه څخه د غلام بري کونکي وي وَالْوَلَاءُ مَوْقُوفٌ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو په نيز به په دې ټولو [صورتونو کي] ولاء موقوفه وي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُحِيلُهُ عَلَى صَاحِبِهِ ځکه چي له دوی دواړو څخه هر يو ولاء پر خپل ملګري [دويم شريک] حواله کوي وَهُوَ يَتَبَرَّأُ عَنْهُ او هغه [دويم شريک] له دې څخه برائت [او انکار] کوي فَيَبْقَى مَوْقُوفًا إِلَى أَنْ يَتَّفِقَا عَلَى إِعْتَاقِ أَحَدِهِمَا نو ځکه به ولاء موقوفه وي تر دې چي دواړه شريکان د يوه شريک پر آزادولو اتفاق وکړي.

**اللغات:** ﴿شَهِدَ﴾ د سمع ماضي ده: ګواهي ورکول، ﴿يَزْعَمُ﴾ د فتح مضارع ده: ګومان کول، خيال او تصوّر کول، ﴿اِسْتِرْقَاق﴾ د استفعال مصدر دی: غلام جوړول، ﴿نَصِيْب﴾ حصه، برخه، ﴿مُبَرِّئ﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: بري کونکي (د يو چا له غاړي څخه د يو شي ساقطونکی)، معافونکی. ﴿يُحِيْلُ﴾ د افعال مضارع ده: يو څوک پر بل چا حواله کول.

**تشريح:** عبارت خو ډېر اوږد دی لېکن په دې عبارت کي بيان سوې مسئله ډېره آسانه ده، د مسئلې حاصل دا دی چي که له دواړو شريکانو څخه هر شريک دا اقرار وکړي چي هغه غلام آزاد کړی دی (يعني هر شريک ووايي چي ما غلام آزاد کړی دی)، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر دې غلام واجب دي چي د هر شريک د حصې لپاره خواري و کارې کسب او ګټه وکړي، برابره ده که دا دواړه شريکان مالداران وي يا غريبان وي، يا که په دوی کي يو غريب وي او بل مالدار وي؛ دليل دا دی چي له دوی څخه هر شريک دا ګومان او تصور کوي چي د ده ملګري خپله حصله آزاده کړې ده.

لهذا د تصور او گومان په وجه د ده په نیز (یعني د هر یوه په نیز) دا غلام مکاتب سو. او اوس د ده لپاره دا حرام دي چي دا غلام خپل رقیق جوړ کړي (یعني اوس د هر یو لپاره دا حرام دي چي خپله حصه غلام وشماري). لهذا خاص د ده په حق کي به د ده تصدیق کیږي (که څه هم د ده گومان د خپل ملکري په حق کي صحیح نه دی. لیکن په خپل حق کي به د ده تصدیق کیږي). او د غلام رقیق جوړول به د ده لپاره حرام وي. او د ده لپاره به فقط په دې غلام سره د کسب او مزدوری کولو حق وي. ځکه چي موږ ته دا یقین دی (یعني موږ ته په تېرو مسئلو کي دا په یقیني توگه معلومه سوه) چي اوس د ده لپاره په غلام د کسب او مزدوری کولو (یعني د استسعاء) حق ثابت دی. هغه که دئ په خپل اقرار او قول کي ریښتونی وي او که درواغجن وي (په دې دواړو صورتونو کي د ده لپاره د استسعاء حق ثابت دی چي په غلام کسب او مزدوري وکړي. او د خپلي حصې قیمت ځني واخلي)، ځکه که دا شریک په خپل اقرار کي ریښتونی وي نو غلام به مکاتب وي. او که درواغجن وي. نو غلام به مملوک وي. او د مکاتب او مملوک دواړو کسب او گټه د خپل مالک (مولیٰ) لپاره وي. نو ځکه به د صدق او کذب په دواړو صورتونو کي ده ته د استسعاء حق وي (یعني دا حق چي په غلام کسب او مزدوري وکړي. او د خپلي حصې قیمت ځني واخلي). او د غربت او مالداری په وجه دا حکم نه متخلف کیږي. ځکه څوک چي دا اقرار او دعویٰ کوي چي زما شریک خپله حصه آزاده کړې ده. هغه ته د غربت او مالداری په دواړو حالتونو کي له دوو شیانو څخه فقط د یوه شي حق حاصل دی او هغه دا چي د مُعتِق مالداری په صورت کي به له خپل شریک څخه ضمان (تاوان) اخلي. یا په غلام کي به کسب او مزدوري (استسعاء) کوي. ځکه چي د مُعتِق یَسار (مالداري) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په غلام له کسب او مزدوری کولو څخه مانع نه ده (لکه مخکي چي دا خبره تېره سوه). او د لته ضمان اخیستل ناممکن دي. ځکه کله چي دا شریک د خپل ځان له طرفه د غلام د آزادولو منکر دی. او د دویم شریک له طرفه د غلام آزادولو مُدعي دی. نو د دې شریک لپاره د ضمان اخیستلو هیڅ صورت نشته. لهذا اوس به فقط هغه ته د استسعاء حق وي. خو بیا هم د غلام ولاء به د دواړو شریکانو په مینځ کي مشترکه وي. ځکه چي هر شریک د دې خبري مُدّعي دی چي زما ملگري خپله حصه آزاده کړې ده. نو ځکه ولاء د هغه ده. او زما حصه د استسعاء په وجه سره آزاده سوه. نو ځکه زما د حصې ولاء زما ده.

د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي که چیري دواړه شریکان مالدار وي. نو پر غلام سعایه (کسب او مزدوري کول) واجب نه دي. ځکه کله چي دلته هر شریک پر خپل ملگري د ضمان دعویٰ کوي. نو په دې دعویٰ سره هر شریک خپل غلام له سعایه څخه بري کوي. او بل دا چي د صاحبینو په نیز د مُعتِق د مالداری په صورت کي هم پر غلام سعایه نه واجبیږي. نو په دې وجه هم پر

غلام سعایه واجب نه ده. او څرنګه چي يو شريک د بل شريک د اقرار او دعوىٰ منکر دى. نو ځکه به د غلام عتق نه ثابتيږي. او د هر شريک اقرار او دعوىٰ به د هغه په خپل حق کي ثابت وي. او هغه مالدار هم دى، نو ځکه به د هغه اقرار د هغه پر ذات لازم وي. او هغه به له استسعاء څخه بري وي (يعني پر غلام به د هغه لپاره سعايه کول [کسب او مزدوري کول] واجب نه وي).

وإن كانا إلخ: د دې حاصل دا دى چي که چيري دواړه شريکان غريبان وي، نو په دې صورت کي به غلام د دواړو لپاره سعايه (کسب او ګټه) کوي، هغه که هر مدعي (شريک) صادق وي يا کاذب وي. ځکه چي د مُعتِق د غريبوالي په وجه پر ده د استسعاء وجوب يقيني دى (يعني کله چي آزادونکى غريب وي، نو مخکي معلومه سوه چي پر دويم شريک فقط همدغه ضروري دي چي په غلام کسب او ګټه وکړي او له آزادونکي څخه ضمان نه واخلي. او دلته هر شريک مُعتِق (آزادونکى) دى. او هر يو غريب دى). نو ځکه په دې صورت کي يوازينى لاره استسعاء ده. نو ځکه به فقط همدغه لار متعين کيږي (او ضمان به نه لازميږي)

وإن كان أحدهما إلخ: فرمايي چي که له دواړو شريکانو څخه يو مالدار وي او بل غريب وي. نو په دې صورت کي حکم دا دى چي غلام به د مالدار لپاره سعايه کوي او د غريب لپاره به د هغه پر شريک ضمان واجب وي. ځکه کوم شريک چي مالدار دى، هغه پر خپل غريب شريک د ضمان دعوىٰ نه سي کولاى. ځکه چي د غربت په وجه غريب شريک هيڅ شى نه سي ورکولاى. لهذا د مالدار له شريک په طرف کي فقط د استسعاء دعوىٰ متعين سوه (يعني هغه فقط په غلام سعايه کولاى سي)

او څرنګه چي دلته غريب شريک پر خپل مالدار شريک باندي د ضمان (تاوان) دعوىٰ کوي. او د مدعىٰ عليه (مالدار شريک) د مالدار والي په وجه دا ممکن هم دي، نو ځکه د هغه (غريب شريک) لپاره د استسعاء لاره بنده سوه.

او د صاحبينو په نيز به په دې ټولو صورتونو کي د دغه غلام ولاء موقوفه وي. ځکه کله چي هر يو دا دعوىٰ کوي چي زما ملګري خپله حصه آزاد کړې ده او هر ملګرى د بل ملګري د دعوىٰ انکار هم کوي. نو ښکاره خبره ده چي معامله به لانجمنه او ستونزمنه وي. او تر څو چي دواړه شريکان د يوه شريک پر إعتاق (آزادولو) اتفاق نه وکړي تر هغه وخته پوري به ولاء هم موقوفه وي.

## د دوو شريکانو د مُعلق إعتاق يو صورت

وَلَوْ قَالَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ: إِنْ لَمْ يَدْخُلْ فُلَانٌ هٰذِهِ الدَّارَ غَدًا فَهُوَ حُرٌّ او که چيري له دواړو شريکانو څخه يو [شريک] ووايي: که فلانکی سړی سبا دغه کور ته داخل نه سي نو هغه [زما غلام] آزاد دی وَقَالَ الْآخَرُ: إِنْ دَخَلَ فَهُوَ حُرٌّ او بل [شريک] ووايي: که چيري فلانکی سړی [کور ته] داخل سي نو هغه آزاد دی فَمَضَى الْغَدُ وَلَا يُدْرٰى أَدَخَلَ أَمْ لَا نو د سبا ورځ تېره سي او دا معلومه نه سي چي فلانکی داخل سو، که نه؟ عَتَقَ النِّصْفُ نو [د غلام] نيمه حصه آزاديږي. وَسَعٰى لَهُمَا فِي النِّصْفِ الْآخَرِ او په [پاته] نيمه حصه کي به غلام د دوی دواړو لپاره سعايه [کسب او مزدوري] کوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ * او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَسْعٰى فِي جَمِيعِ قِيمَتِهِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي غلام به د ټوله قيمت لپاره سعايه کوي لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ عَلَيْهِ بِسُقُوطِ السِّعَايَةِ مَجْهُولٌ ځکه پر کوم [شريک] چي د سعايه د سقوط حکم سوی دی هغه مجهول [نامعلوم] دی وَلَا يُمْكِنُ الْقَضَاءُ عَلَى الْمَجْهُولِ او پر مجهول کس فيصله کول ممکن نه دي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ: لَكَ عَلٰى أَحَدِنَا أَلْفُ دِرْهَمٍ نو داسي سو لکه يو څوک چي بل چا ته ووايي: ستا لپاره په موږ کي پر يوه زر درهمه دي فَإِنَّهُ لَا يُقْضٰى بِشَيْءٍ لِلْجَهَالَةِ نو [په دې صورت کي] به د جهالت په وجه د هيڅ شي فيصله نه کيږي كَذَا هٰذَا همداسي به دا [هم] وي [يعني همداسي به دلته هم دا حکم وي] وَلَهُمَا: أَنَّا تَيَقَّنَّا بِسُقُوطِ نِصْفِ السِّعَايَةِ و د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي موږ ته د نصف سعايه [يعني د غلام د نصف قيمت په حق کي له غلام څخه د سعايه] د ساقطېدلو يقين سته [يعني د دې سقوط يقيني دی] لِأَنَّ أَحَدَهُمَا حَانِثٌ بِيَقِينٍ ځکه چي په دې دواړو شريکانو کي به يو په يقيني توګه حانث وي وَمَعَ التَّيَقُّنِ بِسُقُوطِ النِّصْفِ كَيْفَ يُقْضٰى بِوُجُوبِ الْكُلِّ نو د نصف سعايه د سقوط د يقيني کېدلو سره به څرنګه د کُل سعايه د وجوب فيصله وکړی سي وَالْجَهَالَةُ تَرْتَفِعُ بِالشُّيُوعِ وَالتَّوْزِيعِ او [دلته] جهالت [پر دواړو شريکانو] په غوړولو او وېشلو سره ليري کيږي كَمَا إِذَا أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ لَا بِعَيْنِهِ أَوْ بِعَيْنِهِ وَنَسِيَهُ لکه کله چي يو سړی له خپلو دوو

---

* القول الراجح: هو هذا قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٩، ٢٠). [القول الراجح ج:١، ص:٣٩٣]

غلامانو څخه يو غيرِ معين انا تاکل سوی! غلام آزاد کړي يا معين [تاکل سوی] غلام آزاد کړي ليکن هغه [بيرته] څنې هير سي وَمَاتَ قَبْلَ التَّذَكُّرِ أَوْ الْبَيَانِ او بيا د هغه له يادېدلو يا بيانولو څخه مخکي مړ سي [نو د دواړو غلامانو نصف، نصف به آزاديږي، همداسي به لته هم دا حکم وي] وَيَتَأَتَّى التَّفْرِيعُ فِيهِ عَلَى أَنَّ الْيَسَارَ يَمْنَعُ السِّعَايَةَ أَوْ لَا يَمْنَعُهَا او په دې مسئله کي تفريع پر دې بنياد حاصليږي چي مالداري سعايه منع کوي يا يې نه منع کوي عَلَى الِاخْتِلَافِ الَّذِي سَبَقَ د هغه اختلاف مطابق کوم چي مخکي ذکر سو.

**اللغات:** ﴿غَدٍ﴾ سبا، را روانه ورځ، ﴿شُيُوْع﴾ غوړېدل، ﴿تَوْزِيْع﴾ د تفعيل مصدر دی: وېشل، تقسيمول، ﴿تَفْرِيْع﴾ د تفعيل مصدر دی: فرع، فرع کول، قياس کول (قياسول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام د دوو مالکانو په مينځ کي مشترک وي، بيا له دوی څخه يو شريک ووايي: إِنْ لَمْ يَدْخُلْ فُلَانٌ هٰذِهِ الدَّارَ غَدًا فَهُوَ حُرٌّ (يعني که فلانکی سړی سبا کور ته داخل نه سو، نو دا غلام آزاد دی)، او دويم شريک د دې برعکس ووايي: إِنْ دَخَلَ فُلَانٌ هٰذِهِ الدَّارَ فَهُوَ حُرٌّ (يعني که فلانکی سړی سبا کور ته داخل سو، نو دا غلام آزاد دی)، (يعني يو شريک د نه داخلېدلو خبره وکړي او بل شريک د داخلېدلو خبره وکړي)، او بيا د سبا ورځ تېره سي، او دا معلومه نه سي چي فلانکی سړی کور ته داخل سو، او که نه سو، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي نصف غلام آزاديږي، او د نصف غلام د قيمت اداء کولو لپاره به غلام د دواړو شريکانو لپاره سعايه (کسب او مزدوري) کوي، دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دی، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي غلام به د ټوله قيمت لپاره سعايه کوي، په دې شرط که دا دواړه شريکان غريبان وي، او که دواړه مالداره وي، نو د هيڅ لپاره به هم سعايه نه کوي، او که يو مالدار وي او بل غريب وي، نو د مالدار لپاره به په نصف قيمت کي سعايه کوي، او د غريب لپاره به سعايه نه کوي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي په دې مسئله کي له دواړو مالکانو (شريکانو) څخه د يوه مالک حانث کېدل (يعني د يوه مالک په حصه کي آزادي واقع کېدل) يقيني او ضروري دي، ځکه چي د سبا په ورځ کي به خامخا دخول يا نه دخول موجود سوی وي (يعني يا فلانکی سړی به داخل سوی وي، يا به نه وي داخل سوی، په دې دواړو شيانو کي به خامخا يو شی موجود سوی وي)، او د دې يوه شي په وجود سره به نيم غلام په يقيني توګه آزاد سوی وي، او د کوم مالک په حصه کي چي آزادي واقع سي، د هغه لپاره د استسعاء حق ساقطيږي (يعني هغه په غلام سعايه [ کسب او مزدوري] نه سي

کولای)، لهذا کله چي دلته د نصف قيمت په سلسله کي د سعايه ساقطېدل يقيني دي (يعني خامخا د يوه مالک په حق کي سعايه ساقط ده)، نو بيا به څنګه پر غلام د ټوله قيمت سعايه واجب وي، نو صحيح خبره هغه ده کوم چي موږ (شيخينو) بيان کړه، يعني پر غلام به فقط د نيمت قيمت لپاره سعايه کول واجب وي.

**د امام محمد دليل** دا دی چي د کوم مالک په حق کي چي سعايه ساقط ده، هغه دلته مجهول دی (يعني معلوم نه دی چي په دې دواړو مالکانو کي به هغه مالک کوم يو وي چي د هغه په حصه کي آزادي واقع سوې وي)، او کوم کس چي معلوم نه وي پر هغه حکم لګول ممکن نه دي، نو دا مسئله داسي سوه لکه يو څوک چي بل چا ته ووايي: "په ما او تا کي پر يوچا ستا لپاره زر درهمه واجب دي"، نو دلته د جهالت په وجه هيڅ فيصله او حکم کېدلای نه سي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم هيڅ حکم نه کيږي.

**والجهالة إلخ**: له دې ځايه دامام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي که څه هم دلته مُقضٰی عليه بِسُقوطِ السّعايه مجهول دی (يعني که هغه څه هغه مالک معلوم نه دی چي د هغه په باره کي سعايه ساقط ده)، لېکن کله چي د غلام د نيمې حصې (نصف غلام) آزادي پر دواړو مالکانو تقسيم کړی سی، نو دا جهالت به ختم سي، او کله چي جهالت ختم سي، نو بغير له څه ممانعت څخه به د غلام نصف (نيمه حصه) آزاده سي، او د پاته نصف لپاره به پر هغه سعايه او ګټه واجب وي چي هغه به د دواړو شريکانو په مينځ کي مشترکه وي، د دې مثال دا دی لکه يو سړي چي له خپلو دوو غلامانو څخه يو غيرِ مُعين غلام آزاد کړي، يا يو مُعين غلام آزاد کړي، لېکن بيا له هغه څخه هېر سي چي ما کوم يو آزاد کړی وو، او تر دې وروسته هغه سړی بيا يو غلام معين نه کړي او په همدغه وخت کي مړ سي، نو په دې صورت کي به د هغه د دواړو غلامانو نصف، نصف حصه آزاده وي، او د نصف حصې د آزادولو لپاره به پر دواړو غلامانو سعايه واجب وي، همداسي به دلته هم د نصف غلام آزادي پر دواړو مالکانو تقسيميږي، او د پاته نصف د آزادۍ لپاره به هغه غلام د دواړو مالکانو لپاره سعايه (کسب او ګټه) کوي.

**ويتأتى إلخ**: فرمايي چي دا مسئله پر دې خبره مبني ده چي آيا يَسار او مالداري د سعايه لپاره مانع ده، که نه؟ او په دې باره کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف تېر سو، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مالداري د سعايه لپاره مانع نه ده، لېکن د صاحبينو په نېز مانع ده.

## د پورتنی مسئلې يو بل صورت

وَلَوْحَلَفَاعَلٰى عَبْدَيْنِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِأَحَدِهِمَا او که چيري دوه خلک پر دوو غلامانو قسم وکړي په دوی کي هر سړی د يوه لپاره [يعني د هر يوه جلا غلام وي او هر يو پر خپل غلام قسم وکړي] لَمْ يَعْتِقْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا نو له دوی څخه يو غلام [هم] نه آزاديږي لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ عَلَيْهِ بِالْعِتْقِ مَجْهُولٌ ځکه پر کوم [مالک] چي د آزادي حکم [فيصله] کيږي هغه مجهول دی وَكَذٰلِكَ الْمَقْضِيُّ لَهٗ او همدارنگه د کوم [غلام] لپاره چي حکم کيږي هغه [هم] مجهول دی فَتَفَاحَشَتِ الْجَهَالَةُ نو جهالت فاحش سو فَامْتَنَعَ الْقَضَاءُ لهذا فيصله کول ممتنع سو وَفِي الْعَبْدِ الْوَاحِدِ الْمَقْضِيُّ بِهٖ مَعْلُوْمٌ او د يوه غلام په صورت کي چي پر چا حکم [فيصله] کيږي هغه معلوم وي فَغَلَبَ الْمَعْلُوْمُ الْمَجْهُوْلَ نو ځکه [هلته] معلوم پر مجهول غالب سو.

**اللغات:** ﴿تَفَاحَشَت﴾ د تفاعل ماضي ده: زيات څرگند بدل، ډېر بدېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري په دواړو مالکانو کي د هر مالک لپاره جلا، جلا غلام وي، او په دوی کي يو مالک ووايي: "إِنْ دَخَلَ زَيْدٌ هٰذِهِ الدَّارَ فَعَبْدِيْ حُرٌّ"، او بل مالک ووايي: إِنْ لَمْ يَدْخُلْ زَيْدٌ هٰذِهِ الدَّارَ غَدًا فَعَبْدِيْ حُرٌّ، او بيا د سبا ورځ تېره سي او دا معلومه نه سي چي زيد کور تـه داخل سو، او که داخل نه سو، نو په دې صورت کي يو غلام هم نه آزاديږي او دا حکم متفق عليه دی:

دليل دا دی چي دلته مُقضٰی عليه مالک مجهول دی (يعني د کوم مالک غلام چي آزاد سوی دی، هغه نامعلوم دی)، او همدارنگه کوم غلام چي آزاد سوی دی، هغه هم مجهول دی، نو دلته جهالت فاحشه راغلی، او د جهالت فاحشه په وجه سره قاضي هيڅ حکم نه سي کولای.

هو! که دا دواړه مالکان په يوه غلام کي مشترک وای، نو په دې صورت کي به نصف غلام پر دواړو تقسيم سوي وای او جهالت به ختم سوي وای (لکه په تېره مسئله کي)، نو په دې وجه په مخکنی مسئله کي د غلام نصف تقسيمول صحيح دي، او په دې مسئله کي ممنوع دي.

## که له دواړو شريکانو څخه يو شريک پلار وي (تفصيلي بيان)

وَإِذَا اشْتَرَى الرَّجُلَانِ ابْنَ أَحَدِهِمَا او کله چي دوه خلک رانيسي [داسي غلام چي هغه] په دوی دواړو کي د يوه زوی [وي] عَتَقَ نَصِيْبُ الْأَبِ نو د پلار حصه آزاديږي لِأَنَّهٗ مَلَكَ شِقْصَ قَرِيْبِهٖ ځکه چي پلار د خپل قريب [زوی] د حصې مالک سو وَشِرَاؤُهٗ إِعْتَاقٌ او د قريب رانيول إعتاق [آزادول] دي عَلٰى مَا مَرَّ لکه

مخکې چې دا [مسئله] تېره سوه وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ او پر پلار به هيڅ ضمان [واجب] نه وي عَلِمَ الْآخَرُ أَنَّهُ ابْنُ شَرِيكِهِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ هغه که دويم [شريک] په دې خبر وي چې دا د هغه د شريک زوی دی او که خبر نه وي [يعني په دې خبر وي چې دا زما د شريک زوی دی او که خبر نه وي] وَكَذَا إِذَا وَرِثَاهُ او همدارنګه کله چې دوی دواړه د هغه وارثان سي وَالشَّرِيكُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ نَصِيبَهُ وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ او [دويم] شريک ته به اختيار وي که وغواړي نو خپله حصه دې آزاده کړي او که وغواړي نو په غلام دې هڅه [او کسب] وکړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا❁: فِي الشِّرَاءِ يَضْمَنُ الْأَبُ نِصْفَ قِيمَتِهِ إِنْ كَانَ مُوسِرًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د شراء [رانيولو] په صورت کې که پلار مالدار وي نو د غلام د نصف قيمت ضامن به وي وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که چيرې هغه غريب وي سَعَى الِابْنُ فِي نِصْفِ قِيمَتِهِ لِشَرِيكِ أَبِيهِ نو غلام زوی به د خپل پلار د شريک لپاره په خپل نصف قيمت کې هڅه کوي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافُ إِذَا مَلَكَا بِهِبَةٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ وَصِيَّةٍ او پر همدغه اختلاف دي کله چې دوی دواړه د هبه يا صدقه يا وصيت په ذريعه د هغه مالکان سي وَعَلَى هٰذَا إِذَا اشْتَرَاهُ رَجُلَانِ او پر همدغه اختلاف دي کله چې دوه خلک يو غلام رانيسي وَأَحَدُهُمَا قَدْ حَلَفَ بِعِتْقِهِ إِنِ اشْتَرَى نِصْفَهُ [په داسي حال کې] چې له دوی څخه يوه دا قسم کړی وي چې که چيرې هغه د دې غلام نيمه حصه رانيسي نو هغه آزاده ده [يعني که دوه خلک يو غلام رانيسي، او يوه سړي مخکې دا قسم کړی وي چې که ما نيم غلام رانيوی نو هغه آزاد دی، او اوس هغه نيم غلام رانيوی نو هغه خو آزاد سو، لهذا که په دې صورت کې آزادونکی مالدار وي، نو د صاحبينو په نيز به هغه د نصف قيمت ضامن وي] لَهُمَا: أَنَّهُ أَبْطَلَ نَصِيبَ صَاحِبِهِ بِالْإِعْتَاقِ د صاحبينو دليل دا دی: چې مُعتِق [پلار د خپلې حصې] په آزادولو سره د خپل ملګري [دويم شريک] حصه باطله کړه لِأَنَّ شِرَاءَ الْقَرِيبِ إِعْتَاقٌ ځکه چې د قريب رانيول إعتاق دي وَصَارَ هٰذَا كَمَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ أَجْنَبِيَّيْنِ [نو] داسي سو لکه يو غلام چې د دوو أجنبي خلکو په مېنځ کې مشترک وي فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ او له دوی څخه يو خپله حصه آزاده کړي وَلَهُ: أَنَّهُ رَضِيَ بِإِفْسَادِ

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۰)، وكذا في الخانية (ج:۲، ص:۲۸۲).
[القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۵]

نَصِيبِهٖ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هغه [دويم] شريک د خپلي حصې په فاسدېدلو راضي دی فَلَا يُضَمِّنُهٗ لهذا مُعتق [پلار] به د هغه ضامن نه وي كَمَا إِذَا أَذِنَ لَهٗ بِإِعْتَاقِ نَصِيبِهٖ صَرِيحًا لکه [په هغه صورت کي هم چي څوک نه ضامن کيږي] کله چي هغه بل چا ته قصداً د خپلي حصې آزادولو اجازه ورکړې وي وَدَلَالَةُ ذٰلِكَ أَنَّهٗ شَارَكَهٗ فِيمَا هُوَ عِلَّةُ الْعِتْقِ وَهُوَ الشِّرَاءُ او [د دويم شريک] د رضامندی دليل دا دی چي هغه د پلار سره په داسي شي کي شرکت وکړی چي هغه د عتق علت دی او هغه رانيول دي لِأَنَّ شِرَاءَ الْقَرِيبِ إِعْتَاقٌ ځکه چي د قريب رانيول إعتاق دي حَتّٰى يَخْرُجَ بِهٖ عَنْ عُهْدَةِ الْكَفَّارَةِ عِنْدَنَا همدا وجه ده چي زموږ په نيز د قرايب رانيولو په وجه مشتري د کفارې له ذمه واری څخه وځي وَهٰذَا ضَمَانُ إِفْسَادٍ فِي ظَاهِرِ قَوْلِهِمَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په ظاهري قول کي دا د فاسدولو تاوان [ضمان إفساد] دی حَتّٰى يَخْتَلِفَ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ همدا وجه ده چي د مالداری يا غربت په وجه هغه بدليږي [رابدليږي] فَيَسْقُطُ بِالرِّضَا نو د رضاء په وجه به دا ضمان ساقطيږي وَلَا يَخْتَلِفُ الْجَوَابُ بَيْنَ الْعِلْمِ وَعَدَمِهٖ او [د دويم شريک] د خبرتيا او ناخبرتيا په وجه به [هم] حکم نه بدليږي [يعني په دې سره به هم حکم نه بدليږي چي دويم شريک په دې خبر وي چي دا زما د شريک زوی دوی او که خبر نه وي] وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ عَنْهُ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه ظاهر روايت دی لِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى السَّبَبِ ځکه چي حکم پر سبب دائر کيږي [يعني د حکم دار ومدار پر علت دی] كَمَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهٖ: كُلْ هٰذَا الطَّعَامَ وَهُوَ مَمْلُوكٌ لِلْآمِرِ لکه يو څوک چي بل چا ته ووايي: دا خوراک وخوره! او هغه [خوراک] د آمر په ملکيت کي وي وَلَا يَعْلَمُ الْآمِرُ بِمِلْكِهٖ [لېکن آمر په خپل ملکيت خبر نه وي.

**اللغات:** ﴿شِقْص﴾ ټوکره (ټوټه)، حصه، ﴿شِرَاء﴾ د ضرب مصدر دی: رانيول، ﴿إِفْسَاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: فاسدول، خرابول، ﴿يُدَار﴾ د مضارع صيغه ده: مدار کېدل (يو شي پر بل شي مبني کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مثلاً زيد د خالد زوی دی او عُمر د خالد شريک دی، او بيا خالد او عمر دواړو په ګډه د خالد زوی يعني زيد رانيوی، نو د رانيولو سره سمدستي د پلار يعني د خالد حصه آزاديږي، ځکه چي په دې حديث "مَن مَلَک ذا رحمٍ محرمٍ منهُ عتق عليه" کي د قريب رانيول او د قريب مالک کېدل د عتق علت ګرځول سوی دی، او پلار يعني پر خالد به هيڅ ضمان

واجب نه وي. برابره ده که د پلار شريک يعني عمر ته دا خبره معلومه وي چي زيد د خالد زوی دی. او که معلومه نه وي، او همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي خالد او عمر د زيد وارثان سي. نو په دې صورت کي هم د خالد حصه آزاديږي، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. او د ميراث په مسئله کي د صاحبينو قول هم د امام صاحب د قول په څير دی، لېکن د شراء (رانيولو) په مسئله کي د صاحبينو په نېز حکم دا دی چي که پلار (خالد) مالدار وي، نو پر هغه به د خپل شريک (يعني د عُمر) د حصې ضمان واجب وي، او که پلار غريب وي، نو په دې صورت کي به غلام (زيد) د خپل پلار د شريک لپاره سعايه (کسب او ګټه کوي)، او همدغه اختلاف په هبه، صدقه او وصيت کي هم دی. يعني که په هبه، يا صدقه يا وصيت سره خالد او عمر دواړه د زيد مالکان سي، نو په دې صورت کي هم د پلار حصه آزاديږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر پلار ضمان واجب نه وي، لېکن د صاحبينو په نېز به د پلار د مالدارۍ په صورت کي پر هغه ضمان واجب وي، او که پلار غريب وي، نو بيا به پر غلام سعايه واجب وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د خپل زوی رانيول إعتاق دي (يعني کله چي پلار خپل زوی رانيسي نو سمدستي پر هغه خپل زوی آزاديږي)، لهذا پلار د خپلي حصې په آزادولو سره د خپل شريک حصه باطله کړه، نو ځکه به پر هغه د خپل شريک د حصې ضمان واجب وي، او دا مسئله داسي ده لکه يو غلام چي د دوو خلکو په مينځ کي مشترک وي او يو شريک خپله حصه آزاده کړي، نو که مُعتِق (آزادونکی) مالدار وي، نو پر هغه ضمان به واجب وي، او که غريب وي، نو پر غلام به سعايه واجب وي، همداسي به دلته هم که پلار مالدار وي، نو پر هغه به ضمان واجب وي، او که غريب وي، نو پر غلام به سعايه واجب وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي کله دلته شريک (عمر) ته معلومه ده چي غلام زما د ملګري زوی دی، او زما د ملګري رانيول به د هغه له طرفه إعتاق وي، نو ګواکي هغه په خپلَه د خپلي حصې په فاسدولو او خرابولو راضي دی، او کله چي په دې إعتاق کي د شريک رضا شامله ده. نو بيا پر پلار ضمان واجبول ظلم دی، او زموږ په شريعت کي د ظلم هيڅ ګنجائش نسته، نو ځکه به پر هغه ضمان واجب نه وي، لکه يو غلام چي د دوو خلکو په مينځ کي مشترک وي، او يو شريک بل شريک ته صراحتاً د خپلي حصې د آزادولو اجازه ورکړي، نو په دې صورت کي پر مُعتِق (آزادونکي) هيڅ ضمان نه راځي. همداسي به دلته هم پر پلار هيڅ ضمان نه وي.

صاحب د هدايې فرمايي چي دويم شريک (عمر) په دې توګه د خپلي حصې په فاسدولو راضي دی، چي ده د خپل شريک (خالد سره) د هغه د قريب په شراء کي شرکت وکړی، او شراءُ القريب د عتق علت دی. نو ګواکي د دغه شريک (عمر) شرکت د ده د رضاء علت او دلالت دی. ځکه چي دا

خبره خو مشهوره او تسليم ده چي "شِرَاءُ الْقَرِيْبِ إِعْتَاقٌ" (يعني د قريب رانيول د هغه آزادول دي)، همدا وجه ده که پر يو سړي د غلام آزادولو کفاره واجب وي، او هغه خپل يو قريب رانيسي، نو هغه له کفارې څخه بري کيږي، ځکه چي "شِرَاءُ الْقَرِيْبِ" إعتاق دی.

وهذا ضمان إلخ: فرمايي چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په ظاهري قول کي دغه ضمان ضمان إفساد دی. همدا وجه ده چي د غربت او مالدارۍ د اختلاف (بدلون) په وجه دا ضمان هم بدليږي. او ضمان إفساد په رضامندۍ سره ساقطيږي، نو ځکه به دا ضمان هم د دويم شريک د رضاء په وجه (له پلار څخه) ساقطيږي.

ولا يختلف إلخ: فرمايي مخکي چي کوم حکم بيان سو (يعني د غلام آزادي او پر پلار د ضمان نه واجبېدل)، دا حکم به په هر صورت کي پر خپل ځای پاته وي، هغه که دويم شريک (عمر) ته دا معلومه وي چي غلام زما د ملګري زوی دی او که ورته معلومه نه وي، دا حکم له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه ظاهر روايت دی، ځکه چي د حکم مدار پر علت دی، او په علت (يعني په شراء) کي دويم شريک د پلار سره شريک دی، او د دې مثال داسي دی لکه خالد چي عمر ته ووايي "دا ډوډۍ وخوره!" او هغه ډوډۍ د خالد وي، لېکن خالد ته معلومه نه وي چي دا ډوډۍ زما ده، لېکن د دې باوجود عمر هغه ډوډۍ وخوري، نو هغه ډوډۍ د عمر لپاره حلاله ده او پر عمر ضمان نه واجبيږي، که څه هم خالد په دې راضي نه دی، او د نه راضي کېدلو دليل دا دی چي هغه ته علم او خبر نسته (چي دا ډوډۍ زما ده).

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَإِنْ بَدَأَ الْأَجْنَبِيُّ فَاشْتَرَى نِصْفَهُ او که يو پردی سړی [د يو چا د زوی په رانيولو] شروع وکړي او د هغه نيمه حصه رانيسي ثُمَّ اشْتَرَى الْأَبُ نِصْفَهُ الْآخَرَ بيا پلار د هغه [زوی] بله نيمه حصه رانيسي وَهُوَ مُوسِرٌ او پلار مالدار [هم] وي فَالْأَجْنَبِيُّ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْأَبَ نو أجنبي ته اختيار دی که وغواړي نو له پلار څخه دي د ضمان [تاوان] واخلي لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِإِفْسَادِ نَصِيبِهِ ځکه چي هغه د خپلې حصې په فاسدولو راضي نه سو وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الِابْنَ فِي نِصْفِ قِيمَتِهِ او که هغه وغواړي نو په زوی دي د هغه په نيم قيمت سعايه [کسب و مزدوري] وکړي لِاحْتِبَاسِ مَالِيَّتِهِ عِنْدَهُ ځکه چي د زوی سره د هغه [أجنبي] مال محبوس پاته دی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی لِأَنَّ يَسَارَ

الْمُعْتِقِ لَا يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُ ځکه چې د هغه په نيز د مُعتِق آزادونکي شريک ا مالداري سعايه نه منع کوي وَقَالَا ❀: لَا خِيَارَ لَهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د هغه [أجنبي] لپاره به [د استسعاء] اختيار نه وي وَيَضْمَنُ الْأَبُ نِصْفَ قِيمَتِهِ او پلار به د نيم قيمت ضامن وي لِأَنَّ يَسَارَ الْمُعْتِقِ يَمْنَعُ السِّعَايَةَ عِنْدَهُمَا ځکه چې د صاحبينو په نيز د مُعتِق مالداري سعايه منع کوي.

**اللغات:** ﴿بَدَأَ﴾ د فتح ماضي ده: په يو کار پيل کول، شروع کول. ﴿إِحْتِبَاس﴾ د افتعال مصدر دی: قيدي کېدل، بندي کېدل (محبوس کېدل)، بند پاتېدل.

**تشريح:** دا مسئله د امام صاحب او صاحبينو پر خپل، خپل أصول او قاعدې مبني ده، حاصل يې دا دی چې که چيرې مُعتِق (آزادونکی شريک) مالدار وي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دويم شريک ته د ضمان او استسعاء دواړو حق سته (يعني هغه ته دا حق هم سته چې له مُعتِق څخه ضمان واخلي، او دا حق هم لري چې په غلام کسب او مزدوري وکړي او خپل د حصې قيمت ځنې واخلي)، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دويم شريک ته فقط د ضمان حق سته.

د دغه عبارت مسئله پر همدغه أصول متفرع ده، حاصل يې دا دی چې که يو أجنبي سړی د يو غلام نيمه حصه رانيسي او د غلام پاتې نيمه حصه پلار رانيسي، نو د پلار حصه آزادېږي، او څرنګه چې پلار مالدار فرض کړی سوی دی، نو ځکه د صاحبينو په نيز دلته دويم شريک ته يعني أجنبي سړي ته فقط د ضمان اخيستلو حق سته، او هغه په غلام سعايه (کسب او مزدوري) نه سي کولای، ځکه چې د دوی په نيز د مُعتِق مالداري له سعايه څخه مانع ده، د دې په خلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د دې أجنبي سړي لپاره د سعايه حق هم سته او د ضمان اخيستلو حق هم ورته سته، کوم يو چې هغه أختيار کړي، د هغه مطابق به فيصله کيږي، ځکه چې د امام صاحب په نيز د مُعتِق مالدار له سعايه څخه مانع نه ده.

## د پورتنی مسئلې يو بل صورت

وَمَنْ اشْتَرَى نِصْفَ ابْنِهِ وَهُوَ مُوسِرٌ او کوم سړی چې د خپل زوی نيمه حصه رانيسي او هغه مالدار وي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه ضمان نسته وَقَالَا: يَضْمَنُ إِذَا كَانَ مُوسِرًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغه به ضامن وي که چيرې هغه مالدار وي وَمَعْنَاهُ: إِذَا اشْتَرَى نِصْفَهُ مِمَّنْ يَمْلِكُ كُلَّهُ د دې مطلب دا دی چې کله پلار له داسي سړي څخه د زوی نيمه حصه

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۴، ص:۲۷۱)، وكذا في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۱). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۹۶]

رانيسي کوم چې د ټوله زوی مالک وي فَلَا يَضْمَنُ لِبَائِعِهِ شَيْئًا عِنْدَهُ لهذا پلار به د بائع [اخرڅونکي] لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هيڅ شي ضامن نه وي وَالْوَجْهُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او د دې وجه مونږ [مخکې] ذکر کړه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې مثلاً حامد د خالد زوی دی، او د سلمان غلام او مملوک دی. اوس که پلار (يعني خالد) د خپل زوي (حامد) نيمه حصه له سلمان څخه رانيسي، او پلار (خالد) مالدار هم وي، نو په دې صورت کې به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مشتري (خالد) و بائع (سلمان) ته يوه خاشه ضمان هم نه ورکوي، ليکن د صاحبينو په نيز به مشتري وبائع ته د غلام د نصف (نيمې حصې) د قيمت ضمان ورکوي، والوَجْهُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ: د دې مسئلې دليل مونږ مخکې ذکر کړی (په دې سره صاحب د هدايې د امام صاحب او صاحبينو هغه دلائلو ته اشاره کړې ده کوم چې تر دغه مسئلې او تيرې مسئلې مخکې په اوږده عبارت کې بيان سول، که ستاسې په ياد نه وي نو هلته يې اوګورئ!).

## د دريو شريکانو په مينځ کې د مشترک غلام مسئله

وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ ثَلَاثَةِ نَفَرٍ او که چيرې يو غلام د دريو خلکو په مينځ کې [مشترک] وي فَدَبَّرَهُ أَحَدُهُمْ وَهُوَ مُوسِرٌ او [بيا] په دوی کې يو [شريک] دغه غلام مدبر جوړ کړي او هغه مالدار [هم] وي ثُمَّ أَعْتَقَهُ الْآخَرُ وَهُوَ مُوسِرٌ بيا بل [شريک] دا غلام آزاد کړي او هغه مالدار [هم] وي فَأَرَادُوا الضَّمَانَ او بيا دوی [دواړه] د ضمان اراده وکړي فَلِلسَّاكِتِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ قِنًّا نو ساکت شريک ته دا حق سته چې له مدبر جوړونکي څخه د خالص غلام په حساب د قيمت دريمه حصه واخلي وَلَا يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ او له مُعتق [آزادونکي شريک] څخه ضمان نه واخلي وَلِلْمُدَبِّرِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا او مدبر ته دا حق سته چې له مُعتق څخه د مدبر غلام په حساب د قيمت دريمه حصه واخلي وَلَا يُضَمِّنَهُ الثُّلُثَ الَّذِي ضَمِنَ او هغه به له مُعتق څخه د هغه دريمې حصې ضمان نه اخلي چې هغه [په خپله] د هغې ضامن سوی وي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [1] او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (رد المحتار ج:۳، ص:۲۱)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص:۲۴۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۷]

نېز دی وَقَالَا: اَلعَبْدُ كُلُّهُ لِلَّذِي دَبَّرَهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې ټول غلام د هغه شريک ا لپاره دی چې اول وار يې غلام مدبر جوړ کړی وي وَيَضْمَنُ ثُلُثَيْ قِيمَتِهِ لِشَرِيكَيْهِ او مدبر جوړونکی به د خپلو دوو شريکانو لپاره د غلام د دوو حصو د قيمت ضامن وي مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا هغه که مدبر جوړونکی مالدار وي او که غريب وي.

**اللغات:** ﴿دَبَّرَ﴾ د تفعيل ماضي ده: (غلام) مدبر جوړول، مدبر ګرځول، مدبر کول. ﴿قِنّ﴾ خالص غلام (کوم چې نه مدبر وي، او نه مکاتب وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام د درې خلګو په مينځ کې مشترک وي او له هغو څخه يو شريک خپله حصه مُدبره جوړه کړي او هغه مالدار وي، بيا دويم شريک خپله حصه آزاده کړي او هغه هم مالدار وي، او دريم سړی چپ (ساکت) پاته سي او هيڅ قدم پورته نه کړي، او بيا ساکت شريک او مدبر جوړونکي شريک له مُعتِق (آزادونکي شريک) څخه د ضمان مطالبه وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې حکم دا دی چې دغه دريم ساکت شريک ته دا حق سته چې له مدبر جوړونکي شريک څخه د خالص غلام (کوم چې مدبر او مکاتب نه وي) د قيمت دريمه حصه ضمان واخلي، يعني که د خالص غلام قيمت يو نيم سل (١٥٠) درهمه وي، نو ساکت دي له مدبر جوړونکي څخه پنځوس (٥٠) درهمه واخلي، او بيا دي سکوت اختيار کړي، يعني بيا دي له مُعتِق څخه د هيڅ شي مطالبه نه کوي، لېکن مدبر جوړونکی دي له مُعتِق څخه د مدبر غلام د قيمت دريمه حصه ضمان واخلي، او ساکت چې له ده څخه کوم ضمان اخيستی وي، په هغه باره کې دي دئ (مدبر جوړونکی) سکوت اختيار کړي، او هغومره دي نه ځني اخلي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: کوم شريک چې غلام مدبر جوړ کړی وي، ټول غلام د هغه دی، او دغه مدبر جوړونکی شريک به خپل هر شريک ته د دې غلام د قيمت دريمه حصه ورکوي (يعني مدبر جوړونکی به د غلام د قيمت د دوو ثُلثينو ضامن وي)، هغه که مدبر جوړونکی غريب وي يا مالدار وي، په هر صورت کې به پر هغه د غلام د قيمت دوه ثلثه واجب وي (چې هغه به پاته دوو شريکانو ته ورکوي).

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ التَّدْبِيرَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ او د دې اختلاف بنياد دا دی چې د امام صاحب په نيز مدبر جوړول متجزي کېدای سي [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا صحيح دي چې فقط د غلام يو جزء [حصه] مدبر جوړ کړی سي] خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو كَالْإِعْتَاقِ لکه آزادول، اچې د امام صاحب په نيز متجزي کېدای سي، او د صاحبينو په نيز متجزي کېدای نه سي] لِأَنَّهُ شُعْبَةٌ مِنْ شُعَبِهِ ځکه چې تدبير [مدبر جوړول] هم د إعتاق [آزادولو] يو ښاخ دی فَيَكُونُ مُعْتَبَرًا بِهِ نو [ځکه] به تدبير پر إعتاق قياسول کيږي وَلَمَّا كَانَ مُتَجَزِّئًا عِنْدَهُ اقْتَصَرَ عَلَى نَصِيبِهِ او کله چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تدبير متجزي کېدای سي نو هغه [تدبير] به د مدبر جوړونکي پر حصې منحصر [او محدود] وي وَقَدْ أَفْسَدَ بِالتَّدْبِيرِ نَصِيبَ الْآخَرَيْنِ او مدبر جوړونکي په تدبير سره د پاته دوو شريکانو حصې خرابي کړې فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يُدَبِّرَ نَصِيبَهُ أَوْ يُعْتِقَ أَوْ يُكَاتِبَ أَوْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ أَوْ يَسْتَسْعِيَ الْعَبْدَ أَوْ يَتْرُكَهُ عَلَى حَالِهِ نو [ځکه اوس] به هر يوه ته دا اختيار وي [۱] چې هغه خپله حصه مدبره جوړه کړي [۲] يا يې آزاده کړي [۳] يا يې مکاتبه جوړه کړي [۴] يا له مدبر جوړونکي څخه ضمان [تاوان] واخلي [۵] يا په غلام سعايه [کسب او ګټه] وکړي [۶] يا غلام پر خپل حال پرېږدي لِأَنَّ نَصِيبَهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِهِ فَاسِدٌ بِإِفْسَادِ شَرِيكِهِ ځکه چې اله دې دواړو شريکانو څخه] د هر يوه حصه د هغه پر ملکيت پاته ده [خو] د مدبر جوړونکي د خرابولو په وجه هغه خرابه سوې ده حَيْثُ سَدَّ عَلَيْهِ طُرُقَ الِانْتِفَاعِ بِهِ بَيْعًا وَهِبَةً ځکه چې هغه [مدبر جوړونکي] د بيع او هبه په توګه له دې غلام څخه د نفع اخيستلو لارې بندې کړې عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکې چې دا [خبره] تېره سوه فَإِذَا اخْتَارَ أَحَدُهُمَا الْعِتْقَ تَعَيَّنَ حَقُّهُ فِيهِ بيا چې کله له دوی دواړو [شريکانو] څخه يوه عتق [آزادي] اختيار کړه نو د هغه حق په عتق کې متعين سو وَسَقَطَ اخْتِيَارُهُ غَيْرَهُ او له عتق څخه بغير د هغه [نور ټنځه] اختيارونه ساقط سول فَتَوَجَّهَ لِلسَّاكِتِ سَبَبَانِ: ضَمَانُ تَدْبِيرِ الْمُدَبِّرِ وَإِعْتَاقُ هٰذَا الْمُعْتِقِ نو د ساکت [شريک] وطرف ته دوه سببونه متوجه سول: [۱] له مدبر جوړونکي څخه ضمان اخيستل [۲] او له آزادونکي څخه ضمان اخيستل غَيْرَ أَنَّ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَبِّرَ خو دا چې [دلته] د هغه لپاره [فقط] له مدبر جوړونکي څخه د ضمان اخيستلو اختيار سته لِيَكُونَ

الضَّمَانُ ضَمَانُ مُعَاوَضَةٍ د دې لپاره چې هغه ضمان [تاوان] د معاوضې ضمان سي إِذْ هُوَ الْأَصْلُ ځکه چې همدا د معاوضې ضمان أصل دی حَتَّى جُعِلَ الْغَصْبُ ضَمَانَ مُعَاوَضَةٍ عَلَى أَصْلِنَا تر دې چې زموږ پر قاعده د غاصب ضمان هم د معاوضې ضمان ګرځول سوی دی وَأَمْكَنَ ذٰلِكَ فِي التَّدْبِيرِ او دا [د معاوضې ضمان] په تدبير کي ممکن دی لِكَوْنِهِ قَابِلًا لِلنَّقْلِ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ وَقْتَ التَّدْبِيرِ ځکه چې د تدبير په وخت کي غلام له يوه ملکيت څخه و بل ملکيت ته د منتقل کېدلو قابل وي وَلَا يُمْكِنُ ذٰلِكَ فِي الْإِعْتَاقِ [لېکن] په إعتاق کي د ممکن نه وي لِأَنَّهُ عِنْدَ ذٰلِكَ مُكَاتَبٌ أَوْ حُرٌّ عَلَى اخْتِلَافِ الْأَصْلَيْنِ ځکه چې د إعتاق په وخت کي به دا غلام مکاتب وي يا به آزاد وي [د امام صاحب او صاحبينو] دوو أصولو پر اختلاف وَلَا بُدَّ مِنْ رِضَا الْمُكَاتَبِ بِفَسْخِهِ حَتَّى يَقْبَلَ الْاِنْتِقَالَ او د عقد کتابت فسخ کولو لپاره د مکاتب رضاء [خوښي] ضروري ده، د دې لپاره چې [ملکيت ته] منتقل کېدل قبول کړي فَلِهٰذَا يُضَمِّنُ الْمُدَبِّرَ نو په دې وجه به ساکت شريک له مدبر جوړونکي څخه ضمان اخلي ثُمَّ لِلْمُدَبِّرِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ ثُلُثَ قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا بيا به مدبر جوړونکي ته دا اختيار وي چې له مُعتِق [آزادونکي] څخه د مدبر غلام د قيمت دريمه حصه ضمان واخلي لِأَنَّهُ أَفْسَدَ عَلَيْهِ نَصِيبَهُ مُدَبَّرًا ځکه چې مُعتِق د غلام د مدبر کېدلو په حالت کي د هغه [مدبر جوړونکي] حصه خرابه کړه وَالضَّمَانُ يَتَقَدَّرُ بِقِيمَةِ الْمُتْلَفِ او ضمان د تلف کړی سو شي په اندازه ثابتيږي وَقِيمَةُ الْمُدَبَّرِ ثُلُثَا قِيمَتِهِ قِنًّا عَلَى مَا قَالُوا او د مدبر غلام قيمت د خالص غلام د قيمت دوې حصې کيږي لکه څرنګه چې مشائخو فرمايلي دي وَلَا يُضَمِّنُهُ قِيمَةَ مَا مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ مِنْ جِهَةِ السَّاكِتِ او مدبر جوړونکي چې د ساکت شريک د حصې کوم قيمت ورکړی وي له مُعتِق څخه هغه نه سي اخيستلای لِأَنَّ مِلْكَهُ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا ځکه چې د مدبر جوړونکي ملکيت [د تدبير کولو د وخت وطرف ته] منسوب کيږي [او] ثابتيږي وَهٰذَا ثَابِتٌ مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ او دا په يوه اعتبار سره ثابت دی او په بل اعتبار سره ثابت نه دی فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ نو ځکه به د ضمان اخيستلو په حق کي دا ملکيت نه ښکاره کيږي وَالْوَلَاءُ بَيْنَ الْمُعْتِقِ وَالْمُدَبِّرِ أَثْلَاثًا او د مدبر جوړونکي او مُعتِق په مينځ کي به د دريو حصو په حساب سره ولاء مشترکه وي ثُلُثَاهُ لِلْمُدَبِّرِ وَالثُّلُثُ لِلْمُعْتِقِ [يعني] د مدبر جوړنکي لپاره به دوې حصې وي

او د مُعتَق لپاره به يوه حصه وي لِأَنَّ الْعَبْدَ عَتَقَ عَلَى مِلْكِهِمَا عَلَى هٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چي غلام د همدې مقدار مطابق د دوی دواړو پر ملکيت آزاد سوی دی وَإِذَا لَمْ يَكُنِ التَّدْبِيرُ مُتَجَزِّيًا عِنْدَهُمَا او کله چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تدبير متجزي کېدای نه سي صَارَ كُلُّهُ مُدَبَّرًا لِلْمُدَبِّرِ نو ټوله غلام به د مدبر جوړونکي لپاره وي وَقَدْ أَفْسَدَ نَصِيبَ شَرِيكَيْهِ لِمَا بَيَّنَّا او هغه [په مدبر جوړولو سره] د خپلو دوو شريکانو حصه خرابه کړه، د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی [هغه چي دا چي اوس پاته دوه شريکان غلام نه خرڅولای سي او نه يې هبهٔ کولای سي] فَيَضْمَنُهُ نو ځکه به هغه [د دواړو] د حصې ضامن وي وَلَا يَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ او د مالدار والي او غربت په وجه به دا ضمان نه مختلف کيږي لِأَنَّهُ ضَمَانُ تَمَلُّكٍ ځکه چي دا د مالک جوړېدلو [ملکيت حاصلولو] ضمان دی فَأَشْبَهَ الِاسْتِيلَادَ نو دا د استيلاد سره مشابه سو بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ په خلاف د إعتاق [آزادولو] لِأَنَّهُ ضَمَانُ جِنَايَةٍ ځکه چي هغه د جرم ضمان دی وَالْوَلَاءُ كُلُّهُ لِلْمُدَبِّرِ او ولاء به ټوله د مدبر جوړونکي لپاره وي وَهٰذَا ظَاهِرٌ او دا ښکاره [خبره] ده.

**اللغات**: ﴿تَدْبِيْر﴾ د تفعيل مصدر دی: خپل غلام مُدَبَّر جوړول. ﴿مُدَبِّر﴾ د تفعيل اسمِ فاعل دی: هغه مالک چي خپل غلام يې مُدَبَّر جوړ کړی وي. ﴿إِسْتِيْلَاد﴾ د استفعال مصدر دی: خپله مينځه اُم ولد جوړول. ﴿جِنَايَة﴾ جرم، غلطي، خطاء.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په تېره مسئله کي د امام صاحب او صاحبينو کوم اختلاف ذکر سو، دا په اصل کي د دوی پر خپلو اُصولو او قاعدو مبني او متفرع دی، د صاحبينو اُصول دا دی چي د هغو په نېز نه تدبير (مدبر جوړول) متجزي کېدای سي او نه إعتاق (آزادول)، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز إعتاق او تدبير دواړه متجزي کېدای سي، او د ټولو دليل دا دی چي تدبير د إعتاق يو ښاخ دی، لهذا د دې حضراتو په نېز چي د إعتاق کوم حکم وي، هغه حکم به د تدبير هم وي، لنډه دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په تدبير کي تجزي ممکن ده، لهذا کوم شريک چي خپله حصه مدبره جوړه کړې وي، نو د هغه تدبير به د هغه تر حصې پوز محدود وي (يعني فقط د هغه حصه به مدبره وي)، خو څرنګه چي دغه (مدبر جوړونکي) شريک د پاته دوو شريکانو حصه هم فاسده او خرابه کړه، نو ځکه به اوس دې دواړو شريکانو ته په خپله، خپله حصه کي هر ډول اختيار وي، هغه که دوی دواړه خپله حصه آزادوي، يا مدبره يا مکاتبه ځني جوړوي، يا له مدبر جوړونکي شريک څخه

ضمان (تاوان) اخلي، يا په غلام سعايه (کسب او مزدوري) کوي، يا غلام پر حالت پرېږدي، ځکه چي د هر شريک خپله حصه د هغه په ملکيت کي پاته او قائم ده. لېکن د مدبر جوړونکي شريک د تدبير په وجه د دوی ملکيتونه فاسد سول، او هغه د خپلي حصه په تدبير (مدبر کولو سره) د دوی دواړو لپاره د بيع او هبې تولي لاري بندي کړي (يعني اوس د غه پاته دوه شريکان نه خپله حصه خرڅولای سي، او نه يې هبه کولای سي).

**فإذ اختار إلخ:** فرمايي چي که په پاته دوو شريکانو کي يو شريک عتق اختيار کړي (يعني خپله حصه آزاده کړي)، نو د عتق (آزادۍ) لپاره د هغه حصه متعين سوه، او تر دې وروسته به له عتق څخه بغير د هغه لپاره د تدبير يا کتابت او داسي نورو هيڅ اختيار نه وي، او دريم ساکت شريک کوم چي بالکل چپ پاته دی، اوس د هغه لپاره د ضمان دوه سببه پيدا سول: ① د مدبر جوړونکي د تدبير ضمان ② د مُعتق (آزادونکي) د إعتاق ضمان. لېکن هغه ته به فقط له مدبر څخه د ضمان اخيستلو حق وي. نه له مُعتق څخه، د دې لپاره چي دا ضمان د معاوضې ضمان سي، ځکه چي په ضمانانو کي ضمانِ معاوضه أصل دی، له همدې کبله د غصب تاوان هم ضمانِ معاوضه ګرځول سوی دی، او له مدبر جوړونکي شريک څخه د داسي ضمان اخيستل ممکن هم دي، ځکه چي غلام له يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته د منتقل کېدلو صلاحيت لري، لېکن په إعتاق کي د ضمانِ معاوضه جاري کېدل او نافذېدل ممکن نه دي (يعني په إعتاق کي ضمانِ معاوضه جاري کېدای نه سي)، ځکه چي دلته د إعتاق په وخت کي به غلام يا مکاتب وي، لکه څرنګه چي د امام صاحب مسلک دی، يا به آزاد وي، لکه څرنګه چي د صاحبينو مسلک دی.

**ولا بُدّ إلخ:** فرمايي چي د کتابت فسخ کېدلو لپاره د مکاتب رضاء ضروري ده، د دې لپاره چي په هغه کي د اِنتقالُ الملک صلاحيت پيدا سي او انتقالُ الملک قبول کړي، نو له همدې وجهي ساکت شريک چي له مدبر جوړونکي شريک څخه کوم ضمان اخلي، هغه به ضمانِ معاوضه دی. تر دې وروسته به مدبر جوړونکي ته دا حق وي چي هغه له مُعتق څخه د مدبر غلام د قيمت د دريمي حصې په اندازه ضمان واخلي، ځکه چي مُعتق د دې مُدبر جوړونکي حصه د مدبر کېدلو په حالت کي برباد کړې ده (يعني کله چي مدبر جوړونکي خپله حصه مدبره کړه، نو د هغه حصه مدبره وګرځېده، لېکن مُعتِق د خپلي حصې په آزادولو سره د هغه حصه فاسده او برباد کړه)، او څرنګه چي ضمان د برباد سوي شي په اندازه واجبيږي، نو ځکه به پر مُعتق د مدبر جوړونکي لپاره د غلام د قيمت د دريمه حصه واجب وي.

او د فقهاؤ فیصله دا ده چې د مدبر غلام قیمت دومره وي لکه د خالص غلام د قیمت دوې حصې (دوه ثلثان). او مدبر جوړونکي چې ساکت شریک ته کوم ضمان ورکړی وي. هغه له مُعتق څخه نه سي اخیستلای، ځکه مدبر جوړونکي په دې وجه ساکت شریک ته ضمان ورکړی دی چې هغه د تدبیر په وخت کي د ساکت شریک د حصې مالک سو. او څرنګه چې دا ملکیت د ضمان (تاوان) ورکولو په وجه ثابت سو. په اصلي حالت یا په یو بل سبب سره ثابت سوی نه دی. نو ځکه به د ضمان موجب نه وي، یعني د دې سبب به نه وي چې مدبر جوړونکی له مُعتق څخه زیات مال واخلي (ځکه چې دا ملکیت اصلي نه دی. بلکي د تاوان ورکولو په وجه هغه ته حاصل سوی دی).

او د دې غلام ولاء به د مُعتق او مدبر جوړونکي تر مینځ د دریو حصو په حساب سره مشترکه وي یعني دوې حصې به د مدبر جوړونکي وي. او یوه حصه به د مُعتق وي. ځکه چې په همدغه حساب سره د دوی په ملکیتونو کي عتق واقع سوی دی.

وإذا لم یکن إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه د صاحبینو په نیز تدبیر (یعني مدبر جوړول) متجزي کېدای نه سي. نو کله چې هم یو شریک خپله حصه مدبره جوړه کړي نو په هغه وخت کي ټوله غلام د هغه له طرفه مدبر ګرځي (او ټوله غلام د هغه په ملکیت کي راځي). او څرنګه چې د هغه په تدبیر سره د هغه د دواړو شریکانو حصه فاسده سوه، نو ځکه به هغه د خپلو دواړو شریکانو د حصې ضامن وي. او دا ضمان به د غربت او مالداری په دواړو حالتونو کي برابر وي. او هیڅ ډول بدلون نه پکښي کیږي، ځکه چې دا خو د ملکیت حاصلولو ضمان دی. نو د استیلاد سره مشابه سو. او د استیلاد حکم دا دی چې که په دوو شریکانو کي له مشترکي مینځي څخه د یوه شریک بچی پیدا سي (یعني یو شریک خپله حصه اُم ولد جوړه کړي). نو پر هغه به د دویم شریک د حصې په اندازه ضمان واجب وي. هغه که اُم ولد جوړونکی شریک مالدار وي، یا غریب وي. په ضمان کي به هیڅ بدلون نه کوي. همداسي به دلته هم پر مدبر جوړونکي شریک د پاته دوو شریکانو د حصو په اندازه ضمان لازم وي. او په ضمان کي به هیڅ بدلون نه کوي.

د دې په خلاف د إعتاق مسئله ده. نو هغه له تدبیر څخه جلا ده. ځکه د إعتاق په صورت کي چې کوم ضمان واجبیږي هغه ضمان جنایت وي (یعني د جرم ضمان وي). او پاته سوه ولاء نو په دې مسئله کي به ولاء ټوله د مدبر جوړونکي شریک لپاره وي. ځکه چې اوس ټوله غلام د هغه سو (یعني کله چې هغه خپله حصه مدبره کړه نو ټوله غلام د هغه په ملکیت کي راغلی).

# د مينځې په أم ولد کېدلو کې د دوو شريکانو د اختلاف بيان

وَإِذَا كَانَتْ جَارِيَةٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ او که چيرې يوه مينځه د دوو خلګو په مينځ کې مشترکه وي وَزَعَمَ أَحَدُهُمَا أَنَّهَا أُمُّ وَلَدٍ لِصَاحِبِهِ او له دوی څخه يو دا ګومان [او دعوی] وکړي چې دا مينځه زما د ملګري أُم ولد ده [يعني يو شريک اقرار وکړي چې زما شريک دا مشترکه مينځه أُم ولد جوړه کړې ده] وَأَنْكَرَ ذٰلِكَ الْآخَرُ او دويم [شريک] له دې څخه انکار وکړي [چې ما هغه أُم ولد نه ده جوړه کړې] فَهِيَ مَوْقُوفَةٌ يَوْمًا وَيَوْمًا تَخْدُمُ الْمُنْكِرَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا مينځه يوه ورځ توقف کوي او يوه ورځ به د منکر [انکار کونکي شريک] خدمت کوي وَقَالَا: إِنْ شَاءَ الْمُنْكِرُ اِسْتَسْعَى الْجَارِيَةَ فِي نِصْفِ قِيمَتِهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که منکر وغواړي نو په نصف قيمت کې دې په مينځې کسب [او مزدوري] وکړي ثُمَّ تَكُونُ حُرَّةً لَا سَبِيلَ عَلَيْهَا بيا به هغه مينځه آزاده وي او پر هغې به [د هيچا] هيڅ لاره نه وي لَهُمَا: أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُصَدِّقْهُ صَاحِبُهُ اِنْقَلَبَ إِقْرَارُ الْمُقِرِّ عَلَيْهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې کله د اقرار کونکي [دعوی کونکي] ملګري د هغه د أُم ولد جوړولو تصديق نه وکړی نو د اقرار کونکي اقرار پر هغه را واوښتی كَأَنَّهُ اسْتَوْلَدَهَا ګواکې هغه مينځه أُم ولد جوړه کړه فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ الْمُشْتَرِي عَلَى الْبَائِعِ أَنَّهُ أَعْتَقَ الْمَبِيعَ قَبْلَ الْبَيْعِ نو داسې سو لکه مشتري چې پر بائع دا اقرار وکړي چې بائع تر خرڅولو مخکې مبيع [غلام] آزاد کړی دی يُجْعَلُ كَأَنَّهُ أَعْتَقَ نو [په دې صورت کې] به مبيع [غلام] داسې ګرځول کيږي لکه مشتري چې [په خپله هغه] آزاد کړی وي كَذَا هٰذَا همداسې به دغه [مسئله] وي [يعني دلته به هم دغه حکم وي] فَيَمْتَنِعُ الْخِدْمَةُ نو ځکه به خدمت اخيستل ممنوع وي [يعني نو ځکه به أُم ولد د اقرار کونکي خدمت نه کوي، بلکې د هغه د خدمت په ورځ به توقف کوي] وَنَصِيبُ الْمُنْكِرِ عَلَى مِلْكِهِ فِي الْحُكْمِ او په حکم کې د منکر حصه د هغه پر ملکيت پاته ده فَتَخْرُجُ إِلَى الْعَتَاقِ بِالسِّعَايَةِ نو ځکه به [أُم ولد] د سعايه په ذريعه د آزادی وطرف ته را وځي كَأُمِّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ إِذَا أَسْلَمَتْ لکه د نصراني أُم ولد چې کله مسلمانه سي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْمُقِرَّ لَوْ صَدَقَ كَانَتِ الْخِدْمَةُ كُلُّهَا لِلْمُنْكِرِ د

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۱، ص:۲۷۷)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۱۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۹]

امام صاحب دليل دا دی: چې که چيري اقرار کونکی رېښتوني وي نو ټوله خدمت به د منکر لپاره وي وَلَوْكَذَبَ كَانَ لَهُ نِصْفُ الْخِدْمَةِ او که هغه درواغجن وي نو د هغه لپاره به نيم خلمت وي فَيَثْبُتُ مَاهُوَ الْمُتَيَقَّنُ بِهِ وَهُوَ النِّصْفُ نو کوم شی چې يقيني وي هغه به ثابتيږي چې هغه نيم خدمت دی وَلَا خِدْمَةَ لِلشَّرِيكِ الشَّاهِدِ وَلَا اسْتِسْعَاءَ او د ګواهي ورکونکي [مُقر] شريک لپاره به نه خلمت وي او نه د استسعاء حق لِأَنَّهُ يَتَبَرَّأُ عَنْ جَمِيعِ ذٰلِكَ بِدَعْوَى الْاِسْتِيلَادِ وَالضَّمَانِ ځکه چې د استيلاد او ضمان په دعوىٰ کولو سره دا [مُقر] شريک له دې ټولو [دوارو شيانو] څخه بري دي وَالْإِقْرَارُ بِأُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ يَتَضَمَّنُ الْإِقْرَارَ بِالنَّسَبِ او [ديو چا په حق کي] دأم ولد کېدلو اقرار د نسب اقرار کولو ته [هم] شامليږي وَهُوَ أَمْرٌ لَازِمٌ لَا يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ او دا يو لازم امر دی کوم چې په ردولو سره [هم] نه رديږي فَلَا يُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ الْمُقِرُّ كَالْمُسْتَوْلِدِ نو دا ممکن نه دي چې اقرار کونکی شريک أم ولد جوړونکی وګرځول سي [يعني دا ممکن نه دي چې اقرار کونکی د خپل اقرار او دعوىٰ په وجه أم ولد جوړونکی وشمارل سي].

**اللغات:** ﴿جَارِيَة﴾ مينځه، ﴿اِنْقَلَبَ﴾ د انفعال ماضي ده: اوښتل، ګرځېدل، ﴿مُقِرّ﴾ اقرار کونکی (مراد ځني اول شريک دی چې هغه په دويم شريک دأم ولد جوړولو دعوىٰ کړې ده).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يوه مينځه د زيد او خالد په مينځ کي مشترکه وي او زيد دعوىٰ وکړي چې خالد دا مينځه خپل أم ولد جوړه کړې ده، لېکن خالد له دې څخه انکار وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې دا مينځه به يوه ورځ توقف کوي او يوه ورځ به د منکر شريک (خالد) خدمت کوي (يعني په کومه ورځ چې د مُدعي شريک [زيد] د خلمت نوبت وي په هغه ورځ به مينځه کښېني، د هغه به هيڅ خلمت نه کوي، او په کومه ورځ چې د منکر شريک د خلمت نوبت وي، په هغه ورځ به أم ولد د هغه خلمت کوي)، لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که منکر شريک وغواړي نو په دې مينځه دي کسب او کار وکړي او نصف قيمت دي ځني واخلي، تر دې وروسته دا مينځه آزاديږي او پر هغې د مُقر (مُدّعي شريک) هيڅ لاره نسته (يعني دا مينځه به زيد لپاره کسب او کار نه کوي او هغه ته به هيڅ شی نه ورکوي).

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې کله د دويم شريک (منکر) له طرفه د مُقِر د دعوىٰ او اقرار تصديق نه وسو، نو د مُقر دعوىٰ او اقرار په خپله د هغه وطرف ته را وګرځېدی او پر هغه را وپس سو او صورت داسي سو لکه په خپله چې دغه مُقر (مدعي) هغه مينځه أم ولد جوړه کړې وي، نو ځکه به د ده اقرار د

ده په حق کي معتبر او لازم وي او د ده لپاره به پر مينځي هيڅ لاره نه وي او له مينځي څخه خدمت اخيستل به د ده لپاره ممنوع وي، لکه د يو مبيع غلام په باره کي چي مُشتري دا دعویٰ وکړي چي زما بائع ترېيع مخکي دا غلام آزاد کړی وو لېکن بائع له دې څه انکار وکړي نو په دې صورت کي هم د إعتاق اقرار (دعویٰ) پر هغه بيرته راګرځيٰ او پر هغه لازميږي او دا غلام به د هغه له طرفه آزاد کړی سوي شمارل کيږي، همداسي به په دې مسئله کي هم د مينځي د اُم ولد کېدلو دعویٰ په خپله پرمدعي شريک او مُقر (زيد) راګرځي او مينځه به د هغه اُم ولد وي، اوس به د هغه لپاره له دې مينځي څخه خدمت اخيستل صحيح نه وي، ځکه چي مينځه د هغه په خيال او ګومان کي د بل چا (خالد) اُم ولد ده (يعني د زيد دعویٰ او اقرار دا دی چي خالد دا مينځه اُم ولد جوړه کړې ده او د هغه په حق کي آزاده ده، نه زما په حق کي)، لېکن کله چي بل څوک (خالد) د دې منکر دی (لهذا دا مينځه به د زيد اُم ولد وي او د زيد په حق کي به آزاده وي)، او د هغه (خالد) حصه ظاهراً د هغه په ملکيت کي پاته ده، لهذا د مينځي د آزادۍ او خلاصون لپاره به (د منکر له طرفه) په هغې کسب او مزدوري (سعايه) کيږي لکه د نصراني سړي اُم ولد چي کله مسلمانه سي، نو هغې د آزادۍ لاره هم فقط سعايه ده، لهذا په دې مسئله کي هم د دغه مينځي د آزادۍ لاره فقط سعايه ده.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي که چيري دغه مُقر شريک (کوم چي د مينځي د اُم ولد کېدلو اقرار کوي) په خپل اقرار کي ريښتوني وای او د ﷺ تصديق سوي وای، نو مينځه به د مُنکر شريک اُم ولد وای او د هغې ټوله خدمت به د همدغه مُنکر شريک لپاره وای، او که مُقر شريک په خپل اقرار کي درواغجن وای نو د مُنکر لپاره به نصف خدمت وای، ځکه چي مينځه خو د دواړو په مينځه کي مشترکه ده، لهذا د مُنکر شريک د انکار باوجود به د هغه لپاره فقط د نصف خدمت حق وای، او څرنګه چي نصف متقين دی، نو ځکه به د منکر شريک لپاره فقط هغه ثابت وي، او د مُقر شريک لپاره به نه د خدمت حق وي، او نه د استسعاء حق، ځکه چي هغه پر منکر شريک د مينځي د اُم کېدلو په حواله سره د ضمان د وجوب دعویٰ کوي، نو ځکه به له ضمان څخه بغير د هغه لپاره بل هيڅ حق نه وي.

**والإقرار إلخ**: په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب ورکول سوی دی، حاصل يې دا دی چي د مينځي د اُم ولد کېدلو اقرار "اقرار بالنسب" ته شامل دی، او اقرار بالنسب يو لازم امر دی کوم چي په ترديد او انکار سره ردّ کېدای نه سي، نو په دې وجه مُقر شريک اُم ولد جوړونکي نه سي شمارل کېدای او مدعیٰ عليه (منکر شريک) هم له دې څخه من کل وجه نه سي بري کېدای، بلکي هغه به ته فقط د نصف خدمت حق ورکول کيږي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ كَانَتْ أُمُّ وَلَدٍ بَيْنَهُمَا او که يوه أُمِ ولد د دوو خلګو په مينځ کې مشترکه وي فَأَعْتَقَهَا أَحَدُهُمَا وَهُوَ مُوسِرٌ او يو [شريک] هغه آزاده کړي، حال دا چې هغه مالدار وي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه ضمان [تاوان] نسته وَقَالَا: يَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغه به د أُمِ ولد د نيم قيمت ضامن وي لِأَنَّ مَالِيَّةَ أُمِّ الْوَلَدِ غَيْرُ مُتَقَوَّمَةٍ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د أُمِ ولد ماليت متقوّم [قيمتداره] نه دی وَمُتَقَوَّمَةٌ عِنْدَهُمَا [ليکن] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز متقوّم دی وَعَلَى هَذَا الْأَصْلِ تُبْتَنَى عِدَّةٌ مِنَ الْمَسَائِلِ أَوْرَدْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او پر دې أصل څو مسئلې مبني دي کوم چې موږ په کفايةُ المنتهي کې ذکر کړي دي وَجْهُ قَوْلِهِمَا: أَنَّهَا مُنْتَفَعٌ بِهَا وَطْئًا وَإِجَارَةً وَاسْتِخْدَامًا د صاحبينو د قول دليل دا دی: چې د وطي، إجاره او خدمت اخيستلو په توګه له أُم ولد څخه نفع اخيستل ممکن دي وَهَذَا هُوَ دَلَالَةُ التَّقَوُّمِ او دا د متقوم کېدلو نښه ده وَبِامْتِنَاعِ بَيْعِهَا لَا يَسْقُطُ تَقَوُّمُهَا كَمَا فِي الْمُدَبَّرِ او د هغې د بيع په ممنوع کېدلو سره د هغې متقوم کېدل نه ساقطيږي أَلَا تَرَى أَنَّ أُمَّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ إِذَا أَسْلَمَتْ عَلَيْهَا السِّعَايَةُ آيا ته نه ګورې! چې کله د نصراني أُم ولد مسلمانه سي نو پر هغې سعايه واجب ده وَهَذَا آيَةُ التَّقَوُّمِ و دا د متقوم کېدلو نښه ده غَيْرَ أَنَّ قِيمَتَهَا ثُلُثُ قِيمَتِهَا قِنَّةً ليکن د هغې قيمت به د خالص مينځې د قيمت دريمه حصه وي عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې فقهاؤ فرمايلي دي لِفَوَاتِ مَنْفَعَةِ الْبَيْعِ وَالسِّعَايَةِ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې [د مالک] تر مرګ وروسته [په هغې کې] د بيع او سعايه منفعت فوتيږي بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ لِأَنَّ الْفَائِتَ مَنْفَعَةُ الْبَيْعِ په خلاف د مدبر غلام، ځکه چې [په مدبر غلام کې] د بيع منفعت فوت سوی دی أَمَّا السِّعَايَةُ وَالِاسْتِخْدَامُ بَاقِيَانِ کوم چې سعايه او خدمت اخيستل دي نو هغوی دواړه [په مدبر غلام کې] پاته دي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ التَّقَوُّمَ بِالْإِحْرَازِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې متقوم کېدل د إحرازا [خوندي کولو] په وجه سره وي وَهِيَ مُحْرَزَةٌ لِلنَّسَبِ لَا لِلتَّقَوُّمِ او أُم ولد د نسب لپاره محرزه [خوندي]

---

[1] القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله : وبقول الإمام قال الجمهور (الدر المنتقى ج:۳، ص:۵۲۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۰۰]

وي نه د تقوّم لپاره وَالْإِحْرَازُ لِلتَّقَوُّمِ تَابِعٌ او إحراز د تقوّم لپاره تابع دی وَلِهٰذَا لَا تَسْعٰى لِغَرِيْمٍ وَلَا لِوَارِثٍ او له همدې وجهې اُمِ ولد مينځه د هيڅ قرض غوښتونکي او وارث لپاره سعايه [کسب او مزدوري] نه کوي بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ په خلاف د مدبر غلام وَهٰذَا لِأَنَّ السَّبَبَ فِيْهَا مُتَحَقِّقٌ فِي الْحَالِ او دا [حکم] ځکه دی چې په اُمِ ولد کې اوس [هم د آزادۍ] سبب ثابت دی وَهُوَ الْجُزْئِيَّةُ الثَّابِتَةُ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ او هغه د بچې په واسطه سره ثابتېدونکې جزئيت دی عَلٰى مَا عُرِفَ فِي حُرْمَةِ الْمُصَاهَرَةِ لکه په حرمت مصاهرت کې چې دا [خبره] وپېژندل سوه إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَظْهَرْ عَمَلُهُ فِي حَقِّ الْمِلْكِ ضَرُوْرَةَ الْاِنْتِفَاعِ لیکن د هغه عمل [اله اُمِ ولد ځخه] د نفع اخيستلو د ضرورت په وجه د ملکيت په حق کې ښکاره نه سو فَعَمِلَ السَّبَبُ فِي إِسْقَاطِ التَّقَوُّمِ نو ځکه دغه سبب د تقوم په ساقطولو کې عمل وکړی وَفِي الْمُدَبَّرِ يَنْعَقِدُ السَّبَبُ بَعْدَ الْمَوْتِ او په مدبر غلام کې تر مرګ وروسته سبب منعقد کیږي وَامْتِنَاعُ الْبَيْعِ فِيْهِ لِتَحْقِيقِ مَقْصُوْدِهٖ او د هغه د بيع ممنوع کېدل د هغه د مقصود ثابتېدلو په وجه دي [يعني د هغه خرڅول ځکه اوس ممنوع دي چې د مالک تر مرګ وروسته په هغه کې آزادي متحققه سي] فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه سره جلا سول [يعني په اُمِ ولد او مدبر کې فرق راغلی] وَفِي أُمِّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ قَضَيْنَا بِتَكَاتُبِهَا عَلَيْهِ او د نصراني په اُمِ ولد کې مورږ دا فيصله کړې ده چې اُمِ ولد د نصراني په حق کې مکاتبه ګرځي دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْجَانِبَيْنِ دې لپاره چې له دواړو طرفونو ځخه ضرر دفع سي وَبَدَلُ الْكِتَابَةِ لَا يَفْتَقِرُ وُجُوْبُهُ إِلَى التَّقَوُّمِ او د بدل کتابت وجوب تقوّم ته نه محتاج کیږي [يعني په بدلِ کتابت کې دا ضروري نه ده چې هغه به متقوم وي].

**اللغات:** ﴿فَائِت﴾ د نصر اسمِ فاعل دی: فوتېدونکی (فوت کړی سوی شی)، ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظول (حفاظت کول)، خوندي کول، ذخيره کول، ﴿غَرِيْم﴾ قرض غوښتونکی (هغه کس چې پر بل چايې پور باندي وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يوه مينځه د دوو خلکو په مينځ کې مشترکه وه او له هغې ځخه يو بچی پيدا سو، او دواړو شريکانو په دې بچي دعویٰ وکړه او مينځه په مشترکه توګه د دواړو اُمِ ولد وګرځېده، تر دې وروسته يوه شريک دا مينځه آزاده کړه او هغه مالدار وو، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر مُعتِق (آزادونکي) هيڅ ضمان نه واجبيږي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله

په نيز پر هغه دأم ولد د نصف قيمت ضمان واجبيږي. د امام صاحب او صاحبينو د دغه اختلاف اصل او بنياد دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دأم ولد ماليت غيرِ متقوم دی (يعني د هغه په نيز أم ولد يو داسي مال دی چي قيمت نه لري، او پر هغې قيمت او بيه نه سي ايښول کېدای)، او د صاحبينو په نيز د مينځي ماليت متقوم دی، صاحب د هدايې فرمايي چي پر همدغه أصل نوري مسئلي هم مبني دي، چي هغه موږ په "كفاية المنتهي" كي ذكر كړي دي.

**د صاحبينو دليل:** په دې مسئله کي د صاحبينو دليل دا دی چي دأم ولد سره وطي هم کېدای سي او هغه په إجاره هم ورکول کېدای سي او له هغې څخه خدمت هم اخيستل کېدای سي، او ښکاره خبره ده چي دا شيان له تقوّم څخه بغير ممكن نه دي (يعني دا پر دې دلالت كوي چي مينځه متقوّم مال دی، او پر هغې بيه او قيمت لګول کېدای سي)، نو معلومه سوه چي أمِ ولد مال متقوّم دی او د مالِ متقوم په هلاکولو سره ضمان واجبيږي، نو ځکه به دلته پر آزادونكي شريک د هغې نصف قيمت ضمان واجب وي، او دا اعتراض دي نه کيږي چي "د هغې بيع ناجائز ده نو ځکه هغه غيرِ متقوم مال دی" (دا اعتراض صحيح نه دی) ځکه چي د مدبر بيع هم ممنوع او ناجائز ده، حالانكي مدبر متقوّم دی، همداسي به أمِ ولد هم د بيع د ممانعت باوجود متقوم وي، همدا وجه ده که ديو نصراني أمِ ولد مسلمانه سي نو پر هغې سعايه کول او خپل ځان آزادول واجب دي، او سعايه کول د تقوّم څرګند او ښکاره دليل دی، له دې څخه هم دأمِ ولد متقوم کېدل ښکاره کيږي، خو څرنګه چي په أمِ ولد کي د "استيلاد" وصف لګول سوی دی، نو ځکه به د هغې قيمت د خالص مينځي د قيمت په دريمه حصه وي، همدا د فقهاؤ فيصله ده، ځکه چي تر استيلاد وروسته دأمِ ولد د خرڅولو منفعت فوتيږي او د مالک تر مرګ وروسته په أمِ ولد کسب او سعايه کول هم نه سي کېدای، ليکن خالص مينځه خرڅول کېدای هم سي او په هغې کسب او سعايه کول هم کېدای سي، نو ځکه به دأمِ ولد قيمت حتماً د خالص د مينځي تر قيمت کم او ټيټ وي.

د دې په خلاف د مدبر مسئله ده، نو د هغه په حق کي په تدبير سره فقط د بيع منفعت فوت سوی وي ليکن سعايه او استخدام دواړه د هغه په حق کي پاته وي، نو له همدې وجهي د هغه قيمت د غلام د قيمت دوه دريمه حصه کيږي (يعني د خالص غلام د قيمت دوه ثلثه (دوې دريمي حصې) د هغه قيمت کيږي).

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي متقوّم کېدل د هغه إحراز (خوندي کولو) په وجه وي کوم چي د مالدار والي لپاره وي (مثلاً مالک غلام خرڅ کړي او د هغه قيمت د ځان سره خوندي وساتي او په هغه سره مالدار سي، نو د داسي إحراز په وجه غلام متقوّم مال دی)، او اُم ولد د نسب لپاره محرز کيږي (خوندي کيږي)، نه د تقوّم لپاره، او إحراز للتقوم د نسب تابع وي، او اُم ولد ځکه د نسب لپاره محرز کيږي چي د مالک تر مرګ وروسته اُم ولد د مالک د هيڅ قرض غوښتونکي او وارث لپاره کسب او ګټه نه کوي، د دې په خلاف مدبر فقط د تقوّم او مالدار والي لپاره محرز کيږي، نو په دې وجه په اُم ولد او مدبر کي فرق راغلی، او وجه د فرق يې دا ده چي په اُم ولد کي فی الحاله سبب ثابتيږي، او هغه سبب د بچي په واسطه سره د مالک او اُم ولد په مينځ کي د جزئيت او بعضيت ثبوت دی، لکه په حرمت مصاهرت کي چي د دې تفصيل تېر سو، لېکن د انتفاع د ضرورت په وجه به د ملکيت په حق کي د دغه سبب اثر نه ښکاريږي، نو ځکه به د مالک په حق کي د هغې ملکيت باقي پاته وي او مالک به له هغې څخه خدمت اخلي، ها! د تقوّم د إسقاط په حق کي به سبب مؤثر وي او د اُم ولد ماليت به ختموي، او کله چي ماليت ختم سي، نو بيا به د هغې په آزادولو سره پر مُعتق ضمان هم نه واجبيږي.

او په مدبر کي فی الحاله سبب نه ثابتيږي بلکي د مالک تر وروسته (د إسقاط) سبب پيدا کيږي، او د مقصود حاصلولو په وجه د هغه بيع ممتنع وي، نو په دې وجه په اُم ولد او مدبّر کي فرق راغلی.

او د نصراني په اُم ولد کي زموږ فيصله دا ده چي هغه مکاتبه ګرځي، د دې لپاره چي نه اُم ولد ته څه ضرر ورسيږي، او نه نصراني ته، او څرنګه چي د بدل کتابت وجوب د مال د متقوم کېدلو تقاضا نه کوي، نو په دې حواله سره په اُم ولد او مدبر او د نصراني په اُم ولد کي فرق دی، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِشَارِحِهٖ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِأَسَاتِذَتِهٖ وَلِمَنْ قَامَ بِنَشْرِهٖ وَطَبْعِهٖ. (آمين)

احقر ابو عباس حبيب الرحمن "مدني"



# بَابُ عِتْقِ أَحَدِ الْعَبْدَيْنِ

(دا) باب له دوو غلامانو څخه دیوه غلام آزادېدلو (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب "بَابُ الْعَبْدِ يُعْتَقُ بَعْضُهُ" بیان کړی، او اوس "بَابُ عِتْقِ أَحَدِ الْعَبْدَيْنِ" بیانوي، ځکه چې په دواړو بابونو کې "عِتْقُ الْبَعْضِ" دی، لیکن دیوه غلام بعض د دوو غلامانو له بعض (یعني له یوه غلام) څخه مقدّم دی، نو په دې وجه صاحب کتاب "عِتْقِ بَعْضِ الْعَبْدِ" له "عِتْقِ أَحَدِ الْعَبْدَيْنِ" څخه مخکې بیان کړی دی. (بنایه ج:۵، ص:۶۳۹)

**ضروري یادونه:** له دې باب څخه تر "کتابُ الأیمان" پورې مونږ په خپل کتاب "فتحُ الهدایه" کې د أثمارُ الهدایې طریقه اختیار کړې ده، ځکه چې صاحب د أثمار الهدایې دغه بابونه په ډېر ښکلي انداز سره حل کړي دي، او د طالبانو د آسانۍ لپاره یې هر عبارت پر څو اجزاؤ وېشلی دی او په ځینو مسئلو کې یې د کتاب له دلیل څخه بغیر نور دلائل هم ذکر کړي دي، او کومه مسئله چې پر یو اُصول مبني وي هغه اُصول یې هم ذکر کړی دی، خو څرنګه چې یې په ډېر مختصر انداز سره عبارتونه حل کړي دي نو باید تاسي یې په دقیق نظر سره اوګورئ! چې په معمولي وخت کې به تاسي په ټوله عبارت پوه سئ.

## له تعیین څخه بغیر په دریو غلامانو کې یو غلام آزادول

وَمَنْ كَانَ لَهُ ثَلَاثَةُ أَعْبُدٍ اوکه د یو سړي [مالک] لپاره درې غلامان وه دَخَلَ عَلَيْهِ اثْنَانِ [او] پر هغه دوه غلامان داخل سوه [یعني له هغو څخه دوه غلامان د مالک سره په کور کې حاضر وه] فَقَالَ: أَحَدُكُمَا حُرٌّ او مالک ورته وویل: په تاسي دواړو کې یو آزاد دی ثُمَّ خَرَجَ وَاحِدٌ وَدَخَلَ آخَرُ بیا یو غلام ووتی او بل غلام راغلی فَقَالَ: أَحَدُكُمَا حُرٌّ او [بیا] مالک وویل: په تاسي دواړو کې یو آزاد دی ثُمَّ مَاتَ وَلَمْ يُبَيِّنْ بیا مالک مړ سو او هغه [دآزاد کړی سوي غلام] وضاحت نه وکړی عَتَقَ مِنَ الَّذِي أُعِيدَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ وَنِصْفُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْآخَرَيْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې پر کوم غلام د مالک د قول اعاده سوې وي اچې هغه نه وتونکی غلام دی ا د هغه درې حصې آزادیږي او د نورو

دواړو غلامانو نصف [نیمه حصه] آزادیږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ كَذٰلِكَ إِلَّا فِي الْعَبْدِ الْآخِرِ او امام محمد رَحِمَهُ الله هم داسي فرمايلي دي ما سوا په آخري غلام کي [يعني کوم غلام چي په آخر کي راغلی دی] فَإِنَّهُ يَعْتِقُ رُبُعُهُ نو د هغه [فقط] څلورمه حصه آزاديږي.

**اللغات:** ﴿أُعِيْدَ﴾ د إفعال ماضي مجهوله ده: راګرځول، إعاده کول. ﴿رُبُع﴾ او رُبْع: څلورمه حصه (څلورمه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د خالد دري غلامان وه: زيد، عُمر او رشيد. زيد او عمر په کور کي حاضر وه، نو خالد (مالک) ورته وويل چي په تاسي دواړو کي يو غلام آزاد دی، بيا زيد له کور څخه ووتی او رشيد راغلی، او بيا خالد دې دواړو ته وويل: "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" په تاسي دواړو کي يو آزاد دی، او بيا له خالد له تعيين او بيان څخه بغير مړ سو (يعني تر دې وروسته يې غلام متعين او معلوم نه کړې چي زما کوم غلام مراد دی او بيا مړ سو)، نو د زيد نيمه حصه (نصف) آزاديږي او د رشيد هم نصف آزاديږي، او عُمر ټوله آزادېدل پکار دي، لېکن دلته د هغه يو نصف اول آزاد سو، او کله چي دويم وار خالد "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" وويل، نو په دې سره د هغه څلورمه حصه (يوه ربع) آزاده سوه، نو په دې توګه په دواړو وارونو کي د هغه درې رُبع (درې څلورمي حصې) آزادي سوي.

**دليل:** اول وار د "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" په ويلو سره د عُمر نصف (نيمه حصه) آزاده سو، نو ځکه به دويم وار د نصف، نصف يعني فقط يوه رُبع آزاديږي، او چي دواړه وارونه سره يو ځای کړی سي نو د هغه درې ربع به آزادي وي، او د زيد او بکر به نصف، نصف آزاد وي. (دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، او تفصيل به يې په را روانو عبارتونو کي ذکر سي).

أَمَّا الْخَارِجُ فَلِأَنَّ الْإِيجَابَ الْأَوَّلَ دَائِرٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الثَّابِتِ کوم چي وتونکي غلام دی نو په دې وجه چي اول إيجاب [يعني اول أَحَدُكُمَا حُرٌّ] د هغه او د ثابت پاتېدونکي [نه وتونکي] غلام په مېنځ کي مشترک دی وَهُوَ الَّذِي أُعِيدَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ او ثابت [نه وتونکی] غلام هغه دی چي پر هغه د قول إعاده سوې ده فَأَوْجَبَ عِتْقَ رَقَبَةٍ بَيْنَهُمَا نو اول إيجاب د دې دواړو غلامانو په مېنځ کي د يوه غلام عتق [آزادي] واجب کړه لِاسْتِوَائِهِمَا ځکه چي دوی دواړه سره برابر دي فَيُصِيبُ كُلًّا مِنْهُمَا النِّصْفُ نو ځکه به په دوی کي هر يوه ته نصف، نصف عتق حاصلېږي غَيْرَ أَنَّ الثَّابِتَ إِسْتَفَادَ بِالْإِيجَابِ الثَّانِي رُبُعًا آخَرَ خو دا چي ثابت غلام په دويم إيجاب سره [د آزادی] بله رُبع حاصله کړه لِأَنَّ الثَّانِيَ دَائِرٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الدَّاخِلِ ځکه چي دويم إيجاب

د هغه او د داخلېدونکي غلام په مينځ کي مشترک دی [او داخلېدونکی غلام هغه دی کوم چي په آخر کي راغلی دی] فَيَتَنَصَّفُ بَيْنَهُمَا نو ځکه به [دويم عتق هم] د دوی په مينځ کي نصف کرځي غَيْرُ أَنَّ الثَّابِتَ اِسْتَحَقَّ نِصْفَ الْحُرِّيَّةِ بِالْإِيجَابِ الْأَوَّلِ لېکن ثابت غلام د اول ايجاب په ذريعه د نصف حريت [آزادی] مستحق سو فَشَاعَ النِّصْفُ الْمُسْتَحَقُّ بِالثَّانِي فِي نِصْفَيْهِ نو دا [ثابت] غلام چي په دويم إيجاب سره د کوم نصف حريت [عتق] مستحق سو [آزاد سو] هغه د ده په دواړو نصفونو کي وغوړېدی اله دواړو نصفونو څخه مراد يو د هغه آزاد سوی نصف دی او بل يې فارغ نصف دی] فَمَا أَصَابَ الْمُسْتَحِقَّ بِالْأَوَّلِ لَغَا نو په اول إيجاب سره مستحق سوي [آزاد سوي] نصف ته چي کوم عتق ورسېدی هغه لغو سو وَمَا أَصَابَ الْفَارِغَ بَقِيَ او فارغ نصف ته چي کوم عتق ورسېدی هغه باقي پاته سو فَيَكُونُ لَهُ الرُّبُعُ نو ځکه به [په دويم إيجاب کي] د هغه لپاره رُبع وي فَتَمَّتْ لَهُ ثَلَاثَةُ الْأَرْبَاعِ نو [اوس] د هغه لپاره درې رُبعي [څلورمي حصې] پوره سوې وَلِأَنَّهُ لَوْ أُرِيدَ هُوَ بِالثَّانِي يَعْتِقُ نِصْفُهُ او ځکه که چيري په دويم إيجاب سره همدغه [ثابت] غلام مراد کړی سي نو د هغه [پاته] نصف به آزاد سي [ځکه چي يو نصف خو يې په اول إيجاب سره آزاد سوی دی] وَلَوْ أُرِيدَ بِهِ الدَّاخِلُ لَا يَعْتِقُ هٰذَا النِّصْفُ او که چيري په دويم إيجاب سره داخل غلام مراد کړی سي نو دا [د ثابت غلام] نصف به نه آزادېږي فَيَتَنَصَّفُ نو ځکه به دا نصف هم نيمايي کيږي فَيَعْتِقُ مِنْهُ الرُّبُعُ بِالثَّانِي وَالنِّصْفُ بِالْأَوَّلِ نو په دويم إيجاب سره به د ثابت غلام [فقط] يوه رُبع آزادېږي او [د هغه] يو نصف به په اول ايجاب سره آزاد وي [چي ټوله سره يو ځای کړل سي نو ټوله به څلور رُبعي سي].

**اللغات:** ﴿إِيجَاب﴾ له دې څخه مراد د مالک "إِحْدُكُمَا حُرٌّ" ويل دي، ﴿أَوْجَبَ﴾ د إفعال ماضي ده: واجبول، سبب جوړېدل، ﴿إِسْتَفَادَ﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، ﴿دَائِر﴾ د نصر اسمِ فاعل دی: ګرځېدونکی، ﴿يَتَنَصَّفُ﴾ د تفعّل مضارع ده: نيمايي کېدل، نصف، نصف کېدل (نيم، نيم کېدل)، ﴿شَاعَ﴾ د ضرب ماضي ده: غوړېدل.

**تشريح:** کله چي خالد د زيد او عُمر په حضور کي "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" وويل، نو د دواړو نصف، نصف آزاد سو، او کله چي يې د عمر او رشيد په حضور کي "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" وويل، نو د رشيد نصف آزاد سو، او په دې وار د عُمر فقط يوه رُبع آزاده سوه، او په دواړه وارونو کي د هغه درې رُبعو ته آزادي حاصله سوه.

**غيرأن الثابت إلخ:** په دې عبارت سره د دې خبري دليل ذکر کوي چي په دويم وار کي ولي د عُمر صرف "يوه رُبع آزاده" سوه ؟، د دليل حاصل دا دی چي په دويم وار کي که څه هم د عُمر نصف آزادېدل پکار وو لېکن دا

نصف د هغه پر آزاد سوي حصې هم واقع سو او پر هغه حصې هم واقع سو کوم چې تر اوسه غلام پاته ده، نو کومې چې پر آزاد سوي حصې واقع سو هغه لغو سو، او کوم چې پر غلامي حصې واقع سو هغه آزاد سو، نو ځکه د نصف، نصف (د نیمي حصې، نیمایي) ته آزادي حاصله سوه (چې هغه ته رُبع وایي)، نو په دې وجه په دویم وار کي فقط د عُمر رُبع (څلورمه حصه) آزاده سوه.

**ولأنه لو أُريد إلخ:** په دې عبارت سره د "ربع آزادېدلو" دویم دلیل بیانوي، حاصل يې دا دی چې کله خالد دویم وار "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" وویل، نو د هغه یو نصف خو اول آزاد سوی وو، نو په دویم وار کي به د هغه پاته نصف آزادیږي او دا نصف به د دوو غلامانو (عُمر او رشید) په مینځ کي تقسیمیږي، لهذا د عُمر په حق کي فقط یوه رُبع پاته سوه.

وَأَمَّا الدَّاخِلُ فَمُحَمَّدٌ يَقُولُ: لَمَّا دَارَ الْإِيجَابُ الثَّانِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ الثَّابِتِ او کوم چې داخلېدونکی غلام [رشید] دی نو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چې کله دویم إیجاب د داخلېدونکي غلام او ثابت غلام [عُمر] په مینځ کي مشترک دی وَقَدْ أَصَابَ الثَّابِتَ مِنْهُ الرُّبُعُ او په دې دویم إیجاب سره ثابت غلام ته رُبع رسېدلې ده فَكَذٰلِكَ يُصِيبُ الدَّاخِلَ نو همداسي به داخلېدونکي غلام ته [هم] ربع رسیږي وَهُمَا يَقُولَانِ أَنَّهُ دَائِرٌ بَيْنَهُمَا او شیخینو رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې دویم إیجاب د ثابت او داخلېدونکي غلام په مینځ کي مشترک دی وَقَضِيَّتُهُ التَّنْصِيفُ او اشتراک د تنصیف [نصف، نصف کولو] تقاضا کونکي دی وَإِنَّمَا نَزَلَ إِلَى الرُّبُعِ فِي حَقِّ الثَّابِتِ لِاسْتِحْقَاقِهِ النِّصْفَ بِالْإِيجَابِ الْأَوَّلِ لېکن د ثابت غلام [عُمر] په حق کي په دې وجه [دغه نصف] ربع ته راشوه کېږي چې هغه په اول إیجاب سره د نصف [عتق] مستحق سوی دی كَمَا ذَكَرْنَا لکه [اوس] چې مو ذکره وَلَا اسْتِحْقَاقَ لِلدَّاخِلِ مِنْ قَبْلُ او د داخلېدونکي غلام [رشید] لپاره تر دې مخکي هیڅ استحقاق [د عتق] حاصل نه دی فَيَثْبُتُ فِيهِ النِّصْفُ نو ځکه به په هغه کي نصف [عتق] ثابتیږي.

**تشریح:** امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دویم وار کي د عُمر (کوم چې دواړه واره په کور کي ثابت او حاضر وو) فقط یوه رُبع آزاده سوه، نو کوم غلام چې په دویم وار کي کور ته داخلیږي یعني رشید، نو هغه ته به هم یوه ربع آزادي حاصلیږي یعني د هغه به هم فقط یوه ربع آزادیږي.

**وهما يقولان إلخ:** په دې عبارت کي د شیخینو له طرفه امام محمد رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې په "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" سره یو پوره غلام آزادیږي، نو ځکه به رشید ته هم د نصف حصې آزادي ورکول کېږي

او عُمر ته به هم ورکول کيږي، لېکن څرنګه چې د عُمر يو نصف مخکې آزاد سوی دی، نو ځکه به هغه ته فقط د رُبع آزادي حاصلېږي، لېکن د رشيد نصف نه دی آزاد سوی، نو ځکه به د هغه نصف حصه آزاديږي. نه ربع.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ كَانَ الْقَوْلُ مِنْهُ فِي الْمَرَضِ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: که د مالک دا قول [أَحَدُكُمَا حُرٌّ] په مرضُ الموت کي وي قُسِمَ الثُّلُثُ عَلَى هَذَا نو پر همدغه [پورتني] حساب به [د هغه د مال] دريمه حصه تقسيميږي وَشَرْحُ ذَلِكَ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ سِهَامِ الْعِتْقِ وَهِيَ سَبْعَةٌ عَلَى قَوْلِهِمَا او د دې تشريح دا ده چي [د دريو غلامانو] د آزادېدلو حصې به سره جمع کيږي، چي هغه د شيخينو پر قول أووه حصې دي لِأَنَّا نَجْعَلُ كُلَّ رَقَبَةٍ عَلَى أَرْبَعَةٍ ځکه چي موږ هر غلام څلور حصې ګرځوو لِحَاجَتِنَا إِلَى ثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ ځکه چي موږ و دريو رُبعو ته ضرورت دی فَنَقُولُ: يَعْتِقُ مِنَ الثَّابِتِ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ وَمِنَ الْآخَرَيْنِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا سَهْمَانِ نو موږ وايو چي د ثابت غلام [عُمر] درې حصې به آزاديږي او له نورو دوو [زيد او رشيد] څخه به د هر يوه دوې، دوې حصې آزاديږي فَيَبْلُغُ سِهَامُ الْعِتْقِ سَبْعَةً نو د آزادېدلو حصې به [ټوله] أووه ته ورسيږي وَالْعِتْقُ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ وَصِيَّةٌ او په مرضُ الموت کي عتق [او آزادول] وصيت دی وَمَحَلُّ نَفَاذِهَا الثُّلُثُ او د وصيت د نفاذ محل [د مال] دريمه حصه ده فَلَا بُدَّ أَنْ يُجْعَلَ سِهَامُ الْوَرَثَةِ ضِعْفَ ذَلِكَ لهذا د وارثانو حصې د دې دوچنده ګرځول ضروري دي فَيُجْعَلَ كُلُّ رَقَبَةٍ عَلَى سَبْعَةٍ نو ځکه به هر غلام اووه، اووه حصې ګرځول کيږي وَجَمِيعُ الْمَالِ أَحَدٌ وَعِشْرُونَ او ټوله مال [يعني غلامان] به يو ويشت حصې ګرځول کيږي فَيَعْتِقُ مِنَ الثَّابِتِ ثَلَاثَةٌ وَيَسْعَى فِي أَرْبَعَةٍ نو د ثابت غلام [عُمر] به درې حصې آزاديږي او په څلورو حصو کي به هغه [د وارثانو لپاره] هڅه [او کسب] کوي وَيَعْتِقُ مِنَ الْبَاقِيَيْنِ مِنْ كُلِّ مِنْهُمَا سَهْمَانِ وَيَسْعَى فِي خَمْسَةٍ او له پاته دوو غلامانو [زيد او رشيد] څخه به د هر يوه دوې، دوې حصې آزاديږي او [له دوی څخه] به هر يو په پنځو حصو کي هڅه [او کسب] کوي فَإِذَا تَأَمَّلْتَ وَجَمَعْتَ اِسْتَقَامَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثَانِ نو کله چي ته غور وکړې او [هغوی] سره جمع کړې نو ثلث او ثلثان به برابر پاته سي.

**اللغات:** ﴿سِهَام﴾ جمع د سَهْمٌ ده: حصه. ﴿يَسْعَى﴾ د سمع مضارع ده: د يو چا په حاجت او حق پوره کولو کي هڅه او کوښښ کول، مراد ځني کسب او ګټه کول او خواري کاږل دي.

**تشريح**: په مخکنيو عباراتو کې چې د دريو غلامانو په هکله کوم د إعتاق مسئلې بيان سوې د هغوى تعلق د مالک (خالد) د صحت د حالت سره وو، لېکن که چېرې مالک د مرضُ الموت په حالت کې داسې معامله وکړي يعني په "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" سره إعتاق نافذ کړي، نو دا إعتاق به د هغه د مال له دريمې حصې څخه معتبر وي، ځکه چې د مرضُ الموت عتق وصيت وي، او وصيت د موصي (وصيت کونکي) د مال له دريمې حصې څخه نافذيږي، نو ځکه به د هغه إعتاق هم د مال له دريمې حصې څخه نافذيږي، همدا أصول دی.

**أصول**: د أصول حاصل دا دی چې که څوک په خپل مرضُ الموت کې د مال وصيت وکړي، نو د هغه وصيت به د مال په دريمه حصه (ثلث) کې نافذيږي او پاته دوې حصې (ثلثان) به په وارثانو کې تقسيميږي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چې د خالد درې غلامان وه: زيد، عُمر، رشيد. دوه غلامان په کور کې حاضر وه، نو خالد هغو ته په خپل مرضُ الموت کې وويل: "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" (په تاسې دواړو کې يو آزاد دی)، بيا زيد ووتی او دريم غلام رشيد کور ته راغلی، بيا خالد ورته وويل "أَحَدُكُمَا حُرٌّ"، نو د خالد د صحت په حالت کې چې د دې غلامانو څومره حصې آزاديږي، له هغه څخه به دوه ثُلثه (دوې دريمې حصې) کميږي، او يو ثُلث به آزاديږي.

تشريح يې دا ده چې مسئله به له (۴) څخه جوړيږي، ځکه کوم غلام چې په کور کې ثابت او باقي پاته سو يعني عُمر، د هغه درې رُبع آزاديږي، نو ځکه به مسئله له څلورو څخه جوړيږي: د زيد نصف آزاديږي، يعني له څلورو حصو څخه يې دوې حصې آزاديږي، او د عُمر درې رُبع يعني له څلورو حصو څخه يې درې حصې آزاديږي، او د رشيد له څلورو حصو څخه دوې حصې آزاديږي، او ټوله حصې چې سره جمع کړل سي (۲ + ۳ + ۲ = ۷)، نو اووه (۷) حصې جوړيږي.

اوس تاسې په درې سره غلامانو کې اووه، اووه حصې جوړې کړئ! (۳ ضرب ۷ = ۲۱) نو ټوله يو ويشت (۲۱) حصې جوړې سوې، په دې يو ويشت حصو کې څوارلس (۱۴) حصې نه آزاديږي، فقط اووه (۷) حصې آزاديږي (يعني څوارلس حصې د وارثانو دي، او د غه درې غلامان به د هغو لپاره کسب او ګټه کوي، بيا هغه حصې آزاديږي)، او حساب داسې جوړيږي:

① ... د زيد له اوو حصو څخه دوې حصې آزاديږي، او د پاته پنځو حصو د قيمت لپاره به هغه سعايه (کسب او ګټه کوي) او د خالد وارثانو ته به يې ورکوي.

② ... د عمر له اوو حصو څخه درې حصې آزاديږي، او د پاته څلورو حصو لپاره به هغه کسب او ګټه کوي او وارثانو ته به يې ورکوي.

③... د رشید له اوو حصو څخه دوې حصې آزادیږي، او د پاتـه پنځو حصو لپاره به هغه کسب او ګټه وي او وارثانو ته به یې ور کوي.

**قوله تأملت وجمعت الخ:** د دې عبارت مطلب دا دی چې که تاسي یو ویشت (٢١) حصې سره جمع کړی او لږ فکر وکړی، نو ښکاره به سي چي په دغه یو ویشت حصو کي یو ثلث (یعني اُووه حصې) د دې غلامانو دی او پاته دوه ثلثان د وارثانو دي.

---

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ: يُجْعَلُ كُلُّ رَقَبَةٍ عَلَى سِتَّةٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز به هر غلام شپږ حصې ګرځول کیږي لِأَنَّهُ يَعْتِقُ مِنَ الدَّاخِلِ عِنْدَهُ سَهْمٌ ځکه چي د هغه په نیز د داخلېدونکي غلام [رشید] فقط یوه حصه آزادیږي فَنَقَصَتْ سِهَامُ الْعِتْقِ بِسَهْمٍ نو د عتق له [اوو] حصو څخه یوه حصه کمه سوه وَصَارَ جَمِيعُ الْمَالِ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ او ټوله مال اتلس حصې وګرځېدی وَبَاقِي التَّخْرِيجِ مَا مَرَّ او باقي تخریج هغه ده کوم چي [اوس] تېره سوه.

---

**اللغات:** ﴿نَقَصَتْ﴾ د نصر ماضي ده: کمېدل.

**تشریح:** څرنګه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د دریم غلام (رشید) یوه رُبع آزادیږي، نو ځکه د هغه په نیز مسئله له (٦) څخه جوړیږي، د زید له څلورو حصو څخه دوې حصې آزادیږي، د عمر له څلورو حصو څخه درې حصې، او د رشید له څلورو حصو څخه یوه حصه آزادیږي، چي ټوله سره جمع کړل سي نو شپږ (٦) حصې جوړیږي، او چي په هر غلام کي شپږ، شپږ حصې جوړې کړل سي، نو ټوله اتلس (١٨) حصې جوړیږي، لهذا د امام محمد په نیز به حساب داسي وي:

①... د زید له شپږو حصو څخه دوې حصې آزادیږي، او د پاتـه څلورو حصو لپاره به کسب او ګټه کوي او وارثانو ته به یې ور کوي.

②... د عمر له شپږو حصو څخه درې حصې آزادیږي، او د پاتـه دریو حصو لپاره به مال ګټي او وارثانو ته به یې ور کوي.

③... او د رشید له شپږو حصو څخه یوه حصه آزادیږي، او د پاتـه پنځو حصو لپاره به مال ګټي او وارثانو ته به یې ور کوي.

نو په دې توګه د ټولو غلامانو شپږ حصې آزادي سوې، او د دوولسو حصو لپاره به کسب او مزدوري کوي او وارثانو ته به یې ور کوي، او ټوله اتلس حصې سوې. د حساب ماشین را واخلئ! په خپله هم حساب ور ته وکړئ!.

## په پورتني صورت کې د طلاق حکم

وَلَوْ كَانَ هٰذَا فِي الطَّلَاقِ وَهُنَّ غَيْرُ مَدْخُولَاتٍ او که دا قول د طلاق په باره کې وي او [درې سره] ښځې غیر مدخول بها وي وَمَاتَ الزَّوْجُ قَبْلَ الْبَيَانِ او له وضاحت کولو څخه مخکې خاوند مړ سي سَقَطَ مِنْ مَهْرِ الْخَارِجَةِ رُبُعُهُ نو د وتونکې ښځې له مهر څخه به ربع ساقطیږي [او هغې ته به ربع ورکول کیږي] وَمِنْ مَهْرِ الثَّابِتَةِ ثَلَاثَةُ أَثْمَانِهِ او د ثابتې ښځې له مهر څخه به درې اتمې حصې ساقطیږي [یعنې هغې ته به له اتو حصو څخه درې حصې ور نه کول کیږي] وَمِنْ مَهْرِ الدَّاخِلَةِ ثُمُنُهُ او د داخلېدونکې ښځې له مهر څخه به اتمه حصه ساقطیږي قِيلَ هٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ خَاصَّةً ویل سوي دي: چې دا فقط د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَعِنْدَهُمَا يَسْقُطُ رُبُعُهُ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د داخلېدونکې ښځې د مهر ربع ساقطیږي وَقِيلَ: هُوَ قَوْلُهُمَا أَيْضًا او ویل سوي دي: چې دا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله قول هم دی وَقَدْ ذَكَرْنَا الْفَرْقَ وَتَمَامَ تَفْرِيعَاتِهَا فِي الزِّيَادَاتِ او موږ [د طلاق او عتق] فرق او د دې مسئلې ټوله جزئیات په ''زیادات'' کې ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿أثمان﴾ جمع د ''ثُمُنٌ'' او ''ثُمْنٌ'' ده: اتمه حصه.

**تشریح:** د عبارت تر حل مخکې دا اُصول په یاد لرئ! چې ''که غیرِ مدخول بها ښځې ته طلاق ورکول سي نو هغې ته به نیم مهر ورکول کیږي''.

**صورت د مسئلې:** دا دی چې فاطمه، ساجده او شاکره درې سره د یوه سړي ښځې دي او درې سره غیرِ مدخول بها دي. اوس فاطمه او ساجده په کور کې حاضرې دي، او خاوند ورته ووېل: إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ (په تاسې دواړو کې یوه پر ما طلاقه ده)، بیا فاطمه له کور څخه ووتله او شاکره راغله. نو خاوند بیا دې دواړو ته ووېل: په تاسې دواړو کې یوه پر ما طلاقه ده. تر دې وروسته خاوند له بیان او تعیین څخه بغیر مړ سو.

نو په دې صورت کې مسئله له (۶) څخه جوړیږي، په اول وار ''إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ'' سره پر فاطمې او ساجدې دواړو یو طلاق واقع سو او نیم مهر به په دواړو کې تقسیمیږي او دواړو ته به د هغه ربع. ربع ورکول کیږي (مثلاً که مهر ټوله اته (۸) درهمه وو، نو دواړو ته به دوه، دوه درهمه ورکول کیږي).

په دویم وار ''إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ'' سره پر ساجدې او شاکرې دواړو یو طلاق واقع سو. او دلته به د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول هم د مهر د ربع نصف، نصف دواړو ته ورکول کیږي یعنې له اتو حصو څخه

به یوه، یوه حصه دوارو ته ورکول کیږي (مثلاً که مهر تولـه اتـه درهمه وو، نو یـو، یـو درهـم بـه ورکـول کیږي).

او ساجدې ته په اول وار کي له اتو حصو څخه دوې حصې ورکول سوې دي او په دویـم وار کـي بـه مني ته له اتو حصو څخه یوه حصه ورکول کیږي، نو په دې توګه ساجدې ته له اتو حصو څخه درې حصې ورکول سوې.

حاصل دا سو چي ① ... فاطمې ته به له اتو حصو څخه دوې حصې ورکول کیږي. ② ... ساجدې ته به له اتو حصو څخه درې حصې ورکول کیږي. ③ ... او شاکرې ته به له اتو حصو څخه یوه حصه ورکول کیږي.

لنډه دا چي په دې صورت کي به دغه ښځو ته د مهر له اتـه حصو څخه شپږ حصې مهر ورکـول کیږي او پاته دوې حصې به په وارثانو کي تقسیمیږي. حساب ته په غور او توجه سره وګورئ! .

## په دوو غلامانو کي د غیر معین غلام له آزادولو څخه وروسته په یوه غلام کي تصرف کول

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدَيْهِ: أَحَدُكُمَا حُرٌّ او کوم سړی [مالک] چي خپلو دوو غلامانو ته ووایي: په تاسي دوارو کي یو آزاد دی فَمَاتَ أَحَدُهُمَا أَوْ مَاتَ أَوْ قَالَ لَهُ: أَنْتَ حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي او بیا [مالک] په دوی کي یو غلام خرڅ کړي یا یو غلام مړ سي یا یوه غلام ته [مالک] ووایي: ته زما له مرګ څخه آزاد یې [یعني یا له یوه غلام څخه مدبر جوړ کړي] عَتَقَ الْآخَرُ نو دویم غلام آزادیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلْعِتْقِ أَصْلًا بِالْمَوْتِ ځکه چي مړ سوی غلام د مرګ په وجه بالکل د عتق [آزادۍ] محل پاته نه سو وَلِلْعِتْقِ مِنْ جِهَتِهِ بِالْبَيْعِ یا د مالک له طرفه په خرڅولو سره [هغه د عتق محل پاته نه سو] وَلِلْعِتْقِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ بِالتَّدْبِيرِ یا په مدبر جوړولو سره هغه من کل وجه د عتق محل پاته نه سو] فَتَعَيَّنَ لَهُ الْآخَرُ نو ځکه هغه بل [دویم] غلام [د عتق لپاره] متعین سو وَلِأَنَّهُ بِالْبَيْعِ قَصَدَ الْوُصُولَ إِلَى الثَّمَنِ او ځکه چي مالک په بیع سره د قیمت حاصلولو [اخیستلو] اراده کړې ده وَبِالتَّدْبِيرِ إِبْقَاءَ الِانْتِفَاعِ إِلَى مَوْتِهِ او په مدبر جوړولو سره یې تر خپل مرګه پوري اله مدبر غلام څخه] د نفع اخیستلو اراده کړې ده وَالْمَقْصُودَانِ يُنَافِيَانِ الْعِتْقَ الْمُلْتَزَمَ او دا دواړه مقصودونه د لازم کړی سوي عتق منافي دي فَتَعَيَّنَ لَهُ الْآخَرُ دَلَالَةً نو ځکه دویم غلام دلالتاً د عتق لپاره متعین سو.

**اللغات:** ﴿تَدْبِيْر﴾ د تفعيل مصدر دی: مدبر جوړول. تدبير دې ته وايي چې مالک په خپل مرګ پوري د غلام آزادي معلق کړي (يعني ورته ووايي چې "زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې"). ﴿ثَمَن﴾ قيمت، بيه. ﴿مُلْتَزَم﴾ د افتعال اسم مفعول دی: لازم سوی شی.

**تشريح:** د دغه عبارت مسئله پر دې اُصول مبني ده چې که مالک د "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" تر ويلو وروسته يو داسي حرکت وکړی چې له هغه څخه دا معلومه سي چې مالک دغه غلام آزادول نه غواړي، نو دويم غلام به د آزادی (عتق) لپاره متعين کيږي. مثلاً مالک يو غلام خرڅ کړي، نو دويم غلام به د آزادی لپاره متعين کيږي.

دلته امام قدوري رَحِمَهُ الله درې مثالونه ذکر کړي دي: ① ... په دوو غلامانو کي يو غلام خرڅول. ② ... يو غلام په يو حادثه او واقعه کي مړ کېدل. ③ ... يو غلام مدبر کول. په دې درېو سره صورتونو کي به دويم غلام د آزادی لپاره متعين کيږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که د يوه سړي دوه غلامان وه، او هغه دواړو ته وويل: "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" (په تاسي کي يو غلام آزاد دی)، او بيا مالک ① يو غلام خرڅ کړی، نو دويم (باقي مانده) غلام به د آزادی لپاره متعين کيږي. ② يا يو غلام د آسماني آفت په وجه مړ سو، نو دويم غلام کوم چې ژوندی وي هغه به د آزادی لپاره متعين کيږي، ځکه چې مړ سوی غلام د آزادېدلو (عتق) محل پاته نه سو، نو ځکه به ژوندی غلام آزاديږي. ③ يا مالک يو غلام مدبر جوړ کړی، نو دا عمل پر دې خبره دلالت کوي چې مالک دويم (باقي مانده) غلام آزادول غواړي، ځکه چې په مدبر جوړېدلو سره دغه مدبر غلام من کل وجه آزاد نه سو، بلکي فقط د آزادی شائبه پکښې راغله. نو ځکه به دويم غلام د آزادی لپاره متعين کيږي او هغه به آزاديږي.

**دليل:** ځکه چې دلته د خرڅولو، مدبر جوړولو، او د مرګ په وجه يو غلام د آزادولو قابل پاته نه سو، نو کوم غلام چې باقي پاته دی هغه به د آزادی لپاره متعين کيږي.

**ولأنه بالبيع قصد إلخ:** دويم دليل دا دی چې کوم غلام چې مالک خرڅ کړی او ګټه يې پر وکړه، نو هغه يې د لاس څخه ووتی، نو ځکه به اوس باقي مانده غلام د آزادی لپاره متعين کيږي. همدارنګه کوم غلام چې مالک مدبر جوړ کړی، نو هغه يې تر خپل مرګه پوري د فايدې اخيستلو لپاره متعين کړی (چې زما تر مرګه پوري به زه له هغه څخه کار او خدمت اخلم)، نو ځکه به په دې صورت کي هم فقط باقي مانده غلام د آزادی لپاره متعين کيږي. (العِتْقُ الْمُلْتَزِمُ: د دې مطلب دا دی چې کله مالک "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" وويل، نو ګواکي مالک د يوه پوره غلام د آزادولو وعده وکړه (او پر هغه د يوه پوره غلام آزادول لازم سو)، او کله

چې يې يو غلام مدبر جوړ کړی، نو په هغه کې فقط دآزادۍ شائبه راغله او هغه ټوله آزاد نه سو. نو ځکه به اوس فقط دويم (باقي مانده) غلام دآزادۍ لپاره متعين کيږي).

وَكَذَا إِذَا اسْتَوْلَدَ إِحْدَاهُمَا او همدارنګه کله چې مالک اله دوو مينځو څخه (يوه مينځه اُم ولد جوړه کړي

لِلْمَعْنَيَيْنِ د (هغه) دوو معناوو په وجه (کوم چې مخکې ذکر سوې).

**اللغات:** ﴿لِلْمَعْنَيَيْنِ﴾ د دوو معناوو په وجه. دلته دوې معناوې دا دي: ① چې په دې اُم ولد کې فقط دآزادۍ شائبه راغلې ده. لهذا هغه ټوله آزاده نه سوه. نو ځکه به دويمه مينځه آزاديږي. ② او دويمه معنیٰ دا ده چې مالک دغه اُم ولد د نفع او فايدې اخيستلو لپاره متعين کړه. نو ځکه به دويمه مينځه آزاديږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديوه سړي دوې مينځې وي. او هغه دواړو ته "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" ووايي او بيا په دواړو کې يوه اُم ولد جوړه کړي. نو دويمه (باقي مانده) مينځه آزاديږي.

**دليل:** ځکه چې مالک په اُم ولد جوړولو سره دګه اُم ولد مينځه د خپل ځان لپاره دفايدې اخيستلو په توګه متعين کړه (چې زه به ستا څخه خدمت او نفع اخلم). او بل دا چې په هغې کې فقط دآزادۍ شائبه راغله. نو ځکه به دويمه مينځه کوم چې په پوره توګه مينځه ده هغه به دآزادۍ لپاره متعين کيږي. (په لِلْمَعْنَيَيْنِ سره صاحب د کتاب همدغه دوو وجهو ته اشاره کړې ده).

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْبَيْعِ الصَّحِيحِ وَالْفَاسِدِ مَعَ الْقَبْضِ وَبِدُونِهِ وَالْمُطْلَقِ وَبِشَرْطِ الْخِيَارِ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او هيڅ فرق نسته د بيعِ صحيح او بيعِ فاسد مع القبض يا بدون القبض په مينځ کې او (همدارنګه هيڅ فرق نسته) په بيعِ مطلق او د أحدُ المتعاقدين لپاره د بيع بشرط الخيار په مينځ کې لِإِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ ځکه چې د متن حکم مطلق دی وَالْمَعْنَى مَا قُلْنَا او مطلب (او دليل) هغه دی کوم چې موږ (مخکې) ذکر کړی.

**تشريح:** دا عبارت پر دې اُصول مبني دی چې که په بيع کې مالک يو داسې کار وکړي چې له هغه څخه د غلام خرڅول معلوم سي (يعني دا ځني معلومه سي چې مالک غلام خرڅول غواړي). نو په دې صورت کې به دويم غلام دآزادۍ لپاره منتخب کيږي.

دعبارت حاصل دی چې که په مخکنی مسئله کې مالک ديوه غلام صحيح بيع وکړي يا يې فاسده بيع وکړي (يعني په صحيح يا فاسده بيع سره يې خرڅ کړي). نو په دې دواړو صورتونو کې دويم (باقي مانده) غلام دآزادۍ لپاره متعين کيږي يعني فقط دويم غلام آزاديږي. همدارنګه که

مالک د خپل ځان یا مشتري لپاره په خیارِ شرط سره بیع وکړي، یا مطلق بیع وکړي، نو هم په دې صورت کې دویم غلام د آزادۍ لپاره متعین کیږي.

**دلیل:** له دې څلور کارونو څخه دا ثابتیږي چې مالک یو غلام خرڅول او خپل ځان مالداره کول غواړي، نو ځکه به دویم غلام د آزادۍ لپاره منتخب کیږي.

وَالْعَرْضُ عَلَى الْبَيْعِ مُلْحَقٌ بِهِ فِي الْمَحْفُوظِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او [یو غلام] پر بیع پیشول هم د بیع سره لاحق دي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په محفوظ [اوریدل سوي] روایت کې وَالْهِبَةُ وَالتَّسْلِيمُ وَالصَّدَقَةُ وَالتَّسْلِيمُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ او هبه مع التسلیم او صدقه مع التسلیم د بیع په درجه کې ده لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ ځکه چې [هبه او صدقه] تملیک دی [لکه څرنګه چې بیع تملیک دی].

**اللغات:** ﴿مَحْفُوظ﴾ د ضرب اسمِ مفعول دی: خوندي کړی سوی، محفوظ کړی سوی (کوم روایت چې له یو چا څخه فقط اوریدل سوی وی، لیکل سوي نه وي، هغه ته "محفوظ" وايي). ﴿تَمْلِيك﴾ د تفعیل مصدر دی: یو څوک د یو شي مالک جوړول (مالک کول).

**تشریح:** په دې عبارت کې درې داسې کارونه دي چې له هغوی څخه دا معلومیږي چې مالک غلام آزادول نه غواړي، هغه دا دي ① غلام د بیع لپاره وړاندې کول، ② غلام بل چا ته هبه کول او ورسپارل، ③ غلام صدقه کول او ورسپارل. دا درې سره عملونه د دې خبرې دلیل دی چې مالک دغه غلام آزادول نه غواړي، نو ځکه به په دې صورتونو کې دویم پاته غلام د آزادۍ لپاره متعین کیږي.

**یادونه:** هبه او صدقه هغه وخت پوره کیږي کله چې موهوب او صدقه کړی سوی شی موهوب لهٔ او مسکین ته وسپارل سي، له ورسپارلو څخه مخکې هبه او صدقه فقط د وعدې حیثیت لري، نو ځکه مو د "ورسپارلو" شرط ولګوی، او د غلام تر ورو وسپارلو مخکې به دویم غلام د آزادۍ لپاره نه متعین کیږي.

## په پورتني صورت کې د طلاق مسئله

وَكَذَلِكَ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتَيْهِ: إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ او همدارنګه که [یو خاوند] خپلو دوو ښځو ته ووايي: په تاسې دواړو کې یوه طلاقه ده ثُمَّ مَاتَتْ إِحْدَاهُمَا [او] بیا یوه ښځه مړه سي انو دویمه ښځه د طلاق لپاره متعین کیږي] لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَكَذَلِكَ لَوْ وَطِئَ إِحْدَاهُمَا او همدارنګه که هغه په دواړو کې د یوې ښځې سره وطي وکړي انو دویمه غیرِ موطوئه ښځه د طلاق لپاره متعین کیږي] لِمَا نُبَيِّنُ د هغه دلیل په وجه چې موږ به یې بیان کړو.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوې دي: (۱)... يوه مسئله دا ده که ديو سړي دوې ښځې وي او هغه دواړو ته ووايي "إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ" (په تاسي کي يوه پر ما طلاقه ده) او بيا يوه ښځه مړه سي، نو کومه ښځه چي ژوندي پاته سي، پر هغې طلاق واقع کيږي: ځکه چي اوله ښځه د مرګ په وجه د طلاق محل پاته نه سوه، د همدغه دليل وطرف ته صاحب د کتاب په لِمَا قُلْنَا سره اشاره کړې ده، (۲)... دويمه مسئله دا ده که هغه سړی ديوې ښځې سره وطي وکړي، نو پر دويمې ښځې طلاق واقع کيږي، ځکه د کومې ښځې سره چي خاوند وطي وکړي نو خاوند هغه د خپل فايدې لپاره ساتل غواړي (يعني د وطي کولو او بچې پيدا کولو لپاره يې ساتل غواړي)، نو ځکه به دويمه ښځه د طلاق لپاره منتخب کيږي. د دې مسئلې دليل به د لاندې عبارت په ضمن کي هم بيان سي.

وَلَوْقَالَ لِأَمَتَيْهِ: إِحْدَاكُمَا حُرَّةٌ او که [يو مالک] خپلو دوو مينځو ته ووايي: په تاسي دواړو کي يوه آزاده ده ثُمَّ جَامَعَ إِحْدَاهُمَا [او] بيا هغه ديوې مينځې سره جماع وکړي لَمْ تَعْتِقِ الْأُخْرَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دويمه [غيرِ موطوئه] مينځه نه آزاديږي وَقَالَا*: يَعْتِقُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي آزاديږي لِأَنَّ الْوَطْءَ لَا يَحِلُّ إِلَّا فِي الْمِلْكِ ځکه چي وطي فقط په [خپل] ملکيت کي حلال دي وَإِحْدَاهُمَا حُرَّةٌ او [دلته خو] يوه آزاده ده فَكَانَ بِالْوَطْءِ مُسْتَبْقِيًا الْمِلْكَ فِي الْمَوْطُوءَةِ نو [مالک] به په وطي کولو سره په موطوئه مينځه کي د ملکيت باقي ساتونکی وي فَتَعَيَّنَتْ الْأُخْرَى نو ځکه به دويمه مينځه [د عتق لپاره] متعين کيږي لِزَوَالِهِ بِالْعِتْقِ ځکه چي په عتق سره ملکيت ختم سو كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه څرنګه چي په طلاق کي [ديوې ښځې سره وطي وسي نو پر دويمې غيرِ موطوئه ښځې طلاق واقع کيږي] وَلَهُ: أَنَّ الْمِلْكَ قَائِمٌ فِي الْمَوْطُوءَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په موطوئه مينځه کي ملکيت موجود دی لِأَنَّ الْإِيقَاعَ فِي الْمُنَكَّرَةِ ځکه چي [د آزادی] واقع کېدل په غيرِ مُعيّنه مينځه کي دي وَهِيَ مُعَيَّنَةٌ او موطوئه مينځه مُعيّنه [معلومه] ده فَكَانَ وَطْؤُهَا حَلَالًا نو د هغې سره به وطي کول حلال وي فَلَا يُجْعَلُ بَيَانًا نو ځکه به هغه بيان [وضاحت] نه سي شمارل کېدای وَلِهَذَا حَلَّ وَطْؤُهُمَا عَلَى مَذْهَبِهِ او له همدې وجهې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مذهب د دې دواړو [مينځو سره] وطي کول حلال دي إِلَّا أَنَّهُ لَا يُفْتَى بِهِ خو پر دې به [احتياطاً] فتویٰ نه ورکول کيږي ثُمَّ يُقَالُ: الْعِتْقُ

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فی رد المحتار (ج:۳، ص:۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۰۳].

غَيْرُنَازِلٍ قَبْلَ الْبَيَانِ بیا به وړیل کیږي اجواب به ورکول کیږي ا: چي د مالک تر بیان اوضاحت ا مخکي به عتق واقع کېدونکی نه وي لِتَعَلُّقِهِ بِهِ ځکه چي عتق د بیان سره متعلق دی أَوْ يُقَالُ: نَازِلٌ فِي الْمُنَكَّرَةِ یا به وړیل کیږي: چي په غیرِ مُعیّنه مینځي کي به عتق واقع کېدونکی وي فَيَظْهَرُ فِي حَقِّ حُكْمٍ تَقْبَلُهُ او د داسي حکم په حق کي به ښکاره کیږي چي منکره اغیرِ مُعّینه ا مینځه هغه قبلوي وَالْوَطْءُ يُصَادِفُ الْمُعَيَّنَةَ حالانکي ادلته ا د یوې مُعینّه مینځي سره وطي سوي دي بِخِلَافِ الطَّلَاقِ په خلاف د طلاق لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الْأَصْلِيَّ مِنَ النِّكَاحِ الْوَلَدُ ځکه چي له نکاح څخه اصلي مقصود بچی دی وَقَصْدُ الْوَلَدِ بِالْوَطْءِ يَدُلُّ عَلَى اسْتِبْقَاءِ الْمِلْكِ فِي الْمَوْطُوءَةِ صِيَانَةً لِلْوَلَدِ او په وطي سره د بچي اراده کول دلالت کوي پر دې چي خاوند په موطوئه ښځه کي د بچي خوندي کولو [ پیدا کولو ا لپاره [خپل ] ملکیت باقي ساتل غواړي أَمَّا الْأَمَةُ فَالْمَقْصُودُ مِنْ وَطْئِهَا قَضَاءُ الشَّهْوَةِ دُونَ الْوَلَدِ کوم چي مینځه ده نو د هغې له وطي څخه مقصود شهوت پوره کول دي. نه بچی [ پیدا کول ا فَلَا يَدُلُّ عَلَى الِاسْتِبْقَاءِ نو ځکه به اد هغې سره وطي کول ا د ملکیت پر باقي ساتلو دلالت نه کوي.

**اللغات**: ﴿يُصَادِفُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: واقع کېدل. پیدا کول. مخامخ کېدل. ﴿صِيَانَةً﴾ محفوظ کول. خوندي کول. ساتل. صِيَانَةً لِلْوَلَدِ: د بچي لپاره خوندي کول. ﴿إِسْتِبْقَاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په خپل ملکیت کي باقي ساتل. پاته کول (باقي پاته کول).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی که یو مالک خپلو دوو مینځو ته وواییي: إِحْدَاكُمَا حُرَّةٌ (په تاسي کي یوه مینځه آزاده ده) او بیا مالک د یوې مینځي سره وطي وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دویمه مینځه نه آزادیږي. او د صاحبینو په نیز آزادیږي.

**دلیل**: د صاحبینو د دلیل حاصل دا دی چي د کومي مینځي سره چي مالک وطي وکړي مالک هغه مینځه د کار او نفع د اخیستلو لپاره ساتل غواړي (یعني د دې لپاره یې ساتل او راګرځول غواړي چي زه به د هغې سره وطي کوم او له هغې څخه به مي بچیان پیدا سي). نو ځکه به په دې صورت کي دویمه مینځه د آزادی لپاره متعین کیږي. لکه څرنګه چي د طلاق ورکولو په صورت کي خاوند د یوې ښځي سره وطي وکړي نو پر دویمي ښځي طلاق واقع کیږي. همداسي به دلته هم دویمه ښځه آزادیږي.

**وله أن الملك قائم إلخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل څه پېچلی دی. حاصل یې دا دی چي مالک چي د کومي مینځي سره وطي وکړې هغه متعینه ده. او کومه یوه چي آزادېدونکې ده هغه غیر متعین ده. او

متعين شی د غیرِ متعین شي لپاره بیان او وضاحت نه سي جوړېدای، نو په دې وجه د يوې مينځې سره وطي کول د دويمي مينځي د آزادېدلو دليل نه دی تر څو چي مالک هغه بیان نه کړي او په واضحه توګه یوه مینځه متعینه نه کړي. او کله چي دويمه مينځه نه آزادېږي. نو د دواړو سره به د مالک وطي جائز وي (يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز یوه مینځه هم نه آزادیږي. نو ځکه به د دواړو سره وطي جائز وي). لېکن احتیاطاً به د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول فتویٰ نه ورکول کیږي. کنې پر امام صاحب به د احتیاط پرېښوولو تهمت ولګول سي، حالانکي امام صاحب رَحِمَهُ الله انتهایي پرهېز ګار او احتیاط کونکی وو.

**ثم يقال إلخ**: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چي کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په "إِحْدَا كُمَا حُرَّة" سره یوه مینځه نه آزادیږي نو ګواکي د مالک دغه کلام لغو سو. او که چیري آزادي واقع کیږي نو بیا د دواړو مينځو سره وطي ولي جائز دي؟ آخر د دې سوال جواب څه دی؟. صاحب د کتاب يې په جواب کي فرمايي چي د سول د اول جزء جواب دای چي دلته د مالک إعتاق (آزادول) مبهم دي. کوم چي پر بیان او وضاحت موقوف دي، لهذا تر څو چي د مالک له طرفه بیان صادر نه سي تر هغه وخت به پر يوې مينځي هم آزادي نه واقع کیږي، او د سوال د دويم جزء (چي د دواړو مينځو سره وطي ولي جائز دي؟) جواب دا دی چي دلته آزادي په غیر مُعَیّنه (نامعلومه) مینځه کي واقع سوې ده. او وطي فقط په مُعَيّنه (معلومه) مينځه کي واقع کیږي، ځکه چي وطي يو حسي أمر دی، او له غيرِ مُعَيّني مينځي سره وطي کول ناممکن دي. نو ځکه به د مُعَيّني مينځي سره وطي کول د غيرِ مُعَيّني مينځي د آزادۍ لپاره بيان نه وي.

**بخلاف الطلاق إلخ**: په دې عبارت کي د مينځي سره د وطي کولو او د منکوحه ښځي سره د وطي کولو په مينځ کي فرق بيانوي، حاصل يې دا دی چي د ښځي سره نکاح د بچي پيدا کولو لپاره کيږي. او وطي د بچي پيدا کولو وسيله ده. لهذا په منکوحه ښځه کي فقط له وطي کولو څخه دا خبره معلوميږي چي خاوند دغه ښځه د ځان لپاره ساتل غواړي، او په مينځه کي اصل مقصد بچی پيدا کول نه وي بلکي خواهش او شهوت پوره کول وي. نو په دې وجه د مينځي سره وطي کول د دې خبري دليل نه دی چي مالک هغه د ځان لپاره ساتل سي. نو ځکه موږ (امام صاحب رَحِمَهُ الله) وايو چي که مالک د يوې مينځي سره وطي وکړي. نو دويمه مينځه به د آزادۍ لپاره نه متعين کيږي.

## د مُعلق إعتاق يو صورت

وَمَنْ قَالَ لِأَمَتِهِ: إِنْ كَانَ أَوَّلُ وَلَدٍ تَلِدِينَهُ غُلَامًا فَأَنْتِ حُرَّةٌ او څوک چي خپلي مينځي ته ووايي: كه چيري اول ته هلک بچی وزېږوې نو ته آزاده يې [يعني مالک د خپلي مينځي آزادي د هلک پر پيدا کېدلو مُعلقه کړي] فَوَلَدَتْ غُلَامًا وَجَارِيَةً او [بيا] مينځه هلک او نجلۍ دواړه وزېږوي وَلَا يُدْرَى أَيُّهُمَا وُلِدَ أَوَّلًا او دا معلومه نه وي چي په دوی کي کوم يو اول پيدا سو عَتَقَ نِصْفُ الْأُمِّ وَنِصْفُ الْجَارِيَةِ نو د مور او نجلۍ نصف، نصف آزادېږي وَالْغُلَامُ عَبْدٌ او هلک به غلام وي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا تَعْتِقُ فِي حَالٍ ځکه چي له [مور او نجلۍ] دواړو څخه هر يو په يوه حالت کي آزادېږي وَهُوَ مَا إِذَا وَلَدَتِ الْغُلَامَ أَوَّلَ مَرَّةٍ او هغه حالت دا دی چي کله دا مينځه [مور] هلک وزېږوي الْأُمُّ بِالشَّرْطِ مور [د مالک] د شرط په وجه [آزادېږي] وَالْجَارِيَةُ لِكَوْنِهَا تَبَعًا لَهَا او مينځه ځکه [آزادېږي] چي هغه د مور تابع ده إِذِ الْأُمُّ حُرَّةٌ حِينَ وَلَدَتْهَا ځکه چي د نجلۍ زېږولو په وخت کي مور آزاده ده وَتَرِقُّ فِي حَالٍ او په يوه حالت کي مور رقيقه [مينځه] پاتېږي وَهُوَ مَا إِذَا وَلَدَتِ الْجَارِيَةَ أَوَّلًا او هغه حالت دا دی چي کله مور اول نجلۍ وزېږوي لِعَدَمِ الشَّرْطِ ځکه چي [په دې حالت کي] شرط معدوم دی فَيَعْتِقُ نِصْفُ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا نو ځکه به له [مور او نجلۍ] دواړو څخه د هري يوې نصف آزادېږي وَتَسْعَى فِي النِّصْفِ او د [پاته] نصف لپاره به هيڅه [او کسب] کوي أَمَّا الْغُلَامُ يَرِقُّ فِي الْحَالَيْنِ لېکن هلاک په دواړو حالتونو کي رقيق پاتېږي فَلِهَذَا يَكُونُ عَبْدًا نو په دې وجه به هغه [په هر حالت کي] غلام وي.

**اللغات:** ﴿تَرِقّ﴾ د ضرب مضارع ده: رقيق کېدل، تر غلامۍ لاندي کېدل (غلام يا مينځه جوړېدل).

**تشريح:** دا مسئله پر دې أصول مبني ده چي د مور د آزادېدلو په وخت کي چي کوم بچی پيدا سي هغه هم د مور په متابعت کي آزادېږي، او که مور نيمه آزاده سي، نو هغه بچی هم نيم آزادېږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپلي مينځي ته ووايي: که چيري اول ستا څخه هلک پيدا سي، نو ته آزاده يې، او له مينځي څخه هلک او نجلۍ دواړه پيدا سي (يعني مينځه غبرګه لنګه سي)، او دا معلومه نه سي چي اول هلک پيدا سو، که نجلۍ، نو په صورت کي نيمه مور آزادېږي او د هغې په متابعت کي نجلۍ هم نيمه آزادېږي، او د پاته نيمي حصې لپاره به مور هم کسب او ګټه کوي او نجلۍ به يې هم کوي، يعني مور او لور به دواړه په ګډه د دې نيمي حصې قيمت اداء کوي.

او هلک به په هر صورت کي غلام وي، ځکه دغه هلک د مور تر آزادېدلو مخکي پيدا سوی دی (ځکه چي د هلک تر پيدايښت وروسته مور آزاده سوې ده)، نو ځکه به هلک په هر حالت کي غلام وي.

## د مُعلق إعتاق يو بل صورت

وَإِنِ ادَّعَتِ الْأُمُّ أَنَّ الْغُلَامَ هُوَ الْمَوْلُودُ أَوَّلًا وَأَنْكَرَ الْمَوْلَى او که مور دا دعویٰ وکړي چي هلک اول پیدا سوی دی او مالک انکار وکړي وَالْجَارِيَةُ صَغِيرَةٌ او نجلۍ [هم] کوچنی [نابالغه] وي فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ الْيَمِينِ نو د قسم سره به د مالک قول معتبر وي لِإِنْكَارِهِ شَرْطَ الْعِتْقِ ځکه چي هغه د آزادۍ د شرط مُنکر دی فَإِذَا حَلَفَ نو کله چي مالک قسم وکړي لَمْ يَعْتِقْ وَاحِدٌ مِنْهُمْ نو له دوی څخه به یو [هم] نه آزادیږي وَإِنْ نَكَلَ عَتَقَتِ الْأُمُّ وَالْجَارِيَةُ او که مالک له قسم څخه انکار وکړي نو مور او نجلۍ به آزادیږي لِأَنَّ دَعْوَى الْأُمِّ حُرِّيَّةَ الصَّغِيرَةِ مُعْتَبَرَةٌ ځکه چي د کوچنۍ نجلۍ د آزادۍ په هکله د مور دعویٰ معتبره ده لِكَوْنِهَا نَفْعًا مَحْضًا ځکه چي دا خالص نفع ده فَاعْتُبِرَ النُّكُولُ فِي حَقِّ حُرِّيَّتِهِمَا نو ځکه به د دوی دواړو د آزادوالي په حق کي [د مالک] د انکار اعتبار کیږي فَعَتَقَتَا او دواړي به آزادیږي وَلَوْ كَانَتِ الْجَارِيَةُ كَبِيرَةً وَلَمْ تَدَّعِ شَيْئًا او که نجلۍ بالغه وي او هغه د هیڅ شي دعویٰ نه وکړي وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او مسئله پر خپل حال وي [یعني د مخکي په شیر وي] عَتَقَتِ الْأُمُّ بِنُكُولِ الْمَوْلَى خَاصَّةً دُونَ الْجَارِيَةِ نو د مالک په انکار سره فقط مور آزادیږي، نه نجلۍ لِأَنَّ دَعْوَى الْأُمِّ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي حَقِّ الْجَارِيَةِ الْكَبِيرَةِ ځکه چي د غټي [بالغي] نجلۍ په حق کي د مور دعویٰ معتبره نه ده وَصِحَّةُ النُّكُولِ تَبْتَنِي عَلَى الدَّعْوَى او د انکار صحت پر دعویٰ مبني دی [یعني د انکار دار ومدار د مور پر دعویٰ دی] فَلَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْجَارِيَةِ نو ځکه به د [بالغي] نجلۍ په حق کي دا انکار نه مؤثر کیږي وَلَوْ كَانَتِ الْجَارِيَةُ الْكَبِيرَةُ هِيَ الْمُدَّعِيَةُ لِسَبْقِ وِلَادَةِ الْغُلَامِ او که همدا غټه [بالغه] نجلۍ د هلک د مخکي پیدا کېدلو دعویٰ کونکې وي وَالْأُمُّ سَاكِتَةٌ او مور چپه وي يَثْبُتُ عِتْقُ الْجَارِيَةِ بِنُكُولِ الْمَوْلَى دُونَ الْأُمِّ نو د مالک په انکار سره د دې نجلۍ آزادي ثابتیږي، نه د مور [یعني که په دې صورت کي مالک له قسم څخه انکار وکړي، نو دا نجلۍ آزادیږي او مور نه آزادیږي] لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَالتَّحْلِيفُ عَلَى الْعِلْمِ فِيمَا ذَكَرْنَا او زموږ په ذکر سوو صورتونو کي به پر علم قسم اخیستل کیږي [یعني موږ چي د مالک د قسم کولو په هکله کوم صورتونه ذکر کړل، په هغوی کي به مالک د خپل علم او خبر مطابق قسم اخلي، دا دیو اعتراض جواب دی، تشریح ته مراجعه وکړئ!] لِأَنَّهُ اسْتِحْلَافٌ عَلَى فِعْلِ الْغَيْرِ ځکه چي دا د بل چا پر فعل قسم اخیستل دي وَبِهَذَا

الْقَدْرِ يُعْرَفُ مَا ذَكَرْنَا مِنَ الْوُجُوْهِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او په دې مقدار [تفصيل] سره به هغه صورتونه [هم تاسي ته] معلوم سي [او ستاسي په علم كي به راسي] كوم چي موږ په كفايةُ المنتهي كي بيان كړي دي.

**اللغات:** ﴿إِدَّعَتْ﴾ د افتعال ماضي ده: دعوىٰ كول (دعوه كول). ﴿غُلَامٌ﴾ هلك. ﴿نَكَلَ﴾ د نصر ماضي ده: له قسم اخيستلو څخه انكار كول. ﴿حُرِّيَّةٌ﴾ آزادي، آزادېدل.

**تشريح:** دا مسئله پر دې اُصول مبني ده چي كه په دعوىٰ كي د كوچنۍ نجلۍ نفع وي، نو د هغې په حق كي به د مور دعوىٰ معتبره وي، لېكن كه نجلۍ بالغه او غټه وي، نو د هغې په حق كي به د مور دعوىٰ لره هيڅ اعتبار نه وي.

**صورت د مسئلې:** دا دى كه مور دا دعوىٰ وكړي چي هلك اول پيدا سوى دى، او مالك د دې انكار وكړي، او د مور سره هيڅ ګواه نه وي، نو د مالک خبره به د قسم سره منل كيږي (ځكه چي هغه مُنكر دى). لهذا كه چيري مالك قسم وكړي، نو مور به نه آزاديږي، بلكي د مخكي په شير به مينځه وي، نو ځكه به د هغې په متابعت كي نجلۍ هم نه آزاديږي، او كه مالك له قسم څخه انكار وكړي، نو مور به آزاديږي، او څرنګه چي نجلۍ كوچنۍ (نابالغه) ده، نو ځكه به د مور په متابعت كي هغه آزادكيږي.

**دليل:** دا دى چي د كوچنۍ (نابالغه) نجلۍ په هكله د مور دعوىٰ معتبره ده، ځكه چي په همدې كي د كوچنۍ نجلۍ نفع ده.

**ولو كانت الجارية كبيرة:** دا مسئله پر دوو اُصولو مبني ده: (١) يو اُصول دا دى چي نجلۍ د مور په متابعت كي نه آزاديږي، بلكي د مور د دعوىٰ پر بنياد آزاديږي، (٢) دويم اُصول دا دى چي كوچنۍ نجلۍ خو په دعوىٰ كي د مور تابع كيږي، لېكن غټه (بالغه) نجلۍ د مور نه تابع كيږي.

د مسئلې حاصل دا دى كه مور دعوىٰ وكړي چي هلك اول پيدا سوى دى، او مالك له قسم څخه انكار وكړي، او نجلۍ غټه (بالغه) وي، نو فقط مور به آزاديږي، نجلۍ به نه آزاديږي.

**دليل:** نجلۍ غټه (بالغه) ده، نو په دعوىٰ كي د مور تابع كېداى نه سي، نو ځكه به نه آزاديږي.

**ولو كانت الجارية كبيرة هي:** فرمايي كه بالغه نجلۍ دعوىٰ وكړي چي هلك پيدا سوى دى او مور خاموشه (چپه) وي او د نجلۍ سره هيڅ ګواه نه وي، نو مالك ته به د قسم اخيستلو حكم كيږي، لېكن كه مالك له قسم څخه انكار وكړي، نو فقط نجلۍ به آزاديږي.

**دليل:** ځكه چي نجلۍ غټه (بالغه) ده. نو د هغې په دعوىٰ كي مور شاملېداى نه سي (ځكه چي همدا اُصول دى)، نو ځكه به نه آزاديږي.

**والتحليف الخ:** په دې سره د يو اعتراض جواب وركوي. اعتراض دا دى چي په عامه توګه د ښځي د لنګېدلو په وخت كي خلك نه وي، لهذا نارينه ته دا نه سي معلومېداى چي اول هلك پيدا سوى دى. كه نجلۍ؟ نو دلته

په څنګه مالک قسم اخلي او څنګه به هغه ته د قسم اخيستلو حکم کيږي (چي ته پر دې خبره قسم واخله! چې اول هلک پيدا سوی دی، که نجلی، مالک ته خو د دې هيڅ معلومات نسته!). د جواب حاصل دا دی چي څومره علم او خبر چي مالک ته سته د هغه مطابق به قسم اخلي

وبهذا القدر إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي په دومره تفصيل سره هغه صورتونه هم واضح سول کوم چي موږ په کفايةُ المنتهي کي بيان کړي دي، صاحب د عنايې فرمايي چي په کفايةُ المنتهي کي ټوله شپږ صورتونه بيان سوي دي چي له هغوی څخه څلور دلته په هدايه کي دي کوم چي اوس بيان سول. او (٥) پنځم صورت دا دی چي مور، نجلی (لور) او مالک ټوله پر دې خبره متفق سي چي نجلی اول پيدا سوې ده، نو په دې صورت کي به هيڅوک هم نه آزاديږي، لعدم وجود شرط العتق، (٦) شپږم صورت دا دی چي مور، نجلی او مالک ټوله پر دې خبره متفق سي چي اول هلک پيدا سوی دی، نو په دې صورت کي به مور او نجلی دواړي آزاديږي "لوجود شرط العتق"، او هلک به په هر صورت کي غلام پاتيږي، ځکه چي د هغه د پيدايښت په وخت کي د هغه مور مينځه وه. (عناية)

## پر إعتاق د ګواهی ورکولو حيثيت

وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ او که چيري دوه خلک د يو سړي په باره کي دا ګواهي ورکړي چي هغه له خپلو دوو غلامانو څخه يو آزاد کړی دی فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دا] ګواهي باطله ده إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي وَصِيَّةٍ خو [په هغه صورت کي دا ګواهي صحيح کيږي کله] چي په وصيت کي وي ايعني ګواهان وايي چي دغه سړي د خپل مرګ په وخت کي غلام آزاد کړی دی] اسْتِحْسَانًا ذَكَرَهُ فِي كِتَابِ الْعَتَاقِ امام محمد رَحِمَهُ الله استحساناً دا [حکم] په کتابُ العَتاق کي ذکر کړی دی ايعني د مبسوط په کتابُ العتاق کي يې ويلي دي چي په دې مسئله کي استحساناً د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د دواړو غلامانو نصف، نصف غلام آزاديږي. له هر غلام څخه نصف ځکه آزاديږي چي غلام غيرِ متعين دی] وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ طَلَّقَ إِحْدَى نِسَائِهِ او که چيري دوه خلک [د يو سړي په باره کي] ګواهي ورکړي چي هغه له خپلو ښځو څخه يوه ښځه طلاقه کړې ده جَازَتِ الشَّهَادَةُ نو [د هغو] ګواهي جائز ده [يعني د هغو ګواهي به قبليږي] وَيُجْبَرُ الزَّوْجُ عَلَى أَنْ يُطَلِّقَ إِحْدَاهُنَّ او هغه سړی به پر دې مجبورول کيږي چي خپلي يوې ښځي ته طلاق ورکړي ايعني هغه ته به جبراً دا حکم کيږي چي د طلاق لپاره يوه ښځه متعين کړي او هغې ته طلاق ورکړي] وَهَذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا [مسئله] بالإتفاق ده ايعني په دې مسئله کي

د امام صاحب او صاحبینو ټولو په نېز ګواهي قبلیږي] وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞ : اَلشَّهَادَةُ فِي الْعِتْقِ مِثْلُ ذٰلِكَ او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله ویلي دي: چي د عتق ګواهي هم د طلاق د ګواهۍ په څېر ده [یعني مالک ته به دا حکم کیږي چي له دواړو غلامانو څخه یو آزاد کړي، لنډه دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د عتق شهادت مردود دی، او د طلاق شهادت مقبول دی، او د صاحبینو په نېز په دواړو صورتونو کي شهادت مقبول دی] وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ الشَّهَادَةَ عَلٰى عِتْقِ الْعَبْدِ لَا تُقْبَلُ مِنْ غَيْرِ دَعْوَى الْعَبْدِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او [د عتق په مسئله کي] د دې اختلاف اصل قاعده دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په خپله د غلام له دعویٰ څخه بغیر د غلام د آزادېدلو ګواهي ورکول نه قبلیږي وَعِنْدَهُمَا تُقْبَلُ [لیکن] د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز قبلیږي وَالشَّهَادَةُ عَلٰى عِتْقِ الْأَمَةِ وَطَلَاقِ الْمَنْكُوْحَةِ مَقْبُوْلَةٌ مِنْ غَيْرِ دَعْوٰى بِالْاِتِّفَاقِ او د مینځي د آزاد والي او د منکوحه ښځي د طلاق ګواهي له دعویٰ څخه بغیر هم بالاتفاق قبلیږي وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوْفَةٌ او دا مسئله مشهوره ده وَإِذَا كَانَ دَعْوَى الْعَبْدِ شَرْطًا عِنْدَهُ او کله چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام دعویٰ کول شرط دي لَا يَتَحَقَّقُ فِيْ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ نو ځکه به د متن په مسئله کي دعویٰ نه ثابتیږي لِأَنَّ الدَّعْوٰى مِنَ الْمَجْهُوْلِ لَا تَتَحَقَّقُ ځکه چي د مجهول غلام له طرفه دعویٰ نه ثابتیږي فَلَا تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ نو ځکه به ګواهي نه قبلیږي [یعني د متن په مسئله کي د غلام له طرفه دعویٰ نشته، نو ځکه به ګواهي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه قبلیږي] وَعِنْدَهُمَا لَيْسَ بِشَرْطٍ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز [د غلام دعویٰ] شرط نه ده فَتُقْبَلُ الشَّهَادَةُ وَإِنِ انْعَدَمَ الدَّعْوٰى نو ځکه به [د هغو په نېز] قبلیږي که څه هم [د غلام له طرفه] دعویٰ نه وي أَمَّا فِي الطَّلَاقِ فَعَدَمُ الدَّعْوٰى لَا يُوْجِبُ خَلَلًا فِي الشَّهَادَةِ کوم چي طلاق دی نو [په هغه کي] د دعویٰ معلوم کېدل هیڅ خلل نه ثابتوي [یعني که په طلاق کي دعویٰ نه وي نو بیا هم په ګواهۍ کي هیڅ خلل نه راځي، بلکي ګواهي به قبلیږي] لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيْهَا ځکه چي د طلاق په ګواهۍ کي دعویٰ شرط نه ده.

**اللغات:** ﴿شَهِدَ﴾ د سمع ماضي ده: ګواهي ورکول، ﴿يُجْبَرُ﴾ د افعال مضارع مجهوله ده: مجبوره کول (په یو چا په زوره یو کار کول)، ﴿اِنْعَدَمَ﴾ د انفعال ماضي ده: نیستي کېدل، نه موجودېدل، نه کېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې او دلائل ښکاره دي، تشریح ته یې ضرورت نسته.

---

۞ القول الراجح ...

## پر إعتاق د ګواهي ورکولو حيثيت

وَلَوْ شَهِدَا اَنَّهٗ اَعْتَقَ اِحْدٰى اَمَتَيْهِ او که دوه خلک اد يوه سړي په باره کې دا ا ګواهي ورکړي چې هغه په خپلو دواړو مينځو کې يوه مينځه آزاده کړې ده لَا تُقْبَلُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا ګواهي [هم] نه قبلېږي وَاِنْ لَمْ تَكُنِ الدَّعْوٰى شَرْطًا فِيْهَا که څه هم په داسې ګواهي کې دعوىٰ شرط نه ده [دا يو ډول د اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې کله دلته دعوىٰ شرط نه ده، نو بيا ولې ګواهي نه قبلېږي، را] روانه جمله جواب دی] لِاَنَّهٗ اِنَّمَا لَا تُشْتَرَطُ الدَّعْوٰى لِمَا اَنَّهٗ يَتَضَمَّنُ تَحْرِيْمَ الْفَرْجِ د دې وجه دا ده چې د دعوىٰ نه شرط کېدل فقط پر همدغه بناء دي چې په آزادولو سره پر مالک [د مينځې] د فرج حرامېدل لازمېږي [او فرج حرامېدل هغه وخت لازمېږي کله چې مينځه معلومه او متعينه وي، نه مبهومه] فَشَابَهُ الطَّلَاقَ نو دا د طلاق سره مشابه سو [يعني کله چې مينځه متعينه وي نو بيا به ګواهي قبلېږي او مينځه به پر مالک آزادېږي (يعني د هغې فرج به پر مالک حرامېږي)، نو داسې عتق (چې په هغه کې مينځه متعينه وي) د طلاق سره مشابه سو] وَالْعِتْقُ الْمُبْهَمُ لَا يُوْجِبُ تَحْرِيْمَ الْفَرْجِ عِنْدَهٗ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ [ليکن] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مبهم [مينځې] په آزادولو سره د فرج حرامېدل نه لازمېږي لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه فَصَارَ كَالشَّهَادَةِ عَلٰى عِتْقِ اَحَدِ الْعَبْدَيْنِ نو [په دواړو مينځو کې د يوې مينځې د آزادولو ګواهي ورکول] داسې سو لکه په دوو غلامانو کې د يوه غلام د آزادولو ګواهي ورکول وَهٰذَا كُلُّهٗ اِذَا شَهِدَا فِيْ صِحَّتِهٖ عَلٰى اَنَّهٗ اَعْتَقَ اَحَدَ عَبْدَيْهِ او دا ټوله په هغه صورت کې دي کله چې دواړو ګواهانو د مالک د صحت په حالت کې دا ګواهي ورکړي چې هغه [مالک] په خپلو دوو غلامانو کې يو غلام آزاد کړی دی اَمَّا اِذَا شَهِدَا اَنَّهٗ اَعْتَقَ اَحَدَ عَبْدَيْهِ فِيْ مَرَضِ مَوْتِهٖ ليکن که دواړه ګواهان دا ګواهي ورکړي چې هغه په خپل مرضُ الموت کې خپل يو غلام آزاد کړی دی اَوْ شَهِدَا عَلٰى تَدْبِيْرِهٖ فِيْ صِحَّتِهٖ اَوْ فِيْ مَرَضِهٖ يا دا ګواهي ورکړي چې هغه د خپل صحت يا مرضُ الموت په حالت کې خپل يو غلام مدبر جوړ کړی دی وَاَدَاءُ الشَّهَادَةِ فِيْ مَرَضِ مَوْتِهٖ اَوْ بَعْدَ الْوَفَاةِ او د دې ګواهي اداء کول [د مالک] د مرضُ الموت په حالت کې وي يا [د هغه] تر مړينې وروسته وي تُقْبَلُ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً به دا ګواهي قبلېږي لِاَنَّ التَّدْبِيْرَ حَيْثُمَا وَقَعَ وَقَعَ وَصِيَّةً ځکه تدبير چې کله هم واقع کېږي نو د وصيت په توګه واقع کېږي [يعني مالک چې هر کله هم خپل غلام مدبر جوړ کړي نو دا د مالک له طرفه وصيت دی، هغه که د صحت په حالت کې وي

يا د مرض په حالت کي] وَكَذَا الْعِتْقُ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ وَصِيَّةٌ او همدارنګه آزادول [هم] په مرضُ الموت کي وصيت دی [يعني که مالک يو غلام د خپل مرضُ الموت او زکندن په حالت کي آزاد کړي، نو دا آزادول هم د وصيت حکم لري] وَالْخَصْمُ فِي الْوَصِيَّةِ إِنَّمَا هُوَ الْمُوْصِي او خصم په وصيت کي وصيت کونکی دی [يعني پر کوم سړي چي د وصيت کولو دعوىٰ وسي (چي تا د غلام آزادولو وصيت کړی دی) هغه ته موصي (وصيت کونکي) وايي] وَهُوَ مَعْلُومٌ او هغه سړی معلوم دی وَعَنْهُ خَلَفٌ او د هغه خليفه [هم] موجود دی وَهُوَ الْوَصِيُّ أَوِ الْوَارِثُ او هغه وصي يا وارث دی [نو ځکه به ګواهي قبليږي] وَلِأَنَّ الْعِتْقَ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ يَشِيْعُ بِالْمَوْتِ فِيهِمَا او ځکه چي د مرضُ الموت عتق د مالک په مرګ سره په دواړو غلامانو کي غوړيږي [يعني په مرض الموت کي چي آزادي واقع سي هغه د مالک په مړه کېدلو سره په دواړو غلامانو کي نشر کيږي او د هر غلام نصف، نصف آزاديږي] فَصَارَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خَصْمًا مُتَعَيَّنًا نو ځکه له دوی څخه هر غلام خصم [مُدعي] متعين سو [يعني کله چي د هر غلام په نصف کي آزاديږي وغوړېده نو هغه مدعي جوړ سي، نو ځکه به له دعوىٰ څخه بغير هم ګواهي قبليږي] وَلَوْ شَهِدَا بَعْدَ مَوْتِهِ أَنَّهُ قَالَ فِي صِحَّتِهِ: أَحَدُكُمَا حُرٌّ او که چيري دواړه ګواهان د مالک تر مرګ وروسته [دا] ګواهي ورکړي چي هغه [مالک] د خپل صحت په حالت کي ويلي وو: أَحَدُكُمَا حُرٌّ [يعني دا ګواهي ورکړي چي هغه د خپل روغتيا په حالت کي يو غلام آزاد کړی دی] فَـقَدْ قِيلَ: لَا تُقْبَلُ نو [په دې باره کي] يو قول دا دی: چي ګواهي به نه قبليږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِوَصِيَّةٍ ځکه چي دا وصيت نه دی وَقِيلَ: تُقْبَلُ او يو قول دا دی: چي ګواهي به قبليږي لِلشُّيُوعِ د غوړېدلو [نشر کېدلو] په وجه. [يعني ځکه چي عتق په دواړو غلامانو کي وغوړېدی، او هر غلام خصم جوړ سو، نو ځکه به ګواهي قبليږي].

**اللغات:** ﴿يَتَضَمَّنُ﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل، ﴿فَرْج﴾ شرمګاه، مراد ځني د وطي حِلت دی، ﴿تَدْبِيْر﴾ د تفعيل مصدر دی: مدبر جوړول، تدبير دې ته وايي چي مالک د غلام آزادي په خپل مرګ پوري معلق کړي (يعني ورته ووايي چي "زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې")، ﴿يشِيْعُ﴾ د ضرب مضارع ده: غوړېدل.

**تشريح:** مسئله او دلائل په عبارت کي تشريح سوه، نوري تشريح ته يې ضرورت نسته.



# بَابُ الْحَلْفِ بِالْعِتْقِ

(دا) باب د آزادۍ په هکله د قسم اخیستلو (په بیان کې) دی

**تشریح:** د "حلف بالعتق" مطلب دا دی چې مالک د خپل غلام یا مینځې آزادي پر یو شرط مُعلقه کړي، ګواکې دا د مُعلق عتق بیان دی. تر دې مخکې د مُنجز عتق بیان وو، او دا خبره تسلیم سوې ده چې منجز تر معلق مخکې وي، نو ځکه صاحب د هدایې د منجز عتق له بیان څخه وروسته اوس د معلق عتق بیان کوي. (بناية ج:۵، ص:۶۵۷)

**یادونه:** څرنګه چې د را روانو بابونو زیاتره عبارات ډېر آسانه دي، وضاحت ته څه ضرورت نه لري، نو ځکه موږ هم د زیاتره عباراتو تشریحات نه دي ذکر کړي، بلکې د هغه پر ځای مو په تشریحي او سپړلي انداز سره ترجمه کړې ده، چې له ترجمې څخه انشاء الله په آسانه هر لوستونکی په عبارت پوهېدای سي.

## د مُعلق إعتاق یو ځانګړی صورت

وَمَنْ قَالَ: إِذَا دَخَلْتُ الدَّارَ فَكُلُّ مَمْلُوكٍ لِي يَوْمَئِذٍ فَهُوَ حُرٌّ او کوم سړی چې ووایي: که چیري زه دغه کور ته داخل سوم نو په هغه ورځ زما هر غلام آزاد دی [یعني په هغه ورځ چې زه د هر غلام مالک یم، هغه زما له طرفه آزاد دی] وَلَيْسَ لَهُ مَمْلُوكٌ حالانکې [د دغه وینا په ورځ] د هغه سره غلام نه وي فَاشْتَرَى مَمْلُوكًا ثُمَّ دَخَلَ او اتر دې وروسته] یو غلام رانیسي بیا [کور ته] داخل سي عَتَقَ نو هغه غلام آزادیږي لِأَنَّ قَوْلَهُ يَوْمَئِذٍ تَقْدِيرُهُ يَوْمَ إِذْ دَخَلْتُ ځکه چې د دې سړي د قول "يَوْمَئِذٍ" اصل تقدیر دا دی: "يَوْمَ إِذْ دَخَلْتُ" [چې د هغه معنیٰ دا سوه: په کومه ورځ چې زه کور ته داخل سم] إِلَّا أَنَّهُ أَسْقَطَ الْفِعْلَ وَعَوَّضَهُ بِالتَّنْوِينِ خو هغه فعل [دَخَلْتُ] حذف کړی او تنوین یې د هغه عوض وګرځوی [یعني د هغه په عوض کې یې تنوین ذکر کړی] فَكَانَ الْمُعْتَبَرُ قِيَامَ الْمِلْكِ وَقْتَ الدُّخُولِ نو ځکه به [کور ته] د داخلېدلو په وخت کې د ملکیت موجودېدل معتبر وي [یعني کله چې کور ته د داخلېدلو په وخت کې د دغه سړي په ملکیت کې غلام وي نو هغه به آزادیږي، او دلته وروسته رانیول سوی غلا هم د هغه په ملکیت کې دی، نو ځکه به هغه آزادیږي] وَكَذَا لَوْ كَانَ فِي مِلْكِهِ يَوْمَ حَلَفَ عَبْدٌ همدارنګه که چیري د دې سړي په ملکیت کې د قسم [اشرط] په وخت کې غلام موجود وي فَبَقِيَ عَلَى مِلْكِهِ حَتَّى دَخَلَ او غلام [تر هغه وخته] د ده په ملکیت کې پاته سي تر

څو چې دئ [کور ته] داخل سي عَتَقَ نو [دا غلام هم] آزادیږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی [چې کور ته د داخلېدلو په وخت کي غلام د ده په ملکيت کي موجود دی] قَالَ: وَلَوْلَمْ يَكُنْ قَالَ فِي يَمِيْنِهِ "يَوْمَئِذٍ" او که هغه په خپل قسم کي "يَوْمَئِذٍ" (په هغه ورځ) ويلي نه وي لَمْ يَعْتِقْ نو [وروسته رانيول سوی غلام] نه آزادیږي لِأَنَّ قَوْلَهُ: كُلُّ مَمْلُوْكٍ لِيْ لِلْحَالِ څکه چې هغه دا قول "زما هر غلام" د حال لپاره دی [يعني د هغه دا قول "زما هر غلام" د داسي غلام په باره کي ويل صحيح وي کوم چې فی الحاله (اوس) د هغه په ملکيت کي موجود وي] وَالْجَزَاءُ حُرِّيَّةُ الْمَمْلُوْكِ فِي الْحَالِ او د دې قول جزاء فی الحاله د مملوک آزادېدل دي إِلَّا أَنَّهُ لَمَّا دَخَلَ الشَّرْطُ عَلَى الْجَزَاءِ لېکن کله چې شرط پر جزاء داخل سو تَأَخَّرَ إِلَى وُجُوْدِ الشَّرْطِ نو جزاء د شرط تر موجودېدلو پوري وځنډېده فَيَعْتِقُ إِذَا بَقِيَ عَلَى مِلْكِهِ إِلَى وَقْتِ الدُّخُوْلِ لهذا غلام به [هغه وخت] آزادیږي کله چې غلام د دې سړي په ملکيت کي د داخلېدلو تر وخته پوري پاته سي [يعني کور ته د داخلېدلو په وخت کي چې کوم غلام د دې سړي په ملکيت وي، هغه غلام به آزادیږي] وَلَا يَتَنَاوَلُ مَنِ اشْتَرَاهُ بَعْدَ الْيَمِيْنِ او کوم غلام چې د سړي تر يمين [شرط] وروسته رانيولی وي، هغه ته به جزاء [آزادي] نه شامليږي. [لأنّ قوله: كل مملوكٍ لِيْ: د دغه ټوله دليل حاصل دا دی: چې کله دغه سړي په خپل قول کي يَوْمَئِذٍ ذکر نه کړي، نو د قسم اخيستلو (يعني د دغه شرطيه وينا) په وخت کي غلام آزادېدل پکار دي، لېکن کله چې هغه کور ته د داخلېدلو شرط ولګوی، نو مطلب يې دا سو چې په هغه وخت کي چې کوم غلام د ده په ملکيت کي دی که هغه کور ته د داخلېدلو په وخت کي موجود وو، نو آزاديږي، نو څکه به هغه غلام نه آزاديږي کوم چې تر قسم (شرط) وروسته رانيسي او د ده په ملکيت کي راسي].

**اللغات:** ﴿تَأَخَّرَ﴾ د تفعّل ماضي ده: ځنډېدل، مؤخر کېدل، وروسته کېدل.

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د مُعلق إعتاق يو بل صورت

وَمَنْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوْكٍ لِيْ ذَكَرٍ فَهُوَ حُرٌّ او کوم سړي چې ووايي: زما هر مذکر مملوک [غلام] آزاد دی وَلَهُ جَارِيَةٌ حَامِلٌ او د هغه سره يوه حامله مينځه وي فَوَلَدَتْ ذَكَرًا او [بيا] دا مينځه هلک وزېږوي لَمْ يَعْتِقْ نو هغه هلک نه آزاديږي وَهٰذَا إِذَا وَلَدَتْ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا ظَاهِرٌ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چې [د وينا له وخت څخه] دا مينځه په شپږو مياشتو يا تر دې په زيات مودت کي

بچی وزېږوي، نو ښکاره دي اچي د قسم اخیستلو په وخت کي حمل (هلک) د هغې په نس کي نه وو] لِأَنَّ اللَّفْظَ لِلْحَالِ ځکه چي دغه [د کُل مملوک... ] الفظ د حال لپاره دی وَفِي قِيَامِ الْحَمْلِ وَقْتَ الْيَمِينِ احْتِمَالٌ او د یمین [شرط] په وخت کي د حمل په موجودېدلو کي شک سته لِوُجُودِ أَقَلِّ مُدَّةِ الْحَمْلِ بَعْدَهُ ځکه چي تر هغه وروسته د حمل أقل مودت [شپږ میاشتي] موجود سو [لهذا دي خبري احتمال سته چي د قسم او شرط په وخت کي به حمل موجود نه وو، بلکي وروسته به حمل پیدا سوی وي، نو ځکه به دا حمل (هلک) نه آزادیږي] وَكَذَا إِذَا وَلَدَتْ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او همدارنګه کله چي له شپږو میاشتو څخه په کم مودت کي دا مینځه بچی وزېږوي [نو هم هغه نه آزادیږي] لِأَنَّ اللَّفْظَ يَتَنَاوَلُ الْمَمْلُوكَ الْمُطْلَقَ ځکه چي لفظ مطلق مملوک ته شامل دی وَالْجَنِينُ مَمْلُوكٌ تَبَعًا لِلْأُمِّ لَا مَقْصُودًا او جنین د مور په متابعت کي مملوک دی او بذات خود مملوک نه دی وَلِأَنَّهُ عُضْوٌ مِنْ وَجْهٍ او په دې وجه [هم] چي جنین په یوه اعتبار سره [د مور] اندام دی وَاسْمُ الْمَمْلُوكِ يَتَنَاوَلُ الْأَنْفُسَ دُونَ الْأَعْضَاءِ او د مملوک لفظ نفوسو ته شاملیږي، نه و اندامونو ته [یعني دلته هغه سړي د مملوک لفظ ذکر کړی دی. او مملوک بشپړ نفس ته شاملیږي، او حمل د مینځي یو اندام دی، بشپړ نفس دی، همدا وجه ده چي مالک ته دا جائز نه دي چي حمل له مینځي څخه جلا خرڅ کړي، نو ځکه به دا حمل (هلک) هم نه آزادیږي] وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ بَيْعَهُ مُنْفَرِدًا له همدې وجهي مالک د جنین [حمل] د جلا خرڅولو ملکیت [او اختیار] نه لري قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَفَائِدَةُ التَّقْيِيدِ بِوَصْفِ الذُّكُورَةِ أَنَّهُ لَوْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مذکر والي په صفت سره [د مملوک] مقید کولو فایده دا ده چي که چیري دغه سړی فقط "كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي" ووایي [یعني د "ذَكَرٌ" لفظ ور سره ذکر نه کړي] تَدْخُلُ الْحَامِلُ نو [د هغه په قول کي] به حامله مینځه [هم] داخله سي فَيَدْخُلُ الْحَمْلُ تَبَعًا لَهَا او د حامله مینځي په متابعت کي به [د هغې] حمل [هم د هغه په قول کي] داخل سي [نو مینځه او هلک به دواړه آزاد سي].

**اللغات:** ﴿ذَكَر﴾ د انسان تناسلي اندام، مذکر (نارینه)، دلته ځني مراد مذکر دی. ﴿فَصَاعِدًا﴾ او تر دې زیات. ﴿جَنِيْن﴾ د مور په نس کي دننه بچی. ﴿مُنْفَرِد﴾ د إفعال اسم فاعل دی: یوازي، تنها، جلا.

**تشریح:** عبارت په ترجمه کي تشریح سو، نوري تشریح ته یې ضرورت نسته.

## د مُعلق إعتاق يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ حُرٌّ بَعْدَ غَدٍ او كه [يو سړی] ووايي: هر هغه مملوک چي زه يې [اوس] مالک يم هغه تر سبا ورځي وروسته آزاد دی أَوْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي فَهُوَ حُرٌّ بَعْدَ غَدٍ يا [داسي] ووايي: زما هر مملوک تر سبا ورځي وروسته آزاد دی وَلَهُ مَمْلُوكٌ او [اوس] د هغه يو مملوک وي فَاشْتَرَى آخَرَ او [بيا] بل مملوک رانيسي ثُمَّ جَاءَ بَعْدُ غَدٍ بيا تر سبا ورځي وروسته ورځ راسي عَتَقَ الَّذِي فِي مِلْكِهِ يَوْمَ حَلَفَ نو هغه غلام آزاديږي کوم چي د قسم کولو [شرط کولو] په ورځ د هغه په ملکيت کي وي لِأَنَّ قَوْلَهُ أَمْلِكُهُ لِلْحَالِ حَقِيقَةً ځکه چي د هغه دا قول "أَمْلِكُهُ" په حقيقت کي د حال او موجوده مملوک [لپاره دی [يعني د مضارع صيغه حقيقتاً د حال لپاره راځي] يُقَالُ: أَنَا أَمْلِكُ كَذَا وَكَذَا وَيُرَادُ بِهِ الْحَالُ ويل کيږي: "چي زه د دومره او دومره [شيانو] مالک يم" په دې سره د حال زمانه [يعني فی الحاله مملوکه شيان] مراديږي وَكَذَا يُسْتَعْمَلُ لَهُ مِنْ غَيْرِ قَرِينَةٍ او "أَمْلِكُ" له قرينې څخه بغير د حال لپاره استعماليږي وَالِاسْتِقْبَالُ بِقَرِينَةِ السِّينِ أَوْ سَوْفَ او د "سين" يا "سَوْفَ" په قرينه سره د استقبال لپاره استعماليږي فَيَكُونُ مُطْلَقُهُ لِلْحَالِ نو [له سين او سوف څخه] مطلق ملک [أَمْلِكُ] به د حال لپاره وي فَكَانَ الْجَزَاءُ حُرِّيَّةَ الْمَمْلُوكِ فِي الْحَالِ مُضَافًا إِلَى مَا بَعْدَ الْغَدِ لهذا جزاء به د فی الحاله مملوک آزاديدل وي کوم چي د سبا نه بل سبا ورځي ته منسوب وي [يعني لهذا د دې سړي (مالک) د قول مطلب به دا وي: چي اوس زه د کوم غلام مالک يم هغه سبا نه بل سبا آزاد دی] فَلَا يَتَنَاوَلُ مَا يَشْتَرِيهِ بَعْدَ الْيَمِينِ نو ځکه به جزاء هغه مملوک ته نه شامليږي کوم چي يې تر يمين [شرط] وروسته رانيولی وي. [يعني کوم غلام چي يې وروسته رانيولی وي هغه به نه آزاديږي، ځکه چي د قسم او شرط په وخت کي دا سړی د هغه مالک نه دی].

**اللغات:** ﴿غَدٌ﴾ سبا، (د سبا ورځ)، بَعْدَ غَدٍ: سبا نه بل سبا.

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د خپلو ټولو غلامانو آزادي په مرګ پوري مُعلق کول

وَلَوْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ أَوْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي او که [يو څوک] ووايي: هر هغه غلام چي زه يې [اوس] مالک يم، يا [داسي] ووايي: زما هر غلام زما تر مرګ وروسته آزاد دی وَلَهُ مَمْلُوكٌ

او اوس اد هغه لپاره يو غلام وي فَاشْتَرَى مَمْلُوكًا آخَرَ او بيا ادويم غلام رانيسي فَالَّذِي كَانَ عِنْدَهُ وَقْتَ الْيَمِيْنِ مُدَبَّرٌ نو كوم غلام چي ديمين [شرط] په وخت كي د ده سره وي هغه مدبر دى [يعني هغه موجود غلام به مدبر جوړيږي] وَالْآخَرُ لَيْسَ بِمُدَبَّرٍ او هغه بل [وروسته رانيول سوى] غلام مدبر نه دى [ځكه چي هغه د شرط او يمين په وخت كي د ده مملوك نه دى] وَإِنْ مَاتَ عَتَقَا مِنَ الثُّلُثِ او كه دغه سړى [مالک] مړ سي نو دا دواړه غلامان به [د مال] له دريمې حصې څخه آزاديږي [يعني د دې سړي تر مرګ وروسته به دواړه غلامان د ده د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي د طرفينو په نيز، ځكه چي د تدبير په وجه وصيت د دواړو لپاره ثابت سو] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ فِي النَّوَادِرِ: يَعْتِقُ مَا كَانَ فِي مِلْكِهِ يَوْمَ حَلَفَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نوادر كي فرمايلي دي: چي هغه غلام آزاديږي كوم چي د قسم خوړلو [شرط كولو] په ورځ د دې سړي په ملكيت كي وي وَلَا يَعْتِقُ مَا اسْتَفَادَ بَعْدَ يَمِينِهِ او هغه غلام نه آزاديږي كوم چي دې سړي تر خپل قسم [شرط] وروسته حاصل كړى وي وَعَلَى هٰذَا إِذَا قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي إِذَا مِتُّ فَهُوَ حُرٌّ او پر همدغه اختلاف دي كه هغه [داسې] ووايي: زما هر غلام چي كله زه مړ سم آزاد دي [انو تر دغه وينا (شرط) وروسته چي كوم غلام رانيسي هغه د طرفينو په نيز آزاديږي او د امام ابو يوسف په نيز نه آزاديږي] لَهُ: أَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلْحَالِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي [د أَمْلِكُ] لفظ د حال لپاره حقيقت دى عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لكه [مخكي] چي موږ د دې بيان وكړى فَلَا يَعْتِقُ بِهِ مَا سَيَمْلِكُهُ نو ځكه به په دې لفظ سره هغه غلام نه آزاديږي چي دغه سړى [وروسته] د هغه مالک جوړيږي [يعني امام ابو يوسف فرمايي چي مضارع حقيقتاً د حال لپاره استعماليږي، نه د استقبال لپاره، لهذا كوم غلام چي د دې لفظ په وخت كي موجود وي فقط هغه به آزاديږي، او كوم غلام چي تر دې وروسته په ملكيت كي راسي هغه به نه آزاديږي] وَلِهٰذَا صَارَ هُوَ مُدَبَّرًا دُونَ الْآخَرِ [د امام ابو يوسف دويم دليل دا دى چي] همدا وجه ده هغه غلام مدبر جوړ سو [كوم چي د شرط په ورځ د هغه په ملكيت كي وو] نه دويم غلام [له دې څخه هم معلومه سوه چي فقط پر موجود غلام به د عتق إطلاق كيږي] وَلَهُمَا: أَنَّ هٰذَا إِيجَابُ عِتْقٍ وَإِيصَاءٌ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي دا كلام د عتق إيجاب [هم] دى او وصيت كول [هم] دى [مطلب دا چي د مالک په دغه جمله "كل ملوک أملكه... بعد موتي" كي د عتق تر څنګ وصيت هم سته، او په وصيت كي موجود غلام هم داخليږي او كوم غلام چي وروسته په ملكيت كي راسي هغه هم پكښي داخليږي، نو ځكه به دواړه غلامان آزاديږي] حَتَّى أُعْتُبِرَ مِنَ الثُّلُثِ همدا وجه ده چي [د مړي د مال] له دريمې حصې څخه [د دغه عتق] اعتبار سوى دى [نو معلومه سوه چي دغه كلام

وصيت هم دى، مطلب دا چې دلته غلام د مړي د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي او دا تاسې معلومه ده چې وصيت د ميت د مال په دريمه حصه کې نافذيږي، نو ثابته سوه چې دا کلام وصيت هم دی| وَفِي الْوَصَايَا تُعْتَبَرُ الْحَالَةُ الْمُنْتَظَرَةُ وَالْحَالَةُ الرَّاهِنَةُ او په وصيتونو کې د متنظره حالت [يعني تر مرګه پورې د راتلونکې حالت] اعتبار [هم] کيږي او د موجوده [اوسنی] حالت اعتبار [هم] کيږي أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَدْخُلُ فِي الْوَصِيَّةِ بِالْمَالِ مَا يَسْتَفِيدُهُ بَعْدَ الْوَصِيَّةِ آيا ته نه ګورې! چې په وصيت کې هغه مال [هم] داخليږي کوم چې تر وصيت وروسته مُوصي حاصل کړي وي وَفِي الْوَصِيَّةِ لِأَوْلَادِ فُلَانٍ مَنْ يُولَدُ لَهُ بَعْدَهَا او د فلانکي د بچيانو لپاره په وصيت کولو کې [د فلانکي] هغه بچيان هم داخليږي کوم چې تر وصيت وروسته پيدا سي. [همداسې به دلته موجود غلام هم د آزادۍ په وصيت کې داخليږي، او کوم غلام چې تر وصيت وروسته په ملکيت راسي هغه به هم پکښې داخليږي، او آزاديږي] وَالْإِيجَابُ إِنَّمَا يَصِحُّ... د دې عبارت ترجمه او تشريح به لاندې ذکر سي.

**اللغات:** ﴿يَمِين﴾ قسم، مراد ځني شرط او تعليق دی، ﴿عَتَقَا﴾ د ضرب له باب څخه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: آزاديدل، ﴿إِسْتَفَادَ﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، ﴿إِيْصَاء﴾ د افعال مصدر دی: وصيت کول، ﴿إِيْجَاب﴾ واجبول، سبب جوړېدل.

وَالْإِيجَابُ إِنَّمَا يَصِحُّ مُضَافًا إِلَى الْمِلْكِ أَوْ إِلَى سَبَبِهِ. او د وصيت إيجاب هغه وخت صحيح کيږي کله چې هغه د ملک يا د ملک د سبب وطرف ته منسوب وي فَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِيجَابُ الْعِتْقِ يَتَنَاوَلُ الْعَبْدَ الْمَمْلُوكَ اعْتِبَارًا لِلْحَالَةِ الرَّاهِنَةِ لهذا د دې سړي [مالک] قول به د عتق د إيجاب کېدلو په حيثيت د اوسني حالت په اعتبار سره هغه غلام ته شامليږي کوم چې د يمين [شرط] په وخت کې د دغه سړي مملوک وي فَيَصِيرُ مُدَبَّرًا حَتَّى لَا يَجُوزَ بَيْعُهُ نو ځکه به دا مملوک مدبر ګرځي تر دې چې د هغه خرڅول به جائز نه وي وَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِيصَاءٌ يَتَنَاوَلُ الَّذِي يَشْتَرِيهِ اعْتِبَارًا لِلْحَالَةِ الْمُتَرَبِّصَةِ وَهِيَ حَالَةُ الْمَوْتِ او د وصيت کېدلو په حيثيت به اد دغه سړي قول] هغه غلام ته [هم] شامليږي کوم چې يې [تر شرط وروسته] رانيولی وي، د منتظره حالت يعني د مرګ د حالت په اعتبار کولو سره وَقَبْلَ الْمَوْتِ حَالَةُ التَّمَلُّكِ اسْتِقْبَالٌ مَحْضٌ او تر مرګ مخکې د مالک کېدلو حالت محض استقبالي دی فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ اللَّفْظِ نو ځکه به دا غلام [د دغه سړي] تر لفظ [قول] لاندې نه داخليږي وَعِنْدَ الْمَوْتِ يَصِيرُ كَأَنَّهُ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِي أَوْ كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ فَهُوَ حُرٌّ او د مرګ په وخت کې به داسې وي لکه هغه چې ويلي وي: زما هر مملوک، يا هر هغه مملوک چې زه يې [اوس] مالک يم، هغه آزاد دی.

**اللغات:** ﴿رَاهِنَةً﴾ فی الحاله، موجوده، اوسنی. ﴿تَمَلُّک﴾ د تفعّل مصدر دی: د یو شي مالک جوړېدل (مالک کېدل).

**تشريح:** دا عبارت څه ستونزمن دی، خلاصه او غورچاڼ یې دا دی چې دلته (د مالک د کلام) دوه حیثیته دي: ① د عتق إیجاب (یعني آزادي واجبول)، دا و موجود غلام ته شاملیږي، نو ځکه به هغه مدبر جوړیږي، دا به د راهنه حالت یعني د اوسني (حاضره) حالت په اعتبار سره وي. ② او دویم د وصیت حیثیت دی، په دې کي هغه غلام هم شاملیږي کوم چي وروسته مالک رانیولی وي، دا به د متربصه حالت یعني د مستقبله حالت په اعتبار سره وي.

بِخِلَافِ قَوْلِهِ بَعْدَ غَدٍ په خلاف د هغه د دې قول: بَعْدَ غَدٍ [یعني په خلاف د مالک د دې قول: کل مملوکٍ لی فهو حرٌ بعد غدٍ] عَلٰی مَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي ذکر سوه لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ وَاحِدٌ ځکه چي دا یو تصرف دی وَهُوَ إِيجَابُ الْعِتْقِ او هغه د عتق إیجاب دی [یعني په دې قول او مسئله کي فقط د آزادۍ واجبول سته، وصیت نه سته، نو ځکه به وروسته رانیول سوی غلام نه آزادیږي] وَلَيْسَ فِيهِ إِيصَاءٌ او په دې کي وصیت کول نسته وَالْحَالَةُ مَحْضُ اسْتِقْبَالٍ او [د تملّک] حالت محض استقبالي دی فَافْتَرَقَا نو دواړي مسئلې سره جلا سوې [النهه دا چي د متن په مسئله کي وصیت سته او په دې مسئله کي وصیت نسته، نو په دې وجه دواړي مسئلې سره جلا سوې او په حکم کي یې فرق راغلی] وَلَا يُقَالُ: إِنَّكُمْ جَمَعْتُمْ بَيْنَ الْحَالِ وَالِاسْتِقْبَالِ او نه دي ویل کیږي [یعني دا اعتراض دي نه کیږي]: چي تاسي حال او استقبال [دواړه] سره جمع کړي دي لِأَنَّا نَقُولُ: نَعَمْ لٰكِنْ بِسَبَبَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ: إِيجَابِ عِتْقٍ وَوَصِيَّةٍ ځکه چي موږ وایو [جواب ورکوو]: چي هو! [جمع خو ده] لیکن په دوو جلا سببونو سره [جمع ده]: یعني د عتق إیجاب او د وصیت إیجاب وَإِنَّمَا لَا يَجُوزُ ذٰلِكَ بِسَبَبٍ وَاحِدٍ او دا [د حال او استقبال جمع کول] خو په یوه سبب سره جائز نه دي.

**اللغات:** ﴿فَافْتَرَقَا﴾ د افتعال له باب څخه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح:**

**ولا يُقال إلخ:** فرمایي دا اعتراض دي نه کیږي چي دلته خو د "أَمْلِكُهُ" په لفظ کي د حال او استقبال دواړو معنیٰ مراد سوې ده، د دې جواب دا دی چي دلته د دوو جلا، جلا سببونو په اعتبار سره دوې جلا معناوي مراد کړل سوي دي، یعني د عتق د واجبولو په وجه د حال معنیٰ مراد کړی سوې ده او د وصیت په وجه د استقبال معنیٰ مراد کړی سوې ده، او په دوو سببونو سره دوې معناوي مرادول صحیح دي، ها! که په یوه سبب سره دوې معناوي مراد کړل سي، نو دا صحیح نه دي.



# بَابُ الْعِتْقِ عَلَى جُعْلٍ

(دا) باب د مال په عوض کي د آزادولو (په هکله) دی

**تشریح:** په عتق او آزادولو کي أصل دا دی چي مالک بېله عوضه إحساناً خپل غلام آزاد کړي. لېکن که يو مالک د مال په عوض کي خپل غلام آزادول غواړي نو دا هم صحيح دي، خو د أصل خلاف او شاذ و نادر دي، نو له همدې کبله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دا باب په آخر کي بيانوي.

**جُعْل:** (د جيم په ضمه او د عين په سکون سره)، د دې معنیٰ ده: مَا جُعِلَ لِلْإِنْسَانِ مِنْ شَيْءٍ عَلَى شَيْءٍ يَفْعَلُهُ (يعني "جُعْل" هر هغه شي يا مال ته وايي، کوم چي د يو کار کولو په عوض کي د انسان لپاره مقرر کړی سي)

## إعتاق بالمال (د مال په بدله کي غلام آزادول)

وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَى مَالٍ او څوک چي د مال په عوض کي خپل غلام آزاد کړي فَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام [هغه] قبول کړي عَتَقَ نو غلام آزاديږي [او مال به د هغه پر ذمه قرض وي] وَذٰلِكَ مِثْلُ أَنْ يَقُوْلَ: أَنْتَ حُرٌّ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ أَوْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ د دې مثال دا دی لکه [مالک] چي [داسي] ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کي يا په زرو درهمو آزاد يې! وَإِنَّمَا يُعْتَقُ بِقَبُوْلِهِ لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ او غلام د دې تر قبلولو وروسته ځکه آزاديږي چي دا په غير مال سره د مال معاوضه ده إِذِ الْعَبْدُ لَا يَمْلِكُ نَفْسَهُ ځکه چي غلام د خپل ځان ملکيت نه لري وَمِنْ قَضِيَّةِ الْمُعَاوَضَةِ ثُبُوْتُ الْحُكْمِ بِقَبُوْلِ الْعِوَضِ لِلْحَالِ او د معاوضې تقاضا دا ده چي په عوض قبلولو سره في الحاله حکم ثابت سي [مطلب دا دی چي د معاوضې حکم دا دی چي د عوض په قبلولو سره سمدستي غلام آزاديږي] كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه ځرنګه چي په بيع کي [هم دا حکم دی] فَإِذَا قَبِلَ صَارَ حُرًّا لهذا کله چي [هم] غلام عوض قبول کړي نو هغه به آزاد ګرځي وَمَا شُرِطَ دَيْنٌ عَلَيْهِ او شرط کړی سوی مال د غلام پر ذمه قرض دی حَتّٰى تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِهِ تر دې چي په دې سره کفاله صحيح ده [يعني د دې کفيل جوړېدل صحيح دي] بِخِلَافِ بَدَلِ الْكِتَابَةِ په

خلاف د مالِ کتابت ایعني د مالِ کتابت کفیل جوړېدل صحیح نه دي | لِأَنَّهُ ثَبَتَ مَعَ الْمُنَافِي وَهُوَ قِيَامُ الرِّقِّ ځکه چي بدلِ کتابت د منافي شي باوجود ثابتیږي چي هغه [منافي شی] د غلامتوب موجودېدل دي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي [دا مسئله] پېژندل سوې ده وَإِطْلَاقُ لَفْظِ الْمَالِ يَنْتَظِمُ أَنْوَاعَهُ مِنَ النَّقْدِ وَالْعَرَضِ وَالْحَيَوَانِ وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ عَيْنِهِ او د مال د لفظ إطلاق د مال ټولو قسمونو ته شاملیږي یعني نغد مال، سامان او حیوان که څه هم مُعیّن نه وي لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ ځکه چي دا په غیرِ مال سره د مال معاوضه ده فَشَابَهَ النِّكَاحَ وَالطَّلَاقَ وَالصُّلْحَ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ نو دا د نکاح او طلاق او صلح عن دمِ العمد سره مشابه سوه وَكَذَا الطَّعَامُ وَالْمَكِيلُ وَالْمَوْزُونُ إِذَا كَانَ مَعْلُومَ الْجِنْسِ همدارنګه [دلته د مال لفظ] غلّه او کیلي او وزوني شیانو [ته هم شاملیږي، په دې شرط] کله چي د دوی جنس معلوم وي وَلَا تَضُرُّهُ جَهَالَةُ الْوَصْفِ او د وصف جهالت دې ته تاوان نه کوي لِأَنَّهَا يَسِيرَةٌ ځکه چي هغه معمولي غوندي دی.

**اللغات:** ﴿صَرِيْح﴾ واضح، څرګند. ﴿مُعَاوَضَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: د معاوضې معامله یعني د یوه شي په عوض کي بل شی ورکول. ﴿قَضِيَّة﴾ تقاضا، اقتضاء. ﴿يَسِيْرَة﴾ لږ، معمولي.

**تشریح:** صورت د مسئلې ښکاره دی.

**وانما یعتق بقبوله إلخ:** د دې عبارت حاصل درې خبري دي: ① ... کله چي غلامْ د مالِکْ قول (او مال) قبول کړي، نو آزادیږي. ② ... غلام اوس (فوراً) آزادیږي. ③ ... او مال (عوض) د غلام پر ذمه قرض ګرځي (او دا صحیح قرض دی، ځکه چي غلامتوب ختم سو). تر دې که یو څوک وغواړي چي د دغه قرض کفیل جوړ سي نو جوړېدلای سي، د دې په خلاف څوک د مالِ کتابت کفیل نه سي جوړېدلای، ځکه چي هلته رقیت او غلامتوب قائم او باقي وي (یعني د غلامتوب د بقاء سره پر مکاتب قرض (بدلِ کتابت) لازم وي، نو هغه صحیح قرض نه سو)، نو ځکه به په مالِ کتابت کي کفالت صحیح نه وي.

**وإطلاق المال إلخ:** په متن کي مال مطلق ذکر سوی دی، نو ځکه په هغه کي دا پنځه قسمه مالونه شاملیږي، که له دغه پنځو مالونو څخه مالک د هر مال په عوض کي خپل غلام آزادول وغواړي، نو غلام آزادیږي او هغه مال "جُعل" ګرځي: ① نغد مال، مثلاً دینار او درهم (افغانۍ او کلداري). ② سامان، مثلاً سندوغ (صندوق)، کُرسۍ او داسي نور. ⑤ حیوان، که څه هم د هغه جنس معلوم نه

کړی سي، ④ کَیلي شی، مثلاً غنم، ⑤ وزني شی، مثلاً اوسپنه، په کیلي او وزني شي کي جنس معلومول ضروري دي چي هغه کوم شی دی (مثلاً غنم دي یا اوسپنه ده)، لېکن د هغه صفت معلومول ضروري نه دي (چي څو کېلو غنم دي...)، ځکه چي دا لږ غوندي جهالت دی، نو د دومره جهالت باوجود معامله صحیح کیږي او غلام آزادیږي.

## په کتابت او إعتاق بالمال کي فرق

قَالَ: وَلَوْعَلَّقَ عِتْقَهُ بِأَدَاءِ الْمَالِ او که [یو مالک] د خپل غلام آزادي پر مال اداء کولو مُعلّقه کړي صَحَّ نو [هم] صحیح دي وَصَارَ مَأْذُوْنًا او هغه غلام مأذون ګرځي وَذٰلِكَ مِثْلَ أَنْ يَقُولَ: إِنْ أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْفَ دِرْهَمٍ فَأَنْتَ حُرٌّ او د دې مثال دا دی لکه مالک چي ووایي: که ته ما ته زر درهمه را اداء کړې نو ته آزاد یې! وَمَعْنَى قَوْلِهِ صَحَّ أَنَّهُ يُعْتَقُ عِنْدَ الْأَدَاءِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَصِيرَ مُكَاتَبًا او د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دې قول "صَحَّ" مطلب دا دی چي دا غلام د مال اداء کولو په وخت کي آزادیږي بغیر له دې چي هغه مکاتب وګرځي لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِي تَعْلِيقِ الْعِتْقِ بِالْأَدَاءِ ځکه چي د مالک قول صریح دی، پر "اداء" باندي د عتق په مُعلق کولو کي وَإِنْ كَانَ فِيهِ مَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ فِي الْانْتِهَاءِ که څه هم په دې کي انتهاءً د معاوضې معنیٰ [هم] سته عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي وروسته به موږ انشاء الله [د دې] بیان وکړو وَإِنَّمَا صَارَ مَأْذُونًا لِأَنَّهُ رَغَّبَهُ فِي الْاكْتِسَابِ بِطَلَبِهِ الْأَدَاءَ مِنْهُ او غلام به [په دې وجه] مأذون ګرځي ځکه چي مالک د مال اداء کولو په غوښتني سره هغه ته د ګټي [او کار وبار] کولو ترغیب ورکړی وَمُرَادُهُ التِّجَارَةُ دُونَ التَّكَدِّيْ او په دې سره د مالک مقصد تجارت دی، نه خیرات غوښتل فَكَانَ إِذْنًا لَهُ دَلَالَةً نو ځکه به دا د غلام لپاره دلالتاً [د تجارت] إجازه ورکول وي.

**اللغات:** ﴿مَأْذُوْن﴾ د سمع اسم مفعول دی: هغه کس چي اجازه ورکول سوي وي، (هغه غلام چي مالک د تجارت کولو اجازه ورکړې وي)، ﴿رَغَّبَهُ﴾ د تفعیل ماضي ده: ترغیب ورکول، رغبت ورکول، پارول، ﴿إِكْتِسَاب﴾ د افتعال مصدر دی: ګټل، ﴿تَكَدِّيْ﴾ د تفعّل مصدر دی، أصلاً د فارسي لفظ دی: پر خلکو ګرځېدل، له خلکو څخه خیرات غوښتل (أحسن الهداية ج:٦، ص:٣٩).

**تشریح:** صورت د مسئلې ښکاره دی.

ومعنی قوله صح: په متن کي چي کوم د "صَحَّ" لفظ ذکر سو د هغه مطلب دا دی چي کله غلام زر درهمه اداء کړي، نو آزاديږي، لېکن مکاتب نه ګرځي؛ ځکه چي دلته تعليق سوی دی (يعني مالک په خپل کلام کي د غلام عتق د مال پر اداء کولو معلق کړی دی، او غلام به هغه وخت مکاتب کېدای، کله چي د مالک دغه کلام او معامله "معاوضه" وای)، او دا جلا خبره ده چي دا کلام او معامله فقط په ابتداء کي تعليق دی او په انتهاء کي معاوضه ده، د دې تفصيل به وروسته ذکر سي، خو اوس تاسي دلته دوه اُصوله په ياد لرئ! :

اصول: ①... په تعليق (معلق کولو) کي مالک پر قبول (قبلولو) نه سي مجبورول کېدای، ②... او په معاوضه کي مالک پر قبول مجبورول کېدای سي، او دا خبره هم په ياد لرئ! چي که آزادي د مال پر اداء کولو معلقه کړی سي نو هغه په شروع کي تعليق ده، لېکن په انتهاء کي معاوضه ده (يعني پر مال د عتق د معلق کولو معامله ابتداءً تعليق ده او انتهاءً معاوضه ده). نو ځکه په راتلونکي عبارت کي به ستاسو مخته ذکر سي چي کله غلام مال حاضر کړي نو مالک به د هغه پر قبلولو مجبورول کيږي (ځکه چي دا معامله په انتهاء کي معاوضه ده، او په معاوضه کي څوک پر قبول مجبورول کېدای سي، يعني په معاوضه کي څوک پر قبول مجبوره کول صحيح دي).

وانما صار ماذونا الخ: د دې حاصل دا دی چي که څه هم دلته د مالک له طرفه غلام ته صراحتاً د تجارت او کاروبار کولو اجازه نه ده ورکول سوې، لېکن دلالتاً هغه ته د دې اجازه ورکول سوې ده. ځکه چي دلته مالک د مال پر شرط غلام آزاد کړی دی (چي ته به ما ته مال را وړې)، او په دې سره د مالک مقصد دا دی چي ته کسب او تجارت وکړه! او دا يې مقصد نه دی چي ته پر خلکو وګرځېږه! او له خلکو څخه خيرات وغواړه!، نو دا به دلالتاً د تجارت اجازه وي.

## کله چي غلام مشروط مال حاضر کړي (حکم او اختلاف)

وَاِنْ أَحْضَرَ الْمَالَ او که چيري غلام [مشروط] مال حاضر کړي ايعني کله چي غلام هغه مال مالک ته راوړي کوم چي مالک د هغه د آزادۍ لپاره شرط کړی وي نو مالک ته پکار دي چي خپله وعده پوره کړي، مال ځني واخلي او غلام آزاد کړي، لېکن که هغه د خپلي وعدې او شرط مخالفت وکړي! أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى قَبْضِهِ نو حاکم دي مالک د مال پر اخيستلو هغه مجبور کړي [ځکه چي د مالک او غلام تر مينځه دا معامله که څه هم ابتداءً تعليق ده، لېکن انتهاءً معاوضه ده، او په معاوضه کي څوک پر قبول او اخيستلو مجبورول کېدای سي] وَعَتَقَ الْعَبْدُ او غلام آزاديږي وَمَعْنَى الْإِجْبَارِ فِيهِ وَفِي سَائِرِ الْحُقُوقِ أَنَّهُ يَنْزِلُ قَابِضًا بِالتَّخْلِيَةِ او په دې کي او په ټولو حقوقو کي د مجبوره کولو مطلب دا دی چي په تخليه کولو سره ايعني فقط په مال حاضرولو

سره [به مالک قبضه کونکی [د مال اخیستونکی] شمارل کیږي قَالَ زُفَرُ: لَا يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مالک به د مال پر قبلولو [اخيستلو] نه مجبوروول کيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دى لِأَنَّهُ تَصَرُّفُ يَمِينٍ ځکه دا د قسم [شرط] تصرّف دی إِذْ هُوَ تَعْلِيقُ الْعِتْقِ بِالشَّرْطِ لَفْظًا ځکه چي دا د لفظ په اعتبار سره عتق پر شرط مُعلق کول دي وَلِهٰذَا لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى قَبُولِ الْعَبْدِ همدا وجه ده چي دا تصرف د غلام پر قبلولو نه موقوف کيږي وَلَا يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ او نه د فسخ کېدلو احتمال لري وَلَا جَبْرَ عَلَى مُبَاشَرَةِ شُرُوطِ الْأَيْمَانِ او د قسم د شرط پر کولو څوک مجبوروول کېدای نه سي لِأَنَّهُ لَا اسْتِحْقَاقَ قَبْلَ وُجُودِ الشَّرْطِ ځکه چي د شرط تر وجود مخکي دا استحقاق نه ثابتيږي [وقال زفر...الخ]: د دې تول عبارت حاصل دا دی چي دلته (د مالک په کلام کي) د تعليق معنىٰ اصل ده، او په تعليق کي څوک پر قبول او اخيستلو نه سي مجبوروول کېدای، نو ځکه به دلته مالک د مال پر اخيستلو نه مجبوروول کيږي. ولا جبر على مباشرة: د دې مطلب دا دی چي په تعليق کي د مشروط کار پر کولو څوک نه سي مجبوروول کېدای، ځکه چي د شرط تر وجود مخکي شرط لګونکي د دې مستحق نه دی چي هغه د شرط پر کولو (يعني د مشروط کار پر کولو) مجبوره کړل سي] بِخِلَافِ الْكِتَابَةِ په خلاف د عقد کتابت لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ وَالْبَدَلُ فِيهَا وَاجِبٌ ځکه چي عقد کتابت معاوضه ده او په هغه کي بدل واجب دی وَلَنَا:... زموږ دليل او پاته عبارت به لاندي تشريح کړل سي.

**اللغات:** ﴿مُبَاشَرَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په خپله کار کول.

وَلَنَا: أَنَّهُ تَعْلِيقٌ نَظَرًا إِلَى اللَّفْظِ زموږ دليل دا دی: چي د لفظ وطرف ته په نظر کولو سره دا کلام تعليق دی وَمُعَاوَضَةٌ نَظَرًا إِلَى الْمَقْصُودِ او مقصود ته په نظر کولو سره معاوضه ده لِأَنَّهُ مَا عَلَّقَ عِتْقَهُ بِالْأَدَاءِ إِلَّا لِيَحُثَّهُ عَلَى دَفْعِ الْمَالِ ځکه چي مالک په همدې وجه د غلام آزادي د مال پر اداء کولو مُعلقه کړې ده چي غلام د مال پر ورکولو آماده کړي فَيَنَالَ الْعَبْدُ شَرَفَ الْحُرِّيَّةِ نو غلام به د آزادۍ شرف [او درجه] حاصله کړي وَالْمَوْلَى الْمَالَ بِمُقَابَلَتِهِ او مالک به د هغه په مقابله کي مال حاصل کړي بِمَنْزِلَةِ الْكِتَابَةِ لکه په عقد کتابت کي [چي داسي کيږي] وَلِهٰذَا كَانَ عِوَضًا فِي الطَّلَاقِ فِي مِثْلِ هٰذَا اللَّفْظِ او له همدې وجهي د داسي لفظ په ذريعه په طلاق ورکولو سره مال په طلاق کي

عوض ګرځي حَتّٰى كَانَ بَائِنًا تر دې چې [په داسې لفظ سره واقع کېدونکې] اطلاق به "بائن" وي

نَجَعَلْنَاهُ تَعْلِيقًا فِي الِابْتِدَاءِ نو ځکه موږ د مالک قول [کلام] په شروع کې تعليق وګرځوی عَمَلًا

بِاللَّفْظِ وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمَوْلٰى د دې لپاره چې پر لفظ عمل وسي او له مالک څخه ضرر لیرې سي

حَتّٰى لَا يَمْتَنِعَ عَلَيْهِ بَيْعُهُ همدا وجه ده چې پر مالک د دغه غلام خرڅول ممنوع نه دي وَلَا يَكُونُ الْعَبْدُ

أَحَقَّ بِمَكَاسِبِهِ او غلام په خپلو ګټو [او کسبونو] کې خود مختاره [هم] نه دی وَلَا يَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ

الْمَوْلُودِ قَبْلَ الْأَدَاءِ او د مال تر اداء کولو مخکې د پیدا سوي بچي وطرف ته آزادي سرایت [هم] نه

کوي وَجَعَلْنَاهُ مُعَاوَضَةً فِي الِانْتِهَاءِ عِنْدَ الْأَدَاءِ او موږ [د مالک قول] انتهاءً د مال اداء کولو په وخت

کې معاوضه وګرځوی دَفْعًا لِلْغُرُورِ عَنِ الْعَبْدِ د دې لپاره چې له غلام څخه دوکه [فریب] لیرې

کړی سي حَتّٰى يُجْبَرَ الْمَوْلٰى عَلَى الْقَبُولِ تر دې چې مالک د مال پر قبلولو مجبور کړی سي فَعَلٰى هٰذَا

يَدُورُ الْفِقْهُ او پر همدغه [يعني د لفظ په دواړو اعتبارونو په عمل کولو کې] د فقهي دار ومدار دی وَتَخْرُجُ

الْمَسَائِلُ او [پر همدغه] د پر مسائل راوځي نَظِيرُهُ الْهِبَةُ بِشَرْطِ الْعِوَضِ او د دې مثال د عوض پر

شرط هبه ورکول دي.

**اللغات:** ﴿يَحُثُّ﴾ د نصر مضارع ده: رغبت ورکول، پارول، ﴿يَنَالُ﴾ د فتح مضارع ده: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿يَدُورُ﴾ د نصر مضارع ده: ګرځېدل، مدار کېدل، ﴿حَطَّ﴾ د نصر ماضي ده: کمول، ساقطول.

**تشريح:** زموږ د دلیل حاصل دا دی چې د لفظ په اعتبار سره د مالک کلام (او دغه معامله) تعلیق دی او د انتهاء او مقصد په اعتبار سره معاوضه ده، وروسته مصنف د دې کلام د معلق کېدلو په هکله څلور خبري ذکر کړي دي: ①... دا کلام تعلیق (معلق کېدل) ځکه دی چې مالک په دې وجه آزادي د مال پر اداء کولو معلقه کړې ده چې غلام پر کار او کسب را وپاروي، او هغه ته د آزادۍ شرف حاصل سي او مالک ته د هغه په مقابله کې مال حاصل سي، ②... او مالک د دې کلام د معلق کېدلو په وجه د مال تر اداء کولو مخکې غلام خرڅولای سي، ③... غلام ته په خپل ګټل سوي مال کې پوره اختیار نسته. ④... تر اداء کولو مخکې چې د غلام کوم بچی پیدا سي په هغه کې آزادي سرایت نه کوي (ځکه چې د مال تر اداء کولو مخکې په غلام کې آزادي راغلې نه ده). (لَا يَكُونُ الْعَبْدُ أَحَقُّ

پښکښاپه: د دې مطلب دا دی چې د مال تر اداء کولو مخکې په غلام کې آزادي راغلې نه ده، نو ځکه به غلام د خپل ګټل سوي مال مالک نه وي).

وجعلناه معاوضة إلخ: کله چې غلام مال اداء کړي، نو په هغه وخت کې به دا معامله د انتهاء په اعتبار سره مغاوضه ګرځول کیږي او مالک به د مال پر اخیستلو مجبورول کیږي، پر دغه دو طرفه اعتبار کولو باندې ډېرې مسئلې متفرع دي، د هغه مثال "هبه بشرط العوض" ده، یعني که یو څوک بل چا ته د عوض او مال پر شرط یو شی هبه کړي، بیا موهوب لهٗ د واهب مخته هغه مال حاضر کړي، نو واهب به د مال پر اخیستلو مجبورول کیږي، ځکه چې "هبه بشرط العوض" ابتداءً هبه ده، او انتهاءً معاوضه ده.

وَلَوْ أَدَّى الْبَعْضَ يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ او که غلام څه مال اداء کړي [او د مالک مخته یې حاضر کړي] نو [هم] به مالک د هغه پر قبلولو [اخیستلو] مجبورول کیږي [ځکه چې دا هم انتهاءً معاوضه ده] إِلَّا أَنَّهُ لَا يُعْتَقُ مَا لَمْ يُؤَدِّ الْكُلَّ لېکن تر څو چې غلام ټوله مال اداء کړی نه وي تر هغه وخته پوري غلام نه آزادیږي لِعَدَمِ الشَّرْطِ ځکه چې شرط معدوم دی [یعني شرط د ټوله مال اداء کول دي، نو غلام هغه وخت آزادیږي کله چې غلام ټوله شرط پوره کړي] كَمَا إِذَا حَطَّ الْبَعْضَ وَأَدَّى الْبَاقِيَ لکه [په هغه وخت کې چې هم غلام نه آزادیږي] کله چې مالک له ټوله مال څخه څه مال کم کړي او غلام باقي مال اداء کړي [مثلاً له زرو درهمو څخه مالک درې سوه درهم معاف کړي او پاته دراهم غلام اداء کړي، نو په دې صورت کې هم د پاته دراهمو له اداء کولو څخه مخکې غلام نه آزادیږي، ځکه چې شرط یعني "اداء الألف" معدوم دي، همدارنګه په پورتني صورت کې هم د کُل اداء کول معدوم دي، نو ځکه به غلام نه آزادیږي] ثُمَّ لَوْ أَدَّى أَلْفًا اكْتَسَبَهَا قَبْلَ التَّعْلِيقِ بیا که چیرې غلام داسي زر دراهم اداء کړي کوم چې یې تر تعلیق مخکې ګټلي وي رَجَعَ الْمَوْلَى عَلَيْهِ وَعَتَقَ نو مالک پر هغه رجوع کولای سي [یعني دویم ځل زر درهمه نور ځني اخیستلای سي] او غلام آزادیږي لِاسْتِحْقَاقِهَا ځکه چې مالک [تر تعلیق مخکې] د دې زرو درهمو مستحق وو وَلَوْ كَانَ اكْتَسَبَهَا بَعْدَهُ لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ او که غلام تر تعلیق وروسته دغه دراهم ګټلي وي نو مالک پر هغه رجوع نه سي کولای [حاصل یې دا دی چې که د مالک تر معلق کولو مخکې غلام زر درهمه جمع کړي وي، او هغه دراهم مالک ته ورکړي، نو غلام خو آزادیږي، لېکن څرنګه چې تر معلق کولو مخکې دا زر دراهم د مالک دي (ځکه چې د غلام هر شی د مالک وي)، نو ځکه به مالک له غلام څخه زر درهمه نور اخلي، او که تر معلق کولو وروسته غلام زر درهمه

ګټلي وي نو هغه د مالک نه دي، ځکه چې دا غلام مأذون دی یعني د مالک له طرفه د کسب کولو او مال ګټلو اجازه ورکول سوې ده، نو ځکه به مالک هغه وروسته ګټل سوي دراهم نه سي ځني اخیستلای] لِأَنَّهُ مَأْذُونٌ مِنْ جِهَتِهِ بِالْأَدَاءِ مِنْهُ ځکه چې غلام ته د مالک لخوا اجازه ورکول سوې ده. د مالک له طرفه د اداء کولو [د شرط لګولو] په وجه [یعني د مالک له طرفه پر غلام د عوض اداء کول شرط سوي دي. نو دا ګواکې د مالک لخوا غلام ته د مال ګټلو او کسب کولو اجازه ورکول دي] ثُمَّ الْأَدَاءُ فِي قَوْلِهِ إِنْ أَدَّيْتَ يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ بیا د مالک په دې قول "إِنْ أَدَّيْتَ" کي به اداء کول پر مجلس منحصر وي لِأَنَّهُ تَخْيِيرٌ ځکه چې دا د تخییر صورت دی [یعني که مالک غلام ته داسي ووایي: إِنْ أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْف... نو په دې صورت کي هغه وخت غلام آزادیږي کله چې غلام په هغه مجلس کي مال اداء کړي، کنې نه آزادیږي، ځکه چې "إِنْ" د تخییر لپاره استعمالیږي، او په تخییر کي مال اداء کول د مجلس سره خاص وي] وَفِي قَوْلِهِ إِذَا أَدَّيْتَ لَا يَقْتَصِرُ او د مالک په دې قول "إِذَا أَدَّيْتَ" کي اداء کول پر مجلس نه منحصر کیږي [بلکي هر کله چې هم غلام مال اداء کړي نو آزادیږي، هغه که په مجلس کي دننه وي، یا تر مجلس وروسته وي] لِأَنَّ إِذَا تُسْتَعْمَلُ لِلْوَقْتِ بِمَنْزِلَةِ مَتَى ځکه چې "إِذَا" د "مَتَى" په څېر د وخت لپاره استعمالیږي [نو د مالک د دې قول "إذا أديت..." معنیٰ به دا وي: په کوم وخت کي چې ته مال اداء کړې په هغه وخت کي ته آزادیې!، لهذا په کوم وخت کي چې هم غلام مال اداء کړي نو غلام به آزادیږي، هغه که هر څومره تر مجلس وروسته وي].

**اللغات:** ﴿تَخْيِيرٌ﴾ د تفعیل مصدر دی: اختیار ورکول.

**تشریح:** عبارت او دلائل په ترجمه کي تشریح سول.

## "عتق بالمال" پر مرګ معلق کول

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ: أَنْتَ حُرٌّ بَعْدَ مَوْتِي عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ او څوک چې خپل غلام ته ووایي: ته زما تر مرګ وروسته د زرو درهمو په عوض کي آزادیې! فَالْقَبُولُ بَعْدَ الْمَوْتِ نو قبول به تر مرګ وروسته وي [یعني غلام دا إیجاب او معامله اوس نه سي قبلولای، بلکي د مالک تر مرګ وروسته یې قبلولای سي، لهذا د مالک تر مرګ وروسته چې کله غلام وارثانو ته زر درهمه ورکړي نو بیا آزادیږي] لِإِضَافَةِ الْإِيجَابِ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې [د عتق] إیجاب تر مرګ وروسته وخت ته منسوب دی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتَ حُرٌّ غَدًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ نو داسي سو لکه مالک چې ووایي: ته سبا د زرو درهمو په عوض کي آزادیې انو په دې

صورت کې غلام فقط سبا دغه إيجاب قبلولای سي] بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَنْتَ مُدَبَّرٌ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ په خلاف د هغه صورت کله چې مالک [خپل غلام ته] ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کې ملبري! حَيْثُ يَكُونُ الْقَبُولُ إِلَيْهِ فِي الْحَالِ نو د غلام لپاره به فی الحاله قبلول صحيح وي [يعني په دې صورت کې غلام ته دا حق سته چې فی الحاله (فورا) هغه قبول کړي] لِأَنَّ إِيجَابَ التَّدْبِيرِ فِي الْحَالِ ځکه چې د مدبر جوړولو إيجاب [واجبول] فی الحاله دی [يعني مالک په خپل ژوند کې غلام مدبر جوړولای سي، نو ځکه به هغه ته فی الحاله د قبول کولو حق وي، خو څرنګه چې له تدبير څخه وروسته غلام په پوره توګه نه آزاديږي، بلکې په هغه کې غلامتوب پاتېږي، نو په دې وجه به مال نه پر واجبيږي] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْمَالُ لِقِيَامِ الرِّقِّ خو د رقيت [غلامتوب] د پاتېدلو په وجه به [پر هغه] مال نه واجبيږي قَالُوا: لَا يَعْتِقُ عَلَيْهِ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ وَإِنْ قَبِلَ بَعْدَ الْمَوْتِ فقهاؤ فرمايلي دي: چې د متن په مسئله کې غلام نه آزاديږي که څه هم [د مالک] تر مرګ وروسته غلام [هغه إيجاب] قبول کړي مَا لَمْ يُعْتِقْهُ الْوَارِثُ تر څو چې وارث هغه آزاد نه کړي [يعني تر هغه وخته پوري نه آزاديږي تر څو چې يې وارث آزاد نه کړي] لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْإِعْتَاقِ ځکه چې مړی د آزادولو أهل نه دی [يعني مالک تر مرګ وروسته د آزادولو أهل نه وي، نو ځکه به د وارث په آزادولو سره غلام آزاديږي] وَهٰذَا صَحِيحٌ او همدا صحيح [قول] دی.

**اللغات:** ﴿غَدًا﴾ سبا ورځ، ﴿رِقٌ﴾ غلامي، غلامتوب.

**تشريح:** مسئله په عبارت کې تشريح سوه.

## د خدمت پر شرط آزادول

قَالَ: وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَى خِدْمَتِهِ أَرْبَعَ سِنِينَ فرمايي: که څېري يو څوک خپل غلام د څلورو کالو پر خدمت آزاد کړي [يعني خپل غلام ته ووايي: ته به څلور کاله زما خدمت کوې، بيا آزاد يې] فَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام [هغه] قبول کړي عَتَقَ لو غلام آزاديږي ثُمَّ مَاتَ مِنْ سَاعَتِهِ بيا [که] غلام په هغه کړي [يعني تر خدمت شروع کولو مخکې] مړ سي فَعَلَيْهِ قِيمَةُ نَفْسِهِ فِي مَالِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به پر غلام په خپل مال کې د خپل نفس قيمت واجب وي [يعني مالک به تر مرګ وروسته د غلام قيمت د غلام له مال څخه اخلي] وَقَالَ مُحَمَّدٌ ﷺ: عَلَيْهِ قِيمَةُ خِدْمَتِهِ أَرْبَعَ سِنِينَ او امام محمد رَحِمَهُ الله

ﷺ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وعند محمد تجب قيمة خدمته، وبه نأخذ (رد المحتار ج:٣، ص:٣٢). [القول الراجح ج:١، ص: ٢٠٦]

فرمايي: چي پر هغه به د څلورو کالو د خدمت قيمت واجب وي أَمَّا الْعِتْقُ فَلِأَنَّهُ جَعَلَ الْخِدْمَةَ فِي مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ عِوَضًا کوم چي [د غلام] آزادېدل دي نو ځکه چي مالک تر معلوم مودت پوري خدمت کول [د آزادېدلو] عوض ګرځولی دی فَيَتَعَلَّقُ الْعِتْقُ بِالْقَبُولِ نو ځکه به آزادي [د غلام] د قبول کولو سره متعلقه وي وَقَدْ وُجِدَ او [د غلام] قبول موجود سو وَلَزِمَتْهُ خِدْمَةُ أَرْبَعِ سِنِينَ نو [په دې وجه] پر غلام د څلورو کالو خدمت لازم سو لِأَنَّهُ يَصْلُحُ عِوَضًا ځکه چي خدمت د عوض جوړېدلو صلاحيت لري [يعني خدمت عوض جوړېدای سي] فَصَارَ كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ ثُمَّ مَاتَ الْعَبْدُ نو داسي سو لکه مالک چي غلام د زرو درهمو په عوض کي آزاد کړی وي [او] بيا [تر قبول کولو وروسته] غلام مړ سوی وي فَالْخِلَافِيَّةُ فِيهِ بِنَاءً عَلَى خِلَافِيَّةٍ أُخْرَى او په دې مسئله کي چي کوم اختلاف دی هغه پر بلې اختلافي مسئلې مبني دی وَهِيَ: أَنَّ مَنْ بَاعَ نَفْسَ الْعَبْدِ مِنْهُ بِجَارِيَةٍ بِعَيْنِهَا او هغه مسئله دا ده: چي که يو څوک د خپل غلام ذات د هغه په لاس د يوې معلومي مينځي په عوض کي خرڅ کړي [مثلاً غلام ته روايي چي د دغه مينځي په عوض کي خپل ځان خرڅ کړه!، او غلام دا قبول کړي] ثُمَّ اُسْتُحِقَّتِ الْجَارِيَةُ أَوْ هَلَكَتْ بيا مينځه [د بل چا] مستحق سي يا هلاکه سي [يعني وروسته معلومه سي چي دا مينځه د بل چا ده، يا دا مينځه هلاکه سي] يَرْجِعُ الْمَوْلَى عَلَى الْعَبْدِ بِقِيمَةِ نَفْسِهِ عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به مالک پر غلام د هغه د نفس په قيمت سره رجوع کوي [يعني مالک به له غلام څخه د هغه د نفس قيمت اخلي] وَبِقِيمَةِ الْجَارِيَةِ عِنْدَهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به [مالک] د مينځي په قيمت سره رجوع کوي وَهِيَ مَعْرُوفَةٌ او دا يوه معلومه مسئله ده وَوَجْهُ الْبِنَاءِ أَنَّهُ كَمَا يَتَعَذَّرُ تَسْلِيمُ الْجَارِيَةِ بِالْهَلَاكِ وَالِاسْتِحْقَاقِ يَتَعَذَّرُ الْوُصُولُ إِلَى الْخِدْمَةِ بِمَوْتِ الْعَبْدِ وَكَذَا بِمَوْتِ الْمَوْلَى او [پر اختلافي مسئله باندي] د مبني کېدلو وجه دا ده چي څرنګه د مينځي د هلاکېدلو يا [د بل چا] د مستحقه کېدلو په وجه [د مينځي] ورسپارل ناممکن دي، همداسي د غلام يا د مالک د مرګ په وجه خدمت حاصلول ناممکن دي فَصَارَ نَظِيرَهَا نو ځکه دا [پورتنی] صورت د دغه اختلافي مسئلې مثال وګرځېدی [يعني نو ځکه پورتنی مسئله د دغه اختلافي مسئلې په څېر سوه او پر دې مبني سوه].

**اللغات:** ﴿خِلَافِيَّة﴾ اختلافي معامله، اختلافي مسئله (په کومه مسئله کي چي اختلاف وي)، ﴿بِعَيْنِهَا﴾ خاص هغه، په مُعينه توګه، ﴿يَتَعَذَّر﴾ د تفعّل مضارع ده: ناممکن کېدل، ستونزمن کېدل، ﴿نَظِير﴾ مثال، مشابه.

**تشريح**: د عبارت له وضاحت څخه مخکي د غلام د خدمت په هکله د شيخينو او د امام محمد په أصولو ځان پوه کړئ! د شيخينو أصول دا دی چي خدمت د غلام د ذات قيمت دی، نو کله چي غلام خدمت نه وکړای سي (يعني له خدمت کولو څخه عاجزه سي، يا مړ سي)، نو د غلام د ذات چي څومره قيمت وي هغه به د غلام له مال څخه اخيستل کيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله أصول دا دی چي دلته خدمت اصل ګرځېدلی دی، نو که غلام خدمت نه وکړای سي نو د خدمت قيمت به د هغه له مال څخه اخيستل کيږي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که مالک د څلورو کالو د خدمت په عوض کي خپل غلام آزاد کړي او غلام هغه قبول کړي، نو غلام آزاديږي، او که غلام تر خدمت کولو مخکي مړ سي، نو شيخين فرمايي چي د غلام چي څومره قيمت وي هغه به د غلام له مال څخه اخيستل کيږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د څلورو کالو د خدمت چي څومره قيمت وي هغه به د غلام له مال څخه اخيستل کيږي.

**أما العتق إلخ**: له دې ځای څخه د غلام د آزادېدلو وجه بيانوي، فرمايي چي د معلوم مودت خدمت د دې صلاحيت لري چي عوض وګرځولسي او په عوض کي وټاکل سي، او لکه څرنګه چي مالک د زرو درهمو په عوض کي غلام آزاد کړي او غلام هغه قبول کړي، نو غلام آزاديږي، همداسي که مالک د يو معلوم مودت د خدمت په عوض کي آزاد کړي او غلام هغه قبول کړي، نو هم به غلام آزاديږي.

**فالخلافية إلخ**: فرمايي چي د متن مسئله پر يوې بلې اختلافي مسئلې مبني ده، مسئله دا ده چي که مالک خپل غلام د هغه په لاس د يوې مينځي په عوض کي خرڅ کړي، لېکن وروسته معلومه سي چي د مينځه د بل چا ده، يا مينځه هلاکه سي او د غلام لپاره د مينځي ورسپارل ناممکن سي، نو په دې مسئله کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د غلام قيمت واجبيږي (يعني د غلام چي څومره قيمت وي هغه به مالک له غلام څخه اخلي)، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مينځي قيمت واجبيږي، ځکه چي مينځه أصل وګرځېده، د متن مسئله پر همدغه مسئلې مبني ده او پر همدغه مسئلې قياس کړی سوې ده، او د مبني کېدلو وجه په عبارت کي ذکر سوه، صاحب د هدايې فرمايي چي دا يوه معلومه مسئله ده، او په دې کي چي کوم اختلاف دی هغه هم معلوم او مشهور دی.

## د يو بل چا مملوک د مال په بدله کي آزادول

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: أَعْتِقْ أَمَتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ عَلَى أَنْ تُزَوِّجَنِيهَا او که يو څوک بل چا ته ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کي خپله مينځه آزاده کړه! [چي هغه زر درهمه به] پر ما الازم وي [ په دې شرط چي ته به زما سره د هغه مينځي نکاح تړې [يعني په دې شرط چي هغه مينځه به ما ته په نکاح کي راکوې].

فَفَعَلَ او هغه همداسي وکړي فَأَبَتْ أَنْ تَتَزَوَّجَهُ [لیکن] مینځې د دغه سړي سره له نکاح کولو څخه انکار وکړي فَالْعِتْقُ جَائِزٌ نو [دا] آزادېدل جائز دي وَلَاشَيْءَ عَلَى الْآمِرِ او پر حکم کونکي به هیڅ مال لازم نه وي لِأَنَّ مَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ: أَعْتِقْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ ځکه که يو څوک بل چا ته ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کي خپل غلام آزاد کړه! [چي هغه زر درهمه به] پر ما لازم وي! فَفَعَلَ او هغه [مأمور] همداسي وکړي لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نو پر دغه [آمر] سړي هيڅ مال نه لازميږي وَيَقَعُ الْعِتْقُ عَلَى الْمَأْمُورِ او آزادي د مأمور له طرفه واقع کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ: طَلِّقْ امْرَأَتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ په خلاف د هغه صورت کله چي [يو څوک] بل چا ته ووايي: ته خپلي ښځي ته د زرو درهمو په عوض کي طلاق ورکړه! [چي هغه به] پر ما لازم وي! فَفَعَلَ او هغه [مأمور] همداسي وکړي حَيْثُ يَجِبُ الْأَلْفُ عَلَى الْآمِرِ نو [په دې صورت کي] پر آمر زر درهمه واجبيږي لِأَنَّ اشْتِرَاطَ الْبَدَلِ عَلَى الْأَجْنَبِيِّ فِي الطَّلَاقِ جَائِزٌ ځکه چي په طلاق کي پر أجنبي سړي د عوض شرط لګول جائز دي وَفِي الْعَتَاقِ لَا يَجُوزُ او په عتاق [آزادي] کي جائز نه دي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکي [په باب الخلع کي] دا مسئله بيان کړې ده.

**اللغات:** ﴿تُزَوِّجَنِيهَا﴾ د تفعيل مضارع ده، زَوَّجَ يُزَوِّجُ تَزْوِيجًا: نکاح تړل، بل چا ته نکاح ورکول، واده ورکول، ﴿أَجْنَبِيٌّ﴾ پردی سړی، غير قريب (هغه کس چي د چا هيڅ نه کيږي).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که زيد خالد ته ووايي: أَعْتِقْ أَمَتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ عَلَى أَنْ تُزَوِّجَنِيهَا (يعني ته د زرو درهمو په عوض کي خپله مينځه آزاده کړه!، او هغه زر درهمه زما پر ذمه دي، خو زما له طرفه شرط دا دی چي د مينځې سره به زما نکاح تړې، يعني د مينځې سره به زما واده کوې، بل هيڅ شی نه غواړم!). نو خالد همداسي وکړي، خو مينځه انکار وکړي چي زه د زيد سره نکاح نه کوم، نو مينځه د خالد (مأمور) له طرفه آزاديږي او پر زيد (آمر) هيڅ شی نه لازميږي، لکه څرنګه چي په هغه صورت کي هم پر آمر هيڅ شی نه لازميږي، کله چي هغه بل چا ته ووايي: أَعْتِقْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ، او مأمور هغه آزاد کړي نو پر آمر هيڅ شی نه لازميږي، همداسي به دلته هم پر هغه هيڅ شی نه لازميږي، د دې وجه دا ده چي خپل ملکيت د بل چا د مال په عوض کي مشروط کول صحيح نه دي (مطلب دا چي پر بل چا د خپل إعتاق [آزادولو] عوض لازمول صحيح نه دي، همدا أصول قاعده ده)، نو ځکه به پر آمر (زيد) هيڅ نه لازميږي او مينځه به آزاديږي، په خلاف د هغه

صورت کله چي مثلاً زيد خالد ته ووايي: طَلِّقْ أمْرَأتَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَيَّ. او خالد خپله ښځه طلاقه کړي، نو په دې صورت کي پر آمر (زيد) زر درهمه لازم دي، ځکه چي په طلاق کي پر أجنبي سړي د عوض شرط لګول جائز دي (لکه په خلع کي چي هم جائز دي)، لېکن په إعتاق کي داسي شرط لګول جائز نه دي، په دواړو صورتونو کي همدغه فرق دی.

## د پورتنی مسئلې يو بل صورت

وَلَوْقَالَ: أَعْتِقْ أَمَتَكَ عَنِّيْ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ او که [يو څوک بل چا ته] ووايي: ته زما له طرفه د زرو درهمو په عوض کي خپله مينځه آزاده کړه! وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او مسئله پر خپل حال وي [يعني مسئله د مخکني حالت په څېر وي، يعني آمر دا شرط ولګوي: چي ته به زما سره د هغه مينځي نکاح تړې، لېکن مينځه د هغه له نکاح څخه انکار وکړي] قُسِمَتِ الْأَلْفُ عَلَى قِيمَتِهَا وَمَهْرِ مِثْلِهَا نو دا زر درهمه به د هغې مينځي پر قيمت او د هغې پر مهرِ مثل تقسيمېږي فَمَا أَصَابَ الْقِيمَةَ أَدَّاهُ الْآمِرُ نو کوم [مقدار] چي د قيمت مقابل سي هغه به آمر اداء کوي [يعني کوم مقدار چي د مينځي قيمت وي هغه به پر آمر لازم وي] وَمَا أَصَابَ الْمَهْرَ بَطَلَ عَنْهُ او کوم مقدار چي د مهرِ مثل مقابل وي هغه به له آمر څخه ساقطيږي لِأَنَّهُ لَمَّا قَالَ: عَنِّيْ ځکه کله چي آمر "عَنِّيْ" [زما له طرفه] وويل تَضَمَّنَ الشِّرَاءُ اقْتِضَاءً نو دا قول اقتضاءً رانيولو ته شامل سو عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي دا پېژندل سوې ده [يا لکه څرنګه چي دا معلومه ده] وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ فَقَدْ قَابَلَ الْأَلْفَ بِالرَّقَبَةِ شِرَاءً وَبِالْبُضْعِ نِكَاحًا لهذا کله چي داسي ده نو آمر زر درهمه د غلام د رقبې سره او د بضع د نکاح سره مقابل وګرځول فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمَا نو ځکه به زر درهمه پر رقبې او بضع [دواړو] تقسيميږي وَوَجَبَتْ حِصَّةُ مَا سُلِّمَ لَهُ وَهُوَ الرَّقَبَةُ او آمر ته چي کوم شی سپارل سوی وي يعني رقبه [پر آمر به] د هغه د حصې [په اندازه دراهم] واجبيږي وَبَطَلَ عَنْهُ مَا لَمْ يُسَلَّمْ وَهُوَ الْبُضْعُ او کوم شی چي هغه ته سپارل سوی نه وي يعني بضع د هغه [دراهم] به له آمر څخه ساقطيږي فَلَوْزَوَّجَتْ نَفْسَهَا مِنْهُ او که چيري دا مينځه د آمر سره خپله نکاح وکړي لَمْ يَذْكُرْهُ نو دا [مسئله] امام محمد رَحِمَهُ الله نه ده ذکر کړې [او موږ به يې ستاسو د خبرتيا لپاره ذکر کړو] وَجَوَابُهُ: أَنَّ مَا أَصَابَ قِيمَتَهَا سَقَطَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ [نو] د دې حکم دا دی: چي اله زرو درهمو څخه چي] کوم [مقدار] د مينځي د قيمت په مقابله کي وي هغه به په اول صورت کي ساقطيږي وَهِيَ لِلْمَوْلَى فِي الْوَجْهِ الثَّانِي او په دويم صورت

کي به هغه د مالک لپاره وي وَمَا أَصَابَ مَهْرَمِثْلِهَا كَانَ مَهْرًالَهَا فِي الْوَجْهَيْنِ او کوم مقدار چې د مینځې د مهر مثل په مقابله کې راسي، هغه به په دواړو صورتونو کې د هغې لپاره مهر وي او هغې ته به ورکول کیږي.

**اللغات:** ﴿تَضَمَّنَ﴾ د تفعّل ماضي ده: شاملیدل (ضمناً شاملیدل).

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله د دې عبارت په شروع کې درې خبرې ذکر کړې دي: ①... یوه دا چې د مینځې په هکله "عَنِّي" ویل، ②... د مأمور (عُمر) آزادول، ③... نکاح کول (نکاح تړل). مثلاً زید عُمر ته ووایي چې خپله مینځه زما له طرفه د زرو درهمو په عوض کې آزاده کړه! او بیا د هغې سره زما نکاح وکړه!، او عُمر همداسې وکړي، نو مینځه آزادیږي، او د مینځې قیمت مثلاً شپږ سوه درهمه دی، نو پر زید دغه شپږ سوه درهمه لازمیږي، ځکه چې دا د مینځې قیمت دی او عُمر دغه مینځه آزاده کړې ده نو ګواکې عُمر دغه مینځه زید ته ورکړې ده، او د دې مینځې مهر مثل مثلاً څلور سوه درهمه دی، نو څرنګه چې دغه مینځې د زید سره نکاح نه ده کړې، نو ځکه به دا څلور سوه درهم پر زید نه لازمیږي.

**فلوزوّجت نفسها إلخ:** او که مینځه د زید سره نکاح وکړي، نو په اول صورت کې (یعني کله چې زید په خپل کلام کې "عَنِّي" نه وواي) له زید (آمر) څخه د مینځې قیمت (مثلاً شپږ سوه درهم) ساقطیږي او زید به هغه عمر (مأمور) ته نه ورکوي، او په دویم صورت کې (یعني کله چې زید أعتق أمتك عَنِّي إلخ ووایي) نو په دې صورت کې به زید د مینځې قیمت (مثلاً شپږ سوه درهم) عُمر ته ورکوي، او کوم چې مهر مثل دی، نو هغه به زید په دواړو صورتونو کې مینځې ته ورکوي، ځکه چې هغه په نکاح راضي سوې ده او زید (آمر) ته یې خپله بضع سپارلې ده. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ التَّدْبِيْرِ

## (دا) باب د مُدبّر جوړولو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** په إعتاق او تدبیر دواړو کې عتق (آزادي) مقصود ده، فرق یې فقط دا دی چې په مطلق إعتاق کې د مُعْتِق (آزادونکي مالک) په ژوند کې عتق واقع کیږي او په تدبیر کې د مُعْتِق تر مرګ وروسته عتق واقع کیږي، نو له همدې وجهې إعتاق مخکې بیان سو، او تدبیر تر هغه وروسته بیان سوی دی، یا دا چې مطلق إعتاق د مفرد په درجه کې دی، او د تدبیر إعتاق مُقیّد بالموت دی او د مرکب په درجه کې دی، او دا خو تاسې ته معلومه ده چې مفرد له مرکب څخه مخکې وي، نو په دې وجه صاحب د هدايې مفرد یعنې مطلق إعتاق له تدبیر څخه مخکې بیان کړی دی. (بنایه ج:۵، ص:۶۸۱)

**د تدبير لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د تدبیر لغوي معنیٰ ده: "النَّظَرُ إِلَى عَاقِبَةِ الإِمْرِ" (د یو کار آخري انجام ته کتل، د یوې معاملې آخر په پام کې نیول).

د تدبير شرعي معنیٰ ده: "إِيْجَابُ الْعِتْقِ الْحَاصِلِ بَعْدَ الْمَوْتِ بِأَلْفَاظٍ تَدُلُّ عَلَيْهِ صَرِيْحًا أَوْ دَلَالَةً" (د داسې عتق إيجاب کول چې هغه د مُوجِب (مالک) تر مرګ وروسته په داسې الفاظو سره واقع کېدونکی وي کوم چې صراحتاً يا دلالتاً پر عتق (آزادي) دلالت کوي). (عنایه)

په لنډه توګه دا چې که مالک خپل غلام ته داسې ووايي: "ته زما تر مرګ وروسته آزاد یې"، نو دې ته "تَدْبِيْر" وايي او دغه غلام ته "مُدَبَّر" وايي او مالک ته "مُدَبِّر" وايي (د باء په کسره سره)، د "دُبُر" معنیٰ ده: شا، وروسته، څرنګه چې دغه غلام هم د مالک تر مرګ وروسته آزادیږي، نو په دې وجه هغه ته مدبر وايي.

### د مُدَبّر غلام شرعي تعريف او احكام

| إِذَا قَالَ الْمَوْلَى لِمَمْلُوكِهِ: إِذَا مِتُّ فَأَنْتَ حُرٌّ که چیري مالک خپل غلام ته ووايي: کله چې زه مړ سم نو ته آزاد یې! أَوْ أَنْتَ حُرٌّ عَنْ دُبُرٍ مِنِّي یا [ورته ووايي] ته زما تر شا وروسته آزاد یې! [یعنې زما تر مرګ وروسته آزاد یې] أَوْ أَنْتَ مُدَبَّرٌ یا [ورته ووايي] ته مدبر یې! أَوْ قَدْ دَبَّرْتُكَ یا [ورته ووايي] [ما ته مدبر جوړ کړې!] فَقَدْ صَارَ مُدَبَّرًا نو [په دې ټولو الفاظو سره] غلام مدبر ګرځي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ صَرِيْحٌ فِي |
| --- |

تَدْبِيرِ ځکه چې دغه الفاظ د مدبر جوړولو په معنیٰ کې صریح دي. فَإِنَّهُ إِثْبَاتُ الْعِتْقِ عَنْ دُبُرٍ ځکه چې تدبیر تر امرګ او روسته د آزادۍ ثابتول دي ثُمَّ لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ وَلَا هِبَتُهُ وَلَا إِخْرَاجُهُ عَنْ مِلْكِهِ إِلَّا إِلَى الْحُرِّيَّةِ بیا اچې کله غلام مدبر جوړ سي، نو د مالک لپاره ا د هغه خرڅول. هبه کول او له خپل ملکیت څخه ایستل جائز نه دي. ما سوا له آزادولو څخه كَمَا فِي الْكِتَابَةِ لکه څرنګه چې په کتابت کې اهم ده حکم دی ا وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې اد مدبر خرڅول او هبه کول ا جائز دي لِأَنَّهُ تَعْلِيقُ الْعِتْقِ بِالشَّرْطِ ځکه چې هغه ایعني تدبیر آ آزادي پر شرط معلق کول دي ایعني په مدبر جوړولو کې آزادي د مرګ پر شرط معلقه کیږي ا فَلَا يَمْتَنِعُ بِهِ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ نو ځکه به د تدبیر په وجه بیع او هبه ممنوع نه وي كَمَا فِي سَائِرِ التَّعْلِيقَاتِ لکه په نورو تعلیقاتو کې اچې ممنوع نه دي ا وَكَمَا فِي الْمُدَبَّرِ الْمُقَيَّدِ او لکه څرنګه چې په مقید مدبر کې اهم دغه حکم دی چې د هغه خرڅول او هبه کول ممنوع نه دي ا وَلِأَنَّ التَّدْبِيرَ وَصِيَّةٌ وَهِيَ غَيْرُ مَانِعَةٍ مِنْ ذَلِكَ او په دې وجه اهم ا چې تدبیر وصیت دی او وصیت له دې ابیع، هبه او داسې نورو ا څخه مانع نه دی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: الْمُدَبَّرُ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ وَهُوَ حُرٌّ مِنَ الثُّلُثِ او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی: مدبر دې نه خرڅول کیږي او نه دې هبه کیږي او نه دې میراث کیږي ایعني نه دې په میراث کې ورکول کیږي ا او مدبر اد مړي د مال ا له دریمې حصې څخه آزاد دی وَلِأَنَّهُ سَبَبُ الْحُرِّيَّةِ او ځکه چې تدبیر د آزاد والي سبب دی لِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ تَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې آزاد والی تر مرګ وروسته ثابتیږي وَلَا سَبَبَ غَيْرُهُ او له تدبیر څخه بغیر اد هغه ا بل هیڅ سبب نسته ثُمَّ جَعْلُهُ سَبَبًا فِي الْحَالِ أَوْلَى بیا تدبیر فی الحاله اله شروع څخه ا د آزادۍ سبب ګرځول غوره دي لِوُجُودِهِ فِي الْحَالِ ځکه چې هغه اد تدبیر سببیّت ا فی الحاله موجود دی وَعَدَمِهِ بَعْدَ الْمَوْتِ او اد مالک ا تر مرګ وروسته معلوم انیستي ا دی ایعني ځکه چې تدبیر فقط فی الحاله د آزادۍ سبب دی او د مالک تر مرګ وروسته سبب نه دی ا وَلِأَنَّ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ حَالُ بُطْلَانِ أَهْلِيَّةِ التَّصَرُّفِ ځکه چې اد مالک ا تر مرګ وروسته د تصرف د باطلېدلو حالت دی فَلَا يُمْكِنُ تَأْخِيرُ السَّبَبِيَّةِ إِلَى زَمَانٍ

[1] تخريج: أخرجه الدار قطني حديث رقم: ٢٩ .

بُطْلَانِ الْأَهْلِيَّةِ لهذا د أهليت د بُطلان تر زمانې پورې د سببيت ځنډول ممکن نه دي انو ځکه به هغه في الحاله (له شروع څخه) د آزادۍ سبب ګرځول غوره وي] بِخِلَافِ سَائِرِ التَّعْلِيقَاتِ په خلاف د نورو تعليقاتو لِأَنَّ الْمَانِعَ مِنَ السَّبَبِيَّةِ قَائِمٌ قَبْلَ الشَّرْطِ ځکه چې [په هغوی کې] د شرط [له موجودېدلو څخه] مخکې له سببيّت څخه مانع مَوجود دی لِأَنَّهُ يَمِينٌ ځکه چې بل تعليق [يعني نور تعليقات] قسم وي وَالْيَمِينُ مَانِعٌ او قسم [په خپله] مانع دی وَالْمَنْعُ هُوَ الْمَقْصُودُ او همدا منع کېدل [پکښې] مقصود وي وَأَنَّهُ يُضَادُّ وُقُوعَ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ ځکه چې هغه د طلاق او عتاق د واقع کېدلو ضد دی وَأَمْكَنَ تَأْخِيرُ السَّبَبِيَّةِ إِلَى زَمَانِ الشَّرْطِ او [په نورو تعليقاتو کې] د شرط [د موجودېدلو] تر وخته پورې د سببيّت ځنډول ممکن دي لِقِيَامِ الْأَهْلِيَّةِ عِنْدَهُ ځکه چې [په هغوی کې] د شرط [د موجودېدلو] په وخت کې أهليت موجود وي فَافْتَرَقَا لهذا تدبير او نور تعليقات سره جلا سول وَلِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ او ځکه چې تدبير وصيت دی وَالْوَصِيَّةُ خِلَافَةٌ فِي الْحَالِ كَالْوِرَاثَةِ او وصيت د وراثت په څېر في الحاله خلافت دی [يعني په وصيت کې في الحاله خليفه والي ثابتيږي، که څه هم وصي ته د تصرّف حق د موصي تر مرګ وروسته حاصليږي، لېکن د تصرف سبب في الحاله ثابتيږي لکه څرنګه چې وراثت في الحاله ثابتيږي، او په نورو تعليقاتو کې في الحاله خلافت نه ثابتيږي] وَإِبْطَالُ السَّبَبِ لَا يَجُوزُ او د آزادۍ سبب باطلول جائز نه دي وَفِي الْبَيْعِ وَمَا يُضَاهِيهِ ذَٰلِكَ او په بيع او داسې نورو کې [د هغه] باطلول سته [يعني په بيع، هبه او داسې نورو کې د آزادۍ سبب باطليږي، نو ځکه به د مدبر خرڅول او هبه کول جائز نه وي].

**اللغات:** ﴿دُبُرٍ مِنِّي﴾ زما تر شا، تر ما وروسته، ﴿دَبَّرْتُكَ﴾ د تفعيل ماضي ده: خپل غلام مدبر جوړول، مدبر ګرځول (مدبر کول)، ﴿يُضَاهِيهِ﴾ د مفاعلې مضارع ده: مشابه کېدل.

**تشريح:** د عبارت په شروع کې چې کوم الفاظ ذکر سول، دا ټوله د مدبر جوړولو په معنیٰ کې صريح دي، مثلاً مالک داسې ووايي "کله چې زه مړ سم، نو ته آزاد يې"، نو په دې الفاظو کې په صريحه توګه د غلام د مدبر جوړولو ذکر سوی دی، نو ځکه به په دې الفاظو سره غلام مدبر ګرځي.

**ثم لايجوز بيعهٗ إلخ:** کله چې مالک خپل غلام مدبر جوړ کړي، نو زموږ په نېز د هغه لپاره د دغه غلام خرڅول او هبه کول، يا له خپل ملکيت څخه ايستل جائز نه دي، فقط آزادولای يې سي، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د مدبر خرڅول او هبه کول جائز دي.

**د امام شافعي دليل:** دا دى چي په تدبير کي د غلام آزادي د مالک پر مرګ مُعلّقه کيږي، نو څرنګه چي په نورو تعليقاتو کي خرڅول جائز دي، همداسي به په دغه تعليق (تدبير) کي هم خرڅول جائز وي، او بل دا چي د مُقيّد مدبر خرڅول جائز دي، نو همداسي به مطلق مدبر خرڅول هم جائز وي، او بل دليل دا چي مدبر جوړول وصيت کول (إيصا) دي، او موصیٰ بِهٖ (وصيت کړى سوى شى) خرڅول جائز دي، نو همداسي به د مدبر خرڅول هم جائز وي.

**زموږ دليل:** هغه حديث دى کوم چي په عبارت کي ذکر سو، د هغه مفهوم دا دى چي "د مدبر خرڅول، هبه کول، يا په وراثت کي د مدبر تقسيمول جائز نه دي، او هغه به د ميّت د مال له دريمي حصې څخه آزاديږي".

**ولأنه سبب إلخ:** زموږ د عقلي دليل حاصل دا دى چي تر مرګ وروسته په ميّت (مړه شوي مالک) کي د تصرف کولو اهليت ختم سي، نو ځکه به مدبر جوړول (تدبير) له شروع څخه د آزادېدلو سبب ګرځول کيږي، لهذا کله چي مدبر جوړول له شروع څخه د آزادېدلو سبب دى (او مدبر غلام له شروع څخه د آزاد په حکم کي دى)، نو ځکه به د هغه خرڅول او هبه کول جائز نه وي.

**بخلاف سائر إلخ:** په دې سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، حاصل يې دا دى چي له تدبير څخه بغير چي نور کوم تعليقات دي، هغه د قسم (يمين) په معنیٰ سره دي چي د دې مقصد هم دا دى چي د شرط تر موجودېدلو مخکي هغه (مشروط) شى په وجود کي نه راځي او د شرط تر موجودېدلو پوري په شرط لګونکي کي أهليت موجود وي، نو په دې وجه په نورو تعليقاتو کي له شروع څخه د هغوى د واقع کولو ضرورت نسته، او په تدبير کي تر مرګ وروسته په شرط لګونکي (مالک) کي أهليت نه پاتيږي، نو په دې وجه په مُدبر غلام کي له شروع څخه د آزادى شائبه واقع کيږي او د هغه بيع او هبه به ممنوع ګرځول کيږي.

**ولأنه وصية إلخ:** د دې حاصل دا دى چي مدبر جوړول (تدبير) وصيت دى، او وصيت فى الحاله (له شروع څخه) د آزادوالي سبب دى، لهذا په بيع او هبه کولو سره به د هغه باطلول جائز نه وي.

## په مدبر غلام کوم کارونه کول جائز دي؟

قَالَ: وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَسْتَخْدِمَهُ وَيُؤَاجِرَهُ فرمايي: او جائز دي مالک لره چي له مدبر څخه خدمت واخلي او هغه په أجرت [کرايه] باندي ورکړي وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً او که مينځه مدبره وي وَطِئَهَا نو وطي ور سره کولاى سي وَلَهُ أَنْ يُزَوِّجَهَا او هغه لره دا [هم] جائز دي چي [د بل چا سره] د هغې نکاح وکړي لِأَنَّ

الْمِلْكَ فِيهِ ثَابِتٌ لَهُ ځکه چي په مدبر کي د مالک ملکيت موجود دی وَبِهِ تُسْتَفَادُ وِلَايَةُ هٰذِهِ التَّصَرُّفَاتِ او په همدغه ملکيت سره د دې تصرفاتو ولايت حاصلېږي فَإِذَا مَاتَ الْمَوْلىٰ عَتَقَ الْمُدَبَّرُ مِنْ ثُلُثِ مَالِهِ او کله چي مالک مړ سي نو مدبر غلام به د هغه د مال له دريمي حصې څخه آزادېږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ التَّدْبِيرَ وَصِيَّةٌ او ځکه چي تدبير وصيت دی لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مُضَافٌ إِلىٰ وَقْتِ الْمَوْتِ ځکه چي تدبير يو داسې تبرع ده کوم چي د مرګ وخت ته منسوب ده وَالْحُكْمُ غَيْرُ ثَابِتٍ فِي الْحَالِ او [د هغه] حکم فی الحاله [اوس] ثابت نه دی فَيَنْفُذُ مِنَ الثُّلُثِ نو ځکه به دا [آزادي] د مال له دريمي حصې څخه نافذېږي حَتّٰى لَوْلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ تر دې که له مدبر څخه بغير د مالک لپاره [بل] هيڅ مال نه وي يَسْعىٰ فِي ثُلُثَيْهِ نو غلام به په خپلو دوو حصو کي هڅه کوي [يعني د پاته دوو حصو لپاره به کسب او مزدوري کوي او مال به ګټي، او وارثانو ته به يې ورکوي] وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَوْلىٰ دَيْنٌ او که پر مالک قرض [باندي] وي يَسْعىٰ فِي كُلِّ قِيمَتِهِ نو غلام به په خپل ټوله قيمت کي هڅه کوي لِتَقَدُّمِ الدَّيْنِ عَلَى الْوَصِيَّةِ ځکه چي قرض پر وصيت مخکي دی [ځکه چي د مړي په مال کي اول قرضونه اداء کېږي، بيا وصيت پکښې جاري کېږي] وَلَا يُمْكِنُ نَقْضُ الْعِتْقِ [او د مدبر] آزادي ختمول [هم] ممکن نه دي فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ نو ځکه به د هغه قيمت واپس کول واجب وي [يعني پر غلام به هڅه کول او مال ګټل ضروري وي].

**اللغات:** ﴿يَسْتَخْدِمَهُ﴾ د استفعال مضارع ده: خدمت اخيستل، ﴿يُؤَاجِرَهُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: په اُجرت ورکول، په کرايه ورکول، ﴿تَبَرُّع﴾ د تفعّل مصدر دی: صدقه کول، غير لازم شی اداء کول (يعني داسي کار کول چي هغه پر انسان لازم نه وي).

**تشريح:** مدبر غلام د مالک تر مرګ وروسته آزادېږي، لېکن د مالک تر مرګ مخکي هغه د مالک غلام وي، نو ځکه د مالک لپاره جائز دي چي له مدبر څخه د خدمت کارونه واخلي، يا يې يو چا ته په اُجرت او کرايه ورکړي، همدارنګه که مينځه مدبره وي، نو د مالک لپاره جائز دي چي د هغې سره وطي وکړي يا د بل چا سره د هغې نکاح وکړي (ځکه چي دوی تر اوسه د مالک تر غلامۍ لاندي دي، او د مالک تر مرګ وروسته آزادېږي، نو په دې وجه اوس مالک د دوی سره د غلامۍ معامله کولای سي).

**فإذا مات المولیٰ:** کله چي مالک مړ سي، نو مدبر غلام به د مالک د مال له دريمي حصې څخه به آزادېږي، مثلاً که مالک نهه لکه (۹۰۰۰۰۰) روپۍ تر شا پرېښولې، او د مدبر قيمت درې لکه روپۍ وو، نو د نهو لکو

دريمه حصه (ثلث) درې لکه دې کوم چې د مدبر قيمت هم دی، نو ځکه به ټوله مدبر غلام آزاديږي، ځکه کله چې د ټوله مال دريمه حصه د مدبر غلام د قيمت په اندازه وي (يا تر دې زياته وي)، نو ټوله مدبر غلام به آزاديږي، او که مالک فقط مدبر غلام په ميراث کې پرېږدي او نور هيڅ مال نه لري، نو په دې صورت کې د مدبر دريمه حصه آزاديږي، او د پاته دوو حصو د قيمت لپاره به مدبر مال ګټي (سعايه به کوي). او هغه به د مالک وارثانو ته ورکوي چې هغوی يې په خپل مينځ کې سره تقسيم کړي، کله چې دغه مدبر د باقي دوو حصو قيمت اداء کړي، نو بيا آزاديږي، دليل هغه حديث دی کوم چې په عبارت کې ذکر سو چې په هغه کې دا جمله هم ذکر سوې ده "وَهُوَ حُرٌّ مِنَ الثُّلُث" (يعني مدبر به د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي).

**ولأن التدبير وصية إلخ:** عقلي دليل دا دی چې تدبير (مدبر جوړول) د وصيت په درجه کې دي، او وصيت د مال په دريمه حصه کې نافذيږي، نو ځکه به مدبر هم د مالک د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي. او که له مدبر څخه بغير د مالک لپاره بل هيڅ مال نه وي (فقط همدغه مدبر يې مال وي)، نو د غلام يوه حصه به آزاديږي (ځکه چې د مالک ټوله مال فقط دا يو غلام دی، نو فقط د همدې غلام په دريمه حصه کې به وصيت نافذيږي)، او د پاته دوو حصو لپاره به هغه مال ګټي او وارثانو ته به يې ورکوي.

**وإن كان على المولى:** او که چيرې پر مالک د يو څه قرض پاته وي، او له مدبر څخه بغير د مالک لپاره بل هيڅ مال نه وي، نو په دې صورت کې د هغه دريمه حصه هم نه آزاديږي، بلکې هغه به د خپل ځان د ټوله قيمت لپاره سعايه کوي (يعني خپل ټوله قيمت به ګټي او اداء کوي)؛ ځکه چې وصيت تر قرض وروسته نافذيږي (او تدبير هم يو وصيت دی)، او اوس په مدبر کې د آزادی شائبه راغلې ده (او په هغه کې آزادي ثابته سوې ده)، لهذا هغه اوس ختمول کېدای هم نه سي، او قرض اداء کول هم ضرور دي، نو غوره صورت همدا دی چې مدبر غلام خپل ټوله قيمت وګټي، چې مالک ته هم تاوان نه ورسيږي، او غلام هم آزاد سي او د غلامی له قيد او نقصان څخه محفوظ سي.

## د مدبره مينځې د بچي حکم

وَوَلَدُ الْمُدَبَّرَةِ مُدَبَّرٌ او د مدبره مينځې بچی به [هم] مدبر وي وَعَلٰى ذٰلِكَ نُقِلَ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ او پر همدې [حکم] د صحابه وو أجماع نقل سوې ده وَإِنْ عَلَّقَ التَّدْبِيرَ بِمَوْتِهِ عَلٰى صِفَةٍ او که مالک په يو صفت [او شرط] سره تدبير پر خپل مرګ مُعلق کړي مِثْلَ أَنْ يَقُولَ: إِنْ مِتُّ مِنْ مَرَضِي هٰذَا أَوْ سَفَرِي هٰذَا أَوْ مِنْ مَرَضِ كَذَا مثلاً داسې ووايي: که چيرې زه په خپل دې مرض کې، يا په خپل دې سفر کې، يا په فلانکي مرض کې مړ سوم [نو ته آزاد يې] فَلَيْسَ بِمُدَبَّرٍ نو غلام به مدبر نه وي [يعني په دې سره غلام مدبر نه جوړيږي] وَيَجُوزُ بَيْعُهُ او د هغه بيع به جائز وي لِأَنَّ السَّبَبَ لَمْ يَنْعَقِدْ فِي الْحَالِ

ځکه چي سبب فى الحاله منعقد سوى نه دى لِتَرَدُّدٍ فِي تِلْكَ الصِّفَةِ ځکه چي په هغه صفت [شرط] کي شک دى بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ الْمُطْلَقِ لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ عِتْقُهُ بِمُطْلَقِ الْمَوْتِ په خلاف د مطلق مدبر. ځکه چي د هغه آزادي د مطلق مرګ سره متعلق ده [يعني د هغه آزادي پر مطلق مرګ مُعلقه سوې ده] وَهُوَ كَائِنٌ لَا مَحَالَةَ او [مطلق] مرګ خامخا [واقع] کېدونکى دى فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي ذَكَرَهَا [بيا] که مالک پر هغه صِفت [شرط] مړ سي کوم چي مالک ذکر کړى وي عَتَقَ نو هغه [مقيد مدبر] آزاديږي كَمَا يُعْتَقُ الْمُدَبَّرُ لکه [مطلق] مدبر چي آزاديږي مَعْنَاهُ مِنَ الثُّلُثِ يعني [د مال] له دريمې حصې څخه به آزاديږي لِأَنَّهُ ثَبَتَ حُكْمُ التَّدْبِيرِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ ځکه چي د تدبير حکم د مالک د ژوند په آخري جزء کي ثابت سو لِتَحَقُّقِ تِلْكَ الصِّفَةِ فِيهِ ځکه چي هغه صفت په دغه آخري جزء کي متحقق سو فَلِهَذَا يُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ نو ځکه به [د مال] له دريمې حصې څخه د آزادۍ اعتبار کيږي وَمِنَ الْمُقَيَّدِ أَنْ يَقُولَ: إِنْ مِتُّ إِلَى سَنَةٍ أَوْ عَشْرِ سِنِينَ او د مقيد مدبر له اصورتونو څخه يو] صورت دا دى چي مالک داسي ووايي: که چيري زه تر يوه کال يا لسو کالو پوري مړ سوم [نو ته آزاديې] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړى بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: إِلَى مِائَةِ سَنَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک ووايي: تر سلو کالو پوري وَمِثْلُهُ لَا يَعِيشُ إِلَيْهِ فِي الْغَالِبِ حال دا چي داسي کس [يعني انسان] تر سلو کالو ژوندي نه پاتيږي لِأَنَّهُ كَالْكَائِنِ لَا مَحَالَةَ ځکه چي دا د خامخا [واقع] کېدونکې [مرګ] په شير دى [يعني پر سلو کالو د آزادۍ معلق کول هم داسي دي لکه پر مطلق مرګ د آزادۍ معلق کول، او مطلق مرګ خامخا واقع کېدونکى وي، نو دا به هم د هغه په حکم کي وي].

**اللغات:** ﴿كَائِنٌ﴾ د "كَانَ، يَكُوْنُ" څخه د اسمِ فاعل صيغه ده: کېدونکى، ﴿لَا مَحَالَةَ﴾ خامخا. په هر صورت کي، بالکل (بېله شکه).

**تشريح:** مخکي دا اُصول تېر سو چي بچى به د مور تابع کيږي، لهذا کله چي مور مدبره وي، نو د هغې بچيان به هم مدبر شمارل کيږي، او پر همدې حکم د صحابه وو إجماع نقل سوې ده. له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه دا أثر نقل سوى دى "وَلَدُ الْمُدَبَّرَةِ يُعْتَقُوْنَ بِعِتْقِهَا . وَيُرَقُّوْنَ بِرِقِّهَا" (دار قطني، کتاب المکاتب ج ٤، ص ٧٧، شمېره ٤٢١٣)، همدارنګه له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه د مدبره مېنځي د بچي په هکله

پوښتنه وسوه، نو هغه وفرمايل "مَا وَلَدَتْهُ قَبْلَ التَّدْبِيْرِ عَبْدٌ. وَمَا وَلَدَتْهُ بَعْدَ التَّدْبِيْرِ مُدَبَّرٌ" (يعني مدبره مينځه چې تر تدبير مخکې کوم بچي وزيږوي، هغه غلام دی، او تر تدبير وروسته چې کوم بچي وزيږوي، هغه مدبر دی)، او دا فرمان د ټولو په صحابه وو په حضور کې صادر سو، او پر دې هيچا نکير نه وکړی، لهذا دا د إجماع په درجه کې سو.

وإن علق التدبير إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مالک خپل غلام مقيد مدبر جوړ کړي. (د مطلق تدبير صورت دا دی چې مالک د غلام تدبير پر هيڅ شرط معلق نه کړي بلکې مطلقاً ورته ووايي "ته زما تر مرګ وروسته آزاد يې"، او د مقيد تدبير شکل دا دی چې مالک هغه پر يو شرط معلق کړي او ووايي "که زه په دې مرض کې مړ سوم، يا مثلاً زه په دې سفر کې مړ سوم، نو ته آزاد يې)، نو په دې صورت کې غلام مدبر نه جوړيږي، او د مالک لپاره به د دې غلام خرڅول او هبه کول او داسي نور جائز وي، ځکه چې د دغه غلام په حق کې في الحاله (له شروع څخه) د آزادۍ سبب موجود نه سو. ځکه مالک چې پر کوم صفت او شرط آزادي معلقه کړې ده په هغه کې ترددّ او شک دی يعني کېداى سي چې مالک په دې مرض يا سفر کې مړ نه سي بلکې په بل سبب سره مړ سي يا په بل مرض کې مړ سي، نو ځکه په دې صورت کې غلام مدبر نه جوړيږي، لېکن که مالک پر مطلق مرګ آزادي معلقه کړي، نو مطلق مرګ خو خامخا يو وخت راتلونکی دی، نو ځکه په هغه صورت کې له شروع څخه په غلام کې د آزادۍ شائبه راغله او في الحاله د هغه په حق کې د آزادۍ سبب موجود سو، نو ځکه به په هغه صورت کې مدبر جوړيږي او د هغه خرڅول، هبه کول او داسي نور به جائز نه وي.

فإن مات المولى: د دې حاصل دا دی چې که هغه شرط موجود سي پر کوم چې مالک د خپل غلام آزادي معلقه کړې وي (مثلاً په هغه سفر يا مرض کې مالک مړ سي)، نو دا مقيد مدبر به د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي، لکه څرنګه چې مطلق مدبر د مال له دريمې حصې څخه آزاديږي: دليل دا دی چې شرط موجود سو، نو ځکه به د شرط مطابق هغه آزاديږي.

ومن المقيد إلخ: د دې حاصل دا دی چې يو داسي مودت ذکر کول چې په هغه کې د مالک مرګ يقيني نه وي، هغه مقيد تدبير دی، مثلاً مالک داسي ووايي: "که زه په دې لسو کالو کې مړ سوم، نو ته آزاد يې"، نو دا د مقيد مدبر صورت دی يعني دا مقيد تدبير دی، او داسي مودت ذکر کول چې په هغه کې د مالک مرګ يقيني وي، هغه مطلق تدبير دی، مثلاً مالک داسي ووايي "که زه په سلو کالو کې مړ سوم، نو ته آزاد يې"، نو دا مطلق تدبير دی.



# بَابُ الْاِسْتِيْلَادِ

(دا) باب دأمِ ولد جوړولو (دأحکامو په بيان کي) دی

**تشريح:** مخکي تر دې صاحب دهدايې د "تدبير" أحکام بيان کړل، او اوس په دې باب کي د "استيلاد" احکام بيانوي؛ ځکه چي په تدبير او استيلاد دواړو سره دغلام او مينځي لپاره دآزادۍ (حُريت) حق ثابتيږي. خو څرنګه چي داستيلاد په مقابله کي تدبير کثيرُالوقوع دی، نو په دې وجه تدبير تر استيلاد مخکي بيان کړی سو.

**د استيلاد لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د استيلاد لغوي معنیٰ ده: (له ښځي څخه) د بچي طلب کول، بچی حاصلول.

داستيلاد شرعي معنیٰ ده "وَطْءُ الْأَمَةِ الْمَمْلُوْكَةِ اِبْتِغَاءَ الْوَلَدِ مِنْهَا" (د خپلي مينځي سره د بچي حاصلولو لپاره وطي کول). يعني د خپلي مينځي سره په دې مقصد وطي کول چي زما بچی ځني پيدا سي.

**أمِ ولد:** کله چي مالک د خپلي مينځي سره جماع وکړي او د جماع په نتيجه کي بچی پيدا سي او مالک د هغه بچي اقرار وکړي (چي دا زما بچی دی)، نو داسي مينځي ته أمِ ولد وايي، او د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي.

## د أمِ ولد تعريف او شرعي حکم

وَإِذَا وَلَدَتِ الْأَمَةُ مِنْ مَوْلَاهَا او کله چي مينځه د خپل مالک [له نطفې] څخه بچی وزېږوي فَقَدْ صَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو هغه د خپل مالک أمِ ولد وګرځېده لَايَجُوْزُ بَيْعُهَا وَلَا تَمْلِيكُهَا [او د هغې خرڅول او [د بل چا] په ملکيت کي ورکول جائز نه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام [1]: أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا ځکه چي نبي ﷺ وفرمايل: هغه [ماريه قبطيه] خپل بچي آزاده کړه أَخْبَرَ عَنْ إِعْتَاقِهَا نبي کريم ﷺ [په دې حديث کي] د ښځي دآزادولو خبر ورکړی دی [يعني خپل بچي هغه آزاده کړه] فَيَثْبُتُ بَعْضُ مَوَاجِبِهِ وَهُوَ

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في السنن في العتق، باب رقم:۲، حديث رقم:۲۵۱۶.

حُرْمَةُ الْبَيْعِ نو ځکه به د دې [آزادوالي] ځيني أحكام [هم] ثابتيږي او هغه د بيع حرامېدل دي، وَلِأَنَّ الْجُزْئِيَّةَ قَدْ حَصَلَتْ بَيْنَ الْوَاطِئِ وَالْمَوْطُوءَةِ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ او ځکه چې د وطي کونکي [مالک] او د وطني کړې سوي [مينځي] په مينځ کې د بچي په واسطه سره جزئيت راغلی فَإِنَّ الْمَاءَيْنِ قَدِ اخْتَلَطَا بِحَيْثُ لَا يُمْكِنُ الْمَيْزُ بَيْنَهُمَا ځکه چې دواړې أوبه په داسي توګه سره ګډې سوې چې د هغوی په مينځ کې توپير کول ناممکن دي عَلَىٰ مَا عُرِفَ فِي حُرْمَةِ الْمُصَاهَرَةِ لکه څرنګه چې په حرمت مصاهت کې دا [تاسي ته] معلومه سوه إِلَّا أَنَّ بَعْدَ الِانْفِصَالِ تَبْقَى الْجُزْئِيَّةُ حُكْمًا لَا حَقِيقَةً خو د بچي تر جلا کېدلو [پيدا کېدلو] وروسته دا جزئيت حكماً باقي پاتيږي، نه حقيقتاً فَضَعُفَ السَّبَبُ ځکه چې [اوس] سبب کمزوری سو فَأَوْجَبَ حُكْمًا مُؤَجَّلًا إِلَىٰ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ نو [په دې وجه] دغه سبب داسي حکم ثابت کړی کوم چې د مرګ تر وروسته پوري مؤخر وي وَبَقَاءُ الْجُزْئِيَّةِ حُكْمًا بِاعْتِبَارِ النَّسَبِ او حکماً د جزئيت پاتېدل د نسب په اعتبار سره دي وَهُوَ مِنْ جَانِبِ الرِّجَالِ او د نسب اعتبار د خلکو له طرفه کيږي فَكَذَا الْحُرِّيَّةُ تَثْبُتُ فِي حَقِّهِمْ لَا فِي حَقِّهِنَّ نو ځکه به آزادي [هم] د خلکو په حق کي ثابتيږي، نه د ښځو په حق کي حَتَّىٰ إِذَا مَلَكَتِ الْحُرَّةُ زَوْجَهَا وَقَدْ وَلَدَتْ مِنْهُ همدا وجه ده که آزاده ښځه د خپل خاوند مالکه جوړه سي [په داسي حال کي] چي له هغه څخه د دې ښځي بچي [هم] پيدا سوی وي لَا يَعْتِقُ الزَّوْجُ بِمَوْتِهَا نو [هم] د دې ښځي په مرګ سره [د هغې] خاوند نه آزاديږي وَبِثُبُوتِ عِتْقٍ مُؤَجَّلٍ يَثْبُتُ حَقُّ الْحُرِّيَّةِ فِي الْحَالِ او د مؤخر عتق ثبوت [په أم ولد کي] في الحاله د آزادوالي حق ثابتوي فَيَمْتَنِعُ جَوَازُ الْبَيْعِ وَإِخْرَاجُهَا لَا إِلَى الْحُرِّيَّةِ فِي الْحَالِ نو ځکه به [د هغې] في الحاله خرڅول او د نا آزادوالي [غلامی] وطرف ته د هغې ايستل ممنوع وي وَيُوجِبُ عِتْقَهَا بَعْدَ مَوْتِهِ و [د مؤخر عتق ثبوت به] د مالک تر مرګ وروسته د مينځي آزادي ثابتوي وَكَذَا إِذَا كَانَ بَعْضُهَا مَمْلُوكًا لَهُ او همدارنګه کله چي د مينځي بعضي حصه د مالک په ملکيت کي وي لِأَنَّ الِاسْتِيلَادَ لَا يَتَجَزَّىٰ ځکه چي استيلاد نه متجزي کيږي فَإِنَّهُ فَرْعُ النَّسَبِ او استيلاد د نسب فرع ده فَيُعْتَبَرُ بِأَصْلِهِ نو ځکه به استيلاد پر خپل أصل قياس کيږي.

**اللغات:** ﴿مُصَاهَرَة﴾ د خواښي او خُسر قرابت (خواښي والي او خسر والي)، ﴿اِنفِصَال﴾ د انفعال مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل، ﴿اِسْتِيْلَاد﴾ د استفعال مصدر دی: خپله مينځه اُم ولد جوړول، ﴿لَا يَتَجَزّٰی﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: ټوکړه ټوکړه کېدل، جزء جزء کېدل، برخه برخه کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک د خپلې مينځې سره وطي او جماع وکړي او په دې جماع سره د مينځې بچی پيدا سي، نو دا مينځه د خپل مالک اُم ولد ګرځي، او بيا د مالک لپاره د هغې خرڅول او هبه کول جائز نه دي (او هغه د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي)؛ دليل دا حديث دی "عَنِ ابْنِ عَبَّاسَ قَالَ: لَمَا وَلَدَتْ اُمُّ إِبْرَاهِيْم. قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا" (يعني کله چي د ماريه قبطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بچی (إبراهيم) پيدا سو، نو نبي ﷺ وفرمايل: چي بچي (ابراهيم) خپله مور آزاده کړه).

**ولأن الجزئية:** عقلي دليل دا دی چي کله د مالک او مينځې اوبه (نطفې) سره يو ځای سوې نو په دې سره جزئيت ثابت سو لېکن تر بچي پيدا کېدلو وروسته دا جزئيت حکماً پاته سو او ضعيف سو. نو ځکه د مالک تر مرګه پوري د مينځې آزادي وځنډول سوه لېکن تر مرګ مخکي د هغې خرڅول او هبه کول ناجائز وګرځول سو.

**وبقاء الجزئية إلخ:** جزئيت د پلار سره د نسب ثابتېدلو په وجه ثابتيږي او نسب د سړي له طرفه وي، نو ځکه به د سړي په حق کي آزادي راځي، نو که چيري د يو غلام ښځه آزاده وي او له هغې څخه د غلام بچی پيدا سوی وي، او دا ښځه د خپل خاوند مالکه جوړه سي، نو د ښځې تر مرګ وروسته خاوند نه آزاديږي، ځکه چي خاوند اُم ولد نه ګرځي (او بل دا چي په حديث او آثارو کي د اُمُّ الوَلَد تذکره سوې ده، او پلار أَبُ الوَلَد دی، نو ځکه به هغه نه آزاديږي).

**وبثبوت عتق مؤجل إلخ:** اُم ولد په پوره توګه د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي، خو د آزادۍ أثر (د مالک په ژوند کي) له شروع څخه ښکاره کيږي چي مالک هغه خرڅولای او هبه کولای نه سي، او له آزادولو څخه بغير بل داسي حرکت نه سي کولای کوم چي د دې مينځې په آزادۍ کي حائل جوړ سي.

**وكذا إلخ:** او که مالک د مينځې د بعضې حصې مالک وي، او بيا د هغې سره وطي وکړي او له مينځې څخه بچی پيدا سي، نو بيا هم دا مينځه په پوره توګه د دې مالک اُم ولد جوړيږي؛ ځکه چي اُم ولد

جوړېدل د نسب فرع ده، او نسب نه متجزي کيږي (يعني داسي نه سي کېداى چي يو کوچنى د دوو خلګو زوى جوړ سي)، نو ځکه به د نسب فرع هم نه متجزي کيږي. او ټوله مينځه به د وطي کونکي مالک اُمِ ولد جوړيږي.

## په اُمِ ولد کوم کارونه کول جائز دي؟

قَالَ: وَلَهُ وَطْئُهَا وَاسْتِخْدَامُهَا وَإِجَارَتُهَا وَتَزْوِيجُهَا فرمايي: او د مالک لپاره د هغه اُمِ ولد سره وطي کول او له هغې څخه خدمت اخيستل او هغه په اُجرت [کرايه] ورکول او د هغې نکاح [د بل چا سره] کول [ټوله] جائز دي لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهَا قَائِمٌ ځکه چي په هغې کي [د مالک] ملکيت موجود دى فَأَشْبَهَتِ الْمُدَبَّرَةَ نو هغه د مدبره مينځي سره مشابه سوه وَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا إِلَّا أَنْ يَعْتَرِفَ بِهِ او د هغې د بچي نسب به [د مالک سره] نه ثابتيږي مګر دا چي مالک د هغه اقرار وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ وَإِنْ لَمْ يَدَّعِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغې د بچي نسب به د مالک سره ثابتيږي که څه هم مالک د هغه دعوىٰ نه وکړي لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ النَّسَبُ بِالْعَقْدِ فَلِأَنْ يَثْبُتَ بِالْوَطْءِ وَأَنَّهُ أَكْثَرُ إِفْضَاءً أَوْلَى ځکه کله چي د نکاح په تړون سره نسب ثابتيږي نو په وطي وسره به په طريقه اولیٰ ثابتيږي، ځکه چي وطي [د نکاح له تړون څخه] زيات رسونکي دي [و بچي ته. يعني د عقد نکاح په نسبت وطي او جماع لره د کوچني په پيدا کولو کي زيات طاقت او وړانديتوب حاصل دى] وَلَنَا: أَنَّ وَطْءَ الْأَمَةِ يُقْصَدُ بِهِ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ دُونَ الْوَلَدِ زموږ دليل دا دى چي د مينځي په وطي سره د شهوت پوره کول مقصود وي، نه د بچي حاصلول لِوُجُودِ الْمَانِعِ عَنْهُ ځکه چي [په مينځه کي] د بچي له حاصلولو څخه مانع موجود دى [چي د مينځي قيمت به کم سي] فَلَا بُدَّ مِنَ الدَّعْوَةِ بِمَنْزِلَةِ مِلْكِ الْيَمِينِ مِنْ غَيْرِ وَطْءٍ نو ځکه [د نسب] دعوىٰ کول ضروري دي لکه له وطي څخه بغير ملک يمين [يعني لکه په هغه ميځه کي چي د نسب دعوىٰ کول ضروري دي کوم چي د مالک په ملکيت کي وي، ليکن وطي يې ور سره کړي نه وي] بِخِلَافِ الْعَقْدِ په خلاف د نکاح د تړون [د عقد نکاح] لِأَنَّ الْوَلَدَ يَتَعَيَّنُ مَقْصُودًا مِنْهُ ځکه چي د نکاح له تړون څخه د بچي [حاصلولو] مقصود کېدل متعين کيږي [يعني په نکاح کولو سره د بچي پيدا کول او د بچي حاصلول مقصود وي] فَلَا حَاجَةَ إِلَى الدَّعْوَةِ نو ځکه [په

نکاح کي [د دعوىٰ کولو ضرورت نسته فَإِنْ جَاءَتْ بَعْدَ ذٰلِكَ بِوَلَدٍ او کله چي [د مالک تر پيو وار اقرار کولو وروسته] دغه مينځه [دويم] بچي وزيږوي ثَبَتَ نَسَبُهُ بِغَيْرِ إِقْرَارٍ نو د هغه نسب له اقرار څخه بغير ثابتيږي مَعْنَاهُ: بَعْدَ اعْتِرَافٍ مِنْهُ بِالْوَلَدِ الْأَوَّلِ د دې مطلب دا دی: چي د مالک له طرفه د اول بچي تر اقرار کولو وروسته [د دويم بچي نسب له اقرار څخه بغير ثابتيږي] لِأَنَّهُ بِدَعْوَى الْوَلَدِ الْأَوَّلِ تَعَيَّنَ الْوَلَدُ مَقْصُودًا مِنْهَا ځکه چي د اول بچي د دعوىٰ کولو په وجه [اوس] له دې اُم ولد څخه د بچي [حاصلولو] مقصود کېدل متعين سوه [يعني د اول بچي په دعوىٰ او اقرار کولو سره دا معلومه سوه چي د وطي مقصد "د بچي پيدا کول" دي] فَصَارَتْ فِرَاشًا كَالْمَعْقُودَةِ نو ځکه دا اُم ولد فراش وګرځېده لکه څرنګه چي په نکاح سوې ښځه [فراش ګرځي] إِلَّا أَنَّهُ إِذَا نَفَاهُ يَنْتَفِي بِقَوْلِهِ لېکن که چيري مالک د [دويم] بچي نفي وکړي نو د هغه په قول سره د بچي [نسب] نفي کيږي لِأَنَّ فِرَاشَهَا ضَعِيفٌ ځکه چي د مينځي فراش کمزوری دی حَتَّى يَمْلِكَ نَقْلَهُ بِالتَّزْوِيجِ همدا وجه ده چي مالک په نکاح ورکولو سره [د هغې] د فراش منتقل کولو ملکيت لري [يعني همدا وجه ده چي مالک دا اختيار لري چي د دغه مينځي نکاح د بل چا سره وکړي او خپل فراش هغه ته منتقل کړي] بِخِلَافِ الْمَنْكُوحَةِ په خلاف د منکوحه [معقوده] ښځي حَيْثُ لَا يَنْتَفِي الْوَلَدُ بِنَفْيِهِ إِلَّا بِاللِّعَانِ نو د لعان څخه بغير د خاوند په نفي کولو سره [د هغې] بچی نه نفي کيږي لِتَأَكُّدِ الْفِرَاشِ ځکه چي [د منکوحه ښځي] فراش مضبوط دی حَتَّى لَا يَمْلِكَ إِبْطَالَهُ بِالتَّزْوِيجِ همدا وجه ده چي مالک په نکاح ورکولو سره [د هغې] د فراش باطلولو ملکيت نه لري وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَاهُ حُكْمٌ او دا کوم څه چي موږ ذکر کړل دا حکم دی فَأَمَّا الدِّيَانَةُ فَإِنْ كَانَ وَطِئَهَا وَحَصَّنَهَا وَلَمْ يَعْزِلْ عَنْهَا يَلْزَمُهُ أَنْ يَعْتَرِفَ بِهِ وَيَدَّعِي لېکن ديانت دا دی چي که مالک د اُم ولد سره وطي کړي وي او هغه يې [د خپل ځان لپاره] محفوظه ساتلې وي او له هغې څخه يې عزل کړی نه وي نو پر هغه لازم دي چي [د هغې] د بچي اقرار وکړي او د هغه [د نسب] دعوىٰ وکړي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْوَلَدَ مِنْهُ ځکه چي ظاهري حالت همدا دی چي بچی له هغه څخه دی وَإِنْ عَزَلَ عَنْهَا أَوْ لَمْ يُحَصِّنْهَا او که مالک له هغې څخه عزل کړی وي يا يې هغه [د خپل ځان لپاره]

محفوظه ساتلې نه وي جَازَ لَهُ أَنْ يَنْفِيَهُ نو جائز دي هغه لره چي (د هغې) د بچي نفي وکړي لِأَنَّ هٰذَا الظَّاهِرَ يُقَابِلُهُ ظَاهِرٌ آخَرُ ځکه چي د دې ظاهري حالت په مقابله کي يو بل ظاهري حالت هم سته ايو ظاهري حالت دا دی چي که مالک هغه د خپل ځان لپاره محفوظه کړې وي او له هغې څخه يې عزل نه وي کړی، نو ظاهري حالت دا دی چي دا بچی د مالک دی. او دويم ظاهري حالت دا دی چي که مالک له هغې څخه عزل کړی وي او هغه يې محفوظه کړې هم نه وي، نو ظاهري حالت همدا دی چي دا بچی د هغه نه دی. دا دواړه ظاهري حالتونه سره متعارض دي، نو ځکه په دې باره کي شک پيدا سو چي دا بچی به د مالک وي. او د شک په وجه پر مالک دعویٰ کول لازم نه دي، نو ځکه به په دې صورت کي د مالک لپاره د بچي نسب نفي کول جائز وي ا هٰكَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ همداسي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی وَفِيهِ رِوَايَتَانِ أُخْرَيَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ وَعَنْ مُحَمَّدٍ او په دې باره کي له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه دوه روايتونه نور (هم) سته ذَكَرْنَاهُمَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي چي هغه مونږ په "كفاية المنتهي" کي بيان کړي دي.

**اللغات:** ﴿لَمْ يَدَّعِ﴾ د افتعال له باب څخه د جحد صيغه ده. په اصل کي يَدْتَعِيُ وو: دعویٰ کول. ﴿إِفْضَاء﴾ د افعال مصدر دی: رسول، مفضي کېدل (سبب جوړېدل). ﴿مَعْقُوْدَةً﴾ د اسم مفعول صيغه ده: هغه ښځه چي نکاح ور سره تړل سوې وي (په نکاح سوې ښځه). ﴿لَمْ يُحَصِّنْهَا﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: حفاظت کول، خوندي کول، ښځه پاکه ساتل. ﴿يَنْفِيْهِ﴾ د ضرب مضارع ده: نفي کول، انکار کول.

**تشريح:** څرنګه چي اُم ولد د مالک تر مرګه پوري د هغه مينځه ده. نو ځکه مالک په اُم ولد کي پورتني ټول تصرفات او معاملات کولای سي.

**ولا يثبت نسب إلخ:** فرمايي که د مينځي بچی پيدا سي، او مالک اقرار وکړي چي دا زما بچی دی، نو په دې صورت کي د بچي نسب د مالک سره ثابتيږي، او که هغه اقرار نه وکړي، نو نسب نه ثابتيږي، ها! که يو وار اقرار وکړي چي دا زما بچی دی. او بيا له هغه مينځي څخه بل بچی پيدا سي، نو د دويم بچي نسب په خپله (خود بخوده) د مالک سره ثابتيږي، د مالک د دويم وار اقرار کولو ضرورت نسته.

**وقال الشافعي إلخ:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي که مالک قرار نه وکړي، نو هم د بچي نسب د مالک سره ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي که فقط نکاح وتړل سي او وطي نه وسي، نو بيا هم نسب ثابتيږي. او دلته خو مالک د مينځي سره وطي هم کړي دي، لهذا دلته به په درجه اولیٰ نسب ثابتيږي که څه هم مالک د بچي د نسب دعویٰ نه وکړي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د مينځي سره د وطي کولو مقصد "د بچي پيدا کول" نه وي، بلکي فقط شهوت او خواهش پوره کول وي، نو ځکه به هغه وخت نسب ثابتيږي کله چي مالک د بچی دعویٰ او اقرار وکړي، او د نکاح اصل مقصد "د بچي پيدا کول" وي، نو ځکه هلته له دعویٰ او اقرار څخه بغير هم نسب ثابتيږي.

**فإن جاءت إلخ**: د دې حاصل دا دی چي د مالک اقرار فقط د اول بچي په حق کي ضروري دی، لېکن وروسته چي کوم بچی پيدا سي، د هغه نسب له اقرار څخه بغير هم د مالک سره ثابتيږي؛ ځکه کله چي يو وار نسب ثابت سو او مينځه اُم ولد جوړه سوه، نو ثابته سوه چي د وطي مقصد "بچی پيدا کول" دي (يعني په وطي کولو سره د مالک مقصد "د بچي پيدا کول" دي)، نو ځکه به دويم بچی له دعویٰ څخه بغير هم (په خپله) د مالک بچی شمارل کيږي، لکهٔ په نکاح کي چي بچی له دعویٰ څخه بغير د خاوند بچی شمارل کيږي.

**إلا أنه إذا نفاه إلخ**: او که مالک د اول بچي د نسب اقرار وکړي، او د دويم بچي د نسب انکار وکړي، نو په دې صورت کي د دويم بچي نسب د هغه سره نه ثابتيږي؛ ځکه چي د دې مينځي فراش کېدل ضعيف او کمزوري دي، همدا وجه ده که مالک د دې مينځي نکاح د يو بل چا سره وکړي، نو بيا دا مينځه د مالک فراش نه پاتيږي، د دې په خلاف د منکوحه ښځي فراش مظبوط دی او که يو څوک د خپلي منکوحه ښځي د بچي د نسب نفي وکړي، نو هغه به لعان کوي، او له طلاق ورکولو څخه بغير د منکوحه ښځي نکاح د بل چا سره کول صحيح نه دي، او اُم ولد مينځه داسي نه ده، نو ځکه موږ وايو که مالک د مينځي د دويم بچي د نسب نفي وکړي، نو هغه به نفي کيږي.

**وهذا الذي ذكرناه إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که مالک د بچي د نسب نفي کول وغواړي، نو هغه د مينځي سره د وطي کولو باوجود هم داسي کولای سي، لېکن د ديانت تقاضا دا ده چي که هغه د مينځي سره وطي کوي او عزل نه کوي، نو هغه ته (ديانتاً) پکار دي چي د بچي د نسب اقرار وکړي، او که وطي نه ورسره کوي يا وطي ور سره کوي لېکن عزل کوي، نو بيا د بچي نسب نفي کولای سي. او په دې هکله له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت بل هم نقل سوی دی کوم چي په کفايةُ المنتهي کي ذکر سوی دی، او د اولي هدايې په صفحه: ۴۷۴، يوولسمه (۱۱) حاشيه کي هم د عنايه په حواله سره د هغه تفصيل ذکر سوی دی، که تاسي غواړئ نو هلته يې وګورئ!

## د أم ولد د بچيانو حکم

وَإِنْ زَوَّجَهَا فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او که مالک د خپل اُم ولد نکاح ادبل چا سره او کړي او [بيا] اُم ولد بچی وزیږوي فَهُوَ فِي حُكْمِ أُمِّهِ نو هغه بچی به د خپلي مور په حکم کي وي لِأَنَّ حَقَّ الْحُرِّيَّةِ يَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ ځکه چي د حريت [آزادی] حق د بچي و طرف ته سرايت کوي كَالتَّدْبِيرِ لکه [په] تدبير [کي چي سرايت کوي] أَلَا تَرَى أَنَّ وَلَدَ الْحُرَّةِ حُرٌّ وَوَلَدَ الْقِنَّةِ رَقِيقٌ آيا ته نه ګوري! چي د آزادي ښځي بچی آزادوي او د خالص مينځي بچی خالص غلام وي وَالنَّسَبُ يَثْبُتُ مِنَ الزَّوْجِ او [ددې بچي] نسب به د خاوند سره ثابتيږي لِأَنَّ الْفِرَاشَ لَهُ ځکه چي فرش د هغه لپاره دی وَإِنْ كَانَ النِّكَاحُ فَاسِدًا که څه هم نکاح فاسده وي إِذِ الْفَاسِدُ مُلْحَقٌ بِالصَّحِيحِ فِي حَقِّ الْأَحْكَامِ ځکه چي د أحکامو په حق کي نکاح فاسد د نکاح صحيح سره لاحق ده وَلَوِ ادَّعَاهُ الْمَوْلَى لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ او که مالک ددې بچي دعوی وکړي نو [هم] د مالک سره د هغه نسب نه ثابتيږي لِأَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ مِنْ غَيْرِهِ ځکه چي د هغه نسب له مالک څخه بغير [د خاوند] سره ثابت دی وَيُعْتَقُ الْوَلَدُ او بچی به آزاديږي وَتَصِيرُ أُمُّهُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او د بچي مور به د مالک اُم ولد ګرځي لِإِقْرَارِهِ ځکه چي مالک ددې [بچي] اقرار کړی دی وَإِذَا مَاتَ الْمَوْلَى عَتَقَتْ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ او کله چي مالک مړ سي نو اُم ولد به [د هغه] له ټوله مال څخه آزاديږي لِحَدِيثِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَمَرَ [1] بِعِتْقِ أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ وَأَنْ لَا يُبَعْنَ فِي دَيْنٍ وَلَا يُجْعَلْنَ مِنَ الثُّلُثِ د سعيد بن المسيب رضي الله عنه د حديث په وجه چي نبي ﷺ د اُم ولد مينځو د آزادولو حکم وکړی او دا [حکم يې هم وکړی] چي هغوی به په هيڅ قرض کي نه خرڅول کيږي او هغوی به [د مال] له دريمي حصې څخه نه آزاديږي [بلکي له ټوله مال څخه به آزاديږي] وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى الْوَلَدِ أَصْلِيَّةٌ او ځکه چي د بچي حاجت أصلي دی [يعني بچی د انسان له اصلي حاجاتو څخه يو حاجت دی] فَتُقَدَّمُ عَلَى حَقِّ الْوَرَثَةِ وَالدَّيْنِ نو ځکه به دا د وارثانو پر حق او پر قرض مخکي کيږي

---

[1] تخريج: غريب، وفي هذا أحاديث منها ما أخرجه الدار قطني تحت حديث رقم: ٤٢٠٣. والنسائي في الكبرى تحت حديث رقم: ٥٠٤١.

كَالتَّكْفِيْنِ لكه كفن وركول اچي پر دې شيانو مخكي كيږي ا بِخِلَافِ التَّدْبِيْرِ په خلاف د تدبير [مدبر جوړولو] لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِمَا هُوَ مِنْ زَوَائِدِ الْحَوَائِجِ ځكه چي تدبير د داسي شي وصيت كول دي كوم چي له اصلي حاجاتو څخه زائد دی [يعني تدبير يو اضافي شی دی، حاجت اصلي نه دی] وَلَا سِعَايَةَ عَلَيْهَا فِيْ دَيْنِ الْمَوْلٰى لِلْغُرَمَاءِ او د مالک په قرض كي پر اُم ولد د قرض غوښتنونكو لپاره هڅه [او كسب] كول واجب نه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه كوم چي موږ روايت كړی وَلِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِمَالٍ مُتَقَوِّمٍ او ځكه چي اُم ولد متقوم [قيمت لرونكي] مال نه دی حَتّٰى لَا تُضْمَنُ بِالْغَصْبِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ تر دې چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د غصب په وجه د هغې ضمان [پر غاصب] نه لازميږي فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهَا حَقُّ الْغُرَمَاءِ كَالْقِصَاصِ لهذا د اُم ولد سره به د قرض غوښتونكو حق نه متعلق كيږي لكه د قصاص [سره چي د قرض غوښتونكو حق نه متعلق كيږي] بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ په خلاف د مدبر غلام لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ ځكه چي هغه متقوم [قيمت لرونكی] مال دی.

**اللغات:** ﴿زَوَّجَهَا﴾ د تفعيل ماضي ده: نكاح تړل، د يو چا نكاح د بل چا سره كول، واده وركول. ﴿حُرِّيَّة﴾ آزادي، آزاد والی. ﴿يَسْرِيْ﴾ د ضرب مضارع ده: سرايت كول. ﴿القِنَّة﴾ خالص مينځه، مملوكه من كل الوجوه (هغه مينځه چي نه مكاتبه وي، نه مدبره وي او نه اُم ولد وي). ﴿فِرَاش﴾ بستر، بستره (منكوحه او مملوكه ښځي ته ځكه فراش وايي چي هغه د بسترې په شان تر خاوند لاندي وي). ﴿حَوَائِج﴾ حاجتونه، ضروريات، اړتياوي.

**تشريح:** د عبارت تر وضاحت مخكي دا اُصول په ياد لرئ چي د بچي حكم د مور د حكم په څير دی (يعني بچی د خپلي مور تابع كيږي)، كه مور اُم ولد وي، نو بچی به هم د اُم ولد په حكم كي وي.

مسئله دا ده كه مالک خپله مينځه اُم ولد جوړه كړي، وروسته د هغې نكاح د بل چا سره وكړي، او له هغه (خاوند) څخه د مينځي بچی پيدا سي، نو د مينځي په څير به د هغې بچی هم د دغه مالک غلام وي او كله چي مالک مړ سي، نو د مور سره به بچی هم آزاديږي.

**والنسب يثبت:** او د بچي نسب د مينځي د خاوند سره ثابتيږي، ځكه چي دا مينځه د خاوند فراش ده، او فراش چي د چا وي، نسب د هغه سره ثابتيږي، كه څه هم په نكاح فاسد سره يو چا د ښځي فراش حاصل كړی وي نو هم نسب ثابتيږي (ځكه فراش خو د هغه دی)، ځكه چي په أحكامو كي يعني د

نسب، مهر او دعدت په ثابتېدلو کي نکاحِ فاسد هم دنکاح صحيح سره ملحق ده. او په نکاحِ صحيح کي فراش د خاوند وي، نو په نکاحِ فاسد کي به هم فراش د خاوند وي.

**ولوادّعاه إلخ**: د دې حاصل دا دی که مالک دبل سړي سره د خپل اُم ولد نکاح وکړي، او له هغه سړي څخه د اُم ولد بچی پیدا سي، او بیا مالک دعویٰ وکړي چي دا زما بچی دی، نو د دې بچي نسب د مالک سره نه ثابتیږي، ځکه چي اوس د خاوند سره د بچي نسب ثابت دی، خو څرنګه چي مالک د دې بچي اقرار کوي (چي دا زما بچی دی)، نو ځکه به دا بچی له اوس څخه آزادیږي، او د هغه مور به دويم وار د مالک اُم ولد ګرځي.

**وإذا مات المولیٰ**: او کله چي مالک مړ سي، نو اُم ولد به له ټوله مال څخه آزادیږي، نه به هغه خرڅول کیږي، او نه به د مال له دريمي حصې څخه آزادیږي، د أثمار الهدايې مصنف وايي چي صاحب د هدايې چي کوم حديث په دليل کي ذکر کړی دی، هغه په اصل کي دا حديث دی: "عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى بَيْعِ أُمَّهَاتِ الأَوْلَادِ. وَقَالَ: لَا يُبَعْنَ وَلَا يُوهَبْنَ وَلَا يُورَثْنَ. يَسْتَمْتِعُ بِهَا سَيِّدُهَا مَا دَامَ حَيًّا فَإِذَا مَاتَ فَهِيَ حُرَّةٌ" (سنن دار قطني، کتاب المکاتب، ج:۴، ص:۷۵، حديث رقم:۴۲۰۳، سنن بيهقي، ج:۱۰، ص:۵۷۲، حديث رقم:۲۱۷۶۳)، له دې حديث څخه معلومه سوه چي اُم ولد به د مالک تر مرګ وروسته آزادي، او په دې باره کي نور حديثونه هم سته.

**ولأن الحاجة إلخ**: د عقلي دليل حاصل دا دی چي د بچي حق له قرض (پور) او وارثانو څخه هم مخکي دی، ځکه چي د بچي حاجت اصلي حاجت دی (يعنی بچی د انسان له حوائجِ اصليه وو څخه دی)، لهذا هغه په قرض کي هم خرڅول کېدای نه سي، نو ځکه به بچی او مور دواړه په پوره ټوګه له ټوله مال څخه آزاديږي، د دې په خلاف تدبير (مدبر جوړول) يو زائد شی دی (حاجتِ اصلي نه دی)، نو ځکه به مدبر غلام د مال له دريمي حصې څخه آزاديږي.

**ولا سعاية عليها إلخ**: که مالک مړ سي او پر هغه د يو چا قرض پاته وي، نو اُم ولد به نه د هغه په قرض کي خرڅول کيږي، او نه به اُم ولد د قرض غوښتونکو (غرماؤ) لپاره مال ګټي (يعني د مړه سوي مالک د قرض لپاره به هغه کسب او مزدوري هم نه کوي)، ځکه چي مخکي حديث تېر سو چي اُم ولد به نه خرڅول کيږي، د دې مطلب دا دی چي هيڅ وارث ته جائز نه دي چي اُم ولد خرڅه کړي او ګټه پر وکړي (يعني خپل مال په دېر کړي)، لهذا کله چي د هغې خرڅول (او ګټه پر کول) جائز نه دي، نو ښکاره خبره ده چي په هغې به کسب او مزدوي کول هم جائز نه وي.

**ولأنها ليست بمال:** په اُم ولد کې د آزادۍ شائبه راغلې ده. نو ځکه هغه غیر متقوم مال دی (یعني قیمت لرونکی مال نه دی، او پر هغې به قیمت نه لګول کیږي)، د دې دوه مثالونه ذکر کوي: ① ... یو مثال دا چې که یو څوک اُم ولد غصب کړي او د غاصب سره اُم ولد مړه سي، نو پر غاصب ضمان نه واجبیږي، ځکه چې اُم ولد غیر متقوم مال دی. ② ... او بل دا چې څرنګه د قصاص سره د قرض غوښتونکو (غرماؤ) حق نه متعلق کیږي (یعني د مقتول غرماؤ ته دا حق نسته چې له قاتل څخه د قصاص په عوض کې د خپلو قرضو مطالبه وکړي)، همداسي د اُم ولد سره هم د قرض غوښتونکو حق نه متعلق کیږي، نو معلومه سوه چې اُم ولد متقوم مال نه دی، لکه قصاص چې متقوم مال نه دی، په خلاف د مدبر ځکه چې هغه متقوم مال دی، نو ځکه به هغه د مالک د قرض لپاره کسب او مزدوري هم کوي، او که چیري یو څوک مدبر غصب کړي او د غاصب سره هغه مړ سي، نو پر غاصب به د هغه ضمان او تاوان هم واجب وي.

## که د کافر سړي اُم ولد اسلام راوړي؟ (حکم او اختلاف)

وَإِذَا أَسْلَمَتْ أُمُّ وَلَدِ النَّصْرَانِيِّ او کله چې د نصراني [عیسائي] اُم ولد اسلام راوړي فَعَلَيْهَا أَنْ تَسْعَى فِي قِيمَتِهَا نو پر هغې ضروري دي چې په خپل قیمت کې به هڅه [او کسب] کوي وَهِيَ بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبَةِ او هغه د مکاتبې مینځې په درجه کې ده لَا تُعْتَقُ حَتَّى تُؤَدِّيَ السِّعَايَةَ [او] هغه نه آزادیږي تر دې چې سعایه [یعني قیمت] اداء کړي [یعني تر څو چې هغې خپل د ځان قیمت اداء کړی نه وي تر هغه وخته پوري نه آزادیږي] وَقَالَ زُفَرُ: تُعْتَقُ فِي الْحَالِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې هغه في الحاله [فوراً] آزادیږي وَالسِّعَايَةُ دَيْنٌ عَلَيْهَا او سعایه به پر هغې قرض وي وَهَذَا الْخِلَافُ فِيمَا إِذَا عُرِضَ عَلَى الْمَوْلَى الْإِسْلَامُ فَأَبَى او دا اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې پر مالک اسلام پېش کړی سي او مالک انکار وکړي فَإِنْ أَسْلَمَ تَبْقَى عَلَى حَالِهَا او که چیري مالک اسلام راوړي نو اُم ولد به پر خپل حالت باقي پاتیږي لَهُ: أَنَّ إِزَالَةَ الذُّلِّ عَنْهَا بَعْدَ مَا أَسْلَمَتْ وَاجِبَةٌ د امام زفر رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې له اُم ولد څخه د هغې تر اسلام راوړلو وروسته [د کفر] ذلت لیري کول ضروري دي وَذَلِكَ بِالْبَيْعِ أَوْ الْإِعْتَاقِ او دا [فقط] په خرڅولو یا آزادولو سره لیري کیږي وَقَدْ تَعَذَّرَ الْبَيْعُ او [د اُم ولد] خرڅول ناممکن دي فَتَعَيَّنَ الْإِعْتَاقُ نو ځکه آزادول متعین سو [چې هغه به آزادول کیږي] وَلَنَا أَنَّ النَّظَرَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فِي جَعْلِهَا مُكَاتَبَةً زموږ دلیل دا دی: چې د اُم ولد په مکاتبه ګرځولو کې دواړو

طرفونو فايده [اوښيګنه] ستة لِأَنَّهُ يَنْدَفِعُ الذُّلُّ عَنْهَا بِصَيْرُورَتِهَا حُرَّةً يَدًا ځکه چي له اُم ولد څخه به ذلت ليري سي چي هغه به د قبضې په اعتبار سره [يعني د قيمت اداء کولو په اعتبار سره] آزاده وګرځي وَالضَّرَرُ عَنِ الذِّمِّيِّ او له ذمي څخه به [هم] ذلت [ليري سي] لِانْبِعَاثِهَا عَلَى الْكَسْبِ نَيْلًا لِشَرَفِ الْحُرِّيَّةِ ځکه چي دآزادۍ د شرف حاصلولو لپاره به هغه [اُم ولد] پر [مال] ګټلو [او پر کار کولو] آماده وي [او دآزادۍ د حصول لپاره به هغه په شوق او چسپاندي سره خپل د ځان قيمت ګټي] فَيَصِلُ الذِّمِّيُّ إِلَى بَدَلِ مِلْكِهِ او ذمي به د خپل ملکيت عوض ته ورسيږي [يعني د خپل ملکيت قيمت به حاصل کړي] أَمَّا لَوْ أُعْتِقَتْ وَهِيَ مُفْلِسَةٌ ليکن که اُم ولد [في الحاله] آزاده کړى سي [چي تر اوسه يې خپل قيمت اداء کړى نه وي] او هغه غريبه [هم] وي تَتَوَانَى فِي الْكَسْبِ نو په [مال] ګټلو کي به سستي کوي [ليکن که قيمت ګټل (او سعايه) پر هغې ضروري وګرځول سي، نو هغه به د آزادۍ د حصول لپاره په شوق او چسپاندي سره سعايه کوي، نو ځکه به سعايه پر هغې ضروري وي او تر سعايه مخکي به نه آزاديږي] وَمَالِيَّةُ أُمِّ الْوَلَدِ يَعْتَقِدُهَا الذِّمِّيُّ مُتَقَوِّمَةً او ذمي د خپل اُم ولد پر ماليت د متقوم کېدلو عقيده لري [يعني ذمي خپل اُم ولد متقوم مال ګڼي] فَيُتْرَكُ وَمَا يَعْتَقِدُهُ نو هغه او خپله عقيده به سره پرېښوول کيږي [يعني په دې هکله به د هغه د اعتقاد رعايت کيږي] وَلِأَنَّهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ مُتَقَوِّمَةً فَهِيَ مُحْتَرَمَةٌ او ځکه چي د اُم ولد ماليت که څه هم متقوم نه دى خو محترم [خامخا] دى وَهَذَا يَكْفِي لِوُجُوبِ الضَّمَانِ او د هغه محترم کېدل د ضمان واجبېدلو لپاره کافي دي كَمَا فِي الْقِصَاصِ الْمُشْتَرَكِ إِذَا عَفَا أَحَدُ الْأَوْلِيَاءِ يَجِبُ الْمَالُ لِلْبَاقِينَ لکه کله چي په مشترک قصاص کي يو ولي معافي وکړي نو د پاته وليانو لپاره مال واجبيږي وَلَوْ مَاتَ مَوْلَاهَا عَتَقَتْ بِلَا سِعَايَةٍ او که د دې اُم ولد مالک مړ سي نو دا به له سعايه څخه بغير آزاديږي لِأَنَّهَا أُمُّ وَلَدٍ ځکه چي دا [د هغه] اُم ولد ده وَلَوْ عَجَزَتْ فِي حَيَاتِهِ لَا تُرَدُّ قِنَّةً او که دا مينځه د مالک په ژوند کي [له سعايه څخه] عاجزه سي نو [اوديم وار] به خالص مينځه نه ګرځول کيږي لِأَنَّهَا لَوْ رُدَّتْ قِنَّةً ځکه که هغه خالص مينځه وګرځول سي أُعِيدَتْ مُكَاتَبَةً نو واپس به مکاتبه وګرځول سي لِقِيَامِ الْمُوجِبِ ځکه چي سبب موجود دى [نو ځکه به خالص مينځه نه ګرځول کيږي].

**اللغات:** ﴿سِعَايَة﴾ د سمع مصدر دی: هڅه او کوښښ کول، د يو چا د حق اداء کولو لپاره کوښښ کول، کسب او مزدوري کول (مال ګټل)، خواري کاږل. ﴿الذُّل﴾ ذِلت، ذلالت (ذليل والي)، رزالت، (نحوست)، ﴿اِنْبِعَاث﴾ د انفعال مصدر دی: آماده کېدل (چمتو کېدل)، پورته کېدل. تشويقېدل (په شوق راتلل)، ﴿نَيْل﴾ د فتح مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿تَتَوَانَى﴾ د تفاعل مضارع ده: سستي کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د نصراني مالک اُم ولد مسلمانه سي، نو زموږ په نېز هغه اوس نه آزادیږي، بلکي هغه به د خپل قيمت لپاره کسب او مزدوري کيږي (يعني خواري به کاږي او د خپل ځان قيمت به ګټي)، او تر اُم ولد کېدلو مخکي چي د مينځي توب په حالت کي د هغې کوم قيمت وي، د هغه قيمت د ريمه حصه به د غه اُم ولد خپل مالک (نصراني) ته ورکوي، بيا آزاديږي. لکه څرنګه چي مکاتبه مينځه د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي نه آزاديږي، همداسي دا اُم ولد هم تر خپل قيمت اداء کولو مخکي نه آزاديږي.

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي اُم ولد له کسب او مزدوري کولو (قيمت ګټلو) څخه مخکي آزاديږي، او تر آزادېدلو وروسته به د خپل ځان قيمت ګټل پر هغې قرض وي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي کله اُم ولد اسلام راوړي نو له هغې څخه د کفر ذلت ليري کول ضروري دي، او هغه فقط په دوو طريقه سره ليري کېدای سي: ① د خرڅولو په ذريعه، ② د آزادولو په ذريعه، او د حديث پر بناء د هغې خرڅول جائز نه دي، لهذا اوس به فقط د آزادولو په ذريعه له هغې څخه د کفر ذلت او نحوست ليري کيږي، او د هغې آزادي به د قيمت تر اداء کولو او مال ګټلو پوري نه ځنډول کيږي.

وروسته مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا حکم په هغه وخت کي دی کله چي پر مالک اسلام پېش کړی سي، او هغه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي، لېکن که هغه اسلام راوړي، نو مينځه د هغه اُم ولد پاتيږي، ځکه چي اوس د مينځي لپاره د مالک په اُم ولد کېدلو کي هيڅ ذلت او نحوست نسته.

**زموږ دليل:** دا دی چي يوه طرف ته د اُم ولد إسلام دی، او بل طرف ته د مالک ملکيت دی، لهذا يو داسي صورت به اختياريږي، چي په هغه کي اُم ولد او مالک دواړو ته نقصان نه ورسيږي، او هغه صورت دا دی چي دلته اُم ولد مکاتبه وګرځول سي، په دې کي د دواړو فايده ده، ځکه چي د قيمت په ګټلو سره به هغه د مالک (نصراني) په ژوند کي آزاده سي، او ذلت به هم ختم سي (دا د اُم ولد فايده ده)، او مالک ته به د اُم ولد قيمت حاصل سي (دا د مالک فايده ده).

د دې په خلاف که موږ اُم ولد تر سعايه او قيمت ګټلو مخکې آزاده وګرځوو (لکه څرنګه چې امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي)، او اُم ولد غريبه هم وي، يعني د هغې سره هيڅ مال هم نه وي چې له هغې څخه واخيستل سي، نو په دې صورت کې به هغه په سعايه او مال ګټلو کې سستي کوي، او د اُم ولد مقصد خو به حاصل سي، لېکن د مالک مقصد به حاصل نه سي، او د دواړو طرفونو لپاره به فايده او ښېګڼه ثابته نه سي، نو په دې وجه موږ تر سعايه مخکې اُم ولد آزاده نه ګرځوو.

**وماليةُ أم الولد إلخ**: د ذمي کېدلو په وجه د نصراني خاوند عقيده همدا ده چې اُم ولد آزاده نه ده. بلکې هغه خرڅول کېداى سي (يعني د نصراني مالک په نېز اُم ولد متقوم مال دى)، نو ځکه د هغه د اعتقاد د رعايت کولو په وجه هم اُم ولد آزاده ګرځول پکار نه دي، بلکې هغې ته به د خپل قيمت ګټلو او سعايه (کسب او مزدورۍ) کولو حکم کېږي.

**ولأنها إلخ**: او بل دا چې کله اُم ولد مسلمانه سي، نو هغه محترمه او د تکريم لائقه وګرځېده، او د هغې محترمه کېدل د ضمان د وجوب لپاره کافي دي، د دې مثال دا دى لکه د قصاص حق چې مثلاً د څلور خلګو په مينځ کې مشترک وي، او له دوى څخه يو سړى قصاص معاف کړي، او نورې معاف نه کړي، نو د پاته درېو خلګو لپاره مال واجبېږي (يعني قاتل به هغو ته ديت ورکوي)، ځکه چې مقتول محترم دى، د هغه د احترام او تکريم تقاضا دا ده چې د پاته درېو خلګو لپاره مال واجب سي، همداسې اُم ولد هم محترمه ده، نو ځکه به پر هغې ضمان لازم وي.

**ولو مات مولاها إلخ**: د نصراني اُم ولد په هر حال کې د هغه اُم ولد ده. لهذا کله چې مالک (نصراني) د اُم ولد تر سعايه کولو مخکې مړ سي، نو هم اُم ولد آزادېږي.

**ولو عجزت إلخ**: او که دا مينځه له سعايه (کسب او مال ګټلو) څخه عاجزه سي، نو هغه دويم وار مينځه نه ګرځي، بلکې هغسې اُم ولد پاتېږي، ځکه که چېرې موږ هغه مينځه وشمارو، نو د هغې د اسلام او د مالک د کفر په وجه به هغه مکاتبه شمارل کېږي، ځکه چې د کتابت سبب اوس هم په دواړو طرفونو کې موجود دى، لهذا هغه به پر خپل حالت پرېښوول کېږي، او مينځه به نه ګرځول کېږي.

## که يو څوک د خپلې مينځې مالک جوړ سي؟ (حکم او اختلاف)

وَمَنْ اِسْتَوْلَدَ أَمَةَ غَيْرِهِ بِنِكَاحٍ او څوک چې د نکاح په ذريعه د بل چا له مينځې څخه بچى حاصل کړي ثُمَّ مَلَكَهَا بيا هغه د دې مينځې مالک جوړ سي صَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو دا مينځه د هغه اُم ولد ګرځي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَصِيرُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د هغه اُم ولد نه ګرځي

وَلَوِ اسْتَوْلَدَهَا بِمِلْكِ يَمِينٍ او كه [يو څوک] د ملک يمين په ذريعه له مينځي څخه بچى حاصل كړي ثُمَّ اُسْتُحِقَّتْ بيا دا مينځه [د بل چا] مستحقه سي [يعني د بل چا وخېږي] ثُمَّ مَلَكَهَا [او] بيا هغه د دې مينځي مالک جوړ سي تَصِيرُ اُمَّ وَلَدٍ لَهُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز دا مينځه د هغه اُمِ ولد ګرځي وَلَهُ فِيهِ قَوْلَانِ او په دې [مسئله] کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوه قوله دي وَهُوَ وَلَدُ الْمَغْرُورِ او همدا "ولدُ المغرور" (د دوکه سوي سړي بچی) دی [يعني داسي بچي ته "ولدُ المغرور" وايي] لَهُ: أَنَّهَا عَلِقَتْ بِرَقِيقٍ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا مينځه په غلام سره حامله سوې ده [يعني په نس کي يې غلام حمل دی] فَلَا تَكُونُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو ځکه به د هغه سړي اُمِ ولد نه وي كَمَا إِذَا عَلِقَتْ مِنَ الزِّنَا ثُمَّ مَلَكَهَا الزَّانِي لکه په هغو صورت کي کله چي مينځه په زنا سره حامله سي [او] بيا زاني د هغې مالک سي [نو په دې صورت کي مينځه د زاني اُمِ ولد نه ګرځي] وَهَذَا لِأَنَّ أُمُومِيَّةَ الْوَلَدِ بِاعْتِبَارِ عُلُوقِ الْوَلَدِ حُرًّا او دا په دې وجه چي اُمِ ولد کېدل په دې اعتبار سره دي چي بچی د آزاد والي په حالت کي په حمل کي قرار نيولی وي [يعني مينځه په هغه نطفې او بچي سره اُمِ ولد ګرځي چي هغه د آزاد والي په حالت کي د مينځي په رحم کي قرار نيولی وي، مطلب دا چي کله مينځه په آزاد بچي سره حامله سوې وي] لِأَنَّهُ جُزْءُ الْأُمِّ فِي تِلْكَ الْحَالَةِ ځکه چي د حمل په حالت کي بچی د خپلي مور جزء وي وَالْجُزْءُ لَا يُخَالِفُ الْكُلَّ او جزء له کل څخه نه مخالف کېږي [او نه ځني جلا کېږي] وَلَنَا: أَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْجُزْئِيَّةُ عَلَى مَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ او زموږ دليل دا دی چي [د اُمِ ولد جوړېدلو] سبب جزئيت دی. لکه مخکي چي موږ ذکر کړه وَالْجُزْئِيَّةُ إِنَّمَا تَثْبُتُ بَيْنَهُمَا بِنِسْبَةِ الْوَلَدِ الْوَاحِدِ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا او جزئيت د دوی [واطئ او موطوئه] په مينځ کي هغه وخت ثابتېږي کله چي په دوی کي د هر يوه وطرف ته په بشپړه توګه د بچي نسبت [سوی] وي وَقَدْ ثَبَتَ النَّسَبُ او [په دې مسئله کي] نسب ثابت دی فَتَثْبُتُ الْجُزْئِيَّةُ بِهَذِهِ الْوَاسِطَةِ نو په همدې واسطه سره به جزئيت [هم] ثابت وي بِخِلَافِ الزِّنَا لِأَنَّهُ لَا نَسَبَ فِيهِ لِلْوَلَدِ إِلَى الزَّانِي په خلاف د زناء. ځکه چي په زناء کي د زاني لپاره د بچي [هيڅ] نسب نه ثابتېږي وَإِنَّمَا يُعْتَقُ عَلَى الزَّانِي إِذَا مَلَكَهُ لِأَنَّهُ جُزْؤُهُ حَقِيقَةً بِغَيْرِ وَاسِطَةٍ او

کله چي زاني د بچي مالک سي نو بچی [ځکه] پر هغه آزادیږي، ځکه چي دا بچی بېله واسطې حقیقتاً د زاني جزء دی نَظِيرُهُ: مَنِ اشْتَرَى أَخَاهُ مِنَ الزِّنَا د دې مثال دا دی: لکه یو څوک چي خپل د زنا والا ورور رانیسي لَا يُعْتَقُ عَلَيْهِ نو هغه پر ده [رانیونکي ورور] نه آزادیږي لِأَنَّهُ يُنْسَبُ إِلَيْهِ بِوَاسِطَةِ نِسْبَتِهِ إِلَى الْوَالِدِ ځکه چي هغه [د زنا ورور] د پلار وطرف ته د منسوبېدلو په واسطه سره د دې [رانیونکي] ورور وطرف ته منسوب کیږي وَهِيَ غَيْرُ ثَابِتَةٍ او [د دوی په مینځ کي] د پلار نسبت ثابت نه دی.

**اللغات:** ﴿إِسْتَوْلَدَ﴾ د استفعال ماضي ده: د بچي طلب کول، بچی حاصلول، اُم ولد جوړول، ﴿إِسْتَحَقَّتْ﴾ د استفعال ماضي ده: مستحق کېدل (یعني چي مینځه د بل مالک مستحقه سي، او د بل چا وخیږي (د بل چا مملوکه ثابته سي)، ﴿عَلقت﴾ عُلُوق: حامله کېدل (بلابېدل)، د ښځي په رحم کي نطفه قرار نیول، ﴿زَانِيْ﴾ د ضرب اسم فاعل دی: زنا کاره، زنا کونکی، ﴿نَظِيْر﴾ مثال، مشابه.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړی د بل چا د مینځي سره نکاح وکړي، او له هغې څخه یې بچی پیدا سي، بیا هغه دا مینځه رانیسي، نو دا مینځه د هغه اُم ولد جوړیږي، که څه هم د بچي د پیدا کېدلو په وخت کي دا د هغه مینځه نه وه (ځکه دا که څه هم وروسته د مالک مینځه جوړه سوې ده، لېکن د هغه د بچي مور خو ده، نو ځکه به وروسته د هغه اُم ولد ګرځي، او د مالک تر مرګ وروسته به آزادیږي). امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مینځه د هغه اُم ولد نه جوړیږي (ځکه چي د بچي پیدا کېدلو په وخت کي دا د هغه مینځه نه ده، بلکي منکوحه ښځه یې ده).

**ولو استولدها إلخ:** او که یوه مینځه د بچي پیدا کېدلو په وخت کي د یو چا مملوکه (مینځه) وي. او وروسته معلومه سي چي هغه د بل چا مینځه ده (یعني د بل چا مینځه وخیږي)، خو وروسته هغه مینځه بیرته د دې مالک په ملکیت کي راسي، نو هغه د ده اُم ولد جوړیږي، او په دې هکله له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دوه قوله نقل سوي دي: یو قول دا دی چي دا مینځه بیرته د دې مالک اُم ولد جوړیږي، او دویم قول یې دا دی چي د ده اُم ولد نه جوړ کیږي. ځکه چي دغه پیدا سوی بچی "وَلَدُ الْمَغْرُوْر" (د دوکه سوي پلار بچی) دی، ځکه چي د دې بچي پلار ته دوکه ورکول سوه (چي دا مینځه د هیچا په ملکیت کي نه ده. لېکن وروسته معلومه سوه چي هغه د بل چا په ملکیت کي ده)، او د داسي مینځي او بچي حکم دا دی چي مینځه د هغه (مغرور) اُم ولد نه جوړیږي، او د دې بچي

قیمت به اداء کیږي، او تر قیمت اداء کولو وروسته بچی آزادیږي او د پلار (مغرور) سره د هغه نسب ثابتیږي، نو ځکه به دلته مینځه د دې مالک اُم ولد نه جوړیږي.

**له أنها علقت إلخ:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دلیل حاصل دا دی چې د اُم ولد جوړیدلو لپاره دا ضروري دي چې د مینځې په نس کې به آزاد بچې حمل نیولی وي (یعني مینځه به په آزاد بچي سره حامله سوې وي)، ځکه چې د حمل په حالت کې بچی د خپلې مور جزء وي، او جزء د کُل نه مخالف کیږي (یعني فرع د أصل نه مخالف کیږي)، او دلته که مور، بچی آزاد وشمارو، نو جزء (بچی) به د کُل (مور) مخالف سي، ځکه چې د هغه مور د خپل مالک مینځه او مملوکه ده (او بچی د مور تابع وي)، لهذا دا مینځه اوس په غلام سره حامله ده (یعني اوس د مملوکیت په وخت کې به د هغې حمل غلام شمارل کیږي)، او ښکاره خبره ده چې کله حمل غلام وي، نو پیدا کیږي به هم غلام. لهذا نه به دا بچی آزاد وي، او نه به د دې بچي په وجه مور اُم ولد جوړیږي (ځکه چې جزء له کُل څخه نه جلا کیږي)، لکه یو سړی چې د بل چا د مینځې سره زناء وکړي، او د زناء په وجه بچی پیدا سي، بیا زاني د دې مینځې مالک سي، نو هم هغه مینځه د زاني اُم ولد نه جوړیږي، همداسې به دلته هم دا مینځه د وطي کونکي (خاوند) اُم ولد نه جوړیږي.

**ولنا أن السبب إلخ:** زموږ دلیل دا دی چې دا بچی جزء دی، د مور هم او د پلار هم (یعني بچی د موطوئه مینځې هم جزء دی او د واطئ پلار هم جزء دی)، نو دلته به دغه بچی د جزئیت په وجه سره آزادیږي، او د بچي نسب به د پلار سره ثابتیږي، لهذا پلار چې کله هم د مور مالک جوړ سي، نو مور به اُم ولد جوړیږي، د دې په خلاف د زاني سره خو بالکل نسب نه ثابتیږي، نو ځکه به د زناء په بچي سره (مزنیه) مینځه د هغه د اُم ولد نه جوړیږي.

**وإنما يعتق إلخ:** دا د یو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې که مثلاً زید د یوې مینځې سره زنا وکړه، او له هغې څخه یې بچی پیدا سو، او بیا زید د هغې مینځې او بچي مالک سو، نو دا بچی آزادیږي، حالانکې د دې بچي نسب د پلار (زید) سره نه ثابتیږي، نو دلته له نسب ثابتیدلو څخه بغیر بچی څنګه آزادیږي!؟، نو د هغه په جواب کې فرمایي چې دلته د نسب په واسطه سره بچی نه آزادیږي، بلکې بچی په حقیقت کې د زاني جزء دی، نو د دې جزئیت په وجه آزادیږي.

**نظيره إلخ:** د دې مثال دا دی چې که زید د یوې ښځې سره زنا وکړه او له هغې څخه عُمر پیدا سو، او بیا د عمر ورور خالد هغه (عمر) رانیوی، نو پر خالد باندې عمر نه آزادیږي، ځکه چې دلته د عمر نسب د زید سره ثابت نه دی، ځکه چې هغه له زنا څخه پیدا سوی دی، او یو څوک د نسب په واسطه سره د بل چا ورور جوړیږي، او دلته نسب ثابت نه دی، نو ځکه به عمر پر خالد نه آزادیږي (ځکه چې عُمر د هغه ورور نهٔ سو)، لیکن که زید (پلار) د عمر مالک سي، نو عمر پر زید آزادیږي، ځکه چې عمر د زید (براهِ راست) جزء دی.

## که پلار د خپل زوی مینځه اُم ولد جوړه کړي؟

وَإِذَا وَطِئَ جَارِيَةَ ابْنِهِ او که چیري پلار د زوی د مینځي سره وطي وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او [بیا] مینځه بچی وزیږوي فَادَّعَاهُ او پلار په هغه بچي دعوىٰ وکړي ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د پلار سره د هغه بچي نسب ثابتیږي وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او دا مینځه د هغه اُم ولد ګرځي وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا او پر پلار به د دې مینځي قیمت لازم وي وَلَيْسَ عَلَيْهِ عُقْرُهَا وَلَا قِيمَةُ وَلَدِهَا [لیکن] د مینځي مهر به پر پلار لازم نه وي او نه به د هغې د بچي قیمت پر لازم وي وَقَدْ ذَكَرْنَا الْمَسْأَلَةَ بِدَلَائِلِهَا فِي كِتَابِ النِّكَاحِ مِنْ هٰذَا الْكِتَابِ او دا مسئله موږ د خپلو دلائلو سره د دې کتاب [هدایې] په کتابُ النکاح کي بیان کړې ده [تاسي یې هلته وګورئ!] وَإِنَّمَا لَا يَضْمَنُ قِيمَةَ الْوَلَدِ لِأَنَّهُ انْعَلَقَ حُرَّ الْأَصْلِ او پلار به په دې وجه د بچي د قیمت نه ضامن کیږي، ځکه چي دغه بچي له شروع ځخه د آزادوالي په حالت کي په حمل کي قرار نیولی وو [یعني دا بچی د حمل له وخت ځخه آزاد دی] لِاسْتِنَادِ الْمِلْكِ إِلَى مَا قَبْلَ الْاسْتِيلَادِ ځکه چي [د پلار] ملکیت د بچي تر حاصلولو [وطي کولو] مخکي وخت ته منسوب [او منل سوی] دی [یعني ځکه چي د پلار تر وطي کولو مخکي به په دې مینځه کي د پلار ملکیت ثابت منل کیږي، ځکه چي دا د هغه د زوی مینځه ده] وَإِنْ وَطِئَ أَبُو الْأَبِ مَعَ بَقَاءِ الْأَبِ او که نیکه د پلار په وجود کي [د خپل لمسي د مینځي سره] وطي وکړي لَمْ يَثْبُتِ النَّسَبُ نو [د نیکه سره د بچي] نسب نه ثابتیږي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لِلْجَدِّ حَالَ قِيَامِ الْأَبِ ځکه چي د پلار د وجود په حالت کي نیکه لره ولایت حاصل نه دی وَلَوْ كَانَ الْأَبُ مَيِّتًا او که پلار مړ سوی وي ثَبَتَ مِنَ الْجَدِّ نو د نیکه سره [د بچي] نسب ثابتیږي كَمَا يَثْبُتُ مِنَ الْأَبِ لکه څرنګه چي د پلار سره ثابتیږي لِظُهُورِ وِلَايَتِهِ عِنْدَ فَقْدِ الْأَبِ ځکه چي د پلار د نشتوالي [ناموجودیت] په وخت کي د نیکه ولایت ښکاره کیږي [او ثابتیږي] وَكُفْرُ الْأَبِ وَرِقُّهُ بِمَنْزِلَةِ مَوْتِهِ او د پلار کافروالي او غلام والي د هغه د مړه کېدلو په حکم کي دي لِأَنَّهُ قَاطِعٌ لِلْوِلَايَةِ ځکه چي دا [کفر او غلامي] هم د ولایت ختمونکي دي.

**اللغات:** ﴿عُقْر﴾ مهر، د جماع کولو جرمانه، د وطي کولو قیمت. ﴿اِنْعَلَقَ﴾ د انفعال ماضي ده: په حمل کي راتلل، نطفه په رحم کي قرار نیول، حمل پیدا کېدل. ﴿فَقْد﴾ د نصر مصدر دی: ورکېدل (ورکوالي، نشتوالي، معلوم والي، ناموجودیت). ﴿رِقّ﴾ غلامتوب (غلام والي).

**تشريح**: د عبارت تر وضاحت مخکي دا يو اُصول په ياد لرئ! چي د زوی مال د ضرورت پر موقع د پلار مال شمارل کيږي (يعني د ضرورت په وخت کي د زوی مال د پلار مال دی).

**مسئله**: دا ده که پلار د زوی د مينځي سره جماع وکړي او د هغه په وجه بچی پيدا سي، او بيا پلار دعویٰ وکړي چي دا زما بچی دی، نو د دې بچي نسب د پلار سره ثابتيږي، او پر پلار به د مينځي قيمت لازم وي چي هغه به پلار خپل زوی ته ورکوي، لېکن د مينځي مهر او د بچي قيمت به پر پلار لازم نه وي (دا مسئله په پورتني اُصول باندي مبني ده چي د زوی مال د ضرورت په وخت کي د پلار مال دی)، صاحب د هدايې فرمايي چي دا مسئله د کتابُ النکاح د بابُ الرقيق په آخر کي د پوره تفصيل او دلائلو سره بيان سوې ده، لهذا د راګرځولو ضرورت يې نسته.

**وانما لا يضمن الخ**: دلته فقط تاسي دا په ياد لرئ! چي پر پلار د بچي قيمت ځکه نه لازميږي، چي تر بچي پيدا کېدلو مخکي مينځه د پلار په ملکيت کي داخله سوه، او بچی ګواکي د هغه له خپلي مينځي څخه پيدا سو، نو ځکه به د بچي قيمت پر پلار لازم نه وي. (انْعَلَقَ حُرُّ الأصل: د دې جملې مطلب دا دی چي کله د دغه بچي حمل د مور په نس کي قرار ونيوی [يعني کله چي په دې بچي سره مور حامله سوه]، نو ګواکي په هغه وخت کي دا بچی آزاد وو، ځکه چي په هغه وخت کي د دې بچي مور ګواکي د پلار خپله مينځه وه).

**وان وطئ ابو الخ**: د دې حاصل دا دی چي که د پلار د ژوندن په حالت کي نيکه د لمسي د مينځي سره وطي وکړي، او له مينځي څخه بچی پيدا سي، نو د دې بچي نسب د پلار سره نه ثابتيږي، ځکه چي د پلار په ژوند کي نيکه لره هيڅ حق نه ثابتيږي، نو تر وطي او بچي پيدا کېدلو مخکي مينځه د هغه په ملکيت کي داخلېدای نه سي (لکه څرنګه چي د پلار په ملکيت کي داخلېده)، نو د هغه وطي به په خپل ملکيت کي واقع سوې نه وي (بلکي د بل چا په ملکيت کي به واقع سوې وي)، نو ځکه به د بچي نسب د نيکه سره نه ثابتيږي (دا مسئله پر دې اُصول مبني ده چي د پلار په وجود کي نيکه ته حق نه حاصليږي، لېکن کله چي پلار مړ سي، نو بيا د نيکه لپاره د لمسي په مال کي حق ثابتيږي).

**ولو كان الأب الخ**: او که پلار مړ سوی وي، نو د نيکه لپاره د لمسي په مال کي حق سته، نو په دې صورت کي به دا ويل کيږي چي تر وطي مخکي مينځه د نيکه په ملکيت کي داخله سوه، او هغه په خپل ملکيت کي وطي وکړي، نو ځکه به د بچي نسب ثابتيږي، او مينځه به اُمِ ولد جوړيږي، لېکن د مينځي قميت به پر نيکه لازم وي (لکه څرنګه چي پر پلار هم لازمېدی).

**وكفر الأب الخ**: که پلار کافر وي، يا غلام وي، نو ګواکي هغه مړ سوی دی، نو که په دې صورت کي نيکه د لمسي د مينځي سره وطي وکړي او له مينځي څخه بچی پيدا سي، نو د دې بچي نسب هم د نيکه سره ثابتيږي.

## د مشترکه مینځي د ام جوړېدلو بيان

وَإِذَا كَانَتِ الْجَارِيَةُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ او کله چي مينځه د دوو شريکانو په مينځه کي امشترکه ا وي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او [بيا] مينځه بچی راوړي فَادَّعَاهُ أَحَدُهُمَا او له دوی دواړو څخه يو شريک په بچي دعویٰ وکړي ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د هغه سره د دې بچي نسب ثابتيږي لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ النَّسَبُ فِي نِصْفِهِ لِمُصَادَفَتِهِ مِلْكَهُ، ثَبَتَ فِي الْبَاقِي ضَرُورَةَ أَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه کله چي په نيم بچي کي په دې وجه [د مُدعي شريک لپاره] نسب ثابت سو چي نيم بچی د هغه په ملکيت کي واقع دی، نو په پاته [نيم بچي] کي به هم په دې وجه نسب ثابتيږي چي نسب متجزي کېدلای نه سي لِمَا أَنَّ سَبَبَهُ لَا يَتَجَزَّأُ وَهُوَ الْعُلُوقُ ځکه چي د نسب سبب يعني علوق [حامله کېدل] نه متجزي کيږي [بلکي فقط د يوه سړي په نطفې سره ښځه حامله کيږي] إِذْ الْوَلَدُ الْوَاحِدُ لَا يَنْعَلِقُ مِنْ مَاءَيْنِ ځکه چي يو بچی له دوو نطفو څخه نه پيدا کيږي وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او دا مينځه د مُدعي شريک اُم ولد ګرځي لِأَنَّ الِاسْتِيلَادَ لَا يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُمَا ځکه چي استيلاد د طرفينو په نېز نه متجزي کيږي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَصِيرُ نَصِيبُهُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [اول] د مدعي شريک خپله حصه د هغه لپاره اُم ولد ګرځي ثُمَّ يَتَمَلَّكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ تر دې وروسته به [د قيمت په اداء کولو سره] هغه د خپل شريک د حصې مالک هم ګرځي إِذْ هُوَ قَابِلٌ لِلْمِلْكِ ځکه چي هغه حصه د ملکيت قابله ده [يعني د ملګري حصه د ملکيت قبلولو صلاحيت لري] وَيَضْمَنُ نِصْفَ عُقْرِهَا او مدعي شريک به د دې مينځي د نيم مهر ضامن وي لِأَنَّهُ وَطِئَ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً ځکه هغه د مشترکه مينځي سره وطي کړې دي إِذِ الْمِلْكُ يَثْبُتُ حُكْمًا لِلِاسْتِيلَادِ ځکه چي د اُم ولد جوړولو په وجه حکماً [په مينځه کي د هغه] ملکيت ثابتيږي فَيَتَعَقَّبُهُ الْمِلْكُ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ نو د خپل د ملګري په حصه کي به تر استيلاد وروسته [د هغه] ملکيت ثابتيږي بِخِلَافِ الْأَبِ إِذَا اسْتَوْلَدَ جَارِيَةَ ابْنِهِ په خلاف د پلار. کله چي هغه د خپل زوی مينځه اُم ولد جوړه کړي لِأَنَّ الْمِلْكَ هُنَالِكَ يَثْبُتُ شَرْطًا لِلِاسْتِيلَادِ ځکه چي هلته [د پلار په مسئله کي] ملکيت د استيلاد لپاره د شرط په توګه ثابتيږي [يعني د پلار په مسئله

کې ملکیت د اُم ولد جوړولو لپاره شرط دی] فَيَتَقَدَّمُهُ نو [هلته] به ملکیت تر استیلاد مخکې ثابتیږي [یعنې هلته به تر اُم ولد جوړولو مخکې د پلار لپاره ملکیت ثابت وي] فَصَارَ وَاطِئًا مِلْكَ نَفْسِهِ نو پلار به په خپل ملکیت کې وطي کونکي وي وَلَا يَغْرَمُ قِيمَةَ وَلَدِهَا او [مدعي شریک د مینځې د بچي نه ضامن کیږي لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځکه چې [د بچي] نسب د علوق وخت ته منسوبېدونکی ثابتیږي [یعنې ځکه چې د بچي نسب د مینځې د حامله کېدلو وطرف ته منسوب کیږي] فَلَمْ يَنْعَلِقْ شَيْءٌ مِنْهُ عَلَى مِلْكِ الشَّرِيكِ نو ځکه به د شریک په ملکیت کې د دې بچي هیڅ جزء [هم] حمل جوړ سوی نه وي [مطلب دا چې د شریک په ملکیت کې به بالکل مینځه حامله سوې نه وي، او دغه په ملکیت کې به حمل قرار نیولی نه وي].

**اللغات:** ﴿مُصَادَفَةٌ﴾ د مفاعلې مصدر دی: مخامخ کېدل، واقع کېدل، پیدا کول. ﴿لَا يَتَجَزَّى﴾ د تفعل له باب څخه د نفي صیغه ده: ټوکره، ټوکره نه کیږي، جزء، جزء او حصه، حصه نه ګرځي. ﴿عُلُوْق﴾ حامله کېدل، حمل قرار نیول، په رحم کې نطفه قرار نیول. ﴿يَنْعَلِقُ﴾ د انفعال مضارع ده: حمل جوړېدل، حمل پیدا کېدل په رحم کې نطفه قرار نیول، په حمل کې راتلل. ﴿نَصِيْب﴾ حصه، برخه. ﴿يَتَمَلَّكُ﴾ د تفعل مضارع ده: مالک جوړېدل. ﴿عُقْر﴾ مهر، د جماع جرمانه. ﴿لَا يَغْرِمُ﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صیغه ده: ضمان ورکول، تاوان وارکول (جرمانه ورکول).

**تشریح:** **مسئله**: دا ده که یوه مینځه د خالد او زید په مینځه کې مشترکه وه، او بیا د مینځې بچی پیدا سو، نو یو شریک (خالد) دعوی وکړه چې دا بچی زما له نطفې څخه دی او زما زوی دی، نو د دې بچي نسب د خالد سره ثابتیږي، او مینځه د هغه اُم ولد جوړیږي، او پر هغه به د خپل شریک (زید) نیم قیمت لازم وي. او د مینځې نیم مهر به هم پر لازم وي، لیکن پر هغه به د دې بچي هیڅ قیمت لازم نه وي؛ ځکه چې د مینځې په نیمه حصه کې خو خامخا د هغه سره د بچي نسب ثابتیږي، ځکه چې نیمه حصه د هغه په ملکیت کې ده، او کله چې په نیمه حصه کې نسب ثابت سو، نو په پاته نیمه حصه کې به هم خامخا نسب ثابتیږي، ځکه نسب نه متجزي کیږي، ځکه چې د نسب سبب یعنې حامله کېدل (او بلار بېدل) نه متجزي کیږي (یعنې له دوو نطفو څخه حمل نه پیدا کیږي، بلکې فقط له یوې نطفې څخه حمل پیدا کیږي).

**وصارت أم ولد له إلخ:** نیمه مینځه خو د مدعي شریک (خالد) ده، نو ځکه نیمه مینځه خو د هغه اُم ولد جوړیږي، او څرنګه چې د صاحبینو په نیز استیلاد (اُم ولد جوړېدل) نه متجزي کیږي، نو ځکه ټوله مینځه د هغه اُم ولد جوړیږي.

لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي اول د دې شريک (خالد) خپله حصه اُم ولد جوړېږي، تر دې وروسته به هغه د خپل ملګري (زيد) د حصې قيمت ورکوي، او تر قيمت اداء کولو وروسته هغه د خپل د ملګري د حصې هم مالک جوړېږي. (په دې هکله د امام صاحب او صاحبينو دلائل مخکي ذکر سول).

**ويضمن نصف إلخ**: فرمايي چي مُدعي شريک (خالد) به د مينځي د نيم مهر هم ضامن وي، ځکه چي د هغه نيمي وطي په خپل ملکيت کي واقع سوي دي. او نيمي د بل چا په ملکيت کي واقع سوي دي. نو ځکه به مينځي ته نيم مهر ورکوي.

**بخلاف الأب إلخ**: مخکي دا خبره ذکر سوه چي د پلار په صورت کي حکم داسي منل کيږي چي تر وطي (استيلاد) مخکي مينځه د پلار په ملکيت کي داخله سوه او تر وطي مخکي د هغه لپاره په مينځه کي ملکيت ثابت سو. نو ځکه به پر پلار مهر (عُقر) نه لازميږي. او دلته د اُم ولد جوړونکي شريک لپاره تر وطي کولو وروسته ملکيت ثابتيږي (نه تر وطي کولو مخکي). لهذا د هغه نيمي وطي د بل چا په ملکيت کي واقع سوې، نو ځکه به نيم مهر پر هغه لازم وي، د پلار او شريک په مينځ کي همدا فرق دی.

**ولا يغرم قيمة إلخ**: د دې حاصل دا دی چي دلته تر وطي کولو وروسته او تر حامله کېدلو مخکي ټوله مينځه د مدّعي شريک (خالد) په ملکيت کي راغله. لهذا بچی د هغه په خپل ملکيت پيدا سو. نو ځکه به د بچي قيمت پر مُدعي شريک لازم نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

**وَإِنِ ادَّعَيَاهُ مَعًا** او که دواړه شريکان يو ځای د دې بچي [د نسب] دعویٰ وکړي **ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُمَا** نو د دواړه سره د بچي نسب ثابتيږي **مَعْنَاهُ: إِذَا حَمَلَتْ عَلَى مِلْكِهِمَا** د دې مطلب دا دی: چي کله هغه مينځه د دوی دواړو په ملکيت کي حامله سي [يعني د دواړو په مينځ کي مشترکه وي. او په همدې وخت کي حامله سي] **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُرْجَعُ إِلَى قَوْلِ الْقَافَةِ** او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قيافه شناس [قيافه پېژندونکي] و قول ته به رجوع کيږي [چي دا بچی د کوم شريک سره مشابه دی؟ او د هغه په حق کي به فيصله کيږي] **لِأَنَّ إِثْبَاتَ النَّسَبِ مِنْ شَخْصَيْنِ مَعَ عِلْمِنَا أَنَّ الْوَلَدَ لَا يَنْخَلِقُ مِنْ مَاءَيْنِ مُتَعَذِّرٌ** ځکه چي [پر يوه ځای] د دوو خلکو سره د نسب ثابتول (سره د دې چي موږ ته معلومه ده چي بچی له دوو نطفو څخه نه پيدا کيږي) ناممکن دي [يعني بچی له د دوو

خلکو له نطفو څخه نه جوړيږي، بلکې فقط د يوه سړي له نطفې څخه جوړيږي، نو په دې وجه د دوو خلکو سره د يوه بچي نسب ثابتول ناممکن دي] فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهِ نو څکه موږ [شوافعو] پر مشابهت عمل وکړی [چې دا بچی د کوم شريک سره مشابه وي، د هغه په حق کې به فيصله کيږي، او په دې کار قيافه شناس ښه پوهيږي] وَقَدْ سُرَّ رَسُولُ اللهِ عليه السلام بِقَوْلِ الْقَائِفِ فِي أُسَامَةَ [1] او [په أحاديثو کې ذکر سوي دي] چې نبي کريم ﷺ د حضرت أسامه په باره کې د يو قيافه شناس په قول خوشحاله سو [له دې څخه معلومه سوه چې د قيافه شناس کس په قول د نسب ثبوت او تعيين کېدلای سي، ځکه چې د نبي ﷺ خوشحالېدل د همدغه خبري دليل دی] وَلَنَا: كِتَابُ عُمَرَ إِلَى شُرَيْحٍ فِي هَذِهِ الْحَادِثَةِ او زموږ دليل د حضرت عمر رضي الله عنه هغه خط دی کوم چې ده د همداسې قصې [معاملې] په هکله حضرت شريح ته وليکی "لَبَّسَا فَلَبِّسْ عَلَيْهِمَا" [او په هغه خط کې يې دا حکم وکړی چې] دواړو شريکانو معامله سره مبهمه [او شکمنه] کړه لهذا ته هم پر دوی حکم مبهم [اومخلوط] کړه! وَلَوْ بَيَّنَا لَبُيِّنَ لَهُمَا او که دوی معامله ښکاره بيان کړي وای نو [ستا له طرفه] به دوی ته ښکاره حکم بيان سوي وای [يعني بيا به تا دوی په مينځ کې واضحه او څرګنده فيصله کولای] هُوَ ابْنُهُمَا هغه [بچی] به د دوی دواړو زوی وي يَرِثُهُمَا [او] هغه [بچی] به د دې دواړو [شريکانو] وارث وي وَيَرِثَانِهِ او دوی دواړه به د هغه وارثان وي وَهُوَ لِلْبَاقِي مِنْهُمَا او بچی [او د هغه ميراث] به په دوی دواړو کې د هغه يوه لپاره کوم چې ژوندی پاته سي وَكَانَ ذَلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ او دا فيصله د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په حضور کې صادره سوه وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مِثْلُ ذَلِكَ او له حضرت علي رضي الله عنه څخه هم داسې [فيصله] نقل سوې ده. ولأنهما استويا.....: زموږ عقلي دليل او پاته عبارت به له تشريح څخه وروسته جلا ذکر سي.

**اللغات:** ﴿قَافَة﴾ جمع د "قَائِفٌ" ده: قيافه شناس (قيافه دان)، څيره پېژاند، ښه او جونه پېژندونکی (هغه ماهر سړی چې د انسان شکل او مخ ته په کتلو سره د انسان کردار او صفات معلوموي) (هغه سړی چې د انسان له خد او خال څخه او د انسان له کړه وړه څخه د هغه په ښو او بدو صفاتو خبر لري)، ﴿مُتَعَذِّر﴾ د تفعل اسم مفعول دی: ناممکن، محال، ﴿سُرَّ﴾ د نصر ماضي مجهوله

---

[1] تخريج: أخرجه السنة، رواه البخاري في باب:۲۳، وابو داؤد، رقم الحديث:۲۲۶۷.

ده: خوشحالېدل (خوشالېدل)، ﴿لَبَّسَا﴾ د تفعيل له باب څخه د تثنيه مذکر غائب ماضي معلوم صيغه ده: تلبيس کول، حقيقت پټول (خپل عيب له نورو پټول)، په يوه معامله کي ابهام کول (قصه او خبري سره ګډول)، ﴿لَبُيِّنَ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي مجهول صيغه ده: بيانول، ښکاره کول (ښکاره کول)، ﴿مَحْضَر﴾ حضور، موجودوالي (موجوديت، موجودګي).

**تشريح: وقال الشافعي إلخ:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله د مينځي د بچي په باره کي دواړه شريکان دعوىٰ وکړي، او داسي هيڅ صورت نه وي چي يوه شريک ته ترجيح ورکول سي، نو په دې صورت کي به د داسي قيافه شناس سړي په قول يوه شريک ته ترجيح ورکول چي هغه د بچي له شکل او علاماتو څخه دا معلومه کړي چي دا بچی د دې شريک سره مشابه دی، پر همدې بناء نبي کريم ﷺ د حضرت اسامه بن زيد په حق کي د يو قيافه شناس په قول خوشاله سوی وو.

**قصه:** د حضرت اُسامه د نسب په باره کي به کفارو بد ګوماني کول چي هغه د زيد زوی نه دی، د هغه قصه په صحاح سته کي د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حواله سره داسي ذکر سوې ده "قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ ذَاتَ يَوْمٍ وَهُوَ مَسْرُورٌ. فَقَالَ: "يَا عَائِشَةُ، أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ دَخَلَ عَلَيَّ فَرَأَى أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَزَيْدًا وَعَلَيْهِمَا قَطِيفَةٌ. قَدْ غَطَّيَا رُءُوسَهُمَا وَبَدَتْ أَقْدَامُهُمَا. فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ الأَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ" (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چي يوه ورځ نبي کريم ﷺ خوشحاله (او په مُسکا) کور ته راغلی او ويې فرمايل: چي ما ته مجزز مدلجي (قيافه شناس) راغلی، او اُسامه بن زيد او زيد يې دواړه بيده وليدل، او پر هغو يوه شړې (هواره) وه، او هغو خپل سرونه پټ کړي وو، او د هغو پښې ښکاره وې، نو مجزز مدلجي وويل: چي دا پښې خو بعضي له بعضو څخه (پيدا سوي) دي [يعني دا دوه کسان سره پلار او زوی دي])، امام ابو داؤد تر دې حديث لاندي ليکلي دي چي د زيد رنګ سپين وو او د اُسامه رنګ تور وو.

په دې قصه کي د نبي ﷺ په خوشحالېدلو سره امام شافعي پر دې خبره دليل نيسي چي د قيافه شناس قول ته به رجوع کيږي.

**ولنا إلخ:** زموږ دليل دا دی چي د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کي د پورتنۍ مسئلې په څېر قصه پېښه سوه (يعني دوو شريکانو د يوې مشترکي مينځي په بچي دعوىٰ وکړه)، نو حضرت عمر رضي الله عنه د قاضي شريح په نامه خط واستوی چي د هغه مضمون داسي وو "لَبَّسَا فَلُبِّسَ عَلَيْهِمَا...إلخ"، مطلب يې دا دی چي هغه دواړو خلکو حقيقي حال پټ کړی دی، لهذا ته هم پر دوی حکم مبهم او پټ وساته، او

که چيري دوی حقيقي حال بيان کړی واي، نو تا به دوی ته واضح حکم بيان کړي وای (لېکن کله چي دوی حقيقي حال ښکاره کړی نه دی) نو اوس به هغه بچی د دوی دواړو زوی وي. او د دواړو وارث به وي. او دوی به د بچي وارثان وي. او د هغه بچي تر مرګ وروسته چي په دې دواړو شريکانو کي کوم يو ژوندی پاته سي، هغه به د بچي د ميراث مستحق وي. او کوم شريک چي مړ سي. د هغه وارثان به د دې بچي د ميراث مستحق نه وي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د حضرت عمر ﷺ دا فيصله او خط د صحابه په حضور کي صادر سوی وو. او هيڅ صحابي هم پر دې نکير کړی نه وو. لهذا دا د إجماع په درجه کي سو. او له حضرت علي ﷺ څخه هم داسي فيصله نقل سوې ده. چي هغه د دې خبري تائيد کوي چي داسي بچی به د دواړو شريکانو زوی وي. او په دې هکله به قيافه شناس ته رجوع نه کيږي.

## ﴿زموږ عقلي دليل﴾

وَلِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ او ځکه چي د استحقاق په سبب کي دواړه [شريکان] برابر دي [يعني په ملکيت او دعوىٰ کي دواړه سره برابر دي، يعني دواړه په دې مينځه کي ملکيت لري. او دواړو دعوىٰ کړې ده] فَيَسْتَوِيَانِ فِيهِ نو ځکه به په استحقاق [مستحق کېدلو] کي هم دواړه سره برابر وي وَالنَّسَبُ وَإِنْ كَانَ لَا يَتَجَزَّأُ او نسب که څه هم نه متجزي کيږي [يعني که څه هم د يوه بچي نسب د دوو جلا، جلا خلکو سره نه ثابتيږي] وَلَكِنْ تَتَعَلَّقُ بِهِ أَحْكَامٌ مُتَجَزِّئَةٌ لېکن [بيا هم] د نسب سره داسي احکام متعلق کيږي چي په هغوی کي تجزی کېدای سي [لکه ميراث او داسي نور] فَمَا يَقْبَلُ التَّجْزِئَةَ يَثْبُتُ فِي حَقِّهِمَا عَلَى التَّجْزِئَةِ نو کوم حکم چي تجزی قبلوي هغه به د دواړو [شريکانو] په حق کي په تجزی سره ثابتيږي [يعني هغه به د دواړو شريکانو په حق کي متجزي کيږي، او هر شريک ته به په هغه حکم کي حصه ورکول کيږي] وَمَا لَا يَقْبَلُهَا يَثْبُتُ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا كَأَنْ لَيْسَ مَعَهُ غَيْرُهُ او کوم حکم چي تجزی نه قبلوي [لکه نسب او داسي نور] هغه به د هر شريک حق کي په بشپړه توګه داسي ثابتيږي چي ګواکي د هر يوه سره [په هغه کي ابل هيڅوک شريک نسته [ځکه چي په استحقاق کي دواړه سره برابر دي] إِلَّا إِذَا كَانَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ أَبًا لِلْآخَرِ خو دا چي کله يو شريک د بل شريک پلار وي [يعني دواړه شرکان په خپل مينځ کي سره پلار او زوی وي] أَوْ كَانَ أَحَدُهُمَا مُسْلِمًا وَالْآخَرُ ذِمِّيًّا يا يو مسلمان وي او بل ذمي وي [نو په دې

صورت کې به پلار او مسلمان ته ترجيح ورکول کيږي او بچي به د هغه شمارل کيږي] لِوُجُودِ الْمُرَجِّحِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ وَهُوَ الْإِسْلَامُ ځکه چې د مسلمان په حق کې ترجيح ورکونکې دليل ستته، او هغه اسلام دی وَفِي حَقِّ الْأَبِ وَهُوَ مَا لَهُ مِنَ الْحَقِّ فِي نَصِيبِ الِابْنِ او د پلار په حق کې [اهم ترجيح ورکونکې دليل ستته] او هغه دا چې د زوی په حصه [او مال] کې د پلار حق ستته وَسُرُورُ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فِيمَا رُوِيَ لِأَنَّ الْكُفَّارَ كَانُوا يَطْعَنُونَ فِي نَسَبِ أُسَامَةَ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په روايت سوي حديث کې د نبي ﷺ د خوشحالېدلو وجه دا وه چې کفارو به د حضرت أسامه رضي الله عنه د نسب په باره کې عيب لګوی [او هغه ته به يې د خپل نسب د شکمن کېدلو پېغور او تانه ورکول] وَكَانَ قَوْلُ الْقَائِفِ مُقْطِعًا لِطَعْنِهِمْ او د قيافه شناس [مجزز مدلجي] قول د هغو د عيب [او پېغور] لپاره غوڅونکی [او ختمونکی] وو فَسُرَّ بِهِ نو په دې وجه نبي ﷺ په هغه خوشحاله سو [خلاصه د کلام دا سوه چې که چيري دواړه شريکان يو ځای دعویٰ وکړي (چې دا زما بچی دی)، او د دواړو په حق کې داسي خبره نه وي چې د هغه په وجه يوه شريک ته ترجيح ورکول سي، نو همدا فيصله به کيږي چې بچی به د دواړو زوی شمارل کيږي] وَكَانَتِ الْأَمَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُمَا او [د هغه بچي] مور به د دوی دواړو اُم ولد وي لِصِحَّةِ دَعْوَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِهِ فِي الْوَلَدِ ځکه چې د [بچي په هکله] د هر شريک دعویٰ په خپله حصه کې صحيح ده فَيَصِيرُ نَصِيبُهُ مِنْهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ تَبَعًا لِوَلَدِهَا لهذا له مينځې څخه به د هر شريک حصه د هغه لپاره اُم ولد وي د بچي په متابعت کې [يعني د دواړو دعویٰ صحيح ده، نو ځکه به مور د بچي تابع کيږي او د دواړو شريکانو اُم ولد به جوړيږي] وَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ الْعُقْرِ او په دوی دواړو کې به پر هر شريک نيم عقر واجب وي قِصَاصًا بِمَا لَهُ عَلَى الْآخَرِ دې لپاره چې دا [نصف عقر] د هغه شي بدل سي کوم چې د يوه شريک پر هغه بل واجب دی ايعني د هر يوه نصف عقر به د هغه حصې او حق په مقابل کې راسي کوم چې په مينځه کې يوه او بل ته حاصل دی، (خو غرنګه چې دلته پر دواړو نصف عقر واجب دی، نو ځکه به دواړه مقاصه سره کوي [يعني يو شريک به بل شريک ته وايي چې زما کوم نصف عقر چې پر تا واجب دی، هغه زما په نصف عقر کې را څخه قبول کړه!]، نو په دې توګه به پر دواړو هيڅ شی واجب نه سي)] وَيَرِثُ الِابْنُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِيرَاثَ ابْنٍ كَامِلٍ او هغه بچی به په دوی کې له هر شريک څخه د کامل زوی په څير ميراث حاصلوي [يعني بچی به د هر شريک کامل

وارث جوړېږي] لِأَنَّهُ أَقَرَّ لَهُ بِمِيرَاثِهِ كُلِّهِ ځکه چې هر شريک د بچي لپاره د ټوله ميراث اقرار کړی دی: وَهُوَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ او دا اقرار د هر شريک په حق کې حجت دی وَيَرِثَانِ مِنْهُ مِيرَاثَ أَبٍ وَاحِدٍ او دا دواړه شريکان به له هغه بچي څخه د يوه پلار په څير ميراث حاصلوي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي السَّبَبِ ځکه چې دواړه په سبب کې سره برابر دي [يعني دواړو شريکانو [پلارانو] ته به د زوی په مال کې د يوه پلار د ميراث په څير ميراث حاصلېږي، او د يوه پلار ميراث به د دواړو په مينځ کې مشترک وي، ځکه چې دواړه په دعوىٰ کې سره برابر دي (يعني هواړو دعوىٰ کړې ده)] كَمَا إِذَا أَقَامَا الْبَيِّنَةَ لکه په هغه صورت کې چې کله دواړه شريکان ګواهان پيش کړي [نو په دې صورت کې به هم دواړو ته له بچي څخه فقط د يوه پلار په څير ميراث حاصلېږي او فقط د يوه پلار ميراث به د دواړو په مينځ کې متشرک وي].

**اللغات:** ﴿مُتَجَزِّئَةٌ﴾ د تفعّل اسمِ فاعل دی: متجزي کېدونکی (جزء جزء کېدونکی)، ټوکړه ټوکړه کېدونکی، حصه حصه کېدونکی، ﴿كَمَلًا﴾ په بشپړه توګه (کاملاً)، ﴿سُرُورٌ﴾ خوشحالي (خوشالي).

**تشريح:** عبارت په ترجمه کې تشريح سو.

## د خپل مکاتب مينځه اُمِ ولد جوړول

وَإِذَا وَطِئَ الْمَوْلَىٰ جَارِيَةَ مُكَاتَبِهِ او کله چې مالک د خپل مکاتب د مينځې سره وطي وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او [بيا] مينځه بچی وزېږوي فَادَّعَاهُ او مالک په هغه بچي دعوىٰ وکړي فَإِنْ صَدَّقَهُ الْمُكَاتَبُ نو که مکاتب د هغه تصديق وکړي ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ نو د مالک سره د هغه بچي نسب ثابتېږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ تَصْدِيقُهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې د مکاتب د تصديق اعتبار به نه کېږي اعْتِبَارًا بِالْأَبِ يَدَّعِي وَلَدَ جَارِيَةِ ابْنِهِ په هغه پلار باندې په قياس کولو سره کوم چې د خپل زوی په مينځې دعوىٰ وکړي وَوَجْهُ الظَّاهِرِ وَهُوَ الْفَرْقُ: أَنَّ الْمَوْلَىٰ لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِي أَكْسَابِ مُكَاتَبِهِ د ظاهر روايت دليل [کوم چې د مکاتب او د زوی د مينځې په مينځ کې د فرق دليل هم دی] دا دی: چې مالک د خپل مکاتب په ګټو [او مال] کې هيڅ ملکيت نه لري حَتَّىٰ لَا يَتَمَلَّكُهُ همدا وجه ده چې مالک د خپل مکاتب د ګټې [او مال] مالک جوړېدلای نه سي وَالْأَبُ يَمْلِكُ

تَمَلُّكَهُ او پلار د زوی د کټي [او مال] د مالک جوړېدلو ملکيت لري [يعني پلار د زوی د مال مالک جوړېدلای سي] فَلَا مُعْتَبَرَ بِتَصْدِيقِ الِابْنِ نو ځکه به [د پلار په حق کي] د زوی تصديق لره هيڅ اعتبار نه وي وَعَلَيْهِ عُقْرُهَا او پر مالک به د دې مينځي عُقر واجب وي لِأَنَّهُ لَا يَتَقَدَّمُهُ الْمِلْكُ ځکه چي د مالک له وطي څخه ملکيت مخکي نه دی [يعني تر وطي مخکي مالک د مينځي مالک جوړ سوی نه دی] لِأَنَّ مَا لَهُ مِنَ الْحَقِّ كَافٍ لِصِحَّةِ الِاسْتِيلَادِ ځکه مالک لره چي کوم حق حاصل دی هغه د اُمِ ولد جوړولو د صحيح کېدلو لپاره کافي دی لِمَا نَذْكُرُهُ د هغه دليل په وجه کوم چي به موږ [وروسته] ذکر کړو وَقِيمَةُ وَلَدِهَا او [پر مالک] د دې مينځي د بچي قيمت [هم واجب دی] لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمَغْرُورِ ځکه چي مالک د دوکه سوي سړي په معنیٰ سره دی حَيْثُ إِنَّهُ اعْتَمَدَ دَلِيلًا وَهُوَ أَنَّهُ كَسْبُ كَسْبِهِ ځکه چي هغه پر يو دليل اعتبار وکړی او هغه دا چي د خپل مکاتب ګټه [او مال] يې حاصل کړی [او په هغه کي يې تصرف وکړی، يعني د مکاتب مال يې خپل مال وګڼی] فَلَمْ يَرْضَ بِرِقِّهِ لهذا هغه د دې بچي په غلام جوړولو راضي نه سو فَيَكُونُ حُرًّا بِالْقِيمَةِ ثَابِتَ النَّسَبِ مِنْهُ نو ځکه به دا بچی د قيمت په عوض کي آزادېږي او د مالک سره به يې نسب ثابتيږي وَلَا تَصِيرُ الْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدِهِ او دا مينځه د مالک اُمِ ولد نه ګرځي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لَهُ فِيهَا حَقِيقَةً ځکه چي په هغې کي حقيقتاً د مالک ملکيت نسته كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُورِ لکه څرنګه چي د مغرور [دوکه سوي سړي] په بچي کي [مينځه د مالک اُمِ ولد نه جوړېږي] وَإِنْ كَذَّبَهُ الْمُكَاتَبُ فِي النَّسَبِ او که مکاتب د نسب په هکله د خپل مالک تکذيب وکړي لَمْ يَثْبُتْ نو [د مالک سره د بچي] نسب نه ثابتيږي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِهِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي د مکاتب تصديق ضروري دی فَلَوْ مَلَكَهُ يَوْمًا او که مالک يو ورځ د دې بچي مالک جوړ سي ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د مالک سره د هغه نسب ثابتيږي لِقِيَامِ الْمُوجِبِ وَزَوَالِ حَقِّ الْمُكَاتَبِ ځکه چي سبب او د مکاتب حق زائلېدل قائم [او موجود] سو إِذْ هُوَ الْمَانِعُ ځکه چي همدا شی مانع وو.

**اللغات:** ﴿صَدَّقَهُ﴾ د تفعيل ماضي ده: تصديق کول، ریښتونی ګڼل (څوک په خپل قول کي ریښتونی شمارل، دچا سره خبره منل)، ﴿أَكْسَاب﴾ جمع د كَسْبٌ ده: ګټه (مراد ځني ګټل سوی مال دئ)، ﴿لَا يَتَمَلَّكُهُ﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي معلوم صيغه ده: يو څوک د يو شي مالک جوړېدل، مالک کېدل. ﴿عُقْرٌ﴾ مهر، د وطي او جماع جرمانه (د وطي او جماع قيمت).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک د خپل مکاتب د مینځي سره وطي وکړي، او له مینځي څخه بچی پیدا سي، او مالک په هغه بچي دعویٰ وکړي، نو محض په دعویٰ سره هغه بچی د مالک سره ثابتُ النسب نه ګرځي، ها! که مکاتب د هغه تصديق وکړي چي دا زما د مالک بچی دی، نو بیا د مالک سره د هغه بچي نسب ثابتیږي، همدا د جمهورو فقهاؤ قول دی او همدا ظاهر روایت دی. د دې په خلاف له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په غير ظاهر روايت کي دا قول نقل سوي دئ چي د مکاتب له تصديق څخه بغير محض د مالک په دعویٰ سره هغه بچی د مالک سره ثابتُ النسب ګرځي، او د مکاتب تصديق ته هيڅ ضرورت نسته، لکه کله چي يو سړی چي د خپل زوی د مینځي په بچي دعویٰ وکړي، نو محض په دعویٰ سر هغه بچی د زوی د پلار سره ثابتُ النسب ګرځي او د زوی تصديق ته هيڅ ضرورت نسته، همداسي به دلته هم دا حکم وي.

**وجه ظاهر الرواية إلخ:** د ظاهر روایت دلیل دا دی چي مالک ته د خپل مکاتب په ګټل سوي مال کي د تصرف حق نسته، همدا وجه ده چي د ضرورت په وخت کي مالک (مولیٰ) د خپل مکاتب د ګټل سوي مال مالک جوړېدلای نه سي، د دې په خلاف پلار ته د "أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيْكَ" په حديث سره د خپل بچي په مال کي د تصرف کولو بشپړ حق سته، او پلار د ضرورت په وخت کي د خپل زوی د مال مالک هم جوړېدلای سي، نو په دې وجه د پلار په حق کي د زوی د تصديق هيڅ ضرورت نسته، لېکن د مالک په حق کي د مکاتب تصديق ضروري دی، او همدا د مکاتب د مینځي او د زوی د مینځي او د هغې د بچي په مینځ کي د فرق دليل هم دی.

**وعليه عقرها إلخ:** څرنګه چي دلته مالک د مینځي مالک جوړ سوی نه دی، نو ځکه به پر هغه عقر (د وطي قيمت) لازم وي.

**وقيمة ولدها إلخ**: د بل چا د مينځې سره په دې ګومان وطي کول چې دا زما مينځه ده. داسې مينځې ته د مغرور مينځه وايي (يعني د دوکه سوي سړي مينځه، ځکه چې هغه په خپل ګومان سره دوکه سو)، او د مغرور (دوکه سوي) سړي حکم دا دی چې هغه به مينځې ته عقر ورکوي، او د بچي قيمت به هم اداء کوي، او دلته هم مالک د مغرور په درجه کې دی چې د مکاتب مينځه يې خپله مينځه ګڼلې ده او پر يوه دليل يعني د خپل مکاتب پر مال يې اعتماد کړی دی او په هغه کې يې تصرف کړی دی او په بچي کې هغه ته لږ غوندې ملکيت هم حاصل نه دی، نو ځکه به هغه د دې بچي قيمت اداء کوي. تر قيمت اداء کولو وروسته بچی آزادېږي، او د مالک سره د هغه نسب ثابتېږي.

**ولا تصير الجارية إلخ**: ځرنګه چې په مينځه کې د مالک هيڅ ملکيت نسته، نو ځکه دا مينځه د هغه أمِ ولد نه جوړېږي، لکه ځرنګه چې د "ولدُ المغرور" په صورت کې مينځه د مالک أمِ ولد نه جوړېږي.

**وإن كذبه المكاتب إلخ**: او که په پورتنې مسئله کې مکاتب د خپل مالک انکار وکړي (چې دا ستا بچی نه دی)، نو د بچي نسب د مالک سره نه ثابتېږي، ځکه چې دا مينځه د مکاتب ده. او د هغه تصديق ضروري دی، او که هغه انکار وکړي، نو نسب نه ثابتېږي (او بل دا چې د مکاتب د انکار کولو په وجه مينځه د مالک فراش جوړه نه سوه، نو په دې وجه به هم نسب نه ثابتېږي).

**فلو ملكه إلخ**: د مکاتب د انکار کولو په وجه خو د بچي نسب د مالک سره نه ثابتېدی، لېکن که مالک (مولیٰ) دِ هغه بچي مالک جوړ سو، نو بيا د هغه نسب ثابتېږي، ځکه چې اوس د نسب ثابتېدلو مُوجِب (يعني د مالک اقرار) موجود سو. او د مکاتب چې کوم حق وو (يعني د بچي پر مور د مکاتب ملکيت) هغه هم زائل سو، نو اوس هيڅ خنډ او ممانعت پاته نه سو او لاره بالکل صفا سوه. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْأَيْمَانِ

(دا) کتاب د قسمونو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې د نکاح، طلاق، او عتاق مسئلې بیان سوې چې په هغوی کې ځینې وخت د قسم او یمین ضرورت هم پیښیږي، او څرنګه چې دا ضرورت بالکل په آخر او انتهاء کې پیښیږي، نو ځکه صاحب د کتاب له ټولو بابونو څخه وروسته اوس "کتابُ الأیْمَان" بیانوي.

**د یمین لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د یمین لغوي معنیٰ ده: قوت، طاقت، په سپېڅلي قرآن کې ذکر سوې دي "لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ"، په دې آیت کې له "يَمِيْن" څخه مراد قوت دی.

د یمین شرعي او اصطلاحي معنیٰ ده: "عَقْدٌ يَقْوِىْ بِهٖ عَزْمُ الْحَالِفِ عَلَى الْفِعْلِ أَوِ التَّرْكِ" (یعني قسم یو داسې عقد دی چې د هغه په ذریعه د یو کار پر کولو یا نه کولو د قسم کونکي (قسم اخیستونکي) سړي عزم مضبوطیږي).

یمین (قسم) پر درې قسمه دی: ① یمین غموس، ② یمینِ منعقده، ③ یمینِ لغو، د ټولو تفصیل به په کتاب کې ذکر سي.

## د قسم (یمین) اقسام او د یمین غموس تعریف

قَالَ: **الْأَيْمَانُ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَضْرُبٍ: الْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ وَيَمِيْنٌ مُنْعَقِدَةٌ وَيَمِيْنُ لَغْوٍ** فرمایي: چې قسمونه پر درې قسمه دي: ① یمینِ غموس ② یمینِ منعقده ③ یمینِ لغو **فَالْغَمُوْسُ هُوَ الْحَلْفُ عَلٰى أَمْرٍ مَاضٍ يَتَعَمَّدُ الْكَذِبَ فِيْهِ** نو غموس پر یو تېر سوي کار قسم اخیستل [قسم کول] دي چې په هغه کې انسان قصداً دروغ وایي [یعني دغموس معنیٰ ده: په تېر سوي وخت کې قصداً پر یو کار د دروغو قسم اخیستل] **فَهٰذِهِ الْيَمِيْنُ يَأْثَمُ فِيْهَا صَاحِبُهَا** په دې قسم کې قسم اخیستونکی ګناهکاره کیږي **لِقَوْلِهٖ** عليه السلام: **مَنْ حَلَفَ**[1] **كَاذِبًا أَدْخَلَهُ اللهُ النَّارَ** ځکه چې نبي ﷺ فرمایلي دي: څوک چې د دواغو قسم

---

[1] تخریج: أخرجه مسلم، کتاب الأیمان، رقم الحدیث: ٢٢٠ و ٣٢٤٢.

واخلي، الله تعالیٰ به دوږخ ته هغه داخل كړي وَلَا كَفَّارَةَ فِيهَا إِلَّا التَّوْبَةَ وَالِاسْتِغْفَارَ او په دې قسم [يمينِ غموس] كې كفاره نسته، ما سوا له توبې او استغفار څخه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِيهَا الْكَفَّارَةُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دې كې كفاره سته لِأَنَّهَا شُرِعَتْ لِرَفْعِ ذَنْبٍ هَتْكِ حُرْمَةِ اسْمِ اللهِ تَعَالَى ځكه چې كفاره د هغه ګناه د ختمولو لپاره مشروع سوې ده په كومه ګناه سره چې د الله د نامه بې حُرمتي وسي وَقَدْ تَحَقَّقَ بِالِاسْتِشْهَادِ بِاللهِ كَاذِبًا او د الله په نامه سره په درواغه [او په ناحقه] ګواهي وركولو كې [هم] دا ګناه ثابتيږي فَأَشْبَهَ الْمَعْقُودَةَ نو دا د يمينِ منعقده سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّهَا كَبِيرَةٌ مَحْضَةٌ زموږ دليل دا دى: چې يمينِ غموس محض يوه كبيره ګناه ده وَالْكَفَّارَةُ عِبَادَةٌ تَتَأَدَّى بِالصَّوْمِ او كفاره داسې عبادت دى كوم چې د روژې په ذريعه اداء كيږي وَيُشْتَرَطُ فِيهَا النِّيَّةُ او په هغه كې نيت [هم] شرط وي فَلَا تُنَاطُ بِهَا لهذا د كبيره ګناه سره به كفاره نه متعلق كيږي بِخِلَافِ الْمَعْقُودَةِ په خلاف د يمينِ منعقده لِأَنَّهَا مُبَاحَةٌ ځكه چې هغه مباح [روا] دى وَلَوْ كَانَ فِيهَا ذَنْبٌ فَهُوَ مُتَأَخِّرٌ مُتَعَلِّقٌ بِاخْتِيَارٍ مُبْتَدَإٍ او كه څه هم په هغه كې ګناه سته نو هغه [تر قسم] وروسته ده او د نوي اختيار سره متعلق ده وَمَا فِي الْغَمُوسِ مُلَازِمٌ او په يمينِ غموس كې ګناه [د قسم سره] لازم ده [يعني په يمينِ غموس كې په هغه ګړي انسان ګناهګاره كيږي] فَيَمْتَنِعُ الْإِلْحَاقُ نو ځكه به يمينِ غموس د يمينِ منعقده سره لاحقول [او يو پر بل قياسول] صحيح نه وي.

**اللغات:** ﴿الأَيْمَان﴾ جمع د يَمِينٌ ده: قسم، سوګند، لوړه. ﴿أَضْرُب﴾ جمع د ضَرْبٌ ده: قسم، نوع. ﴿يَتَعَمَّد﴾ د تفعّل مضارع ده: قصداً يو كار كول (په قصده يو كار كول). ﴿هَتَكَ﴾ د ضرب ماضي ده: سپكاوى كول (توهين)، بې حرمتي او ناقدري كول. ﴿حُرْمَة﴾ احترام. ﴿إِسْتِشْهَاد﴾ د استفعال مصدر دى: ګواه جوړول، ګواه دروړل. ﴿لَا تُنَاطُ﴾ د فتح له باب څخه د نفي صيغه ده: متعلق كېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چې قسم (يمين) پر درې قسمه دى چې په هغوى كې اول قسم غموس دى. د غموس تعريف دا دى چې پر يو تېر سوي كار يا خبري قسم وخوړل سي، مثلاً يوه سړي پرون ډوډۍ خوړلې وي، لېكن هغه درواغ ووايي او قسم واخلي چې "قسم په خداى ما پرون ډوډۍ خوړلې نه ده"، نو دې ته يمين غموس (د غموس قسم وايي)، غموس ډوبېدلو او غرقېدلو ته

وايي، څرنګه چې دا قسم خوړونکی هم په ګناهونو کې غرقيږي، نو ځکه هغه ته يمينِ غموس وايي، په حديث مبارک کې ذکر سوي دي "چې څوک د درواغو قسم واخلي، الله تعالیٰ به هغه دوږخ ته داخل کړي"، او په دوږخ کې فقط ګناهګار کس داخليږي، نو معلوه سوه چې د يمينِ غموس اخيستونکی ګناهګار دی، او د دې ګناه د ختمولو لاره توبه او استغفار دی. او زموږ په نېز په دې قسم کې کفاره نسته، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په يمينِ غموس کې هم کفاره واجب ده.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې کفاره د يو داسې ګناه د لېرې کولو لپاره مشروع سوې ده چې په هغه ګناه سره د الله د نامه بې حُرمتي او بې عزتي کيږي، او ښکاره خبره ده چې د الله په نامه سره د درواغو قسم خوړل دا د الله د نامه بې حُرمتي ده، نو د دې بې حُرمتی د ختمولو لپاره به هم کفاره مشروع وي. او په دې حواله سره يمينِ غموس د يمينِ منعقده سره مشابه دی، يعني څرنګه چې په يمينِ منعقده کې کفاره مشروع ده، همداسې به په يمينِ غموس کې هم کفاره مشروع وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې يمينِ غموس يوه کبيره ګناه ده، او په دې کې کفاره نه سته، لکه څرنګه چې په حديث کې ذکر سوي دي "خَمْسٌ مِنَ الْكَبَائِرِ لَا كَفَّارَةَ فِيهِنَّ..." چې پنځه داسې کبيره ګناهونه دي چې په هغوی کې کفاره نسته، او په هغه پنځو کې نبي ﷺ يمينِ غموس هم شمارلی دی، له دې حديث څخه معلومه سوه چې په يمينِ غموس کې کفاره نسته. او بل دا چې کفاره يو داسې عبادت دی کوم چې په روژو سره اداء کيږي، او په هغه کې نيت شرط دی، حالانکې کبيره ګناه عقوبت دی. او د عقوبت لپاره نيت شرط نه وي، نو په دې حواله سره به هم په يمينِ غموس کې کفاره واجب نه وي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس صحيح نه دی (چې هغه يمينِ غموس پر يمينِ منعقده قياسوي). ځکه چې يمينِ منعقده مباح او روا دی، او په يمينِ منعقده کې چې کومه ګناه ده، هغه سمدستي د حالف (قسم اخيستونکي) سره نه لازميږي، بلکې تر حانث کېدلو وروسته لازميږي (يعني که چيرې حالف هغه کار نه وکړي، نو ګناهګاره کيږي، يعني ګواکې حالف په خپل اختيار سره ځان ګناهګاره کوي، نو په دې وجه پر هغه کفاره واجبيږي)، او په يمينِ غموس کې ګناه تر قسم نه وروسته کيږي (بلکې د درواغو په قسم اخيستلو سره سمدستي حالف ګناهګاره کيږي)، نو ځکه يمينِ غموس د يمينِ منعقده سره يو ځای کول او کفاره واجبول صحيح نه دي.

## د يمينِ منعقده او يمينِ لغو بيان

وَالْمُنْعَقِدَةُ مَا يَحْلِفُ عَلٰى أَمْرٍ فِي الْمُسْتَقْبَلِ أَنْ يَفْعَلَهُ أَوْ لَا يَفْعَلَهُ او منعقده هغه قسم دی چې انسان يې په راتلونکې زمانه کې د يو کار پر کولو يا نه کولو واخلي وَإِذَا حَنِثَ فِي ذٰلِكَ او کله چې [قسم اخيستونکی] په دې قسم کې حانث سي لَزِمَتْهُ الْكَفَّارَةُ نو پر هغه به کفاره لازم وي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمُ الْأَيْمَانَ [المائدة: ۷۹] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: نه نيسي الله تعالیٰ تاسي په لغو قسمونو سره، لېکن الله تعالیٰ تاسي نيسي په [ماتولو سره] د هغه قسمونو کوم چې تاسي مضبوط کړي وي [يا يې معنیٰ دا ده: چې الله تعالی تاسي نيسي د هغه عهد په ماتولو سره چې تاسي پر هغه کلک قسمونه کړي وي] وَهُوَ مَا ذَكَرْنَا او د دې مطلب هغه دی کوم چې موږ بيان کړی [يعني د آيت له آخري حصې څخه همدغه يمينِ منعقده مراد دی چې د هغه تعريف اوس موږ ذکر کړی] وَالْيَمِينُ اللَّغْوُ أَنْ يَحْلِفَ عَلٰى أَمْرٍ مَاضٍ وَهُوَ يَظُنُّ أَنَّهُ كَمَا قَالَ وَالْأَمْرُ بِخِلَافِهِ او يمينِ لغو دا دی چې انسان پر يو تېر سوي کار قسم واخلي او هغه دا ګومان کوي چې معامله [او قصه] همداسي ده لکه څرنګه چې ما وويل، حالانکې معامله د هغه په خلاف وي فَهٰذِهِ الْيَمِينُ نَرْجُو أَنْ لَا يُؤَاخِذَ اللهُ بِهِ صَاحِبَهَا نو د دې قسم په هکله موږ ته دا اُميد سته چې په دې سره به الله تعالیٰ [قسم اخيستونکی] انسان نه ونيسي [يعني د الله له ذات څخه دا اُميد سته چې الله به پر داسي قسم د حالف مؤاخذه نه وکړي] وَمِنَ اللَّغْوِ أَنْ يَقُولَ: وَاللهِ إِنَّهُ لَزَيْدٌ وَهُوَ يَظُنُّهُ زَيْدًا وَإِنَّمَا هُوَ عَمْرٌو او [دا صورت هم] له يمينِ لغو څخه دی چې انسان ووايي: په خدای قسم چې دا زيد دی او هغه دا ګومان کوي چې دا زيد دی، حالانکې هغه عمر وي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالٰى: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ او اصل په دې باره کې د الله تعالیٰ دا آيت دی: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ...(الخ) إِلَّا أَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالرَّجَاءِ لِلِاخْتِلَافِ فِي تَفْسِيرِهِ خو امام محمد رَحِمَهُ الله دا ځکه پر اُميد معلق کړی دی چې د دې په تفسير کې [د علماؤ] اختلاف سته.

**اللغات:** ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمْ﴾ د مفاعلې مضارع ده: نيول، مؤاخذه کول، نيوکه کول (نيونه کول).
﴿عَقَّدْتُمْ﴾ د تفعيل ماضي ده، کله چې د قسم سره ذکر سي، نو معنیٰ يې راځي: قسم کلکول، قسم

مضبوطول (يعني کلک او پوخ قسم اخيستل)، ﴿تَرْجُوْ﴾ د نصر مضارع ده: اُميد کول، هيله او توقع کول. ﴿رَجَاء﴾ (د راء په فتحه سره): اُميد، هيله، توقع، ﴿عَلَّق﴾ د تفعيل ماضي ده: معلق کول (يو شی د بل شي سره تړل، ځوړند کول).

**تشريح**: په دې عبارت کې د يمينِ منعقده او يمينِ لغو تعريف او حکم بيان سوی دی. يمين منعقده دا دی چي يو سړی د مستقبل (را روان وخت) په باره کي قسم واخلي چي دا کار به کوم. مثلاً داسي ووايي "په خدای قسم که ستا کور ته داخل سم" (په الله مې قسم دی چي ستا کور ته به داخل نه سم). يا په مستقبل کي د يو کار نه کولو قسم واخلي، مثلاً داسي ووايي: "په خدای قسم که زه د فلانکي سره خبري وکړم"، اوس که چيري دا سړی (حالف) په خپل قسم کې حانث سي، يعني قسم مات کړي او د کوم کار قسم چي يې کړی وي، د هغه خلاف عمل وکړي، نو په دې صورت کي پر هغه کفاره لازميږي، دليل دا آيت دی: "لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ أَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْأَيْمَانَ" يعني الله تعالیٰ تاسي په لغو قسمونو سره نه نيسي، لېکن تاسي چي کوم کلک او پوخ قسم کړی وي، د هغه په ماتولو سره مو نيسي، او په يمينِ منعقده کي مضبوط او کلک قسم اخيستل کيږي، نو ځکه به د يمينِ منعقده په صورت کي د الله له طرفه مؤاخذه او نيوکه کيږي.

**ويمين اللغوا إلخ**: يمينِ لغو دا دی چي انسان پر يو تېر سوي کار قسم واخلي، او د ده يقين وي چي هغه کار همداسي سوی دی لکه څرنګه چي ده قسم اخيستی دی، لېکن هغه کار داسي نه وي سوی، نو دې ته يمينِ لغو وايي، مثلاً هغه ووايي: "په خدای قسم! زه دې کور ته داخل سوی وم"، حالانکي هغه د کور دروازې ته هم نژدې سوی نه وي، يا مثلاً ووايي: "په خدای قسم! دا زيد دی"، لېکن په واقع کي هغه عمرو وي، نو دا هم يمينِ لغو دی، او د دې حکم دا دی چي د الله له سپېڅلي او کريم ذات څخه دا توقع او اُميد سته چي پر داسي قسم نيوکه (مؤاخذه) نه وکړي، ځکه چي په خپله ربُّ العالمين د نه نيوکي (عدمِ مؤاخذه) اعلان کړی دی، فرمايلي يې دي: "لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ أَيْمَانِكُمْ"، لېکن څرنګه چي په يمينِ لغو کي اختلاف او تفصيل سته، نو په دې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله په صراحت سره د عدمِ مؤاخذه حکم نه دی ذکر کړی، بلکي هغه يې پر اُميد او رجاء پرې اينبی دی (چي له الله څخه دا اُميد سته چي پر داسي قسم مؤاخذه او نيوکه نه وکړي، بلکي بخښنه او معافي وکړي).

## په يمين کي د قصد، هيري او إكراه د برابر والي بيان

قَالَ: وَالْقَاصِدُ فِي الْيَمِينِ وَالْمُكْرَهُ وَالنَّاسِي سَوَاءٌ فرمايي: او په قسم کي قصد كونكى كس [يعني قصداً قسم اخيستونكى] او مجبور كس او هېرونكى كس [تړوله] سره برابر دي حَتَّى تَجِبُ الْكَفَّارَةُ تر دې چي [په دې دريو سره صورتونو كي] كفاره واجبيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ: النِّكَاحُ وَالطَّلَاقُ وَالْيَمِينُ ځكه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: درې شيان داسي دي چي په هغوى كي حقيقت هم حقيقت دى او په هغوى كي مسخرې [او ټوكي] هم حقيقت دى وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِي ذٰلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې باره كي زموږ مخالف دى وَسَنُبَيِّنُ فِي الْإِكْرَاهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ او موږ به په كتابُ الإكراه كي إنشاء الله [د دې] بيان وكړو وَمَنْ فَعَلَ الْمَحْلُوفَ عَلَيْهِ مُكْرَهًا أَوْ نَاسِيًا فَهُوَ سَوَاءٌ او څوك چي مجبوراً يا په هيره محلوف عليه كار وكړي نو دا [دواړه] سره برابر دي لِأَنَّ الْفِعْلَ الْحَقِيقِيَّ لَا يَنْعَدِمُ بِالْإِكْرَاهِ ځكه چي فعل حقيقتاً په إكراه [جبر] سره نه نيستي كيږي وَهُوَ الشَّرْطُ او همدا [حقيقتاً د فعل موجودېدل] شرط دي [يعني د كوم كار قسم چي انسان وكړي (چي هغه ته محلوف عليه كار وايي)، نو انسان د هغه په كولو سره حانث كيږي، او په إكراه كي هم انسان هغه كار كوي، داسي نه ده چي دإكراه په صورت كي هغه دغه كار (محلوف عليه) نه كوي، بلكي دإكراه په صورت كي هم د هغه له طرفه دا كار صادريږي] وَكَذَا إِذَا فَعَلَهُ وَهُوَ مُغْمًى عَلَيْهِ أَوْ مَجْنُونٌ او همدارنګه كله چي يو څوك محلوف عليه كار وكړي په داسي حال كي چي هغه بې هوښه وي يا لېونى وي لِتَحَقُّقِ الشَّرْطِ حَقِيقَةً ځكه چي په حقيقت كي شرط موجود سو وَلَوْ كَانَتِ الْحِكْمَةُ رَفْعَ الذَّنْبِ فَالْحُكْمُ يُدَارُ عَلَىٰ دَلِيلِهِ وَهُوَ الْحِنْثُ او كه چيري د كفارې حكمت د ګناه ليري كول وي نو د حكم دار ومدار به د ګناه پر دليل وي، او هغه حانث كېدل دي لَا عَلَىٰ حَقِيقَةِ الذَّنْبِ نه د ګناه پر حقيقت [يعني د حكم دار ومدار به د ګناه پر حقيقت نه وي].

**اللغات:** ﴿قَاصِد﴾ د نصر اسم فاعل دى: قصد كونكى، اراده كونكى. ﴿مُكْرَه﴾ د افعال اسم مفعول دى: مجبور كړى سوى سړى (هغه كس چي په زوره يو څوك كار په وكړي)، ﴿جِدّ﴾ د "هَزْل" ضد

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب:۹، رقم: ۲۱۹۴.

دی: رښتيا وينا (يعني په مسخرو سره يوه خبره نه کول، بلکې رښتيا ويل)، حقيقت ويل، قصداً او په اراده سره ويل، ﴿هَزْل﴾ مسخرې، ټوکې، ملنډې، وشتې، ﴿مَحْلُوْف عَلَيْه﴾ پر کوم شي يا خبره چې قسم واخيستل سي، هغه ته "محلوف عليه" وايي، ﴿يُدَارُ﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: دائر کېدل، مدار کېدل، ﴿حِنْث﴾ د سمع مصدر دی: قسم ماتول (قسم خوړل)، حانث کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې قصداً قسم اخيستونکی، او څوک چې پر قسم اخيستلو مجبور کړی سي، او په هېره قسم اخيستونکی، دا درې سره کسان د کفارې په وجوب کې مساوي او برابر دي. او له دوی څخه چې کوم کس هم په خپل قسم کې حانث سي، پر هغه کفاره واجبيږي؛ ځکه چې کفاره له هغه درو شيانو څخه ده چې په هغوی کې مسخره هم د قصد او حقيقت په څير ده، يعني څرنګه چې په هغوی کې د قصد او حقيقت سره حکم متعلق کيږي، همداسې په هغوی کې د بېله قصده او بېله حقيقت (ويلو) سره هم حکم متعلق کيږي، او هغه دا درې شيان دي: ① نکاح، ② طلاق، ③ قسم (يمين).

**والشافعي يخالفنا إلخ:** فرمايي چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د إکراه او هيرې په يمين کې زموږ مخالف دی، يعني که يو څوک پر قسم اخيستلو مجبوره کړی سي، نو د امام شافعي په نيز د هغه قسم نه واقع کيږي، همدارنګه که څوک په هېره قسم واخلي، نو د امام شافعي په نيز هغه نه حانث کيږي، او د دې پوره بحث به انشاء الله په بابُ الإکراه کې ذکر سي.

**ومن فعل إلخ:** د دې حاصل دا دی که يو سړی داسې قسم واخلي چې فلانکی کار به نه کوم، لېکن بيا دا سړی پر هغه کار مجبور کړی سي او دئ هغه کار وکړي، يا په هېره هغه کار وکړي، نو په دې دواړو صورتونو کې هغه حانث کيږي؛ ځکه چې د حانث کېدلو شرط دا دی چې حقيقتاً فعل موجود سي، او دلته حقيقتاً فعل موجود سو، ځکه چې په إکراه او هيرې سره حقيقتاً فعل نه معدوم کيږي، بلکې په إکراه او هيرې کې هم فعل اداء کيږي که څه هم فاعل هغه په رضا او خوښې سره نه اداء کوي، لېکن فعل خو خامخا اداء کيږي، او حنث (حانث کېدل) د فعل د اداء کولو سره متعلق دی، نو ځکه به په دې صورتونو کې فاعل حانث کيږي، او کله چې هغه حانث کيږي نو ښکاره خبره ده چې پر هغه به کفاره هم لازم وي.

**وكذا إذا فعله إلخ:** فرمايي: که يو سړی د بې هوښۍ يا لېونتوب په حالت کې محلوف عليه کار وکړي، مثلاً يو سړي د يو شي نه خوړلو قسم کړی وي، او د بې هوښۍ يا لېونتوب په حالت کې هغه وخوري، نو دا سړی هم په خپل قسم کې حانث کيږي، او پر هغه به کفاره لازم وي؛ ځکه چې د حانث کېدلو شرط يعني فعل حقيقتاً موجود سو.

**ولو كانت الحكمة إلخ:** په دې سره د يو مُقدّر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې موږ او ړېدلي دي چې د کفارې د اداء کولو حکمت د ګناه لېرې کول او محوه کول دي، او بې هوښه او مجنون انسان دواړه د شريعت په خطاباتو سره مکلف نه دي، نو تاسې پر هغو څنګه کفاره واجبوی؟

د دې په جواب کې صاحب هدايې فرمايي چې که موږ ستاسي سره دا خبره ومنوچې د کفارې حکمت د گناه ختمول او محوه کول دي، نو د حکم مدار به د گناه (ذنب) پر دليل وي، نه د گناه پر حقيقت، او د گناه دليل حانث کېدل دي، او حانث کېدل د حقيقتاً فعل د مستحق کېدلو سره متعلق دي، او د بې هوښه او لېوني کس څخه که څه هم د گناه صدور نه کيږي، لېکن د فعل صدور خو خامخا ځني کيږي. والله أعلم وعلمهٗ أتم



## بَابُ مَا يَكُوْنُ يَمِيْنًا وَمَا لَا يَكُوْنُ يَمِيْنًا

(دا) باب د هغو الفاظو (په بيان کې) دی کوم چې قسم وي او کوم چې قسم نه وي (يعني کوم الفاظ چې قسم شمارل کيږي او کوم چې قسم نه شمارل کيږي)

### د قسم د الفاظو بيان

قَالَ: وَالْيَمِيْنُ بِاللهِ تَعَالَى أَوْ بِاسْمٍ آخَرَ مِنْ أَسْمَاءِ اللهِ تَعَالَى كَالرَّحْمٰنِ وَالرَّحِيْمِ فرمايي: او [قسم منعقد کيږي او صحيح کيږي] د الله تعالیٰ په لفظ سره يا د الله تعالیٰ په نومونو کې په يو نوم سره لکه رَحْمٰن او رَحِيْم أَوْ بِصِفَةٍ مِنْ صِفَاتِهِ الَّتِيْ يُحْلَفُ بِهَا عُرْفًا كَعِزَّةِ اللهِ وَجَلَالِهِ وَكِبْرِيَائِهٖ يا د الله په صفتونو کې په هغه صفت سره چې په هغه سره په عرف کې قسم اخيستل کيږي لکه د الله عزت [مثلاً عرب وايي چې د الله په عزت مې قسم دی] او لکه د الله جلال [شان او شوکت] او د الله لويي لِأَنَّ الْحَلِفَ بِهَا مُتَعَارَفٌ ځکه چې په دې [الفاظو او صفاتو] سره قسم اخيستل په عُرف کې مشهوره [رواج] دي وَمَعْنَى الْيَمِيْنِ وَهُوَ الْقُوَّةُ حَاصِلٌ او د يمين معنیٰ چې هغه قوت دی [په دې الفاظو او صفاتو سره] حاصله ده [يعني د يمين معنیٰ ده: قوت حاصلول، او په دې نومونو په قسم اخيستلو سره د يو کار پر کولو يا نه کولو قوت حاصليږي] لِأَنَّهٗ يَعْتَقِدُ تَعْظِيْمَ اللهِ وَصِفَاتِهٖ ځکه چې هغه [قسم اخيستونکی] د الله او د هغه د صفاتو د تعظيم عقيده لري فَصَلُحَ ذِكْرُهٗ حَامِلًا وَمَانِعًا نو د دې [الفاظو او صفاتو] ذکر کول به [د قسم اخيستونکي] د اماده کولو او منع کولو صلاحيت لري [خلاصه دا چې د قسم اخيستلو مقصد دا وي چې د هغه د کولو يا نه کولو قوت حاصل سي، او په دې نومونو سره قوت حاصليږي،

نو ځکه د دې نومونو په ذريعه قسم اخيستل کېداى سي، پوره تفصيل به په تشريح کي ذکر سي!

قَالَ: إِلَّا قَوْلَهُ: وَعِلْمِ اللّٰهِ فرمايي: مګر د قسم اخيستونکي دا قول: د الله په علم سره مي قسم دی فَإِنَّهُ لَا يَكُونُ يَمِينًا نو دا قسم نه دی [يعني په دې سره هغه قسم کونکی نه ګرځي] لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چي [په دې لفظ سره قسم اخيستل] په عُرف کي مشهور نه دي وَلِأَنَّهُ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ الْمَعْلُومُ او ځکه [کله چي] د الله علم ذکر کيږي [نو] په هغه سره معلوم مراديږي يُقَالُ: اللّٰهُمَّ اغْفِرْ عِلْمَكَ فِينَا أَيْ مَعْلُومَكَ ويل کيږي: اې الله ستا د علم مطابق موږ ته بخښنه وکړه! يعني ستا د معلومات مطابق [موږ ته بخښنه وکړه! (يعني اې الله! موږ هغه ټوله ګناهونه وبخښه! کوم چي زموږ څخه هېر او نامعلوم دي او تا ته معلوم دي)] وَلَوْ قَالَ: وَغَضَبِ اللّٰهِ وَسَخَطِهِ او که هغه ووايي: د الله په غضب سره مي قسم دی او د الله په ناراضۍ سره مي قسم دی لَمْ يَكُنْ حَالِفًا نو [په دې سره] هغه قسم کونکی نه ګرځي [يعني په دې سره د هغه قسم نه صحيح کيږي او په دې سره هغه قسم اخيستونکی نه شمارل کيږي] وَكَذَا وَرَحْمَةِ اللّٰهِ او همدارنګه [قسم کونکي نه ګرځي کله چي ووايي] د الله په رحمت سره مي قسم دی لِأَنَّ الْحَلِفَ بِهَا غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چي په دې [الفاظو] سره قسم اخيستل په عرف کي مشهور نه دي وَلِأَنَّ الرَّحْمَةَ قَدْ يُرَادُ بِهَا أَثَرُهَا وَهُوَ الْمَطَرُ أَوِ الْجَنَّةُ او ځکه کله په رحمت سره د رحمت أثر مراديږي چي هغه باران يا جنت دی وَالْغَضَبُ وَالسَّخَطُ يُرَادُ بِهِمَا الْعُقُوبَةُ او په غضب او ناراضۍ سره عقوبت [او سزا] مراديږي وَمَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللّٰهِ لَمْ يَكُنْ حَالِفًا او څوک چي له الله څخه بغير په بل شي سره قسم واخلي، نو هغه قسم کونکي نه ګرځي كَالنَّبِيِّ وَالْكَعْبَةِ لکه د نبي او کعبې قسم لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: مَنْ كَانَ مِنْكُمْ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ أَوْ لِيَذَرْ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي په تاسي کي قسم کول [او قسم اخيستل] غواړي نو هغه دي په الله سره قسم واخلي يا دي قسم پريږدي وَكَذَا إِذَا حَلَفَ بِالْقُرْآنِ او همدارنګه [هغه قسم کونکي نه ګرځي] کله چي په قرآن سره قسم واخلي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چي [په قرآن سره قسم اخيستل هم] په عرف کي مشهوره نه دي [اخو زموږ د پښتنو په عرف کي رواج دي او پر هره خبره قرآن اخيستل کيږي، نو ځکه به زموږ په

---

[1] تخريج: أ... جه البخاري، باب:٧٤، رقم:٦١٠٨.

عرف کي قسم کونکی ګرځي) قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ : مَعْنَاهُ: أَنْ يَقُولَ: وَالنَّبِيِّ وَالْقُرْآنِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د دې مطلب دا دی چي انسان (داسي) ووايي: په نبي سره مي قسم دی او په قرآن سره مي قسم دی أَمَّا لَوْ قَالَ: أَنَا بَرِيءٌ مِنْهُمَا ليکن که هغه ووايي: چي زه له نبي او قرآن څخه بري (بېزاره) يم (که مي دا کار وکړی يا مي دا کار نه وکړی) يَكُونُ يَمِينًا نو دا قسم دی لِأَنَّ التَّبَرِّيَ مِنْهُمَا كُفْرٌ ځکه چي له نبي او قرآن څخه بري کېدل کفر دي.

**اللغات:** ﴿يَعْتَقِدُ﴾ د افتعال مضارع ده: عقيده لرل. ﴿حَامِلٌ﴾ د ضرب اسم فاعل دی: پارونکی، هڅونکی، اماده کونکی. ﴿مَانِعٌ﴾ د فتح اسم فاعل دی: منع کونکی. ﴿سَخَطٌ﴾ ناراضي (ناراضه کېدل)، ناخوښي. ﴿عُقُوبَةٌ﴾ سزا. ﴿لِيَذَرْ﴾ د امر غائب صيغه ده: يو کار پرېښوول، ايله کول. ﴿التَّبَرِّي﴾ د تفعّل مصدر دی: بري کېدل، بېزاره کېدل (بېزاري ښکاره کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د الله په نومونو کي په يو نوم سره مثلاً په اَللّٰه، يا الرَّحْمٰن، يا الرَّحِيْم سره قسم واخلي، يا د الله په صفاتو کي په يو داسي صفت سره قسم واخلي چي په هغه سره په عرف کي قسم اخيستل کيږي. مثلاً يو څوک د الله په عزت يا د هغه په جلال او لويي سره قسم واخلي. نو قسم صحيح کيږي او منعقد کيږي، ځکه چي د الله په نومونو سره د قسم په منعقد کېدلو (او صحيح کېدلو) کي د هيڅ اختلاف نسته. او په عرف او رواج کي چي په کومو صفاتو سره قسم اخيستل کيږي. په هغوی سره د قسم معنیٰ (يعني قوت) حاصليږي. ځکه چي حالف (قسم اخيستونکی) تعظيماً د الله په نامه او د هغه په صفاتو سره قسم اخلي، او د الله د نامه يا د صفت ذکر کول هغه د محلوف عليه کار پر کولو اماده کوي او هغه راپاروي، که چيري هغه د محلوف عليه کار د کولو قسم اخيستی وي، او که چيري هغه د نه کولو قسم اخيستی وي. نو د الله د نامه يا صفت ذکر کول هغه له محلوف عليه کار څخه منع کوي. په عبارت کي له حَامِلًا او مَانِعًا څخه همدغه مراد دي (چي قسم او د الله د نامه ذکر حالف پر محلوف عليه کار اماده کوي. يا يې ځني منع کوي).

**قَالَ إِلَّا قَوْلَهُ إلخ:** فرمايي که يو سړی د علمُ الله په الفاظو سره قسم واخلي (يعني داسي ووايي چي "د الله په علم سره مي قسم دی"، نو هغه قسم کونکی نه ګرځي (يعني په دې الفاظو سره د هغه قسم نه صحيح کيږي)، ځکه چي په علمُ الله سره قسم کول په عرف کي مشهور نه دي. او ځکه چي له علمُ

الله څخه معلومُ الله مراديږي، لکه څرنګه چي د مغفرت او بخښني لپاره داسي دعاء کيږي "اَللّٰهُمَّ اغْفِر عِلْمَكَ" د دې معنیٰ ده: "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ مَعْلُوْمَكَ" (ترجمه يې په عبارت کي ذکر سوه)، او په قسم کي هم له علم څخه معلوم مراديږي، او د معلوم په لفظ سره قسم نه صحيح کيږي.

ولوقال غضب الله إلخ: او که يو څوک د غضبُ الله يا د سخطُ الله په الفاظو سره قسم وکړي، نو هغه قسم کونکی نه ګرځي، ځکه چي په دې الفاظو سره قسم کول هم په عرف کي رواج نه دی، همدارنګه په رحمةُ الله سره قسم کول هم رواج نه دی، او له رحمة څخه کله د هغه أثر مراديږي، يعني باران يا جنت، او له غضب او سخط څخه عقوبت مراديږي، حالانکي د قسم د انعقاد او صحيح کېدلو لپاره داسي الفاظ ضروري دي چي هغه خالص پر قسم دلالت کوي.

ومن حلف بغيرالله إلخ: که يو څوک له الله څخه بغير په بل چا سره قسم واخلي، مثلاً داسي ووايي: وَالنَّبِيِّ، يا وَالْكَعْبَةِ (په نبي سره مي قسم دی، يا په کعبه سره مي قسم دی)، نو هغه په دې الفاظو سره هم قسم کونکي نه ګرځي (يعني په دې الفاظو سره د هغه قسم نه صحيح کيږي)، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "که چيري په تاسي کي څوک قسم اخلي، نو هغه دي د الله په نامه سره قسم اخلي، يا دي بالکل قسم نه اخلي"، له دې څخه معلومه سوه چي په غيرُ الله سره قسم اخيستل ناجائز او غير صحيح دي، همدارنګه که څوک په قرآن سره قسم واخلي، نو په دې سره هم هغه قسم کونکی نه ګرځي، ځکه چي دا هم متعارف نه دي (لېکن زموږ په سيمو کي متعارف دي)، ها! که يو څوک داسي ووايي: "إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَأَنَا بَرِئٌ مِنَ النَّبِيِّ وَالْقُرْآن" (يعني که چيري ما داسي وکړه، نو زه له نبي او قرآن څخه بري يم)، نو په دې سره هغه قسم کونکي ګرځي، ځکه چي له نبي او قرآن څخه بري کېدل کفر دی، او له کفر څخه د ځان ساتلو لپاره به يقيناً هغه دا کار نه کوي، يعني دا قول به هغه خامخا د محلوف عليه کار له کولو يا نه کولو څخه منع کوي [لکه څرنګه چي د الله په نامه سره قسم اخيستل هغه له دې څخه منع کوي] نو ځکه به په داسي الفاظو سره انسان قسم کونکی ګرځي، او پر هغه به قسم پوره کول ضروري او لازمي وي).

## د قسم د حروفو بيان

قَالَ: وَالْحَلْفُ بِحُرُوفِ الْقَسَمِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او قسم اخيستل د قسم په حروفو سره [هم قسم دی، يعني د قسم په حروفو سره هم انسان قسم کونکي ګرځي] وَحُرُوفُ الْقَسَمِ الْوَاوُ كَقَوْلِهِ وَاللهِ وَالْبَاءُ كَقَوْلِهِ بِاللهِ وَالتَّاءُ كَقَوْلِهِ تَاللهِ او د قسم حروف "واو" دی لکه د قسم اخيستونکي دا قول "وَاللهِ" او "باء" ده لکه د هغه دا قول "بِاللهِ" او "تاء" ده لکه د هغه دا قول "تَاللهِ" [د دې ټولو معنیٰ

ده: "قسم په خدای" او "په الله سره مي قسم دی"] لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مَعْهُودٌ فِي الْأَيْمَانِ وَمَذْكُورٌ فِي الْقُرْآنِ ځکه چي په دوی کي هر لفظ د قسم لپاره متعين [او معتارف] دی او په قرآن مجيد کي ذکر سوی دی وَقَدْ يُضْمِرُ الْحَرْفَ فَيَكُونُ حَالِفًا كَقَوْلِهِ اللهِ لَا أَفْعَلُ كَذَا او کله نا کله د قسم حرف پټول کيږي [حذفول کيږي] نو [په هغه وخت کي] هم قسم کونکی ګرځي، لکه د هغه دا قول: "اللهِ لَا أَفْعَلُ كَذَا" [په الله سره مي قسم دی زه به داسي نه کوم] لِأَنَّ حَذْفَ الْحَرْفِ مِنْ عَادَةِ الْعَرَبِ إِيجَازًا ځکه چي [د کلام] د مختصر کولو لپاره د قسم حرف حذف کول د عربو عادت دی ثُمَّ قِيلَ: يُنْصَبُ لِانْتِزَاعِ الْحَرْفِ الْخَافِضِ بيا ويل سوي دي: چي د حرف قسم مدخول ته به د حرف جر د حذف کېدلو په وجه نصب ورکول کيږي [يعني کله چي د قسم حرف حذف کړی سي، نو د هغه مدخول (مثلاً د الله لفظ) ته به فتحه ورکول کيږي، ځکه چي دلته حرف جر ساقط سودی، او کله چي حرف جر ساقط سي، نو د بصريينو په نېز د هغه مدخول ته فتحه ورکول، او همدې ته منصوب بنزع الخافظ وايي، دا د بصريينو قول دی] وَقِيلَ: يُخْفَضُ فَتَكُونُ الْكَسْرَةُ دَالَّةً عَلَى الْمَحْذُوفِ او ويل سوي دي: چي [مدخول ته به] زېر ورکول کيږي، نو زېر به پر حذف سوي حرف دلالت کوي [کوفيين فرمايي چي کله د قسم حرف حذف کړی سي نو د هغه مدخول ته به کسره ورکول کيږي، د دې لپاره چي د حرف جر (حرف قسم) پر حذف کېدلو دلالت وکړي] وَكَذَا إِذَا قَالَ: لِلّٰهِ فِي الْمُخْتَارِ او همدارنګه کله چي هغه ووايي: "لِلّٰهِ [لَا أَفْعَلُ كَذَا]" [نو هم قسم کونکي ګرځي] لِأَنَّ الْبَاءَ تُبَدَّلُ بِهَا ځکه چي "با" [کله نا کله] په "لام" سره بدليږي قَالَ اللهُ تَعَالىٰ آمَنْتُمْ لَهُ [طه: ۷۱] أَيْ آمَنْتُمْ بِهِ الله تعالیٰ فرمايلي دي: "آمَنْتُمْ لَهُ" يعني "آمَنْتُمْ بِهِ" [يعني دلته "لَهُ" د "بِهِ" په معنیٰ سره دی، او باء د قسم په معنیٰ سره استعماليږي، نو ځکه به "لِلّٰهِ" هم د قسم په معنیٰ سره وي] وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ: إِذَا قَالَ: وَحَقِّ اللهِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي که هغه ووايي: د الله په حق سره مي قسم دی فَلَيْسَ بِحَالِفٍ نو هغه قسم کونکی نه دی [يعني په دې سره هغه قسم اخيستونکی نه ګرځي] وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ ● وَإِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او

● القول الراجح: قول الطرفين (أي قول أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَا الله)، كما في رد المحتار (ج:۳، ص:۶۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۰۸]

[همدا] یو روایت له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه هم دی وَعَنْهُ رِوَایَةٌ أُخْرٰی: أَنَّهُ یَکُوْنُ یَمِیْنًا او له هغه څخه بل روایت دا دی: چي دا قسم دی [یعني په دې سره انسان قسم کونکي ګرځي] لِأَنَّ الْحَقَّ مِنْ صِفَاتِ اللهِ تَعَالٰی وَهُوَ حَقِیْقَتُهٗ ځکه چي حق د الله له صفاتو څخه دی، او هغه د الله حق کېدل دي فَصَارَ کَأَنَّهٗ قَالَ: وَاللهِ الْحَقِّ نو داسي سو لکه هغه چي ووایي: "وَاللهِ الْحَقِّ" [په حق الله سره مي قسم دی] وَالْحَلْفُ بِهٖ مُتَعَارَفٌ او په دې لفظ [والله الحق] سره قسم اخیستل په عرف کي مشهور دي وَلَهُمَا: أَنَّهٗ یُرَادُ بِهٖ طَاعَةُ اللهِ تَعَالٰی د طرفینو دلیل دا دی: چي د حق په لفظ سره د الله تعالیٰ اطاعت [او عبادت کول] مرادیږي [مثلاً خلک وایي: د الله تعالیٰ دا پر موږ حق دي چي موږ د هغه عبادت او اطاعت وکړو] إِذِ الطَّاعَاتُ حُقُوْقُهٗ ځکه چي طاعات [او د الله لپاره عبادات کول] د الله حقوق دي فَیَکُوْنُ حَلْفًا بِغَیْرِ اللهِ نو دا به له الله څخه بغیر په بل شي سره قسم اخیستل وي [ځکه چي له حق څخه عبادت مرادیږي، نه الله، نو ځکه به په دې لفظ سره قسم کونکي نه ګرځي] قَالُوْا: وَلَوْ قَالَ وَالْحَقِّ او فقهاؤ فرمایلي دي: که چیري هغه "وَالْحَقِّ" ووایي [یعني پر حق "الف لام" داخل کړي] یَکُوْنُ یَمِیْنًا نو دا قسم دی [یعني په دې سره انسان قسم کونکی ګرځي] وَلَوْ قَالَ: حَقًّا او که ووایي: "حَقًّا" [یعني "الف لام" پر داخل نه کړي، بلکي نکره یې ووایي] لَا یَکُوْنُ یَمِیْنًا نو دا قسم نه دی لِأَنَّ الْحَقَّ مِنْ أَسْمَاءِ اللهِ تَعَالٰی ځکه چي "اَلْحَقّ" [په الف لام سره] د الله تعالیٰ له نومونو څخه [یو نوم] دی وَالْمُنَکَّرُ یُرَادُ بِهٖ تَحْقِیْقُ الْوَعْدِ او په نکره سره [چي "الف لام" پر داخل نه کړي] وعده پوره کول مرادیږي [مثلاً عرب وایي: حَقًّا عَلَیَّ أَنْ أَفْعَلَ کَذَا (پر ما حق دي چي زه به داسي کوم او دا وعده به پوره کوم)].

**اللغات:** ﴿مَعْهُوْد﴾ معروف، په ذهن کي متعین (ټاکل سوی)، مشهور، (د خلکو په عرف او أذهانو کي متعین)، ﴿یُضْمَر﴾ د افعال مضارع مجهوله ده: مضمر کول، پټول، مخفي کول، ﴿إِنْتِزَاع﴾ د افتعال مصدر دی: لیري کول، کشول، مراد ځني "حذفول" دي، ﴿خَافِض﴾ جرّ ورکونکی حرف (زېر ورکونکی حرف)، ﴿الْمُنَکَّر﴾ د اسم مفعول صیغه ده: نکره اسم (هغه اسم چي د تعریف حرف یعني "الف لام" پر داخل نه وي).

**تشریح:** عبارت په ترجمه کي تشریح سو.

## د قسم د افعالو بيان

وَلَوْقَالَ: أُقْسِمُ أَوْ أُقْسِمُ بِاللهِ او كه [يو څوک] ووايي: زه قسم اخلم [قسم مي دی] يا [ووايي] په الله سره قسم اخلم [په الله سره مي قسم دی] أَوْ أَحْلِفُ أَوْ أَحْلِفُ بِاللهِ يا [ووايي] زه حلف کوم [يعني قسم اخلم، لوړه کوم] يا [ووايي] په الله سره حلف کوم أَوْ أَشْهَدُ أَوْ أَشْهَدُ بِاللهِ يا [ووايي] زه ګواهي ورکوم يا [ووايي] زه په الله سره ګواهي ورکوم فَهُوَحَالِفٌ نو هغه قسم کونکی دی [يعني په دې ټولو الفاظو سره هغه قسم اخيستونکی شمارل کيږي، نو خپل قسم به پوره کوي] لِأَنَّ هَذِهِ الْأَلْفَاظَ مُسْتَعْمَلَةٌ فِي الْحَلِفِ ځکه چې دا الفاظ په حلف کې مستعمل دي [يعني دا ټوله الفاظ په عُرف کې د قسم اخيستلو لپاره استعماليږي] وَهَذِهِ الصِّيغَةُ لِلْحَالِ حَقِيقَةً وَتُسْتَعْمَلُ لِلِاسْتِقْبَالِ بِقَرِينَةٍ او دا صيغه [يعني له أقسمُ، أحلفُ، او أشهدُ څخه هره صيغه] په حقيقت کې د حال [اوسنی زمانې] لپاره ده، [لېکن] د استقبال [را رواني زمانې] لپاره په يوه قرينه سره استعماليږي فَجُعِلَ حَالِفًا فِي الْحَالِ نو ځکه به هغه فی الحاله [اوس] قسم کونکی ګرځول کيږي [ځکه چې هغه دلته له قرينې څخه بغير په دې صيغو سره قسم اخيستی دی، نو اوس (فی الحاله) به قسم اخيستونکی شمارل کيږي] وَالشَّهَادَةُ يَمِينٌ او د شهادت [أشهدُ] لفظ قسم دی قَالَ اللهُ تَعَالَى: قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللهِ [المنافقون: ١] الله تعالي فرمايلي دي: منافقان وايي: موږ ګواهي ورکوو چې بېله شکه ته د الله رسول يې ثُمَّ قَالَ: اِتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً [المجادلة: ١٦] [څه وروسته يې] فرمايلي دي: دغه منافقانو خپل قسمونه [د خپلو ځانو لپاره] ډال ګرځولي دي [چې د هغو په خلاف جهاد او کاروايي ونه کړی سي] (په دې آيت کي الله تعالیٰ د منافقينو "نشهدُ" ته قسم ويلي دي، نو معلومه سوه چې د شهادت لفظ هم د قسم لپاره استعماليږي) وَالْحَلِفُ بِاللهِ هُوَالْمَعْهُودُ الْمَشْرُوعُ وَبِغَيْرِهِ مَحْظُورٌ او [فقط] په الله سره قسم اخيستل متعين او مشروع دي او [د الله څخه بغير] په بل چا سره قسم اخيستل ممنوع دي [يعني کله چې څوک مطلق ووايي: قسم مي دی، يا حلف کوم، يا ګواهي ورکوم، فقط په دې الفاظو سره ځکه هغه قسم کونکی ګرځي چې په شريعت او عرف کي په الله سره قسم اخيستل متعين دي او په غيرُ الله سره قسم اخيستل ممنوع او غير مقبول دي، نو ځکه موږ وايو چې په مطلق "قسم اخيستلو" سره هم انسان "په الله سره قسم کونکي" ګرځي] فَصُرِفَ إِلَيْهِ نو ځکه به [مطلق حلف] د حلف بالله وطرف ته ګرځول

کیږي وَلِهٰذَا قِيلَ: لَا يَحْتَاجُ إِلَى النِّيَّةِ او له همدې وجهې وېل سوي دي: چې [په دې الفاظو سره د قسم اخیستلو په وخت کې] د نیت ضرورت نشته وَقِيلَ: لَا بُدَّ مِنْهَا او وېل سوي دي: چې نیت ضروري دی [یعني دویم قول دا دی چې په دې الفاظو سره انسان هغه وخت قسم کونکی ګرځي کله چې هغه د قسم نیت کړی وي] لِاحْتِمَالِ الْعِدَةِ وَالْيَمِينِ بِغَيْرِ اللهِ ځکه چې [په دې الفاظو کې] د وعدې او په غیرُ الله سره د قسم اخیستلو احتمال سته [ځکه چې أُقسِمُ او أحلفُ...د مضارع صیغې دي، نو دا احتمال سته چې په دې سره به د هغه مراد په مستقبل کې قسم اخیستل وي (یعني په دې سره به یې په مستقبل کې د قسم اخیستلو وعده کړې وي)، همدرنګه د دغه الفاظ چې کله مطلق ذکر سي، نو په غیرُ الله سره د قسم اخیستلو احتمال پکښې وي، نو په دې دوو وجهو په مطلق قسم اخیستلو کې د قسم نیت کول ضروري دي].

**اللغات:** ﴿صِيْغَة﴾ لفظ، ﴿جُنَّة﴾ ډال، سپر، کنګل (هغه آله چې د توري او اسلحې د مخنیوي لپاره استعمالیږي)، ﴿مَحْظُوْر﴾ ممنوع، هغه څه چې په شریعت کې منع سوي وي، ناجائز.

**تشریح:** عبارت په ترجمه کې تشریح سو.

## د فارسي کوم الفاظ قسم دي؟

وَلَوْ قَالَ بِالْفَارِسِيَّةِ: سُوْگَنْد مِيْخُوْرَم او که [یو څوک] په فارسي ژبه ووایي: "سوګند میخورم" [په الله سره قسم خورم] يَكُونُ يَمِينًا نو دا قسم دی [یعني په دې سره هغه قسم کونکی ګرځي، همدا د هرې ژبې حکم دی] لِأَنَّهُ لِلْحَالِ ځکه چې دا [میخورَم] د حال لپاره دی [نه د استقبال لپاره] وَلَوْ قَالَ سُوْگَنْد خُوْرَم او که ووایي: "سوګند خورم" قِيلَ: لَا يَكُونُ يَمِينًا نو وېل سوي دي [یعني ځیني علماؤ فرمایلي دي]: چې دا قسم نه دی [ځکه چې د دې معنیٰ ده: قسم خورم، نو په دې کې د استقبال معنیٰ سته (یعني دا د قسم وعده ده)، نو ځکه به قسم کونکی نه ګرځي] وَلَوْ قَالَ بِالْفَارِسِيَّةِ: سُوْگَنْد خُوْرَم بَطَلَاقِ زَنِم او که [یو څوک] په فارسي ژبه ووایي: قسم خورم د خپلې ښځې په طلاق [یعني: د خپلې ښځې په طلاق مې قسم دی] لَا يَكُونُ يَمِينًا نو دا قسم نه دی [یعني په دې سره هغه قسم کونکی نه ګرځي] لِعَدَمِ التَّعَارُفِ ځکه چې [داسې قسم اخیستل] متعارف نه دي قَالَ:

وَكَذَا قَوْلُهُ: لَعَمْرُاللهِ وَأَيْمُ اللهِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او همدارنګه د هغه دا قول [قسم نه دی]: "لَعَمْرُ الله [أَفْعَلُ كَذَا]" او "أَيْمُ الله [أَفْعَلُ كَذَا]" لِأَنَّ عَمْرَاللهِ بَقَاءُ اللهِ ځکه چې له "عَمرُ الله" څخه مراد د الله بقاء [او همېشه والي] دی [نو ځکه به هغه په دې سره قسم کوونکی نه ګرځي] وَأَيْمُ اللهِ مَعْنَاهُ: أَيْمَنُ اللهِ وَهُوَ جَمْعُ يَمِيْنٍ او د "أيمُ الله" معنیٰ ده: "أَيْمَنُ الله" او "أَيْمن" جمع د "يَمِيْن" ده وَقِيلَ او ويل سوي دي [چې په "لعمرُالله" او "أيمُ الله" سره انسان قسم کوونکی ګرځي] مَعْنَاهُ: وَاللهُ [ځکه چې] د "أيمُ الله" معنیٰ ده: "وَالله" [په الله سره مې قسم دی] وَأَيْمُ صِلَةٌ كَالْوَاوِ او د "أيمُ" لفظ د "واو" په څېر صله ده [يعنې د "واو" په څېر مستقله جمله ده] وَالْحَلِفُ بِاللَّفْظَيْنِ مُتَعَارَفٌ او په دې لفظونو [العمرُ الله او أيمُ الله] سره قسم اخېستل په عرف کې مشهور [او رواج] هم دي وَكَذَا قَوْلُهُ: وَعَهْدُ اللهِ وَمِيثَاقُهُ او همدارنګه د هغه دا قول [قسم دی]: "وَعَهْدُ اللهِ [أَفْعَلُ كَذَا]" او "مِيْثَاقُ اللهِ [أَفْعَلُ كَذَا]" [يعنې په دې سره هم هغه قسم کوونکی ګرځي] لِأَنَّ الْعَهْدَ يَمِيْنٌ ځکه چې عهد يمين دی [يعنې عهد قسم ته وايي] قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللهِ [النحل: ۹۱] الله تعالیٰ فرمايلي دي: "وَ أَوْفُوْا بِعَهْدِ اللهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوْا الأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيْدِهَا" [او کله چې تاسي په الله سره وعده وکړئ! نو هغه پوره کوئ! او قسمونه تر ټينګولو وروسته مه ماتوئ!] (وګورئ! په دې آيت کې الله تعالیٰ "عهد" او پيمان ته قسم ويلي دي. او د هغه له ماتولو څخه يې منع کړې ده] وَالْمِيثَاقُ عِبَارَةٌ عَنِ الْعَهْدِ او ميثاق [هم] له عهد څخه عبارت دی [يعنې ميثاق هم عهد او پيمان ته وايي] وَكَذَا إِذَا قَالَ: عَلَيَّ نَذْرٌ أَوْ نَذْرُ اللهِ او همدارنګه کله چې هغه ووايي: [دا کار] پر ما نذر دی يا پر ما د الله نذر دی [يعنې دا کار پر ما د الله لپاره نذر دی، نو هغه په دې سره قسم کوونکی ګرځي] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: مَنْ[1] نَذَرَ نَذْرًا وَلَمْ يُسَمِّ فَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِيْنٍ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې يو نذر ومني او هغه متعين نه کړي [يعنې هغه پوره نه کړی سي] نو پر هغه د قسم کفاره واجب ده [د قسم کفاره واجبېدل د دې خبرې دليل دی چې نذر هم قسم او يمين دی].

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب:۲۵، رقم الحديث:۳۳۲۲.

**اللغات:** ﴿سوګند﴾ قسم، لوړه، ﴿ميخورم﴾ زه يې خورم (يعني زه قسم کوم، قسم اخلم)، ﴿زنم﴾ زما ښځه (زما زوجه)، ﴿أَيْم﴾ قسم، ﴿عَهْد﴾ ژمنه، وعده، قول، تړون، پيمان، همدا د مِيْثَاق معنىٰ ده، ﴿لَمْ يُسَمِّ﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: متعين کول، مقرر کول (ټاکل).

**تشريح:** عبارت په ترجمه کې تشريح سو.

## يو کار پر ايمان يا کفر مُعلق کول قسم دی

وَإِنْ قَالَ: إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَهُوَ يَهُودِيٌّ أَوْ نَصْرَانِيٌّ أَوْ كَافِرٌ او که [يو سړی] ووايي: که ما داسې وکړه نو زه به يهودي يم يا نصراني يم يا به کافر يم [يا لکه زموږ په سيمو کې چې خلګ وايي: زه به مسلمان نه يم که مې دا کار نه وکړی] يَكُونُ يَمِينًا نو دا قسم دی لِأَنَّهُ لَمَّا جَعَلَ الشَّرْطَ عَلَمًا عَلَى الْكُفْرِ ځکه کله چې هغه شرط پر کفر باندې علامت وګرځوی فَقَدْ اعْتَقَدَهُ وَاجِبَ الِامْتِنَاعِ نو هغه له محلوف عليه کار څخه ځان منع کول واجب وګڼل [يعني کله چې هغه د يو کار کول يا نه کول د کفر نښه وګرځول (چې زه به مسلمان نه يم، کافر به يم که مې دا کار وکړی يا مې دا کار نه وکړی) يعني د هغه کار کول يا نه کول يې د ځان د کفر علامه وګرځوله، نو د هغه دا عقيده ده چې له هغه کار څخه ځان ساتل واجب دي] وَقَدْ أَمْكَنَ الْقَوْلُ بِوُجُوبِهِ لِغَيْرِهِ بِجَعْلِهِ يَمِينًا او دلته دا ويل [هم] ممکن دي چې د دې [امتناع] واجبيدل [يعني له محلوف څخه د امتناع واجب ګڼل] د بل شي په وجه دي په دې توګه چې د هغه [سړي] قول يمين وګرځول سي كَمَا نَقُولُ فِي تَحْرِيمِ الْحَلَالِ لکه موږ [علماء] چې د حلال شي د حرامولو په باره کې وايو [چې هغه قسم دی] (وقد أمكن إلخ...: د دې جملې خلاصه دا ده، چې کله هغه سړی پر ځان د يو کار کول يا نه کول واجب کړه، حالانکې د هغه کار کول يا نه کول واجب نه وو، لېکن ده پر ځان واجب وګرځول او دا وجوب لغيره دي (لکه يو شی چې حلال وي، لېکن هغه پر ځان حرام کړی سي نو دا وجوب لغيره دي) او د قسم په معنىٰ سره دی، نو ځکه به د هغه قول هم د قسم په معنىٰ سره وي] وَلَوْ قَالَ ذَلِكَ لِشَيْءٍ قَدْ فَعَلَهُ فَهُوَ الْغَمُوسُ او که [يو انسان] دا خبره د داسې شي په باره کې وکړي چې هغه شی انسان [پخوا] کړی وي نو دا يمينِ غموس دی [مثلاً زيد په پخوا زمانه کې غلا کړې وي، او بيا ووايي: که ما غلا کړې وه نو زه دې کافر سم (يا زه به کافر يم)، نو دا يمينِ غموس دی، او پر هغه کفاره نه واجبيږي، او څرنګه چې په دې جملو (زه به کافر يم، زه به يهودي يم...) کې د استقبال معنىٰ هم سته، نو ځکه به هغه کافر نه ګرځول کيږي] وَلَا يُكَفَّرُ اعْتِبَارًا بِالْمُسْتَقْبَلِ او پر مستقبل باندې په قياسولو سره به هغه کافر نه ګرځول کيږي [يعني د استقبالي معنىٰ په وجه به هغه په دې جملو سره نه کافر کيږي] وَقِيلَ: يُكَفَّرُ او ويل سوي دي: چې هغه به کافر ګرځول کيږي لِأَنَّهُ تَنْجِيزُ مَعْنًى ځکه چې دا

[جملې] د معنیٰ په اعتبار سره فی الحاله دیو کار واقع کول دي [یعني په دې جملو کې د حال معنیٰ سته]
فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: هُوَ يَهُودِيٌّ نو داسې سو لکه هغه چې ووایي: زه یهودي یم [یعني مطلقا ووایي: زه یهودي
یم، او داسې نه ووایي: که مې پخوا دا کار کړی وو نو زه دې کافر یا یهودي سم، نو په دې صورت کې یقیناً
هغه کافر کیږي، همداسې به دلته هم کافر کیږي] وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا يَكْفُرُ فِيهِمَا إِنْ كَانَ يَعْلَمُ أَنَّهُ يَمِينٌ [خو]
صحیح خبره دا ده چې د ماضي او مستقبل په دواړو حالتونو کې به هغه کافر نه ګرځول کیږي، په دې شرط
که هغه په دې خبر وي چې دا قول قسم دی وَإِنْ كَانَ عِنْدَهُ أَنَّهُ يَكْفُرُ بِالْحَلِفِ او که د هغه دا عقیده وي چې په
داسې قسم اخیستلو سره هغه کافر کیږي يَكْفُرُ فِيهِمَا نو د ماضي او مستقبل په دواړو صورتونو کې به هغه
کافر ګرځول کیږي [مثلاً زید دا قسم وکړي: که زه مسکین ته خیرات نه ورکړم نو زه به کافر یم، بیا هغه
خیرات نه ورکړي، یا مثلاً زید پخوا غلا کړې وي، او اوس ووایي چې که ما غلا کړې وه نو زه دې کافر سم،
نو که هغه ته معلومه نه وه چې داسې خبره او جمله ویل قسم دی، نو په دې جملې سره هغه نه کافر کیږي،
او که د هغه دا عقیده وه چې په جملې سره زه کافر کېږم، نو بیا هغه کافر کیږي] لِأَنَّهُ رَضِيَ بِالْكُفْرِ حَيْثُ
أَقْدَمَ عَلَى الْفِعْلِ ځکه چې پر فعل دإقدام کولو په وجه هغه په کفر باندې راضي سو [یعني زید د قصداً
خیرات نه ورکولو یا د قصداً درواغ ویلو په وجه په کفر راضي سو، او په کفر راضي کېدل هم کفر دی] وَلَوْ
قَالَ: إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَعَلَيَّ غَضَبُ اللهِ أَوْ سَخَطُ اللهِ او که [یو شوک] ووایي: که چیرې ما داسې وکړه نو پر ما دې د
الله غضب وي یا پر ما دې د الله ناراضي وي فَلَيْسَ بِحَالِفٍ نو دا قسم نه دی [یعني په دې سره هغه قسم
کونکی نه ګرځي] لِأَنَّهُ دُعَاءٌ عَلَى نَفْسِهِ ځکه چې دا ځان ته ښرا کول دي وَلَا يَتَعَلَّقُ ذَلِكَ بِالشَّرْطِ او دا د
شرط سره تعلق نه لري [یعني دا پر شرط معلق کول نه دي] وَلِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ او ځکه چې [داسې قسم
اخیستل] متعارف نه دي وَكَذَا إِذَا قَالَ: إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَأَنَا زَانٍ أَوْ سَارِقٌ أَوْ شَارِبُ خَمْرٍ أَوْ آكِلُ رِبًا او همدارنګه
[هغه قسم کونکی نه ګرځي] کله چې ووایي: که ما داسې وکړه نو زه به زناکاره یم، یا زه به غل یم، یا زه به
شراب خوره یم، یا زه به سود خوره یم لِأَنَّ حُرْمَةَ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ تَحْتَمِلُ النَّسْخَ وَالتَّبْدِيلَ ځکه چې د دې
شیانو حُرمت د منسوخ کېدلو او بدلون احتمال لري فَلَمْ تَكُنْ فِي مَعْنَى حُرْمَةِ الِاسْمِ نو ځکه به دا د الله د نامه د
حُرمت په معنیٰ سره نه وي [یعني د الله تعالیٰ د نامه د حرمت او تعظیم په درجه کې به نه وي] وَلِأَنَّهُ لَيْسَ
بِمُتَعَارَفٍ او ځکه چې [داسې قسم اخیستل] په عرف کې رواج [هم] نه دي.

**اللغات:** ﴿عَلَم﴾ علامت (علامه)، نښه، نښاني، ﴿إِعْتَقَدَ﴾ د افتعال ماضي ده: عقيده لرل، يو شي منل، پر يو شي يقين كول، ﴿إِمْتِنَاع﴾ د افتعال مصدر دی: منع كېدل، پرهېز كول، ﴿تَحْرِيْم﴾ د تفعيل مصدر دی: يو شی حرام ګرځول (حرامول)، ﴿غَمُوْس﴾ د تېر سوي شي يا خبري په هكله دروغ قسم اخيستل، ﴿تَنْجِيْز﴾ د تفعيل مصدر دی: فوراً واقع كول (سمدستي يو كار اجراء كول)، فوراً واقع كېدل، ﴿رِبٰوا﴾ رِبًا: سود.

**تشريح:**

**وكذا إذا قال...فأنا زان:** د دې حاصل دا دی چي كله يو انسان ووايي: كه ما دا كار وكړی، يا دا كار مي نه وكړی، نو زه به زناكاره يم (يا زه زناكاره يم) او داسي نور، نو په دې سره هغه قسم كونكي نه ګرځي، لأنّ حُرمةَ هٰذهِ الأشياء (ځكه چي د زنا، غلا او داسي په حُرمت كي د نسخ او تبديل احتمال سته)، د دې جملې يو مطلب دا دی "چي د نبي ﷺ تر زمانې پوري په دې شيانو كي د نسخ او تبديل احتمال وو"، يا به په دې جمله كي به تأويل كيږي چي مطلب يې دا دی "چي دا شيان په خپله د نسخ او تبديل قابل او لائق دي (يعني بدلون او نسخ پكښي راتلای سي)"، يعني د زنا، سود او داسي نورو حرمت خو منسوخ سوی نه دی، لېكن د حالت په بدلېدلو سره په دوی كي هم بدلون راتلای سي، مثلاً كه په دارُ الحرب كي د حربي كافرانو سره د مسلمان سود او معامله واقع سي، نو له هغو څخه د ربوا (سُود) اخيستلو ګنجائش سته، همدارنګه د كومي ښځي سره چي زنا حرامه وي، هغه په نكاح سره حلاليږي، همدارنګه د غلا شی په رانيولو سره حلاليږي، لنډه دا چي دا شيان (زنا، غلا او داسي نورو) د بدلون او نسخ قابل دي، او په دې شيانو كي د تغير او تبدّل إمكان سته، لېكن د الله په نامه كي هيڅ وخت هم د هيڅ تغيّر او بدلون ګنجائش نسته، بلكي د هغه د نامه تعظيم په هر وخت كي، په هر حالت كي واجب او ضروري دی، نو ځكه به د دې شيانو حرمت د الله د نامه د حرمت په درجه كي نه وي، نو په دې شيانو سره به انسان قسم كونكی نه ګرځي، او بل دا چي په داسي الفاظو او جملو سره قسم اخيستل په عُرف كي رواج او متعين هم نه دي، او په نا متعارفه الفاظو سره انسان قسم كونكی نه ګرځي. والله أعلم وعلمهُ أتم



# فَصْلٌ فِي الكَفَّارَةِ

## (دا) فصل (د قسم) د كفارې (په بيان كې) دی

**تشريح:** مخكې تر دې صاحب د كتاب د كفارې د سبب يعنې د حنث (حانث كېدلو) او قسم اخيستلو احكام بيان كړل، اوس له دې ځايه د مُسبب يعنې د كفارې احكام بيانوي، او دا معلومه خبره ده چې مُسبب تر سبب وروسته وي، نو ځكه صاحب د كتاب تر قسم وروسته اوس د كفارې احكام بيانوي.

### د قسم د كفارې بيان

قَالَ: كَفَّارَةُ الْيَمِينِ عِتْقُ رَقَبَةٍ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: د قسم كفاره [۱] يو غلام آزادول دي يُجْزِئُ فِيهَا مَا يُجْزِئُ فِي الظِّهَارِ [او] د قسم په كفاره كې هغه غلام كافي كيږي [جائز كيږي] كوم چې د ظهار په كفاره كې كافي كيږي وَإِنْ شَاءَ كَسَا عَشَرَةَ مَسَاكِينَ [۲] او كه قسم ماتونكې [حانث] وغواړي نو په لسو مسكينانو ته دې جامې واغوندي [يعني لسو مسكينانو ته دې كپړې وركړي] كُلَّ وَاحِدٍ ثَوْبًا فَمَا زَادَ هر يوه ته دې يوه جامه يا تر [يوې جامې] زيات وركړي وَأَدْنَاهُ مَا يَجُوزُ فِيهِ الصَّلَاةُ او د جامې ادنیٰ مقدار دا دی چې لمونځ پكښې جائز وي [يعني هر مسكين ته دې كم از كم دومره مقدار جامه خامخا وركړي چې په هغه كې لمونځ صحيح كيږي، او د مسكين عورت په پټيږي] وَإِنْ شَاءَ أَطْعَمَ عَشَرَةَ مَسَاكِينَ [۳] او كه هغه وغواړي نو لسو مسكينانو ته دې خوراک وركړي كَالْإِطْعَامِ فِي كَفَّارَةِ الظِّهَارِ لكه څرنګه چې د ظهار په كفاره كې خوراک وركول كيږي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى: فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ [المائدة: ۸۹] او اصل په دې باره كې د الله تعالیٰ دا قول دی: نو د دې [قسم ماتولو] كفاره لسو مسكينانو ته خوراک وركول دي [أَوْ كِسْوَتُهُمْ: يا هغو ته جامې وركول دي، أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ: يا يو غلام آزادول دي، فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ [سورة المائده: ۸۹]؛ او كه څوک (دا شيان) پيدا نه كړي، نو (بيا) درې ورځې روژه نيول دي)] وَكَلِمَةُ أَوْ لِلتَّخْيِيرِ [په دې آيت كې] د "أَوْ" كلمه د تخيير لپاره ده فَكَانَ الْوَاجِبُ أَحَدَ الْأَشْيَاءِ

الثَّلَاثَةِ نو ځکه به له دې دریو شیانو څخه یو شی واجب وي [یعني که د قسم ماتونکي (حانث) خوښه وي، نو لسو مسکینانو ته دې ډوډۍ ورکړي، یا دې لسو مسکینانو ته جامې ورکړي. یا دې یو غلام آزاد کړي، د روژې حکم به په راتلونکي عبارت کي بیان سي].

**اللغات:** ﴿يُجْزِئُ﴾ د افعال مضارع ده: کافي کېدل. ﴿كَسَا﴾ ور اغوستل. ﴿تَخْيِيْر﴾ د تفعیل مصدر دی: اختیار ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله قسم اخیستونکی خپل قسم مات کړي (او په خپل قسم کي حانث سي)، نو پر هغه د قسم کفاره ورکول لازم دي (ځکه چي هغه غلط ځای د الله نوم استعمال کړی او د الله د نامه سپکاوی یې وکړی). او د قسم په کفاره کي یو شی د غلام آزادول دي. هغه که دا غلام مسلمان وي، یا کافر وي، مذکر وي او که مؤنث وي، لوی وي او که کوچنی وي. هر څنګه چي وي په هغه سره د قسم کفاره اداء کیږي، لکه څرنګه چي د ظهار په کفاره کي هم دا حکم دی (خو غلام به شل وشوټ او معیوب نه وي). دویم شی لسو مسکینانو ته جامې ورکول دي. هر مسکین ته دي یوه جامه ورکړي، یا تر دې زیات. خو کم از کم دومره جامه (او کپړه) دي ضرور وکړي چي په هغه کي لمونځ جائز کیږي. دریم شی لسو مسکینانو ته د مېنځوی درجې خوراک ورکول دي، او په هغه اندازه دي خوراک ورکړي کوم چي د ظهار په کفاره کي ورکول کیږي. یعني هر مسکین ته دي یو صاع خُرما یا اُوربشي، یا نیم صاع غنم ورکړي. او په دې شیانو کي چي حانث ته کوم شی آسانه وي، هغه دي اختیار کړي، ځکه چي په پورتني آیت کي (کوم چي د قسم د کفارې په هکله أصل او دلیل دی) د "أَوْ" کلمه د اختیار ورکولو لپاره ده. او اختیار په هغه صورت کي ثابتیږي، کله چي په دې دریو شیانو کي یو شی په کفاره کي اداء کړی سي، او که حانث په دې شیانو کي پر هیڅ شي قدرت نه لري، نو بیا دي درې ورځي پرلپسې روژې ونیسي.

## د قسم په کفاره کي د روژو نیولو بیان

فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى أَحَدِ الْأَشْيَاءِ الثَّلَاثَةِ او که قسم ماتونکي [حانث] په دې دریو شیانو کي پر یوه شي قدرت پیدا نه کړي صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مُتَتَابِعَاتٍ نو درې ورځي دي پرلپسې روژې ونیسي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُخَيَّرُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي هغه ته به اختیار وي [که درې ورځي پرلپسې روژې نیسي، او که یې جلا جلا نیسي] لِإِطْلَاقِ النَّصِّ ځکه چي [پورتنی] آیت مطلق دی وَلَنَا قِرَاءَةُ ابْنِ مَسْعُودٍ: فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مُتَتَابِعَاتٍ او زموږ دلیل د ابن مسعود رضي الله عنه قرائت دی [چي په

هغه کي ذکر سوي دي ا: فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مُتَتَابِعَاتٍ ايعني د ابن مسعود ﷺ په قرائت کي د "متتابعات" قيد هم ذکر سوی دی (چي درې ورځي پرلپسې به روژه نيول کيږي)ا وَهِيَ كَالْخَبَرِ الْمَشْهُورِ او دا اقرائت ا د حديثِ مشهور په درجه کي دی ثُمَّ الْمَذْكُورُ فِي الْكِتَابِ فِي بَيَانِ أَدْنَى الْكِسْوَةِ مَرْوِيٌّ عَنْ مُحَمَّدٍ بيا په متن کي چي د ادنیٰ جامې کوم مقدار ذکر سوی دی هغه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت نقل سوی دی اوَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ أَدْنَاهُ مَا يَسْتُرُ عَامَّةَ بَدَنِهِ او له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه دا روايت انقل سوی ا دی: چي د جامې ادنیٰ مقدار دا دی چي هغه د مسکين زياتره بدن پټ کړي حَتَّى لَا يَجُوزَ السَّرَاوِيلَ تر دې چي افقط ا پرتوګ اور کول ا جائز نه دي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح قول دی لِأَنَّ لَابِسَهُ يُسَمَّى عُرْيَانًا فِي الْعُرْفِ ځکه چي افقط ا پرتوګ اغوستونکي ته اد خلګو ا په عرف کي لڅ ويل کيږي لَكِنَّ مَا لَا يُجْزِيهِ عَنِ الْكِسْوَةِ يُجْزِيهِ عَنِ الطَّعَامِ بِاعْتِبَارِ الْقِيمَةِ لېکن کوم مقدار اپيسې ا چي د جامې لپاره کافي نه وي، هغه د قيمت په اعتبار سره د خوراک ورکولو په بدله کي کافي کيږي امثلاً زيد په خپل قسم کي حانث سي، او د جامې لپاره مسکين ته لس درهمه ورکړي، او په دې لسو درهمو سره د لسو مسکينانو جامې نه رانيول کيږي، لېکن لسو مسکينانو ته خوراک په ورکول کېدای سي، نو داسي به ګڼل کيږي چي زيد لسو مسکينانو ته خوراک ورکړی. يا مثلاً زيد هر مسکين ته د جامې لپاره يو درهم ورکړی، او په يوه درهم فقط پرتوګ کيږي. لېکن نيم صاع غنم هم په يوه درهم رانيول کيږي. نو په دې دواړو صورتونو کي که څه هم د جامو کفاره نه اداء کيږي، لېکن د خوراک ورکولو (إطعام) په حق کي کفاره اداء کيږي، او د زيد غاړه خلاصيږي. (د دې جملې دا دواړه مثالونه شارحينو ليکلي دي)ا.

**اللغات:** ﴿يَسْتُرُ﴾ د نصر مضارع ده: عورت پټول. ﴿سَرَاوِيل﴾ پرتوګ (پاجامه).

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## تر قسم ماتولو مخکي کفاره اداء کول

وَإِنْ قَدَّمَ الْكَفَّارَةَ عَلَى الْحِنْثِ او که ايو څوک ا تر حانث کېدلو اقسم ماتولو ا مخکي کفاره ورکړي لَمْ يُجْزِهِ نو ادا کفاره ا د هغه لپاره نه کافي کيږي ايعني زموږ په نيز تر حنث مخکي کفاره ورکول جائز نه دي ا وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُجْزِيهِ بِالْمَالِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مال په ذريعه کفاره ورکول د هغه لپاره کافي کيږي لِأَنَّهُ أَدَّاهَا بَعْدَ السَّبَبِ وَهُوَ الْيَمِينُ ځکه چي هغه تر سبب يعني تر قسم اخيستلو ا وروسته کفاره اداء کړه فَأَشْبَهَ التَّكْفِيرَ بَعْدَ الْجَرْحِ نو دا امسئله ا تر زخمي کولو

وروسته د کفارې ورکولو سره مشابه سوه وَلَنَا: أَنَّ الْكَفَّارَةَ لِسَتْرِ الْجِنَايَةِ او زموږ دلیل دا دی: چې کفاره د جرم [او ګناه] د پټولو لپاره اداء کیږي وَلَا جِنَايَةَ هَاهُنَا او دلته [تر قسم ماتولو مخکې] هیڅ جرم نسته وَالْيَمِينُ لَيْسَتْ بِسَبَبٍ او قسم [اخيستل] د کفارې سبب نه دی لِأَنَّهُ مَانِعٌ غَيْرُ مُفْضٍ ځکه چې قسم [له حِنث څخه] مانع وي [حِنث ته] نه رسونکي [او د حِنث سبب جوړېدونکی] نه وي بِخِلَافِ الْجُرْحِ په خلاف د زخم لِأَنَّهُ مُفْضٍ ځکه چې زخم [مرګ ته] رسونکي وي ثُمَّ لَا يَسْتَرِدُّ مِنَ الْمِسْكِينِ بیا کفاره اداء کونکی سړی [ورکول سوی مال] له مسکین څخه واپس اخيستلای نه سي لِوُقُوعِهِ صَدَقَةً ځکه چې هغه صدقه وګرځېده [او د صدقې واپس اخيستل جائز نه دي].

**اللغات:** ﴿جِنَايَة﴾ جرم، ﴿مُفْضٍ﴾ د افعال اسم فاعل دی: رسونکی، سبب جوړېدونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک له قسم ماتولو څخه مخکې د قسم کفاره اداء کړي، او بیا قسم مات کړي، نو د احنافو په نېز دا کفاره جائز نه ده (بلکې تر قسم ماتولو وروسته به هغه دویم ځل کفاره اداء کوي)، لېکن د شوافعو په نېز په مال سره تر قسم ماتولو مخکې کفاره اداء کول جائز دي (مثلاً مسکینانو ته ډوډی، جامې یا د دې شیانو پیسې ورکول، لېکن په روژو سره د شوافعو په نېز هم مخکې کفاره اداء کول جائز نه دي؛ ځکه چې روژه بدني عبادت دی، او بدني عبادات تر وخت مخکې اداء کول صحیح نه دي)، او په مال سره کفاره اداء کول ځکه د شوافعو په نېز جائز دي، ځکه چې دلته کفاره تر خپل سبب یعني تر قسم اخيستلو وروسته اداء سوې ده، د دې مثال داسې دی لکه یو سړی چې بل څوک سخت زخمي کړي او بیا د هغه تر مرګ مخکې کفاره اداء کړي، نو په دې صورت کې بالاتفاق د هغه کفاره صحیح ده.

زموږ دلیل دا دی چې د کفارې ورکولو مقصد د جرم پټول دي، او تر قسم ماتولو (حنث) مخکې خو هیڅ جرم سوی نه دی، بلکې فقط قسم اخيستل سوی دی، حالانکې قسم اخيستل د کفارې د واجبېدلو سبب نه دي، ځکه چې انسان قسم د دې لپاره اخلي چې له محلوف علیه کار او قسم ماتولو څخه منع سي، د دې لپاره قسم نه اخلي چې هغه کار وکړي او قسم مات کړي، نو ځکه به تر قسم ماتولو مخکې کفاره اداء کول جائز او معتبر نه وي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قیاس صحیح نه دی (یعني د قسم مسئله د زخم پر مسئلې باندې قیاسول صحیح نه دي)، ځکه چې په مقیس علیه (زخم) او مقیس (قسم) کې هیڅ مناسبت نسته، ځکه چې د سخت او مُهلک زخم آخري انجام مرګ دی، لېکن د قسم اخيستلو آخري انجام قسم

ماتول او كفاره اداء كول نه دي، ځكه كه يو څوک تړوله ژوند پر خپل قسم ټينګ پاته سي. نو د هغه قسم په خپله نه ماتيږي او كفاره نه پر لازميږي. نو ځكه به تر قسم ماتولو مخكي كفاره اداء كول جائز نه وي.

نو كه يو څوک تر قسم ماتولو مخكي كفاره اداء كړي او مسكين ته مال وركړي. نو د هغه كفاره هم نه اداء كيږي. او وركول سوى مال هم له مسكين څخه واپس نه سي اخيستلاى. ځكه چي هغه مال په وركولو سره د ده له طرفه صدقه او خيرات وګرځېدى. او صدقه كړى سوى شى واپس اخيستل جائز نه دي.

## د ګناه پر كار قسم اخيستل

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ عَلٰى مَعْصِيَةٍ مِثْلَ أَنْ لَا يُصَلِّيَ أَوْ لَا يُكَلِّمَ أَبَاهُ أَوْ لَيَقْتُلَنَّ فُلَانًا فرمايي: او كوم سړى چي د يو ګناه پر كار قسم واخلي مثلاً [داسي قسم واخلي] چي هغه به لمونځ نه كوي. يا به د خپل پلار سره خبري نه كوي. يا فلانكى به خامخا وژني يَنْبَغِي أَنْ يَحْنَثَ نَفْسَهُ وَيُكَفِّرَ عَنْ يَمِينِهِ نو هغه ته ښكار دي چي خپل ځان حانث كړي [يعني خپل قسم مات كړي] او له خپل قسم څخه كفاره وركړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: "مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِينٍ وَرَأٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا ځكه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي قسم واخلي او له قسم څخه بغير [تر قسم] غوره وګڼي [يعني د قسم مخالف شى غوره وګڼي او د قسم په مخالفت كولو كي خير ويني] فَلْيَأْتِ بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ ثُمَّ لِيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ" نو كوم چي غوره وي هغه دي وكړي بيا دي د خپل قسم كفاره وركړي وَلِأَنَّ فِيمَا قُلْنَاهُ تَفْوِيتُ الْبِرِّ إِلٰى جَابِرٍ وَهُوَ الْكَفَّارَةُ او ځكه موږ چي كوم صورت بيان كړى دى په هغه كي د تلافي كونكي شي يعني د كفارې وطرف ته د قسم فوتول [او د قسم ماتول] دي وَلَا جَابِرَ لِلْمَعْصِيَةِ فِي ضِدِّهِ او زموږ د بيان سوي صورت په ضد كي د ګناه لپاره هيڅ تلافي كونكى شى نسته وَإِذَا حَلَفَ الْكَافِرُ ثُمَّ حَنِثَ فِي حَالِ كُفْرِهِ أَوْ بَعْدَ إِسْلَامِهِ او كله چي كافر كس قسم واخلي بيا د خپل كفر په حالت كي يا تر خپل اسلام وروسته حانث سي فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ نو پر هغه حنث [يعني كفاره] نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْيَمِينِ ځكه چي كافر [بالكل] د قسم أهل نه دى لِأَنَّهَا تُعْقَدُ لِتَعْظِيمِ اللهِ تَعَالٰى ځكه چي قسم د الله د تعظيم لپاره اخيستل كيږي [يعني د قسم اخيستونكي كس په قسم اخيستلو كي د الله د تعظيم عقيده وي]

---

[1] تخريج: رواه البخاري، رقم الحديث: ۶۶۲۲.

وَمَعَ الْكُفْرِ لَا يَكُونُ مُعَظِّمًا او د كفر سره انسان تعظيم كونكى نه سي كېدلاى [يعني كافر كس تعظيم كونكي ګرځېدلاى نه سي] وَلَا هُوَ أَهْلُ الْكَفَّارَةِ او نه كافر د كفارې أهل دى لِأَنَّهَا عِبَادَةٌ ځكه چي كفاره يو عبادت دى.

**اللغات:** ﴿مَعْصِيَةٌ﴾ ګناه، نافرماني (د ګناه كار). ﴿يَنْبَغِيْ﴾ د انفعال مضارع ده: مناسب دي، پكار دي. ﴿يُكَفِّرُ﴾ د تفعيل مضارع ده: كفاره وركول، كفاره اداء كول. ﴿تَفْوِيْتٌ﴾ د تفعيل مصدر دى: فوت كول (فوتول)، ختمول. ﴿بَرّ﴾ د "باء" په فتحه سره له سمع او ضرب دواړو څخه مصدر دى: قسم پوره كول، له قسم څخه بري كېدل. د "تَفْوِيْتُ الْبَرّ" معنىٰ ده: د قسم پوره والي فوتول (يعني قسم نه پوره كول او قسم ماتول). ﴿جَابِرٌ﴾ تلافي كونكى، (هغه شى چي د تاوان پر ځاى ودرېږي). د تاوان او نقصان خليفه (د تاوان په عوض كي درېدونكى شى).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي څرنګه پر بنه او نېک قسم ټينګ پاتېدل غوره او مناسب دي، همداسي د ګناه او معصيت قسم ماتول غوره او مناسب دي. نو كه يو څوک داسي قسم واخلي چي زه به لمونځ نه كوم، يا به د پلار سره خبري نه كوم، يا به فلانكى سړى وژنم. نو هغه ته پكار دي چي خپل قسم مات كړي او د قسم كفاره اداء كړي. ځكه چي په دې كارونو كي هر محلوف عليه كار معصيت او ګناه ده، او د ګناه قسم ماتول ډېر ضروري دي. په حديث كي ذكر سوي دي چي كه يو څوک پر يو شي قسم واخلي. او وروسته د قسم په مخالفت كولو كي خير ويني، نو په څه كي چي خير ويني، هغه دي اختيار كړي. او د خپل قسم ماتولو كفاره دي اداء كړي.

**ولأن تفويت إلخ:** عقلي دليل دا دى چي د ګناه د قسم په ماتولو او د هغه په كفاره وركولو كي قسم د جابر (تلافي كونكي شي) په عوض كي يعني د كفارې په عوض كي فوتول او ماتول دي. او د جابر په عوض كي فوتول د نه فوتولو په څېر دي. لهذا د قسم ماتولو په وجه چي كومه لږ ګناه واقع سي، كفاره به هغه ختمه او مسح كړي، او د قسم ماتولو په وجه به د هغه (قسم اخيستونكي) مؤاخذه نه كيږي (او سزا به نه وركول كيږي). لېكن كه هغه قسم مات نه كړي، بلكي قسم پوره كړي، لمونځ نه كوي، د خپل پلار سره خبري نه كوي، يا قتل وكړي، نو په دې صورت كي به سخته ګناه هم واقع سي، او د دې ګناه هيڅ جابر (تلافي كونكى شى) به هم نه وي (ځكه چي په دې صورت كي به هغه د قسم پوره كولو په وجه كفاره نه اداء كوي). صاحب د كتاب په "وَلَا جَابِرَ إلخ" سره همدا خبره بيان كړې ده.

**وإذا حلف الكافر إلخ**: او که یو کافر سړی قسم واخلي. او بیا قسم مات کړي. لو پر هغه کفاره نشته. هغه که د کفر په حالت کي قسم مات کړي. او که تر اسلام راوړلو وروسته قسم مات کړي. ځکه چي هغه د کفر په حالت کي قسم اخیستی دی. او کافر د قسم اخیستلو أهل نه دی. ځکه چي قسم خو یا د الله په نامه سره صحیح کیږي (منعقد کیږي). یا د الله په ذاتي صفاتو سره صحیح کیږي. او کافر نه الله مني. او نه د هغه ذاتي صفات مني. او نه د الله تعظیم کوي. نو ځکه به د الله د نامه په اخیستلو سره هغه قسم کونکي نه ګرځي. او کله چي هغه قسم کونکي نه ګرځي. نو بیا که د کفر په حالت کي قسم مات کړي یا د اسلام په حالت کي. کفاره به پر لازم نه وي.

## پر خپل ځان یو شی حرامول

وَمَنْ حَرَّمَ عَلَى نَفْسِهِ شَيْئًا مِمَّا يَمْلِكُهُ او که یو څوک پر خپل ځان له هغو شیانو څخه یو شی حرام کړي د کومو شیانو چي هغه مالک وي لَمْ يَصِرْ مُحَرَّمًا نو دا شی پر هغه حرام نه ګرځي وَعَلَيْهِ إِنْ اِسْتَبَاحَهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ [خو بیا هم] که هغه دا شی [پر خپل ځان] مباح وګرځوي نو پر هغه [د قسم] کفاره واجب ده [خلاصه دا چي کوم شیان د انسان لپاره حلال وي او د هغه په ملکیت کي وي. نو که انسان له هغو شیانو څخه یو شی پر خپل ځان حرام کړي. نو هغه خو په حقیقت کي نه حرامیږي. خو که انسان هغه شی استعمال کړي. نو پر هغه به د قسم کفاره لازم وي. نقلي دلیل دا دی چي نبي ﷺ د خپلي بي بي د طعنې (او پېغور) په وجه عسل پر خپل ځان حرام کړه. نو الله تعالیٰ هغه ته تنبیه ورکړه او هغه یې قسم وګرځوی او پر دې باندي کفاره هم لازم سوه. آیت دا دی: "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللهُ (سورة التحريم: ۶۶)"] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي پر هغه کفاره نشته لِأَنَّ تَحْرِيمَ الْحَلَالِ قَلْبُ الْمَشْرُوعِ ځکه چي حلال شی حرامول د شرعي حکم چپه اړول دي. فَلَا يَنْعَقِدُ بِهِ تَصَرُّفٌ مَشْرُوعٌ وَهُوَ الْيَمِينُ نو ځکه به په دې سره شرعي تصرف یعني قسم نه منعقد کیږي ایعني حلال شی مشروع او په شریعت کي روا دی. او دلته قسم اخیستونکی د هغه برعکس کار وکړی او مشروع کار یې پر ځان ممنوع وګرځوی. نو ځکه به بالکل قسم نه صحیح کیږي] وَلَنَا: أَنَّ اللَّفْظَ يُنْبِئُ عَنْ إِثْبَاتِ الْحُرْمَةِ او زموږ دلیل دا دی: چي ادلته د قسم الفظ ایعني حرام شی پر ځان حرامول] د حرمت ثابتولو خبر ورکوي وَقَدْ أَمْكَنَ إِعْمَالُهُ بِثُبُوتِ الْحُرْمَةِ لِغَيْرِهِ بِإِثْبَاتِ مُوجَبِ الْيَمِينِ او له دې لفظ څخه بغیر د بل لفظ یعني د قسم د موجب په ثابتولو سره د حرمت

ثابتېدل او دغه لفظ ته عمل ورکول ممکن دي فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځکه به د هغه وطرف ته رجوع کيږي ثُمَّ إِذَا فَعَلَ مِمَّا حَرَّمَهُ قَلِيلًا أَوْ كَثِيرًا بيا چي کله هغه دا حرام کړی سوی شی لږ وکړي يا زيات وکړي حَنِثَ نو هغه حانث کيږي [او قسم يې ماتيږي] وَوَجَبَتْ الْكَفَّارَةُ او [پر هغه] به کفاره واجب وي وَهُوَ الْمَعْنَى مِنَ الِاسْتِبَاحَةِ الْمَذْكُورَةِ او [په متن کي] د ذکر سوي وي استباحة همدغه مطلب دی لِأَنَّ التَّحْرِيمَ إِذَا ثَبَتَ تَنَاوَلَ كُلَّ جُزْءٍ مِنْهُ ځکه تحريم چي کله ثابت سي نو د حرام کړی سوي شي هر جزء ته شامليږي..

**اللغات:** ﴿إِسْتَبَاحَ﴾ د استفعال ماضي ده: حلال ګرځول (حلالو). د ځان لپاره روا ګڼل. ﴿قَلَب﴾ د ضرب مصدر دی: چپه اړول. ګرځول. لوړ طرف لاندي کول (نسکورول). ﴿تَنَاوَلَ﴾ د تفاعل ماضي ده: شاملېدل.

**تشريح:**

**ولنا إلخ:** زموږ دليل دا دی چي هغه حرام ګرځونکي سړي چي کوم لفظ او جمله استعمال کړې ده (مثلاً حَرَّمْتُ عَلَى نَفْسِيْ طَعَامِيْ يا داسي بله جمله). دا جمله د حرمت ثابتولو خبر ورکوي. لېکن څرنګه چي يو شی لذاته (لعينه) حرام ګرځول د انسان په وس کي نه دي (يعني د انسان په وس کي دا خبره نسته چي د يو حلال شی ذات او عين پر خپل ځان جرام وګرځوي. ځکه چي شريعت خو هغه حلال کړی دی. لېکن لغيره [د بل شي په وجه] يو شی پر ځان حرامول د انسان په وس کي دي). نو ځکه به دلته حرمت لذاته خو نه ثابتيږي. مګر د ده لفظ ته به په عمل ورکولو سره هغه (د ده لفظ) قسم ګرځول کيږي او د قسم د تقاضا او موجب مطابق به حرمت ثابتيږي. او دا به ويل کيږي. چي که دغه سړي په حرام کړي سوي شي (مُحَرَّم شي) کي لږ تصرف هم وکړی. نو هم به دئ په خپل قسم کي حانث کيږي. او پر ده به د قسم کفاره واجب وي. صاحب د هدايې فرمايي چي د متن په دې جمله "وعليه إن استباحه كفارة يمين" کي د إستباحة همدغه مطلب دی. يعني په مُحَرَّم شي کي تصرف کول. او دا تصرف قليل او کثير (لږ او ډېر) ټولو ته شامليږي. ځکه چي د حرمت ثبوت د مُحَرَّم شي هر. هر جزء ته شامليږي.

## د "كُلُّ حِلٍّ عَلَيَّ حَرَامٌ" ويلو حكم

وَلَوْ قَالَ: كُلُّ حِلٍّ عَلَيَّ حَرَامٌ او كه [يو څوک] ووايي: هر حلال شئ پر ما حرام دی فَهُوَ عَلَى الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ نو دا قسم به [فقط] د خورک او څښاک [د شيانو] سره متعلق وي [مطلب دا چي په دې قسم او جملې سره خو يکار دا وه چي ښځه او داسي نور هم د ده لپاره حرام سي. لېکن حکم داسي نه دی، بلکي له دې قسم او جملې څخه فقط د خوراک او څښاک شيان مراديږي او پر ده خپله ښځه نه حراميږي، يعني د خوراک او څښاک د شيانو په استعمالولو سره پر ده کفاره لازميږي. حراميږي هغه هم نه] إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ غَيْرَ ذَلِكَ مگر دا چي له دې څخه بغير [د بل شي] نيت وکړي [مثلاً پر ځان د خپلي ښځي د حرامولو نيت وکړي، نو ښځه هم پر هغه حراميږي] وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَحْنَثَ كَمَا فَرَغَ او قياس دا دی: چي [د دې جملې له ويلو څخه] تر فراغت وروسته [سمدستي] هغه حانث سي لِأَنَّهُ بَاشَرَ فِعْلًا مُبَاحًا وَهُوَ التَّنَفُّسُ وَنَحْوُهُ ځکه چي هغه [تر دې وروسته] يو مباح کار پر ځان حرام کړی چي هغه ساه اخيستل او داسي نور دي [يعني دغه سړي هر حلال شی پر ځان حرام کړی. او په حلال شي کي خو ساه اخيستل هم راځي، او هغه به خامخا تر قسم اخيستلو وروسته ساه اخيستې وي، نو ځکه به تر قسم اخيستلو وروسته سمدستي حانث کيږي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله رايه ده] هَذَا قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ الْبِرُّ لَا يَتَحَصَّلُ مَعَ اعْتِبَارِ الْعُمُومِ د استحسان دليل دا دی: چي د قسم مقصود يعني د قسم پوره کول. هغه [دلته] د عموم په اعتبار سره نه حاصليږي [يعني دلته که د عموم اعتبار وکړی سي او هر شئ پر هغه حرام کړی سي (چي په هغه کي ساه اخيستل هم راځي)، نو په دې توگه انسان قسم پوره کولای نه سي او له قسم څخه بري کېدلای نه سي، ځکه چي دا ممکن نه دي] وَإِذَا سَقَطَ اعْتِبَارُهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ لِلْعُرْفِ او کله چي د عموم اعتبار ساقط سو نو د عُرف په وجه به قسم د خوراک او څښاک [د شيانو] وطرف ته گرځول کيږي فَإِنَّهُ يُسْتَعْمَلُ فِيمَا يَتَنَاوَلُ عَادَةً ځکه چي داسي قسم [او جمله] هغو شيانو ته شامليږي کوم چي عادتاً استعماليږي [د استحسان د دليل خلاصه دا ده چي د قسم اخيستلو مقصد د قسم پوره کول او له قسم څخه بري کېدل دي. او که دلته په قسم کي د عموم اعتبار وسي او قسم دومره عام کړی سي چي ساه هم انسان نه سي اخيستلای، دا ممکن نه دي، لهذا کله چي د "کُل حِل" په جمله او قسم کي عموم پاته نه سو، نو د عادت په توگه چي کوم شيان

استعمالیږي. فقط هغه به مرادیږي. یعني د خوراک او چښاک شیان. نو ځکه به فقط د خوراک او چښاک په شیانو سره حانث کیږي ا وَلَا يَتَنَاوَلُ الْمَرْأَةَ إِلَّا بِالنِّيَّةِ او دا قسم له نیت څخه بغیر ښځي ته نه شاملیږي لِإِسْقَاطِ اعْتِبَارِ الْعُمُومِ ځکه چي د عموم اعتبار ساقط کړی سو وَإِذَا نَوَاهَا كَانَ إِيلَاءً او که هغه [قسم اخیستونکی] د خپلي ښځي نیت [هم] وکړي نو دا به ایلاء وي [یعني په دې قسم او جمله "کُل حل" کي ښځه نه شاملیږي. لیکن که هغه د ښځي نیت هم وکړي، نو ښځه شاملیږي او خاوند به ایلاء کونکي وي، لیکن تر دې وروسته هم د خوراک او چښاک له شیانو څخه قسم نه ختمیږي، او هغه به د مخکي په څیر پر دغه سړي حرام وي، همدا ظاهر روایت دی] وَلَا تُصْرَفُ الْيَمِينُ عَنِ الْمَأْكُولِ وَالْمَشْرُوبِ لیکن د خوراک او چښاک د شیانو څخه به قسم نه ګرځول کیږي وَهَذَا كُلُّهُ جَوَابُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ دا ټوله د ظاهر روایت حکم دی وَمَشَايِخُنَا قَالُوا: يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ عَنْ غَيْرِ نِيَّةٍ لِغَلَبَةِ الْاِسْتِعْمَالِ او زموږ علماؤ فرمایلي دي: چي د ډېر استعمال په وجه په داسي قسم [او جمله] له نیت څخه بغیر [هم] طلاق واقع کیږي وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدې باندي فتوی [هم] ده [ځکه چي د "کل حل" په جمله سره په عامو وختو کي ښځه مرادیږي] وَكَذَا يَنْبَغِي فِي قَوْلِهِ [في الفارسية]: حلال بَرُ وَیْ حرام لِلْعُرْفِ همدارنګه [په فارسي ژبه] دیو چا په دې قول سره [هم طلاق واقع کېدل پکار دي]: "حلال بر وی حرام" [حلال شی پر هغه (ما) حرام دی] [یعني په عرف کي داسي جمله ښځي ته د طلاق ورکولو لپاره استعمالیږي. نو ځکه به په دې سره طلاق واقع کیږي] وَاخْتَلَفُوا فِي قَوْلِهِ هرچه بردست رَاستُ گیرم بَر وی حرام او علماؤ په دې قول کي اختلاف کړی دی: "هرچه بروست راست گیرم بروی حرام" [هر هغه شی کوم چي زه په راسته لاس نیسم. پر ما حرام دي] أَنَّهُ هَلْ تُشْتَرَطُ النِّيَّةُ چي آیا [په دې جمله کي د طلاق واقع کېدلو لپاره] نیت شرط دی؟ [او که شرط نه دی؟] وَالْأَظْهَرُ أَنَّهُ يُجْعَلُ طَلَاقًا مِنْ غَيْرِ نِيَّةٍ لِلْعُرْفِ او ظاهر دا دي [یعني ظاهر روایت دا دی] چي د عرف په وجه به دا له نیت څخه بغیر [هم] طلاق ګرځول کیږي [یعني ظاهر روایت همدا دی چي له نیت څخه بغیر هم په دې جمله سره طلاق واقع کیږي. ځکه چي په عرف کي داسي جمله د طلاق لپاره استعمالیږي].

**اللغات:** ﴿شَرَاب﴾ چښاک. مشروب (د چښاک شی). ﴿بَاشَرَ﴾ د مفاعلې ماضي ده: په خپله یو کار کول. ﴿تَنَفُّس﴾ ساه اخیستل (ژوند تېرول). ﴿بَرّ﴾ قسم پوره کول. له قسم څخه بري کېدل.

**تشریح:** عبارت په ترجمه کي تشریح سو.

## د مطلق او معلق نذر حکم

وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا مُطْلَقًا او څوک چې مطلق نذر ومني فَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ نو پر هغه نذر پوره کول واجب دي لِقَوْلِهِ الطَّيْعِلاَ [1] : مَنْ نَذَرَ وَسَمّٰى فَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ بِمَا سَمّٰى ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې يو نذر ومني او هغه متعين کړي نو پر هغه د متعين کړی سوي شي پوره کول واجب دي وَإِنْ عَلَّقَ النَّذْرَ بِشَرْطٍ او که [يو څوک] نذر پر يو شرط معلق کړي فَوُجِدَ الشَّرْطُ بيا هغه شرط موجود سي فَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ بِنَفْسِ النَّذْرِ نو پر هغه خاص هغه [متعين] نذر پوره کول واجب دي لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ ځکه چې حديث مطلق دی وَلِأَنَّ الْمُعَلَّقَ بِالشَّرْطِ كَالْمُنَجَّزِ عِنْدَهُ او ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نيز معلق بالشرط د منجز په شير دی [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نيز شرطيه نذر کول د غير شرطيه نذر کولو په شير دی] وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ رَجَعَ عَنْهُ او له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه [دويم] روايت دا دی چې هغه له خپل دې قول څخه رجوع وکړه وَقَالَ: إِذَا قَالَ: إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَعَلَيَّ حَجَّةٌ أَوْ صَوْمُ سَنَةٍ أَوْ صَدَقَةُ مَا أَمْلِكُهُ او ويې فرمايل: که يو څوک ووايي: که زه داسي وکړم، نو پر ما حج لازم دی، يا د يوه کال روژه لازم ده، يا د هغه مال صدقه لازم ده چې زه يې مالک يم أَجْزَأَهُ مِنْ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ يَمِينٍ نو په دې کي د هغه لپاره د قسم کفاره کافي ده وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ قول دی وَيَخْرُجُ عَنِ الْعُهْدَةِ بِالْوَفَاءِ بِمَا سَمّٰى أَيْضًا او د متعين کړی سوي شي په اداء کولو سره هغه سړی له ذمه واري څخه وځي [يعني د نذر کړی سوي شي په اداء کولو سره هغه بري کيږي او غاړې يې خلاصيږي] وَهٰذَا إِذَا كَانَ شَرْطًا لَا يُرِيدُ كَوْنَهُ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چې شرط داسي وي چې نذر منونکی د هغه د واقع کېدلو اراده نه لري [يعني د هغه په وقوع راضي نه وي] لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْيَمِينِ وَهُوَ الْمَنْعُ ځکه چې په دې کي د قسم معنیٰ سته او هغه منع کېدل [امتناع] دي وَهُوَ بِظَاهِرِهِ نَذْرٌ او دا په ظاهر کي نذر دی [او د معنیٰ په اعتبار سره قسم دی] فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به هغه لره اختيار وي وَيَمِيلُ إِلَى أَيِّ الْجِهَتَيْنِ شَاءَ او [د نذر او کفارې] په دواړو طرفونو کي چې يې کوم طرف خوښ وي هغه طرف ته دې ميلان وکړي [يعني که کفاره اداء کوي. او که نذر پوره

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد رقم الحديث: ٣٢٩١

کوي ا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ شَرْطًا يُرِيدُ كَوْنَهُ په خلاف د هغه صورت کله چي شرط داسي وي چي نذر منونکی يې د واقع کېدلو اراده لري ايعني په واقع کېدلو يې راضي وي ا كَقَوْلِهِ: إِنْ شَفَى اللهُ مَرِيضِي لکه د هغه دا قول: که چيري الله تعالیٰ زما مريض ته شفاء ورکړي أنو پر ما د يوه کال روژې لازم دي (مثلاً) ا لِانْعِدَامِ مَعْنَى الْيَمِينِ فِيهِ ځکه چي په دې کي د قسم معنیٰ ايعني منع کېدل ا نسته وَهٰذَا التَّفْصِيلُ هُوَ الصَّحِيحُ او همدا تفصيل صحيح دی قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ وَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللهُ مُتَّصِلًا بِيَمِينِهِ فرمايي: او څوک چي قسم واخلي او د قسم سره متصل إنشاء الله ووايي فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ نو پر هغه حانثوالي نسته ايعني د قسم په مخالفت کولو سره هغه د قسم ماتونکي نه ګرځي او نه حانث کيږي ا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ وَقَالَ إِنْ شَاءَ اللهُ فَقَدْ بَرَّ فِي يَمِينِهِ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي قسم واخلي او انشاء الله ووايي نو هغه په خپل قسم کي بري سو إِلَّا أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الِاتِّصَالِ خو متصلاً اسمدستي ا انشاء الله ويل ضروري دي لِأَنَّهُ بَعْدَ الْفَرَاغِ رُجُوعٌ ځکه چي له قسم څخه تر فارغه کېدو وروسته إنشاء ويل اله قسم څخه ا رجوع کول دي وَلَا رُجُوعَ فِي الْيَمِينِ او په قسم کي رجوع نسته. ايعني په قسم کي رجوع جائز نه ده ا.

**اللغات:** ﴿وَفَاءٌ﴾ پوره کول. ﴿سَمّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: نوم اخيستل. مقرر کول (ټاکل). متعين کول (معلومول). ﴿مُنَجَّزٌ﴾ فوراً واقع کېدونکی (هغه شی کوم چي سمدستي واقع کړی سي). ﴿عُهْدَةٌ﴾ ذمه واري. ﴿بَرَّ﴾ د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده. له سمع او ضرب دواړو څخه راځي: قسم پوره کول. له قسم څخه بري کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک مطلق نذر ومني او پر هيڅ شرط يې معلق نه کړي. مثلاً داسي ووايي: "لِلّٰهِ عَلَيَّ صَوْمُ سَنَةٍ" (پر ما د الله تعالیٰ لپاره د يوه کال روژې لازم دي). نو پر هغه دغه نذر پوره کول واجب او ضروري دي: د دې يو دليل خو د قرآن کريم دا آيت دی: "وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ". او دويم دليل دا حديث دی "مَن نذر وسمّٰی فعليه الوفاء بما سمّٰی". يعني څوک چي يو معلوم شی پر ځان نذر کړي. نو پر ده واجب دي چي هغه معلوم شی پوره کړي.

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ۳۲۶۲.

او که يو څوک مقيد نذر ومني يعني نذر پر يو شرط معلق کړي، مثلاً داسي ووايي: "إِنْ شَفَانِي اللّٰهُ فَعَلَيَّ صَوْمُ سَنَةٍ" (که الله ماته [اله دې مرض څخه] شفاء راکړه، نو پر ما د ټوله کال روژي لازم دي).

او بيا شرط موجود سي، يعني الله تعالیٰ هغه ته شفاء ورکړي، نو پر هغه نذر پوره کول واجب دي. او فقط په کفاره ورکولو سره د ده غاړي نه خلاصيږي، ځکه چي پورتنی حديث "مَنْ نَذَرَ وسمّٰى... إلخ" مطلق دی، او په دې حديث کي د هر ډول نذر پوره کولو حکم سوی دی. هغه که مطلق نذر وي، يا مقيد نذر وي: او بل دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مُعلق بالشرط د منجز په څير دی. او څوک چي منجز نذر وکړي، نو پر هغه نذر پوره کول لازم دي، لهذا په معلق نذر کي به هم پر هغه د نذر پوره کول لازم وي، او فقط په کفارې سره به هغه نه بري کيږي.

خو امام صاحب رَحِمَهُ الله وروسته له خپل دغه قول څخه رجوع وکړه، او ويې فرمايل چي که يو څوک مقيد نذر ومني او داسي ووايي: "إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَعَلَيَّ حَجَّةٌ..." (که ما داسي وکړه نو پر ما حج لازم دی...)، نو پر هغه نذر پوره کول ضروري نه دي، او فقط په کفاره ورکولو سره هم هغه بري کيږي. صاحب د بنايې د وليد بن أبان په حواله سره ليکلي دي چي امام صاحب رَحِمَهُ الله خپل تر وفات (مړيني) اووه ورځي مخکي له دغه قول څخه رجوع وکړه "وبه يُفتي إسماعيل الزاهدي رَحِمَهُ الله وشمس الأئمة السرخسي رَحِمَهُ الله لكثرة البلوىٰ به في هذا الزّمان"، همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دی. او که هغه مقيد نذر پوره کړي، نو هم بري کيږي، او بيا د کفارې ضرورت نسته. (بناية ج:٦، ص:٤٤)

<u>وهذا إذا كان إلخ</u>: فرمايي چي دا حکم په هغه صورت کي دی، کله چي پر داسي شرط نذر معلق وي چي نذر منونکی د هغه شرط په وقوع راضي نه وي (او د هغه اراده نه لري)، مثلاً هغه داسي ويلي وي: "إِنْ شَرِبْتُ الْخَمْرَ فَعَلَيَّ صَوْمُ سَنَةٍ" (که ما شراب وڅښل، نو پر ما د يوه کال روژې لازم دي)، ښکاره خبره ده چي په دې جمله کي د يمين (قسم) معنیٰ سته، ځکه چي د هغه مقصد تعليق او شرط پوره کول نه دي، لهذا دا لفظاً نذر دی او معناً يمين دی، نو ځکه به دغه سړي ته د ايفاءُ النذر او تکفير دواړو اختيار وي (يعني ده ته به دا اختيار وي که نذر پوره کوي او که کفاره ورکوي).

لېکن که نذر منونکي پر داسي شرط نذر معلق کړی وي چي هغه د شرط په وجوداو وقوع خوشحاله او راضي کېږي. مثلاً هغه داسي ويلي وي "که چيري الله تعالیٰ زموږ مريض ته شفاء ورکړه. نو پر ما حج لازم دی. يا سنت روژه لازه ده. يا پر ما د خپل مال صدقه کول واجب دي). نو دا فقط نذر دی. يمين نه دی. ځکه چي په دې کي د يمين معنیٰ (يعني د نذر او شرط له وقوع څخه منع کېدل) نسته. صاحب د هدايې فرمايي چي د ارادې او رضاء په حواله چي موږ کوم تفصيل ذکر کړی چي په يوه صورت کي د نذر منونکي قول يمين او نذر دواړه ګرځي او په يو صورت کي فقط نذر ګرځي. همدا تفصيل صحيح دی او د لمر په شان واضح دی.

**قال: ومن حلف إلخ**: مسئله دا ده که يو سړی قسم واخلي او د قسم سره متصل إنشاء الله ووايي. نو دا سړی د قسم په مخالفت کولو سره نه حانث کېږي (يعني که د قسم خلاف کار وکړي. نو قسم يې نه ماتيږي)، ځکه چي په حديث کي ذکر سوي دي: "من حلف على يمين. وقال إن شاء الله فقد بَرَّ فِي يمينه" او د "بَرَّ فِي يمينه" مطلب همدا دی چي د هغه قسم نه منعقد کېږي (يعني هغه قسم کونکی نه ګرځي)، نو ځکه به هغه هيڅکله هم نه حانث کېږي. د دې تأئيد د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په هغه حديث سره هم کيږي کوم چي په ترمذي او نسائي کي ذکر سوی دی "أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ. فَقَالَ إِنْ شَاءَ اللهُ لَمْ يَحْنث" (بنايه ج:۶. ص:۴۰) ، خو دا په ياد لرئ! چي له حانثوالي څخه د ځان ساتلو لپاره متصلاً إنشاء الله ويل ضروري دي. او که له قسم څخه څه وخت وروسته إنشاء الله وويل سي، نو د دې هيڅ اعتبار نسته. ځکه چي له قسم څخه وروسته إن شاء الله ويل په حقيقت کي له قسم څخه رجوع کول دي، او په قسم کي رجوع جائز نه ده، نو په دې وجه تر قسم وروسته د ان شاء الله ويلو هيڅ اعتبار نسته. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الدُّخُوْلِ وَالسُّكْنٰى

(دا) باب (په کور کي) د داخلېدلو او استېدلو (په بيان کي) دی.

**تشريح:** قسم خو يا د يو کار د کولو لپاره منعقد کيږي (او اخيستل کيږي)، يا د يو د کار د نه کولو لپاره، نو کله چي په "بَابُ الْيَمِيْن" کي هغه الفاظ بيان سول چي په هغوی سره قسم منعقد کيږي (يعني په هغوی سره انسان قسم اخيستونکي ګرځي)، نو د هغه أحوالو او افعالو بيانول هم ضروري دي چي په هغوی کي قسم منعقد کيږي. نو په همدې وجه صاحب د هدايې په ترتيب سره په را روانو بابونو کي په انساني ژوند کي د راتلونکو أحوالو او افعالو په هکله د قسم أحکام او مسائل بيانوي. او څرنګه چي په کور کي داخلېدل او اوسېدل د انسان له نورو ضروريا تو څخه مُقدم (مخکي) دي. نو په دې وجه دا باب له نورو بابونو څخه مخکي بيانوي. (بنايه ج:۶. ص: ۴۷)

**دخول:** د دخول معنیٰ ده: له دباندي څخه دننه تلل (له ظاهر څخه په باطن ننوتل)، داخلېدل.

**سکنٰی:** د دې لفظ يوه معنیٰ ده: "إِسْكَان" (استوګنه ورکول، يعني د استوګني لپاره ځای ورکول).

لکه مخکي چي د نفقې په باب کي د دې يادونه وسوه. او د دې لفظ بل معنیٰ ده: په يو ځای کې په دائمي او مستقله توګه اوسېدل، استېدل، استوګنه کول (دلته يې همدغه معنیٰ مراده).

**يادونه:** د عبارت تر شروع مخکي دا خبره بايد تاسي په ياد ولرئ! چي په عربي کي "بَيْت" داسي ځای ته وايي چي چارديواري، بام او دروازه لري (که هغه هر څومره غټ وي) چي هغه ته زموږ په اصطلاح کي خونه. کوټه يا کمره وايي (او که هغه غټ ځای وي نو زموږ په اصطلاح غټه کوټه او خونه ورته وايي). او کور ته په عربي کي "دَار" وايي.

## خوني (کوټې) ته د نه داخلېدلو قسم اخيستل او بيا د خوني دالېز، چارچوب، او کعبې، مسجد او داسي نورو ته داخلېدل

| |
|---|
| وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ بَيْتًا او که يو څوک قسم واخلي چي هغه به بيت (خوني) ته نه داخليږي فَدَخَلَ الْكَعْبَةَ أَوِ الْمَسْجِدَ أَوِ الْبِيْعَةَ أَوِ الْكَنِيْسَةَ بيا کعبې (بيتُ الله) ته داخل سي يا مسجد ته. يا د کافرانو عبادت ځای ته. يا کليسا ته (داخل سي) لَمْ يَحْنَثْ نو هغه نه حانث کيږي لِأَنَّ الْبَيْتَ مَا أُعِدَّ |

لِلْبَيْتُوتَةِ ځکه چي کور هغه ځای ته وايي کوم چي د شپې تېرولو [د شپې بيدېدلو] لپاره تيار سي وَهٰذِهِ الْبِقَاعُ مَا بُنِيَتْ لَهَا او دا ځايونه د شپې تېرولو لپاره نه جوړېږي [بلکي د عبادت لپاره جوړېږي] وَكَذَا إِذَا دَخَلَ دِهْلِيزًا أَوْ ظُلَّةَ بَابِ الدَّارِ او همدارنګه هغه [نه حانث کيږي] کله چي داخل سي [د خوني] داليز [چارچوب] ته يا [د خوني او] د کور چتر [او سايې] ته [يعني که يو څوک قسم واخلي چي زه به دغه خوني ته نه داخلېږم، يا به دغه کور ته نه داخلېږم، او بيا د خوني او کور په راوتلي داليز او چارچوب کي پښه کښېږدي، نو نه حانث کيږي. همداسي د خوني او کور مخته چي د سايې لپاره کوم شی جوړ سوی وي چي هغه ته چتر يا کوچنی برنډه وايي. هغه ته په داخلېدلو سره هم نه حانثيږي، له "ظُلَّة" څخه همدغه د سايې شی مراد دی. او مصنف رَحِمَهُ الله چي يې کومه معنیٰ ذکر کړې ده، هغه هم د "ظُلَّة" په تعريف کي داخله ده] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی دي [چي دا د شپې تېر او بيدېدلو ځايونه نه دي] وَالظُّلَّةُ مَا تَكُونُ عَلَى السِّكَّةِ او ظله د هغه شي سايې ته وايي کوم چي د [کورنۍ] لاري [او کوڅې] د پاسه وي [چي هغه ته چتر ويل کيږي. همدارنګه "ظله" هغه چتر ته وايي کوم چي کور ته د داخلېدونکي کوڅې پر سر جوړ سوی وي، چي داسي کوڅې ته ځيني خلک د کور سوپ وايي] وَقِيلَ: إِذَا كَانَ الدِّهْلِيزُ بِحَيْثُ لَوْ أُغْلِقَ الْبَابُ يَبْقَى دَاخِلًا وَهُوَ مُسْقَفٌ او ويل سوي دي: که چيري دالېز داسي وي چي که [د خوني] دروازه بنده کړی سي نو هغه دننه پاتيږي او هغه چت لرونکی وي [چي هغه ته زموږ په اصطلاح دالېز، دالان، هال او داسي نور ورته وايي او عموماً د زړ خانې د خونو مخته جوړ سوی وي، نو که چيري قسم اخيستونکی سړی داسي دالېز ته داخل سي] يَحْنَثُ نو حانث کيږي لِأَنَّهُ يُبَاتُ فِيهِ عَادَةً ځکه چي په داسي دالېز کي عادتاً شپې تېرول کيږي [يعني په داسي دالېز کي عموماً خلک بيديږي او د بيدېدلو عادت پکښي جاري دی] وَإِنْ دَخَلَ صُفَّةً او که هغه [قسم اخيستونکی] دوکانچې ته داخل سي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّهَا تُبْنَى لِلْبَيْتُوتَةِ فِيهَا فِي بَعْضِ الْأَوْقَاتِ ځکه چي هغه کله نا کله د شپې تېرولو [او خوب کولو] لپاره جوړېږي [خصوصاً د صحراء په خلکو کي دا رواج دی چي د ژمي په موسم کي جلا دوکانچه جوړوي، او د ګرمۍ په موسم کي يې جلا جوړوي. چي هغه ته د ژمي او ګرمۍ دوکانچه وايي] فَصَارَ كَالشَّتْوِيِّ وَالصَّيْفِيِّ نو داسي سو لکه د ژمي او ګرمۍ دوکانچه وَقِيلَ: هٰذَا إِذَا كَانَتِ الصُّفَّةُ ذَاتَ حَوَائِطَ أَرْبَعَةٍ او ويل سوي دي: چي دا حکم په هغه صورت کي دی [يعني هغه وخت دا سړی حانث کيږي] کله چي دوکانچه چار ديواری والا

وي [يعني څلور سره طرفونو ته يې دېوال جوړ سوى وي] وَهَكَذَا كَانَتْ صِفَافُهُمْ او د كوفې د خلكو دوكانچې همداسې وې [نو ځكه به چار ديوارۍ والا دوكانچه مراد وي، ځكه چې همداسې دوكانچه د "بيت" په درجه كې ده] وَقِيلَ: الْجَوَابُ مُجْرَى عَلَى إِطْلَاقِهِ او ويل سوي دي: چې دا حكم پر خپل إطلاق جاري دى [يعني په هر صورت كې همدغه حكم دى چې دژمي او گرمۍ دوكانچې ته په داخلېدلو سره انسان حانث كېږي، هغه كه چاردېواري لري، يا درې دېواله پر راګرځېدلي وي، يا داسې نور...] وَهُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح قول دى.

**اللغات:** ﴿بِيْعَة﴾ د عيسايانو عبادت ځاى، ګرجا، د كافرانو عبادت ځاى لكه مندر، درمسال. ﴿كَنِيْسَة﴾ كليسا، د يهوديانو او عيسايانو عبادت ځاى. ﴿بَيْتُوْتَة﴾ د ضرب مصدر دى: شپه تېرول، شپه تېر (مراد ځني د شپې بيدېدل او خوب كول دي، او په شپه كې د هر كار كولو لپاره هم دا باب استعمالېږي، مثلاً عرب وايي: بَاتَ يَفْعَلُ: يعني هغه په شپه كې كار كوى). ﴿بِقَاع﴾ جمع د بُقْعَةٌ ده: د ځمكې ټوكړه (قطعه). ﴿ظِلَّة﴾ دا هر هغه شي ته وايي كوم چې د خوني (كوټې) يا خېمې مخته له باران او لمر څخه د حفاظت لپاره جوړ سوى وي، چې ځيني خلك يې له چيكانو او ټيمانو څخه جوړوي، او ځيني خلك يې پوخ جوړوي. ﴿دِهْلِيْز﴾ (د دال په كسره سره). دالېز. دالان. ډيوړې، د خوني د مخ چارچوب (چوكاټ)، خلاصه دا چې دالېز پر دوه قسمه دى: (١) د خوني مخته پوښل سوى ځاى (دباندينى چارچوب). (٢) د خونو تر مينځ پوښل سوي ځاى چې خوني پكښې را خلاصې وي او سر يې پټ وي، يعني بام لري (دا دواړه په دالېز كې داخل دي، په اول صورت كې نه حانث كېږي او په دويم صورت كې حانث كېږي). ﴿مُسَقَّف﴾ چت لرونكى، بام لرونكى. ﴿صُفَّة﴾ هغه څلور كونجه لوړ ځاى يا اوږد لوړ ځاى چې پر هغه خلك كښېني چې زموږ په اصطلاح دوكانچه ورته وايي (دا تعريف يې اُردو لغاتو ذكر كړى دى). سايه داره ځاى (سايه لرونكى ځا). (دا تعريف يې عربي لغاتو كړى دى، په دې تعريف كې مَنَا (جونكړه) هم داخلېږي كوم چې يې ځيني خلك په ګرمۍ او ژمي كې د خوب او استراحت لپاره جوړوي، صاحب د معجم الوسط وايي: "الصُّفَة: الظِلة...وَمَكَان مظلل فِي مَسْجِد الْمَدِينَة كَانَ يأْوِي إِلَيْهِ فُقَرَاء الْمُهَاجِرِين ويرعاهم الرَّسُول وهم أَصْحَابُ الصفة").

**تشريح:** عبارت په ترجمه كې تشريح سوه.

## کور ته د نه داخلېدلو قسم اخيستل او بيا ويجاړ او ويران کور (کنډوالې) ته داخلېدل

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ دَارًا او څوک چې قسم واخلي چې کور به ته نه داخليږي [يعني ووايي: قسم په خداى که کور ته داخل سم! يا په الله سره مي قسم دی کور ته به نه داخليږم] فَدَخَلَ دَارًا خَرِبَةً بيا ويجاړ سوي کور ته داخل سي لَمْ يَحْنَثْ نو هغه نه حانث کيږي [ځکه چي ويجاړ سوي او ويران کور ته کور نه وايي، او په هغه کي هيڅوک استوګنه نه کوي] وَلَوْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّارَ او که هغه قسم واخلي چي دغه کور ته به نه داخليږي فَدَخَلَهَا بَعْدَ مَا انْهَدَمَتْ وَصَارَتْ صَحْرَاءَ [او بيا هغه دغه کور ته تر نړېدلو او صحراء ګرځېدلو [کنډواله کېدلو] وروسته داخل سي حَنِثَ نو حانث کيږي [يعني قسم ماتونکي ګرځي] لِأَنَّ الدَّارَ اِسْمٌ لِلْعَرْصَةِ عِنْدَ الْعَرَبِ وَالْعَجَمِ ځکه چي د عربو او عجمو په نېز کور د غولي [او د کور د ميدان] نوم دی [يعني دار جوړ سوي کور ته هم ويل کيږي. او هغه حويلي او ميدان ته هم ويل کيږي چي کور پر جوړ سوی وي. او که څه هم کور خراب او برباد سي. نو خلګ وايي: ويران کور. کنډواله کور] يُقَالُ: دَارٌ عَامِرَةٌ وَدَارٌ غَامِرَةٌ ويل کيږي: آباد [ودان] کور او ويران [ويجاړ] کور [يعني جوړ او آباد کور ته هم خلګ کور وايي، او ويجاړ کور ته هم خلګ وايي، او په ويجاړ او ويران کور کي خو فقط حويلي او ميدان پاته وي، خو بيا هم خلګ (عرب او عجم) هغه ته کور وايي، نو معلومه سوه چي وچ ميدان او حويلي ته هم کور وايي، نو ځکه به هغه حانث کيږي] وَقَدْ شَهِدَتْ أَشْعَارُ الْعَرَبِ بِذٰلِكَ او د عربو أشعار [هم] پر دې ګواه دي [چي پر حويلي او ميدان د کور إطلاق کيږي] وَالْبِنَاءُ وَصْفٌ فِيهَا [نو ځکه] وداني [اعمارت] په کور کي فقط يو وصف دی غَيْرَ أَنَّ الْوَصْفَ فِي الْحَاضِرِ لَغْوٌ وَفِي الْغَائِبِ مُعْتَبَرٌ ليکن په حاضر [مشارُاليه کور] کي دا وصف لغو دی او په غائب [کور] کي معتبر دی [يعني په کور کي خوني او وداني جوړول (بناء) دا د کور يو صفت دی د کور سره لازم نه دي، ليکن دا صفت په حاضر او اشاره کړی سوي کور کي معتبر نه دی، فقط په غائب من النظر کور کي دا صفت معتبر دی. لهذا کله چي هغه "هذه الدار" ووايي نو هلته به ميدان مراد وي، او که "هذه الدار" نه ووايي، بلکي نکره فقط "داراً" نو هلته به ودان او جوړ سوی کور مراد وي] وَلَوْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّارَ او که هغه قسم واخلي چي دغه کور ته به نه داخليږي فَخَرِبَتْ ثُمَّ بُنِيَتْ أُخْرٰى او [بيا] دغه کور ويجاړ [او کنډواله] سي او بيا اله نوي سره [جوړ سي فَدَخَلَهَا او [بيا] هغه قسم اخيستونکی دغه کور ته داخل سي يَحْنَثُ نو حانث کيږي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ

الِاسْمَ بَاقٍ بَعْدَ الِانْهِدَامِ د هغه دليل په وجه ځکه چي مونږ ذکر کړي چي ترڼړېدلو [او ويجاړېدلو]
وروسته هم د کور نوم پاته دی ايعني له "هذه الدار" څخه د کور حويلي او ميدان مراد دي. نو که په دې حويلي
کي هر کور هم جوړ سي، هغه ته په داخلېدلو سره به دا سړی حانث کيږي. فقط دا خبره ده چي دلته د کور په وصف
او صفت کي بدلون راغلی، او په حاضر دار کي د وصف بدلون لره هيڅ اعتبار نسته [ وَإِنْ جُعِلَتْ مَسْجِدًا أَوْ حَمَّامًا
أَوْ بُسْتَانًا أَوْ بَيْتًا او که هغه ويجاړ سوی کور مسجد وګرځول سي يا حمام اغسل خانه]. يا باغ يا
خونه [کوټه وګرځول سي] فَدَخَلَهُ او [بيا] قسم اخيستونکی هغه ته داخل سي لَمْ يَحْنَثْ نو نه
حانث کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ دَارًا لِاعْتِرَاضِ اسْمٍ آخَرَ عَلَيْهِ ځکه چي پر هغه [ځای] د بل نوم راتللو په
وجه هغه [اوس] کور پاته نه سو احاصل يې دا دی که په "هذه الدار" سره تر قسم اخيستلو وروسته کور
ويجاړ سي. او بيا د هغه کور نوم بدل سي مثلاً پر هغه ځای مسجد. يا حمام. يا باغ. يا خونه او کوټه جوړ کړل سي. نو
بيا قسم اخيستونکی هغه ته په داخلېدلو سره نه حانث کيږي. ځکه چي د دې شيانو تر جوړېدلو وروسته هغه د دَار
حويلي او ميدان پاته نه سو. بلکي اوس د مسجد او داسي نورو حويلي او ميدان وګرځېدی [ وَكَذَا إِذَا دَخَلَهُ بَعْدَ
انْهِدَامِ الْحَمَّامِ وَأَشْبَاهِهِ او همدارنګه [نه حانث کيږي] کله چي تر نړېدلو وروسته حمام او داسي
نورو ته داخل سي [يعني که په پورتني صورت کي مسجد. حمام. باغ او خونه هم ويجاړ سي او بيا قسم کونکی
هغه ويجاړ سوي ځای ته داخل سي. نو هم نه حانث کيږي. ځکه کله چي يو وار له دې ځای څخه د دَار او کور نوم
ختم سو. نو بيا پر هغه د دَار نوم بيرته نه راګرځي. يعني بيا خلک هغه ته دَار او کور نه وايي. او نه پر هغه د دَار إطلاق
کيږي. ځکه چي هغه اوس د مسجد. حمام او داسي نورو حويلي او ميدان وګرځېدی [ لِأَنَّهُ لَا يَعُودُ اسْمُ الدَّارِ بِهِ
ځکه چي [پر هغه] د کور نوم بيا نه راګرځي وَإِنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذَا الْبَيْتَ او که [يو څوک] قسم
واخلي چي دغه خوني [کوټې] ته به نه داخليږي فَدَخَلَهُ بَعْدَمَا انْهَدَمَ وَصَارَ صَحْرَاءَ او [بيا] هغه
دغه خوني ته تر نړېدلو او کنډواله کېدلو وروسته داخل سي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِزَوَالِ اسْمِ
الْبَيْتِ ځکه چي [اوس له هغه خونې څخه] د خوني نوم زائل سو [ځکه چي خونه او کوټه هغه ځای ته
وايي چي انسان شپه پکښې تېرولای سي او خوب پکښې کولای سي. او په کنډواله خونه کي شپه تېر او خوب نه
سي کېدلای] لِأَنَّهُ لَا يُبَاتُ فِيهِ ځکه چي په داسي خونه کي شپې تېرول کېدای نه سي حَتَّى لَوْ بَقِيَتِ
الْحِيطَانُ وَسَقَطَ السَّقْفُ تر دې که [د خوني] دېوالونه پاته سي او [فقط] بام ولوېږي [او بيا قسم

اخيستونکی سړی هغه خوني ته داخل سي [يَحْنَثُ نو حانث کيږي لِأَنَّهُ يُبَاتُ فِيهِ ځکه چي په داسي خونه کي شپې تېرول کېدای سي وَالسَّقْفُ وَصْفٌ فِيهِ او بام [چت] خو په خونه کي يو وصف دی [الکه بناء او عمارت چي په کور کي يو وصف دی. نو په دې وجه بام لره هيڅ اعتبار سته؟ وَكَذَا إِذَا بُنِيَ بَيْتًا آخَرَ او همدارنګه کله چي [د هغه خوني پر ځای] بله خونه جوړه کړی سي فَدَخَلَهُ او هغه [نوي] خوني ته داخل سي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّ الِاسْمَ لَمْ يَبْقَ بَعْدَ الِانْهِدَامِ ځکه چي تر نړېدلو وروسته [د خوني] نوم پاته نه سو. [حاصل دا چي که په هغه خونه کي لاس ووهل سي او جوړه کړی سي، نو حانث کيږي، لېکن که هغه خونه ويرانه او کنډواله سي، او د هغه پر ځای بله نوې خونه جوړه کړی سي، نو بيا نه حانث کيږي، ځکه چي اوس دا هغه خونه نه ده چي قسم اخيستونکي په "هذا البيت" سره اشاره ورته کړې وه].

**اللغات:** ﴿خَرِبَةً﴾ ويران ځای، ويجاړ کور، کنډواله، خرابه. ﴿إِنْهَدَمَتْ﴾ د انفعال ماضي ده: نړېدل. ﴿عَرْصَةٌ﴾ د کور دننه خالي ځمکه (غولی، حويلی، صحن، انګړ)، هغه ځای ته هم وايي، چي په هغه کي هيڅ آبادي او عمارت نه وي (خالي ميدان، ډګر). ﴿عَامِرَةٌ﴾ جوړ، آباد، ودان. ﴿غَامِرَةٌ﴾ کنډواله، خرابه. ﴿حَمَّامٌ﴾ غسل خانه (د لمبېدلو ځای). ﴿حِيطَانٌ﴾ جمع د حَائِطٌ ده: دېوال.

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## په پورتني صورت کي د کور بام (چت) ته ختل

قال: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هَذِهِ الدَّارَ فرمايي: او څوک چي قسم واخلي چي دغه کور ته به نه داخلېږي فَوَقَفَ عَلَى سَطْحِهَا او [بيا] هغه د دغه کور پر بام ودرېږي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّ السَّطْحَ مِنَ الدَّارِ ځکه چي بام له کور څخه دی [يعني بام هم په کور کي داخل دی] أَلَا تَرَى أَنَّ الْمُعْتَكِفَ لَا يَفْسُدُ اِعْتِكَافُهُ بِالْخُرُوجِ إِلَى سَطْحِ الْمَسْجِدِ آيا ته نه ګورې! چي د مسجد بام ته په وتلو [او ختلو] سره د اعتکاف کونکي سړي اعتاف نه فاسديږي وَقِيلَ: فِي عُرْفِنَا لَا يَحْنَثُ او ويل سوي دي: چي زموږ [د عجمو] په عرف کي به نه حانث کيږي [دا] قول فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی] قال: وَكَذَا إِذَا دَخَلَ دِهْلِيزَهَا فرمايي: او همدارنګه [هغه حانث کيږي] کله چي د دغه کور

دالېز ته داخل سي وَيَجِبُ أَنْ تَكُونَ عَلَى التَّفْصِيلِ الَّذِي تَقَدَّمَ اخو په دې صورت کې ا دا ضروري ده چې دالېز به د هغه تفصيل مطابق وي کوم چې مخکې تېر سو ا يعني دې ته به کتل کېږي چې دالېز له کور او خوني څخه دباندې دی او که په کور کې دننه دی ا وَإِنْ وَقَفَ فِي طَاقِ الْبَابِ او که هغه د دروازې په محراب ا او چارچوب ا کې ودرېږي بِحَيْثُ إِذَا أُغْلِقَ الْبَابُ كَانَ خَارِجًا په دې توګه چې که دروازه بنده کړی سي نو هغه [قسم اخيستونکی] به دباندې پاته سي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کېږي لِأَنَّ الْبَابَ لِإِحْرَازِ الدَّارِ وَمَا فِيهَا ځکه چې دروازه د کور او د هغه سامان د حفاظت ا او ساتنې ا لپاره وي کوم چې په کور کې ا دننه ا وي فَلَمْ يَكُنِ الْخَارِجُ مِنَ الدَّارِ نو ځکه به هغه حصه له کور څخه نه وي کوم چې اله کور څخه ا خارج وي قال: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هَذِهِ الدَّارَ وَهُوَ فِيهَا فرمايي: او څوک چې قسم واخلي چې دغه کور ته به نه داخلیږي حالانکې هغه په دغه کور کې وي لَمْ يَحْنَثْ بِالْقُعُودِ نو هغه [په دغه کور کې] په کښېنستلو [او توقف کولو] سره نه حانث کېږي حَتَّى يَخْرُجَ ثُمَّ يَدْخُلَ تر دې چې ووځي [او] بيا کور ته داخل سي، نو [په دې صورت کې] استحساناً [حانث کېږي، يعني استحساناً هغه وخت حانث کېږي کله چې يو وار له دغه کور څخه ووځي او بيا ور داخل سي] وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَحْنَثَ او قياس دا دی چې [چې په توقف کولو او پاتېدلو سره] حانث کېږي لِأَنَّ الدَّوَامَ لَهُ حُكْمُ الِابْتِدَاءِ ځکه چې دوام [پاتېدلو] ته د ابتداء حکم [حاصل] دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الدُّخُولَ لَا دَوَامَ لَهُ د استحسان دليل دا دی: چې دُخول لره دوام [حاصل] نه دی [يعني دخول لره دوام نسته] لِأَنَّهُ انْفِصَالٌ مِنَ الْخَارِجِ إِلَى الدَّاخِلِ ځکه چې دخول له خارج [دباندې] څخه داخل ته جلا کېدل [راتلل] دي [يعني د دخول معنیٰ ده: له دباندې څخه راجلا کېدل او دننه تلل].

**اللغات**: ﴿دِهْلِيز﴾ دالېز، دالان، (۱) د خوني مخته پوښل سوی ځای. (۲) د خونو تر مينځ پوښل سوی ځای چې خوني پکښې را خلاصې وي او سر يې پټ وي، يعني بام لري (دا دواړه په دالېز کې داخل دي. په اول صورت کې نه حانث کېږي او په دويم صورت کې حانث کېږي). ﴿قُعُوْد﴾ د نصر مصدر دی: کښېنستل. ﴿اِنْفِصَال﴾ د انفعال مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل. ﴿اِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: حفاظت کول، ساتل (ژغورل).

**تشريح**: په دې عبارت کي ټوله څلور مسئلې بيان سوي دي: (١)... که يو سړی دا قسم واخلي چي "لَا أَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّار" زه به دغه کور ته نه داخلېږم. بيا هغه د کور بام ته وخيږي، نو حانث کيږي؛ ځکه چي بام هم په کور کي داخل او شامل دی، همدا وجه ده که يو مُعتکف د مسجد بام ته وخيږي او پر بام وګرځيږي، نو د هغه اعتکاف نه فاسديږي. له دې څخه هم معلومه سوه چي د کور بام په کور کي داخل دی، ځکه که بام له کور او خوني څخه وتلی او خارج وي، نو د معتکف اعتکاف به فاسدېدای. فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله فرمايي چي که حالف (قسم اخيستونکی) عجمي وي، نو د کور بام ته په ختلو سره هغه نه حانث کيږي، ځکه چي د عجمو په عرف کي بام له کور څخه نه شمارل کيږي، په قاضيخان کي هم دغه حکم ذکر سوی دی، لېکن صاحب د بنايې فرمايي چي "والصحيح جوابُ الكتاب أنّهٗ يحنث"، يعني د حانث کېدلو قول زيات صحيح دی. (بنايه ج:٦، ص:٥٤)

(٢)... که دغه حالف (کوم چي په "لَا أَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّار" سره قسم اخيستی وي) د کور دالېز ته داخل سي، او دالېز داسي جوړ وي چي د دروازې په بندېدو سره هغه په کور کي راځي، نو حالف حانث کيږي، ځکه چي داسي دالېز په کور کي داخل شمارل کيږي.

(٣)... که دغه حالف د دراوزې په محراب کي ودريږي، او محراب له دباندي طرف څخه د دروازې پر سر جوړ سوی وي، نو هغه نه حانث کيږي، او که له دننه طرف څخه پر دروازې جوړ سوی وي، نو بيا حانث کيږي (مطلب دا چي که حالف د دروازې په دننه چارچوب کي ودريږي، نو حانث کيږي، او که د دروازې په دبانديني چارچوب کي ودريږي، نو نه حانث کيږي)، ځکه چي دروازه د کور او د کورني سامان د حفاظت لپاره وي، نو کومه حصه وي له دروازې څخه خارج او وتلې وي، هغه له کور څخه هم خارج شمارل کيږي، او په هغه حصه کي داخلېدونکی سړی به نه حانث کيږي.

(٤)... که يو سړی قسم واخلي چي زه به دغه کور ته نه داخلېږم، حالانکي هغه په همدغه (محلوف عليها) کور کي موجود وي، نو تر قسم اخيستلو وروسته په دغه کور کي په پاتېدلو (او توقّف کولو) سره استحساناً هغه نه حانث کيږي؛ لېکن کله چي يو وار له کور څخه ووځي او بيا کور ته داخل سي، نو حانث کيږي، لېکن قياس دا دی چي هغه په دغه کور کي په پاتېدلو (او توقف کولو) سره حانث کيږي، ځکه چي دوام او پاتېدلو ته د ابتداءً دخول درجه حاصله ده (يعني په محلوف عليها کور کي پاتېدل او توقف کول داسي دي، لکي د نوي سره هغه کور ته داخلېدل)، ځکه چي د دوام لپاره ابتداء لازم ده، نو ځکه به هغه حانث کيږي، د استحسان دليل دا دی چي دخول لره هيڅ دوام نسته، ځکه د دخول مطلب دا دی چي له خارج (بهر) څخه دننه تلل، او دلته هغه له خارج څخه دننه (کور ته) راغلی نه دی، بلکي هلته قائم او پاته دی، نو ځکه به نه حانث کيږي.

## د محلوف عليه کار په کولو سره انسان کله حانث کيږي؟

وَلَوْحَلَفَ لَايَلْبَسُ هٰذَا الثَّوْبَ وَهُوَلَابِسُهٗ او که [يو څوک] قسم واخلي چې دغه جامې به نه اغوندي حالانکې هغه جامې يې [اوس] اغوستې وي [يعنې هغه يې اوس په تن وي] فَنَزَعَهٗ فِى الْحَالِ [خو] في الحاله [سمدستي] هغه وکاږي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَكَذَا اِذَا حَلَفَ لَايَرْكَبُ هٰذِهِ الدَّابَّةَ وَهُوَ رَاكِبُهَا او همدارنګه که قسم واخلي چې پر دغه سپارلې به نه سپرېږي حالانکې هغه پر دغه [سپارلي] سپور وي فَنَزَلَ مِنْ سَاعَتِهٖ او بيا په هغه ګړي [ځنې] شوه سي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَكَذَا لَوْحَلَفَ لَايَسْكُنُ هٰذِهِ الدَّارَ وَهُوَسَاكِنُهَا او همدارنګه که قسم واخلي چې په دغه کور کې به نه واسيږي، حالانکې هغه په دغه کور کې استوګن وي فَاَخَذَ فِى النُّقْلَةِ مِنْ سَاعَتِهٖ او [بيا] په هغه ګړي د سامان په منتقل کولو شروع وکړي [نو نه حانث کيږي] وَقَالَ: زُفَرُ: يَحْنَثُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [په دې ټولو صورتونو کې] حانث کيږي لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ وَاِنْ قَلَّ ځکه چې شرط موجود سو که څه هم دلږ وخت لپاره [موجود سو] وَلَنَا: اَنَّ الْيَمِيْنَ تُعْقَدُ لِلْبِرِّ او زموږ دليل دا دی: چې قسم د پوره کېدلو [او بري کېدلو] لپاره اخيستل کيږي فَيُسْتَثْنٰى مِنْهُ زَمَانُ تَحْقِيْقِهٖ نو ځکه به د قسم پوره کېدلو [او بري کېدلو] زمانه مستثنیٰ وي فَاِنْ لَبِثَ عَلٰى حَالِهٖ سَاعَةً او که هغه څه وخت پر خپل حال پاته سي حَنِثَ نو حانث کيږي لِاَنَّ هٰذِهِ الْاَفَاعِيْلَ لَهَا دَوَامٌ ځکه چې دغه افعالو [اغوستلو، سپرېدلو او اوسېدلو] لره دوام سته بِحُدُوْثِ اَمْثَالِهَا ځکه چې داسې ډول افعال [په دوام] سره پيښېږي [او پيدا کيږي] اَلَا يَرٰى اَنَّهٗ يُضْرَبُ لَهَا مُدَّةٌ آيا هغه نه ګوري چې د دغه افعالو لپاره مودت ټاکل کيږي يُقَالُ: رَكِبْتُ يَوْمًا وَلَبِسْتُ يَوْمًا [مثلاً] ويل کيږي: زه تر يوې ورځې پورې سپور وم [مثلاً زه ټوله ورځ په موټر کې سپور وم] او ما تر يوې پورې جامې اغوستلې بِخِلَافِ الدُّخُوْلِ په خلاف د داخلېدلو [يعنې دخول لره دوام نسته] لِاَنَّهٗ لَايُقَالُ: دَخَلْتُ يَوْمًا بِمَعْنَى الْمُدَّةِ وَالتَّوْقِيْتِ ځکه چې داسې نه ويل کيږي: زه تر يوې ورځې پورې داخلېدم. د مودت او وخت ټاکلو په معنیٰ سره [يعنې د دخول لپاره وخت او مودت نه ټاکل کيږي چې زه تر دومره وخته

پوري داخلېدم] وَلَوْ نَوَى الِابْتِدَاءَ الْخَالِصَ او که حالف له نوي سره د ابتداء نيت وکړي [يعني ووايي: زما نيت دا وو چي زه به له شروع څخه (بل وار) جامې نه اغوندم او داسي نور] يُصَدَّقُ نو د هغه تصديق به کيږي لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ ځکه چي د هغه کلام د دې [معنیٰ] احتمال [هم] لري. [او احتمالي معنیٰ مرادول معتبر او صحيح دي].

**اللغات:** ﴿دَابَّةَ﴾ سپارلي، د سپر تيا حيوان (لکه آس، اوښ او داسي نور)، ﴿مِنْ سَاعَتِهِ﴾ په هغه ګړي، په هغه ساتکي (په هغه ساعت)، ﴿بَرّ﴾ د سمع او ضرب مصدر دی: قسم پوره کېدل (قسم پوره کول)، له قسم څخه بري کېدل. ﴿تَوْقِيْت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل، وخت مقرر کول، وخت متعينول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړي يو ډول کالي يا پتلون اغوستی وي او بيا د هغه وطرف ته اشاره وکړي او قسم واخلي چي په الله قسم! زه دا کالي يا پتلون نه اغوندم (يا مثلاً ووايي: په خدای قسم که دا کالي واغوندم)، او د قسم اخيستلو سره سمدستي (فوراً) هغه وکاږي، نو هغه نه حانث کيږي. همدارنګه که يو سړی په يو موټر کي ناست وي او په هغه حالت کي قسم واخلي چي په الله قسم! زه په دغه موږ کي نه سپرېږم، او سمدستي له موټر څخه کښته سي، نو هم نه حانث کيږي، يا يو سړی په يو کور کي استوګن وي او قسم واخلي چي زه په دې کور کي نه اوسېږم، او بيا سمدستي د کډې او سامان په ايستلو سره مشغول سي، نو هم نه حانث کيږي.

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې ټولو صورتونو کي حالف حانث کيږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي دلته د حنث شرط (يعني د محلوف عليه اغوستل، په هغه کي سپرېدل او په هغه کي اوسېدل) موجود سو که څه هم د لږ ګړي لپاره موجود سو، ځکه چي د حِنث په شرط کي قليل او کثير (لږ وخت او ډېر وخت) دواړه برابر دي، نو ځکه به د لږ وخت لپاره په اغوستلو، سپرېدلو او اوسېدلو سره هم حالف حانث کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي قسم د دې لپاره اخيستل کيږي چي هغه پوره کړی سي او حالف له قسم څخه بري کړی سي. او څرنګه چي دلته حالف له فعل څخه د منع کېدلو (نه اغوستلو، نه سپرېدلو او نه اوسېدلو) قسم کړی دی، نو د دې منع کېدلو لپاره کم از کم دومره وخت ور کول پکار دي چي په هغه کي حالف خپل دا منع کېدل پوره کړي او له قسم څخه بري سي، او هغه دومره زمانه ده چي په هغه کي کالي وکښل سي، يا له موټر څخه را شوه سي، يا سامان له کور څخه را وباسي، نو ځکه به دومره زمانه

له قسم څخه مستثنیٰ وي، او په دومره وخت کي به د حالف فعل د قسم خلاف نه شمارل کيږي. نو له همدې وجهې زموږ په نيز په پورتنيو صورتونو کي ددغه لږ وخت او زمانې په اعتبار سره هغه نه حانث کيږي.

ها! که قسم تر اخيستلو وروسته حالف دلږ وخت لپاره پر خپل حالت قائم پاته سي (او په منع کېدلو مصروف نه سي) نو حانث کيږي، ځکه چي اغوستل، سپرېدل او اوسېدل په دغه فعلونو کي هر فعل لره دوام سته، او دوام د ابتداء په درجه کي دی. نو ځکه به حالف حانث ګرځول کيږي. او دې فعلونو لره ځکه دوام سته چي د دوی لپاره وخت او مودت تاکل کيږي، لکه څرنګه چي ويل کيږي رَكِبْتُ يَوْمًا او لَبِسْتُ يَوْمًا، او په دې سره ټوله ورځ سپرېدل او ټوله ورځ اغوستل مراديږي (يعني زه ټوله ورځ په موټر کي سپورم، او زه تر يوې ورځي پوري د جامو په اغوستلو مصروف وم. نو دا د مودت تاکل کېدل د دې خبرې دليل دی چي دغه فعلونو لره دوام سته)، د دې په خلاف د دُخول فعل لره هيڅ دوام نسته (لکه مخکي چي موږ وويل)، ځکه چي دخول په يوه ثانيه او لمحه کي پوره کيږي، او د دَخَلْتُ يَوْمًا په ويلو سره ټوله ورځ داخلېدل نه مراديږي (چي زه تر يوې ورځي پوري په کور کي داخليدم).

ولونویٰ إلخ: فرمايي که دغه حالف څه وخت پر خپل حالت قائم پاته سي (يعني په منع کېدلو مصروف نه سي)، او بيا ووايي چي زما نيت دا وو چي دغه کالي به زه له کښلو څخه وروسته بل وار نه اغوندم، يا په دې موټر کي به له شوه کېدلو څخه وروسته زه بل وار نه سپرېږم، نو د هغه د نيت تصديق به کيږي، او پر خپل حالت د قائم پاتېدلو باوجود به هم نه حانث کيږي، ځکه چي د ده په کلام کي د دغه نيت او معنیٰ احتِمال هم سته، نو د دې احتمال اعتبار به کيږي او هغه به نه حانث کيږي (ځکه چي د کلام احتمالي معنیٰ هم معتبره ده).

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قال: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَسْكُنُ هَذِهِ الدَّارَ فرمايي: او څوک چي قسم واخلي چي په دې کور کي به نه اوسيږي فَخَرَجَ بِنَفْسِهِ بيا [خو] په خپله ووځي وَمَتَاعُهُ وَأَهْلُهُ فِيهَا [لېکن] د هغه أهل او سامان په کور کي [موجود] وي [يعني أهل او متاع په کور کي پرېږدي] وَلَمْ يُرِدِ الرُّجُوعَ إِلَيْهَا نو [که چيري] د هغه [حالف] اراده کور ته د واپس راتللو نه وي حَنِثَ نو هغه حانث کيږي لِأَنَّهُ يُعَدُّ سَاكِنَهَا بِبَقَاءِ أَهْلِهِ وَمَتَاعِهِ فِيهَا عُرْفًا ځکه چي په کور کي د حالف د أهل او سامان په پاتېدلو سره هغه په عرف

کي استوګن [اوسېدونکی] شمارل کيږي فَإِنَّ السُّوقَ عَامَّةَ نَهَارِهِ فِي السُّوقِ لکه څرنګه چي يو
بازاري کس زياتره ورځ په بازار کي وي وَيَقُولُ: أَسْكُنُ سِكَّةَ كَذَا اليکن که له هغه څخه د اوسېدلو د
ځای پوښتنه وسي نو [وايي: زه په فلانکی کوڅه کي استوګن يم وَالْبَيْتُ وَالْمَحَلَّةُ بِمَنْزِلَةِ الدَّارِ
او خونه [کوټه] او محله [کلي] د کور په درجه کي دي وَلَوْكَانَ الْيَمِينُ عَلَى الْمِصْرِ او که قسم پر ښار
وي [يعني که هغه داسي قسم واخلي چي په دې ښار کي به نه اوسېږم] لَا يَتَوَقَّفُ الْبِرُّ عَلَى نَقْلِ
الْمَتَاعِ وَالْأَهْلِ فِيمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ نو [په دې صورت کي] د قسم پوره کېدل [او له قسم څخه بري
کېدل] د سامان او أهل پر نقل کولو باندي نه موقوف کيږي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په نقل
سوي روايت کي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ سَاكِنًا فِي الَّذِي انْتَقَلَ عَنْهُ عُرْفًا ځکه انسان چي له کوم ښار څخه
منتقل سي نو د عرف په اعتبار سره په هغه ښار کي اوسېدونکی نه شمارل کيږي بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په
خلاف د اولي مسئلې وَالْقَرْيَةُ بِمَنْزِلَةِ الْمِصْرِ فِي الصَّحِيحِ مِنَ الْجَوَابِ او په صحيح جواب کي قريه د
ښار په درجه کي ده ثُمَّ قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ: لَا بُدَّ مِنْ نَقْلِ كُلِّ الْمَتَاعِ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي
دي: چي [له قسم څخه د بري کېدلو لپاره] د ټول سامان نقل کول ضروري دي حَتَّى لَوْ بَقِيَ وَتَدٌ تر
دې که يو مېخ هم پاته سي يَحْنَثُ نو حالف حانث کيږي لِأَنَّ السُّكْنَى قَدْ ثَبَتَ بِالْكُلِّ ځکه چي د
ټوله سمان په وجه استوګنه ثابته سوه فَيَبْقَى مَا بَقِيَ شَيْءٌ مِنْهُ نو تر څو چي د سامان يو شی هم پاته
وي تر هغه وخته به استوګنه پاته وي وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ: يُعْتَبَرُ نَقْلُ الْأَكْثَرِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله
فرمايي: د أکثره سامان نقل کول معتبر دي لِأَنَّ نَقْلَ الْكُلِّ قَدْ يَتَعَذَّرُ ځکه کله نا کله د ټوله سامان
نقل کول ستونزمن وي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ: يُعْتَبَرُ نَقْلُ مَا يَقُومُ بِهِ "كَدْ خُذَائِيَّتِهِ" او امام محمد رَحِمَهُ الله
فرمايي: چي د دومره سامان نقل کول معتبر دي چي په هغه سره د کورني معاملات و بندوبست وسي
[يعني چي په هغه سره د کور ګزاره وسي] لِأَنَّ مَا وَرَاءَ ذَلِكَ لَيْسَ مِنَ السُّكْنَى ځکه چي له دې څخه بغير
نور سامان له سکنی څخه نه دی [يعني له دې څخه زائد سامان د استوګني لپاره ضروري نه دی]
قَالُوا: هَذَا أَحْسَنُ وَأَرْفَقُ بِالنَّاسِ مشائخ فرمايي: چي دا قول غوره دی او د خلکو لپاره نفع مند دی

[يعني د خلګو لپاره په دې کي آساني ده] وَيَنْبَغِي أَنْ يَنْتَقِلَ إِلَى مَنْزِلٍ آخَرَ بِلَا تَأْخِيرٍ او حالف ته پکار دي چي بېله ځنډه دويم کور ته منتقل سي حَتَّى يَبَرَّ د دې لپاره چي قسم پوره سي [او له قسم څخه بري سي] فَإِنِ انْتَقَلَ إِلَى السِّكَّةِ أَوْ إِلَى الْمَسْجِدِ لېکن که هغه کوڅې يا مسجد ته منتقل سي قَالُوا: لَا يَبَرُّ نو مشائخو فرمايلي دي: چي قسم نه پوره کيږي دَلِيلُهُ فِي الزِّيَادَاتِ: أَنَّ مَنْ خَرَجَ بِعِيَالِهِ مِنْ مِصْرِهِ په زيادات کي د دې دليل دا دی چي کوم سړی د خپل أهل او عيال سره له خپل ښار څخه ووځي فَمَا لَمْ يَتَّخِذْ وَطَنًا آخَرَ يَبْقَى وَطَنُهُ الْأَوَّلُ فِي حَقِّ الصَّلَاةِ نو تر څو چي دا سړی بل [ځای] وطن جوړ نه کړي تر هغه وخته پوري د هغه اول وطن د لمانځه په حق کي باقي پاتيږي كَذَا هٰذَا همداسي به دا [هم] وي [يعني همداسي به دلته هم دغه حکم وي].

**اللغات:** ﴿مَتَاع﴾ سامان. ﴿سُوْق﴾ بازار ته منسوب، بازاري. ﴿سِكَّة﴾ کوڅه (ګلی). ﴿قَرْيَة﴾ قصبه (مراد ځني هغه علاقه او کلی دی چي له ښار څخه بهر وي، يعني د ښار د أطرافو علاقه او کلی). ﴿وَتَد﴾ مېخ. ﴿كَدْ خُدَائِيَة﴾ د کورني معاملاتو سامان (يعني د کتغ پخولو او داسي نورو ضروري شيانو سامان). دومره سامان چي د کور ګزار (چلاو) په وسي. ﴿يَبَرّ﴾ د سمع او ضرب مضارع ده: قسم پوره کېدل. له قسم څخه بري کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی داسي قسم واخلي چي زه به په دغه کور کي نه اوسېږم، تر دې وروسته دا سړی له دغه کور څخه ووځي، او په دې نيت ووځي چي بيا به هيڅکله په دې کور کي قدم نه اېږدم، لېکن د هغه أهل او عيال او د هغه د استوګني سامان د هغه تر وتلو وروسته هم په هغه کور کي پاته سي، نو دا سړی حانث کيږي؛ ځکه چي په کور کي د أهل او عيال او د سامان پاتېدلو په وجه عرفاً دغه سړی په کور کي پاتېدونکی او استوګن شمارل کيږي. او فقط د هغه وتل كما حقهٔ او په بشپړه توګه وتل نه شمارل کيږي، نو ځکه به هغه حانث کيږي. د دې ښکاره مثال دا دی چي که ديو سړي کاروبار په بازار کي وي او ټوله ورځ په بازار کي اوسيږي، که له هغه څخه پوښتنه وسي چي ته چيري اوسيږي. نو هغه همدا وايي چي زه په فلانکی کوڅه او فلانکي کور کي اوسېږم (داسي نه وايي چي زه په بازار کي اوسېږم)، ځکه چي د هغه أهل او عيال او د استوګني سامان په هغه کور کي

وي، نو ځکه به دلته هم هغه (حالف) په هغه کور کي مقيم او استوګن شمارل کيږي او حانث به ګرځي.

والبيت والمحلة بمنزلة الدار إلخ: د دې حاصل که هغه د لَا أَسْكُنُ هٰذِهِ الدَّارَ پر ځای لَا أَسْكُنُ هٰذَا الْبَيْتَ يا لَا أَسْكُنُ هٰذِهِ الْمَحَلَّةَ ووايي، نو د هغه حکم هم د لَا أَسْكُنُ هٰذِهِ الدَّارَ په شان دی.

ولوكان اليمين إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو څوک دا قسم واخلي لَا أَسْكُنُ هٰذَا الْمِصْر (په الله قسم زه په دې ښار کي نه اوسيږم)، نو فقط له ښار څخه د هغه (حالف) په وتلو سره قسم پوره کيږي، او په دې صورت کي د قسم پوره کېدل د هغه د أهل او متاع پر انتقال او خروج موقوف نه دي، يعني که د هغه أهل او متاع په هغه ښار کي پاته سي، او يوازي هغه (حالف) له ښار څخه ووځي، نو هم هغه نه حانث کيږي، دا روايت له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی.

د امام ابو يوسف دليل دا دی چي له کوم ښار څخه چي انسان ووځي، نو عرفاً ده ته د هغه ښار استوګن (اوسېدونکي) نه ورته وايي، که څه هم د هغه أهل او متاع په هغه ښار کي وي، لېکن که له کور يا محلې (کلي) څخه ووځي او په هغه ځای کي د ده أهل او متاع پاته سي، نو عرفاً ده ته د هغه ځای استوګن (اوسېدونکي) وايي.

والقرية بمنزلة المصر إلخ: فرمايي چي د صحيح قول مابق قريه (د ښار د أطرافو مېنه او کلی) د ښار په حکم کي دی، نو کوم حکم چي د "لا أسكن هٰذا المصر" دی، هغه حکم د "لا أسكنُ هٰذه القَرية" هم دی. د "فِي الصَّحِيح" په قيد سره د هغو مشائخو له قول څخه احتراز سوی دی کوم چي قريه د دَار (کور) په څير ګڼي. (بنايه)

ثم قال أبوحنيفة إلخ: امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي حالف هغه وخت د خپل قسم پوره کونکي ګرځي او هغه وخت له خپل قسم څخه بري کيږي کله چي له کور څخه خپل ټوله سامان نقل کړي او هيڅ شی هم نه پرېږدي، تر دې که يو مېخ هم پاته سي. نو هغه حانث ګيږي، ځکه چي په محلوف عليه کور کي په کُل سامان سره سُكنيٰ (استوګنه) ثابته سوې ده (مطلب دا چي په کور کي د هر

سامان په پاتېدلو سره حالف استوګن شمارل کېږي)، لهذا تر څو چي د سامان يو شی هم په کور کي پاته وي، تر هغه وخت به سُکنی پاته وي، او کله چي سُکنی پاته سي، نو حالف حانث کيږي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دأکثره سامان نقل کول ضروري دي، او أکثره سامان به د کُل قائم مقام منل کيږي، ځکه چي همدا د فقهي قاعده ده "لِلأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ"، او بل دا چي د ټوله سامان نقل کول متعذر او ستونزمن هم دی، نو په دې وجه به حالف دأکثره سامان په نقل کولو سره له خپل قسم څخه بري کيږي او نه به حانث کيږي.

او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي فقط دومره اندازه سامان نقل کول ضروري دي چي په هغه سره د کور چلاو او ګزاره وسي، او کورني ضروريات په پوره کړل سي، ځکه چي د استوګني او ژوند تېرولو لپاره همدومره اندازه سامان کافي دی، او زائد سامان د استوګني لپاره ضروري نه دی. مشائخ فرمايي چي دا قول او تعبير غوره هم دی او د خلکو لپاره آسانه هم دی.

وينبغي إلخ: د دې حاصل دا دی که چا د مخکي په څير قسم اخيستی وي (چي په الله قسم! زه به په دغه کور کي نه اوسېږم)، نو هغه ته پکار دي چي له هغه کور څخه بيله ځنډه سامان نقل کړي او په بل کور کي يې کښېږدي، د دې لپاره چي له خپل قسم څخه بري سي او له حانث کېدلو څخه وژغورل سي.

او په کوڅه يا مسجد کي سامان ايښول کافي نه دي. د دې خبري دليل د امام محمد رَحِمَهُ الله د کتابُ الزيادات له دې مسئلې څخه را اخيستل سوی دی چي که يو څوک د خپلو بچيانو سره بل ښار ته ولاړ سي نو تر څو چي هغه دا بل ښار خپل وطن جوړ نه کړي، تر هغه وخته د لمانځه په حق کي اول ښار او وطن باقي پاتيږي (يعني په اول ښار کي به هغه ته د قصر کولو اجازه نه وي). همداسي به دلته هم دا حکم وي چي تر څو په بل کور کي استوګن نه سي، تر هغه وخته به په اول کورم کي استوګن شمارل کيږي. نو د قسم پوره کولو او له قسم څخه د بري کېدلو لپاره بل کور ته منتقل کېدل ضروري دي. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْخُرُوْجِ وَالْإِتْيَانِ وَالرُّكُوْبِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ

(دا) باب (له کور څخه) د وتلو، (کور ته) د راتللو، سپرېدلو او د داسي نورو قسمونو (په بيان کي) دی

## له مسجد يا کور او داسي نورو څخه د هيڅکله نه وتلو قسم اخيستل

قال: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: که يو سړی قسم واخلي چي له مسجد څخه به نه وځي فَأَمَرَ إِنْسَانًا بيا هغه بل انسان ته حکم وکړي [چي ما مسجد څخه مي وباسه] فَحَمَلَهُ فَأَخْرَجَهُ نو هغه دا سړی پورته کړي او [له مسجد څخه] يې وباسي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّ فِعْلَ الْمَأْمُورِ مُضَافٌ إِلَى الْآمِرِ ځکه چي د مأمور فعل د آمر وطرف ته منسوب کيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا رَكِبَ دَابَّةً فَخَرَجَتْ نو داسي سو لکه هغه چي پر سپارلي سپور سي او سپارلي له مسجد څخه ووځي وَلَوْ أَخْرَجَهُ مُكْرَهًا او که يو څوک هغه [حالف] په زوره له مسجد څخه وباسي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّ الْفِعْلَ لَمْ يَنْتَقِلْ إِلَيْهِ لِعَدَمِ الْأَمْرِ ځکه چي د حکم د نشتوالي په وجه فعل د هغه وطرف ته منتقل نه سو وَلَوْ حَمَلَهُ بِرِضَاهُ لَا بِأَمْرِهِ او که يو څوک حالف د هغه په رضا د هغه له حکم څخه بغير پورته کړي [يعني د حالف خو خوښه وي، لېکن حکم يې کړی نه وي چي ما له مسجد څخه وباسه!] لَا يَحْنَثُ فِي الصَّحِيحِ نو [هم] په صحيح قول کي نه حانث کيږي لِأَنَّ الِانْتِقَالَ بِالْأَمْرِ لَا بِمُجَرَّدِ الرِّضَا ځکه چي فعل په حکم سره منتقل کيږي، نه فقط په رضا سره قال: وَلَوْ حَلَفَ لَا يَخْرُجُ مِنْ دَارِهِ إِلَّا إِلَى جِنَازَةٍ فرمايي: او که [يو څوک] قسم واخلي چي له کور څخه به نه وځي، مګر يو جنازې ته [به وځي] فَخَرَجَ إِلَيْهَا بيا جنازې ته ووځي ثُمَّ أَتَى حَاجَةً أُخْرَى [او] بيا به بل ضرورت ته راسي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّ الْمَوْجُودَ خُرُوجٌ مُسْتَثْنًى ځکه چي د هغه شي لپاره وتل موجود سو چي د هغه استثناء سوې ده [يعني هغه فقط د جنازې په نيت له کور څخه را ووتی]

وَالْمُضِيُّ بَعْدَ ذٰلِكَ لَيْسَ بِخُرُوجٍ او تر خروجٍ مستثنیٰ وروسته تګ جاري ساتل خروج [من الدار] نه دي وَلَوْ حَلَفَ لَا يَخْرُجُ إِلٰى مَكَّةَ او که څوک قسم واخلي چي هغه به مکې ته نه وځي فَخَرَجَ يُرِيدُهَا بيا د مکې په اراده سره ووځي ثُمَّ رَجَعَ [لېکن] بيا واپس را وګرځي حَنِثَ نو حانث کيږي لِوُجُودِ الْخُرُوجِ عَلٰى قَصْدِ مَكَّةَ وَهُوَ الشَّرْطُ ځکه د مکې په اراده سره وتل موجود سو او همدا شی شرط وو إِذِ الْخُرُوجُ هُوَ الْانْفِصَالُ مِنَ الدَّاخِلِ إِلَى الْخَارِجِ ځکه چي خروج له داخل څخه بهر ته د تللو نوم دی وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْتِيهَا او که هغه [داسي] قسم واخلي چي مکې ته به نه راځي لَمْ يَحْنَثْ حَتّٰى يَدْخُلَهَا نو نه حانث کيږي تر دې چي مکې ته داخل سي لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنِ الْوُصُولِ ځکه چي إتيان [راتلل] د رسېدلو په معنیٰ سره دي قَالَ اللهُ تَعَالٰى: فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَا [الشعراء: ١٦] الله تعالیٰ فرمايلي دي: بيا تاسي دواړه فرعون ته راسئ! [ورسئ!] او هغه ته ووايأست! [د دې مطلب همدا دی چي فرعون ته ځانونه ورسوئ!] وَلَوْ حَلَفَ لَا يَذْهَبُ إِلَيْهَا او که هغه قسم وکړي چي مکې ته به نه ځي قِيلَ: هُوَ كَالْإِتْيَانِ نو يو قول دا دی چي دا د إتيان [راتللو] په څير دی وَقِيلَ: هُوَ كَالْخُرُوجِ او [دويم] قول دا دی: چي دا د خروج [وتلو] په څير دی هُوَ الْأَصَحُّ همدا [دويم] صحيح قول دی لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنِ الزَّوَالِ ځکه چي ذهاب د ليري کېدلو [او د نقل کېدلو] څخه عبارت دی.

**اللغات:** ﴿حَمَلَهُ﴾ د ضرب ماضي ده: پورته کول. ﴿مُجَرَّد﴾ محض، فقط. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب مصدر دی: جاري کول (تګ جاري ساتل)، مدوامت کول، تېرېدل (وخت تېرېدل. ماضي له همدې معنیٰ څخه ده). ﴿إِنْفِصَال﴾ د انفعال مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل. ﴿فَأْتِيَا﴾ د ضرب له باب څخه د تثنيه مذکر حاضر صيغه ده: راتلل (د جَاء په معنیٰ سره دی)، نژدې کېدل. ﴿لَا يَذْهَبُ﴾ د فتح نفي صيغه ده: تلل، تګ کول.

**تشريح:** په دې عبارت کي د خروج (او دباندي وتلو) د قسم سره اړوند څو مسئلې بيان سوي دي:

(١)... که يو څوک قسم واخلي چي له مسجد څخه به نه وځم، او بيا يو بل سړي ته حکم وکړي چي له مسجد څخه ما وباسه!، او چا ته چي يې حکم وکړی (يعني مأمور) هغه همداسي وکړي (يعني له مسجد څخه يې وباسي)، نو آمر (حالف) حانث کيږي، ځکه چي د مأمور فعل د آمر وطرف ته منسوب کيږي او منتقل کيږي او داسي به ګڼل کيږي چي آمر په خپله وتلی دی. يا ګواکي حالف پر

يو سپارلۍ باندې سپور سوی او د سپارلۍ په ذریعه له مسجد څخه وتلی دی، نو په دې دوو صورتونو کې هغه حانث کیږي، لهذا په پورتنۍ مسئله کې به هم هغه حانث کیږي، لېکن که یو څوک حالف په زوره له مسجد څخه وباسي، نو حالف نه حانث کیږي، ځکه چې حالف باسونکي سړي (مُخرِج) ته د باسلو حکم نه دی کړی (چې ما وباسه!)، نو د باسونکي سړي فعل د حالف وطرف ته منتقل نه سو، او په وتلو کې د حالف هیڅ دخل ثابت نه سو. همدارنګه که یو څوک حالف په زوره نه وباسي، بلکې د هغه په رضا او خوښۍ یې وباسي، خو حالف هغه ته حکم کړی نه وي، نو هم د صحیح قول مطابق حالف نه حانث کیږي، ځکه چې د باسونکي سړي فعل هغه وخت حالف ته منتقل کیږي کله چې حالف هغه ته أمر (حکم) کړی وي. فقط د حالف په رضا او خوښۍ سره نه منتقل کیږي. او دلته حالف أمر کړی نه دی فلا یحنث.

(۲)... که یو څوک قسم واخلي چې زه به په جنازه کې له شرکت کولو څخه بغیر د بل هیڅ کار لپاره د کور څخه نه وځم، بیا هغه په جنازه کې د شرکت لپاره ووځي، او بیا له هغه ځای څخه د بل کار لپاره ولاړ سي، نو نه حانث کیږي، ځکه چې حالف د هغه کار په نیت د کور څخه را ووتی د کوم کار (جنازې) استثناء چې یې کړې وه، او تر دغه کار وروسته تګ جاري ساتل او په بل ضرورت پسې تلل خروج (وتل) نه دی، ځکه چې د خروج معنیٰ ده: له دننه څخه دباندې وتل، او دا معنیٰ دلته نسته.

(۳)... که یو څوک قسم واخلي چې مکې مبارکې ته به نه وځم، بیا د مکې په نیت له کور څخه ووځي، او بیا واپس را وګرځي، نو حانث کیږي، ځکه چې د مکې په نیت وتل موجود سو، او همدا شی شرط وو، لهذا کله چې شرط یعني خروج موجود سو، نو مشروط یعني حنث به هم موجودیږي.

(۴)... که یو څوک قسم واخلي چې مکې مبارکې ته به نه راځم، نو ترڅو چې مکې ته داخل نه سي، تر هغه وخته پوري نه حانث کیږي (یعني په دې صورت کې محض د مکې وطرف ته په وتلو سره هغه نه حانث کیږي)، ځکه چې إتیان (راتلل) د "رسېدلو" په معنیٰ سره دی، لکه څرنګه چې په قرآني آیت کې هم له إتیان څخه د رسېدلو معنیٰ مراد ده، نو ځکه به مکې ته له داخلېدلو څخه بغیر هغه نه حانث کیږي.

(۵)... که یو څوک قسم واخلي چې زه به مکې مبارکې ته نه ځم، نو یو قول دا دی چې د دې حکم د إتیان په څېر دی، یعني تر څو چې مکې ته داخل سوی نه وي، تر هغه وخته پوري نه حانث کیږي، دا د نصر بن یحییٰ قول دی. او دویم قول دا دی چې د ذهاب (تللو) حکم د خروج په څېر دی. او د مکې وطرف ته په وتلو سره هغه حانث کیږي، ځکه چې د ذهاب معنیٰ او مطلب دی: "له خپل ځای څخه بنوربدل او لیري کېدل"، او دا معنیٰ په خروجُ سره ثابتیږي. صاحب د هدایې فرمایي چې دویم قول صحیح او معتمد دی.

## يو ځاى ته د تللو قسم اخيستل

قال: وَإِنْ حَلَفَ لَيَأْتِيَنَّ الْبَصْرَةَ فرمايي: او كه [يو څوك] قسم واخلي چي هغه به بصرې ته خامخا راځي فَلَمْ يَأْتِهَا حَتَّى مَاتَ [خو] هغه [په خپل ژوند كي] بصرې ته رانه سي تر دې چي مړ سي حَنِثَ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ نو هغه د خپل ژوند په آخري جزء كي حانث كيږي لِأَنَّ الْبِرَّ قَبْلَ ذٰلِكَ مَرْجُوٌّ ځكه چي تر دې مخكي د قسم پوره كېدل متوقع دي [يعني د ژوند تر آخري سُلګۍ پوري د دې هيله او اُميد سته چي هغه بصرې ته ولاړ سي او خپل قسم پوره كړي] وَلَوْ حَلَفَ لَيَأْتِيَنَّهُ غَدًا إِنِ اسْتَطَاعَ او كه [داسي] قسم واخلي چي سبا به خامخا فلانكي سړي ته ځي، كه طاقت پيدا كړي [يعني كه يو څوك داسي قسم واخلي چي: كه زما په طاقت او استطاعت كي وه نو په الله قسم! سبا به د فلانكي كور ته ځم] فَهٰذَا عَلَى اسْتِطَاعَةِ الصِّحَّةِ دُونَ الْقُدْرَةِ نو له دې څخه به د روغتيا استطاعت مراديږي نه د قدرت استطاعت وَفَسَّرَهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير كي د روغتيا استطاعت ځرګند كړى دى [يعني د هغه تعريف يې بيان كړى دى] وَقَالَ: إِذَا لَمْ يَمْرَضْ وَلَمْ يَمْنَعْهُ السُّلْطَانُ وَلَمْ يَجِئْ أَمْرٌ لَا يَقْدِرُ عَلَى إِتْيَانِهِ او فرمايلي دي: كه چيري حالف ناروغه نه سي او باچا هغه [له تللو څخه] منع نه كړي او يو داسي معامله پيښه نه سي چي د هغه په وجه حالف هغه ځاى [بصرې] ته په راتللو باندي قدرت پيدا نه كړي فَلَمْ يَأْتِهِ او [بيا هم] هغه ځاى ته رانه سي حَنِثَ نو حانث كيږي وَإِنْ عَنَى اسْتِطَاعَةَ الْقَضَاءِ او كه حالف [له استطاعت څخه] د قضاء [او قدرت] استطاعت مراد كړي [يعني په دې سره د قدرت او قضاء د استطاعت نيت وكړي] دِيْنَ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى نو د هغه او د الله په مينځ كي به يې تصديق كيږي [يعني ديانتاً به د هغه تصديق كيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ حَقِيقَةَ الِاسْتِطَاعَةِ فِيمَا يُقَارِنُ الْفِعْلَ او دا ځكه [يعني هغه د قضاء استطاعت ځكه مرادولاى سي] چي حقيقي استطاعت د فعل سره متصل كيږي وَيُطْلَقُ الِاسْمُ عَلَى سَلَامَةِ الْآلَاتِ وَصِحَّةِ الْأَسْبَابِ فِي الْمُتَعَارَفِ او د استطاعت د لفظ إطلاق په عرف كي د آلاتو پر سلامتيا او د اسبابو پر روغوالي كيږي فَعِنْدَ الْإِطْلَاقِ يَنْصَرِفُ إِلَيْهِ نو د استطاعت [د مطلق كېدلو په

وخت کي به هغه د عرفي معنیٰ وطرف ته ګرځول کیږي وَتَصِحُّ نِيَّةُ الْأَوَّلِ دِيَانَةً او دیانتاً به د اول استطاعت [د قضاء د استطاعت] نیت کول هم صحیح وي لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ ځکه چي حالف د خپل کلام د حقیقت نیت کړی دی ثُمَّ قِيلَ: وَتَصِحُّ قَضَاءً أَيْضًا بیا ویل سوي دي: چي قضاءً [هم د قدرت د استطاعت نیت کول] صحیح دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَقِيلَ: لَا تَصِحُّ او ویل سوي دي [یعني دویم قول دا دی]: چي صحیح نه دي لِأَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چي دا د ظاهر خلاف دي.

**اللغات:** ﴿مَرْجُوّ﴾ د نصر د باب اسمِ مفعول دی: د کوم شي چي اُمید وي (هغه څه چي اُمید یې کیږي). ﴿اِسْتِطَاعَة﴾ د استفعال مصدر دی: طاقت، وس، قدرت. استطاعت پر دوه قسمه دی: ① یو د قدرت استطاعت دی، همدې ته د قضاء استطاعت وایي، د دې مطلب دا دی چي له کار څخه مخکي ټوله اسباب موجود وي او د الله قضاء او فیصله هم داسي معلومه سي چي هغه کار کېدونکی دی (یعني د کار شروع کولو په وخت کي انسان پر هغه کار وس او طاقت لري)، نو دې ته د قضاء او قدرت استطاعت وي، ② دویم دا چي د کار کولو لپاره د انسان صحت برابر وي، جوړ او روغ وي، او نور خنډونه (موانع) نه وي، نو دې ته د صحت استطاعت وایي، په عُرف کي له دې لفظ "استطاعت" څخه همدغه استطاعت مرادیږي. ﴿عَنٰى﴾ د ضرب ماضي ده: مراد ول. ﴿دُيِّنَ﴾ د تفعیل ماضي مجهوله ده: تصدیق کول. ﴿يُقَارِن﴾ د مفاعلې مضارع ده: متصل کېدل، جوختېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... که یو سړی قسم واخلي چي زه به بصرې ته خامخا ځم، لېکن هغه په خپل ژوند کي بصرې ته ولاړ نه سي، نو داسي سړی د خپل ژوند په آخري جزء او آخري ساه کي حانث کیږي، ځکه چي تر مرګ مخکي دا اُمید او امکان سته چي هغه خپل قسم پوره کړي او بصرې ته ولاړ سي، نو ځکه به د ژوند له آخري جزء څخه مخکي هغه نه حانث کیږي.

(۲)... که یو څوک دا قسم واخلي چي زه به سبا خالد ته ځم په دې شرط که مي استطاعت (طاقت) وو، نو له دې استطاعت څخه د صحت او روغتیا استطاعت مرادیږي، نه د قدرت او قضاء استطاعت، او د صحت د استطاعت تفسیر او تعریف له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه داسي نقل سوی دی چي حالف به نه ناروغه نه وي، او په حکومتي توګه به له تګ کولو څخه ممانعت او بندیز نه وي، او یوه ناڅاپه

(نابېره) پېښنه به واقع سوې نه وي چي د هغه په وجه حالف نه سي تللای، نو که په دې صورت کي هغه ولاړ نه سي، نو حانث کيږي.

او که حالف په دې سره د قدرت او قضاء استطاعت مراد کړي، نو دیانتاً به د هغه تصديق کيږي، ځکه چي په حقيقت کي د قضاء استطاعت اصل دی، موږ په خپل عرف کي وايو "که الله وغواړي نو دا کار به کووم".

**وهذا لأن حقيقة إلخ**: او دا ځکه چي حقيقي استطاعت د فعل سره متصل وي، يعني کله چي بنده د يو کار پخه اراده وکړي (چي اوس به دا کار کوم)، نو الله تعالیٰ په دې وخت کي د کار کولو قدرت پيدا کړي، او همدې ته د قضاء استطاعت وايي، خو کله چي د استطاعت لفظ مطلق وويل سي، نو په عرف کي له هغه څخه د صحت استطاعت مراديږي، نو ځکه به د مطلق ويلو په وخت کي د صحت استطاعت مراديږي، لېکن حقيقي د قدرت او قضاء استطاعت دی، نو د هغه نيت هم کولای سي. او کله چي حالف (قسم اخيستونکی) د هغه نيت وکړي، نو قضاءً به د حالف تصديق کيږي.

**ثم قيل إلخ**: د دې حاصل دا دی چي آيا قضاءً حالف د هغه نيت کولای سي او که نه؟، يعني که هغه ووايي چي ما په خپل کلام سره د قدرت د استطاعت نيت کړی دی، نو آيا قاضي به د هغه تصديق کوي او که نه؟، نو په هکله د علماؤ دوه قوله دي: ① د قدرت استطاعت د حالف د کلام حقيقت دی، نو ځکه د حالف لپاره قضاءً د دې نيت کول صحيح دي، يعني قضاءً به د هغه تصديق کيږي، ② دويم قول دا دی چي په عرف کي د قدرت استطاعت نه مراديږي، نو په دې وجه قضاءً د استطاعت نيت کول صحيح نه دي، او قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي.

## د قسم يو څو ځانګړي صورتونه

| |
|---|
| وَمَنْ حَلَفَ لَا تَخْرُجُ امْرَأَتُهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ که يو څوک قسم واخلي چي د هغه ښځه به نه وځي مګر د هغه په اجازه سره [يعني ښځي ته ووايي: په الله قسم! ته به زما له اجازې څخه بغير نه وځي او که زما له اجازې څخه بغير ووتلې، نو پر ما طلاقه يې] فَأَذِنَ لَهَا مَرَّةً فَخَرَجَتْ ثُمَّ خَرَجَتْ مَرَّةً أُخْرَى بِغَيْرِ إِذْنِهِ بيا حالف [خاوند] هغې ته يو وار [د وتلو] اجازه ورکړه او هغه ووتله [او] بيا بل وار د هغه له اجازې څخه بغير ووتله حَنِثَ نو [خاوند] حانث کيږي [او پر ښځي طلاق واقع کيږي، ځکه چي خاوند هغې ته ويلي وو "زما په اجازه سره"، او دلته خو اول وار هغې اجازه اخيستې ده، لېکن دويم وار يې اجازه نه واخيستله، نو ځکه به دويم وار حانث کيږي، او پر ښځي به طلاق واقع کيږي] وَلَا بُدَّ مِنَ الْإِذْنِ فِي كُلِّ خُرُوجٍ او [په دا سي |

قسم اخيستلو کي[ هر وار اجازه اخيستل ضروري دي لِأَنَّ الْمُسْتَثْنٰى خُرُوجٌ مَقْرُونٌ بِالْإِذْنِ ځکه چي د هغه خروج [ او تللو] استثناء سوې ده کوم چي [د خاوند] د إجازې سره متصل وي وَمَا وَرَاءَهُ دَاخِلٌ فِي الْحَظْرِ الْعَامِّ او کوم خروج چي له مستثنیٰ خروج څخه بغير دی هغه په عام ممانعت [يعني د قسم په حکم کي] داخل دي [لأن المستثنی... (الخ): دا جمله څه ستونزمنه ده، حاصل يې دا دی چي دلته خاوند نفي کړې دي چي ته به له کور څخه نه وځې او بيا يې له دې نفي څخه د هغه وتلو استثناء کړې ده کوم چي د خاوند د اجازې سره متصل وي، (يعني زما په اجازه سره ته وتلای سې)، نو د دې مطلب همدا دی چي د ښځي وتل به د خاوند د اجازې سره متصل وي (يعني ښځه به په هر وار وتلو کي له خاوند څخه اجازه غواړي) او که له اجازې څخه بغير ووځي، نو خاوند به حانث کيږي او پر ښځي به طلاق واقع کيږي] وَلَوْ نَوَى الْإِذْنَ مَرَّةً او که حالف [خاوند] يو وار د اجازه اخيستلو نيت وکړي [يعني هغه ووايي چي زما مقصد فقط يو وار د اجازې اخيستل وو] يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو دياتناً به د هغه تصديق کيږي، نه قضاءً [يعني قاضي به د هغه تصديق نه کوي او په دې هکله به څه فيصله نه کوي] لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ ځکه چي دا د حالف د کلام احتمالي معنیٰ ده [يعني که څه هم د هغه په خبره کي د دې احتمال هم سته] لٰكِنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ خو دا د ظاهر خلاف دي [او په خلافُ الظاهر مسئله کي فقط دياتناً د يو چا تصديق کيږي، نه قضاءً] وَلَوْ قَالَ: إِلَّا أَنْ آذَنَ لَكِ او که حالف [خاوند] ووايي: إلا أن آذانَ لَکِ [يعني که خاوند ښځي ته داسي ووايي: ته به له کور څخه نه وځې مگر دا چي زه اجازه درکړم] فَأَذِنَ لَهَا مَرَّةً وَاحِدَةً فَخَرَجَتْ ثُمَّ خَرَجَتْ بَعْدَهَا بِغَيْرِ إِذْنِهِ بيا [خاوند] ښځي ته اجازه ورکړي او هغه ووځي [او] تر دې وروسته [بل وار] ښځه د خاوند له اجازې څخه بغير ووځي لَمْ يَحْنَثْ نو [خاوند] نه حانث کيږي لِأَنَّ هٰذِهِ كَلِمَةُ غَايَةٍ فَتَنْتَهِي الْيَمِينُ بِهِ ځکه چي دا کلمه [إلا أن آذنَ لكِ] د غايت [او انتهاء] کلمه ده نو ځکه به په دې کلمه سره قسم ختميږي [يعني د دې کلمې (إلا أن آذن لكِ) معنیٰ ده: ته به له کور څخه نه وځې "تر دې چي زه تا ته اجازه درکړم"، او د دې مطلب همدا دی چي يو وار اجازه درکړم، نو ځکه دلته فقط په يوه وار اجازه سره قسم ختميږي، او د بار، بار اجازه اخيستلو ضرورت نسته، لکه په هغه صورت کي چي هم په يوه وار اجازه اخيستلو سره قسم ختميږي کله چي حالف ويلي وي: "حَتّٰى أَنْ آذَانَ لَكِ"] كَمَا إِذَا قَالَ حَتّٰى آذَنَ لَكِ لکه کله چي هغه "حَتّٰى أَنْ آذَنَ لَكِ" ويلي وي.

**اللغات:** ﴿حَظْر﴾ ممانعت، بندیز. ﴿مُحْتَمَل﴾ احتمالي مطلب، احتمالي معنیٰ. ﴿غَايَة﴾ انتهاء.

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د قسم يو څو ځانګړي صورتونه

وَلَوْ أَرَادَتِ الْمَرْأَةُ الْخُرُوجَ او که ښځي [له کور څخه] د وتلو اراده وکړه فَقَالَ: إِنْ خَرَجْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ نو خاوند [ورته] وويل: که چيري ته ووځي نو [پر ما] طلاقه يې فَجَلَسَتْ ثُمَّ خَرَجَتْ او ښځه کښېنسته بيا [څه وخت وروسته] ووتله لَمْ يَحْنَثْ نو [خاوند] نه حانث کيږي [او پر ښځي طلاق نه واقع کيږي] (دا مسئله پر دې اُصول مبني ده چي که په هغه ګړي ښځه ووځي نو طلاق واقع کيږي، او که وروسته ووځي نو نه واقع کيږي، ځکه چي په هغه ګړي نه ووتل، دې ته يمينِ فور (فوراً قسم) وايي) وَكَذَلِكَ إِذَا أَرَادَ رَجُلٌ ضَرْبَ عَبْدِهِ او همدارنګه که يوه سړي د خپل غلام د وهلو اراده وکړه فَقَالَ لَهُ آخَرُ: إِنْ ضَرَبْتَهُ فَعَبْدِي حُرٌّ نو يو بل سړي ورته وويل: که چيري ته خپل غلام ووهې نو زما غلام آزاد دی فَتَرَكَهُ او هغه [اول سړي] د وهلو اراده پرېښوله ثُمَّ ضَرَبَهُ بيا يې [څه وخت وروسته] غلام ووهی [نو د دويم سړي غلام نه آزاديږي، دا مسئله هم پر پورتني اُصول مبني ده] وَهَذِهِ تُسَمَّى يَمِينَ فَوْرٍ او داسي قسم ته "يمينِ فور" وايي وَتَفَرَّدَ أَبُو حَنِيفَةَ بِإِظْهَارِهِ او يوازي امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې قسم څرګندونه کړې ده [يعني اول امام صاحب رَحِمَهُ الله د يمينِ فور استنباط وکړی، تر هغه مخکي په خلګو کي فقط دوه قسمونه پېژندل کېدل: ① مطلق يا مؤبد يمين، ② مقيد بالوقت يمين، او امام صاحب رَحِمَهُ الله دغه دريم قسم هم ښکاره کړی کوم چي لفظاً مؤبد دی، او معناً مؤقت دی (عنايه)] وَوَجْهُهُ: أَنَّ مُرَادَ الْمُتَكَلِّمِ الرَّدُّ عَنْ تِلْكَ الضَّرْبَةِ وَالْخَرْجَةِ عُرْفًا او د دې وجه دا ده: چي د عرف په اعتبار سره د متکلم مراد د هغه [واقع کېدونکي] وهلو منع کول دي او د هغه [واقع کېدونکي] وتلو منع کول دي [د دې جملې پوره وضاحت او حاصل به تشريح کي ذکر سي] وَمَبْنَى الْأَيْمَانِ عَلَيْهِ او د قسمونو دار ومدار پر عرف دی وَلَوْ قَالَ لَهُ رَجُلٌ: اجْلِسْ فَتَغَدَّ عِنْدِي او که يوه سړي ته بل سړي وويل: کښېنه! او زما سره ډوډۍ وخوره! قَالَ إِنْ تَغَدَّيْتُ فَعَبْدِي حُرٌّ نو هغه وويل: که چيري زه ډوډۍ وخورم نو زما غلام دی آزاد دی فَخَرَجَ فَرَجَعَ إِلَى مَنْزِلِهِ وَتَغَدَّى او بيا [له هغه ځای څخه] ووتی او کور ته راغلی او ډوډۍ يې وخوړل لَمْ

يَحْنَثُ نو نه حانث کيږي لِأَنَّ كَلَامَهُ خَرَجَ مَخْرَجَ الْجَوَابِ ځکه چي د هغه کلام د جواب مطابق صادر سوی دی فَيَنْطَبِقُ عَلَى السُّؤَالِ نو هغه به پر سوال منطبق کيږي [چسپيږي] فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْغَدَاءِ الْمَدْعُوِّ إِلَيْهِ او د هغه ډوډۍ وطرف ته به راجع کيږي چي د هغه وطرف ته بلنه ورکول سوې ده [يعني که زيد خالد ته ووېل: راسه! زما سره ډوډۍ وخوره! او خالد ووېل: که ما ډوډۍ وخوړل نو زما غلام آزاد دی. نو دلته هغه ډوډۍ او خوراک مراد دی چي د هغه وطرف ته خالد رابلل سوی دی، که دا خوراک او ډوډۍ وخوري، نو غلام آزاديږي، لېکن که کور ته ولاړ سي او هلته بل خوراک او ډوډۍ وخوري، نو غلام نه آزاديږي، دا هم يمينِ فور دی]

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: إِنْ تَغَدَّيْتُ الْيَوْمَ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه [په جواب کي ورته ووايي: که چيري ما نن ورځ ډوډۍ وخوړل [نو زما غلام آزاد دی، نو که هغه نن ورځ ډوډۍ وخوري، غلام آزاديږي] لِأَنَّهُ زَادَ عَلَى حَرْفِ الْجَوَابِ ځکه چي هغه پر جواب اضافه وکړه فَيُجْعَلُ مُبْتَدِأً نو هغه به له شروع څخه قسم اخيستونکي ګرځول کيږي [يعني که زيد خالد ته ووېل: راسه! زما سره ډوډۍ وخوره! او خالد په جواب کي ورته ووېل: که ما نن ورځ ډوډۍ وخوړل، نو زما غلام آزاد دی؛ نو څرنګه چي دلته خالد په خپل جواب کي د نن ورځي (يوم) لفظ اضافه کړی دی، نو ځکه به مدعو ډوډۍ مراد نه وي، بلکي هره هغه ډوډۍ به مراد وي کوم چي په نن ورځ کي خوړل کيږي، نو ځکه به خالد داسي ګرځول کيږي لکه له نوي سره چي جلا قسم واخلي، او که نن ورځ هر ځای ډوډۍ وخوري نو هغه به حانث کيږي].

**اللغات:** ﴿تَغَدَّى﴾ د تفعّل ماضي ده: د غرمې خوراک خوړل (د غرمې ډوډۍ خوړل)، مطلق خوراک خوړلو ته هم وايي.

**تشريح:** صورت د مسئلې ښکاره دی.

**ووجهه أن مراد المتكلم إلخ:** فرمايي او د دې قسم د ښکاره کولو وجه دا ده (يعني امام صاحب رَحِمَهُ الله ځکه دا قسم ښکاره او مستنبط کړی) چي په عرف کي له داسي قسم اخيستلو څخه مراد هغه کار درول او منع کول وي کوم چي اوس شروع وي (يعني که يوه سړي ديو کار کولو اراه کړي وي، او دويم سړی په هغه ګړي قسم واخلي، نو په داسي قسم اخيستلو سره د دويم سړي مراد دا وي چي اول سړی په هغه ګړي هغه اراده او کار پرېږدي، او په هغه ګړي له کار څخه را وګرځي، او د هغه مراد د همېشه لپاره منع کول نه وي)، او څرنګه چي د قسم دار ومدار پر عرف او رواج بانديي زيات دی، نو ځکه امام صاحب د عرف په اعتبار سره د "يمينِ فور" استنباط وکړی، او پورتني دوې مسئلې هم پر دغه يمينِ فور مبني دي، نو که ښځه په هغه ګړي ووځي يا سړی په هغه ګړي خپل غلام ووايي، نو ښځه طلاقيږي، او د دويم سړي غلام آزاديږي، کنې طلاق او آزادي نه واقع کيږي.

## د يو سړي پر سپارلي باندي نه د سپرېدلو قسم اخيستل

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَرْكَبُ دَابَّةَ فُلَانٍ او که څوک قسم واخلي چي د فلانکي سړي پر سپارلي [آس] به نه سپرېږي [مثلاً زيد قسم واخلي چي زه به د خالد پر آس نه سپرېږم] فَرَكِبَ دَابَّةَ عَبْدٍ مَأْذُونٍ لَهُ مَدْيُونٍ أَوْ غَيْرِ مَدْيُونٍ بيا هغه [زيد] د فلانکي سړي [خالد] د هغه غلام پر سپارلۍ سپور سي چي هغه ته [د خالد له طرفه] د تجارت اجازه ورکول سوې وي، هغه که دا غلام مقروض وي او که مقروض نه وي [يعني خاوند خپل يو غلام ته د تجارت او کاروبار اجازه ورکړې وي او زيد د هغه پر آس سپور سي، او د قسم اخيستلو په وخت کي يې دا نيت کړی نه وي چي زه به د خالد د غلام پر آس هم نه سپرېږم] لَمْ يَحْنَثْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حالف [زيد] نه حانث کيږي [ځکه چي په عرف کي دې ته د مالک (خالد) آس نه وايي، بلکي د غلام آس ورته وايي، نو ځکه به د عرف په اعتبار سره هغه (زيد) نه حانث کيږي، ځکه چي هغه د خالد پر آس سپور نه سو، او که هغه د قسم اخيستلو په وخت کي د غلام د آس نيت هم کړی وي چي زه به د خالد د غلام پر آس هم نه سپرېږم، او بيا د خالد د غلام پر آس سپور سي، نو حانث کيږي] إِلَّا أَنَّهُ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ مُسْتَغْرِقٌ مګر دا چي پر غلام محيط قرض وي [يعني دومره قرض پر باندي وي چي ټوله غلام يې لاندي کړی وي] لَا يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَإِنْ نَوَى که څه هم [زيد د خالد د غلام پر آس باندي د نه سپرېدلو] نيت کړی وي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لِلْمَوْلَى فِيهِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مالک لره د مقروض غلام په مال [آس] کي ملکيت نسته [حاصل دا چي که پر غلام د خلګو دومره قرض باندي وي چي که هغه د قرض لپاره خرڅ کړی سي نو هم قرض نه په اداء کيږي؛ که په داسي صورت کي خالد دا نيت هم کړی وي چي زه به د خالد د غلام پر آس هم نه سپرېږم، نو هم هغه نه حانث کيږي، ځکه چي د امام صاحب په نيز د مديون غلام په مال کي مالک لره هيڅ ملکيت نسته، او ښکاره خبره ده چي کله د غلام په آس کي د مالک ملکيت نسته، نو دغه آس به د زيد په قسم کي نه داخليږي او پر دې آس په سپرېدلو سره هغه نه حانث کيږي] وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ غَيْرَ مُسْتَغْرِقٍ أَوْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ او که [پر غلام] محيط قرض نه وي يا پر غلام [بالکل] قرض نه وي لَا يَحْنَثُ مَا لَمْ يَنْوِهِ نو [په دې صورت کي] حالف [زيد] تر هغه وخته پوري نه حانث کيږي تر څو چي [د غلام د آس] نيت نه وکړي لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهِ لِلْمَوْلَى ځکه چي په دې [آس] کي مالک لره ملکيت سته [يعني دا آس په حقيقت کي د مالک دی] لَكِنَّهُ يُضَافُ إِلَى الْعَبْدِ عُرْفًا لېکن په عرف کي هغه [آس] د غلام وطرف ته منسوب کيږي [يعني په عرف کي د غلام آس او مال

شمارل کيږي] وَكَذَا شَرْعًا همدارنګه په شريعت کي [مالک لره په دې آس (يعني دغلام په مال) کي ملکيت سته] قَالَ النَّبِيُّ ﷺ [1]: مَنْ بَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَهُوَ لِلْبَائِعِ نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي يو غلام خرڅ کړي او د غلام سره مال وي نو هغه د بائع [مالک] لپاره دی فَتَخْتَلُّ الْإِضَافَةُ إِلَى الْمَوْلَى نو ځکه د مالک وطرف ته [د آس] په نسبت کولو کي خلل واقع کيږي [ځکه چي په عرف کي هغه د غلام مال شمارل کيږي] فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو ځکه به نيت ضروري وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا: يَحْنَثُ إِذَا نَوَاهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: کله چي حالف [د غلام د آس] نيت کړی وي نو په ټولو صورتونو کي هغه حانث کيږي [هغه که پر غلام مستغرق قرض او که نه وي] لِاخْتِلَالِ الْإِضَافَةِ ځکه چي [د مالک وطرف ته د آس] په نسبت کولو خلل [او نقص] سته انو ځکه به فقط د نيت کولو په وخت کي حانث کيږي] وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَحْنَثُ وَإِنْ لَمْ يَنْوِهِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که څه هم حالف [د غلام د آس] نيت کړی نه وي نو هم حانث کيږي لِاعْتِبَارِ حَقِيقَةِ الْمِلْكِ د ملکيت د حقيقت په اعتبار کولو سره [يعني ځکه چي په حقيقت کي ملکيت د مالک دی] إِذِ الدَّيْنُ لَا يَمْنَعُ وُقُوعَهُ لِلسَّيِّدِ عِنْدَهُمَا ځکه چي د صاحبينو په نيز [د غلام] قرض د مالک د ملکيت ثبوت نه منع کوي [يعني که څه هم پر غلام قرض باندي وي. بيا هم د صاحبينو په نيز په هغه غلام کي د مالک ملکيت ثابتيږي].

**اللغات:** ﴿دَابَّة﴾ سپارلي، ځاروی، ﴿عَبْد مَأْذُون﴾ هغه غلام چي مالک د کاروبار او تجارت کولو اجازه ورکړې وي، ﴿مُسْتَغْرِق﴾ د استفعال اسم فاعل دی: ډوبونکی، غرقونکي (لاندي کونکی)، ﴿سَيِّد﴾ سردار، مولیٰ، مالک.

**تشريح:** صورت د مسئلې ښکاره دی.

**وإن كان الدين غير مستغرق إلخ:** د دې حاصل دا دی که پر غلام لږ قرض وي، يا بالکل پر هغه هيڅ قرض نه وي. نو په دې صورت کي خو په حقيقت کي د غلام آس د مالک دی، او په عرف کي د غلام دی، نو د آس دوه حيثيته سوه: ① د حقيقت، ② او د عرف. نو ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، باب:٤٢، رقم الحديث:٣٤٣٣. وابن ماجه، رقم الحديث:٢٢١١.

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما في رد المحتار (ج:٣، ص:٩٤). [القول الراجح ج:١، ص:٤٠٩]

که زيد د قسم اخيستلو په وخت کې دا نيت کړی وي چې د خالد د غلام پر آس به هم نه سپرېږم، او بيا پر سپور سي، نو هغه حانث کيږي، او که نيت يې کړی نه وي، نو په سپرېدلو سره نه حانث کيږي: ځکه چې د غلام مال په حقيقت کې د مالک دئ لکه څرنګه چې د عبارت په حديث کې ذکر سوه.

**وقال أبو يوسف إلخ**: د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې د حالف (زيد) د حانث کېدلو لپاره نيت کول شرط دي، ځکه چې د مالک وطرف ته د غلام د مال (آس) نسبت ناقص دی (ځکه چې د عرف په اعتبار سره هغه د غلام مال شمارل کيږي، او په شريعت کې د مالک مال شمارل کيږي)، نو که زيد دا نيت کړی وي چې زه به د خالد پر آس هم نه سپرېږم، نو په ټولو صورتونو کې هغه حانث کيږي، هغه که پر غلام قرض وي او که نه وي، مستغرق وي او که غيرِ مستغرق وي، په هر صورت کې هغه حانث کيږي، او که نيت يې کړی نه وي، نو نه حانث کيږي.

**وقال محمد إلخ**: او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې که څه هم حالف (زيد) نيت کړی نه وي، بيا هم په ټولو صورتونو کې حانث کيږي، ځکه چې په غلام او آس دواړو کې حقيقي ملکيت د مالک لپاره حاصل دی، نو په دې حواله سره د زيد قسم د خالد د غلام آس ته هم شامليږي، او د غلام په مقروض کېدلو سره په دې کې هيڅ فرق نه راځي، ځکه چې د صاحبينو په نېز د غلام مقروض کېدل د مالک د ملکيت له وقوع او ثبوت څخه مانع نه دي (يعني که څه هم غلام مقروض وي، نو هم د دوی په نېز د مالک ملکيت په غلام کې او د غلام په مال کې ثابتيږي).

خلاصه د کلام دا چې د عبدِ مأذون مال په حقيقت کې د مالک شمارل کيږي، لېکن په عرفِ عام کې د عبدِ مأذون شمارل کيږي، امام صاحب د عرف اعتبار کړی دی، ځکه چې د يمين دار ومدار پر عرف دی، که چيرې غلام مستغرق في القرض وي، نو د عرف او حقيقت دواړو په اعتبار سره حالف نه حانث کيږي، ځکه چې د مقروض کېدلو په وجه په غلام او د غلام په مال کې د مالک (خالد) ملکيت نه ثابتيږي، لېکن د صاحبينو په نېز د مالک ملکيت ثابتيږي، خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول د مالک په نسبت کې خلل او نقص واقع دی، نو په دې وجه د حانث کېدلو لپاره نيت ضروري دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د حانث کېدلو لپاره نيت هم ضروري نه دی. لنډه دا چې که عبدِ مأذون مستغرق في القرض نه وي، نو د امام صاحب او امام ابو يوسف پر قول نيت شرط دی، او د امام محمد په نېز شرط نه دی.



# بَابُ الْيَمِينِ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ

(دا) باب د خوراک او څښاک په هکله د قسم اخیستلو (په بیان کې) دی

**تشریح**: له استوګنې او سُکنیٰ څخه وروسته د انسان تر ټولو مخکنی ضرورت خوراک او څښاک دی. نو ځکه صاحب د هدایې له سُکنیٰ او د هغه له متعلقاتو او لوازماتو څخه وروسته اوس د خوراک او څښاک سره متعلق د قسم اخیستلو مسئلې او أحکام بیانوي.

**د أکل او شُرب تعریف**: د أکل معنیٰ ده: معدې (نس) ته داسې شی رسول کوم چې ژوولو ته ضرورت لري (چې هغه ته خوراک وایي)، او د شُرب معنیٰ ده: داسې شی معدې ته رسول کوم چې ژوولو ته ضرورت نه لري (چې هغه ته څښاک وایي). (بنایة ج: ۶، ص: ۷۳)

## له درختې څخه د خوراک نه کولو قسم اخیستل

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هَذِهِ النَّخْلَةِ فرمایي: او که یو څوک قسم واخلي چې هغه به د خُرما له دغه درختې څخه خوراک نه کوي فَهُوَ عَلَى ثَمَرِهَا نو دا قسم به د هغه درختې د مېوې سره متعلق وي لِأَنَّهُ أَضَافَ الْيَمِينَ إِلَى مَا لَا يُؤْكَلُ ځکه هغه د داسې شي وطرف ته د قسم نسبت وکړی کوم چې نه خوړل کیږي [ځکه چې درخته نه خوړل کیږي، بلکې مېوه یې خوړل کیږي] فَيَنْصَرِفُ إِلَى مَا يَخْرُجُ مِنْهُ وَهُوَ الثَّمَرُ نو ځکه به قسم د هغه شي وطرف ته راجع کیږي کوم چې له درختې څخه راوځي او هغه مېوه ده لِأَنَّهُ سَبَبٌ لَهُ ځکه چې درخته د میوې لپاره سبب ده فَيَصْلُحُ مَجَازًا عَنْهُ نو مېوه به له درختې څخه د مجازاً مرادولو صلاحیت لري [یعني له درختې څخه به مجازاً مېوه مرادول صحیح وي، ځکه چې له سبب څخه مُسبّب مرادول صحیح دي] لَكِنَّ الشَّرْطَ أَنْ لَا يَتَغَيَّرَ بِصُنْعَةٍ جَدِيدَةٍ لیکن شرط دا دی چې مېوه به په نوي ترکیب [او کاریګرۍ] سره بدله سوې نه وي حَتَّى لَا يَحْنَثَ بِالنَّبِيذِ وَالْخَلِّ وَالدِّبْسِ الْمَطْبُوخِ تر دې چې دغه حالف [د خرما] په نبیذ سره او [د خرما] په سرکه سره او [د خرما] په پخه څوږنا [شېره] سره نه حانث کیږي وَإِنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هَذَا الْبُسْرِ او که قسم واخلي چې له دې نیم پخته

خرما څخه به خوراک نه کوي [يعني قسم واخلي چي زه به دغه نيم پخته خرماوي نه خورم] فَصَارَ رُطَبًا بيا هغه خرما پخه سي فَأَكَلَهُ او حالف هغه وخوري لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَكَذَا إِذَا حَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هٰذَا الرُّطَبِ أَوْ مِنْ هٰذَا اللَّبَنِ او همدارنګه که قسم واخلي چي له دغه پخه خرما څخه يا له دغه شيدو څخه به خوراک نه کوي فَصَارَ تَمْرًا أَوْ صَارَ اللَّبَنُ شِيرَازًا بيا هغه پخه خرما وچه [چواره] وګرځي يا شيدې ګاټه [مستې] وګرځي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّ صِفَةَ الْبُسُورَةِ وَالرُّطُوبَةِ دَاعِيَةٌ إِلَى الْيَمِينِ ځکه چي د خرما نيم پختوالي او پخوالي د قسم وطرف ته بلونکی صفت دی وَكَذَا كَوْنُهُ لَبَنًا او همدارنګه شيدې والي [البنيّت] هم داسي دی فَيَتَقَيَّدُ بِهِ نو ځکه به قسم په شيدو [او نورو] سره مقيد کيږي وَلِأَنَّ اللَّبَنَ مَأْكُولٌ او ځکه چي شيدې هم خوړل کيږي فَلَا يَنْصَرِفُ الْيَمِينُ إِلَى مَا يُتَّخَذُ مِنْهُ نو ځکه به قسم د هغه شي وطرف ته راجع کيږي کوم چي له شيدو څخه جوړيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ هٰذَا الصَّبِيَّ أَوْ هٰذَا الشَّابَّ په خلاف د هغه صورت کله چي قسم واخلي چي د دغه کوچني يا د دغه ځوان سره به خبري نه کوي فَكَلَّمَهُ بَعْدَمَا شَاخَ بيا حالف د هغه تر بوډاتوب وروسته د هغه سره خبري وکړي [نو حانث کيږي] لِأَنَّ هِجْرَانَ الْمُسْلِمِ بِمَنْعِ الْكَلَامِ مَنْهِيٌّ عَنْهُ ځکه چي د خبرو په منع کولو سره د مسلمان پرېښوول ممنوع دي فَلَا يُعْتَبَرُ الدَّاعِي دَاعِيًا فِي الشَّرْعِ نو ځکه به په شريعت کي [په دې هکله] درابلونکي شي اعتبار نه کيږي وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ لَحْمَ هٰذَا الْحَمَلِ او که [يو سړی] قسم واخلي چي د دې مرغومي [يا اُوري] غوښي به نه خوري فَأَكَلَ بَعْدَمَا صَارَ كَبْشًا بيا دا سړی [د هغه مرغومي غوښي] وخوري وروسته تر دې چي هغه مېنده وګرځي [يعني بيا مرغومی يا اُوری غټ سي او حالف د هغه غوښي وخوري] حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّ صِفَةَ الصِّغَرِ فِي هٰذَا لَيْسَتْ بِدَاعِيَةٍ إِلَى الْيَمِينِ ځکه چي د کوچنيوالي [کم سن والي] صفت په دې شيانو کي د قسم وطرف ته بلونکی نه دی فَإِنَّ الْمُمْتَنِعَ عَنْهُ أَكْثَرُ امْتِنَاعًا عَنْ لَحْمِ الْكَبْشِ ځکه چي د مرغومي [يا اُوري] له غوښو څخه منع کېدونکی سړی د مېنده له غوښو څخه زيات منع کيږي.

[يعني د غټوالي او زوړوالي په وجه د مېنده غوښي بې مزه او بې خونده کرځېدلي وي نو څوک چي د مرغومي له تازه غوښو څخه منع کيږي، هغه د مېنده له غوښو څخه په درجه اولیٰ منع کيږي].

**اللغات:** ﴿نَخْلَـةٌ﴾ د خرما درخته (ونه)، ﴿صُنْعَةٌ﴾ كاريګري، لاس وهنه، تركيب (جوړښت، جوړونه) ﴿نَبِيْذ﴾ كله چي اوبو ته خرما (انګور، كشمس او داسي نور) واچول سي او دومره وخت پكښي پرېښوول سي چي اوبه خنډي او ګاټه وګرځي، نو دې ته نبيذ وايي. ﴿دِبْس﴾ (د دال په كسره سره صحيح دى): د خرما څوښا (د خرما دوښا او شېره، د خرما را نڅوړل سوي اوبه). ﴿بُسْر﴾ اومه خرما، نيم پخته خرما. ﴿شِيْرَاز﴾ عربي لغاتو د دې لفظ معنىٰ داسي كړې ده: هغه مستې چي اوبه ځني ونښول سي او ګاټه كړى سي. ګاټه كړى سوي شيدې چي خوند يې تريوالي ته مائل سي. ﴿شَاخَ﴾ د ضرب ماضي ده، شَاخَ يَشِيْخُ شَيْخُوْخَةً: بوډا كېدل، سپين ږيري كېدل. ﴿هِجْرَان﴾ د نصر مصدر دى: پرېښوول، تعلق ختمول. ﴿حَمَل﴾ (د ميم په فتحه سره): د بزې يا ميږې كم عمره (كم سنه) بچى چي هغه ته زموږ په اصطلاح مرغومي (يا ورغومي) او اُورى وايي.

**تشريح:** په دې عبارت كي ټوله څلور مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... كه يو سړى قسم واخلي چي هغه به له دغه درختي (د خُرما له درختي) څخه خوراک نه كوي، نو له درختي څخه به د هغې مېوه مراديږي او د ميوې په خوړلو سره به حالف حانث كيږي. او كه چيري پر درختي مېوه نه وي، نو له دې څخه به د درختي قيمت مراديږي؛ د مېوې مرادېدلو دليل دا دى چي دلته حالف د غيرِ مأكول (نا خوړونكي) شي وطرف ته قسم منسوب كړى دى. ځكه چي درخته خوړل ناممكن دي، نو ځكه به دغه قسم هغه شي ته راجع كيږي كوم چي له درختي څخه پيدا كيږي، يعني مېوه، ځكه چي درخته د ميوې د پيدا كېدلو او جوړېدلو سبب ده، او له سبب څخه مسبب مرادول صحيح او جائز دي. او بيا د فقهي دا مشهوره قاعده هم ده "إِذَا تَعَذَّرَ الْحَقِيْقَةُ يُصَارُ إِلَى الْمَجَازِ" يعني كله چي د يو لفظ حقيقي معنىٰ مرادول ناممكن وي نو د مجاز وطرف ته به رجوع كيږي. نو ځكه به دلته له نَخْلَة څخه مېوه (خُرما) مراديږي، ليكن مېوه مرادول په هغه صورت كي صحيح او جائز دي كله چي په دغه مېوه كي لاس وهل سوى نه وي (يعني كاريګري پكښي سوې نه وي) او پر خپلي اصلي حالت باقي وي. نو كه له خُرما څخه نبيذ جوړ كړى سي، يا سركه ځني جوړه كړل سي، يا يو بل شى ځني جوړ كړى سي، نو بيا د هغه شيانو په خوړلو سره حالف نه حانث كيږي، ځكه چي په هغوى كي د ثمر (مېوې) ثمريت ختم سو. او مېوه دومره بدله سوه چي د هغې رنګ، بوى او خوند حتىٰ چي نوم يې هم بدل سو.

(۲)... که يو څوک قسم واخلي چي زه به (د درختي) له دغه نيم پخته خُرما څخه خوراک نه کوم، بيا هغه د ميوې تر پخېدلو او رطب کېدلو وروسته خوراک ځني وکړي، نو هم نه حانث کيږي. همدارنګه که قسم واخله چي زه به له دغه رطب (پخې خُرما) څخه او له دغه شيدو څخه خوراک نه کوم، بيا خُرما وچه سي او چواره (وچه کجوره) ځني جوړه سي، يا شيدې وچي سي او کوچي يا مستې وګرځي (يا مثلاً شلومبې او چکيده وګرځي)، او بيا حالف هغه وخوري، نو په دې صورتونو کي هم هغه نه حانث کيږي؛ ځکه چي په خُرما کي نيم پخته والي او پخوالي داسي صفت دی چي د هغه په وجه خُرما خوړل کيږي او په ډېر شوق سره خوړل کيږي، نو ځکه به دا صفت د قسم وطرف ته داعي (بلونکي) وي، او پر هغه صفت که يې حالف وخوري، نو حانث کيږي به. کنې نه به حانث کيږي، همدارنګه شيدې هم له کوچي او مستې ګرځېدلو څخه مخکي خوړل کيږي. نو ځکه به په شيدو کي هم د لبنيت (شيدې والي) لحاظ کيږي، او قسم اخيستونکی به د غير لبن يعني د کوچي او مستې (همدا رنګه د شلومبو او چکيدې) په خوړلو سره نه حانث کيږي. که څه هم کوچي، مستې او داسي نور له شيدو څخه جوړيږي.

(۳)... د دې په خلاف که يو څوک قسم واخلي چي د دې کوچني هلک يا د دې ځوان سره به خبري نه کوم، او بيا هغه سپينږيري (بوډا) سي، او په هغه وخت کي حالف خبري ور سره وکړي، نو حانث کيږي، که څه هم په بوډاتوب کي د کوچنيوالي او ځوانوالي صفت ختم سوی دی او د قاعدې مطابق د هغه حانث کېدل پکار نه دي، خو بيا هم شريعت هغه ځکه حانث ګرځولی دی چي د يو مسلمان سره خبري پرېښوول ممنوع او ناروا دي، او په دې هکله شريعت د کوچنيوالي او ځوانوالي له صفت څخه قسم خارج کړی دی او د محلوف عليه د ذات سره يې متعلق کړی دی. او د هغه ذات په بوډاتوب کي هم موجود دی. نو ځکه به حالف په بوډاتوب کي د هغه سره د کلام کولو په وجه هم حانث کيږي.

<u>ولوحلف لايأكل إلخ</u>: (۴)... څلورمه مسئله دا ده که يو څوک قسم واخلي چي زه به د دې مرغومي يا اُوري غوښي نه خورم، بيا هغه غټ سي او مينده ځني جوړ سي او حالف د هغه غوښي وخوري. نو حانث کيږي؛ ځکه چي په دې کوچني مرغومي يا اُوري کي د کوچنيوالي (کم عمرۍ) صفت د قسم وطرف ته داعي نه دی، ځکه کوم سړی چي د کوچني مرغومي يا اُوري تازه غوښي نه خوري نو هغه به د زاړه مينده غوښي څنګه وخوري! (ځکه چي د زوړ والي په وجه د مينده غوښي بې خونده ګرځېدلي وي). نو ځکه به دلته يمين د کوچني مرغومي يا اُوري سره مقيد نه وي، بلکي د هغه د ذات سره به متعلق وي، او حالف چي کله هم د هغه غوښې وخوري، نو حانث به ګرځي.

## د اومه (کچه) خُرما نه خوړلو قسم اخيستل

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ بُسْرًا فرمايي: او که يو څوک قسم واخلي چې نيم پخته خُرما [کجوره] به نه خوري فَأَكَلَ رُطَبًا بيا پخه خرما وخوري لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِبُسْرٍ ځکه چې پخه خرما نيمه پخته خورما نه ده [يعني دواړې سره جلا دي] وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ رُطَبًا أَوْ بُسْرًا أَوْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ رُطَبًا وَلَا بُسْرًا او که يو څوک قسم واخلي چې هغه به پخه خرما يا نيم پخته خرما نه خوري يا قسم واخلي چې نه به پخه خرما خوري او نه به نيم پخته خرما خوري فَأَكَلَ مُذَنِّبًا او بيا داسي خرما وخوري چې لاندي سر [يو سر] يې پوخ وي حَنِثَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حانث کيږي وَقَالَا: لَا يَحْنَثُ فِي الرُّطَبِ او صاحبين فرمايي: چې د پخې خُرما په خوړلو سره نه حانث کيږي يَعْنِي بِالْبُسْرِ الْمُذَنِّبِ يعني کله چې هغه د بُسرِ مذنب نه خوړلو قسم اخيستى وي وَلَا فِي الْبُسْرِ بِالرُّطَبِ الْمُذَنِّبِ او نه د نيم پخته خرما په خوړلو سره حانث کيږي [يعني] کله چې هغه د رطبِ مذنب نه خوړلو قسم اخيستى وي لِأَنَّ الرُّطَبَ الْمُذَنِّبَ يُسَمَّى رُطَبًا ځکه چې رطبِ مذنب ته [په عرف کي] پخه خُرما ويل کيږي وَالْبُسْرَ الْمُذَنِّبَ يُسَمَّى بُسْرًا او بُسرِ مذنب ته نيم پخته خرما ويل کيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ الْيَمِينُ عَلَى الشِّرَاءِ نو داسي سو لکه قسم چې [د دې خرماوو] پر رانيولو [اخيستل سوی] وي وَلَهُ: أَنَّ الرُّطَبَ الْمُذَنِّبَ مَا يَكُونُ فِي ذَنَبِهِ قَلِيلُ بُسْرٍ د امام صاحب دليل دا دی: چې رطبِ مذنب هغه خرما ده چې [ټوله پخه وي خو] په لکۍ کي يې څه غوندي اومه والي وي وَالْبُسْرُ الْمُذَنِّبُ عَلَى عَكْسِهِ او بسر مذنب د دې برعکس وي [يعني ټوله اومه وي خو په لکۍ او لاندي سر کي يې څه غوندي پخوالي وي] فَيَكُونُ آكِلُهُ آكِلَ الْبُسْرِ وَالرُّطَبِ نو د رطب مذنب او د بسر مذنب خوړونکي به د اومې او پخې خرما خوړونکی وي وَكُلُّ وَاحِدٍ مَقْصُودٌ فِي الْأَكْلِ او [په دوی کي] هره خرما په خوړلو کي مقصود ده [يعني د بُسر او رطب دواړو خوړل مقصود دي، يا دا چې د هري يوې د خوړلو مقصد جلا، جلا دی] بِخِلَافِ الشِّرَاءِ لِأَنَّهُ يُصَادِفُ الْجُمْلَةَ په خلاف د رانيولو، ځکه

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٩٨)، وكذا في البحر الرائق (ج:٤، ص:٣٢٠)، [القول الراجح ج:١، ص:٤١١]

چي رانيول پر تړوله [ډېرېدو] واقع كېږي فَيَتْبَعُ الْقَلِيلُ فِيهِ الْكَثِيرَ نو په هغه كي به لږ د ډېر تابع كېږي وَلَوْحَلَفَ لَا يَشْتَرِي رُطَبًا او كه قسم واخلي چي پخه خُرما به نه رانيسي فَاشْتَرَى كِبَاسَةَ بُسْرٍ فِيهَا رُطَبٌ بيا د نيم پخته خرماوو داسي ډونډري رانيسي چي په هغه كي څه پخې خرماوي [هم] وي لَا يَحْنَثُ نو نه حانث كيږي لِأَنَّ الشِّرَاءَ يُصَادِفُ الْجُمْلَةَ ځكه چي رانيول پر ټوله [ډنډوري] واقع كيږي وَالْمَغْلُوبُ تَابِعٌ او مغلوب [لږ] شي [د غالب شي] تابع كيږي وَلَوْكَانَتِ الْيَمِينُ عَلَى الْأَكْلِ او كه قسم پر خوړلو وي [مثلاً داسي يې ويلي وي: په الله قسم! زه به پخه خرما نه خورم] يَحْنَثُ نو [بيا د دې ډنډوري په خوړلو سره] هغه حانث كيږي لِأَنَّ الْأَكْلَ يُصَادِفُهُ شَيْئًا فَشَيْئًا ځكه چي أكل [خوړل] لږ، لږ [په دانه، دانه] پر خرماوو واقع كيږي [يعني مثلاً څوك چي خورما خوري نو په كراره، كراره او په دانه، دانه يې خوري، ټوله ډنډوري په يوه وار نه خوري] فَكَانَ كُلٌّ مِنْهُمَا مَقْصُودًا نو له رطب او بُسر څخه به هر يوه مقصود وي [يعني كله چي په يوه وار ټوله ډنډوري نه خوړل كيږي نو نيم پخته او پخه خرما به جلا، جلا د حالف په لاس كي راسي، نو ځكه به هغه حانث كيږي] وَصَارَ كَمَا إِذَا حَلَفَ لَا يَشْتَرِي شَعِيرًا أَوْ لَا يَأْكُلُهُ او دا [قسم] داسي سو لكه كله چي هغه قسم واخلي چي اوربشي به نه رانيسي يا اوربشي به نه خوري فَاشْتَرَى حِنْطَةً فِيهَا حَبَّاتُ شَعِيرٍ وَأَكَلَهَا بيا هغه غنم رانيسي چي په هغه كي د اُوربشو يو څو دانې وي او هغه [غنم] وخوري يَحْنَثُ فِي الْأَكْلِ دُونَ الشِّرَاءِ نو د خوړلو په صورت كي حانث كيږي، نه د رانيولو په صورت كي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړى.

**اللغات:** ﴿بُسر﴾ نيم پخته خرما، اُومه خرما. ﴿رُطب﴾ (د راء په ضمه او د طاء په فتحه سره): پخه خُرما، خيشته او تازه خرما، واحد يې رُطَبَة راځي، جمع يې رِطَاب راځي، وچي خرما ته "تَمر" وايي. رَطْب (د طاء په سكون سره): لوند، خيشت، نازك او لوند نباخ. رُطب او رُطَب: شنه واښه. ﴿مُذَنِّب﴾ لكى داره شى، هغه اومه خُرما چي په لاندي سر كي يې څه پخوالي راسي. ﴿بُسر مُذَنِّب﴾ هغه نيم پخته خرما چي په لاندي سر كي يې څه پخوالي او سور والي راسي، نو هغه ته بُسر مذنب وايي. ﴿رُطب مُذَنِّب﴾ هغه پخه خرما چي په لاندي سر كي يې څه اوموالي پاته وي، نو هغه

ته رطب مذنب ويلي. ﴿يُصَادِفُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: واقع کېدل. مخامخ کېدل. ﴿كِبَاسَة﴾ ډنډوری، وانبکی. ﴿حَبَّات﴾ جمع د حَبَّةٌ ده: دانه.

**تشريح: مسئله**: دا ده که یو څوک قسم واخلي چې زه به نیم پخته خُرماوي (کجوري) نه خورم. او بیا هغه تازه پخې خرماوي وخوري نو نه حانث کیږي. ځکه چې پخه خرما له نیم پخته خرما څخه جلا شی ده. او محلوف علیها نیم پخته خرما (بُسر) وو. نه پخه خرما (رطب).

که یو سړی قسم واخلي چې زه به رطب یا بُسر نه خورم. یا داسې قسم واخلي چې زه به رطب او بُسر دواړه نه خورم. بیا هغه داسې خرما وخوري چې فقط لاندې سرېې څه پوخ سوی وی (يعني بُسر مُذنب وخوري)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه حانث کیږي. لیکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې هکله تفصیل سته او هغه دا دی چې که هغه د رطب نه خوړلو قسم اخیستی وي. نو د بُسر مذنب په خوړلو سره نه حانث کیږي. او که هغه د بُسر نه خوړلو قسم اخیستی وی. نو د رطب مذنب په خوړلو سره نه حانث کیږي. ځکه چې رطب مذنب ته رطب وایي. او بُسر مذنب ته بُسر وایي. نو ګواکې په دې دواړو صورتونو کې هغه له محلوف علیه شي څخه بغیر جلا او بېل شی خوړلی دی. او د غیر محلوف علیه شي په خوړلو سره حالف نه حانث کیږي. نو ځکه به په دې صورتونو کې حالف نه حانث کیږي.

**وله الخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د رطب مذنب په لاندې سر کې معمولي غوندې اُومالي وي او د بسر مذنب په لاندې سر کې معمولي غوندې پخوالي وي. لهذا د رطب مذنب خوړونکي به د بُسر خوړونکي وي او د بُسر مذنب خوړونکي به د رطب خوړونکی وي؛ ځکه چې په دواړو خرماوو کې د یوې او بلې خرما څه غوندې حصه سته او په دواړو کې أکل مقصود دی. نو ځکه به په دواړو صورتونو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حالف حانث کیږي. ځکه چې له محلوف علیه شي څخه لږ اندازه خوراک کول هم د حانث کېدلو سبب دی. او دلته لږ خوړل ثابت سو.

د دې په خلاف که یو څوک دا قسم واخلي چې رطب (پخې خرماوي) به نه رانیسم. بیا هغه د نیم پخته خرماوو یو ډنډوری رانیسي او په هغه کې څه رطب خرماوي هم وي. نو حالف نه حانث کیږي. ځکه کله چې یو ډنډوری رانیول کیږي نو ټوله او بشپړ ډنډوری رانیول کیږي. او په هغه کې قلیل د کثیر تابع کیږي او مغلوب کیږي. او بل دا چې د حالف نیت د نیم پخته خرماوو رانیول دي. او د هغه په ډنډوري کې ضمناً څه رطب خرماوي راغلي دي. او د ضمناً ثابتېدونکي شي سره قسم نه متعلق کیږي.

ها! که هغه دا قسم اخیستی وي چې رطب خرماوي به نه خورم. بیا د بُسر خرماوو داسې ډنډورې وخوري چې په هغه کې رطب خرماوي هم وي، نو حانث کیږي. ځکه چې خوړل په یوه وار نه متحقق کیږي (یعني ټوله ډنډورې په یوه وار نه خوړل کیږي) بلکې په لږ، لږ او دانه. دانه سره خوړل کیږي، او په خوړلو کې په آسانه توګه بُسر او رطب سره جلا کېدای سي (او بل دا چې کله خرماوي په دانه، دانه سره خوړل کیږي، نو د حالف په لاس او خوراک کې به رطب خرما جلا راسي). نو ځکه به په دې صورت کې د رطب په خوړلو سره حالف حانث کیږي، لکه یو څوک چې قسم واخلي چې اُوربشې به نه رانیسم، او هغه داسې غنم رانیسي چې په هغه کې د اُوربشو یو څو دانې هم راغلې وي. نو څرنګه چې دا دانې په ضمني توګه پکښې راغلې دي او د هغو رانیول مقصود نه دي. نو ځکه به حالف نه حانث کیږي. لېکن که قسم د خوړلو سره متعلق وي. یعني حالف داسې ویلي وي چې په الله قسم! زه به اوربشې نه خورم او بیا حالف د غنمو سره د اُوربشو درې، څلور دانې وخوري. نو حانث کیږي، ځکه چې خوړل پر یوه ځای نه واقع کیږي او د خوړلو په دوران کې د غنم او اُوربشو امتیاز او توپیر کېدای سي او دواړه سره جلا کېدای سي، همداسې حکم به د رطب او بُسر هم وي چې د شراء (رانیولو) په صورت کې به حالف نه حانث کیږي، او د خوړلو په صورت کې به حانث کیږي.

## د غوښو نه خوړلو تر قسم وروسته د ماهي غوښې خوړل

قَالَ: وَلَوْحَلَفَ لَا يَأْكُلُ لَحْمًا فَأَكَلَ لَحْمَ السَّمَكِ فرمايي: که یو څوک قسم واخلي چې غوښې به نه خوري او [بیا] د ماهي غوښې وخوري لَا يَحْنَثُ نو [استحساناً] نه حانث کیږي وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَحْنَثَ او قیاس دا دی: چې حانث سي لِأَنَّهُ يُسَمَّى لَحْمًا فِي الْقُرْآنِ ځکه چې د ماهي غوښو ته په قرآن کې غوښې ویل سوي دي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ التَّسْمِيَةَ مَجَازِيَّةٌ د استحسان دلیل دا دی: چې د ماهي غوښو ته غوښې ویل مجاز دي [یعني هغه ته مجازاً غوښې ویل سوي دي] لِأَنَّ اللَّحْمَ مُنْشَؤُهُ مِنَ الدَّمِ ځکه چې غوښې له وینې څخه پیدا کیږي وَلَا دَمَ فِيهِ او په ماهي کې وینه نسته لِسُكُونِهِ فِي الْمَاءِ ځکه چې هغه په اوبو کې اوسیږي وَإِنْ أَكَلَ لَحْمَ خِنْزِيرٍ أَوْ لَحْمَ إِنْسَانٍ او که دغه حالف د خنزیر یا انسان غوښې وخوري يَحْنَثُ نو حانث کیږي لِأَنَّهُ لَحْمٌ حَقِيقِيٌّ ځکه چې دا حقیقي غوښې دي إِلَّا أَنَّهُ حَرَامٌ خو دا [جلا خبره ده] چې دا حرامې دي وَالْيَمِينُ قَدْ يُعْقَدُ لِلْمَنْعِ مِنَ الْحَرَامِ او قسم کله نا کله له حرام شي څخه د ځان ساتلو لپاره اخیستل کیږي وَكَذَا إِذَا أَكَلَ كَبِدًا أَوْ كَرِشًا او همدارنګه

[هغه حانث کیږي] کله چې اینه یا لرى [او دلبند] وخوري لِأَنَّهُ لَحْمٌ حَقِيقَةً ځکه چې دا په حقیقت کې غوښې دي فَإِنَّ نُمُوَّهُ مِنَ الدَّمِ ځکه چې د دې وده او نما په وینو سره ده وَيُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَ اللَّحْمِ او د غوښو په څیر استعمالیږي وَقِيلَ: فِي عُرْفِنَا لَا يَحْنَثُ او ویل سوي دي: چې زموږ په عرف کې به نه حانث کیږي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ لَحْمًا ځکه چې دا زموږ په عرف کې اغوښې نه شمارل کیږي.

**اللغات:** ﴿لَحم﴾ غوښه، جمع: لُحُوم، ﴿سَمَک﴾ ماهی، کب، جمع: أسْمَاک، ﴿مَنْشَأ﴾ د اسم ظرف صیغه ده: د پیدا کېدلو ځای، د وده کولو ځای، ﴿کَبِد﴾ اینه، ایینه (ینه)، ځیګر، ﴿کِرْش﴾ او کَرِش: لرى، د ځاريو معده. ﴿نُمُوّ﴾ د نصر مصدر دی: وده کول، غټېدل (لویېدل).

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو څوک داسې قسم واخلي چې غوښې به نه خورم، بیا هغه د ماهي غوښې وخوري، نو استحساناً نه حانث کیږي، لېکن قیاساً حانث کیږي؛ د قیاس دلیل دا دی چې د ماهي پر غوښو هم د لحم (غوښو) اطلاق کیږي، لکه څرنګه چې په قرآن کې هغه ته غوښې ویل سوي دي، په سورةُ الفاطر کې ذکر سوي دي: "وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا" [سورةُ الفاطر: ١٢]. په دې آیت کې د ماهي غوښې ته لحم طري (تازه غوښې) ویل سوي دي، نو ځکه به حالف د ماهي د غوښې په خوړلو سره هم حانث کیږي.

د استحسان دلیل دا دی چې د ماهي غوښو ته مجازاً غوښې ویل سوي دي، ځکه غوښې له وینو څخه پیدا کیږي، او په ماهي کې هیڅ وینه نه وي، ځکه چې ماهی په اوبو کې اوسیږي، او د وینې والا حیوان په اُوبو کې نه اوسیږي، په دې سلسله کې یو دا اُصول هم دی چې که یو لفظ پر څو أفرادو مشتمل وي، نو په کوم فرد کې چې څه کمي او کوتاهي وي، هغه تر دې لفظ لاندې نه راځي (یعني ناقصې معنیٰ والا فرد په هغه لفظ کې نه شاملیږي)، او څرنګه چې د لَحم (غوښو) لفظ پر ډېرو أفراد او أقسامو مشتمل دی، او د ماهي په غوښه کې د وینې د نشتوالي په وجه د هغې په لحمیت (غوښه والي) کې څه کمي او نقصان سته، نو ځکه به د لَحم لفظ د ماهي غوښو ته نه شاملیږي، او حالف به د ماهي د غوښو په خوړلو سره نه حانث کیږي. (عنایه)

**وإن أکل إلخ:** فرمایي که حالف د خنزیر یا انسان غوښې وخوري، نو حانث کیږي، ځکه چې د دوی غوښې هم په حقیقت کې لَحم دي، او دا جلا خبره ده چې د دوی غوښې خوړل حرام دي، لېکن په دوی کې لحمیّت موجود دی، او د دوی حرامېدل د یمین له صحیحوالي او حانثوالي څخه مانع نه

وي، ځکه چي کله، کله له حرام شي څخه د ځان ساتلو لپاره هم قسم اخيستل کيږي، لکه څرنګه چي ويل کيږي: په الله قسم! زه به هيڅکله شراب نه چيښم.

**وكذا إلخ:** مسئله دا ده که دغه حالف (کوم چي د غوښي نه خوړلو قسم اخيستی وي) د يو ځاروي اينه وخوري، يا لرى او دلبند وخوري، نو هم حانث کيږي؛ ځکه چي اينه، لرى او دلبند هم په حقيقت کي غوښي دي، ځکه دا شيان له وينو څخه جوړيږي او په وينو سره يې وده کيږي او دوى هم د غوښو په څير او د غوښو پر ځای استعماليږي، نو ځکه به د غوښو په حکم کي وي او د دوى په خوړلو سره به هم حالف حانث کيږي.

**وقيل في عرفنا إلخ:** فرمايي چي د ځيني فقهاؤ رايه دا ده چي د اينې او لري په خوړلو سره حانث کېدل د کوفې د خلکو عُرف دی، نو د هغو په عرف کي خو به حالف حانث کيږي، لېکن زموږ په عرف کي به حالف نه حانث کيږي، ځکه چي موږ په عرف کي اينه او لرى لَحم نه دی. نه د نامه په اعتبار سره او نه د کار په اعتبار سره. همدا وجه ده چي د اينې، لري او دلبند خرڅونکي ته غوښه خرڅونکی (لحم فروش) نه وايي. صاحب د بنايې ليکلي دي چي زموږ د عرف په اعتبار سره دا قول صحيح معلوميږي، په خلاصة الفتاویٰ او محيط کي هم دغه حکم ذکر سوی دی. (بناية ج: ۶، ص: ۸۱)

## د وازګي نه خوړلو قسم

**قَالَ: وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ أَوْ لَا يَشْتَرِيْ شَحْمًا** فرمايي: او که [يو څوک] قسم واخلي چي وازګه به نه خوري يا به يې نه رانيسي **لَمْ يَحْنَثْ إِلَّا فِي شَحْمِ الْبَطْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه فقط د نس په وازګي سره حانث کيږي **وَقَالَا**[*]**: يَحْنَثُ فِي شَحْمِ الظَّهْرِ أَيْضًا** صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د ملا په وازګي سره هم حانث کيږي **وَهُوَ اللَّحْمُ السَّمِيْنُ لِوُجُودِ خَاصِّيَّةِ الشَّحْمِ فِيهِ وَهُوَ الذَّوْبُ بِالنَّارِ** او هغه [د ملا وازګه] پنډه غوښه ده چي په هغې کي د وازګي خاصيت موجود دی او هغه په اُور سره ويلي کېدل دي **وَلَهُ: أَنَّهُ لَحْمٌ حَقِيقَةً** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د ملا وازګه په حقيقت کي غوښه ده **أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَنْشَأُ مِنَ الدَّمِ وَيُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَهُ** آيا ته نه ګوري! چي

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۰۰)، وكذا في الهندية: ولو حلف لا يأكل شحمًا، فأكل شحم البطن حنث، وإن أكل شحم الظهر وهو الذي خالطه لحم لم يحنث عند أبي حنيفة، وهو الصحيح (ج:۲، ص:۸۴). [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۱۲]

هغه له وينې څخه پيدا کيږي او د غوښو په ځير استعماليږي وَتَحْصُلُ بِهِ قُوَّتُهُ او په هغه سره د غوښې قوت [غذا] حاصليږي وَلِهٰذَا يَحْنَثُ بِأَكْلِهِ فِي الْيَمِينِ عَلىٰ أَكْلِ اللَّحْمِ همدا وجه ده چې د غوښو خوړلو په قسم کې د ملا د وازګې په خوړلو سره حالف حانث کيږي وَلَا يَحْنَثُ بِبَيْعِهِ فِي الْيَمِينِ عَلىٰ بَيْعِ الشَّحْمِ او د وازګې خرڅولو په قسم کې د وازګې په خرڅولو سره نه حانث کيږي وَقِيلَ: هٰذَا بِالْعَرَبِيَّةِ او ويل سوي دي چې دا اختلاف په عربي ژبه کې دی فَأَمَّا اسْمُ "پِيَه" بِالْفَارِسِيَّةِ لَا يَقَعُ عَلىٰ شَحْمِ الظَّهْرِ بِحَالٍ ليکن د فارسي د "پِيَه" لفظ په هيڅ حال کې هم د ملا پر وازګې نه واقع کيږي وَلَوْ حَلَفَ لَا يَشْتَرِي أَوْ لَا يَأْكُلُ لَحْمًا أَوْ شَحْمًا او که هغه قسم واخلي چې غوښې يا وازګه به نه رانيسي يا به يې نه خوري فَاشْتَرَى أَلْيَةً أَوْ أَكَلَهَا بيا هغه لم رانيسي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ نَوْعٌ ثَالِثٌ ځکه چې لم دريم [جلا] قسم دی حَتّٰى لَا يُسْتَعْمَلَ اسْتِعْمَالَ اللُّحُومِ وَالشُّحُومِ همدا وجه ده چې لم د غوښې او وازګې په ځير نه استعماليږي.

**اللغات:** ﴿شَحم﴾ وازګه، وازده، ﴿سَمِين﴾ پنډ، چاغ، ﴿ذَوْب﴾ د نصر مصدر دی: ويلې کېدل (ويلېدل)، مايع کېدل (ټينګ شی د اُور په واسطه نرې کېدل)، ﴿پِيَه﴾ په فارسي ژبه کې "خالص وازګې" ته وايي، ﴿أَلْيَة﴾ لم، د پسونو او ميږو پلنه لکۍ.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی قسم واخلي چې وازګه به نه خورم يا وازګه به نه رانيسم، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له دې څخه فقط د نس وازګه مراديږي، يعني فقط د نس د وازګې په خوړلو سره هغه حانث کيږي، ليکن له نس څخه بغير د ملا او داسې نورو په وازګې سره نه حانث کيږي، او د صاحبينو په نيز دا قسم د ملا وازګې ته هم شامليږي، او د هغه په خوړلو سره هم حالف حانث کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د ملا په وازګه کې هم د وازګې خاصيت (يعني په اُور سره ويلېدل) موجود دي، نو ځکه به هغه هم د شَحم تر لفظ لاندې داخل وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د ملا وازګه په حقيقت کې غوښه ده، ځکه چې ① هغه له وينو څخه پيدا کيږي، او د غوښې په ځير استعماليږي او د غوښو په ځير په خوند خوړل کيږي، ② او بل دا چې که څوک قسم واخلي چې غوښې به نه خورم، نو د هغه د ملا د وازګې په خوړلو سره حانث کيږي، ③ او که قسم واخلي چې وازګه به خرڅوم، نو د ملا د وازګې په خرڅولو سره نه حانث

کيږي، نو ثابته سوه چې د ملا وازګه غوښه ده او د غوښې په حکم کې ده. نو ځکه به حالف د هغه په خوړلو سره حانث کيږي.

**قيل هذا إلخ:** فرمايي چې د امام صاحب او صاحبينو دا اختلاف په هغه صورت کې دی. کله چې حالف په عربي ژبه سره د شَحْم لفظ استعمال کړی وي او قسم يې اخيستی وي، او که چيرې هغه په فارسي ژبه سيږه "پِيه" لفظ استعمال کړی وي، نو په دې صورت کې بالاتفاق فقط د نس وازګه مراديږي، او د ملا وازګې ته دا لفظ نه شامليږي، ځکه چې په فارسي کې "پِيه" خالص وازګې ته وايي، او د ملا وازګه خالص وازګه نه ده.

که يو څوک قسم واخلي چې زه به غوښې يا وازګه نه رانيسم، يا به يې نه خورم، بيا هغه د پُسه لَمْ رانيسي يا يې وخوري، نو نه حانث کيږي، ځکه چې لم د غوښې او وازګې څخه يلاځ يو دريم شی دی، نه په هغه کې د غوښې څه حصه سته، او نه د وازګې، او نه هغه د غوښې او وازګې پر ځای استعماليږي، نو ځکه به حالف د هغه په خوړلو سره نه حانث کيږي.

**فايده:** وازګه پر څلور قسمه ده: ① هغه وازګه کوم چې د هډوکو سره لګېدلې وي، ② هغه وازګه چې د کولمو سره موښتې وي، ③ د ملا وازګه، په همدې دريو قسمونو کې د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، ④ د نس وازګه، په دې کې زموږ د امامانو هيڅ اختلاف نسته.

## د غنمو د نه خوړلو قسم

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هَذِهِ الْحِنْطَةِ او څوک چې قسم واخلي چې له دې غنمو څخه به خوراک نه کوم لَمْ يَحْنَثْ حَتّٰى يَقْضَمَهَا نو نه حانث کيږي تر دې چې هغه دا غنم په ژوولو سره وخوري [يعني هغه وخت حانث کيږي کله چې دا غنم وژويي او ويې خوري] وَلَوْ أَكَلَ مِنْ خُبْزِهَا او که له دې غنمو څخه [پخه سوې] ډوډۍ وخوري لَمْ يَحْنَثْ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو [هم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نه حانث کيږي وَقَالَا: إِنْ أَكَلَ مِنْ خُبْزِهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که له دې غنمو څخه [پخه سوې] ډوډۍ وخوري حَنِثَ أَيْضًا نو هم حانث کيږي [الکه څرنګه چې د غنمو د ژوولو او خوړلو په صورت کې حانث کيږي] لِأَنَّهُ مَفْهُوْمٌ مِنْهُ عُرْفًا ځکه چې په عرف کې له دې [يمين] څخه د ډوډۍ خوړل [هم] فهمول کيږي [او يمين پر عرف مبني دی] وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ لَهُ حَقِيْقَةً مُسْتَعْمَلَةً د امام صاحب دليل دا دی: چې د غنمو لپاره حقيقت مستعمله سته [يعني د غنم خوړلو حقيقي

معنیٰ هم مستعمله ده. لنډه دا چې په حقيقت کې په خپله غنم هم استعماليږي [ فَإِنَّهَا تُغْلَى وَتُقْلَى وَتُؤْكَلُ قَضْمًا ځکه چې غنم ايشول کيږي او وريتول کيږي [ننې کيږي] او د ژوولو په توګه خوړل کيږي وَهِيَ قَاضِيَةٌ عَلَى الْمَجَازِ الْمُتَعَارَفِ عَلَى مَا هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د اُصول مطابق حقيقت پر عُرفي مجاز فيصله کونکی [او له عُرفي مجاز څخه أعلیٰ] وي وَلَوْ قَضَمَهَا حَنِثَ عِنْدَهُمَا او که حالف غنم په ژوولو سره وخوړي نو هغه [هم] د صاحبينو په نيز [د مجاز د عموم په وجه] حانث کيږي ايعني که څه هم د صاحبينو په نيز مجازاً له غنمو څخه ډوډۍ مراديږي. لېکن په مجاز کې عموم سته. او دا عموم "په ژوولو سره خوړلو" ته هم شامل دی. د دې مثال داسې دی چې يو څوک قسم واخلي چې د فلانکي سړي په کور کې به قدم نه اږدم، نو د مجاز د عموم په وجه له داسې قسم څخه دخول مراديږي. نو کله چې هم حالف هغه کور ته قدم داخل کړي، نو حانث کيږي، که څه هم لڅ قدم کنبيږدي، يا پر يو شي سپور وي او د هغه قدم کور ته داخل سي، او د متن په دې عبارت "وقالا: إن أكل من خبزها حنث أيضاً" کې همدغه د مجاز د عموم وطرف ته اشاره سوې ده] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِعُمُومِ الْمَجَازِ د مجاز د عموم والي په وجه كَمَا إِذَا حَلَفَ لَا يَضَعُ قَدَمَهُ فِي دَارِ فُلَانٍ لکه هغه چې [داسې] قسم واخلي چې د فلانکي په کور کې به قدم نه اږدي [نو که هغه له څپلۍ څخه بغير قدم پکښې کښيږدي يا د سپرتيا په حالت کې يې قدم پکښې داخل سي نو بيا هم حانث کيږي] وَإِلَيْهِ الْإِشَارَةُ بِقَوْلِهِ فِي الْخُبْزِ حَنِثَ أَيْضًا او همدغه [د مجاز د عموم] وطرف ته د امام قدوري په دې قول کې اشاره سوې ده چې د ډوډۍ په خوړلو سره هم حانث کيږي.

**اللغات:** ﴿حِنْطَة﴾ غنم. ﴿يَقْضَمهَا﴾ د سمع له باب څخه د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده: د غاښو په أطرافو يو شی ميده کول. ژوول. ﴿خُبْز﴾ ډوډۍ (روټۍ). ﴿تُغْلَى﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: ايشوول. جوش ورکول. ﴿تُقْلَى﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: وريتول. کبابول. په اُور کې پخول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک قسم واخلي چې زه به غنم نه خورم. نو تر هغه وخته پورې نه حانث کيږي، تر څو چې يې غنم ژوولي او خوړلي نه وي. ځکه چې د يو شي د خوړلو عمل هغه وخت واقع کيږي کله چې وژوول سي، "أکل" (خوراک کول) هم يو عمل دی. د هغه لپاره درې شيان ضروري دي: ① ژوول. ② تيرول. ③ نس ته رسول.

په پورتنې صورت کې د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی (کوم چې په کتاب کې ذکر سو). د اختلاف وجه دا ده چې د کوم لفظ حقيقي او مجازي دواړي معناوې مرادول کېداې سي. نو د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به هغه لفظ په حقیقي معنیٰ کي استعمالیږي، لیکن د صاحبینو په نیز به په مجازي معنیٰ کي استعمالیږي، ځرنګه چي د "أکل" حقیقي معنیٰ په ژوولو سره د یو شي د خوړلو تقاضا کوي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز چي تر څو غنم په ژوولو سره نه وخوړل سي. تر هغه وخته پوري حالف نه حانث کیږي، برابره ده غنم که ایشول سوي وي. یا په اُور کي کباب سوي (نیني سوي) وي، ځکه چي دا هم په ژوولو سره خوړل کیږي. لهذا (دلته) د "أکل" حقیقي معنیٰ لره زیاته ترجیح سته. (پاته عبارت په ترجمه کي تشریح سو)

## د پورتني مسئلي یو څو نور صورتونه

وَلَوْحَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هٰذَا الدَّقِيقِ فرمایي: او که [یو څوک] قسم واخلي چي له دغه اُوړو څخه به خوراک نه کوي فَأَكَلَ مِنْ خُبْزِهِ بیا د هغه اُوړو ډوډۍ وخوري حَنِثَ نو حانث کیږي لِأَنَّ عَيْنَهُ غَيْرُ مَأْكُولٍ ځکه چي عین اُوړه نه خوړل کیږي فَانْصَرَفَ إِلَى مَا يُتَّخَذُ مِنْهُ نو د هغه شي وطرف ته به قسم راجع کیږي کوم چي له اُوړو څخه جوړیږي [چي هغه ډوډۍ او ټکیاني دي. یعني په دې صورت کي به له قسم څخه هغه شی مرادیږي کوم چي له اُوړو څخه جوړیږي. د دې مثال دا دی لکه یو څوک چي قسم واخلي: چي له دغه درختي څخه به خوراک نه کوم، نو په دې صورت کي د درختي میوه مرادیږي، ځکه چي عین درخته نه خوړل کیږي، بلکي میوه یې خوړل کیږي] وَلَوْاِسْتَفَّهُ كَمَا هُوَ او که حالف خودي هغه اُوړه کپه کړي [یعني خولي ته یې واچوي او ژوندي یې تیر کړي] لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کیږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح دي لِتَعَيُّنِ الْمَجَازِ مُرَادًا ځکه چي [په اُوړو کي] مجازي معنیٰ مرادول متعین دي [یعني په عرف کي د اُوړو خوړلو څخه د اُوړو ډوډۍ خوړل مرادول کیږي، د اُوړو ژوندي تیرول او اُوړه کپه کول نه ځني مرادول کیږي، نو ځکه به دلته له اُوړو څخه د هغوی ډوډۍ مراد وي، که حالف ډوډۍ وخوري نو حانث کیږي به. کنې نه به حانث کیږي] وَلَوْحَلَفَ لَا يَأْكُلُ خُبْزًا او که قسم واخلي چي ډوډۍ به نه خوري فَيَمِينُهُ عَلَى مَا يَعْتَادُ أَهْلُ الْمِصْرِ أَكْلَهُ خُبْزًا نو د ده قسم به د هغه ډوډۍ سره متعلق وي کوم چي یې د ښار خلک عادتاً خوري وَذٰلِكَ خُبْزُ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ او هغه د غنمو او اُوربشو ډوډۍ ده لِأَنَّهُ هُوَ الْمُعْتَادُ فِي غَالِبِ الْبُلْدَانِ ځکه چي په زیاتره ښارونو کي د همدې [دوو شیانو د ډوډۍ خوړلو] عادت دی اخلاصه دا چي د حالف په ښار کي چي د کوم شي ډوډۍ خوړل کیږي، نو د مطلق ډوډۍ له قسم څخه به د هغه شي ډوډۍ مرادیږي او د هغه په خوړلو سره به حانث کیږي، لیکن که هغه د یو بل شي ډوډۍ وخوري کوم چي په عامه توګه نه خوړل کیږي

مثلاً زموږ په سیمو کي دأوربشو ډوډۍ. نو په هغه سره حالف نه حانث کیږي اوَلَوْ أَكَلَ مِنْ خُبْزِ الْقَطَائِفِ او که د مغزونو والا ډوډۍ وخوري [کوم چي له ډول ډول مغزونو او د غنمو له أوړو څخه د ټکی (روغانی) په شکل په غوړو کي سره کیږي] لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کیږي لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى خُبْزًا مُطْلَقًا ځکه چي دې ته مطلق ډوډۍ نه وایي [بلکي د مغزونو ټکی او ډوډۍ ورته وایي] إِلَّا إِذَا نَوَاهُ مګر دا چي د حالف ذ هغه نیت کړی وي [یعني که حالف د هغه ټکی نیت هم کړی وي. نو بیا یې په خوړلو سره حانث کیږي] لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ ځکه د هغه په کلام کي د دې احتمال [هم] سته [ځکه چي دا هم یو ډول ډوډۍ ده له أوړو او مغزونو څخه جوړیږي. او دا تاسي ته هم معلومه ده چي د کلام د احتمالي معنیٰ نیت کول معتبر دی] وَكَذَا لَوْ أَكَلَ خُبْزَ الْأُرْزِ بِالْعِرَاقِ او همدارنګه که په عراق کي د وریجو ډوډۍ وخوري [یعني که یو سړی داسي قسم اخیستی وي چي زه به ډوډۍ نه خورم او بیا په داسي وطن کي د وریجو ډوډۍ وخوري چي هلته د وریجو ډوډۍ خوړل رواج نه وي] لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کیږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُعْتَادٍ عِنْدَهُمْ ځکه چي د عراقیانو په نیز د دې عادت نسته [یعني د عراق په خلکو د وریجو د ډوډۍ خوړل رواج او عادت نه دي، او قسم پر عرف او رواج مبني دي] حَتَّى لَوْ كَانَ بِطَبَرِسْتَانَ أَوْ فِي بَلْدَةٍ طَعَامُهُمْ ذَٰلِكَ تر دې که حالف په طبرستان کي وي یا په داسې ښار کي چي د هغو خوراک د وریجو ډوډۍ وي [او حالف هلته د وریجو ډوډۍ وخوري] يَحْنَثُ نو حانث کیږي.

**اللغات:** ﴿إِسْتَفَّ﴾ د استفعال ماضي ده: کپه کول (خولې ته اچول، ژوندی تېرول)، میده سوی شی (لکه أوړه، سفوف، پوډري دواء) خولې ته اچول او تېرول. ﴿قَطَائِفُ﴾ دا یو ډول ټکی (روغانی) ده چي د غنمو له أوړو او ډول، ډول مغزو خصوصاً د جوز او بادامو څخه جوړیږي. او د غوا په غوړو (لاسي غوړو) یا په عامو غوړو کي سره کیږي. دا د عربو په ښارونو کي رواج ده خصوصاً د رمضان په میاشته کي زیاته پخیږي. او دا جمع د قَطِيفَةٌ نه ده لکه ځیني شارحینو چي لیکلي دي. بلکي دا لفظ همدغسي جمع استعمالیږي (معجم الوسيط). ﴿أُرْزٌ﴾ او آرْز: وریجي، برنج. خُبْزُ الأُرْز: د وریجو له أوړو څخه پخه سوی ډوډۍ.

**تشریح:** عبارت په ترجمه کي تشریح سو.

## د کباب سوي يا پوخ سوي شي د نه خوړلو قسم

وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ الشِّوَاءَ فَهُوَ عَلَى اللَّحْمِ دُونَ الْبَاذِنْجَانِ وَالْجَزَرِ او که څوک قسم واخلي چي کباب سوی [او سور کړی] شی به نه خوري نو هغه [فقط] پر غوښو حمل کيږي. نه پر بانجڼ او زردکي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ اللَّحْمُ الْمَشْوِيُّ عِنْدَ الْإِطْلَاقِ ځکه چي [د شواء] د مطلق ويلو په وخت کي په هغه سره کباب سوي غوښي مراديږي إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ مَا يُشْوَى مِنْ بِيضٍ أَوْ غَيْرِهِ خو دا چي حالف [په دې سره] د کباب سوي هګۍ او داسي نورو نيت وکړي لِمَكَانِ الْحَقِيقَةِ ځکه چي دا [د شواء] حقيقي معنیٰ ده وَإِنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ الطَّبِيخَ او که قسم واخلي چي پوخ سوی شی به نه خورم فَهُوَ عَلَى مَا يُطْبَخُ مِنَ اللَّحْمِ نو دا قسم [فقط] پر پخې کړل سوو غوښو حمل کيږي [محمول کيږي] وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ اعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ او د عرف په اعتبار کولو سره دا استحسان دی وَهَذَا لِأَنَّ التَّعْمِيمَ مُتَعَذِّرٌ او دا ځکه چي په عمومي اعتبار سره هر مطبوخ [پاخه سوي شي] ته قسم شاملېدل مشکل دي فَيُصْرَفُ إِلَى خَاصٍّ هُوَ مُتَعَارَفٌ وَهُوَ اللَّحْمُ الْمَطْبُوخُ بِالْمَاءِ نو ځکه به قسم د داسي خاص مطبوخ شي وطرف ته ګرځول کيږي کوم چي په عرف کي مشهوره وي او هغه [خاص شی] په اوبو سره پخې کړل سوي غوښي دي إِلَّا إِذَا نَوَى غَيْرَ ذَلِكَ خو دا چي کله حالف له دې څخه بغير [د بل شي] نيت کړی وي لِأَنَّ فِيهِ تَشْدِيدًا ځکه چي په دې کي [په خپله پر حالف] سختي سته وَإِنْ أَكَلَ مِنْ مَرَقِهِ او که هغه د دې [مطبوخه غوښو] ښوروا وخوري يَحْنَثُ نو [هم] حانث کيږي لِمَا فِيهِ مِنْ أَجْزَاءِ اللَّحْمِ ځکه چي په ښورا کي د غوښو اجزاء وي وَلِأَنَّهُ يُسَمَّى طَبِيخًا او ځکه چي ښوروا ته [هم] پخه کړی سوې ويل کيږي [يعني ښوروا هم پخول کيږي او خلک هغه مطبوخ شی شماري، نه غير مطبوخ] وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ الرُّءُوسَ او که يو څوک قسم واخلي چي سرونه به نه خوري فَيَمِينُهُ عَلَى مَا يُكْبَسُ فِي التَّنَانِيرِ وَيُبَاعُ فِي الْمِصْرِ نو د هغه قسم پر هغه سرونو حمل کيږي کوم چي په تنور کي [د الويلو لپاره] اچول کيږي او په ښار [بازار] کي خرڅيږي [چي هغه د غوايي، پسه او داسي نورو سرونه دي، او د چرګي، هيلې او داسي نورو سرونه په بازار کي الېيل سوي نه خرڅيږي] وَيُقَالُ: يُكْنَسُ او [کله کله د يُكْبَسُ پر ځای] يُكْنَسُ ويل کيږي [د دې معنیٰ هم داخلول او اچول دي] وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَلَوْ

حَلَفَ لَايَأْكُلُ رَأْسًا او په جامع صغير کي ذکر سوي دي: او که [يو څوک] قسم واخلي چي سر به نه خوري فَهُوَعَلَى رُءُوسِ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا قسم دغوايي او پسه [او داسي نورو] پر سرونو حمل کيږي وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: عَلَى الْغَنَمِ خَاصَّةً او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي خاص [فقط] د پسه [بزې او داسي نورو] پر سرو به حمل کيږي وَهَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ او دا [صرف] د وخت او زمانې اختلاف دی كَانَ الْعُرْفُ فِي زَمَنِهِ فِيهِمَا [ځکه چي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه کي په دواړو کي عرف وو وَفِي زَمَنِهِمَا فِي الْغَنَمِ خَاصَّةً او د صاحبينو په زمانه کي خصوصاً په پسه کي عرف وو وَفِي زَمَانِنَا يُفْتَى عَلَى حَسَبِ الْعَادَةِ او زموږ په زمانه کي به د عادت [او عرف] مطابق فتوىٰ ورکول کيږي كَمَا هُوَ الْمَذْكُورُ فِي الْمُخْتَصَرِ لکه په مختصرُ القدوري چي هم داسي ذکر سوي دي.

**اللغات:** ﴿يُكْبَسُ﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: ننه باسل، داخلول (دننه کول)، ټېټول، اچول، مطلب يې الويل (اليږل) او وريتول دي، ﴿يُكْنَسُ﴾ دا هم د ضرب مضارع مجهوله ده: داخلول، دننه کول (د دې دواړو بابونو نوري معناوي هم راځي، خو دلته يې همدغه معناوي مراد وي، او مطلب يې الويل دي (کوم ته چي پر اُور کړول هم وايي)، ﴿التَّنُّور﴾ تنور، تندور، د ډوډۍ پخولو ځای، صاحب د مصباح يې داسي تفسير کړی دی "التَّنُّورُ: الَّذِيْ يُخْبَزُ فِيهِ. وَافَقَتْ فِيهِ لُغَةُ الْعَرَبِ لُغَةَ الْعَجَمِ وَقَالَ أَبُو حَاتِمٍ لَيْسَ بِعَرَبِيٍّ صَحِيحٍ وَالْجَمْعُ التَّنَانِيرُ". ﴿الغَنَم﴾ دا لفظ پسه، سېرلي، وزګړي، مينده، ميږي او بزې (وزې) ټولو ته شامليږي، صاحب د معجم لغة الفقهاء يې داسي تعريف کړی دی "لَا وَاحِدَ لَهُ مِنْ لَفْظِهِ. اِسْمٌ يَشْمَلُ الشَّاءَ وَالْمَاعِزَ". الشَّاء عموما پسونو ته وايي او مَاعِز وزګړو (سېرليانو) ته وايي، او صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: الْقَطِيْعُ مِنَ الْمَعْزِ وَالضَّأْنِ (د وزو او پسونو رمه)، مَعْز وزو (بزو) ته وايي او ضَأْن پسونو او ميږو ته وايي، د قَطِيْع معنىٰ ده رمه.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک قسم واخلي چي کباب سوی او سور کړی شی به نه خوري، نو دا قسم د کباب سوو غوښو سره متعلق کيږي، او د کباب سوو غوښو په خوړلو سره حالف حانث کيږي، ليکن د کباب سوي او سور کړي بانجن، زردکه او رومي په خوړلو سره نه حانث کيږي، ځکه کله چي په عربي کي شواء (کباب سوی او سور کړی شی) ذکر سي، نو له هغه څخه کباب سوې

غوښې مراديږي، ها! كه حالف د سره كړي او كباب سوي هګۍ د نه خوړلو نيت كړى وي، نو دا نيت هم د هغه په قسم كي شامليږي او هغه كباب سوي هګۍ په خوړلو سره حانث كيږي، ځكه چي دا د حالف د كلام حقيقي منعى ده، او د شواء صفت په دې هګۍ كي موجود دى، لېكن څرنګه چي د شواء لفظ د كباب سوي هګۍ لپاره زيات متعارف نه دى، نو ځكه په قسم كي د هغه د شاملېدلو لپاره نيت ضروري دى، او له نيت څخه بغير دا معنىٰ د قسم سره نه متعلق كيږي.

وإن حلف إلخ: او كه يو څوک قسم واخلي چي پوخ سوى شى به نه خورم، نو د عرف په اعتبار سره به استحساناً له هغه څخه پخې سوې غوښې مراديږي، ځكه چي په پاخه سوي شيانو كي عموم دى، او د هر پوخ سوي شي سره د قسم متعلق كول او د هغه وطرف ته د قسم ګرځول ناممكن دي، نو ځكه به له هغه څخه يو داسي خاص پوخ كړى سوى شى مراديږي كوم چي متعارف وي (يعني په عرف كي مشهور وي او په عرف كي زيات كارول كيږي)، او د عربو په عرُف كي له دې څخه هغه غوښې مراديږي كوم چي په اُوبو سره پخې سوې (يعني د بوړ او ښوروا غوښې)، نو ځكه به فقط هغه مراديږي، ها! كه حالف په دې سره د بل شي نيت هم كړى وي نو د هغه تصديق به كيږي، ځكه چي د هغه په كلام كي د بل د شي د معنىٰ احتمال سته، او د بل شي په مرادولو سره حالف په خپله پر خپل ځان تشديد او سختي كوي، نو ځكه به د هغه د نيت كولو په صورت كي احتمالي معنىٰ هم مراديږي (او قاضي به د هغه تصديق كوي)، او كه حالف د غوښو ښوروا وخوري، نو هم حانث كيږي، ځكه چي په ښوروا كي د غوښو اجزاء موجود دي، او ښوروا هم پخول كيږي، او هغې ته هم طبيخ ويل كيږي.

ومن حلف إلخ: كه يو څوک قسم واخلي چي زه به سرونه (رُؤس) نه خورم، نو له دې څخه به د ذبح كړى سوي څاروبانو يعني د پُسه، سېرلي، غوايي او داسي نور سرونه او د هغو مازغه مراد وي، ځكه چي د همدې شيانو سرونه او پښې په بازار كي الېيل سوي او تيار سوي خرڅيږي (د چرګي، هيلۍ او داسي نورو سرونه نه خرڅول كيږي). په جامع صغير كي ذكر سوي دي كه يو څوک قسم واخلي چي سر به نه خورم، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه د غوايي، سېرلي او پُسه سر مراديږي او د صاحبينو په نېز له دې څخه فقط د پُسه او سېرلي سر مراديږي (دا خبره په ياد لرئ! چي د غَنَم لفظ اسم جنس دى، دغه ټوله څاروبانو ته شامليږي: پُسه، مېږه، سېرلى، بزه). د امام صاحب او صاحبينو دا اختلاف د دوى د خپلي زمانې پر عرف مبني دى، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه كي به له سر څخه د غوايي، پُسه او داسي نورو سرونه مرادېدل (لكه اوس چي زموږ په سيمو كي هم دغه عُرف دى)، او د صاحبينو په زمانه كي به د سر إطلاق فقط د پُسه او داسي نورو پر سرونو كېدى، نو ځكه صاحبينو قسم د رَأْسُ الغَنَم سره متعلق كړى دى، لهذا دا چي زموږ په زمانه كي به د عرف او عادت مطابق فتوىٰ وركول كيږي، او په كومه علاقه كي چي له سر (رَأْس) څخه د كومو څاروبانو سرونه مراديږي، هلته به د هغه مطابق فيصله كيږي.

## د مېوې نه خوړلو قسم

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ فَاكِهَةً [امام محمد رَحِمَهُ الله] په جامع صغير کې فرمايلې دي: که يو څوک قسم واخلي چې مېوه به نه خوري [يعني مطلق قسم واخلي او داسې ووايي: په الله قسم مېوه به نه خورم] فَأَكَلَ عِنَبًا أَوْ رُمَّانًا أَوْ رُطَبًا أَوْ قِثَّاءً أَوْ خِيَارًا بيا هغه انګور، يا انار، يا تازه خرما، يا چمبر خيال، يا بادرنګ وخوري لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَإِنْ أَكَلَ تُفَّاحًا أَوْ بِطِّيخًا أَوْ مِشْمِشًا او که سېب، يا خټکی [او هندوانه]، يا کشمش [وشکي، کښتي او داسې نور] وخوري حَنِثَ نو حانث کيږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ❁: حَنِثَ فِي الْعِنَبِ وَالرُّطَبِ وَالرُّمَّانِ أَيْضًا او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي: چې د انګورو، تازه خرما او دانارو په خوړلو سره هم حانث کيږي وَالْأَصْلُ: أَنَّ الْفَاكِهَةَ اسْمٌ لِمَا يُتَفَكَّهُ بِهِ قَبْلَ الطَّعَامِ وَبَعْدَهُ او د دې مسئلې اصل دا دی: چې مېوه داسې شي ته وايي چې په هغه سره تر ډوډۍ مخکې يا وروسته خوند [مزه] حاصليږي أَيْ يُتَنَعَّمُ بِهِ زِيَادَةً عَلَى الْمُعْتَادِ يعني [داسې شي ته وايي] چې په هغه سره تر عادت کړی سوې شي زيات عيش او عشرت [مېله او چرچه] کيږي [او خوندې پرې اخيستل کيږي] [يعني خلک چې عموماً کوم شيان خوري په هغه سره دومره خوند نه اخلي لکه په هغه شي سره، داسې شي ته فاکهه وايي] وَالرُّطَبُ وَالْيَابِسُ فِيهِ سَوَاءٌ بَعْدَ أَنْ يَكُونَ التَّفَكُّهُ بِهِ مُعْتَادًا او په دې [معتاده] مېوه کې لنده او وچه مېوه دواړه سره برابر دي په دې شرط چې په هغه سره عادتاً خوند [او مزه] اخيستل کيږي [د دې جملې مطلب همدا دی] حَتَّى لَا يَحْنَثَ بِيَابِسِ الْبِطِّيخِ تر دې چې په وچ خټکي [او هندوانه] سره حالف نه حانث کيږي [ځکه چې وچ خټکی او هندوانه فاکهه نه ده، يعني په هغوی سره په عامو ښارونو کې تفکه او تنعم نه حاصليږي، ها! که په هغوی سره په يو ځای کې تفکه او تنعم حاصلول معتاد وي، نو بيا حانث کيږي] وَهَذَا الْمَعْنَى مَوْجُودٌ فِي التُّفَّاحِ وَأَخَوَاتِهِ او دا معنیٰ د سېب او د سېب سره په مشابهو مېوو [مثلاً انګور، زردالو او داسې نورو] کې

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن عابدين: وأما عندهما فهي فاكهة نظراً للأصل، وعليه الفتوىٰ (رد المحتار ج:٣، ص:١٠٣)، وقال في الهندية: قال الفقيه ابو الليث: بقولهما نأخذ للفتوىٰ، لأنه أظهر (الهندية ج:٢، ص:٨٨). [القول الراجح ج:١، ص:٢١٣]

موجود ده [يعني په دوی کې د تفکّه سته، او که دا ميوې وچې سي، نو هم د تفکّه معنیٰ پکښې پاتيږي] فَيَحْنَثُ بِهَا نو د داسې مېوو په خوړلو سره به هغه حانث کيږي وَغَيْرُ مَوْجُودٍ فِي الْقِثَّاءِ وَالْخِيَارِ او دا [د تفکّه] معنیٰ په چمبر خيال او بادرنګو کې موجود نه ده لِأَنَّهُمَا مِنَ الْبُقُولِ بَيْعًا وَأَكْلًا ځکه چې دا شيان د خرڅلاو او خوراک په اعتبار له سبزيجاتو [سابه جاتو] څخه دي [يعني دا شيان خلک د سبزيجاتو په نامه خرڅوي او خوري] فَلَا يَحْنَثُ بِهِمَا نو ځکه به د دوی په خوړلو سره نه حانث کيږي وَأَمَّا الْعِنَبُ وَالرُّطَبُ وَالرُّمَّانُ فَهُمَا يَقُولَانِ إِنَّ مَعْنَى التَّفَكُّهِ مَوْجُودٌ فِيهِمَا لېکن د انارو، تازه خرماوو او د انګورو په باره کې صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د تفکّه معنیٰ په دوی کې هم موجود ده فَإِنَّهَا أَعَزُّ الْفَوَاكِهِ ځکه چې دا له ټولو څخه غوره [او خوندوري] مېوې دي وَالتَّنَعُّمُ بِهَا يَفُوقُ التَّنَعُّمَ بِغَيْرِهَا او په دې مېوو سره عيش [او خوند] حاصلول لوړ [او أعلیٰ] دي په نورو مېوو سره د عيش تر حاصلولو [يعني په دې مېوو سره تر نورو مېوو زيات خوند او مزه اخيستل کيږي] وَأَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ: إِنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ مِمَّا يُتَغَذَّى بِهَا وَيُتَدَاوَى بِهَا او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دې مېوو سره غذا حاصليږي او علاج او درملنه په کيږي [يعني دا ميوې فقط د تفکّه او غذا لپاره نه استعماليږي، بلکې د تداوي او علاج په توګه هم استعماليږي] فَأَوْجَبَ قُصُورًا فِي مَعْنَى التَّفَكُّهِ نو په دې وجه د دوی د تفکّه په معنیٰ کې نقصان [او کمي] ثابته سوه لِلِاسْتِعْمَالِ فِي حَاجَةِ الْبَقَاءِ ځکه چې د ژوندې پاتېدلو په ضرورت کې [هم دوی] استعماليږي [يعني ځکه چې دوی د تداواي او درمل په توګه هم مستعمل دي] وَلِهَذَا كَانَ الْيَابِسُ مِنْهَا مِنَ التَّوَابِلِ أَوْ مِنَ الْأَقْوَاتِ همدا وجه ده چې له دوی څخه کومې مېوې وچې سي نو هغه د مسالې [دارو] په توګه يا د خوراک [او غلې] په توګه استعماليږي [لهذا په دې مېوو کې په پوره توګه د تفکّه (خوند اخيستلو) او مېوه والې معنیٰ پاتې نه سوه. نو ځکه به د دوی په خوړلو سره حالف نه حانث کيږي].

**اللغات:** ﴿فَاكِهَة﴾ مېوه. ﴿قِثَّاء﴾ چمبر خيال (دا معنیٰ يې أردو شارحينو کړې ده). ﴿خِيَار﴾ بادرنګ. ﴿بِطِّيخ﴾ دا لفظ چې کله مطلق ذکر سي، نو اسمِ جنس وي او خټکې او هندوانه دواړه ځنې مراديږي. صاحب د معجمُ العربي يې داسې تعريف کړی دی: "بِطِّيخ: نَبَاتٌ يَمْتَدُّ حِبَالًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ. ثَمَرُهُ لَذِيذٌ مُرَطِّبٌ. لَهُ قِشْرَةٌ قَاسِيَةٌ خَضْرَاء. وَلُبٌّ أَحْمَر أَوْ أَصْفَر أَوْ أَخْضَر" (المعجم العربي الميسر

ص:۱۵۱). ﴿يَتَفَكَّهُ﴾ د تفعّل مضارع ده: خوند اخيستل، مزه اخيستل. ﴿يَتَنَعَّمُ﴾ د تفعّل مضارع ده: عيش او عشرت کول. مېله کول (چړچې وهل، مزې کول). خوند او مزه اخيستل. ﴿مُعتَاد﴾ د افتعال اسم مفعول دی. او اسم فاعل يې هم پر دغه وزن راځي. دلته ځني مراد مفعولي معنیٰ ده. يعني: عادت کړی سوی شی، د عادت مطابق، د معمول مطابق. او فاعلي معنیٰ يې ده: روږد، هغه کس چې د يو شي سره عادت وي. ﴿تَوَابِل﴾ مساله جات. دارو او درمل. ﴿أَقْوَات﴾ جمع د قُوتٌ ده: خوراک. د خوړلو شی.

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## د "کتغ" نه خوړلو قسم

قَالَ: وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْتَدِمُ [امام محمد په جامع صغير کي] فرمايي: او که يو څوک قسم واخلي چې کتغ [المده بل] به نه خوري ايعني که يو څوک ووايي: په الله قسم! زه به کتغ او سالن نه خورم] فَكُلُّ شَيْءٍ اُصْطُبِغَ بِهِ فَهُوَ إِدَامٌ نو هر هغه شی چي په هغه سره [ډوډۍ] ولړل سي [او تېره کړی سي] نو هغه إدام دی [يعني إدام په عربي کي هر هغه شي ته وايي چي خلک په هغه سره ګوله لړي، او ګوله په لندوي چي تېره کړی سي، چي هغه ته زموږ په اصطلاح کتغ، سالن. او لمده بل وايي، نو په دې شيانو سره دغه حالف حانث کيږي] وَالشِّوَاءُ لَيْسَ بِإِدَامٍ او کباب سوی شی إدام نه دی [ځکه چي هغه له ډوډۍ څخه بغير هم خوړل کيږي] وَالْمِلْحُ إِدَامٌ او مالګه إدام دی [ځکه چي په دې سره هم ډوډۍ لړل کيږي. يعني په مالګه کي هم خلک ډوډۍ لت پت کوي او ګوله ور سره لګوي بيا يې خوري. خصوصاً په پخوا زمانه کي] وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا قول د شيخينو رَحِمَهُمَا الله [ظاهر روايت] دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁: كُلُّ مَا يُؤْكَلُ مَعَ الْخُبْزِ غَالِبًا فَهُوَ إِدَامٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي هر هغه شی کوم چي په عامه توګه د ډوډۍ سره خوړل کيږي، هغه إدام دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او دا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت دی [او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی] لِأَنَّ الْإِدَامَ مِنَ الْمُوَادَمَةِ وَهِيَ الْمُوَافَقَةُ ځکه چي د إدام لفظ له مودامت څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ "موافق کېدل" دي ايعني "يو شي د بل

---

❁. القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٠٤)، وكذا في الهندية (ج:٢، ص:٨٨)، وكذا في البحر الرائق (ج:٤، ص:٣٢٥). [القول الراجح، ج:١، ص:٢١٢]

شي سره يو ځای کېدل" | وَكُلُّ مَا يُؤْكَلُ مَعَ الْخُبْزِ مُوَافِقٌ لَهُ كَاللَّحْمِ وَالْبِيضِ وَنَحْوِهِ او کوم شی چي د ډوډۍ سره خوړل کيږي هغه ډوډۍ سره موافق دی لکه غوښې، هګۍ او داسي نور الندہ چي د صاحبينو په نيز هر هغه شي ته إدام وايي کوم چي د ډوډۍ سره خوړل کيږي او په ډوډۍ کي راپور ته کيږي. نو په دې اعتبار سره غوښې او هګۍ هم إدام دی، ځکه چي دا شيان د ډوډۍ سره خوړل کيږي | وَلَهُمَا: أَنَّ الْإِدَامَ مَا يُؤْكَلُ تَبَعًا د شيخينو دليل دا دی: چي إدام په عرف کي داسي شي ته وايي کوم چي [د ډوډۍ سره] د تابع شي په توګه خوړل کيږي [يعني کوم چي د ډوډۍ تابع کړی سي او وخوړل سي] وَالتَّبَعِيَّةُ فِي الِاخْتِلَاطِ حَقِيقَةً او تابع کېدل په ګډېدلو [الت پت کولو] کي حقيقت دی [يعني تابع کېدل په حقيقت کي ګډولو او لړلو ته وايي چي ډوډۍ په يو شي ګډه او ولړل سي] لِيَكُونَ قَائِمًا بِهِ د دې لپاره چي إدام د هغه سره قائم [او موجود] سي [يعني د دې لپاره چي هغه شی (إدام) د ډوډۍ سره ولګيږي او ګوله په لنده کړی سي] وَفِي أَنْ لَا يُؤْكَلَ عَلَى الِانْفِرَادِ حُكْمًا او [بل تابع کېدل] حکماً دي او هغه دا دی چي [ډوډۍ] يوازي نه وخوړل سي [بلکي فقط د يو شي سره يو ځای کړی سي] وَتَمَامُ الْمُوَافَقَةِ فِي الِامْتِزَاجِ أَيْضًا او بشپړ موافقت [يو ځای کېدل] په پوره ګډون [او لړلو] کي دی [د شيخينو د دليل حاصل دا دی چي إدام هغه شی ته وايي کوم چي د بل شي تابع سي او وخوړل سي، او حقيقتاً تابع دې ته وايي چي د يو شي سره ګډ سي او په ولړل سي، او کوم شی چي يوازي نه خوړل کيږي، هغه هم حکماً تابع دی. او پوره موافقت او متابعت په هغه صورت کي ثابتيږي کله چي متبوع او تابع (ډوډۍ او إدام) بنه سره يو ځای کړي سي چي هغه ته د ډوډۍ لړل، لنده کول يا لت پت کول وايي. نو ځکه به له إدام څخه همدغه شی مراد وي] | وَالْخَلُّ وَغَيْرُهُ مِنَ الْمَائِعَاتِ لَا يُؤْكَلُ وَحْدَهُ او سرکه او نور باريک شيان يوازي نه خوړل کيږي بَلْ يُشْرَبُ بلکي چيښل کيږي [يعني سرکه إدام دی، ځکه چي هغه هم يوازي نه خوړل کيږي، بلکي د اوبو تابع کيږي. يعني د اوبو سره ګډول کيږي او چيښل کيږي] وَالْمِلْحُ لَا يُؤْكَلُ بِانْفِرَادِهِ عَادَةً او مالګه هم په عامه توګه يوازي نه خوړل کيږي [بلکي د ډوډۍ تابع کيږي يعني د ډوډۍ سره خوړل کيږي، نو ځکه مالګه هم إدام دی] وَلِأَنَّهُ يَذُوبُ او ځکه چي مالګه [په کتغ او داسي نورو شيانو کي] ويلي کيږي [او د هغه شيانو تابع کيږي] فَيَكُونُ تَبَعًا نو ځکه به هغه تابع وي [او إدام تابع شي ته وايي. نو ځکه به مالګه إدام وي] بِخِلَافِ اللَّحْمِ وَمَا يُضَاهِيهِ په خلاف د غوښو او د غوښو په څېر نور شيان لِأَنَّهُ يُؤْكَلُ وَحْدَهُ ځکه چي هغه يوازي [هم] خوړل کيږي إِلَّا أَنْ يَنْوِيَهُ خو دا چي حالف د قسم په

وخت کي د إدام [کتغ] د لفظ سره د غوښنو او داسي نورو نيت هم وکړي لِمَا فِيهِ مِنَ التَّشْدِيدِ ځکه چي په دې کي [پر خپل ځان] سختي کول دي [يعني کله چي حالف ووايي چي ما په إدام سره د غوښنو نيت هم کړی دی، نو د دې مطلب همدا دی چي هغه په خپله پر خپل ځان سختي کوي، نو ځکه به د حالف د نيت په وخت کي غوښي او د غوښنو په څير نور شيان هم د هغه په قسم کي شامليږي، او قاضي به په دې نيت کي د هغه تصديق کوي، ځکه چي هغه په خپله پر خپل ځان تشديد کوي] وَالْعِنَبُ وَالْبِطِّيخُ لَيْسَا بِإِدَامٍ انګور او خټکی [او هندوانه] إدام نه دی [ځکه چي د دې شيانو سره ډوډۍ نه خوړل کيږي] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح قول دی.

**اللغات:** ﴿لَا يَأْتَدِمُ﴾ د افتعال له باب څخه د نفي صيغه ده، اِئْتَدَمَ يَأْتَدِمُ اِئْتِدَامًا: کتغ خوړل، سالن خوړل. ﴿إِدَام﴾ کتغ، سالن، لمده بل (لند بل)، هغه شی چي ډوډۍ ور سره خوړل کيږي (هغه شی چي ګوله په ولړل سي يا پکښي لنده کړی سي چي په خوند او آساني سره تېره کړی سي)، ﴿شِوَاء﴾ کباب سوی شی، سور کړی شی، (په اُور، انګار يا غوړو کي کباب سوی شی)، ﴿بَيْض﴾ اسمِ جنس دی: هګۍ (هګيانې)، يوې هګي ته بَيْضَةٌ وايي. ﴿يَذُوبُ﴾ د نصر مضارع ده: ويلي کېدل (ويلېدل)، نری کېدل. ﴿يُضَاهِيهِ﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مشابه کېدل، ورته کېدل. ﴿بِطِّيخ﴾ (د باء په کسره سره): اسمِ جنس دی: خټکي او هندوانې دواړو ته وايي.

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د سهار چای (ناشته) يا د غرمې د ډوډۍ نه خوړلو قسم

وَإِذَا حَلَفَ لَا يَتَغَدَّى او که څوک [په عربي کي] قسم واخلي چي هغه به غداء نه خوري فَالْغَدَاءُ الْأَكْلُ مِنْ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلَى الظُّهْرِ نو "غداء" هغه خوراک ته ويل کيږي کوم چي د لمر راختو څخه وروسته د ماپښين تر وخته پوري وي [يعني د سهار چای (ناشتې) او د غرمې ډوډۍ دواړو ته "غداء" وايي. نو که د غه حالف د لمر راختو څخه تر زواله پوري يو شی وخوري، نو حانث کيږي] وَالْعَشَاءُ مِنْ صَلَاةِ الظُّهْرِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ او "عَشاء" د هغه وخت خوراک ته ويل کيږي کوم چي د ماپښين د لمانځه څخه وروسته د شپې تر نيمايي پوري خوړل کيږي لِأَنَّ مَا بَعْدَ الزَّوَالِ يُسَمَّى عِشَاءً ځکه چي تر زوال وروسته وخت ته [په عربي کي] عِشَاء وايي وَلِهَذَا تُسَمَّى الظُّهْرُ إِحْدَى صَلَاتَيِ الْعِشَاءِ فِي الْحَدِيثِ او له همدې وجهي په حديث کي د ماپښين لمانځه ته د عشاء له دوو لمونځونو څخه يو لمونځ ويل سوی دی [يعني همدا وجه ده چي په حديث کي ذکر سوي دي: چي د ماپښين لمونځ د عشاء له دوو لمونځونو

څخه يو لمونځ دی، دا حديث د بخاري او مسلم په کتاب الصلاة، باب السهو کي ذکر سوی دی. نو که يو څوک قسم واخلي چي زه به "عَشَاء" نه خورم، نو همدغه وخت به څني مراد وي ا وَالسُّحُورُ مِنْ نِصْفِ اللَّيْلِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ او پېشلمی ايعني د پېشلمي د خوراک وخت اله نيمي شپې څخه تر لمر راختو پوري دی لِأَنَّهُ مَأْخُوذٌ مِنَ السَّحَرِ ځکه چي دا لفظ له "سَحَر" څخه را اخيستل سوی دی اچي هغه په عربي کي د شپې آخري برخي ته وايي، يعني تر صبح صادق لږ څه مخکي وخت ا وَيُطْلَقُ عَلَى مَا يَقْرُبُ مِنْهُ او کوم اخوراک ا چي د سَحَر سره نژدې وي ايعني کوم خوراک چي د شپې دآخري حصې سره نژدې خوړل کيږي ا پر هغه د سُحور إطلاق کيږي امطلب دا چي کوم خوراک چي د شپې دآخري حصې څخه لږ مخکي خوړل کيږي، هغه ته هم پېشلمی وايي، نو خلاصه يې دا سوه چي د شپې له نيمايي څخه د پېشلمي وخت شروع کيږي، لهذا که يو څوک قسم واخلي چي زه به پېشلمی نه کوم، نو هغه وخت به حانث کيږي کله چي د شپې له نيمايي څخه تر صبح صادق پوري خوراک وکړي ا ثُمَّ الْغَدَاءُ وَالْعَشَاءُ مَا يُقْصَدُ بِهِ الشِّبَعُ عَادَةً بيا غداء او عَشاء هغه خوراک ته وايي چي په هغه سره عادتاً موړ تيا اد نس ډکوالی ا مقصود وي انو که يو څوک د سهار په وخت کي يا د ماخوستن په وخت کي فقط دوې ګولې وخوري، نو دې ته غداء او عَشاء نه وايي. بلکي په ماړه نس خوراک ته غَداء او عَشاء وايي ا وَتُعْتَبَرُ عَادَةُ أَهْلِ كُلِّ بَلْدَةٍ فِي حَقِّهِمْ او د هر ښار د خلکو په حق کي به د هغو د عادت [او عرف] اعتبار کيږي انو که د يو ښار خلک د سهار په وخت کي وريجي خوري، نو هلته د وريجو په خوړلو سره "غداء" متحقق کيږي، او که يو سړی د سهار په وخت کي د خپل ښار د عرف مخالف شی وخوري، نو هغه نه حانث کيږي، ځکه چي "غداء" ثابته نه سوه ا وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ الشِّبَعِ او [د غداء او عَشاء لپاره] شرط دا دی چي هغه به تر نيمي موړتيا زيات وي ايعني د غداء يا عَشاء قسم اخيستونکی سړی (حالف) هغه وخت حانث کيږي چي تر نيم زيات موړ سي، فقط په يوه يا دوو ګولو سره نه حانث کيږي ا وَمَنْ قَالَ: إِنْ لَبِسْتُ أَوْ أَكَلْتُ أَوْ شَرِبْتُ فَعَبْدِي حُرٌّ او څوک چي ووايي: که ما واغوستل يا مي خوراک وکړی يا مي څښاک وکړی نو زما غلام آزاد دی ايعني د "ثَوب" "د خوراک شی" او "د څښاک شی" په صراحت سره ذکر نه کړي، نو دا قسم به عام وي او هر شي ته به شامل وي ا وَقَالَ: عَنَيْتُ شَيْئًا دُونَ شَيْءٍ انو که وروسته هغه ا ووايي: زما مراد هغه شی وو دغه شی نه وو ايعني ووايي: زما په دې سره فلان (مخصوص) شي مراد وو، او فلان شی مي مراد نه وو ا لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ وَغَيْرِهِ نو قضاءً او ديانتاً ادواړه ډوله ا به د هغه تصديق نه کيږي اخلاصه دا چي مثلاً يو څوک داسي ووايي: که چيري ما واغوستل نو زما غلام آزاد دی يعني ثَوب او جامه ذکر نه کړي، او بيا وروسته ووايي چي ما په دې سره فلانکۍ جامه مراد وه، نو نه به قاضي د هغه تصديق

کوي، نه به دیانتاً د هغه تصدیق کیږي [لِأَنَّ النِّيَّةَ إِنَّمَا تَصِحُّ فِي الْمَلْفُوظِ ځکه چې نیت په هغه شي کې صحیح کیږي کوم چې په لفظ کې [یعني په خوله] ذکر سوی وي [یعني دا سړي هغه وخت نیت کولای سو. کله چې یې د ثَوْب او جامې لفظ په صراحت سره ذکر کړي وای] وَالثَّوْبُ وَمَا يُضَاهِيهِ غَيْرُ مَذْكُورٍ تَنْصِيصًا حالانکي [دلته] جامې او داسي نور [یعني د خوراک او څښاک شی او داسي نور] په صراحت سره نه دي ذکر سوي وَالْمُقْتَضَى لَا عُمُومَ لَهُ او د مقتضیٰ لپاره عموم نه وي [دا دیو سوال جواب دی. سول دا دی چې دلته که څه هم دا شیان (جامې، د خوراک او څښاک شی) په صراحت سره نه دي ذکر سوي، خو د لَبِسْتُ او نورو فعلونو څخه په خپله (اقتضاءً) دا شیان فهمول کیږي یعني لَبِسْتُ او داسي نور (أَكَلْتُ او شَرِبْتُ) په خپله د دې شیانو تقاضا کوي، لهذا په دې شیانو کي د حالف نیت معتبر کېدل پکار دي، نو فرمایي چې که څه هم اقتضاءً دا شیان فهمول کیږي، خو په اقتضاء او تقاضا کي عموم نسته. او د نیت صحیح کېدلو لپاره عموم ضروري دی. نو ځکه به د مخصوص شي نیت کول لغو وي] فَلَغَتْ نِيَّةُ التَّخْصِيصِ فِيهِ نو ځکه به په دې کي د مخصوص شي نیت کول لغو وي وَإِنْ قَالَ: إِنْ لَبِسْتُ ثَوْبًا أَوْ أَكَلْتُ طَعَامًا أَوْ شَرِبْتُ شَرَابًا او که هغه ووايي: که چیري چې ما جامې واغوستې یا مي ډوډۍ وخوړله یا مي د څښاک یو شی وڅېښی [نو زما غلام آزاد دی. او بیا یې د تخصیص نیت او دعویٰ وکړه] لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ خَاصَّةً نو فقط قضاءً به د هغه تصدق نه کیږي [یعني صرف قاضي به د هغه تصدیق نه کوي، لېکن دیانتاً به د هغه تصدیق کیږي] لِأَنَّهُ نَكِرَةٌ فِي مَحَلِّ الشَّرْطِ ځکه [دلته] چې کوم ألفاظ دغه سړي بیان کړي دي [یعني ثَوْب، طَعَام، او شَرَاب] هغه د شرط په محل کي نکره دي [دا دلیل دی، خلاصه یې دا ده چې دلته تر لَبِسْتُ او نورو فعلونو مخکي إِن شرطیه دی. او تر لبستُ وروسته ثوباً (او طعاماً او شراباً) نکره دی، او نکره چې د شرط سره ذکر سي نو د عموم معنیٰ ورکوي. لهذا کله چې په دې شیانو او الفاظو کي عموم راغلی، نو ځکه به د مخصوص شي نیت کول صحیح وي] فَتَعُمُّ نو ځکه به دا الفاظ عام وي فَعَمِلَتْ نِيَّةُ التَّخْصِيصِ فِيهِ او [اوس] به په دوی کي د تخصیص نیت عمل [او غېز] کوي إِلَّا أَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ خو اخرنکه چې [د دې سړي نیت د ظاهر خلاف دی] فَلَا يُدَيَّنُ فِي الْقَضَاءِ نو ځکه به قضاءً د دد تصدیق نه کیږي [یعني قاضي به د تخصیص په نیت کي د هغه تصدیق نه کوي].

**اللغات:** ﴿لَا يَتَغَدَّى﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: د سهار په وخت کي خوراک کول (په دې معنیٰ کي د سهار ناشته او د غرمې ډوډۍ دواړه داخليږي). ﴿سُحُوْر﴾ پيشلمی (د شپې په آخري حصو کي خوراک کول). ﴿السَّحَر﴾ د شپې آخري حصه کوم چي تر صبح صادق څه مخکي وي. صاحب د معجم الوسيط وايي: "السَّحَر: آخِرُ اللَّيْلِ قُبَيْلَ الصُّبْحِ". ﴿شَبْع﴾ د فتح مصدر دی: مړېدل (موړتيا). نس ډکېدل. ﴿عَنَيْتُ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد متکلم صيغه ده: مرادول. مطلب اخيستل. ﴿تَخْصِيْص﴾ د تفعيل مصدر دی: يو شی خاص کول (خاصول). يو شی متعينول (معلومول).

**تشريح:** مسئله په عبارت کي تشريح سوه.

## د "دجلې" له درياب څخه د اوبو نه چيښلو قسم

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَشْرَبُ مِنْ دِجْلَةَ او که يو څوک قسم واخلي چي له "دريائي دجله" څخه به اوبه نه چيښي فَشَرِبَ مِنْهَا بِإِنَاءٍ بيا هغه په لوښي سره اوبه څني وچيښي لَمْ يَحْنَثْ حَتَّى يَكْرَعَ مِنْهَا كَرْعًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه حانث کيږي تر دې چي د خولې په ذريعه اوبه څني وچيښي وَقَالَا[*]: إِذَا شَرِبَ مِنْهَا بِإِنَاءٍ يَحْنَثُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که په لوښي سره اوبه څني وچيښي نو [هم] حانث کيږي لِأَنَّهُ الْمُتَعَارَفُ الْمَفْهُومُ ځکه چي همدا په عرف کي مشهور [او] مفهوم دي [يعني له دې څخه په عرف کي "د لوښي په ذريعه د اوبو چيښل" فهمول کيږي] وَلَهُ: أَنَّ كَلِمَةَ مِنْ لِلتَّبْعِيضِ د امام صاحب دليل دا دی چي د مِنْ کلمه د تبعيض لپاره ده وَحَقِيقَتُهُ فِي الْكَرْعِ او د دې حقيقي معنیٰ د خولې په ذريعه چيښل دي وَهِيَ مُسْتَعْمَلَةٌ او دا حقيقي معنیٰ مستعمله [هم] ده وَلِهَذَا يَحْنَثُ بِالْكَرْعِ إِجْمَاعًا همدا وجه ده چي د خولې په ذريعه په چيښلو سره حالف بالاتفاق حانث کيږي فَمَنَعَتِ الْمَصِيرَ إِلَى الْمَجَازِ نو د مجاز وطرف ته رجوع کول منع کړی سو ايمني

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٠٨). وقال المفتي غلام قادر النعماني: وحاصله أن الحلف قد يكون على النهر وقد يكون على مائها، فلو كان على النهر يحنث بالكرع، ولا يحنث بشرب الماء بالإناء، ولو كان على مائها فيحنث بشرب ماء النهر بأيّ طريق كان وفي أيّ موضع. [القول الراجح ج:١، ص:٤١٦]

کله چې دغه حقيقي معنیٰ مستعمله هم ده، نو ځکه به د مجاز وطرف ته رجوع نه کيږي! وَإِنْ كَانَ مُتَعَارَفًا که څه هم [دلته] مجاز متعارف دی وَإِنْ حَلَفَ لَا يَشْرَبُ مِنْ مَاءِ دِجْلَةَ او که [داسي] قسم واخلي چې "د دريائي دجله" له اوبو څخه به څښاک نه کوي فَشَرِبَ مِنْهَا بِإِنَاءٍ او [بيا] په لوښي سره اوبه څني وڅيښي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّهُ بَعْدَ الِاغْتِرَافِ بَقِيَ مَنْسُوبًا إِلَيْهِ ځکه چې په لپه کي د اُوبو تر اخيستلو وروسته [هم] دغه اُوبه "دريائي دجلې" ته منسوب پاته سوې [يعني په لوښي کي تر اخيستلو وروسته هم دا د "دجلې" اوبه دي] وَهُوَ الشَّرْطُ او همدا شرط وو فَصَارَ كَمَا إِذَا شَرِبَ مِنْ مَاءِ نَهْرٍ يَأْخُذُ مِنْ دِجْلَةَ نو داسي سو لکه حالف چې ديو داسي والې [ويالې] څخه اوبه چيښلي وي کوم چې له "دجلې" څخه راوتلې وي.

**اللغات:** ﴿إِنَاءٌ﴾ لوښی، ﴿يَكْرَعُ﴾ د فتح مضارع ده: په خوله سره اوبه چيښل، د خولې په ذريعه اوبه چيښل (يعني اوبو ته ټيټېدل او په خوله سره اوبه چيښل)، صاحب د مصباح يې داسي تعريف کړی دی: "كَرَعَ: شَرِبَ بِفِيْهِ مِنْ مَوْضِعِهِ فَإِنْ شَرِبَ بِكَفَّيْهِ أَوْ بِشَيْءٍ آخَرَ فَلَيْسَ بِكَرْعٍ". ﴿تَبْعِيْض﴾ د تفعيل مصدر دی: يو شی بعض بعض ګرځول، بعض مرادول (يعني د يو شي يوه حصه مرادول).

﴿مَصِيْر﴾ د ضرب له باب څخه مصدرِ ميمي دي: ګرځېدل، ﴿إِغْتِرَاف﴾ د افتعال مصدر دی: په لپه اوبه را اخيستل، په لاس اوبه را اخيستل (مراد څني په لپه سره د لوښي ډکول دي).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک قسم واخلي چې له "دريائي دجله" څخه به اوبه نه چيښم، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له داسي قسم څخه د خولې په ذريعه د اوبو چيښل مراديږي، او که حالف په لوښي کي اوبه را واخلي نو نه حانث کيږي، ها! کله چې هغه د دغه درياب سره خوله ولګوي او اوبه څني وڅيښي، نو حانث کيږي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې څرنګه د خولې په ذريعه د اوبو په چيښلو سره حانث کيږي، همداسي د لوښي په ذريعه د اوبو په را اخيستلو او چيښلو سره هم حانث کيږي. ځکه چې د خلکو په عرف کي له اوبو چيښلو څخه "د لوښي په ذريعه اوبه چيښل" مرادول کيږي، او قسم (يمين) پر عرف مبني دی، نو ځکه به په دې سره هم حالف حانث کيږي.

**وله أن كلمة مِنْ إلخ:** دا امام صاحب دليل دا دی چې دلته حالف "مِنْ دَجْلَة" ويلي دي، او "مِنْ" د تبعيض (بعض والي) لپاره استعماليږي نو د دې حقيقت همدا دی چې حالف له دجلې څخه د خولې په ذريعه اوبه وڅيښي، او د صحراء په خلکو کي د دې عادت هم سته چې د حوض او داسي

نورو سره خوله لګوي او اوبه څيښي (يعني د خولې په ذريعه اوبه څيښي). همدا وجه ده چې د خولې په ذريعه د اوبو په څيښلو سره د ټولو په نيز حالف حانث کيږي. نو معلومه سوه چې د خولې په ذريعه څيښل د شُرب (څيښلو) حقيقي معنیٰ ده. او دا حقيقي معنیٰ په خلګو کې مستعمله هم ده. نو دا حقيقت مستعمله سو، نو ځکه به پر همدغه حقيقت عمل کيږي او د مجاز وطرف ته به رجوع کول صحيح نه وي. او د لوښي په ذريعه به د اوبو په څيښلو سره حالف نه حانث کيږي.

د دې په خلاف که حالف دا قسم واخلي چې زه به د "دريائي دجله" اوبه نه څيښم. او بيا هغه د لوښيٰ په ذريعه د دې درياب اوبه را واخلي او وېې څيښي، نو د ټولو په نيز حانث کيږي. ځکه چې دغه اُوبه په هر حالت کې د "دجلې" وطرف منسوب دي. هغه که په لوښي کې را وخيستل سي. يا په لپه کې را وخيستل سي. او د حانث کېدلو شرط همدا وو چې هغه به د "دجلې" اوبه نه څيښي. لهذا کله چې شرط موجود سو، نو مشروط (حانث کېدل) هم به موجوديږي او حالف به حانث کيږي. د دې مثال داسي دی لکه دغه حالف چې له هغه والې (نهر) څخه اوبه وڅيښي کوم چې له "دجلې" څخه راغلې وي. نو په دې صورت کې هم هغه حانث کيږي. ځکه چې په هغه واله کې هم د "دجلې" اوبه را رواني دي.

## د قسم يو ځانګړی صورت

وَمَنْ قَالَ: إِنْ لَمْ أَشْرَبِ الْمَاءَ الَّذِي فِي هٰذَا الْكُوزِ الْيَوْمَ او که يو څوک ووايي: که زه نن ورځ هغه اوبه نه وڅيښم کوم چې په دې کوزه کې دي فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ نو زما ښځه طلاقه ده وَلَيْسَ فِي الْكُوزِ مَاءٌ او په کوزه کې اوبه نه وي لَمْ يَحْنَثْ نو حالف نه حانث کيږي فَإِنْ كَانَ فِيهِ مَاءٌ فَأُهْرِيقَ قَبْلَ اللَّيْلِ [ليکن] که په هغه کوزه کې اوبه وي او د شپې [تر راتلو] مخکي توی کړی سي [چپه کړی سي] لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ◆: يَحْنَثُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې په دې ټولو صورتونو کې حانث کيږي يَعْنِي إِذَا مَضَى الْيَوْمُ يعني کله چې ورځ تېره سي وَعَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا كَانَ الْيَمِينُ بِاللهِ

---

◆ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في الدر المختار (ج:۳، ص:۱۰۹)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۹۵)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص:۳۹۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۱۷]

تَعَالٰى او پر پر همدغه اختلاف دي کله چي قسم په الله سره [اخيستل سوى] وي وَأَصْلُه: أَنَّ مِنْ شَرْطِ اِنْعِقَادِ الْيَمِينِ وَبَقَائِهِ التَّصَوُّرُ عِنْدَهُمَا او ددې اصل دا دی: چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قسم د منعقد کېدلو او د هغه د باقي پاتېدلو شرط دا دی چي د قسم پوره کولو تصوّر به وي ايعني د هغه پوره کول به متصوّر وي، يا دې جملې معنیٰ دا ده: چي د قسم د منعقد کېدلو او د هغه د باقي پاتېدلو لپاره د قسم د کېدلو تصوّر هم ضروري دی (يعني د قسم د باقي پاتېدلو اسباب به هم موجود وي او د هغه د پوره کېدلو تصوّر به کېدای سي) دا دويمه معنیٰ ده، خو موږ د اولي معنیٰ مطابق تشريح کوو] خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الْيَمِينَ إِنَّمَا تُعْقَدُ لِلْبِرِّ ځکه چي قسم د پوره کولو لپاره منعقد کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ تَصَوُّرِ الْبِرِّ نو د پوره کولو تصوّر ضروري دی لِيُمْكِنَ إِيجَابُهُ ددې لپاره چي د قسم ثابتول ممکن وي وَلَهُ أَنَّهُ أَمْكَنَ الْقَوْلُ بِانْعِقَادِهِ مُوجِبًا لِلْبِرِّ عَلَى وَجْهٍ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْخَلَفِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د قسم منعقد کېدلو خبره کول ممکنه ده په دې توګه چي هغه پر داسي طريقه د بِرّ ايعني د قسم پوره کولو اموجب وي چي د بِرّ په خليفه کي د هغه أثر ښکاره سي وَهُوَ الْكَفَّارَةُ او د بِرّ خليفه کفاره ده قُلْنَا: لَا بُدَّ مِنْ تَصَوُّرِ الْأَصْلِ لِيَنْعَقِدَ فِي حَقِّ الْخَلَفِ موږ وايو چي د أصل [يعني د بِرّ] تصوّر ضروري دي، د دې لپاره چي د خليفه په حق کي هغه منعقد کړی سي وَلِهَذَا لَا يَنْعَقِدُ الْغَمُوسُ مُوجِبًا لِلْكَفَّارَةِ او له همدې وجهي يمين غموس د کفارې د موجب [او سبب] په توګه نه منعقد کيږي [يعني همدا وجه ده چي د دروغو قسم کفاره نه واجبوي، ځکه چي د دروغ کېدلو په وجه په هغه کي د قسم پوره کولو هيڅ تصوّر نه سي کېدای] وَلَوْ كَانَتِ الْيَمِينُ مُطْلَقَةً فَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَا يَحْنَثُ عِنْدَهُمَا وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَحْنَثُ فِي الْحَالِ او که چيري قسم مطلق وي نو په اول صورت کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حالف نه حانث کيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز في الحاله [اسمدستي] حانث کيږي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَحْنَثُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا او په دويم صورت کي د ټولو په نېز حانث کيږي فَأَبُو يُوسُفَ فَرَّقَ بَيْنَ الْمُطْلَقِ وَالْمُوَقَّتِ نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په مطلق [خالي عن اليوم] صورت او مؤقت [مقيد باليوم] صورت کي فرق کړی دی وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ التَّوْقِيتَ لِلتَّوْسِعَةِ او وجه د فرق دا ده چي وخت مقرر کول اَيَوْم ذکر کول] د پراخولو لپاره وي ايعني دلته يَوْم ذکر کول تر

مابنامه پوري قسم وسيع كول دي ( فَلَا يَجِبُ الْفِعْلُ إِلَّا فِي آخِرِ الْوَقْتِ نو ځكه به فعل د وخت په آخري

اجزاء ( كي واجبيږي فَلَا يَحْنَثُ قَبْلَهُ او تر دې مخكي به حالف نه حانث كيږي وَفِي الْمُطْلَقِ يَجِبُ الْبِرُّ

كَمَا فَرَغَ او په مطلق (خالي عن اليوم) صورت كي چي ځرنګه حالف له قسم څخه فارغ سي ( په

هغه ګړي پر هغه ) د قسم پوره كول واجبيږي وَقَدْ عَجَزَ حالانكي حالف (اله دې څخه) عاجز دى

(ځكه چي محلوف عليه نسته، يعني په كوزه كي اوبه نسته) فَيَحْنَثُ فِي الْحَالِ نو ځكه به في الحاله

(سمدستي) حانث كيږي وَهُمَا فَرَّقَا بَيْنَهُمَا او طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ (هم) په مطلق او مؤقت صورت

كي فرق كړى دى وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ فِي الْمُطْلَقِ يَجِبُ الْبِرُّ كَمَا فَرَغَ او وجه دفرق يې هم بيان كړي ( ده:

چي په مطلق صورت كي چي ځرنګه حالف له قسم څخه فارغ سي ( په هغه ګړي پر هغه ) قسم

پوره كول واجب دي فَإِذَا فَاتَ الْبِرُّ بِفَوَاتِ مَا عُقِدَ عَلَيْهِ الْيَمِينُ (ليكن) كله چي د محلوف عليه د

فوتېدلو په وجه د قسم پوره كول فوت سو يَحْنَثُ فِي يَمِينِهِ نو (ځكه) به حالف حانث كيږي كَمَا إِذَا

مَاتَ الْحَالِفُ وَالْمَاءُ بَاقٍ لكه كله چي حالف مړ سي او اوبه (په كوزه كي) پاته وي أَمَّا فِي الْمُؤَقَّتِ

فَيَجِبُ الْبِرُّ فِي الْجُزْءِ الْأَخِيرِ مِنَ الْوَقْتِ او په مؤقت كي صورت كي د وخت په آخري جزء كي د قسم

پوره كول واجبيږي وَعِنْدَ ذٰلِكَ لَمْ تَبْقَ مَحَلِّيَّةُ الْبِرِّ لِعَدَمِ التَّصَوُّرِ (حال دا چي) د آخري جزء په

وخت كي د قسم پوره كولو محليّت نه پاتيږي، د تصوّر د معدوم كېدلو (ختمېدلو) په وجه فَلَا

يَجِبُ الْبِرُّ فِيهِ نو په دې وجه به د هغه پوره كول واجب نه وي فَتَبْطُلُ الْيَمِينُ او قسم به باطليږي كَمَا

إِذَا عَقَدَهُ ابْتِدَاءً فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ لكه په هغه صورت كي (چي قسم باطليږي) كله چي هغه په دې

حالت كي ابتداءً قسم منعقد كړى وي ايعني لكه په هغه صورت كي چي هم قسم باطليږي كله چي له شروع

څخه په كوزه كي اوبه نه وي او حالف قسم واخلي ).

**اللغات:** ﴿الْكُوْز﴾ كوزه (هغه لاستي لرونكى يا بې لاستي لوښى چي له خاورياسو څخه جوړ وي

او د چينبلو اوبه پكښي ساتل كيږي). ﴿أُرِيقَ﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: بيول (بهول). ﴿مَضَى﴾ د

ضرب ماضي ده. د دې باب دوې معناوي دي: تېرېدل (وخت تېرېدل). ﴿الْبِرّ﴾ د سمع او ضرب

مصدر دى: قسم پوره كېدل، قسم پوره كول، له قسم څخه بري كېدل. ﴿إِيْجَاب﴾ د افعال مصدر دى:

ثابتول، واجبول. ﴿تَوْقِيْت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت مقرر کول (وخت ټاکل). ﴿تَوْسِعَة﴾ د تفعيل مصدر دی: پراخول (پراخي کول). ګنجائش ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک داسې قسم واخلي چې: که ما نن په دغه کوزه کې موجوده اوبه نه وڅیښلې، نو زما ښځه پر ما طلاق ده (يعني طلاق د کوزې د اوبو پر نه څیښلو معلق کړي)، حالانکي په هغه (مشارٌإليه) کوزه کې هيڅ اوبه نه وي، نو حالف نه حانث کيږي. هغه که حالف ته دا معلومه وي او که نه وي چې په دې کوزه کې اوبه نسته. لېکن که په کوزه کې اوبه وي، خو د شپې تر راتللو مخکې هغه يو بل څوک چپه کړي (توی کړي)، نو هم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حالف نه حانث کيږي. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دې ټولو صورتونو کې حالف حانث کيږي. هغه که په دې کوزه کې اوبه يا نه وي. په هر صورت کې د ورځې تر تېرېدلو وروسته حالف حانث کيږي. او که هغه په خپل کلام کې طلاق ذکر کړی نه وي. بلکې د الله قسم يې ذکر کړی وي مثلاً هغه ويلي وي "والله لا أشرب الماء الذي في هٰذا الكوز اليوم"، نو دا مسئله هم د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په مينځ کې مختلف فيه ده.

صاحب د هدايې فرمايي چې د دې اختلاف اصل او بنياد دا دی چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قسم د منعقد کېدلو او د هغه د باقي پاتېدلو لپاره دا شرط دی چې حالف به د قسم پوره کولو تصور کړی وي. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا تصوّر شرط نه دی. د طرفينو دليل دا دی چې قسم فقط د پوره کولو لپاره اخيستل کيږي او منعقد کيږي.

د طرفينو دليل دا دی چې کله هم حالف قسم واخلي، نو ښکاره خبره ده چې هغه منعقد سو. اوس که هغه د پوره کولو (بَرّ) تصوّر کړی نه وي، بيا به هم د خليفه يعني د کفارې په حق کې دا قسم مُوجِب للبَرّ وي. او د دغه قسم سره به د کفارې وجوب متعلق وي (که څه هم حالف د دې قسم د پوره کولو تصوّر کړی نه وي)، ځکه چې د قسم پوره کولو د تصوّر هيڅ ضرورت نسته. لېکن صاحب د هدايې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله له طرفه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته دا جواب ورکړی دی چې د قسم پوره کول أصل دي. او د قسم نه پوره کولو په صورت کې د کفارې وجوب د دې أصل خليفه دی. او ښکاره خبره ده چې کله د أصل تصوّر سوی نه وي. نو د هغه د خليفه تصوّر هم کېدلای نه سي. نو ځکه مورد د أصل يعني د قسم د پوره کولو تصوّر ضروري ګرځولی دی. او څرنګه چې په يمين غموس کې د قسم پوره کولو نوم او نښان هم نسته. نو له همدې وجهې هغه (يمين غموس) د کفارې لپاره مُوجب (واجبونکي) نه ګرځي. او د مُوجب للكفارة په توګه نه منعقد کيږي.

**ولو كانت اليمين مطلق إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که قسم مطلق وي او په هغه کي د "اليَوْم" (نن ورځي) قيد نه وي يعني حالف داسي ويلي وي "إن لم أشرب الماء الّذي في هٰذا الكُوز"، او په کوزه کي اوبه نه وي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حالف نه حانث کيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز فوراً حانث کيږي، د "الوَجْهُ الأوّل" څخه مراد همدغه صورت دی، او په دويم صورت کي يعني کله چي په کوزه کي اوبه وي او د شپې له راتګ څخه مخکي چپه سوي وي، نو د ټولو په نېز حالف حانث کيږي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې دواړو کي يعني په مطلق او مقيد صورتونو کي داسي فرق کړی دی چي په اول صورت کي يعني په مقيد بـاليوم والا صورت کي چي کوم وخت متعين سوی دی، هغه د وسعت او ګنجائش لپاره دی، او تر يوې ورځي پوري حالف ته د قسم پوره کولو اختيار سته، او د ورځي په آخري جزء کي پر هغه قسم پوره کول اجب دي، او که تر دغه وخته پوري حالف قسم پوره نه کړي او ورځ تېره سي، نو هغه حانث کيږي، او په دويم صورت کي يعني په مطلق عن اليوم والا صورت کي له قسم اخيستلو څخه تر فراغت وروسته سمدستي د هغه پوره کول اجب دي، حالانکي په کوزه کي د اوبو د نشتوالي په وجه حالف له قسم پوره کولو څخه عاجز دی، او څرنګه چي په دې مطلق صورت کي توقيت نسته (چي د ورځي تر آخري جزء پوري حالف ته اختيار ثابت سي)، نو ځکه به حالف فوراً (سمدستي) حانث کيږي.

**وهما فرقا إلخ:** فرمايي چي طرفيينو هم په مطلق او مقيد کي فرق کړی دی، او وجه د فرق يې دا بيان کړې ده چي په مطلق قسم کي له قسم اخيستلو څخه وروسته سمدستي پر حالف قسم پوره کول واجب دي، لېکن څرنګه چي دلته (په مطلق عن اليوم قسم کي) په کوزه کي د اوبو د نشتوالي په وجه د قسم پوره کول فوت سو، نو ځکه به حالف حانث کيږي، لکه کله چي حالف مړ سي او په کوزه کي اوبه وي، نو هغه به هم حانث شمارل کيږي، په همدې وجه په دغه صورت کي د "يَحْنَثُ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا" حکم سوی دی.

د دې په خلاف که چيري قسم مؤقت او مقيد باليوم وي، نو په دې صورت کي حالف ته د وخت تر آخري جزء پوري د قسم پوره کولو اختيار سته، او د وخت په آخري جزء کي د همدې قسم پوره کول واجب دي، لېکن پرېشاني او ستونزه دا ده چي د وخت په آخري جزء کي د قسم پوره کولو تصوّر معدوم کيږي، او د قسم پوره کولو محليّت (محل والي) باقي نه پاتيږي، او کله چي محليّت باقي نه پاتيږي، نو د قسم پوره کول به هم واجب نه وي، او قسم به باطليږي، نو په همدې وجه موږ په دغه صورت کي د "لَمْ يَحْنَث" حکم کړی دی، لکه کله چي په کوزه کي د اوبو د نشتوالي په صورت کي ابتداءً د کوزې پر اُوبو قسم اخيستل سوی او منعقد سوی وي، نو هغه قسم هم باطليږي، ځکه څرنګه چي د قسم د بقاء لپاره د محل بقاء او وجود ضروري دی، همدغسي په ابتداء او شروع کي هم د قسم د منعقد کېدلو لپاره د محل بقاء شرط او ضروري ده.

## آسمان ته د ختلو او د ناممکن کار کولو قسم

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَيَصْعَدَنَّ السَّمَاءَ فرمايي: او که يو څوک قسم واخلي چي خامخا به هغه آسمان ته خيږي [يعني داسي ووايي: په الله! قسم آسمان ته به خيږم] أَوْ لَيَقْلِبَنَّ هٰذَا الْحَجَرَ ذَهَبًا يا [قسم واخلي] چي خامخا به دا ډبره په سرو زرو بدلوي [يعني ووايي: په الله قسم! دا ډبره به سره زر ګرځوم] اِنْعَقَدَتْ يَمِينُهُ نو د هغه قسم منعقد کيږي [يعني هغه حالف او قسم کونکی ګرځي] وَحَنِثَ عَقِيبَهَا او تر قسم وروسته حانث کيږي وَقَالَ زُفَرُ: لَا تَنْعَقِدُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [دلته] قسم نه منعقد کيږي لِأَنَّهُ مُسْتَحِيلٌ عَادَةً ځکه چي داسي کېدل په عامه توګه محال [ناممکن] دي فَأَشْبَهَ الْمُسْتَحِيلَ حَقِيقَةً نو دا به د حقيقتاً محال شي سره مشابه وي فَلَا يَنْعَقِدُ نو ځکه به قسم نه منعقد کيږي وَلَنَا: أَنَّ الْبِرَّ مُتَصَوَّرٌ حَقِيقَةً زموږ دليل دا دی: چي [دلته] قسم پوره کېدل حقيقتاً متصوّر دي [يعني دلته په حقيقت کي د قسم پوره کېدلو تصوّر کېدای سي] لِأَنَّ الصُّعُودَ إِلَى السَّمَاءِ مُمْكِنٌ حَقِيقَةً ځکه په حقيقت کي آسمان ته ختل ممکن دي أَلَا تَرَى أَنَّ الْمَلَائِكَةَ يَصْعَدُونَ السَّمَاءَ آيا ته نه ګوري! چي فرښتې [روزانه] آسمان ته خيږي وَكَذَا تُحَوَّلُ الْحَجَرُ ذَهَبًا بِتَحْوِيلِ اللهِ تَعَالَىٰ او همدارنګه د الله تعالیٰ په ګرځولو سره ډبره سره زر ګرځېدلای سي وَإِذَا كَانَ مُتَصَوَّرًا او کله چي دا مُتصوّر دي [يعني تصوّر يې کېدای سي. او امکان لري] يَنْعَقِدُ الْيَمِينُ مُوجِبًا لِخَلَفِهِ نو قسم به د خپل خليفه [کفارې] لپاره مُوجب [واجبونکی] منعقد کيږي ثُمَّ يَحْنَثُ بِحُكْمِ الْعَجْزِ الثَّابِتِ عَادَةً بيا [تر قسم وروسته] به د عادتاً ثابتېدونکي عاجزۍ په حکم سره حالف حانث کيږي كَمَا إِذَا مَاتَ الْحَالِفُ لکه کله چي حالف مړ سي فَإِنَّهُ يَحْنَثُ مَعَ احْتِمَالِ إِعَادَةِ الْحَيَاةِ نو [په دې صورت کي] حالف د دويم وار د ژوندي کېدلو د احتمال سره حانث کيږي [يعني که څه هم په دې صورت کي دا احتمال سته چي حالف به بيرته د الله په قدرت سره را ژوندی سي. خو بيا هم هغه د دې احتمال باوجود حانث کيږي] بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْكُوزِ په خلاف د کوزې د مسئلې لِأَنَّ شُرْبَ الْمَاءِ الَّذِي فِي الْكُوزِ وَقْتَ الْحَلِفِ وَلَا مَاءَ فِيهِ لَا يُتَصَوَّرُ ځکه چي د قسم اخيستلو په وخت کي په کوزه کي موجوده اوبه چيښل

(حال دا چي په کوزه کي هيڅ اوبه هم نه وي) متصوّر کېدای نه سي **فَلَمْ يَنْعَقِدْ** نو په دې وجه [هلته] قسم منعقد نه سو.

**اللغات:** ﴿لَيَصْعَدَنَّ﴾ د فتح له باب څخه د مضارع صيغه (په اول او آخري کي يې د تأکيد لپاره لام او نونِ ثقيله راغلی دی): ختل (لوړ ځای ته پورته کېدل). ﴿لَيُقَلِّبَنَّ﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع صيغه ده: اړول، بدلول. ﴿مُسْتَحِيْل﴾ محال، ناممکن، ناشوني. ﴿تُحَوَّلُ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهولي صيغه ده: ګرځول، بدلول. ﴿إِعَادَة﴾ د افعال مصدر دی: يو کار دويم ځل کول، راګرځول، راګرځېدل. ﴿كُوْز﴾ کوزه.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک قسم واخلي چي زه به آسمان ته خامخا خېږم، يا دا قسم واخلي چي دغه ډبره به خامخا سره زر (سونا) ګرځوم (او سره زر به ځني جوړوم)، نو زموږ په نېز دا قسم منعقد کيږي (يعني دا قسم صحيح کيږي، او په دې سره انسان قسم اخيستونکی ګرځي)، خو تر قسم وروسته سمدستي حالف حانث کيږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز قسم نه منعقد کيږي، ځکه چي آسمان ته ختل او ډبره سره زر ګرځول په عامه توګه (عادتاً) ناممکن دي (يعني که څه هم په ځانګړي حالاتو کي ممکن دي، لېکن عادة يعني په عامو حالاتو کي داسي کېدل محال (ناممکن) او ناشوني دي)، نو دا د حقيقتاً محال سره مشابه سو، او کوم شی چي حقيقتاً محال وي، په هغه شي سره يمين نه منعقد کيږي (او په هغه شي سره قسم اخيستل نه صحيح کيږي)، لهذا کوم شی چي عادتاً محال وي، په هغه سره به هم يمين نه منعقد کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي حقيقتاً د دې قسم پوره کېدل هم ممکن دي، ځکه حقيقتاً آسمان ته ختل ممکن دي، فرشتې روزانه خېږي راخېږي او ستر پېغمبر ﷺ هم آسمانو ته ختلی دی، همدارنګه که الله وغواړي، نو ډبره سره زر ګرځېدلای سي، همدارنګه د کېميا يا د يو بل شي په ذريعه يا د يو بزرګ او ولي په کرامت سره ډبره سره زر ګرځېدلای سي، نو کله چي دا شيان ممکن دي، نو يمين به منعقد او صحيح وي، او د خپل خليفه يعني کفارې لپاره به مُوجِب (واجبونکی) وي، لېکن څرنګه چي عادتاً او عموماً داسي کېدل محال او ناممکن دي، نو ځکه به تر قسم اخيستلو وروسته سمدستي حالف حانث کيږي، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي حالف حانث کيږي، کله چي تر قسم اخيستلو وروسته مړ سي، نو که څه هم په دې وخت کي د الله په قدرت او منشاء سره د هغه د ژوندي کېدلو احتمال سته، خو څرنګه چي دا احتمال شاذ و نادر دی او تقريباً ناممکن غوندي دی، نو په دې وجه تر مرګ وروسته حالف حانث کيږي، همداسي به دلته هم هغه حانث کيږي.

د دې په خلاف د کوزې او اوبو مسئله ده، ځکه کله چي د قسم اخيستلو په وخت کي په کوزه کي اوبه نه وي، نو ښکاره خبره ده چي هلته د قسم پوره کېدلو يوه ذره إمکان هم نسته. نو ځکه په هغه صورت کي بالکل قسم نه منعقد کيږي او نه صحيح کيږي، او چيري چي د قسم پوره کېدلو څه احتمال او امکان وي، هلته به قسم منعقد کيږي. فقط والله أعلم وعلمهُ أتم

# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْكَلَام

(دا) باب په خبرو کې د قسم اخیستلو (په بیان کې) دی

**تشریح**: کله چې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د سکنی، دخول، خروج او د أکل او شُرب په هکله د قسم د أحکامو او مسئلو څخه فارغ سو، نو اوس د کلام او خبرو په هکله د قسم أحکام او مسائل بیانوي: او د کلام باب یې ځکه په آخر کې بیان کړی دی چې دا خبره څرګنده سي چې دغه باب مخکښي ټولو بابونو لره جامع دی، ځکه مخکې چې د قسم په هکله څومره بابونه ذکر سول، په هغوی ټولو کې د کلام ضرورت سته. (عنایه)

## د یو چا سره د کلام نه کولو قسم

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ فُلَانًا فرمایي: او که یو څوک قسم واخلي چې هغه به د فلانکي سره خبري نه کوي فَكَلَّمَهُ وَهُوَ بِحَيْثُ يَسْمَعُ إِلَّا أَنَّهُ نَائِمٌ بیا حالف د فلانکي سره خبري وکړي او هغه په دې ډول وي [یعني پر دومره فاصله وي] چې [د حالف خبري] اورېدای سي خو دا چې هغه بیده وي حَنِثَ نو حالف حانث کیږي لِأَنَّهُ قَدْ كَلَّمَهُ وَوَصَلَ إِلَى سَمْعِهِ ځکه چې هغه د فلانکي سره خبري وکړي او د هغه خبري د فلانکي تر غوږو پوري ورسېدې [یعني د فلانکي سره د حالف خبري او کلام ثابت سو] لَكِنَّهُ لَمْ يَفْهَمْ لِنَوْمِهِ لېکن د خوب په وجه فلانکي [د حالف کلام] نه وفهموی [یعني د خوب په وجه هغه د حالف په خبرو پوه نه سو] فَصَارَ كَمَا إِذَا نَادَاهُ وَهُوَ بِحَيْثُ يَسْمَعُ لَكِنَّهُ لَمْ يَفْهَمْ لِتَغَافُلِهِ نو [د فلانکي سره د حالف خبري کول] داسي سو لکه حالف چې هغه ته [د لیري څخه] آواز وکړي او هغه [فلانکی] پر دومره فاصله وي چې [د حالف آواز] وري، لېکن د غفلت په وجه هغه نه وفهموي وَفِي بَعْضِ رِوَايَاتِ الْمَبْسُوطِ شَرْطٌ أَنْ يُوقِظَهُ او د مبسوط په ځیني روایاتو کي دا شرط لګول سوی دی چې حالف به [په خپل کلام سره] هغه را ویښوي [او په هغه به خپل کلام اوري] وَعَلَيْهِ مَشَايِخُنَا او پر همدې [حکم] زموږ مشایخ دي لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَتَنَبَّهْ ځکه کله چې فلانکی را ویښ نه سي كَانَ كَمَا إِذَا نَادَاهُ مِنْ بَعِيدٍ وَهُوَ بِحَيْثُ لَا يَسْمَعُ صَوْتَهُ نو [د هغه سره خبري کول] به داسي وي لکه

حالف چي د ليرې څخه هغه ته آواز وکړي او هغه پر دومره فاصله وي چي د حالف آواز نه اوري وَلَوْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ او که هغه قسم واخلي چي د فلانکي سره به خبري نه کوي مګر د هغه په اجازه سره فَأَذِنَ لَهُ وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْإِذْنِ بيا فلانکی هغه ته اجازه ورکړي [خو] حالف په اجازه خبر نه سي [چي ما ته فلانکي د خبرو اجازه راکړې ده] حَتَّى كَلَّمَهُ [او همدغسي ناخبر پاته وي] تر دې چي د فلانکي سره خبري وکړي حَنِثَ نو حانث کيږي [د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز] لِأَنَّ الْإِذْنَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْأَذَانِ الَّذِي هُوَ الْإِعْلَامُ ځکه چي إِذْن [اجازه] مشتق دی له أذان څخه کوم چي د خبر ورکولو په معنیٰ سره دی أَوْ مِنَ الْوُقُوعِ فِي الْإِذْنِ يا په غوږ کي د آواز لوېدلو څخه [إذن مشتق دی] وَكُلُّ ذٰلِكَ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالسَّمَاعِ او دا دواړه شيان له سماع [اورېدلو] څخه بغير ثابتېدای نه سي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: لَا يَحْنَثُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي حالف نه حانث کيږي لِأَنَّ الْإِذْنَ هُوَ الْإِطْلَاقُ ځکه چي إِذْن د جائز [مباح] ګرځولو په معنیٰ سره دی وَأَنَّهُ يَتِمُّ بِالْإِذْنِ كَالرِّضَا او دا معنیٰ په اجازه ورکولو سره پوره کيږي قُلْنَا: الرِّضَا مِنْ أَعْمَالِ الْقَلْبِ موږ جواب ورکوو: چي رضا د زړه له أعمالو څخه [يو عمل] دی وَلَا كَذٰلِكَ الْإِذْنُ او اجازه داسي نه ده عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه مخکي چي دا [خبره] تېره سو.

**اللغات**: ﴿نَادٰى﴾ د مفاعلې ماضي ده: رابلل، آواز کول. ﴿تَغَافُل﴾ د تفاعل مصدر دی: غفلت کول، بې پروايي کول، بې غوري کول. ﴿لَمْ يَنْتَبِه﴾ د افتعال له باب څخه د جحد صيغه ده: وينېدل، بيداره کېدل. ﴿إِذْن﴾ د ضرب مصدر دی: اجازه (اجازت)، رخصت. ﴿إِعْلَام﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول، اطلاع ورکول.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... که يو څوک قسم واخلي چي د فلانکي سره به خبري نه کوم، او بيا هغه د فلانکي سره په داسي حالت کي خبري وکړي چي فلانکی بيده وي خو دومره نژدې چي که وينښ سي نو د متکلم (حالف) خبري به واوري، نو په دې صورت کي دغه متکلم حالف حانث کيږي، ځکه چي د فلانکي سره د هغه کلام ثابت سو، او د فلانکي تر غوږو پوري د هغه خبره ورسېده. او دا جلا خبره ده چي فلانکی بيده دی او هغه د حالف په خبره پوه نه سو، ځکه چي شرط خبري کول دي، او دا شرط موجود

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١١٢). [القول الراجح ج:١، ص:٤١٨]

سو، نو ځکه به حالف حانث کيږي. د دې مثال داسي دی لکه حالف چي دغه فلانکي ته آواز وکړي، او هغه دومره نژدې وي چي د حالف آواز اوري، لېکن د غفلت او بې پروايۍ په وجه هغه د حالف په آواز او خبره پوه نه سي، نو په هغه صورت کي هم حالف حانث کيږي، همداسي به په دغه مسئله کي هم حالف حانث کيږي.

وفي بعض إلخ: فرمايي چي د مبسوط په يوه روايت کي دا شرط لګول سوی دی چي که حالف دا فلانکی سړی له خواب شخه را ويښ کړي او خپله خبره په واوري، نو په دغه صورت کي حانث کيږي، کنې نه حانث کيږي، ځکه بيده سړی خبري نه اوري، او څوک چي د هغه سره خبري کوي، هغه ته مُتکلِّم نه وايي. لهذا تر څو چي حالف هغه راويښ نه کړي، تر هغه وخته پوري به نه حانث کيږي، او د دې مثال داسي دی لکه حالف چي د ليري ځای شخه فلانکي ته آواز وکړي، او هغه ته بالکل د حالف هيڅ آواز نه رسيږي، نو په هغه صورت کي حالف نه حانث کيږي، همداسي به دلته هم له ويښولو (إيقاظ) شخه بغير حالف نه حانث کيږي.

(۲)... که يو څوک قسم واخلي چي زه به د خالد له اجازې شخه بغير د هغه سره خبري نه کوم، بيا خالد هغه ته اجازه ورکړي، لېکن حالف د هغه په اجازه خبره نه سي (او د اجازې خبر د حالف غوږ ته نه ورسيږي)، او په دې صورت کي هغه د خالد سره خبري وکړي، نو حانث کيږي، ځکه چي إذْن له أذَان شخه مشتق دی، او د أذَان معنیٰ ده: إعلام يعني خبر ورکول، يا د هغه معنیٰ ده: غوږ ته آواز رسېدل، او دا دواړي معناوي له سماع (اورېدلو) شخه بغير نه ثابتيږي، او حال دا دی چي حالف د خالد په اجازه خبر نه دی او د هغه غوږ ته د اجازې خبر رسېدلی نه دي، نو ځکه به خامخا هغه حانث کيږي، دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي إذْن د إباحت يعني د مباح او روا کولو په معنیٰ سره دی، او په اجازه ورکولو سره إباحت ثابتيږي، لکه يو څوک چي قسم واخلي چي د فلانکي له رضاء شخه بغير به د هغه سره خبري او کلام نه کوم، بيا فلانکی (محلوف عليه) په زړه کي د هغه (حالف) سره پر کلام کولو راضي سي، او حالف په هغه خبر نه سي، نو هم حالف نه حانث کيږي، ځکه چي محلوف عليه د هغه سره پر کلام او خبرو کولو راضي سو.

صاحب د هدايې د طرفينو له طرفه امام ابو يوسف ته په جواب کي فرمايي چي د إذْن مسئله د رضاء پر مسئلې باندي قياسول صحيح نه دي، ځکه چي د رضاء تعلق د زړه (قَلْب) سره دی، او د زړه په خبره خبرېدل مشکل او ستونزمن دي، خو د إذْن تعلق د اورېدلو (سماع) سره دی، او په سماع خبرېدل او خبره اورېدل آسانه دي، لېکن څرنګه چي دلته سماع معدوم ده يعني حالف بالکل د اجازې خبره اورېدلې نه ده، نو ځکه به هغه نه حانث کيږي.

# تر معلوم وخته پورې د کلام نه کولو قسم

قَالَ: وَإِنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُهُ شَهْرًا او که [يو څوک] قسم واخلي چې هغه به د فلانکي سره [تول] مياشته خبرې نه کوي فَهُوَ مِنْ حِيْنِ حَلَفَ نو دا مياشته به د قسم اخيستلو له وخت څخه شروع کيږي لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَذْكُرِ الشَّهْرَ لَتَأَبَّدَ الْيَمِيْنُ ځکه که هغه مياشته ذکر کړې نه وای نو قسم به مؤبد [هميشنی] ګرځيدلي وای فَذِكْرُ الشَّهْرِ لِإِخْرَاجِ مَا وَرَاءَهُ نو د مياشتې ذکر کول به د هغه مودت د ايستلو لپاره وي کوم چې له يوې مياشتې څخه پرته [علاوه] وي [يعني حالف د مياشتې په ذکر کولو سره هغه زمانه د قسم له حکم څخه خارج کړه کوم چې تر مياشتې وروسته راځي] فَبَقِيَ الَّذِي يَلِي يَمِيْنَهُ دَاخِلًا نو [د قسم په حکم کې] هغه زمانه داخله پاته سوه کوم چې د حالف د قسم سره متصل وي [يعني يوه مياشته. او تر يوې مياشتې وروسته هغه ته رخصت دی] عَمَلًا بِدَلَالَةِ حَالِهِ د حالف پر دلالتُ الحال باندې په عمل کولو سره [يعني د حالف چې کوم موجوده حالت دی. په هغه باندې په دليل نيولو سره هغه زمانه د قسم په حکم کې داخله پاته سوه. له موجوده حالت څخه هغه خپګان او نفرت مراد دی کوم چې د قسم اخيستلو په وخت کې د حالف په زړه کې راپورته سوی دی] بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: وَاللهِ لَأَصُوْمَنَّ شَهْرًا په خلاف د هغه صورت کله چې حالف ووايي: په الله قسم! زه به [تول] مياشته روژې نيسم لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَذْكُرِ الشَّهْرَ لَمْ تَتَأَبَّدِ الْيَمِيْنُ ځکه که هغه [د روژې په قسم کې] مياشته ذکر نه کړې نو [هم] قسم مؤبد نه ګرځي فَكَانَ ذِكْرُهُ لِتَقْدِيْرِ الصَّوْمِ بِهِ لهذا د شهر ذکر کول به، په مياشتې سره د روژې د اندازه کولو لپاره وي وَأَنَّهُ مُنَكَّرٌ حالانکې هغه غير متعين ده فَالتَّعْيِيْنُ إِلَيْهِ نو ځکه به حالف لره د متعينولو حق وي وَإِنْ حَلَفَ لَا يَتَكَلَّمُ او که [يو څوک] قسم واخلي چې هغه به خبرې نه کوي فَقَرَأَ الْقُرْآنَ فِيْ صَلَاتِهِ بيا په لمانځه کې قرآن ولوستې [تلاوت کړې] لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کيږي وَإِنْ قَرَأَ فِيْ غَيْرِ صَلَاتِهِ او که د لمانځه څخه بغير [په بل حالت کې] قرآن ولوستې حَنِثَ نو حانث کيږي وَعَلَى هٰذَا التَّسْبِيْحُ وَالتَّهْلِيْلُ وَالتَّكْبِيْرُ او پر همدغه حکم دې سُبْحَانَ اللهِ ويل، او لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ويل، او اللهُ أَكْبَر ويل وَفِي الْقِيَاسِ يَحْنَثُ فِيْهِمَا او قياساً په دواړو صورتونو کې حالف حانث کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ

كَلَامٌ حَقِيقَةً ځکه چي دا په حقيقت کي کلام دی وَلَنَا أَنَّهُ فِي الصَّلَاةِ لَيْسَ بِكَلَامٍ عُرْفًا وَلَا شَرْعًا او زموږ دليل دا دی: چي په لمانځه کښ قرآن لوستل نه د عرف په اعتبار سره کلام دی. او نه د شريعت په اعتبار سره قَالَ الطَّيْطَةِ [1]: إِنَّ صَلَاتَنَا هٰذِهِ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: زموږ دا لمونځ د خلکو د خبرو صلاحيت نه لري [يعني زموږ په دې لمانځه کي د خلکو د خبرو هيڅ ګنجائش او اجازه نسته] وَقِيلَ: فِي عُرْفِنَا لَا يَحْنَثُ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ أَيْضًا او ويل سوي دي: چي زموږ عرف کي به له لمانځه څخه بغير هم حالف [د قرآن په لوستولو سره] نه حانث کيږي لِأَنَّهُ لَا يُسَمّٰى مُتَكَلِّمًا بَلْ قَارِئًا وَمُسَبِّحًا ځکه چي د قرآن لوستونکي ته متکلم [خبري کونکی] نه ويل کيږي. بلکي هغه ته قارئ [لوستونکی او تلاوت کونکی] يا تسبيح ويونکی ويل کيږي.

**اللغات:** ﴿تَتَأَبَّدُ﴾ د تفعّل مضارع ده: هميشه کېدل. أبدي ګرځېدل. ﴿تَهْلِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: کلمه شريفه ويل (لَا إِلٰهَ إِلَّا الله).

**تشريح:** په دې عبارت کي هم دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که يو سړی قسم واخلي چي ترېوې مياشتي پوري به د فلانکي سره خبري نه کوم. نو د يوې مياشتي شمار به د قسم اخيستلو له وخت څخه کيږي. او که د يوې مياشتي تر پوره کېدلو مخکي هغه خبري وکړي، نو حانث کيږي. ځکه چي دلته حالف د "شَهْرًا" (مياشتي) په ذکر کولو سره د خپل قسم لپاره وخت متعين کړی. او که هغه "شَهْرًا" ويلي نه واى. نو د هغه قسم به مؤبد واى. ليکن د شَهْرًا په ذکر کولو سره به د يوې مياشتي څخه بغير نور وخت او زمانه له قسم څخه جلا او عليحده وي. او کومه وخت او زمانه چي د قسم سره متصل وي. هغه به د حالف په دلالة الحال يعني د هغه د خښم او غضب په وجه په قسم کي داخليږي. د دې په خلاف که يو څوک قسم واخلي چي په الله قسم يوه مياشت روژې به نيسم؛ نو په دې صورت کي د شَهْرًا (مياشتي) په ذکر کولو سره هيڅ يوه مياشته نه متعين کيږي (چي خاص په هغه مياشته کي به حالف روژې نيسي). ځکه که حالف شَهْرًا نه وواېي، نو هم قسم مؤبد نه ګرځي، ځکه چي په ابدي او دائمي توګه روژه نيول ممکن نه دي. ځکه چي په مينځ کي داسي ورځي (د اخترونو او تشريق ورځي) هم راځي چي په هغوی کي روژه نيول ممنوع دي. لهذا د روژې په قسم کي به د شَهْرًا ذکر کول د اندازې لپاره وي (يعني په داسي قسم

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في باب تشميت العاطس في الصلاة، ص:۱۴۲، حديث رقم: ۹۳۰.

کي به په يوې مياشتي سره د روژې اندازه کېدل مراديږي). او څرنګه چي شَهْرًا نکره دی. نو ځکه به حالف ته اختيار وي چي هره مياشته وغواړي هغه د روژو نيولو لپاره متعينولاى (او ټاکلی) سي

(۲)... او که يو څوک مطلق قسم واخلي چي زه به خبري نه کوم. بيا هغه په لمانځه کي د قرآن شريف تلاوت وکړي، نو نه حانث کيږي. او که هغه د لمانځه څخه دباندي د قرآن شريف تلاوت وکړي، نو حانث کيږي. همدا حکم د "سُبْحَانَ الله. لا إلٰه إلا الله او اَللهُ أكْبَر" هم دی. يعني په لمانځه کي په دې سره حالف نه حانث کيږي. او په غيرِ لمانځه کي په حانث کيږي. د قياس تقاضا دا ده چي په لمانځه او غيرِ لمانځه دواړو کي حانث سي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی. د هغه دليل دا دی چي قرآن شريف لوستل او سُبْحَانَ الله او داسي نور ويل هم په حقيقت کي کلام (خبري) دي، او حالف د کلام نه کولو (خبرو نه کولو) قسم اخيستی وو. نو ځکه به هغه په دې سره هم حانث کيږي.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل دا دی چي په لمانځه کي قرآن شريف لوستل او داسي نوري کلمې ويل نه د عرف په اعتبار سره کلام دی. او نه د شريعت په اعتبار سره کلام دی. عرفاً خو ځکه کلام نه دی چي په عرف کي قرآن لوستونکي يا تسبيح ويونکي ته متکلم (خبري کونکی) نه ويل کيږي. بلکي هغه ته قارئ او مُسبّح ويل کيږي. او شرعاً ځکه کلام نه دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي "زموږ په دې لمانځه کي د خلکو کلام لره هيڅ ګنجائش نسته". له دې څخه معلومه سوه چي په لمانځه کي د قرآن لوستل. کلمات او تسبيحات ويل کلام نه دی. نو ځکه به حالف په لمانځه کي د دې په ويلو سره نه حانث کيږي. لېکن په غيرِ لمانځه کي به حانث کيږي.

**وقيل في عرفنا إلخ**: فرمايي چي د ځيني فقهاؤ رايه دا ده چي زموږ په عرف کي به حالف د لمانځه څخه دباندي هم د قرآن په لوستلو او د کلماتو او تسبيحاتو په ويلو سره نه حانث کيږي. ځکه چي د قرآن شريف لوستونکي او د کلماتو او تسبيحاتو ويونکي ته قارئ او مُسبّح ويل کيږي. هغه ته متکلم (او خبري کونکی) نه ويل کيږي. همدا د فقيه ابو الليث. علامه صدر الشهيد. عتابي او داسي نورو فقهاؤ قول دی. او زموږ زمانه کي فتویٰ هم پر دغه قول ده. (بنايه ج:۶، ص:۱۱۴)

## په قسم کي د "ورځي" د لفظ مراد او وضاحت

وَلَوْقَالَ: يَوْمَ أُكَلِّمُ فُلَانًا فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ او که ]يو څوک[ ووايي: په کوم ورځ چي زه د فلانکي سره خبري وکړم نو زما ښځه ]پر ما[ طلاقه ده فَهُوَعَلَى اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ نو دا ]قسم[ پر شپه او ورځ ادواړو[ محمول کيږي لِأَنَّ اسْمَ الْيَوْمِ إِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ لَا يَمْتَدُّ يُرَادُ بِهِ مُطْلَقُ الْوَقْتِ ځکه د يَوْم لفظ چي کله د

غيرِ ممتد فعل [نه اوږدېدونکي کار] سره متصل سي نو په هغه سره مطلق وخت مراديږي قَالَ اللهُ تَعَالىٰ: وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ [الأنفال: ۱۶] الله تعالىٰ فرمايلي دي: او کوم سړی چي په دې ورځ کافرانو ته شا کړي وَالْكَلَامُ لَا يَمْتَدُّ او کلام [خبري] نه اوږديږي [يعني کلام غيرِ ممتد فعل دی] وَإِنْ عَنَى النَّهَارَ خَاصَّةً او که حالف فقط دورځي نيت کړی وي [چي په دې سره زما صرف ورځ مراد ده] دُيِّنَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً به د هغه تصديق کيږي [د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز] لِأَنَّهُ مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ أَيْضًا ځکه چي دا لفظ په دې معنیٰ کي هم استعمال سوی دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁: أَنَّهُ لَا يُدَيَّنُ فِي الْقَضَاءِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ خِلَافُ الْمُتَعَارَفِ ځکه چي دا معنیٰ له عرفي معنیٰ څخه خلاف ده وَلَوْ قَالَ: لَيْلَةَ أُكَلِّمُ فُلَانًا او که ووايي: په کومه شپه چي زه د فلانکي سره خبري وکړم [نو زما ښځه پر ما طلاقه ده] فَهُوَ عَلَى اللَّيْلِ خَاصَّةً نو دا قسم فقط پر شپې محمول کيږي لِأَنَّهُ حَقِيقَةٌ فِي سَوَادِ اللَّيْلِ ځکه چي د لَيْل لفظ د شپې د تياري [تاريکې] لپاره حقيقت دی كَالنَّهَارِ لِلْبَيَاضِ خَاصَّةً لکه نَهار چي فقط دورځي د رڼا لپاره [حقيقت] دی وَمَا جَاءَ اسْتِعْمَالُهُ فِي مُطْلَقِ الْوَقْتِ او د لَيْل استعمال راغلی نه دی په مطلق وخت کي [يعني لَيْل د يَوْم په څير د مطلق وخت په معنیٰ سره نه استعماليږي] وَلَوْ قَالَ: إِنْ كَلَّمْتُ فُلَانًا إِلَّا أَنْ يَقْدَمَ فُلَانٌ او که حالف [قسم اخيستونکی] ووايي: که چيري ما د فلان سره خبري وکړي خو دا چي فلان راسي [نو زما ښځه پر ما طلاقه ده] أَوْ قَالَ: حَتَّى يَقْدَمَ فُلَانٌ يا ووايي: تر دې چي فلان راسي [نو زما ښځه پر ما طلاقه ده] أَوْ قَالَ: إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ فُلَانٌ أَوْ حَتَّى يَأْذَنَ فُلَانٌ فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ يا ووايي: خو دا چي فلان اجازه راکړي يا [ووايي] تر دې چي فلان اجازه راکړي نو زما ښځه [پر ما] طلاقه ده فَكَلَّمَهُ قَبْلَ الْقُدُومِ وَالْإِذْنِ بيا حالف [د فلان] تر راتللو او اجازه ورکولو مخکي د هغه سره خبري وکړي حَنِثَ نو حانث کيږي [يعني ښځه پر طلاقيږي] وَلَوْ كَلَّمَهُ بَعْدَ الْقُدُومِ وَالْإِذْنِ او که [د فلان] تر راتللو او اجازه ورکولو وروسته خبري ور سره وکړي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ غَايَةٌ

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۱۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۱۹]

ځکه چي [دلته] قدوم او إذان غايت دی وَالْيَمِينُ بَاقِيَةٌ قَبْلَ الْغَايَةِ وَمُنْتَهِيَةٌ بَعْدَهَا او تر غايت مخکي قسم پاته دی او تر غايت وروسته ختمېدونکی [او پوره کېدونکی] دی فَلَا يَحْنَثُ بِالْكَلَامِ بَعْدَ انْتِهَاءِ الْيَمِينِ نو ځکه به تر قسم ختمېدلو وروسته هغه په خبرو کولو سره نه حانث کيږي [ځکه چي د قسم قصه ختمه سوه] وَإِنْ مَاتَ فُلَانٌ سَقَطَتِ الْيَمِينُ او که فلان مړ سي نو قسم ساقطيږي [دَ طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز] خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ ❁ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله [يعني په دې صورت کي د امام ابو يوسف اختلاف دی] لِأَنَّ الْمَمْنُوعَ عَنْهُ كَلَامٌ يَنْتَهِي بِالْإِذْنِ وَالْقُدُومِ ځکه چي د حالف لپاره هغه کلام ممنوع وو کوم چي [د فلان] په اجازه او راتګ سره پوره کېدی [او ختمېدی] وَلَمْ يَبْقَ بَعْدَ الْمَوْتِ مُتَصَوَّرُ الْوُجُودِ لېکن [د فلان] تر مرګ وروسته د دې [إذن او قدوم] د کېدلو تصور پاته نه سو فَسَقَطَتِ الْيَمِينُ نو ځکه قسم ساقط سو وَعِنْدَهُ التَّصَوُّرُ لَيْسَ بِشَرْطٍ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز [د قسم پوره کېدلو] تصوّر شرط نه دی فَعِنْدَ سُقُوطِ الْغَايَةِ تَتَأَبَّدُ الْيَمِينُ نو ځکه [د هغه په نيز] د غايت ساقطېدلو په صورت کي قسم مؤبد [همېشنی] ګرځي.

**اللغات:** ﴿قُرِنَ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده: يو ځای کول، متصل کول (ور سره لګول)، متصل کېدل. ﴿لَا يَمْتَدُّ﴾ د افتعال له باب څخه د نفي صيغه ده: کشېدل، اوږدېدل، غوړېدل. ﴿يُوَلِّهِمْ﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع صيغه ده، په آخر کي يې د جمع غائب ضمير دی کوم چي کفارو ته راجع دی: ګرځول، اړول، وَلّٰى دُبُرَهٗ: شا يې واړول (شا يې وګرځول). ﴿قُدُوْم﴾ د سمع مصدر دی: راتلل (راتګ). ﴿غَايَة﴾ انتهاء.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک قسم واخلي او داسي ووايي چي: "که زه په کمه ورځ د فلانکي سره خبري وکړم، نو زما ښځه پر ما طلاقه ده". نو دا قسم فقط د ورځي سره نه متعلق کيږي، بلکي د ورځي او شپې دواړو سره متعلق کيږي، او کله چي هم حالف د هغه فلانکي سره د ورځي يا د شپې خبري وکړي، نو حانث کيږي: د دې دليل دا دی چي د "يَوْم" (ورځي) لفظ چي کله د غير

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۱۵)، وكذا في الهندية (ج:۳، ص:۱۱۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۰]

ممتد فعل سره متصل سي (يعني کله چي د يَوْم لفظ د داسي فعل سره متصل سي چي هغه فعل ډېر وخت نه نيسي او نه اوږديږي)، نو په دې وخت کي له يَوْم څخه مطلق وخت مراديږي. لکه څرنګه چي په دې آيت "وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ" کي له يَوْمَئِذٍ څخه مطلق وخت مراد دی. فقط ورځ څني مراد نه ده (او مطلب يې دا دی چي د جهاد د جريان په هر وخت وخت کي کافرانو ته شا اړول او تښتېدل جرم دی)، معلومه سوه چي په دې آيت کي له يَوْم څخه مطلق وخت مراد دی. او څرنګه چي زموږ په دې مسئله کي هم يَوْم د غيرِ ممتد فعل يعني د کلام سره متصل دی (ځکه چي کلام بذت خود نه اوږديږي او إمتداد نه قبلوي)، نو ځکه به دلته هم له يَوْم څخه مطلق وخت مراد وي. او حالف چي د ورځي او شپې په هر وخت کي د فلانکي سوه خبري وکړي، نو حانث به ګرځي.

**وإن عنٰى إلخ:** فرمايي: که حالف ووايي چي له يَوْم څخه زما ورځ مراد وه. نو قضاءً به د هغه تصديق کيږي او قاضي به د هغه خبره تسليموي، ځکه چي د يَوْم لفظ د ورځي لپاره هم استعماليږي. که څه هم هغه دلته د غيرِ ممتد فعل سره متصل سوی دی، خو د حالف کلام د هغه احتمال لري. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم دی چي قضاءً به په دې مسئله کي د حالف تصديق نه کيږي، ځکه کله چي يَوْم د غيرِ ممتد فعل سره متصل سي نو له هغه څخه فقط ورځ مرادول د عرف او رواج خلاف دي، نو ځکه به د هغه اعتبار نه کيږي.

**ولو قال ليلة إلخ:** او که حالف د يَوْمَ أُكَلِّمُ پر ځای لَيْلَةَ أُكَلِّمُ ...إلخ ويلي وي. نو په دې صورت کي قسم فقط د شپې سره متعلق کيږي. او فقط په شپه کي په کلام سره حالف حانث کيږي. ځکه چي د لَيْلَةٌ په لفظ سره په حقيقت کي د شپې تياره (تاريکه) مراديږي. لکه څرنګه چي په نَهَار سره په حقيقت کي د ورځي رڼا مراديږي. او د لَيْل لفظ د مطلق وخت په معنىٰ سره نه استعماليږي. نو ځکه به له دې څخه صرف او ضرف شپه مراد وي.

**ولو قال إن کلمت فلاناً إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که حالف داسي ووايي: "که چيري ما د فلان (زيد) سره خبري وکړي، مګر تر دې چي فلان (خالد) راسي، نو زما ښځه پر ما طلاقه ده. يا ووايي: مګر دا چي فلان (خالد) راسي. نو زما ښځه پر ما طلاقه ده". يا مثلاً هغه ووايي: "که چيري ما د فلان (زيد) سره خبري وکړي مګر تر دې چي فلان راسي، يا مګر دا چي فلان راسي. نو پر ما ښځه طلاقه ده". نو اوس که حالف د فلان (خالد) تر راتللو او اجازه ورکولو مخکي د هغه (زيد) سره خبري وکړي، نو

حانث کيږي، يعني ښځه پر طلاقيږي، او که حالف د فلان (خالد) تر راتللو او اجازه ورکولو وروسته د هغه (زيد) سره خبري وکړي، نو نه حانث کيږي (مطلب دا چي د خالد تر راتلو يا اجازه ورکولو مخکي د حالف لپاره د زيد سره خبري کول ممنوع دي، نه وروسته)، ځکه چي دلته د فلان اجازه ورکول او د فلان راتلل غايت دی، او تر غايت مخکي قسم پاته دی، نو ځکه به د فلان تر راتلو او اجازه ورکولو مخکي د کلام کولو په صورت کي حالف حانث کيږي، او تر راتلو او اجازه ورکولو وروسته به په کلام کولو سره هغه نه حانث کيږي، ځکه کله چي هم غايت موجود سو نو قسم پوره سو او ختم سو (ځکه چي د غايت په موجودېدلو سره سمدستي قسم پوره کيږي، او قصه يې ختميږي)، نو ځکه به د فلان (خالد) له راتلو او اجازه ورکولو څخه وروسته حالف په کلام کولو سره نه حانث کيږي.

**وإن مات فلان إلخ:** فرمايي حالف چي د چا پر اجازه او راتګ قسم موقوف کړی وي، که هغه مړ سي (يعني که خالد مړ سي)، نو له حالف څخه قسم ساقطيږي، ځکه چي له حالف څخه هغه کلام ممنوع وو کوم چي د فلان (خالد) په اجازه او راتګ سره پوره کېدی او انتهاء ته رسېدی (يعني قسم د خالد په اجازه ورکولو يا د هغه په راتلو سره پوره کېدی او له منځه تلی او د کلام ممانعت ختمېدی)، لېکن کله چي فلان (خالد) مړ سو، نو د هغه د مرګ په وجه د اجازه ورکولو او د هغه د راتللو تصوّر محال او ناممکن سو، حالانکي د طرفينو په نېز د قسم پوره کېدلو تصوّر د قسم د صحّت او بقاء لپاره شرط دی، لهذا کله چي دا تصوّر ختم سو، نو ښکاره خبره ده چي د دې حضراتو په نېز قسم هم ختميږي، او څرنګه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د "بَرّ تصور" (د قسم پوره کېدلو) تصوّر شرط نه دی، نو ځکه د هغه په نېز د تصوّر په ختمېدلو سره دا قسم له مُعلّق يمين څخه وځي او په مؤبّد يمين بدليږي، يعني د هغه په نېز د همېشه لپاره دا قسم پاتيږي، او کله چي هم حالف د فلان (زيد) سره خبر وکړي، نو حانث کيږي، او پر ښځي طلاق واقع کيږي.

## د محلوف عليه د حالت بدلېدلو حکم

قال: **وَمَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ عَبْدَ فُلَانٍ** فرمايي: او که يو سړی قسم واخلي چي هغه به د فلانکي د غلام سره خبري نه کوي **وَلَمْ يَنْوِ عَبْدًا بِعَيْنِهِ** او دا سړی د يو متعين غلام نيت نه وکړي **أَوِ امْرَأَةَ فُلَانٍ أَوْ صَدِيقَ فُلَانٍ** يا (داسي قسم واخلي چي) د فلانکي د ښځي سره يا د فلانکي د دوست سره به خبري نه کوي **فَبَاعَ فُلَانٌ عَبْدَهُ أَوْ بَانَتْ مِنْهُ امْرَأَتُهُ أَوْ عَادَى صَدِيقَهُ** بيا فلانکي خپل غلام خرڅ کړي، يا ښځه له هغه څخه بائنه سي، يا هغه د خپل دوست دښمن سي (يعني د دواړو په مينځ کي خوابدي.

نفرت او دښمني پيدا سي] فَكَلَّمَهُمْ او [بيا حالف] د هغو سره خبري وكړي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث كيږي لِأَنَّهُ عَقَدَ يَمِينَهُ عَلَى فِعْلٍ وَاقِعٍ فِي مَحَلٍّ مُضَافٍ إِلَى فُلَانٍ ځکه چي حالف خپل قسم پر داسي فعل منعقد کړی دی چي هغه په يو داسي محل کي واقع کيږي کوم چي د فلانکي وطرف ته مضاف دی إِمَّا إِضَافَةُ مِلْكٍ أَوْ إِضَافَةُ نِسْبَةٍ چي هغه يا د ملکيت اضافت دی يا د نسبت [تعلق] اضافت دی [يعني دا محل يا د ملکيت په اضافت سره فلانکي ته مضاف دی لکه غلام، يا د تعلق په اضافت سره هغه ته مضاف دی لکه ښځه او ملګری] وَلَمْ يُوجَدْ حالانکي [دلته له دواړو اضافتونو څخه] يو اضافت [هم] موجود نه سو فَلَا يَحْنَثُ نو ځکه به حالف نه حانث کيږي قَالَ: هٰذَا فِي إِضَافَةِ الْمِلْكِ بِالِاتِّفَاقِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا حکم د ملکيت د اضافت په صورت کي متفق عليه دی وَفِي إِضَافَةِ النِّسْبَةِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ يَحْنَثُ كَالْمَرْأَةِ وَالصَّدِيقِ او د نسبت [يعني د تعلق] د اضافت په صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز حالف حانث کيږي لکه څرنګه چي د ښځي او ملګري [سره د کلام کولو په صورت کي حالف حانث کيږي] قَالَ فِي الزِّيَادَاتِ: لِأَنَّ هٰذِهِ الْإِضَافَةَ لِلتَّعْرِيفِ [د دي په دليل کي] امام محمد رَحِمَهُ الله په زيادات کي فرمايلي دي: ځکه چي دا نسبت د پيژندګلوی [او پيژندني] لپاره دی لِأَنَّ الْمَرْأَةَ وَالصَّدِيقَ مُتَصَوَّرَانِ بِالْهِجْرَانِ ځکه چي له ښځي او ملګري [دواړو] څخه د کلام پرېښوول متصوّر دي فَلَا يُشْتَرَطُ دَوَامُهَا نو ځکه د دې نسبت همېشه باقي پاتېدل شرط نه دي فَيَتَعَلَّقُ الْحُكْمُ بِعَيْنِهِ نو ځکه به حکم [د هر يوه] د ذات سره متعلق وي كَمَا فِي الْإِشَارَةِ لکه په اشاره کي [چي هم د ذات سره حکم متعلق کيږي] وَوَجْهُ مَا ذُكِرَ هٰهُنَا وَهُوَ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: أَنَّهُ يُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ غَرَضُهُ هِجْرَانَهُ لِأَجْلِ الْمُضَافِ إِلَيْهِ او دلته [په متن کي] چي کومه مسئله ذکر سوې ده چي هغه د جامع صغير روايت دی، د هغه دليل دا دی: چي کېدای سي د حالف مقصد به د مضاف إليه [فلانکي] په وجه [د دوی دواړو سره] د کلام پرېښوول وي [يعني کېدای سي هغه به د فلانکي د ښځي او ملګري سره په دې وجه د کلام نه کولو قسم اخيستی وي چي فلانکي ته د دوی اضافت

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۱۷)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:۱، ص:۵۷۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۱]

او نسبت کيږي] وَلِهٰذَا لَمْ يُعَيِّنْهُ همدا وجه ده چي هغه محلوف عليه متعين کړی نه دی فَلَا يَحْنَثُ بَعْدَ زَوَالِ الْإِضَافَةِ بِالشَّكِّ لهذا د اضافت تر ختمېدلو وروسته به د شک په وجه حالف نه حانث کيږي وَإِنْ كَانَتْ يَمِينُهُ عَلَى عَبْدٍ بِعَيْنِهِ او که د حالف قسم پر يو متعين غلام [واقع] وي بِأَنْ قَالَ: عَبْدُ فُلَانٍ هٰذَا أَوْ امْرَأَةُ فُلَانٍ بِعَيْنِهَا أَوْ صَدِيقُ فُلَانٍ بِعَيْنِهِ په دې توګه چي هغه ويلي وي: چي [په الله قسم! زه به خبري نه کوم] د فلانکي د دغه غلام سره، يا د فلانکي د هغه متعيني ښځي سره، يا د فلانکي د هغه متعين ملګري سره لَمْ يَحْنَثْ فِي الْعَبْدِ وَحَنِثَ فِي الْمَرْأَةِ وَالصَّدِيقِ نو په غلام کي نه حانث کيږي او په ښځه او ملګري کي حانث کيږي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ✿: يَحْنَثُ فِي الْعَبْدِ أَيْضًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په غلام کي هم حانث کيږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول [هم] دی وَإِنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ دَارَ فُلَانٍ هٰذِهِ او که دا قسم واخلي چي د فلانکي دغه کور ته به نه داخليږي فَبَاعَهَا او [بيا] فلانکی هغه کور خرڅ کړي ثُمَّ دَخَلَهَا بيا حالف هغه ته داخل سي فَهُوَ عَلَىٰ هٰذَا الْاِخْتِلَافِ نو دا [مسئله] هم پر دغه اختلاف ده.

**اللغات:** ﴿بَانَتْ﴾ د ضرب ماضي ده: بائنه کېدل، جلا کېدل، پر ښځي طلاق بائن واقع کېدل، ﴿عَادٰى﴾ د مفاعلې ماضي ده: دښمن کېدل (دښمني کول)، د دښمن سره جنګ کول. ﴿إِضَافَة﴾ د افعال مصدر دی: مضاف کول، نسبت کول، منسوب کول، په دې عبارت کي له ملک څخه مراد د غلام ملکيت او مملوک کېدل دي، او له نسبت څخه مراد تعلق دی کوم چي د فلانکي او د ښځي او ملګري په مينځ کي دی، ﴿هِجْرَان﴾ د نصر مصدر دی: تعلق پرېښوول (تعلق ختمول). ﴿دَوَام﴾ د نصر مصدر دی: همېشتوب، همېشه پاتېدل (باقي کېدل، پاتېدل).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک قسم واخلي چي زه به د فلانکي سړي د غلام سره يا د هغه د ښځي سره يا د هغه د ملګري سره خبري او کلام نه کوم، او حالف (قسم اخيستونکی) د غلام او نورو تعيين نه وکړي، بلکي مطلق قسم واخلي، بيا فلانکی سړی خپل غلام خرڅ کړي، يا هغه خپلي ښځي ته طلاق ورکړي او ښځه بائنه وګرځي، يا د هغه او د خپل ملګري په مينځ کي دوستي او ملګرتيا ختمه سي او په مينځ کي يې نفرت او دښمني پيدا سي، بيا حالف په دوی کي له يوه سره خبري وکړي، نو

✿ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:٣، ص:١١٧). [القول الراجح ج:٢، ص:٤٢٣]

په دې صورت کې حالف نه حانث کيږي، ځکه چې دلته حالف خپل قسم پر داسې فعل منعقد کړی دی کوم چې د فلان وطرف ته په مضاف سوي (منسوب سوي) محل کې واقع دی. په بله وينا دا چې دلته حالف د داسې کسانو سره پر کلام نه کولو خپل قسم معلق کړی دی چې هغه کسان د فلان سره تعلق لري (يعني د دې کسانو او د فلان په مينځ کې تعلق سته). ځکه چې د فلان او غلام په مينځ کې د ملکيت په اعتبار سته تعلق سته (يعني فلان د غلام مالک دی. او غلام يې مملوک دی). او د ښځې او فلان يا د ملګري او فلان په مينځ کې د نسبت په اعتبار سره تعلق سته (يعني د دواړو نسبت يوه او بل ته کيږي چې دا د فلانکي ښځه ده او دا د فلانکي ملګری دی). ليکن کله چې فلانکي سړی غلام خرڅ کړی، يا يې ښځې ته طلاق ورکړی، يا د هغه او خپل ملګري په مينځ کې دښمني پيدا سوه. او فلانکي د دوی سره خپل تعلق ختم کړی. او تر دې وروسته حالف په دوی کې د يوه سره خبرې وکړې، نو ښکاره خبره ده چې هغه به نه حانث کيږي، ځکه پر کوم تعلق او پر کوم نسبت چې حالف قسم معلق کړی وو، هغه تعلق او نسبت ختم سو (د مسئلې غورچاڼ دا سو چې که حالف د يو سړي سره د کلام نه کولو قسم واخلي، نو که د حالف مراد د هغه سړي ذات وي، نو دا قسم به د همېشه لپاره پاتيږي، او که د حالف مراد د فلانکي وطرف ته د هغه اضافت او نسبت وي، مثلاً ووايي چې د فلانکي سړي د ملګري سره به خبرې نه کوم، نو په دې صورت کې چې هر وخت اضافت او نسبت ختم سي، نو قسم هم ختميږي. او بيا حالف په کلام کولو سره نه حانث کيږي).

قال ﷺ هذا إلخ: فرمايي چې د ملک د اضافت (مضاف کولو) په صورت کې يعني د غلام په صورت کې د حالف نه حانث کېدل خو متفق عليه دي، ليکن د نسبت (تعلّق) د اضافت په صورت کې د امامانو اختلاف دی. هغه دا چې د نسبت (تعلق) والا په اضافت کې يعني د ښځې او ملګري په صورت کې د شيخينو په نيز حالف نه حانث کيږي، ليکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز حانث کيږي که څه هم نکاح او ملګرتيا ختمه سي؛ په زيادات کې امام محمد رَحِمَهُ الله د دې خبرې دليل دا بيان کړی دی چې د نسبت والا اضافت د پېژندګلوی (تعارف) لپاره وي، او أصل مقصود يې دا وي چې حالف د هغه ښځې او سړي سره خبرې کول نه غواړي کوم چې د فلانکي ښځه ده او د فلانکي ملګری دی (يعني په دې سره د حالف مقصد فقط تعارف دی). او د دوی سره (يعني د ښځې او ملګري سره) د حالف نفرت او عداوت هغه وخت هم باقي پاتيږي کله چې د فلانکي سره د دوی تعلق ختم سي (يعني تر تعلق او نسبت ختمېدلو وروسته هم د حالف زړه دا نه غواړي چې د دوی سره خبرې وکړي). نو په دې وجه د حانث کېدلو لپاره د تعلق او نسبت پاتېدل شرط نه دی، بلکې د دې دواړو کسانو د ذات سره به قسم متعلق وي. لهذا کله چې هم حالف د دوی سره خبرې وکړي، نو حانث به ګرځي. د دې مثال دا دی لکه يو سړی چې د يو چا د ملګري وطرف ته اشاره وکړي او داسې ووايي چې په الله قسم زه به د خالد د دغه ملګري سره

خبري نه کوم، او بيا د دې ملګري او خالد په مينځ کي دښمني او نفرت پيدا سي او دوستي يې ختمه سي، که په دې صورت کي حالف د هغه (يعني د خالد د ملګري) سره خبري وکړي، نو هم حانث کيږي، ځکه چي د حالف مقصد د مشارٌاِليه ذات سره خبري نه کول وو، همداسي زموږ په دې مسئله کي هم د حالف مقصد د فلانکي د ښځي او ملګري سره خبري نه کول دي، او د فلانکي سره د دې ښځي د نکاح نسبت يا د دې ملګري د ملګرتيا نسبت يو ضمني او عارضي شی دی، نو ځکه به د دغه ضمني او عارضي نسبت او تعلق سره قسم نه متعلق کيږي، بلکي د دوی د ذات سره به قسم متعلق کيږي.

**ووجه ما ذکر ههنا إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چي دلته (په متن کي) چي کوم روايت ذکر سو (چي حالف نه حانث کيږي) هغه د جامع صغير روايت دی، او په دې روايت کي چي د نه حانث کېدلو کوم حکم ذکر سوی دی، د هغه دليل دا دی چي کېدای سي حالف په دې وجه د دوی سره د کلام نه کولو قسم اخيستی وي چي د فلانکي سره د دوی تعلق ستھ، ځکه چي حالف د فلانکي وطرف ته د دوی اضافت کړی دی او "اِمْرَأَةَ فُلَانٍ يا صَدِيقَ فُلَانٍ" يې ويلي دي او د فلانکي د ښځي يا د ملګري تعيين يې نه دي کړی (يعني داسي يې نه دي ويلي چي زه به د فلانکي د دغه ښځي او د دغه غلام سره خبري نه کوم، بلکي مطلق يې ويلي دي چي زه به د فلانکي د ښځي او د غلام سره خبري نه کوم، نو دا پر دې دلالت کوي چي حالف له فلانکي څخه نفرت کوي)، او دا هم کېدای سي چي حالف به له ښځي او ملګري څخه نفرت کوي لکه څرنګه چي په زيادات کي ذکر سوي دي، نو په دې حواله سره د حالف مقصد مشکوک سو، او څرنګه چي د فلانکي سړي سره د ښځي او ملګري نسبت ختم سوی دی، نو د دغه شک په وجه به حالف نه حانث کيږي. (دا د جامع صغير د روايت دليل سو).

**وإن کانت إلخ**: فرمايي که حالف د يو متعين (او معلوم) غلام سره د کلام نه کولو قسم اخيستی وي يعني هغه ويلي وي "وَاللهِ لَا أُكَلِّمُ عَبْدَ فُلَانٍ هٰذَا"، يا هغه د فلانکي د يوې متعيني ښځي يا متعين ملګري سره د کلام نه کولو قسم اخيستی وي، نو که په دې صورت فلانکی سړي خپل غلام خرڅ کړي (يعني غلام د فلانکي له ملکيت څخه ووځي)، او بيا حالف د هغه سره خبري وکړي، نو نه حانث کيږي، او که د فلانکي سره د ښځي او ملګري نسبت او تعلق ختم سي، او بيا حالف خبري ورسره وکړي، نو حانث کيږي (يعني د غلام په صورت حالف په کلام کولو سره نه حانث کيږي، او د ښځي او ملګري په صورت کي حانث کيږي)، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د غلام په صورت کي هم حانث کيږي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی.

او که يو څوک قسم واخلي چي د فلانکي سړي کور ته به نه داخلېږم، تر دې وروسته فلانکی سړی هغه کور خرڅ کړي، او بيا حالف په هغه کور کي داخل سي، نو دا مسئله هم د شيخينو او امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مختلف فيه ده "أي لا يحنث عندهما و يحنث عند محمد".

## د پورتنۍ مسئلې دلائل او نور وضاحت

وَجْهُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ: أَنَّ الْإِضَافَةَ لِلتَّعْرِيفِ د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د قول دليل دا دی: چې اضافت د پېژندګلوۍ [تعارف] لپاره وي وَالْإِشَارَةُ أَبْلَغُ مِنْهَا او [په دې باره کې] اشاره له اضافت څخه زياته بليغه [او مؤثره] ده لِكَوْنِهَا قَاطِعَةً لِلشَّرِكَةِ ځکه چې اشاره [په پوره توګه] د شرکت ختمونکې ده بِخِلَافِ الْإِضَافَةِ په خلاف د اضافت فَاعْتُبِرَتِ الْإِشَارَةُ وَلُغِيَتِ الْإِضَافَةُ نو ځکه د اشارې اعتبار وسو او اضافت لغو سو وَصَارَ كَالصَّدِيقِ وَالْمَرْأَةِ او غلام د ملګري او ښځې په څېر سو وَلَهُمَا: أَنَّ الدَّاعِيَ إِلَى الْيَمِينِ مَعْنًى فِي الْمُضَافِ إِلَيْهِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د قسم طرف ته ور بلونکې داسې معنیٰ [او خبره] ده کوم چې په مضاف إليه [فلانکي] کې سته لِأَنَّ هَذِهِ الْأَعْيَانَ لَا تُهْجَرُ وَلَا تُعَادَى لِذَوَاتِهَا ځکه دا ذاتونه د خپل ذات په وجه نه پرېښوول کېږي او نه د دوی سره د خپل ذات په وجه دښمني [عدوات] کېږي وَكَذَا الْعَبْدُ او همدارنګه د غلام [سره هم د خپل ذات په وجه دښمني نه کېږي] لِسُقُوطِ مَنْزِلَتِهِ ځکه چې د غلام درجه [او مرتبه] ډېره لوېدلې دی [او د دې قابل نه دی چې انسان دښمني ور سره وکړي] بَلْ لِمَعْنًى فِي مُلَّاكِهَا بلکې د دوی سره هجران او دښمنی د يو داسې سبب په وجه سره وي کوم چې د دوی په مالکانو کې وي فَتَتَقَيَّدُ الْيَمِينُ بِحَالِ قِيَامِ الْمِلْكِ نو ځکه به قسم د ملکيت د قيام [بقاء] په حالت سره مقيد کېږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْإِضَافَةُ نِسْبَةً كَالصَّدِيقِ وَالْمَرْأَةِ په خلاف د هغه صورت کله چې اضافت د يو نسبت [تعلق] پر بنياد وي لکه ملګری او ښځه لِأَنَّهُ يُعَادَى لِذَاتِهِ ځکه [په دوی کې] د هر يوه سره د هغه د ذات په وجه دښمني کېږي فَكَانَتِ الْإِضَافَةُ لِلتَّعْرِيفِ نو [په دوی کې] به دا اضافت [نسبت] د پېژندګلوۍ لپاره وَالدَّاعِي لِمَعْنًى فِي الْمُضَافِ إِلَيْهِ غَيْرُ ظَاهِرٍ او په مضاف إليه کې د قسم و طرف ته ور بلونکې معنیٰ [او سبب] څرګند نه دی لِعَدَمِ التَّعْيِينِ ځکه حالف [هغه] متعين کړی نه دی بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کې کوم چې مخکې ذکر سو [يعني د ملکيت اضافت].

**اللغات**: ﴿أَبْلَغُ﴾ د ضرب له باب څخه اسمِ تفضيل دی: زيات رسونکی. ﴿قَاطِعَةٌ﴾ د فتح مؤنث اسمِ فاعل دی: غوڅونکی (قطع کوونکی)، ختمونکی. ﴿مُلَّاك﴾ جمع د مَالِک ده. لکه طُلَّاب چې جمع د طَالِب ده: مالک، څښتن، خاوند. ﴿لَا تُعَادَى﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: دښمني کول. دښمن کېدل. عداوت کول.

**تشريح:** په مختلف فيه مسئلو كي د امام محمد رَحِمَهُ الله او د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي اضافت د پېژندګلوی (تعارف) لپاره وي، او د دې کار (تعارف) لپاره اشاره تر اضافت زياته مناسبه او اغېزمنه ده، ځکه چي په اشاره سره شرکت بالکل ختمېږي، لېکن په اضافت کي بيا هم د شرکت احتمال پاتېږي، او څرنګه چي په دې مسئله کي حالف "عَبْدَ فُلَانٍ هٰذَا" ويلي دي او اشاره يې کړې ده، نو ځکه به د اشارې اعتبار کېږي، او حالف چي کله هم د دې غلام سره خبري وکړي، نو حانث کېږي به، که څه هم دا غلام د فلانکي له ملکيت څخه وتلی وي، لکه څرنګه چي د ښځي او ملګري په مسئله کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تر تعلق او نسبت ختمېدلو وروسته هم حالف حانث کېږي.

**ولهما إلخ:** د شيخينو رَحِمَهُمَا الله د دليل حاصل دا دی چي په غلام او کور کي د نفرت او عداوت وجه د هغو ذات نه وي، بلکي د هغو مالک (فلانکی) وي، (يعني حالف د فلانکي سره د نفرت په وجه د هغه د غلام سره هم خبري نه کوي، يا د هغه کور ته هم نه داخلېږي)، لهذا تر څو چي دا شيان (کور او غلام) د فلانکي په ملکيت کي وي، نو حالف به د غلام سره په کلام کولو يا کور ته په داخلېدلو سره حانث کېږي، لېکن کله چي د فلانکي ملکيت ختم سي، نو په کلام کولو يا داخلېدلو سره به حالف نه حانث کېږي، او په ښځه او ملګري کي د عداوت وجه او بنياد په خپله ښځه او ملګری وي، او حالف دوی ته په "هٰذِهِ او هٰذَا" سره اشاره هم کړې ده، نو ځکه به د دوی ذات مقصود وي، او تر تعلق او نسبت ختمېدلو وروسته هم که حالف د دوی سره خبري وکړي، نو حانث به ګرځي (دا د شيخينو د دليل غورچاڼ او خلاصه وه، تاسي عبارت ښه په توجّه سره مطالعه کړئ!).

**بخلاف ما إذا كانت الإضافة نسبة:** د دې په خلاف د ملګري او ښځي معامله ده، نو د فلانکي سره چي د دوی کوم تعلق او نسبت دی، هغه پر نکاح او ملګرتيا مبني دی، نو ځکه به په دوی کي چي د فلان وطرف ته کوم نسبت وي هغه به د تعارف لپاره وي، او حالف په تعيين نه کولو سره دې خبري ته اشاره هم کړې ده (چي په دې سره به د حالف مراد فقط تعارف وي)، لهذا د دوی د قسم او يمين مُحرّک او داعي به خپله د دوی په ذات کي موجود وي (يعني په ښځه او ملګري کي به د عداوت وجه او بنياد په خپله ښځه او ملګری وي)، او له فلان څخه به د دوی تر تعلق او نسبت ختمېدلو وروسته هم حالف په کلام کولو سره حانث کېږي، د دې په خلاف په اول صورت کي يعني د ملکيت د اضافت په صورت کي (چي کوم غلام او کور دي، په هغه کي) د قسم داعي په مضاف إليه يعني په فلان کي دی، نو تر څو چي هغه (غلام او کور) د فلانکي په ملکيت کي وي، تر هغه وخته پوري به حالف په کلام کولو او داخلېدلو سره حانث کېږي، لېکن کله چي د هغه ملکيت ختم سي، نو بيا به حالف په دې سره نه حانث کېږي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

قَالَ: وَإِنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ صَاحِبَ هٰذَا الطَّيْلَسَانِ فرمايي: که [يو څوک] قسم واخلي چې هغه به د دې څادر [پټو] والا سره خبرې نه کوي [يعني مثلاً وايي: په الله قسم! زه به د دې کمر پټولو والا سره خبرې نه کوم] فَبَاعَهُ ثُمَّ كَلَّمَهُ او [بيا] هغه سړي خپل څادر خرڅ کړي بيا حالف د هغه سره خبرې وکړي حَنِثَ نو حالف حانث کيږي لِأَنَّ هٰذِهِ الْإِضَافَةَ لَا تَحْتَمِلُ إِلَّا التَّعْرِيفَ ځکه چې دا نسبت فقط د تعارف احتمال لري لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يُعَادَىٰ لِمَعْنًى فِي الطَّيْلَسَانِ ځکه چې د انسان سره د يو داسې معنیٰ په وجه دښمني نه کيږي کوم چې په څادر کې وي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَشَارَ إِلَيْهِ نو داسې سو لکه حالف چې د څادر والا ته اشاره کړې وي [حاصل دا چې دلته د پټو والا شخصه مراد د هغه ذات دی، ځکه چې د پټو په وجه د يو چا سره دښمني نه کيږي، نو ځکه دا نسبت فقط د تعارف او پېژندګلوی لپاره سو، او کله چې پټو والا خپل پټو خرڅ کړي او حالف خبرې ور سره وکړي، نو د هغه د ذات سره يې خبرې وکړې، نو ځکه به حانث کيږي] وَمَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ هٰذَا الشَّابَّ او که يو څوک قسم واخلي چې د دې ځوان سره به خبرې نه کوي فَكَلَّمَهُ وَقَدْ صَارَ شَيْخًا او [بيا] حالف د هغه سره د هغه د بوډاتوب [سپين ږيرتوب] په حالت کې خبرې وکړي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّ الْحُكْمَ تَعَلَّقَ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ ځکه چې حکم د مشارٌإليه سره متعلق سو إِذِ الصِّفَةُ فِي الْحَاضِرِ لَغْوٌ ځکه چې په حاضر کې صفت لغو دی وَهٰذِهِ الصِّفَةُ لَيْسَتْ بِدَاعِيَةٍ إِلَى الْيَمِينِ او دا صفت د قسم وطرف ته بلونکی هم نه دی. عَلىٰ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې دا [بحث] تېر سو. [حاصل دا چې که څوک قسم واخلي چې زه به د دې ځوان سره خبرې نه کوم، بيا هغه سپين ږيری سي، او حالف خبرې ور سره وکړي، نو نه حانث کيږي، ① ځکه چې دلته د ځوان والي صفت مراد نه دی، بلکې د چا وطرف ته چې اشاره سوې ده، د هغه ذات مراد دی. ② او بل دا چې دلته ځوانوالی د دښمنۍ بنياد دی، نو ځکه به د ځوان ذات مقصود وي، او په سپين ږيرتوب کې هم د هغه ذات موجود دی، نو ځکه به حالف د هغه سره د خبرو کولو په وجه حانث کيږي].

**اللغات:** ﴿طَيْلَسَان﴾ يو ډول حاشيه دار او ګلداره څادر (پټو) دی، ﴿شَابّ﴾ ځوان، زلمی، جمع: شَبَاب.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي، چې د هغه څه تشريح موږ په ترجمه کې ذکر کړه، او نوري تشريح ته ضرورت نسته، ځکه چې دواړې مسئلې نهايت آسانه دي او پر مخکنې دليل مبني دي.



# فَصْلٌ

دا فصل د کلام او خبرو په قسم کې د مودت ذکر کولو په بیان کې دی

**تشریح:** مخکې تر دې چې کومې مسئلې بیان سوې، د هغوی تعلق د أعیانو سره وو، او په دې فصل کې د "حلف بالکلام" په هکله هغه مسئلې بیانیږي کوم چې د مودت او زمان سره تعلق لري، او په همدغه سبب دا مسئلې په جلا (علیحده) فصل کې ذکر کیږي.

## د "حِيْنٌ" یا "زمان" قسم

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ حِينًا أَوْ زَمَانًا أَوِ الْحِينَ أَوِ الزَّمَانَ فرمایي: او که څوک قسم واخلي چې هغه به [د فلانکي سره] تر یوه حین یا یوې زمانې پورې، یا تر حین او زمانې پورې خبرې نه کوي فَهُوَ عَلَى سِتَّةِ أَشْهُرٍ نو دا قسم به پر شپږو میاشتو [محمول] وي لِأَنَّ الْحِينَ قَدْ يُرَادُ بِهِ الزَّمَانُ الْقَلِيلُ ځکه چې د حِیْن په لفظ سره کله لږ زمانه مرادیږي وَقَدْ يُرَادُ بِهِ أَرْبَعُونَ سَنَةً او کله په دې سره څلوېښت کاله [مُدّت] مرادیږي قَالَ اللهُ تَعَالَى هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ حِينٌ مِنَ الدَّهْرِ [الإنسان: ۱] الله تعالیٰ فرمایلي دي: هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ حِينٌ مِنَ الدَّهْرِ ... إلخ [په دې آیت کې د ځینې مفسرینو په نیز له "حِیْن" څخه مراد څلوېښت کاله دي] وَقَدْ يُرَادُ بِهِ سِتَّةُ أَشْهُرٍ او کله په دې سره شپږ میاشتې مرادي وي قَالَ اللهُ تَعَالَى تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ [ابراهیم: ۲۵] الله تعالیٰ فرمایلي دي: تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ... إلخ وَهَذَا هُوَ الْوَسَطُ او همدا د مینځوې درجې وخت دی فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِ نو ځکه به حِیْن د هغه وطرف ته راجع کیږي وَهَذَا لِأَنَّ الْيَسِيرَ لَا يُقْصَدُ بِالْمَنْعِ او دا ځکه چې لږ وخت په منع کېدلو سره مقصود نه وي [یعني د لږ ګړي لپاره د قسم اخیستلو او د کلا څخه د منع کېدلو اراده نه کیږي] لِوُجُودِ الِامْتِنَاعِ فِيهِ عَادَةً ځکه چې د لږ ګړي لپاره [د کلام څخه] منع کېدل خو عادتاً موجود [او جاري] دي [یعني په عامه توګه خلک په خپل مینځ کې د لږ ګړي لپاره دیو او بل سره خبرې نه کوي، همدارنګه د لږ

کړي لپاره خو يو انسان هم په خپلو خبرو کي دربږي] وَالْمُؤَبَّدُ لَا يُقْصَدُ غَالِبًا او په دې سره غالباً د ډېر وخت [څلويښتو کالو] اراده [هم] نه کيږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْأَبَدِ ځکه چي دا هم د أبد [همېشني وخت] په درجه کي دي وَلَوْ سَكَتَ عَنْهُ او که حالف دَ حِيْن د لفظ څخه چپ پاته سي [يعني که حالف په خپل قسم کي د حِيْن لفظ ذکر کړيَ نه وای] يَتَأَبَّدُ نو [هم] قسم مؤبد ګرځي [معلومه سوه چي په دې سره د حالف اراده د همېشه لپاره قسم اخيستل او امتناع عنِ الکلام نه دی. لهذا مؤبد (څلويښت کاله) هم متعين کېدلای نه سي] فَتَعَيَّنَ مَا ذَكَرْنَا نو ځکه هغه [مُدّت] متعين سو کوم چي موږ ذکر کړی [يعني شپږ مياشتي] وَكَذَا الزَّمَانُ يُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَ الْحِيْنِ همدارنګه زمانه هم د حِيْنِ په څېر استعماليږي يُقَالُ مَا رَأَيْتُكَ مُنْذُ حِيْنٍ وَمُنْذُ زَمَانٍ بِمَعْنًى [الکه څرنګه چي] مَا رأَيْتُكَ مُنْذ حِيْنٍ او مُنْذ زَمَانٍ [دواړه] په يوه معنیٰ سره ويل کيږي وَهَذَا إِذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ او دا [يعني پر شپږو مياشتو د حِيْن لفظ حمل کول] په هغه صورت کي دي کله چي [په حِيْن سره] د حالف هيڅ نيت نه وي أَمَّا إِذَا نَوَى شَيْئًا فَهُوَ عَلَى مَا نَوَى لېکن که هغه [په دې سره] ديو [معلوم] مودت نيت کړی وي نو قسم به د هغه د نيت مطابق وي لِأَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ ځکه چي حالف د خپل کلام د حقيقي معنیٰ نيت وکړی وَكَذٰلِكَ الدَّهْرُ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دَهْر هم داسي دی [يعني د حِيْن په څېر شپږ مياشتي به څني مراديږي] وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ ◆: الدَّهْرُ لَا أَدْرِيْ مَا هُوَ؟ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي ما ته معلومه نه ده چي د دَهْر مودت څومره دی ؟ وَهَذَا الِاخْتِلَافُ فِي الْمُنَكَّرِ او دا اختلاف په دَهْر نکره کي دی وَهُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده أَمَّا الْمُعَرَّفُ بِالْأَلِفِ وَاللَّامِ يُرَادُ بِهِ الْأَبَدُ عُرْفًا او کوم چي معرّف باللام [الدّهر] دی. نو په هغه سره په عرف کي أبد [او همېشتوب] مراديږي لَهُمَا: أَنَّ دَهْرًا يُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَ الْحِيْنِ وَالزَّمَانِ د صاحبينو دليل دا دی: چي دَهْر [نکره] د حِيْن او زمان په څېر استعماليږي يُقَالُ مَا رَأَيْتُكَ مُنْذُ حِيْنٍ وَمُنْذُ

◆ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله : وأما الدهر المنكر، فقال أبو حنيفة رَحِمَهُ الله : لا أدري ما هو، وقالا: هو كالحين، وهذا هو الصحيح. (البحر الرائق ج:۴، ص:۳۳۹)، وكذا في الدر المختار (ج:۳، ص:۱۱۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۴]

دَهْرٍ بِمَعْنًى [لکه څرنګه چې] مَا رَأَيْتُکَ مُنْذُ حِيْنٍ او مُنْذُ دَهْرٍ [دواړه] په يوه معنىٰ سره ويل کيږي وَأَبُوْحَنِيفَةَ تَوَقَّفَ فِي تَقْدِيْرِهٖ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې په اندازه بيانولو کې توقف کړی دی لِأَنَّ اللُّغَاتِ لَا تُدْرَکُ قِيَاسًا ځکه چې په قياس سره لغات معلومېدای نه سي وَالْعُرْفُ لَمْ يُعْرَفْ اسْتِمْرَارُهٗ او [د دَهْر (نکره) په باره کې] د عرف استمرار پېژندل سوی نه دی [يعني په عرف کې د دې لفظ لپاره يو معلوم مودت پېژندل سوی نه دی] لِاخْتِلَافٍ فِي الْاِسْتِعْمَالِ ځکه چې [د دې لفظ] په استعمال کې اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿حِيْن﴾ مودت، وخت. ﴿مُؤَبَّد﴾ همېشنی، همېشه والا، أبدي. ﴿دَهْر﴾ زمانه، وخت. ﴿لَا أَدْرِيْ﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صيغه ده: زه په خبر نه يم، ما ته معلومه نه ده (نه يې پېژنم). ﴿لَا تُـدْرَک﴾ د افعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: فهم او إدراک کول، ځان ته معلومول. ﴿اِسْتِمْرَار﴾ د استفعال مصدر دی: پر يوه حالت باقي پاتېدل، همېشه پاتېدل (تلوالی).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک داسې قسم واخلي: "وَاللهِ! لَا أُکَلِّمُهٗ حِيْنًا يا زَمَانًا. يا وواېي "لَا أُکَلِّمُهُ الْحِيْنَ يا الزَّمَانَ" (په الله قسم! زه به د فلانکي سره يو حين يا يوه زمانه خبري نه کوم). نو حِيْنَ او زَمَان که نکره وي يا الْحِيْن او الزَّمَان معرفه وي، د دې څلورو سره لفظونو إطلاق پر شپږو مياشتو کيږي، نو په دې څلورو سره صورتونو کې به د حالف قسم پر شپږو مياشتو محمول وي، او د هغه د قسم حدّ به شپږ مياشتې وي.

ځکه چې د حِيْن په لفظ سره کله لږ مودت مراديږي، لکه د قرآن په دې آيت "فَسُبْحَانَ اللهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ" کې چې له حِيْن څخه معمولي مودت يعني د لمانځه وخت مراد دی (او کله په دې سره يو ګړی او يوه ثانيه مراديږي). او کله په حِيْن سره زيات (اوږد) مودت مراديږي. لکه په "هَلْ أَتٰى عَلَى الْإِنْسَانِ حِيْنٌ مِنَ الدَّهْرِ" کې چې کوم حِيْن دی، له هغه څخه د ځينو مفسرينو په قول د څلوېښتو کالو مودت مراد دی، او کله په دې لفظ (حِيْن) سره مېنځوی (درميانه) مودت يعني شپږ مياشتې مراديږي، لکه په "تُؤْتِيْ أُکُلَهَا کُلَّ حِيْنٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا" کې چې کوم حِيْن دی، له هغه څخه د شپږو مياشتو مودت مراد دی. او څرنګه چې دا يعني د شپږو مياشتو والا مودت د قليل او کثير په مېنځ کې (مېنځوی) مودت دی، نو ځکه به د حالف قسم پر همدغه مودت حمل کيږي.

په دې هكله دويم دليل دا دى چې په داسې قسم اخيستلو كې د حالف مقصد د مېنځوى درجې مودت وي، ځكه چې په معمولې مودت كې خو عام خلك هم ديوه او بل سره خبرې نه كوي. بلكې كله نا كله د دوو خوړو ملګرو د كلام او ملاقات په مينځ كې څو ورځې وقفه او فاصله راسي، نو ځكه لږ او قليل مودت مرادېداى نه سي، او په داسې قسم سره د حالف مقصد كثير مودت هم نه وي، ځكه چې د څلوېښتو كالو وقفه د مؤبد (همېشني) قسم په درجه كې ده، او كه حالف د حِيْن لفظ ذكر كړي نه واى، نو هم د هغه قسم مؤبد ګرځېداى او د همېشه لپاره كلام حرامېدى، لهذا د حِيْن يا زمان لفظ ذكر كول د دې خبرې دليل دى چې د حالف مقصد د همېشه لپاره قسم اخيستل او كلام حرامول نه دي، نو په دې وجه دلته أبد او اكثر مودت هم مرادېدلاى نه سي، نو ځكه به مېنځوى مودت (شپږ مياشتې) مرادېږي، او دا قسم به تر شپږو مياشتو پوره مؤثر او اغېزمن وي.

وكذا الزمان إلخ: فرمايي: كوم حكم چې د حِيْنًا يا الحِيْن دى، هغه حكم د زَمَانًا يا الزَّمَان هم دى، ځكه چې زَمَان هم د حِيْن په څېر استعمالېږي، لكه څرنګه چې مَا رَأَيْتُكَ مُنْذُ حِيْن او مَا رَيْتُكَ مُنْذ زَمَانٍ دواړه په يوه معنىٰ سره استعمالېږي، او په دواړو كې هيڅ فرق نسته.

وهذا إلخ: فرمايي چې له حِيْن او زمان څخه شپږ مياشتې په هغه صورت كې مرادېږي كله چې حالف هيڅ نيت كړى نه وي، لېكن كه حالف په حِيْن او زمان سره ديو معلوم مودت نيت كړى وي، نو هغه نيت (او ټاكلى مودت) به مرادېږي، او تر هغه وخته پورې به قسم مؤثر وي، ځكه چې د حالف كلام د دې معنىٰ احتمال هم لري، او هغه د حالف د كلام حقيقي معنىٰ ده، نو ځكه هغه مرادول او د هغې نيت كول هم صحيح او جائز دي.

وكذلك الدهر إلخ: فرمايي: كوم حكم چې د حِيْن او زمان دى، هغه حكم د صاحبينو په نېز د دَهْر هم دى. يعنې كه حالف لَا أُكَلِّمُ فُلَانًا الدَّهْرَ يا دَهْرًا ووايي، نو د صاحبينو په نېز له دې څخه شپږ مياشتې مرادېږي، لېكن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه هيڅ مودت نه مرادېږي، د دې حضراتو دغه اختلاف په دَهْرًا نكره كې دى، لېكن كه الدَّهر معرفه وي، نو په دې كې د دوى هيڅ اختلاف نسته او له معرفه (الدَّهر) څخه بالاتفاق په عُرف كې أبديت او همېشتوب مرادېږي.

په مختلف فيه مسئله كې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چې د حِيْن او زمان په څېر دَهْرًا هم په يوه معنىٰ سره استعمالېږي. لهذا كم حكم چې د حِيْنًا او زَمَانًا وي، هغه حكم به د دَهْرًا هم وي.

**وَ أَبُوْحَنِيْفَةَ إِلخ:** امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي لغات په قياس سره نه سي معلومول کېدای. او نکره دَهْرًا د معرفه الدَّهر په څېر ديوي معنیٰ لپاره نه استعماليږي، او په عرف کي د نکره دَهْرًا لپاره هيڅ مطلب او هيڅ مودت مشهور نه دی، نو ځکه غوره دا ده چي د دَهْرًا د مودت په متعينولو کي توقف وسي، او په دې هکله بايد سکوت اختيار سي او په قياس، ګومان او خيال سره بايد د دَهْرًا لپاره هيڅ معنیٰ او مودت متعين نه کړی سي.

**فايده:** امام صاحب رَحِمَهُ الله په څوارلسو (۱۴) مسئلو کي توقف کړی دی چي له هغو څخه يوه د "دَهْر" مسئله ده. (رد المحتار ج:۳، ص:۱۱۸)

## د "يو څو ورځو" يا "ډيرو ورځو" قسم

وَلَوْحَلَفَ لَايُكَلِّمُهُ أَيَّامًا او که [يو څوک] قسم واخلي چي هغه به [د فلانکي سره] څو ورځي خبري نه کوي فَهُوَعَلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ نو دا قسم به پر درېو ورځو [محمول] وي لِأَنَّهُ اِسْمُ جَمْعٍ ذُكِرَ مُنَكَّرًا ځکه أَيَّام اسمِ جمع دی چي هغه [دلته] نکره ذکر سوی دی فَيَتَنَاوَلُ أَقَلَّ الْجَمْعِ وَهُوَالثَّلَاثُ نو د جمع کم عدد ته به شامل وي، او د جمع کم عدد درې دی وَلَوْحَلَفَ لَايُكَلِّمُهُ الْأَيَّامَ او که هغه [داسي] قسم واخلي چي لَا يُكَلِّمُهُ الْأَيَّام فَهُوَعَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا قسم پر لسو ورځو [محمول] دی وَقَالَا❁: عَلَى أَيَّامِ الْأُسْبُوعِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د اوونۍ [هفتې] پر ورځو [محمول] دی وَلَوْحَلَفَ لَايُكَلِّمُهُ الشُّهُورَ او که هغه [داسي] قسم واخلي چي لَا يُكَلِّمُهُ الشُّهُوْر فَهُوَعَلَى عَشَرَةِ أَشْهُرٍ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا قسم پر لسو مياشتو [محمول او مشتمل] دی وَعِنْدَهُمَا عَلَى اثْنَيْ عَشَرَ شَهْرًا او د صاحبينو په نيز پر دوولسو مياشتو [محمول] دی لِأَنَّ اللَّامَ لِلْمَعْهُودِ ځکه چي لام د متعين [مطلب او مقدار] لپاره وي وَهُوَمَا ذَكَرْنَا او متعين [مطلب] هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی [يعني د هفتې ورځي او دوولس

❁ القول الراجح: قول أبى حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة داما افندي رَحِمَهُ الله: وإن عرّف أى قال: لا أكلمه الأيام أو الشهور أو السنين فعلى عشرة كأيام كثيرة؛ لأنه جمع معرف فينصرف إلى أقصى ما يذكر من الجمع وهو العشرة عند الإمام وهو الصحيح (مجمع الأنهر ج:۱، ص:۵۷۷)، وكذا فى رد المحتار (ج:۳، ص:۱۱۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۵]

مياشتي، ځکه چي خلک له أيام او الشهور څخه همدغه مطلب اخلي] لِأَنَّهٗ يَدُوْرُ عَلَيْهَا ځکه چي د کال مدار پر همدغه [مقدار] دی [يعني کالي پر همدې دوولسو مياشتو ګرځي راګرځي. همدارنګه هفته (اونۍ) پر اوو ورځو ګرځي راګرځي] وَلَهٗ: أَنَّهٗ جَمْعٌ مُعَرَّفٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا جمع معرف باللام ده فَيَنْصَرِفُ إِلٰى أَقْصٰى مَا يُذْكَرُ بِلَفْظِ الْجَمْعِ نو د جمع د لفظ په ذکر کولو سره چي کوم آخري عدد مراديږي دا لفظ [الشهور] به د هغه وطرف ته راجع کيږي وَذٰلِكَ عَشَرَةٌ او هغه عدد لس دی وَكَذَا الْجَوَابُ عِنْدَهٗ فِي الْجُمَعِ وَالسِّنِيْنَ او په جُمَع [جمعه ګانو] او سِنِيْن [کلونو] کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم دغه حکم دی وَعِنْدَهُمَا يَنْصَرِفُ إِلَى الْعُمُرِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دوی قسم ټوله عمر ته راجع کيږي [يعني د صاحبينو په نېز په جُمَع او سِنِين کي قسم د ټوله عمر لپاره ثابتيږي] لِأَنَّهٗ لَا مَعْهُوْدَ دُوْنَهٗ ځکه چي [د داسي لفظونو لپاره] تر دې کم [مقدار] متعين نه دی وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهٖ: إِنْ خَدَمْتَنِيْ أَيَّامًا كَثِيْرَةً او څوک چي خپل غلام ته ووايي: که چيري ته زما ډيري ورځي خدمت وکړي فَأَنْتَ حُرٌّ نو ته آزاد يې فَالْأَيَّامُ الْكَثِيْرَةُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ عَشَرَةُ أَيَّامٍ ۞ نو ډيري ورځي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز لس ورځي دي لِأَنَّهٗ أَكْثَرُ مَا يَتَنَاوَلُهٗ اِسْمُ الْأَيَّامِ ځکه چي دا هغه أکثر مقدار دی چي هغه ته د أيام لفظ شامليږي وَقَالَا: سَبْعَةُ أَيَّامٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي [هغه] اووه ورځي دي لِأَنَّ مَا زَادَ عَلَيْهَا تَكْرَارٌ ځکه چي له اوو ورځو څخه په زياتو ورځو کي تکرار دی وَقِيْلَ: لَوْ كَانَ الْيَمِيْنُ بِالْفَارِسِيَّةِ او ويل سوي دي: که چيري قسم په فارسي ژبه سره وي يَنْصَرِفُ إِلٰى سَبْعَةِ أَيَّامٍ نو هغه [د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم] د اوو ورځو وطرف ته ګرځول کيږي لِأَنَّهٗ يُذْكَرُ فِيْهَا بِلَفْظِ الْفَرْدِ دُوْنَ الْجَمْعِ ځکه چي په فارسي ژبه کي د "رُوز" لفظ مفرد ذکر کيږي، نه جمع.

**اللغات:** ﴿أُسْبُوْع﴾ اونۍ، هفته، اووه ورځي. ﴿مَعْهُوْد﴾ متعين، معروف، معلوم (له مخکي څخه په ذهنو کي موجود). ﴿أَقْصٰى﴾ انتهائي (آخري)، ډېر لري.

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:١، ص:٣٤٠)، وكذا في الدر المختار (ج:٣، ص:١١٩). [القول الراجح ج:١، ص:٤٢٦]

**تشريح:** په دې عبارت کې د يَوْم، شَهر او داسې نورو په هکله د قسم څو مسئلې ذکر سوې دي: تاسې ورته ګورئ!:

(١)... که يو څوک أَيَّامًا نکره ذکر کړي او داسې قسم واخلي: وَاللهِ! لَا أُكَلِّمُ فُلَانًا أَيَّامًا، نو په دې سره بالاتفاق درې ورځې مراديږي، او تر دريو ورځو پورې به دا قسم مؤثر وي؛ دليل دا دی چې أَيَّامًا اسم جمع دی او نکره دی، لهذا دا به د جمع أقل فرد ته شامل وي، او د جمع أقل فرد "درې" (ثَلَاث) دی، نو ځکه به له أَيَّامًا نکره څخه درې ورځې قسم مراديږي.

(٢)... که دا قسم واخلي: "وَاللهِ! لَا أُكَلِّمُ فُلَانًا الْأَيَّامَ"، يعني الْأَيَّام په الف لام سره معرفه ذکر کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه لس (١٠) ورځې مراديږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز له دې څخه اووه (٧) ورځې مراديږي، يعني دا قسم به تر اوو ورځو پورې مؤثر وي. (٣)... او که وايي "وَالله! لَا أُكَلِّمُهُ الشُّهُوْر"، يعني الشُّهُوْر په الف لام سره معرفه ذکر کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه لس (١٠) مياشتې مراديږي، او د صاحبينو په نېز دوولس (١٢) مياشتې ځني مراديږي.

**د صاحبينو دليل:** په دواړو مسئلو کې د صاحبينو دليل دا دی چې په الْأَيَّام او الشُّهُوْر کې چې کوم د معرفې الف لام ذکر سوی دی، دا الف لام د متعين مقدار وطرف ته د اشارې کولو لپاره او د متعين مقدار د مرادولو لپاره راځي، او په الْأَيَّام کې اووه (٧) ورځې متعين دي او په الشُّهُوْر کې دوولس (١٢) مياشتې متعين دي، ځکه چې ورځې ټوله أووه دي (يعني شنبه، يکشنبه... ټولې اووه ورځې دي)، او مياشتې ټوله دوولس دي، نو ځکه به له الْأَيَّام څخه اووه ورځې او له الشُّهُوْر څخه دوولس مياشتې مراديږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې الْأَيَّام او الشُّهُوْر دواړي د جمع صيغې دي او دواړې په الف لام سره معرفه ده (يعني دواړي معرف باللام جمع دي). لهذا له دې څخه به هغه مقدار مرايږي کوم چې د جمع انتهائي او آخري مقدار وي. او په عرف کې د دې انتهائي مقدار لس (١٠) دی (يعني په عرف کې د دې جمع د انتهائي مقدار لپاره د لس (١٠) عدد متعين دی. او تر لس عدده پوري خلک د جمع صيغه استعمالوي). لکه څرنګه چې خلک وايي: "ثَلَاثَةَ أَيَّام... خَمْسَةَ أَيَّام... عَشَرَةَ أَيَّام". يعنې له دريو څخه تر لسو پورې خلک أَيَّام جمع ذکر کوي. او تر لسو وروسته أَيَّام جمع نه ذکر کوي. بلکې

هغه مفرد ذکر وي او وايي: "أَحَدَ عَشَرَ يَوْمًا... خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا... إلخ"، له دې څخه معلومه سوه چې د أَيَّام آخري مقدار په عرف کې لس (١٠) دی، نو ځکه به په دواړو صورتونو کې (د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز) همدغه مقدار مرادیږي.

**وكذا الجواب إلخ:** فرمايي که يو څوک په خپل قسم کې جُمُعَة د جمع په صيغه سره الجُمَع ذکر کړي يا سَنَة د جمع په صيغه سره السِّنِيْن ذکر کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه لس جُمعې او لس کاله مرادیږي، ځکه چې د خلګو په عرف او خبرو اترو کې له جمع څخه د لسو (عَشَرَة) مقدار مرادیږي، او د صاحبينو په نېز له دې څخه ټوله ژوند مرادیږي، او دا قسم به د ټوله عمر لپاره وي، ځکه چې د داسي جمع لپاره له دې څخه کم بل معهود او متعين مقدار نسته (لهذا که حالف په ټوله عمر کې د فلان سره خبري وکړي، نو د صاحبينو په نېز حانث کيږي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تر لسو جمعو يا لسو کالو وروسته نه حانث کيږي).

(۴)... که يو څوک خپل غلام ته ووايي: إِنْ خَدَمْتَنِيْ أَيَّامًا كَثِيْرَةً فَأَنْتَ حُرٌّ، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له أَيَّامًا كَثِيْرَة څخه لاس ورځي مرادیږي، ځکه چې لس هغه أکثر مقدار دی کوم ته چې د أيَّام لفظ شامليږي، او د صاحبينو په نېز له دې څخه اووه (۷) ورځي مرادیږي، ځکه چې اوونۍ (هفته) ټوله اووه ورځي ده، او له يوې اونۍ (هفتې) څخه وروسته بله اونۍ (هفته) شروع کيږي، يعني تر يوې اونۍ وروسته بيرته هغه اونۍ تکرارېږي (مثلاً د جمعې له ورځي څخه اووه ورځي وروسته بله د جمعې ورځ راګرځي، همدارنګه له شنبې څخه وروسته بله شنبه راګرځي). لنډه دا چې ټوله ورځي اووه دي، نو ځکه به اووه ورځي مرادیږي، او د اوو ورځو په خدمت سره به غلام آزادیږي.

هـا! کـه هغـه پـه فارسـي ژبـه سـره قسـم واخلـي او داسـي ووايـي "اگر مرا روز بسيار خدمت کنی تو آزاد شدی"، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم له دې څخه اووه ورځي مرادیږي: ځکه چې په فارسي ژبه کې د "روز" لفظ مفرد استعماليږي، د عربي په څير جمع نه استعماليږي، نو ځکه به په فارسي ژبه کې له دې لفظ "بسيار روز" څخه د اونۍ اووه ورځي مرادیږي، او د اوو (۷) ورځو په خدمت سره به غلام آزادیږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْعِتْقِ وَالطَّلَاقِ

(دا) باب د آزادۍ او طلاق په هکله د قسم اخيستلو (په بيان کې) دی

**تشريح**: له بيع او شراء څخه د دې باب د مخکې کولو وجه دا ده چې د بيع او شراء په نسبت په عتق او طلاق کې يمين کثيرُ الوقوع دی. او کوم شی چې کثيرُ الوقوع وي. هغه ته أهميت ورکول کيږي او مخکې بيانول کيږي. نو په دې وجه صاحب د هدايې دا باب مخکې بيان کړی دی. (عنايه)

## عتق يا طلاق د هلک پر ولادت معلق کول

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: إِذَا وَلَدْتِ وَلَدًا فَأَنْتِ طَالِقٌ او څوک چې خپلې ښځې ته ووايي: که چيرې ته هلک وزيږوې. نو ته [پر ما] طلاقه يې فَوَلَدَتْ وَلَدًا مَيِّتًا بيا هغې مړ هلک وزيږوی طَلُقَتْ نو هغه طلاقيږي وَكَذٰلِكَ إِذَا قَالَ لِأَمَتِهِ: إِذَا وَلَدْتِ وَلَدًا فَأَنْتِ حُرَّةٌ او همدارنګه که هغه خپلې مينځې ته ووايي: که چيرې ته هلک وزيږوې. نو ته آزاده يې [بيا مينځه مړ هلک وزيږوي. نو مينځه هم آزاديږي] لِأَنَّ الْمَوْجُودَ مَوْلُودٌ ځکه چې دغه موجود بچی [حقيقتاً] پيدا سوی دی [يعني دغه مړ هلک هم په حقيقت کې مولود شمارل کيږي. داسې نه ده چې هغه ګرسره مولود نه دی] فَيَكُونُ وَلَدًا حَقِيقَةً نو ځکه به هغه حقيقتاً وَلَد وي وَيُسَمّٰى بِهِ فِي الْعُرْفِ او په عرف کې [هم] هغه ته وَلَد ويل کيږي وَيُعْتَبَرُ وَلَدًا فِي الشَّرْعِ او په شريعت کې هم د وَلَد اعتبار ورکول کيږي حَتّٰى تَنْقَضِيَ بِهِ الْعِدَّةُ تر دې چې په هغه سره عدت پوره کيږي وَالدَّمُ بَعْدَهُ نِفَاسٌ او تر هغه وروسته راتلونکې وينه د نفاس وينه ده وَأُمُّهُ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ او د هغه مور د مالک اُمِ ولد ده فَتَحَقَّقَ الشَّرْطُ نو د طلاق او عتق [شرط ثابت [او موجود] سو وَهُوَ وِلَادَةُ الْوَلَدِ او هغه د هلک ولادت [او زيږول] دي انو ځکه به ښځه طلاقيږي. او مينځه به آزاديږي] وَلَوْ قَالَ: إِذَا وَلَدْتِ وَلَدًا فَهُوَ حُرٌّ او که [هغه خپلې مينځې ته] ووايي: کله چې ته هلک وزيږوې. نو هغه آزاد دی فَوَلَدَتْ وَلَدًا مَيِّتًا او هغې مړ هلک وزيږوی ثُمَّ

آخَرَ حَيًّا تر هغه وروسته یې ژوندی هلک وزېږوی عَتَقَ الْحَيُّ وَحْدَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ✿ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز یوازې ژوندی هلک آزادیږي وَقَالَا: لَا يُعْتَقُ وَاحِدٌ مِنْهُمَا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې له دوی څخه یو هلک [هم] نه آزادیږي [نه ژوندی هلک. او نه مړ هلک] لِأَنَّ الشَّرْطَ قَدْ تَحَقَّقَ بِوِلَادَةِ الْمَيِّتِ عَلَى مَا بَيَّنَّا ځکه چې د مړ هلک په پیدا کېدلو سره شرط پوره سو. لکه [اوس] چې مونږ بیان کړه فَيَنْحَلُّ الْيَمِينُ لَا إِلَى جَزَاءٍ نو قسم به له جزاء څخه بغیر واقع سي لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لِلْحُرِّيَّةِ ځکه چې مړ بچی د حُرِّيت [او آزادېدلو] محل نه دی وَهِيَ الْجَزَاءُ او همدغه حُرِّيت جزاء ده وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ مُطْلَقَ اسْمِ الْوَلَدِ مُقَيَّدٌ بِوَصْفِ الْحَيَاةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې مطلق د وَلَد نوم د ژوند په وصف سره مقید دی [یعني له مطلق وَلَد څخه ذلته ژوندی وَلَد مراد دی] لِأَنَّهُ قَصَدَ إِثْبَاتَ الْحُرِّيَّةِ جَزَاءً ځکه چې حالف د جزاء په توګه د هغه د حریت ثابتولو اراده کړې ده وَهِيَ قُوَّةٌ حُكْمِيَّةٌ تَظْهَرُ فِي دَفْعِ تَسَلُّطِ الْغَيْرِ او حریت داسي حکمي [او شرعي] قوت دی چې د غیر [مالک] د تسلط په دفع کولو کي ښکاره کیږي [یعني آزادي یو داسي شرعي قوت کوم چې د بل چا (مالک) تسلط دفع کوي] وَلَا تَثْبُتُ فِي الْمَيِّتِ [لیکن] په مړه بچي کي دا قوت ثابتېدای نه سي فَيَتَقَيَّدُ بِوَصْفِ الْحَيَاةِ نو ځکه به دا [اسمُ الولد] د ژوند په وصف سره متّصف کیږي [یعني نو ځکه به له وَلَد څخه ژوندی وَلَد مراد وي] فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: إِذَا وَلَدْتِ وَلَدًا حَيًّا نو [د حالف کلام] به داسي وي لکه هغه چې [دا یې] ویلي وي: کله چې ته ژوندی هلک وزېږوې [نو ته آزاده یې] بِخِلَافِ جَزَاءِ الطَّلَاقِ وَحُرِّيَّةِ الْأُمِّ په خلاف د طلاق او د اُم ولد د حُرِّیت د جزاء لِأَنَّهُ لَا يَصْلُحُ مُقَيِّدًا؛ ځکه چې دا جزاء مقیّد جوړېدلو صلاحیت نه لري [یعني د مقیّد جوړېدلو تقاضا نه کوي].

**اللغات:** ﴿تَنْقَضِيْ﴾ د انفعال مضارع ده: ختمېدل. پوره کېدل. ﴿عَتَقَ﴾ د ضرب ماضي ده: آزادېدل. ﴿حُرِّيَّة﴾ آزادي. ﴿إِثْبَات﴾ د افعال مصدر دی: ثابتول.

**تشریح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي:

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۲۳). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۲۷]

(۱)... که يو سړی خپلې ښځې ته ووايي: "که چيرې تا هلک وزېږوی (يعنې که چيرې ستا څخه نر بچی پيدا سو. نو ته پر ما طلاقه يې"، يا خپلې مينځې ته ووايي: "که چيرې تا هلک وزېږوی، نو ته آزاده يې" بيا ښځې يا مينځې مړ هلک وزېږوی (يعنې هلک مړ پيدا سو)، نو ښځه طلاقيږي، او مينځه آزاديږي ځکه چې شرط د هلک زېږول (ولادت) وو، او هغه موجود سو. او پاته سوه د هلک د ژوند يا مرګ مسئله نو دا په هلک کې يو وصف دی، او وصف مشروط نه وو (يعنې دې سړي د وژند او مرګ شرط لګولی نه وو، فقط د هلک شرط يې لګولی وو)، نو ځکه به د مړه هلک په پيدا کېدلو سره هم شرط ثابتيږي، ځکه چې دا مړ هلک په حقيقت کې هم وَلَد او بچی دی، او په عرف کې هم هغه ته وَلَد وايي، او شريعت هم هغه وَلَد شمارلی دی، همدا وجه ده چې د هغه په ولادت سره د مور عدت پوره کيږي، او د هغه تر ولادت وروسته راتلونکي وينې ته د نفاس وينه وايي، او مينځه د مړه بچي په زېږولو سره د خپل مالک اُمِ ولد ګرځي، لهذا کله چې په دې ټولو حوالو سره د دې هلک ولديّت (بچی کېدل) تامّ او بشپړ دی، نو ښکاره خبره ده چې اوس به هغه شی هم ثابتيږي کوم چې د دې شرط (مړه بچي) جزاء ده، چې هغه طلاق او آزادي ده.

(۲)... که مالک خپلې مينځې ته ووايي: "که چيرې ته هلک وزېږوې، نو هغه هلک آزاد دی"، بيا دا مينځه له يو حمل څخه دوه هلکان وزېږوي، او په هغو کې يو مړ وي، او بل ژوندی وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ژوندی هلک آزاديږي، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې يو هلک هم نه آزاديږي، ځکه چې شرط د مړه بچي په پيدا کېدلو سره ثابت سو، او څرنګه چې مړ بچی د حُريت (آزادۍ) أهل نه دی، نو ځکه پر هغه آزادي واقع کېدای نه سي، او د دويم بچي سره شرط متعلق نه سو، او قسم له جزاء څخه بغير واقع سو، نو ځکه به قسم باطليږي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې په دې مسئله کې د وَلَد لفظ مطلق دی، لېکن دلالةُ الحال ته او د حالف قول ته په کتلو سره په هغه کې د ژوند وصف (حيات) مقصود دی، ځکه چې حالف په هغه بچي کې د حُريّت او آزادۍ اثبات جزاء ګرځولې ده، او جزاء (آزادي) يو شرعي قوت دی چې هغه په يو محل کې ثابتيږي او له هغه محل څخه د غَير تسلّط ليري کوي، او ښکاره خبره دا چې دا قوت په ژوندي هلک کې شامليږي، په مړه هلک کې نه ثابتيږي، نو ځکه د حالف په کلام او مقصد کې په غور کولو سره په هغه بچي کې د ژوند وصف مقصود او ملحوظ دی، لهذا کوم بچی چې ژوندی وي، هغه به آزاديږي، او دا به داسې وي لکه مالک چې إِذَا وَلَدْتِ حَيًّا ويلي وي، او ښکاره خبره ده چې کله مالک د حَيًّا (ژوندي بچي) قيد لګولی وي، نو ژوندی بچی به آزاديږي، همداسې به دلته هم ژوندی بچی آزاديږي.

د دې په خلاف په اوله مسئله کې چې کومه جزاء ده. هغه د ښځې طلاق دی. یا د مینځې حُریَت دی. او دا دواړه شیان د شرط په موجودېدلو سره یعني د بچي (هلک) په ولادت سره موجودیږي. هغه که بچی ژوندی وي یا مړ وي. ځکه چې په هغه مسئله کې د بچي د ژوند یا مرګ سره د جزاء هیڅ تعلق نسته.

## که یو څوک ووایي چې زما اول یا آخري غلام آزاد دی؟ (حکم او اختلاف)

وَإِذَا قَالَ: أَوَّلُ عَبْدٍ أَشْتَرِيهِ فَهُوَ حُرٌّ او که [یو څوک] ووایي: کوم غلام چې اول زه رانیسم. نو هغه آزاد دی فَاشْتَرَى عَبْدًا بیا هغه یو غلام رانیسي عَتَقَ نو هغه آزادیږي لِأَنَّ الْأَوَّلَ اسْمٌ لِفَرْدٍ سَابِقٍ ځکه چې "اول" مخکني فرد ته وایي فَإِنِ اشْتَرَى عَبْدَيْنِ مَعًا او که چیري هغه دوه غلامان یو ځای رانیسي ثُمَّ آخَرَ بیا بل غلام رانیسي لَمْ يُعْتَقْ وَاحِدٌ مِنْهُمْ نو له دوی څخه یو غلام [هم] نه آزادیږي لِانْعِدَامِ التَّفَرُّدِ فِي الْأَوَّلَيْنِ وَالسَّبَقِ فِي الثَّالِثِ ځکه چې په اولو دوو غلامانو کې یوازي والي [فرد والی] نسته او په دریم غلام کې مخکې والي نسته فَانْعَدَمَتِ الْأَوَّلِيَّةُ نو ځکه اول والي معدوم سو [یعني په هغه کې اول والي ثابت نه سو. نو ځکه به یو غلام هم نه آزادیږي] وَإِنْ قَالَ: أَوَّلُ عَبْدٍ أَشْتَرِيهِ وَحْدَهُ فَهُوَ حُرٌّ او که ووایي: کوم غلام چې زه اول یوازې رانیسم. نو هغه آزاد دی عَتَقَ الثَّالِثُ نو [په دې صورت کې] دریم غلام آزادیږي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّفَرُّدُ فِي حَالَةِ الشِّرَاءِ ځکه چې په دې جملې سره د شراء په حالت کې تفرّد مرادیږي لِأَنَّ وَحْدَهُ لِلْحَالِ لُغَةً ځکه چې په لغت کې وَحْدَهُ د حال لپاره ده [یعني په دې لفظ "وحدهٗ" سره د رانیولو په حال کې یوازي والي مرادیږي] وَالثَّالِثُ سَابِقٌ فِي هٰذَا الْوَصْفِ او دریم غلام په دې صفت [تفرّد] کې مخکې دی وَإِنْ قَالَ: آخِرُ عَبْدٍ أَشْتَرِيهِ فَهُوَ حُرٌّ او که هغه ووایي: کوم غلام چې زه آخري رانیسم. نو هغه آزاد دی فَاشْتَرَى عَبْدًا ثُمَّ مَاتَ بیا دا سړی یو غلام رانیسي او [بیا دا سړی] مړ سي لَمْ يُعْتَقْ نو هغه غلام نه آزادیږي لِأَنَّ الْآخِرَ اسْمٌ لِفَرْدٍ لَاحِقٍ ځکه چې آخر وروستني [آخریني] فرد ته وایي وَلَا سَابِقَ لَهُ او [دلته] تر هغه مخکنی غلام نسته [یعني تر دې غلام مخکې بل هیڅ غلام نسته چې دا غلام وروسته او آخر وګرځي] فَلَا يَكُونُ لَاحِقًا نو ځکه به وروستنی [آخرینی] نه وي وَلَوِ اشْتَرَى عَبْدًا ثُمَّ عَبْدًا ثُمَّ مَاتَ او که دا سړی یو غلام رانیسي بیا [بل]

غلام رانيسي بيا مړ سي عَتَقَ الْآخَرُ نو دا بل ادويم اغلام آزاديږي لِأَنَّهُ فَرْدٌ لَاحِقٌ ځکه چې دا غلام وروستنى اآخرينى افرد دى فَاتَّصَفَ بِالْآخِرِيَّةِ نو ځکه به دا غلام د آخر والي په وصف سره متصف وي وَيُعْتَقُ يَوْمَ اشْتَرَاهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ● حَتَّى يُعْتَبَرَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دا غلام په هغه ورځ آزاديږي په کومه ورځ چې مالک هغه رانيولى وي، تر دې چې اد مالک اله ټوله مال څخه به د هغه د آزادى او عتق ا اعتبار کيږي ايعني د مړه سوي مالک له ټوله مال څخه به آزاديږي ا وَقَالَا: يُعْتَقُ يَوْمَ مَاتَ حَتَّى يُعْتَبَرَ مِنَ الثُّلُثِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په کومه ورځ مالک مړ سي په هغه ورځ به آزاديږي، تر دې چې اد مالک ا د مال له دريمې حصې څخه به د هغه د آزادى اعتبار کيږي لِأَنَّ الْآخِرِيَّةَ لَا تَثْبُتُ إِلَّا بِعَدَمِ شِرَاءِ غَيْرِهِ بَعْدَهُ ځکه چې د هغه په حق کې آخر والي هغه وخت ثابتيږي کله چې تر هغه وروسته بل غلام رانيول سوى نه وي وَذٰلِكَ يَتَحَقَّقُ بِالْمَوْتِ ۔ او دا "نه رانيول" د مالک په مرګ سره ثابتيږي فَكَانَ الشَّرْطُ مُتَحَقِّقًا عِنْدَ الْمَوْتِ نو د اآزادى ا شرط به هم د مالک د مرګ په وخت کې ثابتيږي فَيَقْتَصِرُ عَلَيْهِ او آزادي به اد هغه ا پر منحصر کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْمَوْتَ مُعَرِّفٌ دامام صاحب دليل دا دى: چې اد مالک ا په مرګ سره دا معلومه سوه چې همدا ادويم رانيول سوى غلام اآخري غلام دى فَأَمَّا اتِّصَافُهُ بِالْآخِرِيَّةِ فَمِنْ وَقْتِ الشِّرَاءِ او کوم چې په آخر والي سره د دې غلام متصف کېدل دي، نو هغه د رانيولو له وخت څخه دي ايعني دا غلام د رانيولو له وخت څخه د آخر کېدلو او آخريت په صفت سره متصف سو ا فَيَثْبُتُ مُسْتَنِدًا نو ځکه به آزادي د رانيولو دوخت وطرف ته منسوب کېدونکې ثابتيږي ايعني نو ځکه به د رانيولو د ورځې وطرف ته د دې غلام د آزادېدلو نسبت کيږي ا وَعَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ تَعْلِيقُ الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ بِهِ او پر همدغه په آخر والي اآخريت ا سره د دريو طلاقونو معلق کول اهم ا دي وَفَائِدَتُهُ تَظْهَرُ فِي جَرَيَانِ الْإِرْثِ وَعَدَمِهِ چې د هغه فايده د ميراث په جاري کېدلو يا نه جاري کېدلو ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿فَرْد﴾ يوازي، يو کس. ﴿سَابِق﴾ مخکنى، مخکې والا. ﴿لَاحِق﴾ وروستنى (وروسته راتلونکى)، آخرينى (چې تر هغه مخکې بل شى وي). ﴿إِرْث﴾ ميراث.

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٢٢). [القول الراجح ج:١، ص:٢٢٨]

**تشريح**: په دې عبارت کې د عتق او آزادۍ په هکله څو مسئلې ذکر سوې دي:

(١)... که يو سړی ووايي: "کوم غلام چې زه اول رانيسم، هغه آزاد دی". بيا هغه يو غلام رانيسي، نو ښکاره خبره ده چې هغه به آزاديږي، ځکه چې د "اول" لفظ د "مخکې کېدونکي" په مَعنیٰ سره دی، ځکه کوم شی چې اول وي هغه تر ټولو مخکې وي (او شرط د اول غلام آزادول دي). نو ځکه به د شرط په موجودېدلو سره دا غلام آزاديږي. لېکن که دا سړی په يوه ځای دوه غلامان رانيسي او بيا يو غلام رانيسي، نو اوس يو غلام هم نه آزاديږي، ځکه چې په اول غلام کې "مخکې والي" او "تفرّد" دواړه شيان نسته، او په دريم غلام کې که څه هم "تفرّد" سته، يعني که څه هم هغه يوازې او تنها رانيول سوی دی، لېکن په هغه کې اوّليت او مخکې والي نسته، حالانکې په "أَوَّلُ عَبْدٍ أَشْتَرِيْه..." کې په شرط (آزادي) کې دننه اوّليت او مخکې والي شرط وو، او هغه شرط موجود نه سو. نو ګوکې د آزادۍ او حُرّيت شرط موجود نه سو، او کله چې د آزادۍ شرط موجود نه سو، نو آزادي او حُرّيت به څرنګه ثابت سي!.

ها! که هغه مالک "أَوَّلُ عَبْدٍ وَحْدَهٗ أَشْتَرِيْه..." ويلي وي، نو تر دوو غلامانو وروسته چې هغه کوم دريم غلام يوازې او تنها رانيسي، هغه آزاديږي، ځکه چې وَحْدَهٗ په لغت کې د حال لپاره راځي، او په دې سره تَفرّد في الشراء مراديږي، او څرنګه چې دا دريم غلام په شراء (رانيولو) کې منفرد او يوازې دی، نو ځکه په هغه کې د آزادۍ او حُرّيت شرط موجود سو، په دې وجه به هغه آزاديږي.

(٢)... که يو څوک ووايي: "کوم غلام چې زه آخري رانيسم، هغه آزاد دی"، بيا دا سړی (مالک) يو غلام رانيسي او تر دې وروسته مالک مړ سي، نو دا رانيول سوی غلام نه آزاديږي، ځکه چې آخري و هغه شي ته وايي کوم چې لاحق وي يعنې چې تر هغه مخکې کم از کم يو بل شی هم وي. او دلته فقط يو غلام موجود دی، او تر هغه مخکې بل هيڅ غلام نسته، نو ځکه به دا غلام لاحق او آخري نه وي او نه به آزاديږي.

ها! که مالک د يوه غلام تر رانيولو وروسته بل غلام رانيسي او بيا مالک مړ سي، نو دا دويم (آخري) غلام لاحق دی او آزاديږي، ځکه چې تر هغه مخکې يو غلام موجود دی، پاته سوه د مسئله چې دا غلام به له کومې ورځې څخه آزاد شمارل کيږي؟ نو په دې هلکه د أحنافو اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا غلام له هغه ورځې څخه آزاد شمارل کيږي په کومه ورځ چې دغه سړي (مالک) هغه رانيولی دی که څه هم د دې عتق (آزادۍ) ثمر د مالک تر مرګ وروسته پر غلام ښکاره کيږي، او دا عتق به د مالک له ټوله مال څخه معتبر وي (يعنې د مالک له ټوله مال څخه به دا غلام

آزاديږي)، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې په کومه ورځ مالک مړ سي، له هغه ورځې څخه غلام زاد شمارل کيږي. او په همدې وجهې به د دې غلام عتق د مالک له ثلثُ المال (د مال له دريمې حصې) څخه معتبر وي. او که د مالک د مال دريمه حصه د هغه لپاره ناکافي وي (يعني د مالک د مال دريمه حصه د غلام د قيمت په اندازه نه وي)، نو مابقي قيمت به د غلام پر ذمه دَين (قرض) وي چې هغه به غلام گټي او د مالک وارثانو ته به يې ورکوي.

**د صاحبينو دليل:** په دويمه مسئله کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې دلته د عتق شرط "آخِرُ عَبْدٍ..." (آخري غلام) دی. او د دې غلام آخري والی هغه وخت ثابتيږي کله چې مالک تر ده وروسته بل غلام نه رانيسي. او د مالک بل غلام نه رانيول د مالک په مرگ سره ثابتيږي. ځکه چې تر مرگ مخکې د مالک د رانيولو احتمال سته (چې کېدای سي مالک به بل غلام هم رانيسي). نو ځکه به د "آخِرُ عَبْدٍ" والا شرط د مالک د مرگ په وخت کې ثابتيږي او عتق به د مالک پر مرگ موقوف وي. يعني تر مرگ لږ مخکې (د زنکندن په حالت کې) به دا غلام آزاديږي. او په دې حالت کې د مالک د هر مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي. نو ځکه به د مال له دريمې حصې څخه د هغه آزادي معتبره وي (يعني د مالک د مال له دريمې حصې څخه به دا غلام آزاديږي).

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د دې غلام تر رانيولو وروسته د مالک په مرگ سره دا خبره ښکاره سوه چې همدا آخري غلام دی او د رانيولو له وخت څخه دا غلام د آخريت (آخر والي) په صفت سره متصف دی. لېکن تر مرگ مخکې د هغه آخر والي قطعي او يقيني نه وو. نو ځکه موږ د هغه د آزادۍ أثر د مالک تر مړگه پورې مؤخر کړی. لېک کله چې واقعتاً مالک تر هغه وروسته بل غلام نه رانيوی او مړ سو. نو ځکه به دا غلام په يقيني توگه د رانيولو (شراء) له وخت څخه آخري غلام وي. او له هغه وخت څخه به آزاد شمارل کيږي. او څرنگه چې د رانيولو په وخت کې مالک صحيح سالم وو. نو ځکه به له ټوله مال څخه د غلام آزادي معتبره وي (او د مالک له ټوله مال څخه به دا غلام آزاديږي).

وعلى هٰذا الخلاف الخ: د دې حاصل دا دی چې که يو سړی داسې ويلي وي: "زه چې آخري د کومې ښځې سره نکاح وکړم، هغې ته ثلاثاً طلاق دی". بيا هغه د يوې ښځې سره نکاح وکړي. تر دې وروسته د بلې ښځې سره نکاح وکړي او بيا مړ سي. نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا دويمه ښځه د خاوند د مرگ په وخت کې طلاقيږي او د ميراث مستحقه به وي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د نکاح له وخت څخه طلاقيږي. نو په دې وجه به د ميراث مستحقه هم نه وي.

## د معلق عتق (آزادی) یو څو مثالونه

وَمَنْ قَالَ: كُلُّ عَبْدٍ بَشَّرَنِيْ بِوِلَادَةِ فُلَانَةٍ فَهُوَ حُرٌّ او څوک چي ووايي: هر هغه غلام کوم چي ماته د فلانۍ ښځي [د بچي] زیږولو زیری راکړي [چي هغې بچی وزیږوی] نو هغه آزاد دی فَبَشَّرَهُ ثَلَاثَةٌ مُتَفَرِّقِيْنَ بيا درې غلامانو هغه ته جلا، جلا زیری ورکړی عَتَقَ الْأَوَّلُ نو اول غلام آزادیږي لِأَنَّ الْبِشَارَةَ اسْمٌ لِخَبَرٍ يُغَيِّرُ بَشَرَةَ الْوَجْهِ ځکه چي بشارت [زیری] د داسي خبر نوم دی کوم چي د مخ رنګ بدل کړي وَيُشْتَرَطُ كَوْنُهُ سَارًّا بِالْعُرْفِ [لېکن] په عرف کي د دې "خوشالونکي کېدل" شرط دي [یعني دا خبر به په عرف کي خوشحاله کونکی شمارل کیږي. ځکه چي همدا د زیري تعریف دی] وَهٰذَا إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ مِنَ الْأَوَّلِ او دا [د مخ رنګ بدلېدل] فقط په اول خبر ورکونکي [اول غلام] سره ثابتیږي وَإِنْ بَشَّرُوْهُ مَعًا او که درې سره غلامان پر يوه ځای هغه ته زیری ورکړي عَتَقُوْا نو ټوله آزادیږي لِأَنَّهَا تَحَقَّقَتْ مِنَ الْكُلِّ ځکه چي بشارت [زیری] له ټولو څخه ثابت سو وَلَوْ قَالَ: إِنِ اشْتَرَيْتُ فُلَانًا فَهُوَ حُرٌّ او که چیري [یو سړی داسي] ووايي: که چیري زه فلانکی [غلام] رانیسم، نو هغه آزاد دی فَاشْتَرَاهُ يَنْوِيْ بِهِ كَفَّارَةَ يَمِيْنِهِ بیا دا سړی هغه غلام رانیسي [او] د هغه په رانیولو سره د خپل کفارهٔ یمین [د اداء کولو] نیت وکړي لَمْ يُجْزِهِ نو دا د هغه [د کفارې] لپاره کافي نه دی [یعني په داسي کولو سره د هغه کفاره نه اداء کیږي] لِأَنَّ الشَّرْطَ قِرَانُ النِّيَّةِ بِعِلَّةِ الْعِتْقِ وَهِيَ الْيَمِيْنُ ځکه چي [د کفارې د اداء کېدلو لپاره] د عتق د علت یعني د یمین سره د نیت متصل کېدل شرط دي فَأَمَّا الشِّرَاءُ فَشَرْطُهُ او کوم چي شراء [رانیول] دي، نو هغه د عتق شرط دی وَإِنِ اشْتَرَى أَبَاهُ يَنْوِيْ عَنْ كَفَّارَةِ يَمِيْنِهِ او که دا سړی خپل پلار رانیسي [او] په هغه سره د خپل کفارهٔ یمین [د اداء کولو] نیت وکړي أَجْزَأَهُ عِنْدَنَا نو زموږ په نیز د هغه لپاره دا کافي دی [یعني په دې سره د هغه کفارهٔ یمین اداء کیږي] خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله [د دوی په نیز په دې صورت کي کفاره نه اداء کیږي] لَهُمَا: أَنَّ الشِّرَاءَ شَرْطُ الْعِتْقِ د دوی دلیل دا دی: چي شراء [رانیول] د عتق شرط دی فَأَمَّا الْعِلَّةُ فَهِيَ الْقَرَابَةُ او کوم چي علت دی، نو هغه قرابت دی وَهٰذَا لِأَنَّ الشِّرَاءَ

إِثْبَاتُ الْمِلْكِ او دا ځکه چي شراء د ملکيت ثابتول دي وَالْإِعْتَاقُ إِزَالَتُهُ او إعتاق آزادول ا د ملکيت زائلول ا او ختمول ا دي وَبَيْنَهُمَا مُنَافَاةٌ او په ثابتولو او زائلولو کي منافات دی وَلَنَا: أَنَّ شِرَاءَ الْقَرِيبِ إِعْتَاقٌ او زموږ دليل دا دی: چي د خپل قريب رانيول إعتاق دی لِقَوْلِهِ ﷺ[1]: لَنْ يَجْزِيَ وَلَدٌ وَالِدَهُ إِلَّا أَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا فَيَشْتَرِيَهُ فَيُعْتِقَهُ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: هيڅ بچی خپل پلار ته ا تر دې غوره ا بدله ورکولای نه سي خو دا چي هغه خپل پلار ديو چا غلام ومومي. بيا هغه رانيسي او آزادې کړي جَعَلَ نَفْسَ الشِّرَاءِ إِعْتَاقًا ا په دې حديث کي ا نبي ﷺ نفس شراء ا خودې رانيول ا إعتاق ګرځولی دی لِأَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ غَيْرُهُ ځکه چي ا په دې حديث کي ا له شراء څخه بغير ا بل ا شرط لګېدلی نه دي فَصَارَ نَظِيرُ قَوْلِهِ: سَقَاهُ فَأَرْوَاهُ نو دا ا شراء د إعتاق علت ګرځېدل ا د دې قول سره مشابه سو: سَقَاهُ فَأَرْوَاهُ ا يعني فلانکي سړي وبل سړي ته اوبه ورکړې او هغه يې اوبه کړی ا وَلَوِ اشْتَرَى أُمَّ وَلَدِهِ او که هغه خپل أم ولد ا د کفارې په نيت سره ا رانيسي لَمْ يُجْزِهِ نو دا د هغه لپاره کافي نه دي وَمَعْنَى هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ: أَنْ يَقُولَ لِأَمَةٍ قَدِ اسْتَوْلَدَهَا بِالنِّكَاحِ: إِنِ اشْتَرَيْتُكِ فَأَنْتِ حُرَّةٌ عَنْ كَفَّارَةِ يَمِينِي او د دې مسئلې مطلب دا دی: چي دا سړی يو داسي مينځي ته چي هغه يې د نکاح په ذريعه أم ولد جوړه کړې وي، ووايي: که چيري زه تا رانيسم نو ته زما له کفارهٔ يمين څخه آزاده يې ثُمَّ اشْتَرَاهَا بيا دا سړی هغه مينځه رانيسي فَإِنَّهَا تُعْتَقُ نو هغه آزاديږي لِوُجُودِ الشَّرْطِ ځکه چي شرط موجود سو وَلَا يُجْزِيهِ عَنِ الْكَفَّارَةِ ا ليکن ا له کفارې څخه نه کافي کيږي لِأَنَّ حُرِّيَّتَهَا مُسْتَحَقَّةٌ بِالِاسْتِيلَادِ ځکه چي د هغې آزادی په استيلاد ا ام ولد جوړېدلو ا سره مستحقه سوې ده ا مطلب دا چي دا مينځه د أم ولد کېدلو په وجه د آزادۍ مستحقه سوې ده ا فَلَا تُضَافُ إِلَى الْيَمِينِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو ځکه به د ا کفاره ا يمين وطرف ته ا د هغې ا آزادي من کل وجه ا په هر اعتبار سره ا نه منسوب کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِقِنَّةٍ: إِنِ اشْتَرَيْتُكِ فَأَنْتِ حُرَّةٌ عَنْ كَفَّارَةِ يَمِينِي په خلاف د هغه صورت کله چي هغه خالص مينځي ته ووايي: که چيري زه تا رانيسم. نو ته زما له کفارهٔ يمين څخه آزاده يې حَيْثُ يُجْزِيهِ عَنْهَا ا

[1] تشريح: متفق عليه، ورواه ابو داؤد في الأدب، باب: ۱۲۰، رقم الحديث: ۵۱۳۷.

اشْتَرَاهَا نو دا مینځه له کفارې څخه کافي کیږي [او کفاره په اداء کیږي] کله چې دا سړی هغه رانیسي لِأَنَّ حُرِّيَّتَهَا غَيْرُ مُسْتَحِقَّةٍ بِجِهَةٍ أُخْرَى ځکه چې د هغې آزادي په یو بله وجه سره مستحقه سوې نه ده فَلَمْ يَخْتَلَّ الْإِضَافَةُ إِلَى الْيَمِينِ نو ځکه به د [کفاره] یمین وطرف ته د حریّت په نسبت کولو کي خلل نه راځي وَقَدْ قَارَنَتْهُ النِّيَّةُ حال دا دی چې د شراء [رانیولو] سره د کفارې نیت [هم] متصل سوی دی.

**اللغات:** ﴿بَشَّرَنِي﴾ د تفعیل ماضي ده: زېری ورکول، خوشخبري ورکول. ﴿مُتَفَرِّقِيْنَ﴾ د تفعل جمع اسم فاعل دی: جلا جلا (علیحده علیحده). ﴿بَشَرَة﴾ د څرمني لوړه حصه (دانساني پوست سرېړنه برخه، د پوست ښکاره حصه)، مراد ځني د مخ او څیرې رنګ دی. ﴿سَارٌ﴾ د نصر اسم فاعل دی: خوشحاله کونکی، خوشالونکی. ﴿إِزَالَة﴾ د افعال مصدر دی: لیرې کول، ختمول. ﴿لَنْ يُجْزِئَ﴾ د ضرب له باب څخه د مضارع صیغه ده، په شروع کي یې لَنْ ناصبه راغلی دی کوم چې د نفي او استقبال فایده ورکوي: بدله ورکول، جزاء ور کول. ﴿سَقَاهُ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي صیغه ده، سَقَى يَسْقِيْ سَقْيًا: اوبه په چینبل، اوبه ورکول. ﴿أَرْوَاهُ﴾ د افعال ماضي ده: أبول، سېرابول. ﴿إِسْتَوْلَدَ﴾ د استفعال ماضي ده: أم ولد جوول. ﴿قِنَّة﴾ خالص مینځه (په هر اعتبار سره مملوکه مینځه، چې هغه نه أم ولد وي، او نه مدبّره او مکاتبه وي).

**تشریح:** په دې عبارت کي د عتق او آزادی په هکله څلور مسئلې ذکر سوي دي، چي هغه به انشاء الله د مصنف د ترتیب مطابق ستاسي مخته بیان سي:

(۱)... که یو سړی ووایي: "زما هر غلام چې ما ته زما د فلانکی ښځي د بچي پیدا کېدلو زېری راکړې، هغه آزاد دی". تر دې وروسته درې غلامان په متفرقه توګه هغه ته زېری ورکړي (چي ستاد فلانکی ښځي بچی پیدا سو)، یعني یو غلام زېری ورکړي، بیا دویم غلام زېری ورکړي، بیا دریم غلام زېری ورکړي، نو کوم غلام چي اول زېری ورکړی وي هغه آزادیږي، ځکه چي بشارت (زېری) هغه خبر ته وایي چي په هغه سره د مخ رنګ بدل سي او سامع (اورېدونکی) په هغه سره په جوش کي راسي او خوشحاله سي، له همدې وجهې دا شرط لګول سوی دی چي زېری به داسي خبر وي چي هغه په عُرف کي خوشحاله کونکی خبر شمارل کیږي، او څرنګه چي د انسان خوشالېدل او د هغه د مخ رنګ بدلېدل د اول خبر ورکونکي په خبر سره ثابتیږي. نو ځکه به اول خبر ورکونکی غلام آزادیږي.

ها! که دوی ټوله پریوه ځای او په یوه آواز سره دا زېری ورکړي، نو ټوله آزادیږي، ځکه چي په دې صورت کي د ټولو له طرفه بشارت (زېری) متحقق او صادر سو.

(٢)...دویمه مسئله دا ده که یو سړی داسي ووايي: "که چیري زه فلانکی غلام رانیسم. نو هغه آزاد دی". تر دې وروسته دا سړي هغه غلام رانیسي، او د رانیولو په وخت کي په دې غلام سره د خپلي کفارهٔ یمین نیت هم وکړي (یعني پر هغه د قسم کفاره لازمه وي. او د رانیولو په وخت کي هغه په دې غلام سره د کفارې اداء کولو نیت هم وکړي). نو غلام خو آزادیږي. لیکن کفارهٔ یمین نه آداء کیږي، ځکه چي د کفارې د جواز او اداء کېدلو لپاره شرط دا دی چي په کفاره کي به (د غلام) د ورکولو او اداء کولو نیت د عتق د علت سره متصل وي. او په دې مسئله کي د عتق علت یمین (قسم) دی. او دا نیت دلته د هغه علت (د عتق د علت) سره متصل نه دی، بلکي دا نیت خو د شراء (رانیولو) سره متصل دی، ځکه چي دغه سړي د رانیولو په وخت کي د کفارې اداء کولو نیت کړی دی، نو ځکه به غلام خو آزادیږي، لیکن کفارهٔ یمین به نه په اداء کیږي.

(٣)... دریمه مسئله دا ده که یو سړی د خپل کفارهٔ یمین د اداء کولو په نیت خپل پلار رانیسي. نو زموږ په نېز دا شراء (رانیول) د کفارې لپاره کافي کیږي او په دې سره کفاره اداء کیږي. لیکن د امام شافعي او امام زفر په نېز په دې شراء سره کفاره نه اداء کیږي؛ د دوی دلیل دا دی چي شراء خو فقط د عتق لپاره شرط دی، لیکن د عتق علت قرابت دی. او څرنګه چي د شراء په وخت کي قرابت معدوم دی. نو ځکه به د شراء په وخت کي د کفارې اداء کولو نیت مُفید او مؤثر نه وي. او شراء ځکه د عتق لپاره شرط او علت دی چي شراء د ملکیت د إثبات لپاره وي (چي پر یو شي د مُشتري ملکیت ثابت سي). لیکن په إعتاق او عتق سره ملکیت زائلیږي، او په إثبات او إزاله کي شکاره تضاد سته. نو په دې وجه شراء د عتق علت ګرځول د ظلم او نا انصافي خبره ده.

ولنا إلخ: زموږ دلیل دا دی چي د امام شافعي او امام زفر دلیل په هغه صورت کي صحیح دی. کله چي مُشتریٰ یعني رانیول سوی غلام د مُشتري قریب نه وي، او دلتهٔ مسئله دا ده چي مشتریٰ د مشتري نژدې او خاص قریب دی یعني د هغه پلار دی. او د نژدې قریب رانیول د إعتاق او عتق علت دی لکه څرنګه چي په حدیث کي ذکر سوي دي: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ عَتَقَ عَلَيْه". او دویم حدیث دا دی: "لَنْ يُجْزِيَ وَالِدٌ وَالِدَهُ...إلخ" (یعني هیڅ زوی خپل پلار ته تر دې غوره بدله ورکولای نه سي چي هغه مملوک پلار رانیسي او آزادي کړي)، په دې حدیث سره موږ په دې توګه دلیل نیسو چي په دې حدیث کي نبي ﷺ نفسِ شراء ته إعتاق ویلي دي (یعني خودي شراء یې إعتاق ګرځولی دی). او له دې څخه بغیر یې بل شرط هم لګولی نه دی، نو معلومه سوه چي د قریب شراء د عتق علت دی. او په دې مسئله کي شراء د عتق علت کېدل داسي دي لکه د عربو په کلام کي چي سقاء (اوبه ورکول) د سېرابه کېدلو (اوبه کېدلو) علت دی. لکه څرنګه چي ویل کیږي: "سَقَاهُ فَأَرْوَاه" یعني فلانکي و بل

چا ته اوبه ورکړې او هغه پې سړابه (اوبه) کړی، مطلب دا دی چې په نفسِ سقاء سره هغه سړابه سو. همداسې په دې مسئله کې په نفسِ شراء سره هغه (پلار) آزادیږي، او څرنګه چې د آزادونکې (زوی) نیت د شراء په وخت کې دا وو چې کفارهٔ یمین اداء سي، نو په دې وجه کفاره هم اداء کیږي.

(۴)... څلورمه مسئله دا ده که یو سړی د بل چا د مینځې سره نکاح وکړي او هغه خپل اُم ولد جوړه کړي. او د اُمِ ولد جوړولو (استیلاد) په وخت کې دا سړی هغې ته داسې ووایي "چې هر کله زه تا رانیسم. نو ته زما د قسم په کفاره (کفارهٔ یمین) کې آزاده یې". بیا هغه څو وخت وروسته دا اُمِ ولد رانیسي، نو د شرطُ العتق یعني د شراء په موجودېدلو سره دا اُمِ ولد آزادیږي. لیکن کفارهٔ یمین نه په اداء کیږي. ځکه چې دغه اُمِ ولد خو د استیلاد په وجه د حُریّت (آزادی) مستحقه سوې ده. نه د یمین (قسم) په وجه. او په دې سره هغه وخت کفارهٔ یمین اداء کیږي کله چې دا اُمِ ولد مِنْ کُلّ وجه په یمین سره د حُریّت مستحقه سوې وي (یعني د کفارې د اداء کېدلو لپاره په یمین سره د هغې د حُریّت مستحقه کېدل شرط دي). صاحب د هدایې په دې جمله "فلا تُضا إلَی الیمین مِن کُلِّ وجه" سره همدا خبره بیان کړې ده.

د دې په خلاف که یو څوک خالص مینځې ته (چې هغه اُمِ ولد نه وي) ووایي "هر کله چې زه تا رانیسم. نو ته زما د قسم په کفاره کې آزاده یې"، او بیا حالف هغه رانیسي. نو هغه په کفارهٔ یمین کې آزادیږي (یعني په دې صورت کې په هغې سره کفارهٔ یمین اداء کیږي)، ځکه چې دلته هغه مِن کُلّ وجه په یمین سره د حُریّت مستحقه سوې ده، او له یمین څخه بغیر په بله وجه سره د حُریّت مستحقه سوې نه ده. نو ځکه به حریّت مِن کله وجه د یمین وطرف ته مضاف وي، او څرنګه چې د هغې سره د شراء په وخت کې د کفارهٔ یمین نیت هم متصل دی، نو ځکه به دا مینځه په کفاره کې اداء کیږي.

## د عتق او طلاق د تعلیق یو څو مسئلې

وَمَنْ قَالَ: إِنْ تَسَرَّيْتُ جَارِيَةً فَهِيَ حُرَّةٌ او څوک چې [داسې] ووایي: که چیرې زه د یوې مینځې سره جماع وکړم. نو هغه آزاده ده فَتَسَرّٰى جَارِيَةً كَانَتْ فِي مِلْكِهٖ بیا هغه د یو داسې مینځې سره جماع وکړي کوم چې د هغه په ملکیت کې وي عَتَقَتْ نو هغه مینځه آزادیږي لِأَنَّ الْيَمِينَ انْعَقَدَتْ فِي حَقِّهَا ځکه چې قسم د دې مینځې په حق کې منعقد سو لِمُصَادَفَتِهَا الْمِلْكَ ځکه چې هغه [د مالک] په ملکیت کې واقع ده وَهٰذَا لِأَنَّ الْجَارِيَةَ مُنَكَّرَةٌ فِي هٰذَا الشَّرْطِ او دا [حکم] ځکه دی چې په دې شرط [یعني د دې سړي په کلام] کې جاریه نکره [ذکر سوې] ده فَتَتَنَاوَلُ كُلَّ جَارِيَةٍ عَلَى الْاِنْفِرَادِ نو ځکه

به په جلا جلا توګه [د هغه] هري مينځي ته شامليږي [او دا مملوکه هم د هغه مينځه ده. نو ځکه به هغې ته شامليږي] وَإِنِ اشْتَرَى جَارِيَةً فَتَسَرَّاهَا او که دا سړی [په دې صورت کي] يوه مينځه رانيسي او د هغې سره جماع وکړي لَمْ تُعْتَقْ نو هغه نه آزاديږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله [د هغه په نيز آزاديږي] فَإِنَّهُ يَقُولُ: التَّسَرِّيْ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي الْمِلْكِ هغه فرمايي: چي تسرّی [جماع] فقط په ملکيت کي صحيح ده فَكَانَ ذِكْرُهُ ذِكْرَ الْمِلْكِ نو د تسرّی ذکر کول به د ملکيت ذکر کول وي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ: إِنْ طَلَّقْتُكِ فَعَبْدِيْ حُرٌّ نو داسي سو لکه هغه چي يوې پردۍ ښځي ته [داسي] ووايي: که چيري زه تا ته طلاق درکړم، نو زما غلام آزاد دی يَصِيرُ التَّزَوُّجُ مَذْكُورًا [په دې قول کي] نکاح کول [هم] مذکور ګرځي [يعني په دې جمله کي د طلاق سره نکاح هم مقدّره ذکره کيږي. ځکه چي له نکاح څخه بغير طلاق ورکول کېدای نه سي] وَلَنَا: أَنَّ الْمِلْكَ يَصِيرُ مَذْكُورًا ضَرُورَةَ صِحَّةِ التَّسَرِّيْ زموږ دليل دا دی: چي ملکيت به د تسرّی د صحيح کېدلو د ضرورت په خاطر مذکور ګرځي وَهُوَ شَرْطٌ او همدا شی شرط دی فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ لهذا د ضرورت په اندازه به ملکيت مقدر کيږي [او ثابتيږي] وَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ صِحَّةِ الْجَزَاءِ او د جزاء [آزادۍ] د صحيح کېدلو په حق کي به ملکيت نه ښکاره کيږي وَهُوَ الْحُرِّيَّةُ او جزاء آزادي ده وَفِي مَسْأَلَةِ الطَّلَاقِ إِنَّمَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشَّرْطِ دُونَ الْجَزَاءِ او د طلاق په مسئله کي ملکيت فقط د شرط په حق کي ښکاره کيږي، نه د جزاء په حق کي حَتَّى لَوْ قَالَ لَهَا: إِنْ طَلَّقْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا همدا وجه ده که هغه پردۍ ښځي ته [داسي] ووايي: که چيري زه تا ته طلاق درکړم، نو ته په دريو طلاقو سره [پر ما] طلاقه يې فَتَزَوَّجَهَا وَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً او [بيا] هغه د دې پردۍ ښځي سره نکاح وکړي او [بيا] يو طلاق ورکړي لَا تَطْلُقُ ثَلَاثًا نو دا ښځه په دريو طلاقو سره نه طلاقيږي [يعني درې طلاقه نه پر واقع کيږي] فَهَذِهِ وِزَانُ مَسْأَلَتِنَا نو دا مسئله زموږ د مسئلې سره مشابه ده [او زموږ د مسئلې لپاره مثال ده] وَمَنْ قَالَ: كُلُّ مَمْلُوكٍ لِيْ حُرٌّ او که [يو څوک] ووايي: زما هر مملوک آزاد دی تُعْتَقُ أُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ وَمُدَبَّرُوهُ وَعَبِيدُهُ نو د هغه [ټولي] أم ولد مينځي او د هغه ټوله مدبر غلامان او خالص غلامان آزاديږي لِوُجُودِ

الْإِضَافَةِ الْمُطْلَقَةِ فِي هٰؤُلَاءِ ځکه چي په دوی [ټولو] کي مطلق اضافت موجود دی إِذِ الْمِلْكُ ثَابِتٌ فِيهِمْ رَقَبَةً وَيَدًا ځکه چي په دوی کي د رقبې [ذات] او قبضې دواړو په اعتبار سره [د مالک] ملکيت ثابت دی وَلَا يُعْتَقُ مُكَاتَبُوهُ او د هغه مکاتب غلامان نه آزادېږي إِلَّا أَنْ يَنْوِيَهُمْ خو دا چي مالک د هغو نيت [هم] وکړي لِأَنَّ الْمِلْكَ غَيْرُ ثَابِتٍ يَدًا ځکه چي [په مکاتب کي] د قبضې په اعتبار سره [د مالک] ملکيت ثابت نه دی وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ أَكْسَابَهُ او له همدې کبله هغه د مکاتب د ګټو مالک نه دی وَلَا يَحِلُّ لَهُ وَطْءُ الْمُكَاتَبَةِ [همدارنګه] د مالک لپاره د مکاتبه مينځي سره وطي کول روا نه دي بِخِلَافِ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرَةِ په خلاف د اُم ولد او مدبره مينځي فَاخْتَلَّتِ الْإِضَافَةُ نو [د مالک سره د مکاتب] په نسبت کي خلل راغلی فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو په دې وجه به نيت ضروري وي وَمَنْ قَالَ لِنِسْوَةٍ لَهُ: هٰذِهِ طَالِقٌ أَوْ هٰذِهِ وَهٰذِهِ او که يو شوک خپلو ښځو ته ووايي: دا طلاقه ده يا دا او دا [طلاقه ده] طُلِّقَتِ الْأَخِيرَةُ نو آخري يوه طلاقيږي وَلَهُ الْخِيَارُ فِي الْأُولَيَيْنِ او په اولو دوو ښځو کي به هغه ته اختيار وي لِأَنَّ كَلِمَةَ أَوْ لِإِثْبَاتِ أَحَدِ الْمَذْكُورَيْنِ ځکه چي د "أو" کلمه په دوو ذکر سوو شيانو کي د يوه شي د ثابتولو لپاره [وضع سوې] ده وَقَدْ أَدْخَلَهَا بَيْنَ الْأُولَيَيْنِ ثُمَّ عَطَفَ الثَّالِثَةَ عَلَى الْمُطَلَّقَةِ او حالف دا کلمه [أو] د اولو دوو ښځو په مينځ کي داخله کړې ده بيا يې [په دوی کي] پر طلاق سوي ښځي دريمه ښځه عطف کړې ده لِأَنَّ الْعَطْفَ لِلْمُشَارَكَةِ فِي الْحُكْمِ ځکه چي عطف په حکم کي د شرکت [او ګډون] لپاره وي فَيَخْتَصُّ بِمَحَلِّهِ نو هغه به د خپل محل سره خاص وي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ وَهٰذِهِ نو داسي سو لکه هغه چي [داسي] ويلي وي: په تاسي دواړو ښځو کي يوه طلاقه ده او دا طلاقه ده وَكَذَا إِذَا قَالَ لِعَبِيدِهِ: هٰذَا حُرٌّ أَوْ هٰذَا وَهٰذَا او همدارنګه که [يو شوک] خپلو غلامانو ته ووايي: دا آزاد يا دا آزاد دی او دا آزاد دی عَتَقَ الْأَخِيرُ نو آخري غلام آزاديږي وَلَهُ الْخِيَارُ فِي الْأُولَيَيْنِ او په اولو دوو غلامانو کي به هغه ته اختيار وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] بيان کړی.

**اللغات:** ﴿تَسَرَّيْتُ﴾ د تفعل له باب څخه دواحد متکلم ماضي صيغه ده: وطي او جماع کول. ﴿جَارِيَة﴾ مينځه. ﴿مُصَادَفَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: واقع کېدل، يو شی دبل شي سره مخامخ کېدل. ﴿عَلَى الإنْفِرَاد﴾ په انفرادي توګه، جلا جلا، يو يو. ﴿وِزَان﴾ مماثل، مشابه. ﴿أكْسَاب﴾ ګټې (مراد ځني ګټل سوی مال دی).

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي:

(١)... اوله مسئله دا ده که يو سړی داسي ووايي: "که چيري زه ديوې مينځي سره خلوت وکړم يعني جماع وکړم، نو هغه آزاده ده"، او د دې سړي په ملکيت کي يوه مينځه وي او د هغې سره دئ جماع وکړي، نو هغه آزاديږي؛ ځکه چي حالف جَارِيَةً نکره ذکر کړي دي، نو دا به هري مينځي ته شامل وي، او څرنګه چي د هغه دغه مملوکه مينځه هم جَارِيَه ده، نو ځکه به د هغي په حق کي هم يمين منعقد او قائم وي، او د شرط موجودېدلو يعني د جماع په وجه به هغه آزاديږي. او که دا سړی تر دې خبري او قسم وروسته يوه مينځه رانيسي، او بيا د هغې سره جماع وکړي، نو په مخکني قسم سره دا رانيول سوې مينځه نه آزاديږي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مينځه هم آزاديږي؛ د امام زفر دليل دا دی چي جماع کول په ملکيت کي صحيح دي، لهذا د دې سړي دا قول "تَسَرَّيْتُ..." داسي دی لکه هغه چي ووايي "إنْ وَطِئْتُ مَمْلُوْكَةً لِيْ فَهِيَ حُرَّة"، او په خپل قول کي د "مَمْلُوْكَة" په ذکر کولو سره مينځه په قسم کي داخليږي، لهذا دا (رانيول سوې) مينځه به هم په قسم کي داخليږي او تر شرط موجودېدلو يعني تر جماع وروسته به آزاديږي، امام زفر رَحِمَهُ الله د خپل قول او دليل په تائيد کي يو مثال ذکر کړی دی، فرمايي که يو څوک أجنبيه (پردی) ښځي ته داسي ووايي: "که چيري زه تا ته طلاق درکړم، نو زما غلام آزاد دی"، نو د هغه په دې قول کي به اقتضاءً نکاح هم مذکوره وي، ځکه چي د طلاق نوبت تر نکاح وروسته راځي، نو ګواکي هغه سړي أجنبيه ښځي ته داسي وويل: "إنْ نَكَحْتُكِ وَطَلَّقْتُكِ فَعَبْدِيْ حُرٌّ". همداسي به زموږ په دې مسئله کي هم د حالف دا قول "إنْ تَسَرَّيْتُ... إلخ" داسي وي لکه هغه چي "إنْ وَطِئْتُ يا إنْ تَسَرَّيْتُ مَمْلُوْكَةً لِيْ" ويلي وي.

**ولنا إلخ:** زموږ دليل دا دی چي د "إنْ تَسَرَّيْتُ... إلخ" د ويلو په صورت کي هم موږ ملکيت اقتضاءً ثابت منو، لېکن دا ثبوت به د شرط د ضرورت په اندازه وي (يعني د تسرّي [جماع] د صحيح کېدلو د ضرورت په اندازه به وي) او د رانيول سوي مينځي سره به وطي کول حلال وي لېکن هغه به نه آزاديږي، ځکه چي د عتق (آزادي) په حق کي ملکيت اقتضاءً نه ثابتيږي، ځکه چي آزادېدل جزا

ده. او ملکيت د شرط يعني د تسرّي په حق کي د ضرورت په وجه ثابت دی. او ضرورتاً ثابتېدونکی شی د ضرورت له محل څخه تجاوز نه کوي. لکه څرنګه چي همدا د فقهي مشهوره قاعده ده چي "اَلثَّابِتُ بِالضُّرُوْرَةِ لَا يَتَعَدّٰى عَمَّا عَدَاهُ".

پاته سو هغه مثال کوم چي امام زفر په خپل تائيد کي ذکر کړی، نو د هغه جواب دا دی چي د طلاق والا په مسئله کي هم د نکاح ملکيت فقط د شرط يعني د طلاق په حق کي ښکاره کيږي او د جزاء په حق کي نه ښکاره کيږي. همدا وجه ده که يو سړی يوې أجنبي ښځي ته ووايي: "إِنْ طَلَّقْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا" (که چيري زه تا ته طلاق درکړم. نو ثلاثاً طلاقه يې"، بيا دا سړی د هغې سره نکاح وکړي. او يو طلاق ورکړي، نو پر هغې ثلاثاً طلاق (درې طلاقه) نه واقع کيږي. ځکه چي دلته د نکاح ملکيت د شرط د صحيح کېدلو د ضرورت په وجه ثابت سوی دی. نو ځکه دا ملکيت د جزاء وطرف ته يعني د ثلاثاً طلاق وطرف ته متعدي کيږي (يعني د ضرورت له محل څخه د ثلاثاً طلاق وطرف ته تجاوز نه کوي). همداسي به په پورتني مسئله کي هم ملکيت فقط د وطي په حق کي ثابت وي. او د عتق وطرف ته به نه متعدي کيږي: په دې حواله سره د طلاق والا مسئله کي زموږ د (پورتني د قسم) د مسئلې سره مشابه ده او د هغې لپاره مثال ده.

(۲)... که يو څوک قسم واخلي چي: "په الله قسم زما هر مملوک آزاد دی" (يعني کوم غلام چي هم زما په ملکيت کي دی هغه آزاد دی). نو په دې قول سره د دې سړي ټوله اُم ولد مينځي. او د ده ټوله مدبر او خالص غلامان آزاديږي، ځکه ده چي کوم اضافت ځان ته کړی دی يعني "لِيْ" (زما هر مملوک) هغه مطلق او کامل دی (يعني ده خپل ځان ته مطلق او کامل اضافت کړی دی). او په دغه مينځو او غلامانو کي مالک لره د رقبې او قبضې دواړو په اعتبار سره ملکيت حاصل دی. نو ځکه به دا ټوله آزاديږي. لېکن د ده مکاتب غلامان نه آزاديږي. ها! که دا سړی د هغو د عتق او آزادی نيت وکړي. نو هغه هم آزاديږي: د نيت څخه بغير د مکاتب غلام د نه آزادېدلو وجه دا ده چي د قبضې په اعتبار سره پر مکاتب د دې سړي (مالک) ملکيت حاصل نه دی. ځکه چي مکاتب په خپله د خپل ګټل سوي مال مالک وي. او مولیٰ (مالک) په هغه کي تصرّف نه سي کولای او نه مالک د مکاتبه مينځي سره وطي کولای سي. نو په دې حواله سره په مکاتب کي د مالک ملکيت ناقص پاته وي او کله چي ملکيت ناقص دی نو په "لِيْ" کي چي کوم نسبت او اضافت دی هغه به هم ناقص وي. حالانکي په يمين (قسم) سره هغه وخت عتق ثابتيږي کله چي اضافت او ملکيت دواړه کامل وي. نو په دې

وجه موږ د مکاتب د عتق لپاره د هغه د عتق نيت کول لازم وګرځوی. د دې په خلاف په اُم ولد او مدبر کي د مالک ملکيت کامل پاته وي او د دوی له طرفه اضافت او نسبت هم کامل وي. او د مدبره مينځي سره د مالک لپاره وطي کول هم حلالِ دي. نو ځکه به دا ټوله کسان له نيت څخه بغير آزاديږي.

(٣)... که يو سړی خپلو ښځو ته ووايي: دا طلاقه ده. يا دا طلاقه ده او دا طلاقه ده''. مثلاً خالد درې ښځي لري: ① سلمیٰ، ② فاطمه، ④ زينب. او خالد ورته ووايي: سلمیٰ طلاقه ده. يا فاطمه طلاقه ده او زينب طلاقه ده. نو په دې صورت کي په اولو دوو ښځو کي (يعني په سلمیٰ او فاطمه کي) پر يوې طلاق واقع کيږي. او خاوند ته به دا اختيار وي چي په دې دواړو کي يوه د طلاق لپاره متعينه کړي (يعني که هغه پر سلمیٰ طلاق واقع کوي او که پر فاطمې طلاق واقع کوي. هغه ته د دې اختيار سته)، ځکه چي هغه د سلمیٰ او فاطمې په مينځ کي د ''أوْ'' کلمه داخله کړې ده. او د "أوْ" کلمه په دوو شيانو کي د يوه د إثبات لپاره راځي، لهذا په سلمیٰ او فاطمه کي چي کومه يوه خالد اختيار کړي پر هغې به طلاق واقع کيږي. او دريمه ښځه يعني زينب فوراً طلاقيږي، ځکه چي خالد دا زينب په اولو دوو (سلمیٰ او فاطمه کي) پر مطلقه ښځي عطف کړې ده (يعني په اولو دوو کي چي خالد کومه يوه د طلاق لپاره اختيار کړي. دا دريمه ښځه [زينب] پر هغې عطف سوې [معطوف] ده)، او د معطوف او معطوف عليه حکم يو وي. لهذا عطف به د خپل محل (زينب) سره خاص وي او هغه به فوراً طلاقيږي. د دې مثال دا دی لکه حالف چي داسي ويلي وي ''إِحْدَاكُمَا طَالِقٌ وهٰذِهٖ'' يعني په تاسي دواړو ښځو کي يوه طلاقه ده او دا طلاقه ده. نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي دواړي ښځي طلاقيږي، همداسي به زموږ په دغه مسئله کي هم دوې ښځي طلاقيږي (او يوه به پاتيږي).

همدارنګه که يو څوک په خپلو غلامانو کي درې غلامانو ته ووايي: ''هٰذَا حُرٌّ أوْ هٰذَا وَهٰذَا''. نو په دې صورت کي هم هغه ته دا اختيار سته چي په اولو دوو غلامانو کي يو غلام د آزادۍ (عتق) لپاره متعين کړي او دريم غلام فوراً آزاديږي. په لِمَا بَيَّنَّا سره صاحب د هدايې د ''أوْ'' حکم او حيثيت ته اشاره کړې ده چي هغه اوس ذکر سو.



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالتَّزَوُّجِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ

(دا) باب د رانيولو، خرڅولو، نکاح کولو او د داسي نورو په هکله د قسم اخيستلو (په بيان کي) دی.

## د بيع، شراء، نکاح او د داسي نورو معاملاتو د نه کولو قسم

وَمَنْ حَلَفَ لَايَبِيْعُ أَوْ لَا يَشْتَرِيْ أَوْ لَا يُؤَاجِرُ او څوک چي قسم واخلي چي خرڅول به نه کوي يا رانيول به نه کوي يا په أجرت [کرايه] به [شی] نه ورکوي فَوَكَّلَ مَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ بيا هغه يو داسي سړی وکيل جوړ کړي چي دا کارونه [او عقدونه] هغه وکړي لَمْ يَحْنَثْ نو حالف نه حانث کيږي لِأَنَّ الْعَقْدَ وُجِدَ مِنَ الْعَاقِدِ ځکه چي عقد د عقد کونکي [وکيل] له طرفه موجود سو حَتّٰى كَانَتِ الْحُقُوْقُ عَلَيْهِ تر دې چي د عقد حقوق پر عاقد [وکيل] دي [يعني همدا وجه ده چي د عقد حقوق د وکيل سره متعلق دي] وَلِهٰذَا لَوْ كَانَ الْعَاقِدُ هُوَ الْحَالِفُ يَحْنَثُ فِيْ يَمِيْنِهِ او همدا وجه ده که حالف په خپله عاقد وي نو په خپل قسم کي به حانث وګرځي فَلَمْ يُوْجَدْ مَا هُوَ الشَّرْطُ نو کوم شی چي شرط وو هغه موجود نه سو وَهُوَ الْعَقْدُ مِنَ الْآمِرِ او هغه د حکم کونکي له طرفه عقد دی [يعني هغه له حالف څخه د عقد صادريدل دي، او عقد هغه کړی نه دی] وَإِنَّمَا الثَّابِتُ لَهُ حُكْمُ الْعَقْدِ [بلکي] د هغه لپاره خو [فقط] د عقد حکم ثابت سوی دی [نو ځکه به نه حانث کيږي] إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ ذٰلِكَ خو دا چي حالف د هغه نيت کړی وي لِأَنَّ فِيْهِ تَشْدِيْدًا ځکه چي په دې کي [په خپله پر هغه] سختي ده [ځکه چي هغه د يو زائد شي نيت وکړی] أَوْ يَكُوْنَ الْحَالِفُ ذَا سُلْطَانٍ لَا يَتَوَلَّى الْعَقْدَ بِنَفْسِهِ يا [دا چي] حالف د لوی قدرت [او شان] خاوند وي چي هغه په خپله عقد نه کوي [نو هغه د وکيل په عقد کولو سره حانث کيږي] لِأَنَّهُ يَمْنَعُ نَفْسَهُ عَمَّا يَعْتَادُهُ ځکه چي [په دې صورت کي] ده خپل ځان له داسي کار څخه منع کړی دی چي د هغه په نه کولو دیٔ عادت دی وَمَنْ حَلَفَ لَا يَتَزَوَّجُ أَوْ لَا يُطَلِّقُ أَوْ لَا يُعْتِقُ او څوک چي قسم واخلي چي نکاح به نه کوي، يا طلاق به نه ورکوي، يا [څوک] به نه آزادوي فَوَكَّلَ بِذٰلِكَ بيا هغه [بل

څوک] پر دې کار وکيل جوړ کړي حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّ الْوَكِيلَ فِي هٰذَا سَفِيرٌ وَمُعَبِّرٌ ځکه چي وکيل په دې سلسله کي [فقط] استازی او [د خبرو] نقل کونکی دی وَلِهٰذَا لَا يُضِيفُهُ إِلٰى نَفْسِهِ او له همدې کبله هغه د خپل ځان وطرف ته د عقد نسبت نه کوي بَلْ إِلَى الْآمِرِ بلکي د آمر وطرف ته اد هغه نسبت کوي] وَحُقُوقُ الْعَقْدِ تَرْجِعُ إِلَى الْآمِرِ لَا إِلَيْهِ او [په دې عقدونو کي] د عقد حقوق د آمر وطرف ته راجع کيږي، نه د وکيل وطرف ته وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ أَنْ لَا أَتَكَلَّمَ بِهِ او كه هغه وايي: چي [په دې قسم سره] زما مراد [او نيت] دا وو چي زه به [په خپله] په دې کار کي خبري نه کوم لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ خَاصَّةً نو فقط قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي وَسَنُشِيرُ إِلَى الْمَعْنَى فِي الْفَرْقِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او انشاء الله موږ به ژر د دې فرق ته اشاره وکړو.

**اللغات:** ﴿لَا يُوَاجِرُ﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي صيغه ده: په أجرت ورکول (په مزدوری ورکول)، په کرايه ورکول، ﴿وَكَّلَ﴾ د تفعيل ماضي ده: وکيل جوړول، خپل کار بل چا ته سپارل، ﴿سُلْطَان﴾ غلبه، قدرت، واک او طاقت، ﴿لَا يَتَوَلّٰى﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: ذمه واري اخيستل، ﴿مُعَبِّر﴾ د تفعيل اسمِ فاعل دی: ترجمان، خبره بيانونکی (د بل چا د خبري نقل کونکی).

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که يو سړی قسم واخلي چي "په الله قسم! زه به هيڅ شی نه خرڅوم، يا نه به يې رانيسم، يا په أجرت او کرايه به شی نه ورکوم"، بيا دغه سړي په دې کارونو (بيع، شراء او اجاره) کي د يو کار لپاره بل څوک خپل وکيل جوړ کړی، او وکيل هغه کار وکړی، نو حالف (مؤكِّل) نه حانث کيږي، ځکه چي د بيع يا شراء يا اجارې عقد د وکيل يعني د عاقد له طرفه صادر سوی دی، او د دې عقودو (بيع شراء او اجارې) حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي، نو ځکه به د آمر او مؤكِّل (وکيل جوړونکي) سره د دې کار او عقد هيڅ واسطه نه وي او هغه به نه حانث کيږي، ها! که هغه بذاتِ خود په دې عقدونو کي يو عقد وکړي، نو حانث کيږي، ځکه چي هغه بيا په خپله عاقد ګرځي او د عقد حقوق د هغه وطرف ته راجع کيږي، ليکن څرنګه چي دلته هغه په خپله عاقد نه دی، بلکي د هغه لپاره فقط د عقد حکم (يعني په بيع او شراء سره حاصلېدونکی ثمن يا مبيع) ثابت دی، او د حنث (حانث کېدلو) شرط عقد دی، نه د عقد حکم، لهذا د حنث شرط موجود نه سو، نو ځکه به حالف (مؤكِّل) نه حانث کيږي؛ ليکن که حالف د قسم په وخت کې دا نيت وکړي چي "زه به نه په خپله دا عقدونه کوم، او نه به يې په بل

چا کوم". نو په دې صورت کې د هغه دا نيت معتبر کيږي (يعني که بل څوک [وکيل] د هغه له طرفه دا عقدونه وکړي، نو هم هغه حانث کيږي)، ځکه چې په دې نيت سره د هغه قسم نور سختيږي، او په خپله د هغه پر ذات سختي او پابندي لازميږي، نو ځکه به د داسي نيت کولو په صورت کې حالف د وکيل په عقد کولو سره هم حانث کيږي.

**أو يكون الحالف إلخ:** د دې حاصل دا دې که حالف (مؤکل) د لوی قدرت او لوی عزت خاوند وي، او داسي کارونه هغه په خپله نه کوي، او بيا هغه يو بل څوک خپل وکيل جوړ کړي او عقد په وکړي، نو هم حانث کيږي؛ ځکه چې دلته هغه خپل د قسم په وجه (له عقد څخه) نه دي منع سوی، بلکي هغه خو د خپل عادت مطابق منع سوی دی ځکه چې داسي کارونه هغه په خپله نه کوي بلکي په خپلو خادمانو او نوکرانو يې کوي، لهذا د هغه لپاره بل څوک خپل وکيل جوړول او بل چا ته د عقد أمر کول داسي دي لکه د قسم مخالفت کول، نو ځکه به په دې صورت کې هم هغه حانث کيږي.

(۲)... که يو قسم واخلي چې "زه به نکاح کوم، يا طلاق به نه ورکوم، يا څوک به نه آزادوم". بيا هغه په دې کارونو کې د يو کار لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، او وکيل هغه کار وکړي. نو حالف (مؤکّل) حانث کيږي؛ ځکه چې په نکاح، طلاق او إعتاق کې وکيل فقط د استازي او ترجمان (خبره نقل کونکي) حيثيت لري، او حقيقي عاقد مؤکّل او آمر وي، همدا وجه ده چې وکيل په دې عقدونو کې د خپل ځان وطرف ته د عقد نسبت نه کوي، بلکي د مؤکل وطرف ته د هغه نسبت کوي، او د عقد حقوق هم د مؤکّل وطرف ته راجع کيږي، نو ځکه به په دې صورتونو کې د وکيل په عقد کولو سره حالف يعني مؤکّل او آمر حانث کيږي، او که حالف او مؤکّل داسي ووايي چې په دې عقدونو کې په قسم اخيستلو سره زما نيت دا وو چې زه به خپله په دې سلسله کې خبري نه کوم، او اوس ما خبري نه دي کړي، بلکي زما وکيل خبري کړي دي او زما لپاره يې دا کار او عقد کړی دی، نو ځکه زه حانث نه يم. نو په دې صورت کې به دياناً د هغه تصديق کيږي، ځکه چې د هغه کلام د دې نيت احتمال هم لري، لېکن قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي، ځکه چې د هغه دغه نيت د ظاهر خلاف دی. په بيع، شراء او نکاح کې چې کوم فرق دی هغه به په راتلونکي عبارت کې ضمناً او اشارتاً ذکر سي.

## د يو کار نه کولو قسم اخيستل او بيا بل چا ته د هغه کار کولو حکم کول

**وَلَوْ حَلَفَ لَا يَضْرِبُ عَبْدَهُ أَوْ لَا يَذْبَحُ شَاتَهُ** او که [يو سړي] قسم واخلي چې خپل غلام به نه وهي يا خپل پسه به نه ذبح کوي **فَأَمَرَ غَيْرَهُ فَفَعَلَ** بيا دا سړي بل چا ته حکم وکړي او هغه [دا کار] وکړي **يَحْنَثُ فِي يَمِينِهِ** نو دا سړی [حالف] په خپل قسم کې حانث کيږي **لِأَنَّ الْمَالِكَ لَهُ وِلَايَةُ ضَرْبِ عَبْدِهِ**

وَذَبْحِ شَاتِهِ ځکه چې د خپل غلام د وهلو او د خپل پُسه د ذبح کولو ولايت مالک [حالف] لره حاصل دی فَيَمْلِكُ تَوْلِيَتَهُ غَيْرَهُ نو ځکه به هغه بل چا ته [هم] د دې کار [يعني د ضرب او ذبح] ور سپارلو ملکيت لري ثُمَّ مَنْفَعَتَهُ رَاجِعَةٌ إِلَى الْآمِرِ بيا د دې کار منفعت د آمر [حالف] وطرف ته راجع دی فَيُجْعَلُ هُوَ مُبَاشِرًا نو ځکه به همدا آمر مباشر [په خپله کار کونکی] ګرځول کيږي [يعني ګواکي حالف په خپله پُسه ذبح کړی، او په خپله يې غلام ووهی] إِذْ لَا حُقُوقَ لَهُ تَرْجِعُ إِلَى الْمَأْمُورِ ځکه د دې کار داسي حقوق نسته چې هغه د مأمور وطرف ته راجع سي وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ أَنْ لَا أَتَوَلَّى ذَلِكَ بِنَفْسِي او که حالف ووايي: زما نيت دا وو چې زه به په خپله دا کار نه کوم دُيِّنَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً به د هغه تصديق کيږي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ مِنَ الطَّلَاقِ وَغَيْرِهِ په خلاف د طلاق او د إعتاق د مسئلې کوم چې مخکي تېره سوه وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ الطَّلَاقَ لَيْسَ إِلَّا تَكَلُّمًا بِكَلَامٍ يُفْضِي إِلَى وُقُوعِ الطَّلَاقِ عَلَيْهَا او وجه د فرق دا ده: چې طلاق فقط داسي کلام [او الفاظ] ويل دي کوم چې پر ښځي د طلاق واقع کېدلو سبب جوړيږي وَالْأَمْرُ بِذَلِكَ مِثْلُ التَّكَلُّمِ بِهِ او [بل چا ته] د طلاق حکم ورکول داسي دي لکه په طلاق سره تکلم کول [او د طلاق الفاظ ويل] وَاللَّفْظُ يَنْتَظِمُهُمَا او د قسم لفظ دې دواړو ته شامليږي فَإِذَا نَوَى التَّكَلُّمَ بِهِ لهذا کله چې حالف په دې سره د تکلم [ويلو] نيت وکړي فَقَدْ نَوَى الْخُصُوصَ فِي الْعَامِّ نو هغه [ګواکي] په عام کي د خصوص نيت وکړی [يعني ګواکي هغه عام لفظ خاص وګرځوی. او دا د ظاهر خلاف دي] فَيُدَيَّنُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو ځکه به دياتتاً [فقط] د هغه تصديق کيږي، نه قضاءً أَمَّا الذَّبْحُ وَالضَّرْبُ فَفِعْلٌ حِسِّيٌّ او کوم چې ذبح کول او وهل دی نو هغه حسّي کارونه دي [چې په حِس سره د هغوی إدراک کيږي او محسوسيږي. او د تکلم په څير نه دي] يُعْرَفُ بِأَثَرِهِ [او] په خپل أثر سره دوی پېژندل کيږي وَالنِّسْبَةُ إِلَى الْآمِرِ بِالتَّسْبِيبِ مَجَازٌ او [د حالف] د سبب کېدلو په وجه د دوی نسبت د آمر [حالف] وطرف ته مجازاً وي فَإِذَا نَوَى الْفِعْلَ بِنَفْسِهِ فَقَدْ نَوَى الْحَقِيقَةَ لهذا کله چې حالف په خپله [د دې کارونو د کولو] نيت وکړي نو [ګواکي] هغه د حقيقت نيت وکړی فَيُصَدَّقُ دِيَانَةً وَقَضَاءً نو ځکه به دياتتاً او قضاءً [دواړه ډوله] د هغه

تصديق کيږي ﴿وَمَنْ حَلَفَ لَا يَضْرِبُ وَلَدَهُ﴾ او کوم سړی چي قسم واخلي چي خپل زوی به نه وهي ﴿فَأَمَرَ إِنْسَانًا فَضَرَبَهُ﴾ بيا دا سړی بل انسان ته [د خپل زوی د وهلو] حکم وکړي او هغه د ده زوی ووهي ﴿لَمْ يَحْنَثْ فِي يَمِينِهِ﴾ نو حالف [پلار] په خپل قسم کي نه حانث کيږي ﴿لِأَنَّ مَنْفَعَةَ ضَرْبِ الْوَلَدِ عَائِدَةٌ إِلَيْهِ﴾ ځکه چي د بچي د وهلو فايده [په خپله] د هغه وطرف ته راجع ده ﴿وَهُوَ التَّأَدُّبُ وَالتَّثَقُّفُ﴾ او هغه [فايده] ادب او انسانيت زده کول دي ﴿فَلَمْ يُنْسَبْ فِعْلُهُ إِلَى الْآمِرِ﴾ نو ځکه به دآمر وطرف ته د مأمور د فعل نسبت نه کيږي ﴿بِخِلَافِ الْأَمْرِ بِضَرْبِ الْعَبْدِ﴾ په خلاف د غلام د وهلو د حکم ﴿لِأَنَّ مَنْفَعَتَهُ الِائْتِمَارُ بِأَمْرِهِ﴾ ځکه چي د هغه فايده دآمر حکم پر ځای کول دي [او دآمر فرمان برداره کېدل دي] ﴿فَيُضَافُ الْفِعْلُ إِلَيْهِ﴾ نو ځکه به [د غلام په صورت کي] دآمر وطرف ته [د مأمور] د فعل نسبت کيږي.

**اللغات:** ﴿شَاةٌ﴾ عام اسم دی: پسه، وزګړي، بزه، ټولو ته وايي. ﴿عَنَيْتُ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد متکلم صيغه ده: مراد ول، مراد اخيستل. ﴿تَسْبِيب﴾ د تفعيل مصدر دی: سبب جوړېدل. ﴿تَأَدُّب﴾ ادب زده کول. ﴿تَثَقُّف﴾ مهذب جوړېدل، ښه خوی او چلند والا جوړېدل (انسان جوړېدل، انسانيت زده کول). ﴿إِئْتِمَار﴾ او اِيْتِمَار: د افتعال مصدر دی: اطاعت کول، حکم پر ځای کول (حکم منل)، فرمان برداري کول.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... که يو سړی قسم واخلي چي "په الله قسم! زه به خپل غلام نه وهم، يا خپل پسه به نه ذبح کوم (حلالوم)"، بيا دا سړی (حالف) يو بل چا ته حکم وکړي چي دا کار وکړه!، او هغه دا کار وکړي، نو حالف په خپل قسم کي حانث کيږي؛ ځکه چي حالف د خپل غلام او د خپل پسه مالک دی او هغه ته د دې ولايت حاصل دی چي خپل غلام ووهي يا پسه ذبح کړي، نو ځکه به هغه ته دا حق وي چي بل څوک د دې کار مالک او نائب جوړ کړي. همدا د فقهي قاعده ده چي "مَنْ مَلَكَ شَيْئًا يَمْلِكُ تَمْلِيكَهُ" (يعني څوک چي د يو شي مالک وي، هغه ته د دې اختيار هم سته چي بل څوک د هغه شي مالک جوړ کړي). او څرنګه چي د غلام وهلو او د پسه ذبح کولو نفع او فايده په خپله د حالف يعني دآمر وطرف ته راجع کيږي (چي غلام به د هغه فرمانبرداره سي او د پسه غوښې به هغه ته حاصلي سي)، نو ځکه به حالف په داسي عقدونو کي عاقد او مباشر (په خپله کار کونکی) ګرځول

کيږي (يعني ګواکې حالف په خپله غلام ووهی او پسه يې ذبح کړی). لهذا کله چې حالف په خپله مباشر دی، نو ښکاره خبره ده چې خامخا به هغه حانث کيږي.

**إذ لاحقوق له إلخ:** د دې حاصل دا دی چې په دغه عقودو کې د آمر (حالف) وطرف ته عقد راجع کيږي، او په دې عقدونو کې تر عقد وروسته هيڅ داسې حق نه پاتيږي چې هغه د مأمور وطرف ته راجع سي، لهذا په هر حال کې به دلته آمر مباشر او په خپله د عقد کونکی وي او حانث به ګرځي.

**ولو قال عنيت إلخ:** فرمايي که حالف ووايي چې زما نيت فقط دا وو چې زه به خپله غلام نه وهم او پسه به نه ذبح کوم که څه هم په بل چا يې کوم، نو په دې صورت کې به دياناً هم د هغه تصديق کيږي او قضاءً هم، او که دا معامله د طلاق او نکاح وي او حالف داسې خبره وکړي چې زما نيت په خپله نه کول وو، نو هلته به فقط دياناً د هغه تصديق کيږي، نه قضاءً، لکه په تېر عبارت کې چې دا مسئله بيان سوه.

**ووجه الفرق إلخ:** له دې ځای څخه د ضرب (وهلو) او طلاق ورکولو او داسې نورو فرق بيانوي، فرمايي چې طلاق د يو څو الفاظو ويلو ته وايي چې د هغوی په ويلو سره پر ښځې طلاق واقع کيږي، او بل چا ته د طلاق حکم کول په خپله د طلاق ورکولو په څير دي، او حالف چې په کوم لفظ سره قسم واخلي هغه لفظ "په خپله ويلو" ته او "په بل چا ويلو" دواړو ته شامليږي، اوس که چيري حالف بذات خود په هغه سره د تکلّم (ويلو) نيت وکړي، نو هغه په عام سره د خاص نيت وکړی، او بيله دليله په عام سره د خاص نيت کول د ظاهر خلاف دی، نو ځکه به د طلاق والا په مسئله کې قضاءً د حالف تصديق نه کيږي، لېکن د هغه په کلام کې د هغه د نيت احتمال هم په پوره توګه سته، نو ځکه به دياناً د هغه تصديق کيږي. د دې په خلاف د ضرب او ذبح مسئله ده نو دا دواړه حسي فعلونه او عقدونه دي (او محسوس شيان دي) او په خپل أثر سره پېژندل کيږي، لېکن څرنګه چې آمر (حالف) د دوی د وقوع سبب دی، نو ځکه مجازاً د هغه وطرف ته د دې فعلونو نسبت کيږي، لېکن که حالف په خپله د دې کارونو د نه کولو نيت وکړي (چې په لَا أَضْرِبُ عَبْدِیْ وَلَا أَذْبَحُ شَاتِيْ سره زما نيت په خپله نه وهل او نه ذبح کول دي)، نو هغه به د خپل کلام د حقيقي معنیٰ نيت کونکی وي، لهذا قضاءً به هم د هغه تصديق کيږي او دياناً هم.

(۲)... که يو سړی قسم واخلي چې زه به خپل أولاد (زامن) نه وهم، بيا دئ بل چا ته حکم وکړي چې زما أولاد ووهه!، او هغه د ده أولاد ووهي نو په دې صورت کې آمر (حالف) په خپل قسم کې نه حانث کيږي، ځکه چې د ضرب او وهلو نفع د ده د زامنو وطرف ته راجع کيږي، نه د حالف وطرف ته، يعني په دې وهلو سره به د هغه زوی ادب او انسانيت زده کړي او برابر به سي، نو ښکاره خبره ده چې په

دې کي د زوی فايده ده. نو ځکه به په دې مسئله کي د مأمور (وهونکي) فعل د آمر (حالف) وطرف ته نه منسوب کيږي او آمر به مباشر نه ګرځول کيږي. او ښکاره خبره ده چي کله آمر مباشر نه وی نو هغه به حانث هم نه ګرځي. د دې په خلاف د غلام په صورت کي د وهلو نفع (يعني د غلام فرمان بردار جوړېدل) د آمر وطرف ته راجع دي. نو ځکه به هلته د مأمور فعل د آمر وطرف ته منسوب کيږي او نتيجتاً به آمر په خپله مباشر وي او حانث به ګرځي.

## د "إِنْ بِعْتُ لَكَ" او د "إِنْ بِعْتُ ثَوْبًا لَكَ" حکم

وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ: إِنْ بِعْتُ لَكَ هٰذَا الثَّوْبَ فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ او کوم شوک چي بل چا ته ووايي: که چيري زه ستا لپاره دا جامه [کپړه] خرڅه کړم نو زما ښځه [پر ما] طلاقه ده فَدَسَّ الْمَحْلُوفُ عَلَيْهِ ثَوْبًا فِي ثِيَابِ الْحَالِفِ بيا محلوف عليه د حالف په جامو [کپړو] کي هغه جامه پټه کړه فَبَاعَهُ وَلَمْ يَعْلَمْ او حالف هغه خرڅه کړه [په داسي حال کي چي] هغه په دې تلبيس [پټولو] خبر نه وو لَمْ يَحْنَثْ نو هغه نه حانث کيږي لِأَنَّ حَرْفَ اللَّامِ دَخَلَ عَلَى الْبَيْعِ ځکه چي د "لام" حرف پر بيع داخل سوی دی فَيَقْتَضِي اخْتِصَاصَهُ بِهِ نو دا د محلوف عليه سره د بيع د خاصېدلو تقاضا کوي وَذٰلِكَ بِأَنْ يَفْعَلَهُ بِأَمْرِهِ او هغه په دې توګه چي حالف د محلوف عليه په حکم سره دا کار وکړي إِذِ الْبَيْعُ تَجْرِي فِيهِ النِّيَابَةُ ځکه چي په بيع کي نيابت جاري کيږي وَلَمْ تُوجَدْ او [دلته] نيابت موجود نه سو بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: إِنْ بِعْتُ ثَوْبًا لَكَ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه [داسي] ووايي: که ما ستا جامه [کپړه] خرڅه کړه [نو زما ښځه پر ما طلاقه ده] حَيْثُ يَحْنَثُ إِذَا بَاعَ ثَوْبًا مَمْلُوكًا لَهُ نو که حالف [په دې صورت کي] د محلوف عليه مملوکه جامه [کپړه] خرڅه کړي. نو حانث کيږي سَوَاءٌ كَانَ بِأَمْرِهِ أَوْ بِغَيْرِ أَمْرِهِ عَلِمَ بِذٰلِكَ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ برابره ده که [دا خرڅول] د محلوف عليه په حکم سره وي يا د هغه له حکم څخه بغير وي او [برابره ده] حالف په دې [تلبيس] خبر وي او که په خبر نه وي لِأَنَّ حَرْفَ اللَّامِ دَخَلَ عَلَى الْعَيْنِ ځکه چي [په دې صورت کي] د "لام" حرف پر ذات [کپړه] باندي داخل سوی دی لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ ځکه چي دا عين [کپړه] "لام" نژدې دی فَيَقْتَضِي الِاخْتِصَاصَ بِهِ نو دا د محلوف عليه سره د عين [کپړې] د خاصېدلو تقاضا کوي وَذٰلِكَ بِأَنْ يَكُونَ مَمْلُوكًا لَهُ او هغه په دې

توکه چي دا جامه [کپړه] د محلوف عليه په ملکيت کي وي وَنَظِيرُهُ الصِّيَاغَةُ وَالْخِيَاطَةُ وَكُلُّ مَاتَجْرِي فِيهِ النِّيَابَةُ او د دې مثال د زرګرۍ او خياطۍ کار دی او هر هغه کار دی چي په هغه کي نيابت جاري کيږي بِخِلَافِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَضَرْبِ الْغُلَامِ په خلاف د خوراک، څښاک او د غلام د وهلو لِأَنَّهُ لَايَحْتَمِلُ النِّيَابَةَ ځکه چي [په دې کارونو کي] يو کار هم .نيابت احتمال، نه لري [يعني په دې کارونو کي د نيابت هيڅ احتمال نسته] فَلَايَفْتَرِقُ الْحُكْمُ فِيهِ فِي الْوَجْهَيْنِ نو ځکه به په دې [کارونو] کي په دواړو صورتونو کي حکم نه سره جلا کيږي [بلکي د دواړو صورتونو حکم به يو وي]

**اللغات:** ﴿ثَوْب﴾ کالي، جامه (کپړه، ټوکر)، ﴿لَبَّسَ﴾ د تفعيل ماضي ده: يو شی مبهم ساتل، پټ ساتل، نا څرګندول. ﴿النِّيَابَة﴾ نائب کېدل، قائم مقام کېدل، ﴿صِيَاغَة﴾ زرګري، د زرو کسب او پېشه، له سرو او سپينو زرو څخه زېورات او د ښکلا شيان جوړول (لکه والي، غاړګی او داسي نور).
﴿خِيَاطَة﴾ خياطي (درزي توب)، ټوکر او کپړه ګنډل، کالي او جامې جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خالد و زيد ته ووايي: "په الله قسم! که چيري دا کپړه (ټوکر) ستا لپاره (يعني ستا په حکم سره) خرڅ کړم، نو زما ښځه پر ما طلاق ده"، بيا محلوف عليه يعني زيد هغه کپړه د خالد په کپړو کي پټه کړي، او خالد په دې خبر نه سي چي زما په کپړو کي د زيد کپړه هم سته، او بيا خالد خپله کپړه خرڅه کړي (چي په هغه کي د زيد کپړه هم خرڅه سي)، نو په دې صورت کي خالد (حالف) په خپل قسم کي نه حانث کيږي، يعني د هغه ښځه نه طلاقيږي: ځکه چي دلته د "لام" پر بيع داخل دی يعني د بيع سره متعلق دی، او دا دُخول او تعلّق د دې خبري تقاضا کوي چي (حالف هغه وخت حانث کيږي کله چي) دا بيع د محلوف عليه (زيد) سره خاص وي او د هغه په حکم سره وي ځکه چي په بيع کي هم نيابت جاري کيږي. لېکن دلته د محلوف عليه له طرفه هغه ته حکم سوی نه دی، بلکي محلوف عليه دا کار په پټه کړی دی. نو ځکه به حالف او بائع (خالد) نه حانث کيږي.

ها! که حالف لام پر عين (او ذات) باندي داخل کړي، يعني پر "ثَوْب" يې داخل کړي او د "ثَوْب" سره يې متعلق کړي او داسي ووايي: "إِنْ بِعْتُ ثَوْبًا لَکَ..." (که چيري زه ستا کپړه خرڅه کړم. نو زما ښځه پر ما طلاقه ده)، نو په دې صورت کي حالف د محلوف عليه د کپړې په خرڅولو سره نه حانث کيږي، هغه که محلوف عليه و حالف ته د دې کپړې د خرڅولو اجازه ور کړې وي او که نه وي، همدارنګه حالف په دې خبر وي چي دا د محلوف عليه کپړه ده او که په خبر نه وي. په هر

صورت کي هغه حانث کيږي، ځکه چي دلته د "لام" حرف پر عين يعني پر ثَوْب داخل دی او د ثَوْب سره متعلق دی، او په بِعْتُ ثَوْبًا لَکَ کي ثَوْب تر بِعْتُ لام ته ډېر نژدې دی (ځکه چي ثَوْبًا او لَکَ سره متصل دی، او بِعْتُ په شروع کي دی او د لَکَ څخه ليري دی)، مطلب دا چي دلته "لام" د ثَوْب سره متعلق دی، نو دا د دې خبري تقاضا کوي چي (حالف هغه وخت حانث کيږي کله چي) هغه د محلوف عليه کپړه خرڅه کړي هغه که محلوف عليه له طرفه حالف ته حکم وسي او که نه وسي (په دواړو صورتونو کي هغه حانث کيږي)، او دلته هغه د محلوف عليه کپړه خرڅه کړې ده، نو ځکه به حانث کيږي.

ونظيره إلخ: د دې عبارت حاصل دا دی چي په کومو کارو کي چي نيابت جاري کيږي او هلته د مؤکل پر ځای وکيل کار کوي يعني د وکيل کار د مؤکل کار شمارل کيږي، لکه د زرگری، کسب، خياطي (کپړې جوړول) او داسي نور، په داسي کارونو کي هم پورتنی حکم دی، مثلاً که خياط قسم واخلي او ووايي: إِنْ خِطْتُ لَكَ هٰذَا الثَّوْب، فَامْرَأَتِيْ طَالِقٌ (په الله قسم! که ما ستا لپاره (يعني ستا په حکم سره) دا کپړه وګنډله او جوړه کړه، نو پر ما ښځه طلاقه ده)، يا داسي ورته ووايي: إِنْ خِطْتُ ثَوْبًا لَكَ...إلخ) "په الله قسم! که ما ستا کپړه وګنډله، نو پر ما ښځه طلاق ده)، نو په دې دواړو جملو او صورتونو کي هم هغه فرق دی کوم چي د بيع په مسئله کي اوس ذکر سو، يعني د دواړو حکم سره جلا دی (يعني که په اوله جمله او صورت کي خياط په ناخبری سره د محلوف عليه کپړې جوړې کړي، نو نه حانث کيږي، او که په دويم صورت کي خياط د هغه کپړې جوړې کړي، نو په هر حالت کي حانث کيږي). لېکن په کومو کارو کي چي نيابت نه جاري کيږي، لکه خوراک، څښاک، خپل أولادوهل، په داسي کارونو کي حکم نه سره جلا کيږي، مثلاً که حالف ووايي: "إِنْ أَكَلْتُ لَكَ طَعَامًا...إلخ" يا ووايي: "إِنْ كُلْتُ طَعَامًا لَك...إلخ"، نو د دې دواړو صورتونو په حکم کي هيڅ فرق نه راځي، بلکي د دواړو حکم به يو وي، او په هر صورت کي به حالف حانث کيږي، همدغه خبره صاحب د هدايې په "لا يفترق الحکم فيه فى الوجهين" سره بيان کړې ده.

## د طلاق او عتاق يو څو مسئلې

وَمَنْ قَالَ: هٰذَا الْعَبْدُ حُرٌّ إِنْ بِعْتُهُ او که يو څوک ووايي: دا غلام آزاد دی که چيري زه هغه خرڅ کړم فَبَاعَهُ عَلٰى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ بيا هغه پر دې شرط غلام خرڅ کړی چي هغه ته به اختيار وي [يعني له رانيونکي (مشتري) څخه اختيار واخلي چي که زما بيع ناخوښه سوه، نو بيرته يې فسخ کوم، او

دې ته "خيارِ شرط" وايي] عَتَقَ نو غلام آزاديږي لِوُجُودِ الشَّرْطِ وَهُوَ الْبَيْعُ ځکه چې شرط موجود سو او هغه بيع ده وَالْمِلْكُ فِيهِ قَائِمٌ او په غلام کې [اوس هم دغلام] ملکيت موجود [او باقي] دی فَيَنْزِلُ الْجَزَاءُ نو ځکه به جزاء [آزادي] واقع کيږي وَكَذٰلِكَ لَوْ قَالَ الْمُشْتَرِيْ: إِنِ اشْتَرَيْتُهُ فَهُوَ حُرٌّ همدارنګه که رانيونکي ووايي: که چيري زه دا غلام رانيسم، نو هغه آزاد دی فَاشْتَرَاهُ عَلٰى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ بيا هغه په دې شرط سره غلام رانيسي چې هغه ته به اختيار وي عَتَقَ أَيْضًا نو هم دا غلام آزاديږي لِأَنَّ الشَّرْطَ قَدْ تَحَقَّقَ وَهُوَ الشِّرَاءُ ځکه چې شرط ثابت سو او هغه رانيول دي وَالْمِلْكُ قَائِمٌ فِيهِ او په هغه کې [د مشتري] ملکيت موجود [او ثابت] دی وَهٰذَا عَلٰى أَصْلِهِمَا ظَاهِرٌ او دا [د ملکيت وجود او ثبوت] خو د صاحبينو پر اُصول ښکاره دي [چې د مشتري ملکيت په دې غلام کې ثابتيږي] وَكَذَا عَلٰى أَصْلِهِ او همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر اُصول هم [د مشتري ملکيت موجود [او ثابت] دی لِأَنَّ هٰذَا الْعِتْقَ بِتَعْلِيقِهِ ځکه چې دا عتق د مشتري په معلق کولو سره [مُعلق ګرځېدلی] دی وَالْمُعَلَّقُ كَالْمُنَجَّزِ او معلق عتق د منجز په څير دی وَلَوْ نَجَّزَ الْعِتْقَ يَثْبُتُ الْمِلْكُ سَابِقًا عَلَيْهِ او که چيري مشتري عتق منجز ګرځولي وای، نو تر عتق مخکې به [د هغه] ملکيت ثابتېدلای فَكَذَا هٰذَا نو همداسي به دلته [هم] کيږي. وَمَنْ قَالَ: إِنْ لَمْ أَبِعْ هٰذَا الْعَبْدَ أَوْ هٰذِهِ الْأَمَةَ او که يو څوک ووايي: که چيري زه دا غلام يا مينځه نه رانيسم فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ نو زما ښځه [پر ما] طلاقه ده فَأَعْتَقَ أَوْ دَبَّرَ بيا هغه دا [مينځه يا غلام] آزاد کړي يا يې مدبر جوړ کړي طَلُقَتِ امْرَأَتُهُ نو د هغه ښځه طلاقيږي لِأَنَّ الشَّرْطَ قَدْ تَحَقَّقَ ځکه چې شرط ثابت سو وَهُوَ عَدَمُ الْبَيْعِ او هغه نه خرڅول دي لِفَوَاتِ مَحَلِّيَّةِ الْبَيْعِ ځکه چې د بيع محل والی [د إعتاق په وجه] فوت سو وَإِذَا قَالَتِ الْمَرْأَةُ لِزَوْجِهَا: تَزَوَّجْتَ عَلَيَّ او که ښځه خپل خاوند ته ووايي: آيا تا پر ما [بل] واده کړی دی [يعني ورته ووايي: ته قسم واخله! آيا تا زما څخه بغير د بلې ښځې سره نکاح کړې ده] فَقَالَ: كُلُّ امْرَأَةٍ لِي طَالِقٌ ثَلَاثًا او خاوند [په جواب کې] ورته ووايي: زما هرې ښځې ته درې طلاقه دي طَلُقَتْ هٰذِهِ الَّتِي حَلَّفَتْهُ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً دغه ښځه هم طلاقيږي چې هغې په خاوند قسم اخيستی دی او

پوښتنه يې ځني کړې ده | وَعَنْ أَبِيْ يُوسُفَ ❁ : أَنَّهَا لَا تَطْلُقُ اوله امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې دا ښځه نه طلاقيږي لِأَنَّهُ أَخْرَجَهُ جَوَابًا ځکه چې خاوند خپل کلام [ دهغې د پوښتنې ] په جواب کې را ايستلی [ اصادر کړی ] دی فَيَنْطَبِقُ عَلَيْهِ نو ځکه به سوال پر هغه منطبق کيږي وَلِأَنَّ غَرَضَهُ إِرْضَاؤُهَا او ځکه چې د خاوند مقصد د هغې راضي کول دي وَهُوَ بِطَلَاقِ غَيْرِهَا او دا [ دې ښځې راضي کېدل ] د بلې ښځې په طلاق سره ثابتيږي [ يعني دا ښځه هغه وخت راضي کيږي. کله چې د خاوند پر بلې ښځې طلاق واقع کړی سي، نه پر دغه سائله ښځې ] فَيَتَقَيَّدُ بِهِ نو ځکه به طلاق د بلې په بلې ښځې سره مقيد کيږي وَجْهُ الظَّاهِرِ عُمُومُ الْكَلَامِ د ظاهر روايت دليل [ د خاوند ] د کلام عام کېدل دي وَقَدْ زَادَ عَلَى حَرْفِ الْجَوَابِ او هغه د جواب پر حروفو اضافه هم کړې ده فَيُجْعَلُ مُبْتَدِئًا نو ځکه به هغه له نوي سره کلام کونکی شمارل کيږي [ مطلب دا چې د هغه کلام به مستقله جمله شمارل کيږي، نه جواب ] وَقَدْ يَكُونُ غَرَضُهُ إِيحَاشَهَا حِيْنَ اعْتَرَضَتْ عَلَيْهِ فِيمَا أَحَلَّهُ الشَّرْعُ او کله نا کله په داسي کلام سره د خاوند مقصد [ د ښځې ] بېرول [ او دمکي ورکول ] وي، په هغه وخت [ کله ] چې ښځه پر خاوند د شريعت د حلال سوي کار په باره کي اعتراض وکړي وَمَعَ التَّرَدُّدِ لَا يَصْلُحُ مُقَيِّدًا او د تردّد سره دا کلام د مُقَيِّد جوړېدلو صلاحيت نه لري وَإِنْ نَوَى غَيْرَهَا او که خاوند [ په خپل کلام کي ] له دغه [ سائله ] ښځې څخه بغير [ بلې ښځې ته د طلاق ورکولو ] نيت وکړي يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو دياتنا به د هغه تصديق کيږي، نه قضاءً لِأَنَّهُ تَخْصِيصُ الْعَامِّ ځکه چې دا عام [ کلام ] خاص ګرځول دي.

**اللغات:** ﴿مُنَجَّز﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: فوراً واقع کېد، غيرِ معلق، غيرِ مشروط. ﴿دَبَّر﴾ د تفعيل مصدر دی: مدبّر جوړول، د غلام آزادي پر خپل مرګ معلق کول. ﴿إِرْضَاء﴾ د افعال مصدر دی: راضي کول، خوشالول. ﴿إِيحَاش﴾ دا هم د افعال مصدر دی: په وحشت کي اچول (ترهول)، بېرول. ﴿تَرَدُّد﴾ د تفعّل مصدر دی: شکمن کېدل (مشکوک او غيرِيقيني کيفيت) ﴿تَخْصِيص﴾ د تفعيل مصدر دی: خاص کول (خاصول)، عام شی خاص ګرځول.

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ، قال العلامة ابن الهمام: وذكروا عن ابي يوسف رَحِمَهُ الله في شروح الجامع الصغير أنها لا تطلق، واختاره شمس الائمة وكثير من المشائخ، لأن الكلام خرج جواباً فينطبق على السوال (فتح القدير ج:٤، ص:٤٢٩)، وكذا في رد المحتار (ج:٣، ص:١٣٥). [القول الراجح ج:١، ص:٤٢٩]

**تشريح:** په دې عبارت کې ټوله ځلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی قسم واخلي او ووايي: "په الله قسم! که چيري زه دغه غلام خرڅ کړم، نو آزاد دی". بيا دا سړی په خيارِ شرط سره هغه غلام خرڅ کړي، نو غلام آزاديږي ځکه چي د عتق (آزادی) شرط موجود سو يعني حالف دا غلام خرڅ کړی، خو څرنګه چي حالف (بائع) د خپل ځان لپاره د خيار شرط لګولی وو، نو د دې شرط په وجه دا غلام د بائع له ملکيت څخه نه وځي، او جزاء (عتق) د هغه په ملکيت کي ثابتيږي (يعني د هغه په ملکيت کي دا غلام آزاديږي، ځکه چي د خيارِ شرط په وجه د هغه ملکيت اوس هم پاته دی).

(۲)... او که يو څوک داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! که چيري زه فلانکی غلام رانيسم، نو هغه آزاد دی". تر دې وروسته دا سړی په خيارِ شرط سره هغه غلام رانيسي، نو غلام آزاديږي، ځکه چي د عتق شرط يعني شراء (رانيول) موجود سو، او د شراء په وجه په دې غلام کي د حالف (مشتري) ملکيت ثابت سو. پاته سوه د خيارِ شرط مسئله، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د اُصول مطابق دغه خيار د مشتري لپاره د ملکيت له ثبوت څخه مانع نه دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم دغه خيار د ملکيت له ثبوت څخه مانع نه دی (يعني د خيارِ شرط با وجود په غلام کي د مشتري ملکيت ثابتيږي)، ځکه چي دلته عتق پر شرط معلق دی، او مُعلّق بالشرط د مُنجّز او فی الحاله واقع کولو په څير دی، او که چيري په خيارِ شرط سره يو څوک غلام رانيسي او پر هغه عتق معلق کړي، او بيا هغه تر وخت مخکي خيارِ شرط ختم کړي نو دا مُعلّق عتق مُنجّز ګرځي (يعني فی الحاله واقع کيږي) او هلته به د مشتري ملکيت له عتق څخه مخکي شمارل کيږي، همداسي به دلته هم دغه مُعلّق عتق مُنجز وي، او د مشتري (حالف) ملکيت به له عتق څخه مخکي شمارل کيږي. او رانيول سوی غلام به آزاديږي.

(۳)... که يو سړی داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! که چيري ما دغه مينځه يا غلام خرڅ نه کړی، نو زما ښځه طلاقه ده"، بيا حالف دا مينځه يا غلام آزاد کړی، يا يې مدبر جوړ کړی. نو د هغه ښځه طلاقيږي، ځکه چي د إعتاق يا تدبير په وجه په غلام او مينځه کي د بيع محليّت فوت سو (يعني دوی اوس د بيع او خرڅولو محل او قابل پاته نه سول)، او "د دوی نه خرڅول" د طلاق شرط وو، لهذا کله چي دا شرط موجود سو، نو ځکه به د حالف ښځه طلاقيږي.

(۴)... که زينب له خپل خاوند څخه داسي پوښتنه وکړه، چي "آيا زما څخه بغير تا د بلي ښځي سره نکاح کړې ده". او خاوند په جوش کي راغلی، په جواب کي يې ورته ووېل: "كُلُّ اِمْرَأَةٍ لِيْ طَالِقٌ ثَلَاثًا" (يعني زما هره ښځه پر ما ثلاثاً طلاقه ده)، نو قضاءً به پر دې ښځي (زينب) هم درې طلاقه واقع کيږي (يعني قاضي به د دې خبري فيصله کوي چي کومي ښځي له خاوند څخه پوښتنه کړې ده او د هغې په وجه خاوند طلاق او قسم اخيستی دی، هغه ښځه به هم ثلاثاً طلاقيږي)، دا ظاهر روايت دی، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي دا پوښتونکې ښځه (زينب) به نه طلاقيږي، ځکه چي د خاوند کلام "كُلُّ اِمْرَأَةٍ لِيْ...اِلخ" د هغې د سوال په جواب کي صادر سوی دی، لهذا دا جواب به فقط د هغې پر سوال منطبق کيږي (او له دې څخه به

تجاوز نه کيږي)، ګواکي خاوند داسي وويل: "كُلُّ اِمْرَأَةٍ لِيْ غَيْرُكِ طَالِقٌ ثَلَاثًا" (يعني ستا څخه بغير زما هره ښځه ثلاثاً طلاقه ده)، او ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي زينب نه طلاقيږي، په دې هکله دويم دليل دا دی چي د حالف مقصد د دې ښځي (زينب) راضي کول دي، او دا په هغه صورت کي کېدای سي کله چي پر زينب طلاق واقع نه سي، نو ځکه به طلاق په نورو ښځو سره مقيد کيږي، (يعني نو ځکه به د خاوند جواب له زينب څخه بغير د حالف د نورو ښځو په طلاق سره مقيد کيږي، او د هغه پر نورو ښځو به طلاق واقع کيږي).

**ووجه الظاهر إلخ:** د ظاهر روايت دليل دا دی چي خاوند دلته د كُلّ لفظ استعمال کړی ده او د كُلّ لفظ عام دی. او په جواب کي خاوند اضافه هم کړې دی، ځکه که دا جواب د سوال مطابق وای نو فقط دومره به وای "إِنْ تَزَوَّجْتُ فَهِيَ طَالِقٌ"، لېکن هغه اضافه وکړه او جواب يې جامع وګرځوی چي "كُلُّ اِمْرَأَةٍ لِيْ..."، او څرنګه چي د كُلّ لفظ عام دی چي هغه د حالف هري ښځي ته شامل دی او په هغه کي سائله ښځه (زينب) هم داخله دي. نو ځکه به هغه هم طلاقيږي.

**وقد يكون غرضه إلخ:** په دې سره امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، هغه ويلي وو چي د خاوند مقصد د دې سائله ښځي (زينب) راضي کول دي؟ د جواب حاصل دا دی چي په شريعت کي د خاوند لپاره له يوې څخه زياتي (څلور) ښځي روا دي، او دغه ښځي (زينب) د شريعت پر حلال او روا شي باندي داعتراض کولو کوښښ کړی دی، نو کېدای سي چي خاوند ډېر صوفي مسلکه (او ساده بزرګ) وي چي هغه به د ښځي (زينب) دا خبره د شريعت خلاف محسوسه کړې وي، نو هغه به د إيحاش (بېرولو) لپاره هغې ته په طلاق سره دمکي ورکړې وي، يا کېدای سي چي هغه د غصې په وجه دا ښځه هم په طلاق کي داخله کړې وي (او دا هم کېدای سي چي د هغه به دا ښځه خوښه نه وي، نو د بلي ښځي سره د نکاح کولو په نيت به يې هغه هم په طلاق کي داخله کړې وي)، لنډه دا چي کله د خاوند په دغه کلام کي د إرضاء او إيحاش دواړو احتمال سته. نو دا کلام به د سائله ښځي (زينب) څخه بغير د نورو ښځو په طلاق سره نه مُقيّد کيږي، بلکي په يوه وار به پر ټولو طلاق واقع کيږي.

او که خاوند داسي ووايي چي ما له سائله ښځي (زينب) څخه بغير نورو ښځو ته د طلاق په نيت سره دا کلام او جمله ويلې وه، نو دياتتاً به د هغه تصديق کيږي، ځکه چي د خاوند په کلام کي د دې نيت احتمال سته. لېکن قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي، ځکه چي دا کلام "كُلّ اِمْرَأَة..." عام دی. د خاوند ټولو ښځو ته شامليږي، لېکن کله چي خاوند له يوې ښځي څخه بغير په دې کلام سره د نورو ښځو نيت وکړی، نو هغه دا عام کلام خاص وګرځوی، او عام خاص ګرځول د ظاهر خلاف دي. او کوم أمر او مسئله چي د ظاهر خلاف وي، په هغه کي قضاءً تصديق نه کيږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْحَجِّ وَالصَّلَاةِ وَالصَّوْمِ

(دا) باب د حج، لمانځه او روژې په هکله د قسم اخیستلو (په بیان کې) دی

**تشریح:** په حج، لمانځه او روژه کې د قسم مسئله ډېره کمه پیښیږي، په دې وجه دا باب تر نورو بابونو وروسته بیان سوی دی، لیکن څرنګه چې حج، لمونځ او روژه عبادات دي، نو په دې وجه بیا دا باب د "لُبس" او "لِبَاس" پر باب مخکې بیان سوی دی. (عنایه او بنایه: ج:۶، ص:۱۵۹)

## د پیاده حج کولو قسم او نذر

وَمَنْ قَالَ وَهُوَ فِي الْكَعْبَةِ أَوْ فِي غَيْرِهَا: عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى بَيْتِ اللهِ تَعَالَى أَوْ إِلَى الْكَعْبَةِ او کوم سړی چې ووايي (په داسي حال کي چي هغه په کعبه شریفه کي وي یا بل ځای وي): پر ما بیتُ الله ته یا کعبې شریفې ته په پښو [پیاده] تلل واجب دي فَعَلَيْهِ حِجَّةٌ أَوْ عُمْرَةٌ مَاشِيًا نو پر هغه په پیاده تګ سره حج یا عمره کول واجب دي وَإِنْ شَاءَ رَكِبَ وَأَهْرَاقَ دَمًا او که وغواړي نو [پر سپارلي] دي سپور سي او وینه دي وبیوي [یعني دَم دي ورکړي (اوبنې دي ذبح کړي)] وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ او قیاس دا دی چي پر هغه هیڅ شی هم نه لازمیږي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ مَا لَيْسَ بِقُرْبَةٍ وَاجِبَةٍ وَلَا مَقْصُودَةٍ فِي الْأَصْلِ ځکه چي هغه یو داسي شی پر ځان لازم کړی دی کوم چي یو واجب عبادت نه دی او نه مقصود بالذات عبادت دی وَمَذْهَبُنَا مَأْثُورٌ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه [1] او زموږ مذهب له حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوی دی وَلِأَنَّ النَّاسَ تَعَارَفُوا إِيجَابَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ بِهَذَا اللَّفْظِ او ځکه چي په دې لفظ سره حج او عمره واجبول د خلکو په عُرف کي متعارف دي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: عَلَيَّ زِيَارَةُ الْبَيْتِ مَاشِيًا نو داسي سو لکه هغه چي ووايي: پر ما په پیاده تګ سره د بیتُ الله زیارت کول واجب دي فَيَلْزَمُهُ مَاشِيًا نو [په دې صورت کي] به پر هغه په پیاده تګ سره [د بیتُ الله زیارت کول] لازم وي وَإِنْ شَاءَ رَكِبَ وَأَهْرَقَ

---

[1] تخریج: رواه البیهقي في السنن الکبری، باب الهدی فیما رکب، حدیث رقم: ٢٠٦٢١، ١٩٩١.

دَمًا او که هغه وغواړي نو سپور دې سي او وینه دې وبیوي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْمَنَاسِكِ او په کتاب المناسک کي موږ دا [مسئله] ذکر کړې ده وَلَوْقَالَ: عَلَيَّ الْخُرُوجُ أَوِ الذَّهَابُ إِلَى بَيْتِ اللهِ تَعَالَى او که [یو څوک] ووايي: پر ما د بیتُ الله وطرف ته وتل یا تلل واجب دي فَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هیڅ شی هم واجب نه دي لِأَنَّ الْتِزَامَ الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ بِهَذَا اللَّفْظِ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چي په دغه لفظ سره حج یا عمره پر ځان لازمول متعارف نه دي. [یعني په عرف کي مشهور او معهود نه دي].

**اللغات:** ﴿مَشْيٌ﴾ د ضرب مصدر دی: پیاده تلل، په پښو تلل. ﴿أَهْرَقَ﴾ د افعال ماضي ده: بیول (بهول). ﴿دَمٌ﴾ وینه (مراد ځني قرباني ده). ﴿قُرْبَةٌ﴾ د نېکۍ کار (داسي کار چي په هغه سره د الله نژدېک حاصل سي). عبادت. ﴿مَأْثُورٌ﴾ نقل سوی (منقول). ﴿إِلْتِزَامٌ﴾ د افتعال مصدر دی: پر ځان یو شی لازمول (پر ځان منل). دیو شي ذمه واري پر ځان واخيستل. (په غاړه اخيستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! پر ما بیتُ الله یا کعبې شریفي ته په پښو تلل واجب دي"، نو پر دې سړي حج یا عمره کول واجب دي. هغه که دې سړي په کعبه شریفه کي دا خبره کړې وي یا یې بهر بل ځای کړې وي، په هر صورت کي پر ده استحساناً پیاده تلل او حج یا عمره کول واجب دي، او که هغه په سپر تیا حج ته ولاړ سي، نو دَمْ به ورکوي (چي هغه د اوښ ذبح کول دي)، او د قياس تقاضا دا ده چي پر هغه حج، عمره او هیڅ شی هم واجب نه سي، ځکه چي هغه د پیاده تللو نذر منلی دی. او پیاده تلل (مَشْي) خو نه قُربت او عبادت دی او نه بذاتِ خود مقصود دی، بلکي دا بیتُ الله او کعبې ته د رسېدلو ذریعه او وسیله ده، نو ځکه پر حالف قیاساً هیڅ شی هم واجبېدل پکار نه دي.

زموږ دلیل دا دی چي له حضرت علي ﷺ څخه په دې سلسله کي أثر نقل سوی دی. أثر دا دی "عَنْ عَبْدِ اللهِ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ فِيمَنْ نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ إِلَى الْبَيْتِ، قَالَ يَمْشِيْ فَإِذَا أَعْيَى رَكِبَ وَيُهْدِيْ جَزُوْرًا" (مصنف عبد الرزاق ج: ۸، ص: ۳۹۱، رقم: ۱۶۱۴۹). دا أثر په بیهقي کي هم ذکر سوی دی چي د هغه تخریج موږ په عبارت کي ذکر کړه. د دې ترجمه دا ده چي "له حضرت علي ﷺ څخه د هغه کس په باره کي (کوم چي بیتُ الله ته د پیاده تګ کولو نذر منلی وي) داسي نقل سوي دي چي هغه به بیتُ الله ته پیاده ځي، او که ستړی سي (د پیاده تللو قدرت نه لري). نو په سپر تیا دي ولاړ سي او د هدی څاروی دي ذبح کړي (یعني دَمْ دي ورکړي)". په همدې معنیٰ سره په

ابوداؤد شریف کي هم يو حديث ذکر سوی دی. (ابو داؤد، باب من رأی علیه کفارة إذا کان فی معصیة ص: ۴۷۹، حدیث رقم: ۳۲۹۷)

عقلي دليل دا دی چي د خلکو په عرف کي په داسي خبره او جمله سره پياده حج او عمره کول واجبيږي، او په شريعت کي عرف ته اعتبار ورکول سوی دی، او ډيري مسئلې پر عرف مبني دي، نو له دې دواړو دليلونو څخه دا خبره ښکاره سوه چي په دې مسئله کي پر حالف پياده حج يا عمره کول واجب دي، کنې دم به ورکوي.

ولوقال علی الخروج إلخ: فرمايي که يو څوک داسي ووايي "په الله قسم پر ما د بيتُ الله لپاره وتل يا تر بيتُ الله پوري تلل واجب دي" نو په دې خبره سره حج يا عمره نه واجبيږي، ځکه چي په داسي جمله سره په عرف کي حج يا عمره کول مشهور او متعارف نه دي.

## حرم ته د پياده تللو نذر

وَلَوْقَالَ: عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْحَرَمِ أَوْإِلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ او که [يو څوک] ووايي: پر ما حرم او صفا و مروه ته پياده تلل واجب دي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: فِيْ قَوْلِهٖ عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْحَرَمِ حَجَّةٌ أَوْ عُمْرَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د هغه په دې قول "عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْحَرَم" کي [پر هغه] حج يا عمره کول واجب دي وَلَوْقَالَ إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فَهُوَ عَلٰى هٰذَا الْاِخْتِلَافِ ❁ او که هغه "إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَام" ووايي، نو دا [هم] پر دغه اختلاف دي لَهُمَا: أَنَّ الْحَرَمَ شَامِلٌ عَلَى الْبَيْتِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي حرم بيتُ الله ته شامل دی بِالْاِتِّصَالِ ځکه چي [دوی دواړه] سره متصل دي [يعني کعبه په حرم کي دننه ده، نو دواړه سره متصل او يو ځای دي] وَكَذَا الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ او همدارنګه مسجدِ حرام هم بيتُ الله ته شامل دی فَصَارَ ذِكْرُهٗ كَذِكْرِهٖ نو د حرم ذکر کول د بيتُ الله د ذکر کولو سره مشابه سو بِخِلَافِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ په خلاف د صفا او مروه لِأَنَّهُمَا مُنْفَصِلَانِ عَنْهُ ځکه چي دا دواړه له بيتُ الله څخه جلا دي وَلَهٗ: أَنَّ الْتِزَامَ الْإِحْرَامِ بِهٰذِهِ الْعِبَارَةِ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ د

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:۲، ص:۲۹۲)، وكذا في الدر المختار (ج:۳، ص:۱۳۷).
[القول الراجح ج:۱، ص: ۴۳۰]

امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په دې جملې سره احرام پر ځان لازمول [په خلګو کي] متعارف نه دي وَلَايُمْكِنُ إِيجَابُهُ بِاعْتِبَارِ حَقِيقَةِ اللَّفْظِ او د لفظ د حقيقي معنىٰ په اعتبار کولو سره احرام واجبول ممکن [هم] نه دي فَامْتَنَعَ أَصْلًا نو دا بالکل ممتنع سو [نو ځکه به نه حج پر واجب وي او نه عمره].

**اللغات:** ﴿بَيْت﴾ کور، مراد ځني بيتُ الله (کعبه شريفه) ده. ﴿إِتِّصَال﴾ د افتعال مصدر دی: متصل کېدل، جوختېدل، سره يو ځای کېدل. ﴿مُنْفَصِلَان﴾ د مُنْفَصِلٌ تثنيه ده: جلا، بېل، عليحده. ﴿إِلْتِزَام﴾ د افتعال مصدر دی: پر ځان يو شی لازمول (پر ځان منل).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی ووايي: "په الله قسم! پر ما حرم يا صفا ومروه ته پيياده تلل واجب دي"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دې سړي نه حج واجبيږي او نه عمره. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د صفا ومروه د ويلو په صورت کي خو پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي. لېکن د عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْحَرَمِ د ويلو په صورت کي پر هغه پيياده حج يا عمره کول واجبيږي. همدارنګه د إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ د ويلو په صورت کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي. لېکن پر د صاحبينو په نېز پر هغه پيياده حج يا عمره واجب دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي الْحَرَم بيتُ الله ته شامل دی، همدارنګه الْمَسْجِدِ الْحَرَام هم بيتُ الله ته شامل دی، نو ځکه به د الْحَرَم او الْمَسْجِد الْحَرَام ذکر کول د بيتُ الله د ذکر کولو سره مشابه وي، او د عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْبَيْتِ د ويلو په صورت کي پر حالف حج يا عمره واجبيږي، نو ځکه به د عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الْحَرَمِ أَو الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ د ويلو په صورت کي هم پر هغه حج يا عمره واجبيږي، د دې په خلاف د عَلَيَّ الْمَشْيُ إِلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ د ويلو په صورت کي پر حالف حج يا عمره نه واجبيږي، ځکه چي صفا ومروه د بيتُ الله څخه خارج او بهر دي.

**د امام صاحب دليل:** چي په دې داسي جمله او الفاظو سره د إحرام د تړلو التزام کول (يعني په داسي خبره او جمله سره پر ځان حج يا عمره لازمول) په عرف کي متعين او مشهور نه دي. او د مَشْي د حقيقي معنىٰ (يعني د پيياده تللو) په اعتبار سره هم په دې الفاظو سره د إحرام التزام کېدای نه سي، ځکه چي دا الفاظ د إحرام د التزام لپاره موضوع نه دي. لهذا کله چي د وضع او حقيقت او عرف ټولو په اعتبار سره د داسي جملې په ذريعه د إحرام التزام کېدای نه سي، نو ځکه موږ دا جمله د حج يا عمرې د واجبولو له معنىٰ څخه بالکل خارج او مسترد کړه.

## په مُعيّن کال کې د حج کولو نذر

وَمَنْ قَالَ: عَبْدِي حُرٌّ إِنْ لَمْ أَحُجَّ الْعَامَ او کوم کس چې ووايي: که چيرې زه سږکال حج نه وکړم، نو زما غلام آزاد دی فَقَالَ: حَجَجْتُ بيا هغه ووېل: چې ما حج وکړی وَشَهِدَ شَاهِدَانِ أَنَّهُ ضَحَّى الْعَامَ بِالْكُوفَةِ او دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چې حالف [خو] سږکال په کوفه کې قرباني وکړه لَمْ يُعْتَقْ عَبْدُهُ نو د هغه غلام نه آزاديږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ●: يُعْتَقُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [د هغه] غلام آزاديږي لِأَنَّ هَذِهِ شَهَادَةٌ قَامَتْ عَلَى أَمْرٍ مَعْلُومٍ وَهُوَ التَّضْحِيَةُ ځکه چې دا شهادت [ګواهي] پر معلوم کار يعني پر قرباني کولو باندې واقع سوې ده [چې دغه سړي په کوفه کې قرباني کړې ده] وَمِنْ ضَرُورَتِهِ انْتِفَاءُ الْحَجِّ او د هغه د لوازماتو څخه د حج منتفي کېدل دي [يعني د هغه اثر دا دی چې حج نفي سي] فَيَتَحَقَّقُ الشَّرْطُ نو شرط به ثابتيږي وَلَهُمَا: أَنَّهَا قَامَتْ عَلَى النَّفْيِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې دا شهادت پر نفي واقع سوی دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا نَفْيُ الْحَجِّ لَا إِثْبَاتُ التَّضْحِيَةِ ځکه چې له دې شهادت څخه مقصود د حج نفي کول دي، نه د قربانۍ ثابتول لِأَنَّهُ لَا مُطَالِبَ لَهَا ځکه چې د قربانۍ هيڅ مُطالبه کونکي نسته [يعني د قربانۍ ثابتولو دعویٰ هيچا نه ده کړې] فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدُوا أَنَّهُ لَمْ يَحُجَّ نو داسي سو لکه څو خلک چې دا ګواهي ورکړي چې هغه [سږکال] حج نه دی کړی غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّ هَذَا النَّفْيَ مِمَّا يُحِيطُ عِلْمُ الشَّاهِدِ بِهِ آخر دا [سوال] کېدای سي چې دا نفي داسې دي چې پر هغه د ګواه علم احاطه کولای سي وَلَكِنَّهُ لَا يُمَيَّزُ بَيْنَ نَفْيٍ وَنَفْيٍ تَيْسِيرًا ليکن د آسانۍ [او د حرج دفع کولو] لپاره به د يوې نفي او بلې نفي په مينځ کې فرق نه کول کيږي.

**اللغات:** ﴿الْعَامَ﴾ (په الف لام سره): دغه کال، سږکال. ﴿غَايَةُ الْأَمْرِ﴾ آخري نتيجه. ﴿لَا يُمَيَّزُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: فرق کول، توپير کول. ﴿تَيْسِيرٌ﴾ د تفعيل مصدر دی: آساني کول (آساني پيدا کول).

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٣٧)، وكذا في فتح القدير (ج:٤، ص:...) [...] ج:١، ص:٤٣١]

**تشریح : مسئله**: دا ده که یو سړی مثلاً ووایل "په الله قسم! که زه سږکال حج نه وکړم. نو زما غلام آزاد دی". بیا هغه دا دعوی وکړه چې ما سږکال حج وکړی. او دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چې دې سړي خو سږکال په کوفه کې قرباني وکړه (یعني په کوفه کې یې د قربانۍ څاروی ذبح کړی). نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه غلام نه آزادیږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز آزادیږي.

**د امام محمد دلیل**: دا دی چې د دې کسانو ګواهي پر یو معلوم شي یعني پر تضحیه (قرباني کولو) باندې واقع سوې ده. له دې څخه دا معلومیږي چې هغه سږکال حج نه دی کړی. ځکه که هغه حج کړي وای نو په مکه او منیٰ کې به یې قرباني کولای، نه په کوفه کې. معلومه سوه چې هغه په سږکال حج کړی نه دی. او څرنګه چې حج نه کول د غلام د عتق لپاره شرط وو. او دا شرط موجود سو. نو ځکه به د هغه غلام آزادیږي.

**د شیخینو دلیـــل**: دا دی چې دغه شهادت (ګواهي) د حج پر نفي ورکول سوې ده او په دې سره د قربانۍ ثابتول مقصود نه دي؛ ځکه چې دلته د قربانۍ هیڅ مطلب نسته. نو دا د حج پر نفي کولو شهادت دی. او د نفي کولو شهادت (شهادت علی النفی) مقبول او معتبر نه دی. مثلاً که یو څو خلک دا ګواهي ورکړي چې دغه سړي (حالف) حج نه دی کړی. نو دا شهادت هم نه قبلیږي. همداسې به په دې مسئله کې شهادت نه قبلیږي. بلکې د حالف قول او دعویٰ به منل کیږي او غلام به نه آزادیږي. ځکه چې د غلام آزادي او عتق د حج پر نه کولو معلق او مشروط وو. او هغه حج نه دی کړی. نو ځکه به غلام نه آزادیږي.

غاية الأمر الخ: په دې سره د یو مُقدّر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چې شهادت علی النفی هغه وخت نه قبلیږي. کله چې شاهد (ګواه) په نفي خبر نه وي. او که شاهد په نفي خبر وي او په هغه علم لري. نو بیا شهادت قبلیږي. او څرنګه چې په دې مسئله کې شاهد په نفي خبر دی (چې هغه حج نه دی کړی). او که خبر نه وي، نو هغه په دې هکله نور معلومات تر لاسه کولای سي. نو ځکه د هغه شهادت قبلول پکار دي. حالانکې تاسې دلته هم د هغه شهادت ردّ کړی دی. آخر د دې څه وجه ده؟

د جواب حاصل دا دی چې په دې خبره کې فرق او تمیز کول چې آیا شاهد ته د نفي پوره علم او خبر سته. او که هغه ته د نفي پوره علم او خبر نسته مشکل دي (یعني د خلکو لپاره دا خبره معلومول مشکل او ستونزمن دي چې آیا هغه رښتیا په نفي خبر دی او که نه دی. او هغه رښتیا معلومات لري. کنه؟ ځکه چې په نفي د هغه خبرېدل یا نه خبرېدل مخفي شی دی). نو ځکه د آسانۍ او حرج دفع کولو په خاطر مطلقاً دا حکم سوی دی چې شهادت علی النفی بالکل مقبول نه دی. لهذا په دې باره کې دې سوال او اعتراض نه کیږي.

## د روژې يا لمانځه د نه اداء کولو تر قسم وروسته بيرته هغه شروع کول

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَصُومُ او کوم څوک چې قسم واخلي چې روژه به نه نيسي فَنَوَى الصَّوْمَ بيا هغه د روژې نيت وکړي وَصَامَ سَاعَةً او څه ګړۍ روژه ونيسي ثُمَّ أَفْطَرَ مِنْ يَوْمِهِ بيا په هغه ورځ کې افطار وکړي حَنِثَ نو حانث کيږي لِوُجُودِ الشَّرْطِ ځکه چې [د حنث] شرط موجود سو إِذِ الصَّوْمُ هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْمُفَطِّرَاتِ عَلَى قَصْدِ التَّقَرُّبِ ځکه چې "روژه" د عبادت په نيت له روژه ماتونکو شيانو څخه منع کېدلو ته وايي [که څه هم هغه لږ ګړي وي] وَلَوْ حَلَفَ لَا يَصُومُ يَوْمًا أَوْ صَوْمًا او که هغه [داسي] قسم واخلي چې يوه ورځ به روژه نيسي يا يوه روژه به نه نيسي فَصَامَ سَاعَةً بيا لږ ګړي روژه ونيسي ثُمَّ أَفْطَرَ بيا روژه ماته کړي لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ الصَّوْمُ التَّامُّ الْمُعْتَبَرُ شَرْعًا ځکه چې په دې [جمله] سره پوره روژه مراديږي کوم چې شرعاً معتبره وي وَذَلِكَ بِإِنْهَائِهِ إِلَى آخِرِ الْيَوْمِ او هغه د ورځې تر آخره پوري روژه رسول [پوره کول] دي وَالْيَوْمُ صَرِيحٌ فِي تَقْدِيرِ الْمُدَّةِ بِهِ او د روژې د مودت د اندازه کولو لپاره د يَوْم لفظ صريح دی وَلَوْ حَلَفَ لَا يُصَلِّي او که [يو څوک] قسم واخلي چې لمونځ به نه کوي فَقَامَ وَقَرَأَ وَرَكَعَ او [بيا] هغه ودريږي او قرائت وکړي او رکوع وکړي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَإِنْ سَجَدَ مَعَ ذَلِكَ او که د دې [أرکانو] سره سجده [هم] وکړي ثُمَّ قَطَعَ بيا لمونځ قطع کړي [يعني تر سجدې وروسته لمونځ پريږدي] حَنِثَ نو حانث کيږي وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَحْنَثَ بِالِافْتِتَاحِ او قياس دا دی چې هغه [محض] په شروع کولو سره حانث سي اِعْتِبَارًا بِالشُّرُوعِ فِي الصَّوْمِ د روژې په شروع کولو باندې په قياس کولو سره وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الصَّلَاةَ عِبَارَةٌ عَنِ الْأَرْكَانِ الْمُخْتَلِفَةِ د استحسان دليل دا دی: چې لمونځ له بېلابېلو أرکانو څخه عبارت دی [يعني لمونځ د مختلفه أرکانو مجموعې ته وايي] فَمَا لَمْ يَأْتِ بِجَمِيعِهَا لَا يُسَمَّى صَلَاةً نو تر څو چې ټول أرکان اداء نه کړي [تر هغه وخته پوري] هغه ته لمونځ نه ويل کيږي بِخِلَافِ الصَّوْمِ لِأَنَّهُ رُكْنٌ وَاحِدٌ وَهُوَ الْإِمْسَاكُ په خلاف د روژې، ځکه چې هغه [فقط] يو رکن دی او هغه إمساک دی وَيَتَكَرَّرُ فِي الْجُزْءِ الثَّانِي او دا إمساک په دويم جزء کې تکراريږي [مطلب دا چې تر يوه ګړي وروسته په دويم

ګړي کي هغه روژه مکروه کيږي] وَلَوْحَلَفَ لَايُصَلِّ صَلَاةً او که هغه [داسي] واخلي چي يو لمونځ به نه کوي لَايَحْنَثُ مَالَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ نو تر څو چي دوه رکعته نه وکړي، نه حانث کيږي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ الصَّلَاةُ الْمُعْتَبَرَةُ شَرْعًا ځکه چي په دې [جملې] سره داسي لمونځ مراديږي کوم چي په شريعت کي معتبر وي وَأَقَلُّهَا رَكْعَتَانِ او د هغه کمه اندازه دوه رکعته دي لِلنَّهْيِ عَنِ الْبُتَيْرَاءِ ځکه چي [په شريعت کي] له يو رکعتيز لمانځه څخه منع سوې ده.

**اللغات:** ﴿سَاعَةً﴾ يو ګړی (لږ ګړی)، يوه شيبه، ﴿إِمْسَاكٌ﴾ د افعال مصدر دی: منع کېدل، پرهېز کول، ﴿تَقَرُّبٌ﴾ د تفعّل مصدر دی: د الله نژدېکت ترلاسه کول، نېکي ګټل، ﴿تَامٌّ﴾ پوره، بشپړ، مکمّل، ﴿إِنْهَاءٌ﴾ تر آخره پوري رسول، پوره کول، ﴿يَتَكَرَّرُ﴾ د تفعّل مضارع ده: مکرر کېدل، راګرځېدل، ﴿بُتَيْرَاءُ﴾ يو رکعتيز لمونځ (يو رکعت والا لمونځ).

**تشريح:** په دې عبارت کي ټوله څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... که يو څوک قسم واخلي چي "په الله قسم! روژه به نه نيسم"، بيا هغه د روژې نيت وکړي، او د لږ ګړي لپاره روژه ونيسي او بيا يې ماته کړي، نو حانث کيږي (يعني که محض په روژه شروع وکړي نو حانث کيږي)؛ ځکه چي د حِنث (حانث کېدلو) شرط يعني روژه نيول موجود سو، او د عبادت او روژې په نيت د لږ ګړي لپاره هم له مفطرات ثلاثه (خوراک، څښاک او جماع) څخه منع کېدلو ته روژه وايي، او حالف د مطلق روژې د نه نيولو قسم کړی دی، نو ځکه به هغه حانث کيږي.

(٢)... که يو څوک داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! زه به يوه ورځ روژه نه نيسم، يا داسي ووايي: زه به يوه روژه نه نيسم"، بيا هغه د څه وخت لپاره روژه ونيسي او بيرته يې ماته کړي، يعني پوره ورځ روژه نه ونيسي، نو هغه نه حانث کيږي؛ ځکه چي د حِنث شرط يوه ورځ روژه نيول دي، او د دې مطلب دا دی چي هغه يوه پوره روژه ونيسي کوم چي شرعاً معتبره وي، او شرعاً هغه روژه معتبره ده کوم چي له صبح صادق څخه تر لمر لوېدلو پوري ونيول سي، حالانکي دلته حالف فقط د معمولي وخت لپاره روژه نيولې ده، نو د حِنث شرط موجود نه سو، نو ځکه به هغه نه حانث کيږي.

(٣)... که يو سړی قسم واخلي چي "لمونځ به نه کوم"، بيا هغه د لمانځه په نيت سره ودريږي، قرائت او رکوع وکړي، لېکن سجده نه وکړي، نو استحساناً نه حانث کيږي، او که سجده وکړي، نو

حانث کيږي. لېکن د قياس تقاضا دا ده چې محض د لمانځه په شروع کولو سره هغه حانث کيږي لکه څرنګه چې د مطلق روژې د نه نيولو په قسم کې محض په روژه شروع کولو سره هغه حانث کيږي. لېکن موږ استحساناً ځکه هغه فقط د لمانځه په شروع کولو سره حانث نه ګرځوو. ځکه چې لمونځ د څلورو أرکانو مجموعې ته وايي: قيام. قرائت. رکوع او سجده. (مطلب دا چې ولاړه هغه وخت لمونځ شمارل کيږي کله چې تر قرائت او رکوع کولو وروسته سجده هم وسي). لهذا تر څو چې هغه سجده نه وکړي، تر هغه وخته پورې به لمونځ کونکی نه شمارل کيږي او نه به حانث کيږي. د دې په خلاف د روژې معامله ده. نو روژه فقط إمساک ته وايي (يعني له خوراک. څښاک او جماع څخه ځان نيول)، او دا إمساک تر لمر لوېدلو پورې مکرّر کيږي (يعني د ورځې چې څومره اجزاء او ساعتونه دي په هغه کې تر هر ساعت او ګړي وروسته په دويم ساعت او ګړي کې إمساک مکرر کيږي، مطلب دا چې د وخت په هر دويم جزء کې امساک مکرر کيږي)، لهذا کله چې په يوه جزء او ګړي کې هم إمساک موجود سي، نو سمدستي به حالف حانث کيږي.

(۴)... که يو سړی قسم واخلي چې "لَا أُصَلِّيْ صَلَاةً" (زه به "يو لمونځ" نه کوم)، نو له "صَلَاةً" نکره څخه دوه رکعته لمونځ کول مراديږي (يعني له "يوه لمونځ" څخه به پوره دوه رکعته لمونځ کول مراديږي)، لهذا تر څو چې هغه پوره دوه رکعته لمونځ نه وکړي، تر هغه وخته پورې نه حانث کيږي. ځکه چې په حديث کې له "صلاةِ بتيراء" يعني له يو رکعتيز لمانځه څخه منع سوې ده. له دې څخه معلومه سوه چې د صَلَاةً مصداق او مفهوم دوه رکعته دي، نو ځکه به حالف د دوو رکعتو په کولو سره حانث کيږي، د يوه رکعت يا يو نيم رکعت او داسې نورو په کولو سره به نه حانث کيږي. والله أعلم



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي لُبْسِ الثِّيَابِ وَالْحُلِيِّ وَغَيْرِ ذٰلِكَ

(دا) باب د جامو (کالو)، زېورا تو او داسې نورو په هکله د قسم اخيستلو (په بيان کې) دی

**تشريح**: الثِّيَاب جمع د ثَوْبٌ ده، ثَوْبٌ جامه او کالی ته وايي، او حُلِيّ د حَلْيٌ جمع ده، د حَلْيٌ معنیٰ ده: زېو، ګاڼه، پسول، د دې جمع حِلِيّ هم راځي، او حِلْيَة هم خلافُ القياس زېور ته وايي، چې د هغه جمع حُلًى او حِلًى راځي، صاحب د بنايې ليکلي دي چې حُلِي هغه زېوراتو ته وايي کوم چې له سرو او سپينو زرو څخه بغير وي (يعني له سونې او سپينو زرو څخه بغير نور زېورات کوم چې ښځه استعمالوي).

## د نذر يو ځانګړی صورت

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهٖ: إِنْ لَبِسْتُ مِنْ غَزْلِكِ او کوم سړی چې خپلې ښځې ته ووايي: که زه ستا د وودل سې تار [مالوچو] جامه واغوندم فَهُوَ هَدْيٌ نو هغه هدی دي [يعني د مکې د فقيرانو لپاره صدقه دي] فَاشْتَرٰى قُطْنًا بيا ده [خاوند] مالوچ رانيول فَغَزَلَتْهُ وَنَسَجَتْهُ او د ده ښځې له هغه مالوچو څخه تارونه وودل [جوړ کړل] او له هغو څخه يې جامه تياره کړه فَلَبِسَهُ او خاوند هغه جامه واغوستل فَهُوَ هَدْيٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا جامه هدی ده وَقَالَا ❁: لَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُهْدِيَ حَتّٰى تَغْزِلَ مِنْ قُطْنٍ مَلَكَهٗ يَوْمَ حَلَفَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر خاوند [دغه جامه] هدی کول واجب نه دي تر دې چې ښځه له هغو مالوچو څخه تارونه وودي [او جامه ځني تياره کړي] چې خاوند د قسم اخيستلو په ورځ د هغوی مالک وي وَمَعْنَى الْهَدْيِ: اَلتَّصَدُّقُ بِهٖ بِمَكَّةَ او د هدی معنیٰ ده: په مکه مکرّمه کې هغه صدقه کول لِأَنَّهٗ اسْمٌ لِمَا يُهْدٰى إِلَيْهَا ځکه چې هدی هغه شی ته

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في فتح القدير (ج:۴، ص:۴۵۷)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۱۴۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۳۳]

وايي کوم چي مکې ته د هديه په توګه واستول سي لَهُمَا: أَنَّ النَّذْرَ إِنَّمَا يَصِحُّ فِي الْمِلْكِ أَوْ مُضَافًا إِلَى سَبَبِ الْمِلْكِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي نذر خو يا په [خپل] ملکيت کي صحيح کيږي يا د ملکيت د سبب وطرف ته د هغه په نسبت کولو سره صحيح کيږي وَلَمْ يُوجَدْ دلته له دواړو څخه [يو [هم] موجود نه دی لِأَنَّ اللُّبْسَ وَغَزْلَ الْمَرْأَةِ لَيْسَا مِنْ أَسْبَابِ مِلْكِهِ ځکه چي جامې اغوستل او د ښځي تارونه [او جامه] جوړول د خاوند د ملکيت سبب نه دی [يعني په دې سره خاوند د مالوچو او جامې مالک نه جوړيږي، بلکي خاوند په رانيولو سره د هغه مالک جوړيږي] وَلَهُ: أَنَّ غَزْلَ الْمَرْأَةِ عَادَةً يَكُونُ مِنْ قُطْنِ الزَّوْجِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي ښځه عادتاً [عموماً] د خاوند له مالوچو څخه تارونه [او جامه] جوړوي وَالْمُعْتَادُ هُوَ الْمُرَادُ او کوم شی چي عادت [او رواج] وي [په قسم کي] هغه مراديږي وَذَلِكَ سَبَبٌ لِمِلْكِهِ او دا د خاوند د ملکيت سبب دی وَلِهَذَا يَحْنَثُ إِذَا غَزَلَتْ مِنْ قُطْنٍ مَمْلُوكٍ لَهُ وَقْتَ النَّذْرِ او همدا وجه ده که چيري ښځي د نذر په وخت کي د خاوند له مملوکه مالوچو څخه تارونه [او جامه] جوړ کړي، نو خاوند حانث کيږي لِأَنَّ الْقُطْنَ لَمْ يَصِرْ مَذْكُورًا ځکه چي قُطْن [دلته] ذکر سوی نه دی.

**اللغات**: ﴿غَزْلِكِ﴾ غَزْل د مَغْزُوْل په معنیٰ سره دی: يعني هغه تار کوم چي له مالوچو (پمبې) څخه وودل سي، له مالوچو څخه جوړ سوی تار (مځکي به د څرخې په ذريعه له مالوچو څخه تارونه جوړېدل، او بيا به له هغو تارو څخه کالي او جامه جوړېدله، له غَزْل څخه همدغه مراد دي)، ﴿قُطْن﴾ مالوچ (صفا سوې پنبه چي پنبه دانه ځني کښل سوې وي)، ﴿مُعْتَاد﴾ د افتعال اسمِ مفعول دی: د عادت مطابق.

**تشريح: مسئله**: دا ده که يو سړی خپلي ښځي ته وويل "په الله قسم! که ما ستا په لاس د "وودل سوي تارونو" جامه واغوستل، نو هغه جامه د مکې د فقيرانو لپاره صدقه ده" (يا مثلاً ور ته ووايي: که ما ستا د لاس جوړ سوي کالي واغوستل، نو هغه زما له طرفه فقيرانو ته صدقه او خيرات دي)، ترڅو وروسته خاوند مالوچ (پنبه) رانيول، او ښځي له دې مالوچو څخه تارونه وودل (يعني تارونه يې ځني جوړ کړل)، او له هغه تارو څخه يې تهوکر او جامه جوړه کړه (يا مثلاً خاوند تيار تهوکر رانيوی، او ښځي له هغه څخه کالي او جامه جوړه کړه)، او خاوند هغه جامه واغوستل، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر خاوند دا جامه صدقه کول او خيراتول واجب دي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي پر خاوند دا جامه صدقه کول واجب نه دي. هـا! که د قسم اخيستلو په ورځ هغه مالوچ (يا هغه ټوکر) د خاوند په ملکيت کي وو، او ښځي له هغو څخه ټوکر او جامه تياره کړه، او خاوند هغه واغوستل، نو په دې صورت کي پر خاوند دا جامه صدقه کول واجب دي، لېکن تر قسم وروسته د رانيول سوي مالوچو څخه د تياري سوي جامې اغوستل واجبُ التصدق نه دي (يعني د صاحبينو په نېز تر قسم وروسته د رانيول سوي مالوچو يا ټوکر څخه د تيار سوي کالو په اغوستلو سره پر خاوند دا نه واجبېږي چي هغه صدقه او خيرات کړي).

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د خاوند دا کلام په حقيقت کي نذر دی، او نذر په خپل مملوک شي کي صحيح کيږي، يا په هغه شي کي صحيح کيږي کوم چي د ملکيت د سبب وطرف ته منسوب وي، ځکه چي په حديث کي ذکر سوي دي "لَا نَذْرَ فِيْمَا لَا يَمْلِكُهُ ابْنُ اٰدَمَ" يعني په هغه شي کي نذر نه صحيح کيږي چي انسان د هغه مالک نه وي، (د ملکيت له سبب څخه مراد رانيول دي، يا په هبه، وصيت يا ميراث سره يو شی حاصلول دي، ځکه چي رانيول يا حاصلول د انسان د ملکيت سبب جوړېږي، يعني په رانيولو يا حاصلولو سره انسان د يو شي مالک جوړېږي)، او په دې مسئله کي حالف نه د مالوچو مالک دی (ځکه چي هغه مالوچ وروسته رانيولي دي)، او نه حالف د ملکيت د سبب وطرف ته هدی او صدقه مضاف کړي دي، ځکه چي اغوستل او د ښځي وودل او جوړول د ملکيت سبب نه دي، نو ځکه به تر قسم وروسته په رانيول سوي مالوچو کي قسم صحيح نه وي او پر خاوند به د داسي مالوچو جامه هديه کول او صدقه کول به واجب نه وي.

**امام صاحب دليل:** دا دی چي ښځه عموماً او عادتاً د خپل خاوند له مالوچو څخه تارونه او ټوکر ياروي، لهذا د خاوند دا وينا "إِنْ لَبِسْتُ مِنْ غَزْلِكِ" به داسي وي لکه خاوند چي ويلي وي "إِنْ لَبِسْتُ مِنْ غَزْلِكِ مِنْ قُطْنٍ أَمْلِكُهُ..." (که ما هغه جامه واغوستل کوم چي تا زما د مملوکه مالوچو له وودل سوي تارونو" څخه جوړه کړې وي، نو هغه د مکې د فقيرانو لپاره صدقه ده)، لهذا د خاوند دا قسم به د عرف او عادت په وجه د رانيول سوي مالوچو جامې ته هم شامل وي او داسي به ګڼل کيږي که خاوند چي د خپل مملوکه مالوچو په هکله دا قسم اخيستی وی، نو ځکه به هغه حانث کيږي، همدا وجه ده که چيري د نذر او قسم په وخت کي خاوند د مالوچو مالک وي (او خاوند فقط داسي قسم واخلي چي "إِنْ لَبِسْتُ مِنْ غَزْلِكِ..."، او په خپل کلام کي "مِنْ قُطْنٍ أَمْلِكُهُ" ذکر نه کړي")، نو هم خاوند د هغه جامو په اغوستلو سره حانث کيږي، ځکه چي د عرف او عادت په اعتبار سره ښځه د خپل خاوند له مالوچو څخه تارونه، ټوکر او جامه تياروي، او د قسم اخيستلو په وخت کي که څه هم مالوچ د خاوند په ملکيت کي نه وي، په عرف کي په دې سره د قسم په صحيح کېدلو کي هيڅ فرق نه راځي.

## د زېور نه اغوستلو تر قسم وروسته د سپينو زرو ګوتمۍ په ګوته کول

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَلْبَسُ حَلْيًا او کوم کس چي قسم واخلي چي زېور به نه اغوندي [دا لفظ حُلِيًّا ويل هم صحيح دي، په دې صورت کي به يې د جمع معنىٰ کيږي. يعني زېورات] فَلَبِسَ خَاتَمَ فِضَّةٍ بيا دا [حالف] کس د سپينو زرو ګوتمۍ واغوندي لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِحُلِيٍّ عُرْفًا وَلَا شَرْعًا ځکه چي دا نه په عُرف کي زېور دى او نه په شريعت کي حَتَّى أُبِيحَ اسْتِعْمَالُهُ لِلرِّجَالِ همدا وجه ده چي د خلکو لپاره هغه [د سپينو زرو ګوتمۍ] استعمالول روا دي وَالتَّخَتُّمُ بِهِ لِقَصْدِ الْخَتْمِ او هغه د مُهر لګولو په غرض سره اغوستل کيږي [لکه په پخوا زمانه کي چي داسي کېدل، لنډه دا چي د سپينو زرو ګوتمۍ د خلکو لپاره روا ده، لهذا هغه په زېوراتو کي نه داخليږي، نو ځکه به د هغه په اغوستلو سره حالف نه حانث کيږي] وَإِنْ كَانَ مِنْ ذَهَبٍ او که ګوتمۍ له سرو زرو څخه وي حَنِثَ نو حالف حانث کيږي لِأَنَّهُ حَلْيٌ ځکه چي هغه زېور دى [يعني د سونې ګوتمۍ له زېوراتو څخه شمارل کيږي] وَلِهَذَا لَا يَحِلُّ اسْتِعْمَالُهُ لِلرِّجَالِ او له همدې کبله د خلکو لپاره د هغه استعمالول جائز نه دي وَلَوْ لَبِسَ عِقْدَ لُؤْلُؤٍ غَيْرِ مُرَصَّعٍ او که حالف د ملغلرو نا پېيودل سوى هار واغوندي [يعني د ملغلرو داسي ساده هار په غاړه کړي چي په هغه کي ملغلري په ترتيب سره پېيول سوي نه وي او نور ښکلي غميان ور سره استعمال سوي نه وي] لَمْ يَحْنَثْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو [په دې صورت کي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حالف نه حانث کيږي وَقَالَا يَحْنَثُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي حانث کيږي لِأَنَّهُ حَلْيٌ حَقِيقَةً ځکه چي دا [هم] په حقيقت کي زېور دى حَتَّى سُمِّيَ بِهِ فِي الْقُرْآنِ همدا وجه ده چي په قرآن شريف کي هغه ته زېور ويل سوي دي وَلَهُ: أَنَّهُ لَا يُتَحَلَّى بِهِ عُرْفًا إِلَّا مُرَصَّعًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي په عُرف کي فقط د ملغلر پېيول سوى [مُرتّب] هار اغوستل کيږي [ساده او نابشکلي هار نه اغوستل کيږي] وَمَبْنَى الْأَيْمَانِ عَلَى الْعُرْفِ او د قسمونو دار ومدار پر عرف دى [نو ځکه به د هغه په اغوستلو سره حالف نه حانث کيږي] وَقِيلَ: هَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ او ويل سوي دي: چي دا د وخت او زمانې اختلاف دى [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه کي رواج دا وو چي د ملغلرو ساده او نا پېيول سوى هار به

اغوستل کېدی، نو ځکه هغه فرمایلي دي چې دا زېور نه دی. او د صاحبینو په زمانه کې بیا د زېور او ښکلا په توګه د داسې ساده هار اغوستل رواج او عادت سو، نو ځکه هغو وفرمایل چې دا زېور دی.
او اوس فتویٰ هم د هغو پر قول ده [ وَيُفْتَىٰ بِقَوْلِهِمَا او [په دې زما کې به] د صاحبینو پر قول فتویٰ ورکول کېږي لِأَنَّ التَّحَلِّيَ بِهِ عَلَى الِانْفِرَادِ مُعْتَادٌ ځکه چې [په دې زمانه] یوازې ملغلرې [هم د زېور او ښکلا په توګه] اغوستل عادت دی.

**اللغات:** ﴿حَلْي﴾ زېور، پښول (غاړکۍ او داسې نور د ښکلا شیان کوم چې ېې ښځه استعمالوي)، جمع: حُلِيّ او حِلِيّ. ﴿تَخَتُّم﴾ د تفعّل مصدر دی: ګوتمۍ په ګوته کول، ګوتمۍ اغوستل. ﴿الخَتْم﴾ د ضرب له باب څخه اسمِ مصدر دی: مُهر لګول، ټاپه لګول، نښه لګول. ﴿عِقْد﴾ (د عین په کسره سره): هار، غاړکۍ (غاړهکۍ)، امېل، په تار پېيول سوي ګلان او داسې نور شیان. ﴿لُؤْلُؤ﴾ ملغلره، مرغلره. ﴿مُرَصَّع﴾ د تفعیل اسمِ مفعول دی: نا ښکلی، ساده، غیرِ مرتّب (بې ترتیبه). رَصَّعَ يُرَصِّعُ تَرْصِيعًا: په ترتیب سره پېيول (پېيل)، اندازه کول، وودل، (په اندازه او ترتیب سره جوړول). ﴿لَا يَتَحَلَّى﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صیغه ده: زېور اغوستل، ښائسته کول (ښکلی کول).

**تشریح:**

ولو لبس عِقد لؤلؤ إلخ: د دې حاصل دا دی که یو شوک قسم واخلي چې زېورات به نه استعمالوم، او بیا د ملغلرو ساده ملنګی هار واغوندي چې په هغه کې په ترتیب او بازاري شکل سره ملغلرې نصب سوي نه وي او نور ښکلي غمیان ور سره استعمال سوي نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا سړی نه حانث کېږي، او صاحبین فرمایي چې حانث کېږي.

د صاحبینو دلیل دا دی چې په قرآن کې یوازې ملغلرو ته هم زېور ویل سوي دي، آیت دا دی: يُحَلَّوْنَ فِيهَا أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا [سورة الحج: ۲۳]، (او په دې جنت کې به په مؤمنانو ته د سرو زرو کړۍ (حلقې) او ملغلرې د زېور په توګه ور اغوستل کېږي)، په دې آیت کې لُؤْلُؤ ته هم حُلي یعني زېور ویل سوي دي، معلومه سوه چې یوازې ملغلرې هم زېور دي، نو ځکه به یوازې د ملغلرو په اغوستلو سره هم حالف حانث کېږي.

د امام صاحب دلیل او پاته عبارت په ترجمه کې تشریح سو، نوري تشریح ته ضرورت نه لري.

## د نه کښېنستلو يا نه بيدېدلو قسم

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَنَامُ عَلَى فِرَاشٍ او کوم سړی چې قسم واخلي چې هغه به پر بستره نه بدېږي فَنَامَ عَلَيْهِ وَفَوْقَهُ قِرَامٌ بيا هغه پر داسې بستره بيده سي چې پر هغې د پاسه نرۍ څادر [هوار] وي حَنِثَ نو حانث کېږي لِأَنَّهُ تَبَعُ الْفِرَاشِ ځکه چې څادر د بسترې تابع دی فَيُعَدُّ نَائِمًا عَلَيْهِ نو هغه به پر بسترې باندې بيدېدونکی شمارل کېږي وَإِنْ جُعِلَ فَوْقَهُ فِرَاشًا آخَرَ او که پر دغه بسترې د پاسه بله بستره واچول سي فَنَامَ عَلَيْهِ او [بيا] حالف پر هغې بيده سي لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کېږي لِأَنَّ مِثْلَ الشَّيْءِ لَا يَكُونُ تَبَعًا لَهُ ځکه چې د يو شي سره مشابه شی د هغه تابع نه ګرځي فَيَنْقَطِعُ النِّسْبَةُ عَنِ الْأَوَّلِ نو له اولي بسترې ځخه به [د سرېږني بسترې] نسبت ختم سي وَلَوْ حَلَفَ لَا يَجْلِسُ عَلَى الْأَرْضِ او که قسم واخلي چې پر ځمکه به نه کښېني فَجَلَسَ عَلَى بِسَاطٍ أَوْ حَصِيرٍ بيا هغه پر فرش يا چټايي [استرنجي] باندې کښېني لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کېږي لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى جَالِسًا عَلَى الْأَرْضِ ځکه چې هغه ته پر ځمکه کښېنستونکی نه ويل کېږي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَالَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْأَرْضِ لِبَاسُهُ په خلاف د هغه صورت کله چې د حالف او ځمکي په مېنځ کي [فقط] د هغه کالي حائل وي لِأَنَّهُ تَبَعٌ لَهُ ځکه چې کالي د هغه تابع دي فَلَا يُعْتَبَرُ حَائِلًا نو ځکه به هغه [د ده او ځمکي په مېنځ کي] حائل نه ګڼل کېږي وَإِنْ حَلَفَ لَا يَجْلِسُ عَلَى سَرِيرٍ او که قسم واخلي چې پر کټ به نه کښېني فَجَلَسَ عَلَى سَرِيرٍ فَوْقَهُ بِسَاطٌ أَوْ حَصِيرٌ بيا هغه پر داسې کټ کښيني چې پر هغه د پاسه فرش يا چټايي [هواره] وي حَنِثَ نو حانث کېږي لِأَنَّهُ يُعَدُّ جَالِسًا عَلَيْهِ ځکه چې [هغه په دې حال کي هم] پر کټ باندې کښېنستونکی شمارل کېږي وَالْجُلُوسُ عَلَى السَّرِيرِ فِي الْعَادَةِ كَذَلِكَ او په عادت [او عرف] کي پر کټ باندې کښېنستل همداسې وي [چې پر کټ د پاسه يو شی هوارول کېږي او پر هغه ناسته کېږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا جُعِلَ فَوْقَهُ سَرِيرًا آخَرَ په خلاف د هغه صورت کله چې پر دغه کټ د پاسه بل کټ کښېښول سي لِأَنَّهُ مِثْلُ الْأَوَّلِ ځکه چې دا [دويم کټ] د اول کټ په څېر دی [او د هغه سره مشابه دی، او يو مشابه شی د بل مشابه شي نه تابع کېږي] فَقَطَعَ النِّسْبَةَ عَنْهُ نو ځکه له اول کټ څخه [د دويم سرېږن کټ] نسبت ختم سو.

**اللغات:** ﴿فِرَاش﴾ بستر، بستره، د بېدېدلو ځای، ﴿لِحَام﴾ نری څادر، ﴿بِسَاط﴾ فرش، ټاټ، ﴿حَصِير﴾ چټايي، سترنجي، (حصير هغه چټايي ته کوم چي له پستو خاشو څخه جوړه سوې وي، دلته ځني مراد مطلق چټايي او د ناستي شی دی)، ﴿سَرِير﴾ کټ، چپرکټ، چارپايي.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو څوک قسم واخلي چي زه به پر بسترې او نالي نه بيدېږم، بيا هغه پر داسي بسترې او نالي بيده سي چي پر هغه نری څادر (تېوکر) هوار وي، نو حالف حانث کيږي، ځکه چي څادر د بسترې او نالي تابع دی او د هغه سره متصل دی، لهذا پر هغه بيدېدل داسي دي لکه پر بسترې او نالي بيدېدل، نو ځکه به حالف حانث کيږي، او که پر محلوف عليه يعني پر بسترې د پاسه بله بستره هواره سوې وي، او حالف پر بيده سي، نو نه حانث کيږي، ځکه کوم شی چي د بل شی سره مشابه وي، هغه د دې مشابه شي تابع نه وي، او دلته هم يوه بستره د بلي بسترې سره مشابه ده، نو دويمه بستره د لاندي بسترې تابع نه سوه، لهذا پر دې (دويمي) سربېرني بسترې بيدېدل داسي نه شمارل کيږي لکه پر محلوف عليه بسترې بيدېدل، نو ځکه به حالف نه حانث کيږي.

(۲)... که يو څوک قسم واخلي چي "زه به پر ځمکه نه کښېنم"، بيا هغه پر فرش او چټايي (ټاټ او سترنجي) باندي کښيني، نو نه حانث کيږي؛ ځکه چي پر فرش يا چټايي باندي کښېنستونکي انسان ته پر ځمکه کښېنستونکی نه ويل کيږي، لېکن که د ځمکي او حالف په مينځ کي فقط د حالف کالي او جامه وي، نو بيا حانث کيږي، ځکه چي جامه او کالي د انسان تابع وي، لهذا هغه حائل شمارل کېدای نه سي (ځکه چي حائل هغه شی شمارل کيږي کوم چي تابع نه وي، بلکې جلا او عليحده وي لکه ټاټ، فرش، چټايي او سترنجي)، نو ځکه به په دې صورت کي حالف حانث کيږي.

(۳)... او که يو سړی قسم واخلي چي "زه به پر کټ (چارپاريي) نه کښېنم"، بيا هغه سړی پر داسي کټ کښيني چي فرش يا چټايي (سترنجي) پر هواره وي، نو هغه حانث کيږي، ځکه چي دا فرش يا چټايي د کټ تابع ده، نو ځکه به حالف پر کټ کښېنستونکی شمارل کيږي، او بل دا چي عموماً پر کټ يو شی هوارول کيږي، نو په دې حواله سره به هم حالف حانث کيږي.

د دې په خلاف که پر کټ د پاسه بل کټ کښېښول سي، او بيا حالف پر دويم کټ باندي کښيني، نو نه حانث کيږي، ځکه چي يو کټ د بل کټ سره مشابه دی او تابع يې نه دی، لهذا د دويم کټ په ايښولو سره د يمين نسبت له اول کټ څخه ختم او قطع سو، او کله چي د يمين نسبت ختم سو، نو ښکاره خبره ده چي پر دويم کټ باندي په کښېنستلو سره به حالف نه حانث کيږي.

# بَابُ الْيَمِيْنِ فِي الْقَتْلِ وَالضَّرْبِ وَغَيْرِهِ

(دا) باب د وژلو، وهلو او داسې نورو په هکله د قسم اخيستلو (په بيان کې) دی

## د نه وهلو يا غسل نه ورکولو تر قسم وروسته د مړيني په حالت کې وهل يا غسل ورکول

وَمَنْ قَالَ: إِنْ ضَرَبْتُكَ فَعَبْدِي حُرٌّ او څوک چې [بل چا ته] ووايي: که چيرې ما ته ووهلې، نو زما غلام آزاد دی فَهُوَ عَلَى الْحَيَاةِ نو دا قسم به د ژوند سره متعلق وي لِأَنَّ الضَّرْبَ اِسْمٌ لِفِعْلٍ مُؤْلِمٍ يَتَّصِلُ بِالْبَدَنِ ځکه چې ضرب تکليف ورکونکي [دردونکي] فعل ته وايي کوم چې پر بدن ولګيږي وَالْإِيلَامُ لَا يَتَحَقَّقُ فِي الْمَيِّتِ او په مړي کې إيلام نه ثابتيږي وَمَنْ يُعَذَّبُ فِي الْقَبْرِ تُوضَعُ فِيهِ الْحَيَاةُ فِي قَوْلِ الْعَامَّةِ او چا ته چې په قبر کې عذاب ورکول کيږي، د زياتره فقهاؤ په نيز په هغه کې [دوباره] ژوند اينبول کيږي وَكَذٰلِكَ الْكِسْوَةُ او د جامې د ور اغوستلو هم دغه حکم دی [يعني کسوة به هم د ژوند سره متعلق وي] لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّمْلِيكُ عِنْدَ الْإِطْلَاقِ ځکه چې په مطلق کسوة سره "مالک جوړول" مراديږي وَمِنْهُ الْكِسْوَةُ فِي الْكَفَّارَةِ او له همدې معنیٰ څخه په کفاره کې جامه ور اغوستل هم دي [يعني مسکين د جامې مالک جوړول] وَهُوَ مِنَ الْمَيِّتِ لَا يَتَحَقَّقُ او تمليک په مړي کې نه ثابتيږي [يعني مړی د يو شي مالک نه سي جوړېدای] إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ بِهِ السَّتْرَ خو دا چې حالف په دې [کسوة] سره د ستر [عورت پټولو] نيت وکړي وَقِيلَ: بِالْفَارِسِيَّةِ يَنْصَرِفُ إِلَى اللُّبْسِ او ويل سوي دي: چې په فارسي کې به دا [کسوة] د لبس د معنیٰ وطرف ته ګرځول کيږي وَكَذَا الْكَلَامُ وَالدُّخُولُ او همدا حکم د خبرو کولو او داخلېدلو هم دی [يعني که يو څوک قسم واخلي چې د فلانکي سره به خبري نه کوم، يا پر فلانکي به نه داخلېږم، نو هغه به هم د ژوند سره متعلق وي] لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْكَلَامِ الْإِفْهَامُ ځکه چې له کلام څخه مقصد پوهول دي وَالْمَوْتُ يُنَافِيهِ او مرګ د دې مخالف دی

[ځکه چي مړی خبري فهمولای نه سي] وَالْمُرَادُ مِنَ الدُّخُولِ عَلَيْهِ زِيَارَتُهُ او پر يو چا باندي د داخليدلو څخه مراد د هغه زيارت [او ديدار کول] دي وَبَعْدَ الْمَوْتِ يُزَارُ قَبْرُهُ لَا هُوَ او تر مرګ وروسته د يو چا د قبر زيارت کيږي، د هغه زيارت نه کيږي وَلَوْ قَالَ: إِنْ غَسَّلْتُكَ فَعَبْدِي حُرٌّ او [که حالف بل چا ته] ووايي: که چيري ما تا ته غسل درکړی، نو زما غلام آزاد دی] فَغَسَّلَهُ بَعْدَ مَا مَاتَ بيا حالف هغه ته د هغه تر مرګ وروسته غسل ورکړی يَحْنَثُ نو حانث کيږي [يعني د حالف غلام آزاديږي] لِأَنَّ الْغُسْلَ هُوَ الْإِسَالَةُ ځکه چي د غسل معنیٰ ده: اوبه بيول [پر بدن اوبه بهول] وَمَعْنَاهُ: التَّطْهِيرُ او د اوبو بيولو معنیٰ ده: پاکول [صفا کول] وَيَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ فِي الْمَيِّتِ او مړي ته [په غسل ورکولو سره] هم دا معنیٰ ثابتيږي [يعني د هغه بدن پاکيږي، نو ځکه به مړي ته په غسل ورکولو سره حالف حانث کيږي، او د هغه غلام به آزاديږي].

**اللغات:** ﴿إِيْلَامٌ﴾ د افعال مصدر دی: دردول، خوږول، تکليف ورکول، مُؤْلِمٌ له همدې باب څخه د اسمِ فاعل صيغه ده، ﴿يَتَّصِلُ﴾ د افتعال مضارع ده: متصل کېدل، ور سره لګېدل، يو ځای کېدل، ﴿كِسْوَةٌ﴾ جامه ورکول (کالي ورکول)، جامه په اغوستل، ﴿إِسَالَةٌ﴾ د افعال مصدر دی: بيول (بهول)، ﴿تَطْهِيرٌ﴾ د تفعيل مصدر دی: پاکول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو سړی مثلاً خپل ګران زوی ته ووايي: "په الله قسم! که چيري ما (بل وار) ته ووهلې، نو زما غلام آزاد دی"، نو په دې سره په ژوند کي د محلوف عليه (زوی) وهل مراديږي، ځکه چي ضرب (وهل) داسي فعل دی چي په هغه سره بدن ته درد او تکليف رسيږي (او په هغه سره بدن خوږيږي)، او د مړي پر بدن ضرب هيڅ اثر نه کوي، نو ځکه به د ضرب قسم د ژوند سره متعلق وي (نو که زوی مړ سي، او بيا دا سړی هغه ووهي، نو غلام نه آزاديږي)، او پاته سوه دا خبره چي په قبر کي مړي ته عذاب ورکول کيږي او هغه ته سخت درد او تکليف رسيږي، نو په دې هکله د زياتره فقهاؤ رايه دی چي په قبر کي مړي ته د الله له طرفه روح ورکول کيږي (او د عذاب پر وخت هغه په قبر کي ژوندی کيږي)، لهذا پر دې باندي دنياوي حکم او دنياوي مسئله قياسول صحيح نه دي.

**وكذالك الكسوة إلخ:** فرمايي کوم حکم چي د وهلو دی، هغه حکم د ور اغوستلو هم دی، نو که يو سړی بل چا ته ووايي: "إِنْ كَسَوْتُكَ فَعَبْدِي حُرٌّ" (که ما په تا جامې واغوستلې، نو زما غلام آزاد

دی)، نو دا قسم هم دژوند سره متعلق کیږي. او فقط د محلوف علیه په ژوند کي به د جامې په ور اغوستلو سره د حالف غلام آزادیږي؛ ځکه کله چي کِسوة مطلق ذکر سي، نو له هغه څخه مالک جوړول (تملیک) مرادیږي. او مړی دیو شي مالک جوړول ممکن نه دي. نو ځکه به دا قسم د محلوف علیه دژوند سره متعلق وي. ها! که حالف ووایي: چي زما نیت ستر او پټول وو (چي که ما ستا عورت پټ کړی، نو زما غلام آزاد دی). نو بیا مړي ته هم دا قسم شاملیږي. او فقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چي په فارسي ژبه کي له کِسوة (ور اغوستلو) څخه تملیک او مالک جوړل نه مرادیږي. بلکي فقط خپله معنیٰ ځني مرادیږي. یعني جامې ور اغوستل (نو که په فارسي ژبه څوک دا سي قسم واخلي او بیا محلوف علیه مړ سي او حالف جامې ور واغوندي نو هغه حانث کیږي او غلام آزادیږي، ځکه چي جامې ور اغوستل ثابت سو).

وكذا الكلام والدخول إلخ: فرمایي که یو څوک مثلاً ووایي "که ما د خالد سره خبري وکړي. یا زه پر خالد داخل سوم. نو زما غلام آزاد دی"، نو په دې صورت کي هم قسم د محلوف علیه دژوند سره متعلق کیږي؛ ځکه چي په کلام کولو سره د انسان مقصد دا وي چي مخاطب په خبرو پوه سي. او په دخول سره د انسان مقصد زیارت او ملاقات کول وي. او ښکاره خبره دا ده چي دا شیان فقط په ژوند کي ثابتېدی سي. او تر مرګ وروسته د دې امکان نسته. ځکه چي مړی نه په خبرو پوهیږي. او نه انسان د هغه سره ملاقات کولای سي. بلکي فقط د هغه قبر زیارت او دیدار کیږي.

ولو قال إن غسلتك إلخ: دا مسئله ښکاره ده.

## د نه وهلو تر قسم وروسته تر وربېښتانو کشول، خپه کول او په غاښول

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَضْرِبُ امْرَأَتَهُ او که یو څوک قسم واخلي چي خپله ښځه به نه وهي فَمَدَّ شَعْرَهَا بیا د هغې وربېښتان کش کړي [یعني تر وربېښتانو یې کش کړي] أَوْ خَنَقَهَا یا هغه خپه کړي [یعني تر ستوني یې ونیسي] أَوْ عَضَّهَا یا یې وچیچي [یعني په غاښ یې کړي] حَنِثَ نو [په دې ټولو صورتونو کي خاوند] حانث کیږي لِأَنَّهُ اسْمٌ لِفِعْلٍ مُؤْلِمٍ ځکه چي "وهل" تکلیف ورکونکي فعل ته وایي وَقَدْ تَحَقَّقَ الْإِيلَامُ او [دلته] تکلیف ورکول ثابت سو [یعني د وهلو مطلب دی: تکلیف ورکول (دردول)، خوږول. او د وربېښتانو په کشولو. خپه کولو او په غاښ لګولو سره هم ښځي ته تکلیف او درد رسیږي. نو ځکه به خاوند په دې افعالو سره هم حانث کیږي] وَقِيلَ: لَا يَحْنَثُ فِي حَالِ

الْمُلَاعَبَةِ او ورېل سوي دي: چي د بازۍ او لوبي په حالت کي نه حانث کيږي ايعني که حالف (خاوند) د بازۍ او لوبي په حالت کي دا افعال وکړي. نو نه حانث کيږي| لِأَنَّهُ يُسَمَّى مُمَازَحَةً لَا ضَرْبًا ځکه چي په دغه حالت کي دي |افعالو| ته مسخرې |او ساعت تېرى| وايي انو ځکه به نه حانث کيږي|

**اللغات:** ﴿مَدَّ﴾ د نصر ماضي ده: کشول. ﴿خَنَقَ﴾ دا هم د نصر ماضي ده: خپه کول (غاړه کنېښکارول). تر ستوني نيول. ﴿عَضَّ﴾ د سمع ماضي ده: په غاښول (غاښونه لګول). چيچل. ﴿مُلَاعَبَة﴾ د مفاعلې مصدر دى: يو د بل سره بازۍ کول (لوبي کول). ﴿مُمَازَحَة﴾ د مفاعلې مصدر دى: يو د بل سره مسخرې کول (ټوکي کول. ګپه کول).

**تشريح:** مسئله په ترجمه کي تشريح سو.

## د يو چا پر قتل کولو د طلاق معلق کولو يو صورت

وَمَنْ قَالَ: إِنْ لَمْ أَقْتُلْ فُلَانًا فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ او کوم څوک چي |داسي| ووايي: که چيري ما فلانکی قتل نه کړی نو زما ښځه طلاقه ده وَفُلَانٌ مَيِّتٌ وَهُوَ عَالِمٌ بِهِ او فلانکی مړ وي او حالف په هغه خبر وي |چي مړ دی| حَنِثَ نو حانث کيږي لِأَنَّهُ عَقَدَ يَمِينَهُ عَلَى حَيَاةٍ يُحْدِثُهَا اللهُ فِيهِ ځکه چي هغه خپل قسم د داسي ژوند پر بنياد واخيستی چي الله به يې په هغه مړي کي پيدا کړي |يعني د دې قسم بنياد پر دې خبره دی چي الله به په هغه کي روح او ژوند پيدا کړي| وَهُوَ مُتَصَوَّرٌ او د دې تصوّر کېداى سي |يعني دا ممکن دي| فَيَنْعَقِدُ نو ځکه به |د حالف| قسم منعقد کيږي |يعني د هغه قسم به صحيح وي او په دې سره به هغه قسم کونکی ګرځي| ثُمَّ يَحْنَثُ لِلْعَجْزِ الْعَادِيِّ بيا به د عادتاً |عموماً| عاجزه کېدلو په وجه هغه حانث کيږي وَإِنْ لَمْ يَعْلَمْ بِهِ او که هغه په فلانکي خبر نه وي |چي مړ دی| لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ عَقَدَ يَمِينَهُ عَلَى حَيَاةٍ كَانَتْ فِيهِ ځکه چي هغه خپل قسم د داسي ژوند پر بنياد واخيستی. کوم چي په مړي |فلانکي| کي وو وَلَا تُتَصَوَّرُ لېکن د هغه تصور نه سي کېداى |ځکه چي هغه مړ دی| فَيَصِيرُ قِيَاسَ مَسْأَلَةِ الْكُوزِ عَلَى الِاخْتِلَافِ نو دا مسئله په اختلاف کي د کوزې د مسئلې قياس ګرځي ايعني دا مسئله به د کوزې پر مسئله قياس کيږي. لکه څرنګه چي په هغه مسئله کي اختلاف وو. همغسي اختلاف به دلته هم وي| وَلَيْسَ فِي تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ تَفْصِيلُ الْعِلْمِ لېکن د کوزې په مسئله کي د خبرتيا |او ناخبرۍ| تفصيل |او بحث| نه وو |لکه څرنګه چي دلته سته چي حالف په يوه

صورت کي د محلوف عليه (زيد) په مرګ خبر دی او په بل صورت کي په خبر نه دی ا وَهُوَ الصَّحِيحُ او صحيح اخبره اهمدا ده.

**اللغات:** ﴿عَقَدَ﴾ د ضرب ماضي ده: تړل، مضبوطول (قسم پخول)، مراد ځني د قسم اخيستل او منعقد کول دي. ﴿يَصِيرُ﴾ د ضرب مضارع ده:

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی که خالد په دې خبر وي چي زيد مړ سوی دی، بيا قسم واخلي چي که ما هغه مړ نه کړی، نو زما ښځه پر ما طلاقه ده، نو څرنګه چي دا ممکن دي چي د معجزې په توګه الله هغه (زيد) ژوندی کړي، نو ځکه به قسم منعقد کيږي. لېکن عادتاً او په عامو حالاتو کي داسي کېدل ناممکن دي، نو ځکه به خالد په قسم کي حانث کيږي، يعني د هغه پر ښځي به طلاق واقع کيږي.

**وإن لم يعلم به:** او که خالد په دې خبر نه وي چي زيد مړ سوی دی، بيا قسم واخلي چي که ما زيد مړ نه کړی، نو زما ښځه پر ما طلاق ده: څرنګه چي دلته خالد د زيد په مرګ خبر نه دی، نو د هغه قسم پر دې بنياد منعقد سو چي زيد به ژوندی وي، حال دا چي په زيد کي بالکل ژوند نسته، نو ځکه به هغه نه حانث کيږي، يعني د هغه پر ښځي به طلاق نه واقع کيږي.

**فيصير قياس إلخ:** مخکي يوه مسئله تېره سوه چي که څوک داسي قسم واخلي: "که چيري زه په دغه کوزه کي موجوده اوبه نه وچيښم، نو زما ښځه پر ما طلاقه ده"، حال دا چي په کوزه کي هيڅ اوبه نه وي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه نه حانث کيږي، او ښځه يې نه يې طلاقيږي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز حانث کيږي (د کوزې له مسئلې څخه همدغه مسئله مراد ده). صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د کوزې والا په مسئله کي چي د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په مينځ کي کوم اختلاف وو، هغه دلته هم جاري کيږي، يعني څرنګه چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قسم د منعقد کېدلو او پاتېدو لپاره د بِرّ متصور کېدل شرط دي (يعني د هغو په نېز دا شرط دي چي د قسم د پوره کېدلو تصوّر به کېدای سي او هغه به ممکن او متصوّر الوجود وي). او هغه دلته نسته. نو ځکه به د هغو په نېز په دې مسئله کي حالف نه حانث کيږي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به حانث کيږي. ځکه چي د هغه په نېز د قسم متصورُ الوجود کېدل شرط نه دي.

ها! په دې مسئله او د کوزې په مسئله کي نقط دومره فرق سته چي هلته د دې تفصيل بيان سوی نه وو چي حالف به په محلوف عليه (د کوزې په اوبو) خبر وي او که نه!، او دلته د دې تفصيل او فرق بيان سو.



# بَابُ الْيَمِيْنِ فِيْ تَقَاضِي الدَّرَاهِمِ

(دا) باب د دراهمو د تقاضا کولو (او اداء کولو) په هکله د قسم اخیستلو (په بیان کې) دی

## په مختصر وخت کې د قرض اداء کولو قسم

قَالَ: وَمَنْ حَلَفَ لَيَقْضِيَنَّ دَيْنَهُ إِلَى قَرِيبٍ فرمايي: او که څوک قسم واخلي چې هغه به ژر [په لنډ وخت کې] د فلانکي قرض خامخا اداء کوي فَهُوَ عَلَى مَا دُوْنَ الشَّهْرِ نو دا به له يوې مياشتې څخه پر کم وخت [محمول] وي [يعني تر يوې مياشتې کم وخت به له دې څخه مراديږي] وَإِنْ قَالَ: إِلَى بَعِيدٍ او که هغه ووايي: تر ليرې وخته [يعني په ډېر وخت کې به زه د هغه قرض اداء کوم] فَهُوَ أَكْثَرُ مِنَ الشَّهْرِ نو دا به له يوې مياشتې څخه پر زيات وخت [محمول] وي لِأَنَّ مَا دُوْنَهُ يُعَدُّ قَرِيبًا ځکه چې تر يوې مياشت کم وخت قريب [نژدې او لنډ وخت] شمارل کيږي وَالشَّهْرُ وَمَا زَادَ عَلَيْهِ يُعَدُّ بَعِيدًا او يوه مياشته يا تر دې زيات وخت بعيد [ليرې او ډېر وخت] شمارل کيږي وَلِهٰذَا يُقَالُ عِنْدَ بُعْدِ الْعَهْدِ: مَا لَقِيتُكَ مُنْذُ شَهْرٍ او همدا وجه ده چې د زمانې تر ليرې کېدلو [يعني تر څه وخت تېرېدلو] وروسته ويل کيږي: چې "له يوې مياشتې څخه ما ستا سره ملاقات کړی نه دی" [يعني يوه مياشت کيږي چې ما او تا سره ليدلي نه دي]

**اللغات:** ﴿لَيَقْضِيَنَّ﴾ د ضرب مضارع ده، په شروع او آخر کې يې د تأکيد لپاره لام او نون ثقيله ذکر سوي دي: خامخا اداء کول، ضرور اداء کول. ﴿قَرِيْب﴾ نژدې وخت، لږ وخت. ﴿بُعْد﴾ ليرې والي. ﴿عَهْد﴾ زمانه.

**تشريح:** په دې عبارت کې دا ښيي چې د قَرِيْب او بَعِيْد زمانې إطلاق پر څومره وخت کيږي؟ نو فرمايي چې قَرِيْب تر يوې مياشتې کم وخت ته وايي، او بَعِيْد يوه مياشت يا تر دې زيات وخت وايي. نو که يو څوک قسم واخلي چې زه به په نژدې او لنډ وخت (قريب) کې قرض اداء کوم. نو هغه به په يوه مياشت کې دننه قرض اداء کوي، کنې حانث کيږي. او که ووايي: چې زه به وروسته او په

لیري وخت (بعید) کي قرض اداء کوم، نو که په دې صورت کي حالف تر یوې میاشت وروسته قرض اداء کړي، نو هم نه حانث کیږي.

وَمَنْ حَلَفَ لَيَقْضِيَنَّ فُلَانًا دَيْنَهُ الْيَوْمَ او که یو څوک قسم واخلي چي د فلانکي قرض به خامخا نن اداء کوي فَقَضَاهُ بیا هغه [د فلانکي] قرض اداء کړي [او هغه ته خپل دراهم ورکړي] ثُمَّ وَجَدَ فُلَانٌ بَعْضَهَا زُيُوفًا أَوْ نَبَهْرَجَةً أَوْ مُسْتَحَقَّةً بیا فلانکی په هغه [دراهمو] کي ځیني کوټه یا ناچله دراهم پیدا کړي یا ځیني دراهم [د بل چا] مستحق پیدا کړی [یعني هغه د بل چا حق وي، او حالف ده ته ورکړې وي] لَمْ يَحْنَثِ الْحَالِفُ نو [په دې صورت کي] قسم اخیستونکی نه حانث کیږي لِأَنَّ الزِّيَافَةَ عَيْبٌ ځکه چي کوټه کېدل خو یو عیب دی وَالْعَيْبُ لَا يُعْدِمُ الْجِنْسَ او عیب جنس نه ختموي [یعني د دراهمو جنس خو اوس هم پاته دی] وَلِهَذَا لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ او همدا وجه ده که چیري دا فلانکی [قرض غوښتونکی] په هغو اکتفاء وکړي [او د هغو کوټه والي او داسي نور برداشت کړي او په راضي سي] صَارَ مُسْتَوْفِيًا نو فلانکی د خپل حق حاصلونکی ګرځي [یعني قرض اداء کیږي] فَوُجِدَ شَرْطُ الْبِرِّ نو د قسم پوره کولو شرط موجود سو [نو ځکه به حالف نه حانث کیږي] وَقَبْضُ الْمُسْتَحَقَّةِ صَحِيحٌ او پر مستحقه دراهمو قبضه کول صحیح دي وَلَا يَرْتَفِعُ بِرَدِّهِ الْبِرُّ الْمُتَحَقِّقُ او د مستحق کس وطرف ته د دې دراهمو په واپس کولو سره پوره کړی سوی قسم نه ختمیږي

**اللغات:** ﴿زُيُوْف﴾ کوټه پیسې، کوټه سکه. ﴿نَبَهْرَجَة﴾ دا هم کوټه او ناچله سکې ته ویل کېده. خو دا به تر زُیُوْف هم ردّي او بده وه. او بَنَهْرَجَة یا نَهْرَجَة به ورته ویل کېده. ﴿مُسْتَحَقَّة﴾ هغه دراهم او پیسې چي د بل چا وخیږي. ﴿تَجَوَّزَ﴾ د تفعّل ماضي ده: چشم پوشي کول (ځان پر اچول). اکتفاء کول، برداشتول (زغمول)، جائز ګرځول. ﴿مُسْتَوْفِيًا﴾ د استفعال اسمِ فاعل دی: خپل حق پوره اخیستونکی، حاصلونکی. اِسْتَوْفَى يَسْتَوْفِيْ اِسْتِيْفَاءً: پوره اخیستل، وصول کول، حاصلول. ﴿البِرّ﴾ د ضرب او سمع مصدر دی: قسم پوره کول، قسم پوره کېدل، له قسم څخه بري کېدل.

**تشریح:** د دې عبارت مسئله پر دې اُصول مبني ده چي که یو څوک دیوشي قسم واخلي او بیا د هغه جنس شی اداء کړي، لیکن په هغه شي کي څه خامي او عیب وي، نو نه حانث کیږي، لیکن که د هغه

جنس شی نه وی. یا مثلاً د نامه په اعتبار سره یو شی وي او په حقیقت کي بل شی وي. مثلاً د نامه په اعتبار سره درهم وي. کنې په حقیقت کي درهم نه وي. نو د هغه په اداء کولو سره حالف (قسم اخیستونکی) حانث کیږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک قسم واخلي چي زه به خامخا نن د فلانکي قرض اداء کوم. او بیا هغه د فلانکي قرض اداء هم کړي او دارهم ورکړي. خو په دې دراهمو کي ځیني (یا ټوله) کوټه دراهم وي. یا ناچله او ردّي دراهم وي. یا د بل چا مستحق دراهم وي. نو هغه په قسم کي نه حانث کیږي: ځکه چي زُیُوف او بَنَهْرَجَة خو هم دراهم دي (جنس یې هغه جنس دی). او دا جلا خبره ده چي هغه کوټه دي. او که فلانکی (قرض غوښتونکی) په دې دراهمو اکتفاء وکړي او په قرض کي یې قبول کړي. نو قرض اداء کیږي او قسم پوره کیږي. نو ځکه به هغه نه حانث کیږي.

**وقبض المستحقة إلخ:** او کوم درهم چي د بل چا ثابت سي. هغه خو دراهم دي او حالف اداء کړي دي. او دا جلا خبره ده چي فلانکی به دا مستحق دراهم بیرته خپل مستحق کس ته واپس ورکوي. لیکن په دې سره چي کله د حالف قسم پوره سو (او د حالف غاړي خلاصي سوې). نو بیا د دې په واپس کولو سره د هغه قسم نه ختمیږي. بلکي د ده قسم هغسي پوره او بشپړ پاتیږي.

وَإِنْ وَجَدَهَا رَصَاصًا أَوْ سَتُّوقَةً او که فلانکی [قرض غوښتونکی] هغه دراهم د سرپو یا جعلي دراهم وموندي [پیدا کړي] حَنِثَ نو حالف حانث کیږي لِأَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ ځکه چي دا دواړه د درهمو له جنس څخه نه دي حَتّٰى لَا يَجُوزَ التَّجَوُّزُ بِهِمَا فِي الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ همدا وجه ده چي په بیع سلم او بیع صرف کي پر داسي درهمو اکتفاء کول جائز نه ده وَإِنْ بَاعَهُ بِهَا عَبْدًا وَقَبَضَهُ او که حالف د قرض په عوض کي پر فلانکي [یعني پر قرض غوښتونکي] غلام خرڅ کړي او فلانکي پر هغه قبضه وکړي [یعني غلام ځني واخلي] بَرَّ فِي يَمِينِهِ نو حالف خپل په قسم کي بري کیږي [او قسم یې پوره کیږي] لِأَنَّ قَضَاءَ الدَّيْنِ طَرِيقُهُ الْمُقَاصَّةُ ځکه چي د قرض اداء کولو یو طریقه مُقاصه هم ده [یعني د یوه شی په یوه عوض کي بل شی ورکول. چي هغه ته ادل بدل هم وایي] وَقَدْ تَحَقَّقَتْ بِمُجَرَّدِ الْبَيْعِ او محض [د غلام] په خرڅولو سره مقاصه ثابته سوه فَكَأَنَّهُ شَرَطَ الْقَبْضَ لِيَتَقَرَّرَ بِهِ نو ګواکي امام محمد رحمه الله د قبضې شرط [ځکه الکولی دی چي په قضه سره بیع ثابته [او پخه] سي

**وَإِنْ وَهَبَهَا لَهُ** يَعْنِي الدَّيْنَ او که قرض غوښتونکي خپل قرض حالف ته هبه کړي **لَمْ يَبَرَّ** نو حالف نه بري کيږي [او د خپل قسم پوره کونکی نه ګرځي] **لِعَدَمِ الْمُقَاصَّةِ** ځکه چي مقاصه نه راغله **لِأَنَّ الْقَضَاءَ فِعْلُهُ** ځکه چي اداء کول خو د مقروض [حالف] کار دی **وَالْهِبَةُ إِسْقَاطٌ مِنْ صَاحِبِ الدَّيْنِ** او هبه د قرض غوښتونکي له طرفه إسقاط دی [يعني دلته قرض غوښتونکي د هبې په ذريعه قرض ساقط کړی].

**اللغات:** ﴿رَصَاص﴾ سرَبْ (مراد ځني له سرپو څخه جوړ سوي درهم دي)، د سرپو سکه (د سرپو دراهم).
﴿سَتُّوقَة﴾ جعلي سکه (جعلي درهم)، هغه درهم چي دننه ټوله سرپ وي او شاوخوا د سپينو زرو رنګ ورکول سوی وي. ﴿مُقَاصَّة﴾ د مفاعلې مصدر دی: ادل بدل کول (يو شی د بل شي په بدله کي خرڅول)، بدلونه، اليشونه، سامان د سامان په عوض کي خرڅول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی که حالف قرض غوښتونکي (فلانکي) ته د سرپو دراهم ورکړي يا بالکل جعلي دراهم ورکړي چي هغه ته سَتُّوقَه وايي، نو په دې صورت کي حالف حانث کيږي: ځکه چي درهم ټوله د سپينو زرو څخه جوړ وي، او دلته حالف د سرپو څخه جوړ سوي دراهم ورکړي دي، نو دا خو دراهم نه دي (بلکي جنس يې بدل دی)، همدارنګه سَتُّوقَه هم دراهم نه دی، هغه هم له سرپو څخه جوړ دي، فقط د سپينو زر رنګ ورکول سوی دی، نو ګواکي حالف هغه ته بالکل دراهم ورکړي نه دي، نو ځکه به حانث کيږي.

**وإن باعه بها إلخ:** د دې حاصل دا دی که څوک قسم واخلي چي زه به نن خامخا د فلانکي (قرض غوښتونکي) قرض اداء کوم، بيا هغه پر فلانکي خپل غلام خرڅ کړي، او فلانکي پر غلام قبضه وکړي، نو د هغه قسم پوره کيږي اوله خپل قسم څخه بري کيږي، او په دې صورت کي فقط د غلام په خرڅولو سره مقاصه ثابتيږي، ځکه کله چي حالف غلام پر قرض غوښتونکي خرڅ کړی، نو د غلام قيمت د قرض غوښتونکي پر ذمه واجب سو، نو د غلام قيمت د قرض په بدله کي راغلی، نو ګواکي حالف قرض اداء کړی، ځکه چي د قرض اداء کولو يوه طريقه مقاصه هم ده (يعني د قرض په بدله کي بل شي ورکول)، نو ځکه به د حالف قسم پوره کيږي، او هغه به خپل قسم کي نه حانث کيږي.

او د قبضې د شرط کېدلو وجه دا ده چي کله قرض غوښتونکی پر غلام قبضه هم وکړي، نو په دې سره بيع او مقاصه نوره مضبوطيږي، لنډه دا چي د قبضې شرط فقط د بيع او مقاصې د مضبوطېدلو لپاره لګول سوی دی (کنې قبضه ضروري نه ده).

وان وهبها الخ: او که قرض غوښتونکی خپل قرض و مديون يعني حالف ته هبه کړي، نو دا اداء کول نه شمارل کيږي، او په دې سره د حالف قسم نه پوره کيږي، يعني له خپل قسم څخه نه بري کيږي بلکي حانث کيږي؛ ځکه په دې صورت کي مقاصه نه راغله، ځکه چي حالف و هغه (قرض غوښتونکي) ته هيڅ شی ورکړی نه دی، بلکي هغه په هبه کولو سره خپل قرض ساقط کړی دی، نو ځکه به حالف حانث کيږي.

## د قرض او داسي نورو په هکله د قسم اخيستلو يو څو صورتونه

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَقْبِضُ دَيْنَهُ دِرْهَمًا دُونَ دِرْهَمٍ او که يو څوک قسم واخلي چي هغه به خپل قرض په يوه يوه درهم سره نه قبضه کوي [بلکي ټوله قرض به پر يوه ځای قبضه کوي] فَقَبَضَ بَعْضَهُ بيا هغه پر بعضي قرض قبضه وکړي لَمْ يَحْنَثْ حَتّٰى يَقْبِضَ جَمِيعَهُ مُتَفَرِّقًا نو نه حانث کيږي تر دې چي پر ټوله قرض په جلا، جلا توګه قبضه وکړي لِأَنَّ الشَّرْطَ قَبْضُ الْكُلِّ لٰكِنَّهُ بِوَصْفِ التَّفَرُّقِ ځکه چي پر ټوله قرض قبضه کول شرط دي لېکن د تفريق په صفت سره [يعني په متفرقه توګه] أَلَا يَرٰى أَنَّهُ أَضَافَ الْقَبْضَ إِلٰى دَيْنٍ مُعَرَّفٍ مُضَافٍ إِلَيْهِ آيا هغه نه ګوري چي حالف د داسي قرض وطرف ته قبضه منسوب کړې ده کوم چي معروف [معلوم] دی او د هغه وطرف مُضاف دی فَيَنْصَرِفُ إِلٰى كُلِّهِ لهذا دا حکم به د ټوله قرض وطرف ته منسوب کيږي فَلَا يَحْنَثُ إِلَّا بِهِ او په متفرقه توګه د ټوله قرض له قبضه کولو څخه بغير به حالف نه حانث کيږي فَإِنْ قَبَضَ دَيْنَهُ فِي وَزْنَيْنِ او که هغه په دوه واره وزن کولو سره پر خپل قرض قبضه وکړي وَلَمْ يَتَشَاغَلْ بَيْنَهُمَا إِلَّا بِعَمَلِ الْوَزْنِ او د دوه واره وزن کولو په مينځ کي مشغول نه سي مګر د وزن په عمل سره لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث کيږي وَلَيْسَ ذٰلِكَ بِتَفْرِيقٍ [ځکه چي] دا په متفرقه توګه اخيستل [قبضه کول] نه دي لِأَنَّهُ قَدْ يَتَعَذَّرُ قَبْضُ الْكُلِّ دَفْعَةً وَاحِدَةً عَادَةً ځکه چي ځيني وخت په يوه وار پر ټوله قرض قبضه کول عادتاً مشکل وي فَيَصِيرُ هٰذَا الْقَدْرُ مُسْتَثْنًى عَنْهُ نو د تفريق دا مقدار به له هغه څخه مستثنیٰ ګرځي وَمَنْ قَالَ: إِنْ كَانَ لِي إِلَّا مِائَةُ دِرْهَمٍ فَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ او څوک چي ووايي: که له سلو دراهمو څخه بغير زما سره نور څه وي ايعني که زما سره تر سلو زيات دراهم وي] نو زما ښځه طلاقه ده فَلَمْ يَمْلِكْ إِلَّا خَمْسِينَ دِرْهَمًا [لېکن] هغه فقط د پنځوسو درهمو مالک وي ايعني د هغه په ملکيت کي فقط پنځوس درهمه وي] لَمْ يَحْنَثْ نو نه حانث

کيږي ايعني د هغه پر ښځي طلاق نه واقع کيږي] لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهُ عُرْفًا نَفْيُ مَا زَادَ عَلَى الْمِائَةِ ځکه چي په عرف کي له دې څخه مقصود تر سلو د زياتو درهمو نفي کول وي وَلِأَنَّ اسْتِثْنَاءَ الْمِائَةِ اسْتِثْنَاؤُهَا بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا او ځکه چي د سلو استثناء کول د سلو د ټولو اجزاؤ استثناء کول دي وَكَذَلِكَ لَوْ قَالَ غَيْرَ مِائَةٍ أَوْ سِوَى مِائَةٍ او همدارنګه که حالف غَيْرَ مِائَةٍ يا سِوىٰ مِائَةٍ ووايي [نو نه حانث کيږي، او پر ښځي يې طلاق نه واقع کيږي] لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ أَدَاةُ الِاسْتِثْنَاءِ ځکه چي دا ټوله د استثناء حروف دي.

**اللغات:** ﴿مُتَفَرِّقًا﴾ جلا جلا، په متفرقه توګه، په جلا جلا توګه، ﴿يَتَعَذَّرُ﴾ د تفعّل مضارع ده: مشکل کېدل (سختېدل)، ناممکن کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که يو سړی قسم واخلي چي زه به خپل قرض په لږ لږ او په يوه يوه دراهم سره نه قبضه کوم، بلکي ټوله به پر يوه ځای قبضه کوم، بيا هغه د قرض پر څه حصې مثلاً له زرو درهمو څخه پر دوو سوو درهمو قبضه وکړي، نو فقط د دوو سو درهمو په قبضه کولو سره دا حالف نه حانث کيږي، تر دې چي پر ټوله قرض په دې توګه په لږ لږ سره قبضه نه وکړي؛ ځکه چي شرط دا دی چي هغه به پر ټوله قرض په لږ لږ او جلا جلا توګه سره قبضه کوي، او دلته هغه فقط د قرض پر معمولي او څه حصې قبضه کړې ده، نو ځکه به حالف نه حانث کيږي، او بيا چي کله حالف قبضه د معلوم قرض يعني د خپل قرض وطرف مضاف او منسوب کړی، نو ښکاره خبره ده چي فقط پر ټوله قرض باندي په قبضه کولو سره د هغه قسم پوره کيږي، نو ځکه به هغه د قرض د معمولي حصې په قبضه کولو سره نه حانث کيږي.

او که چيري قرض يو وزني (مأزون) شی وي، او حالف په دوو وارو سره هغه وزن وکړي او قبضه پر وکړي، او په دواړو وارو کي فقط د وزن په کار مشغول وي، له وزن څخه بغير په يو بل کار مشغول نه سي، نو هم نه حانث کيږي، ځکه چي کله نا کله په يوه وار پر قرض قبضه کول مشکل وي، او پر هغه په متفرقه توګه او په څو واره وزن کولو سره قبضه کېدای سي، نو ځکه به دا تفريق له شرط څخه مستثنیٰ، او په دې متفرقه توګه قبضه کولو سره به حالف نه حانث کيږي.

(۲)... که يو سړي ووېل "که چيري له سلو درهمو څخه بغير زما سره نور درهم وي، نو زما ښځه پر ما طلاقه ده". بيا چي کله د هغه تلاشي او پلټنه وسو، نو د هغه سره فقط پنځو درهمه موجود و، نو په دې صورت کي هغه نه حانث کيږي، يعني د هغه پر ښځي طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي په عرف کي له داسي کلام او جملې څخه مقصود دا وي چي د هغه سره تر سلو زيات دراهم نه وي، او دلته د هغه ټوله شتمني او سرمايه پنځوس درهمه ده. او کله چي هغه د سلو استثناء کړې ده، نو په هغه کي د پنځوسو استثناء هم داخله ده (يعني د سلو پهاستثنا سره به د پنځوسو استثناء هم کيږي)، ځکه چي پنځوس د سلو جزء دی، او ښکاره خبره ده چي کله

د حالف په حق کې کُل معدوم او نیستي دی. نو جزء به هم معدوم وي. لهذا د پنځوسو دراهمو د مالک کېدلو په وجه به هغه نه حانث کېږي.

**وكذلك الخ**: فرمايي د إِنْ كَانَ لِيْ إِلَّا مَائَةَ دِرْهَمٍ د وېلو چې کوم حکم دی هم، هغه حکم د إِنْ كَانَ لِيْ غَيْرَ مِائَةٍ او سِوىٰ مِائَةٍ د وېلو هم دی. ځکه چې د إِلَّا په شان غَيْر او سِوىٰ هم د استثناء حروف دي.

## د يو کار نه کولو يا کولو په هکله د مطلق قسم اخيستلو بيان

مَسَائِلُ مُتَفَرِّقَةٌ بېلا بېلې مسئلې وَإِذَا حَلَفَ لَا يَفْعَلُ كَذَا تَرَكَهُ أَبَدًا او کله چې [يو څوک] قسم واخلي چې دا کار به نه کوي نو هغې دي د همېشه لپاره هغه کار پرېږدي لِأَنَّهُ نَفَى الْعَامَ مُطْلَقًا ځکه چې هغه مطلقاً د عام نفي وکړي فَعَمَّ الْإِمْتِنَاعُ ضَرُوْرَةَ عُمُوْمِ النَّفْيِ لهذا د نفي د عامو والي په وجه به إمتناع هم عامه وي وَإِنْ حَلَفَ لَيَفْعَلَنَّ كَذَا او که قسم واخلي چې دا کار به خامخا کوي فَفَعَلَهُ مَرَّةً وَاحِدَةً بيا حالف هغه کار يو وار وکړي بَرَّ فِيْ يَمِيْنِهِ نو هغه په قسم کې بري کيږي [او د قسم پوره کونکی ګرځي] لِأَنَّ الْمُلْتَزَمَ فِعْلٌ وَاحِدٌ غَيْرُ عَيْنٍ ځکه هغه چې کوم کار پر ځان لازم کړی هغه په غير متعينه توګه يو وار د کار کول دي إِذِ الْمَقَامُ مَقَامُ الْإِثْبَاتِ ځکه چې دا ځای د إثبات ځای دی فَيَبَرُّ بِأَيِّ فِعْلٍ فَعَلَهُ لهذا کوم کار چې هغه [يو وار] وکړي نو بري کيږي به وَإِنَّمَا يَحْنَثُ بِوُقُوْعِ الْيَأْسِ عَنْهُ او [فقط] هغه وخت به حانث کيږي کله چې له هغه کار څخه [د ده] نا اُميدي واقع سي وَذٰلِكَ بِمَوْتِهِ أَوْ بِفَوْتِ مَحَلِّ الْفِعْلِ او دا نا اُميدي خو يا د ده په مرګ سره واقع کيږي او يا د کار د محل په فوتېدلو سره واقع کيږي وَإِذَا اسْتَحْلَفَ الْوَالِيْ رَجُلًا لِيُعْلِمَنَّهُ بِكُلِّ دَاعِرٍ دَخَلَ الْبَلَدَ او کله چې حاکم له يو سړي څخه قسم واخلي چې هغه به د هر هغه شرپسند [بدکاره] اطلاع حاکم ته ورکوي کوم چې دې ښار ته داخل سي فَهٰذَا عَلٰى حَالِ وِلَايَتِهِ خَاصَّةً نو دا قسم به [فقط] د هغه د ولايت [او حکومت] د وخت سره متعلق وي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهُ دَفْعُ شَرِّهِ أَوْ شَرِّ غَيْرِهِ بِزَجْرِهِ ځکه چې له دې [قسم] څخه [د حاکم] مقصود دا دی چې په خپل زجر [اغندلو] سره د شرپسند کس يا د نورو شرپسندانو [بدکارانو] شر ختم کړي فَلَا يُفِيْدُ فَائِدَتَهُ بَعْدَ زَوَالِ سَلْطَنَتِهِ او ابنکاره خبره ده چې [د حاکم تر حکومت ختمېدلو سره دا زجر اغندل] هيڅ فايده نه کوي وَالزَّوَالُ بِالْمَوْتِ وَكَذَا بِالْعَزْلِ فِيْ ظَاهِرِ

الرِّوَايَةِ او [د هغه] حکومت [د هغه] په مرګ سره ختميږي او همدارنګه په ظاهر روايت کې د هغه په معزوله کېدلو سره [هم ختميږي].

**اللغات:** ﴿بَرَّ﴾ د ضرب او سمع ماضي ده: قسم پوره کول، له قسم څخه بري کېدل. ﴿مُلْتَزَم﴾ د افتعال اسم مفعول دی: پر خپل ځان لازم کړی سوی شی او کار. ﴿يَأْس﴾ نا اُميدي. ﴿دَاعِر﴾ بدکاره، فسادي (پساتي). شر پسند. ﴿زَجْر﴾ د نصر مصدر دی: غندل، رټل (ترټل)، ځورول، دمکي ورکول. ﴿عَزْل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله کول، له منصب څخه ليري کول (ګوښه کول)، برطرفه کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې درې مسئلې بيان سوي دي:

(١) که يو سړی قسم واخلي چي "په الله قسم هيڅکله به چای نه څيښم"، نو اوس پر هغه لازم دي چي د همېشه لپاره چای پرېږدي، ځکه چي هغه مطلقاً د چای څيښلو نفي کړي دي، او مطلق نفي د عموم تقاضا کوي، نو ځکه به هغه د همېشه لپاره د چای له خوند څخه محرومېږي، او که هغه چای وڅيښي، نو د قسم کفاره به اداء کوي.

(٢)... که يو سړی قسم واخلي چي "په الله قسم! زه به خامخا پر دغه مسئله (جای نماز) لمونځ کوم". نو که چيري هغه يو وار پر هغه مسئلې باندي لمونځ وکړي، نو له قسم څخه بري کيږي، ځکه چي هغه په غير متعينه توګه لمونځ کول پر ځان لازم کړي دي، او څرنګه چي په داسي قسم کي إثبات مطلوب دی يعني "کول" (لمونځ کول)، نو ځکه فقط يو وار د لمانځه په إثبات (کولو) سره هم حالف له خپل قسم څخه بري کيږي، او تر هغه وخته پوري دا حالف نه حانث کيږي، تر څو چي هغه د لمونځ کولو څخه مايوس او نا اُميده نه سي، او دغه نا اُميدي خو يا د هغه په مرګ سره ثابتيږي، يا د دغه مسئلې په نيستېدلو (او غائبېدلو) سره ثابتيږي، لېکن تر څو چي دا دواړه شيان قائم او باقي وي، تر هغه وخته پوري دا حالف نه حانث کيږي.

(٣)... که د وخت حاکم (واکمن) له يو سړي څخه قسم واخلي چي "ته قسم واخله! که چيري زموږ ملک ته شر پسند يا دهشتګر داخل سي، نو موږ ته به خامخا د هغه اطلاع راکوې"، او دغه سړی په قسم سره د اطلاع ورکولو وعده وکړي، نو دا قسم تر هغه وخته پوري باقي او مؤثر پاتيږي، تر څو چي د هغه حاکم حکومت باقي وي؛ ځکه چي دلته د قسم اخيستلو فايده او مقصد دا دی چي حاکم هغه شرپسند او دهشتګر ورتې او هغه ته زجر او شکنجه ورکړي چي د هغه شر ليري سي، او هغه له خپل غلط حرکت او کاروايي څخه منع سي، او چي هغه ته په کتلو سره د ملک نور دهشتګردان هم عبرت واخلي او له ناوړه حرکتونو او حملو څخه منع سي، او ښکاره خبره ده چي دا مقصد او فايده هغه وخت حاصليږي کله چي د دغه مذکوره حاکم حکومت باقي وي، نو ځکه به دا قسم د هغه د حکومت تر بقاء پوري مؤثر او باقي وي، او څرنګه چي د حکومت تر زوال او نړېدلو وروسته د زجر او توبيخ هيڅ فايده نسته، نو ځکه به د حکومت او سلطنت تر زوال وروسته قسم باقي نه پاتيږي، او د حکومت زوال خو يا د دې حاکم په مرګ سره ثابتيږي، يا هغه وخت ثابتيږي کله چي دا حاکم له خپل منصب څخه ليري او معزول سي، او د هغه پر ځای بل حاکم راسي.

## د يو شي د هديه کولو په هکله د قسم اخيستلو بيان

وَمَنْ حَلَفَ أَنْ يَهَبَ عَبْدَهُ لِفُلَانٍ او څوک چي قسم واخلي چي هغه به فلانکي ته خپل غلام هديه کوي [په تحفه کي ورکوي] فَوَهَبَهُ وَلَمْ يَقْبَلْ بيا هغه وفلانکي ته غلام هديه کړي [لېکن] فلانکی دا غلام قبول نه کړي بَرَّ فِي يَمِينِهِ نو حالف په خپل قسم کي بري کيږي [ځکه چي هغه خو خپل قسم پوره کړی او غلام يې هبه کړی. نور قبلول او نه قبلول د موهوب لهٔ کار دی] خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله [يعني په دې مسئله کي د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی] فَإِنَّهُ يَعْتَبِرُهُ بِالْبَيْعِ هغه هديه [هبه] پر بيع قياسوي لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ مِثْلُهُ ځکه چي د بيع په څېر هبه هم تمليک ده [امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي څرنګه په بيع کي د بائع او مشتري دواړو په قبول سره بائع له بيع څخه بري کيږي، همداسي به په هبه کي د موهوب لهٔ په قبول سره واهب بري کيږي. لهذا کله چي موهوب لهٔ هبه قبوله نه کړي، نو حالف به حانث کيږي] وَلَنَا: أَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ او زموږ دليل دا دی: چي هبه د يو إحسان عقد دی فَيَتِمُّ بِالْمُتَبَرِّعِ نو ځکه به د احسان کونکي له طرفه هبه پوره کيږي [يعني کله چي محض احسان کونکی يو شی هبه کړي، نو په دې سره به هبه پوره کيږي] وَلِهَذَا يُقَالُ: وَهَبَ وَلَمْ يَقْبَلْ له همدې کبله ويل کيږي چي يوه سړي خپل شی هبه کړی [لېکن] هغه بل قبول نه کړی وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ إِظْهَارُ السَّمَاحَةِ او ځکه چي هبه د سخاوت څرګندول دي وَذَلِكَ يَتِمُّ بِهِ او دا [د سخاوت څرګندول] محض په هبه کولو سره پوره کيږي [زموږ د دليل حاصل دا دی چي دلته د هبه کولو مقصد إحسان کول دي، او حالف خو إحسان وکړی نو ځکه د هغه له طرفه هبه پوره سوه. دويم دليل دا دی چي دلته د هبې مقصد د سخاوت ښکاره کول دي، او حالف خو سخاوت ښکاره کړی. لهذا قسم پوره سو، نو ځکه به حالف نه حانث کيږي] أَمَّا الْبَيْعُ فَمُعَاوَضَةٌ او کوم چي بيع ده، نو هغه خو د معاوضې عقد دی فَاقْتَضَى الْفِعْلَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ نو ځکه هغه له دواړو طرفونو څخه د فعل تقاضا کوي [أما البيع: په دې جمله سره امام زفر ته جواب ورکوي چي بيع معاوضه ده يعني مشتري بائع ته عوض (ثمن) ورکوي او بائع هغه ته عوض (مبيع) ورکوي، نو په دې وجه په بيع کي له دواړو طرفونو څخه د قبول کولو ضرورت سته. لېکن هبه معاوضه نه ده. نو ځکه به په هبه کي د موهوب لهٔ قبول کولو ته هيڅ ضرورت نه وي] وَمَنْ حَلَفَ لَا يَشُمُّ رَيْحَانًا [او څوک چي قسم واخلي چي هغه به ريحان نه بويوي فَشَمَّ وَرْدًا أَوْ يَاسَمِينًا بيا ګلاب يا چمبېلی بوی وکړي لَا يَحْنَثُ نو نه حانث کيږي لِأَنَّهُ اسْمٌ لِمَا لَا سَاقَ لَهُ ځکه چي ريحان هغه ګياه [او نبات]

ته وايي کوم چي تنه نه لري وَلَهُمَا سَاقٌ حال دا چي ګلاب او چمبېلی تنه لري وَلَوْحَلَفَ لَايَشْتَرِي بَنَفْسَجًا او که [يو څوک] قسم واخلي چي ګلِ بنفشه به نه رانيسي وَلَانِيَّةَ لَهُ او [په هغه وخت کي] د ده هيڅ نيت نه وي فَهُوَعَلٰى دُهْنِهِ اِعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ نو د عرف په اعتبار کولو سره به دا قسم د بنفشې د روغنو سره متعلق وي وَلِهٰذَا يُسَمّٰى بَائِعُهُ بَائِعَ الْبَنَفْسَجِ همدا وجه ده چي د بنفشې د روغنو خرڅونکي ته "بَائِعُ البَنَفْسَجِ" [د بنفشې خرڅونکی] وايي وَالشِّرَاءُيَبْتَنِيْ عَلَيْهِ او رانيول پر بيع مبني کيږي وَقِيلَ: فِي عُرْفِنَا يَقَعُ عَلَى الْوَرَقِ او ويل سوي دي چي زموږ په عرف کي به دا قسم د بنفشې پر پاڼو واقع کيږي وَإِنْ حَلَفَ عَلَى الْوَرْدِ او که [يو څوک] د ګلاب په هکله قسم واخلي فَالْيَمِيْنُ عَلَى الْوَرَقِ نو [د هغه] قسم به د ګلاب د پاڼو سره متعلق وي لِأَنَّهُ حَقِيقَةٌ فِيهِ ځکه چي د "وَرْد" لفظ د پاڼو لپاره حقيقت دی وَالْعُرْفُ مُقَرِّرٌ لَهُ او عرف هم د دغه معنیٰ لپاره ثابتونکی دی وَفِي الْبَنَفْسَجِ قَاضٍ عَلَيْهِ او همدا عرف [د بنفشې په باره کي فيصله مند [او حاکم] دی.

**اللغات:** ﴿يَهَبُ﴾ د فتح مضارع ده: هبه کول. هديه کول. په تحفه کي ورکول. ډالی کول. ﴿إِظْهَار﴾ د افعال مصدر دی: ښکاره کول. څرګندول. ﴿تَبَرُّع﴾ د تفعّل مصدر دی: إحسان کول. صدقه کول (خيرات کول). بېله عوضه يو شی ورکول. ﴿تَمْلِيْک﴾ مالک جوړول. ﴿سَمَاحَة﴾ سخاوت. فياضي. ﴿لَا يَشُمُّ﴾ د نصر له باب څخه د نفي صيغه ده: بويول. بوی کول. ﴿رَيْحَان﴾ دا لفظ چي کله په عربي کي مطلق ذکر سي نو معنیٰ يې دا ده: هره شنه او خوشبويه ګياه (نبات). دلته يې همدغه معنیٰ مراد ده. ﴿وَرْد﴾ ګلاب. ګل ګلاب (مشهوره ګل دی). ﴿يَاسْمِيْن﴾ چمبېلی. چمبېل. دا هم يو مشهوره ګل دی چي ژړ او سپين ګلان کوي او ښه بوی لري. ﴿سَاق﴾ تنه. ډډ. ﴿دُهْن﴾ تېل. روغن. ﴿مُقَرِّر﴾ د تفعيل اسمِ فاعل دی: ثابتونکی.

**تشريح:** په دې عبارت کي څلور مسئلې بيان سوي دي. اوله مسئله د ترجمې په ضمن کي تشريح سوه.

**ومن حلف لا يشم ريحانا:** (٢)... دويمه مسئله دا ده که يو څوک قسم واخلي چي زه به ريحان نه بويوم (يعني زه به هره هغه ګياه نه بويوم کوم چي خوشبويه وي). بيا هغه ګلاب يا چمبېلی بوی کړي، نو نه حانث کيږي. ځکه چي ريحان (په عربي کي) هغه ګياه او هغه ګلانو ته وايي کوم چي تنه

نه لري (بلکي محض د تار په څير تنه لري چي هغه ته په عرف کي تنه نه ويل کيږي . او د ګلاب بوټي او د چمبېلي بوټي تنه لري. نو ځکه به د دې په نيولو سره حالف نه حانث کيږي.

**ولوحلف لا يشتري إلخ: (٣)**... دريمه مسئله دا ده که يو څوک قسم واخلي چي ګل بنفشه به نه رانيسم. او د قسم اخيستلو په وخت کي د هغه هيڅ نيت نه وي يعني د هغه په نيت کي د ګل بنفشه روغن يا د هغه پاڼي نه وي. نو د عرف او رواج په اعتبار کولو سره به د هغه دا قسم د ګل بنفشې د روغنو سره متعلق وي. همدا وجه ده چي په عرف کي د ګل بنفشې د روغنو خرڅونکي ته د ګل بنفشه خرڅونکی (بائعُ البنفسج) وايي. او شراء پر بيع مبني ده. لهذا کوم عرف چي په بيع کي وي. هغه عرف به شراء کي هم وايي (يعني څرنګه چي په عرف کي د بيع په صورت کي له ګل بنفشه څخه د هغه روغن مراديږي. همداسي به د شراء په صورت کي هم د عرف اعتبار کيږي او د ګل بنفشه د رانيولو قسم به د هغه د روغنو سره متعلق کيږي. ځکه چي شراء پر بيع مبني ده). او يو قول دا دی چي زموږ په عرف (يعني د مصنف رَحِمَهُ الله د زمانې په عرف) کي به دا قسم د ګل بنفشې د پاڼو سره متعلق وي. خو زموږ په عرف کي (يعني د ژباړن په عرف کي) له ګل بنفشې څخه د هغه ګلان مراديږي. نو ځکه به دا قسم د هغه سره متعلق وي.

**وإن حلف على الورد إلخ: (٤)**... څلورمه مسئله دا ده که يو څوک قسم واخلي چي زه به ګلاب نه رانيسم. نو دا قسم به د ګلاب د پاڼو سره متعلق وي: ځکه چي د "وَرْد" لفظ د وَرَق (پاڼو) لپاره حقيقت دی. او د عربو په عرف کي هم "وَرْد" د ګلاب پاڼو ته وايي. نو ځکه به همدغه معنیٰ ځني مراديږي. لېکن له بنفشې څخه په عرف کي د هغه روغن مراديږي. نو په دې وجه هلته عرف پر حقيقت (يعني د بنفشې پر ګل) باندي حاکم او غالب دی. خو زموږ په اوسني زماني کي به له هغه څخه ګل بنفشه مراديږي. والله أعلم وعلمهُ أتم

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَأَهْلِ بَيْتِهٖ وَعِتْرَتِهٖ أَجْمَعِيْنَ، بِرَحْمَتِكَ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. آمين

